محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد 11

پښتو

تالیف

## مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمة الله علیه

مع

# آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

## حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امدادالعلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات واضافات**

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د خیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر ⑥ د عربی او فارسی د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل


فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پېښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتی اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمی کتب خانه ګردیز
- مکتبه علمیه اکوړه خټک
- دینی کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه نعمانیه غزنی
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

## پاره نمبر [۲۸]

## پاره نمبر [۲۹]

## پاره نمبر [۳۰]

| أياتونه | سورة المجادلة مدنية وهى اثنتان وعشرون اية وثلاث ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۲ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم کونکې دې | ۳ |
| | د الله په نوم شروع کوم چه ډير مهربان اوزيات رحم کونکې دې | |

قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ | قَوْلَ | الَّتِيْ | تُجَادِلُكَ | فِيْ زَوْجِهَا

يقيناواوريده الله | خبره | دهغې ښځې | چې تکرار کوی ستا سره | په باره دخاوند خپل کښې |

بيشکه الله تعالى دهغې ښځې خبره واوريدله | چې دخپل خاوند په حق کښې ئې تاسره تکرار کولو

وَتَشْتَكِيْٓ | اِلَى اللّٰهِ ۖ | وَاللّٰهُ يَسْمَعُ | تَحَاوُرَكُمَا ؕ | اِنَّ اللّٰهَ

او فرياد کوی | الله ته | او الله اوری | ديو بل سره خبری ستاسو | بيشکه الله

اوالله ﷻ ته ئې شکايت کولو | اوالله ﷻ ستاسود دواړو خبرې آوريدلې | .........يقينا الله ﷻ

سَمِيْعٌ بَصِيْرٌ ۞ | اَلَّذِيْنَ | يُظٰهِرُوْنَ | مِنْكُمْ | مِّنْ نِّسَآئِهِمْ

اوريدونکې ليدونکې دې | هغه کسان | چې ظهار کوی | ستاسو نه | دښځو خپلو سره

هرڅه آوری هرڅه وينی | په تاسو کښې چې څوک دخپلو ښځو سره ظهار کوی

مَّا هُنَّ | اُمَّهٰتِهِمْ ؕ | اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ | اِلَّا الّٰٓـِٔيْ

نه دی هغوئ | ميندې دهغوئ | نه دی ميندې دهغوئ | مگر هغه ښځې ئې ميندې دی |

نو هغه ښځې ددوئ ميانديې خو نه دی | مياندې خوئې بس هغه دی چې دوی ئې

وَلَدْنَهُمْ ؕ | وَاِنَّهُمْ | لَيَقُوْلُوْنَ | مُنْكَرًا | مِّنَ الْقَوْلِ

چې زيږولی ئې دی هغوئ لره | او بيشکه دوئ | خامخا وائی | بې مناسبه | دخبرې نه

زيږولی دی | يقينا چې دوئ يوه غيرمناسبه او دروغ

وَّزُوْرًا ؕ | وَاِنَّ اللّٰهَ | لَعَفُوٌّ | غَفُوْرٌ ۞ | وَالَّذِيْنَ | يُظٰهِرُوْنَ

او دروغ | او بيشکه الله | خامخا معاف کونکې | بخښونکې دې | او هغه خلق | چې ظهار کوی

خبره کوئ او بيشکه الله معافی کونکې بخښونکې دې | ..........اوڅوک چې دخپلو ښځو

مِنْ نِّسَآئِهِمْ | ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ | لِمَا | قَالُوْا | فَتَحْرِيْرُ

دښځو خپلو سره | بيا واپس کيږی | دهغه خبری نه | چې وئيلی وه هغوئ | پس آزادول دی

سره ظهار اوکړی بيا د خپلې خبر ې نه واپس کيدل (يعنی تلافی کول) غواړی | نو دهغه په ذمه يو غلام

رَقَبَةٍ | مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ؕ | ذٰلِكُمْ | تُوْعَظُوْنَ

ديو مرئی | مخکښی دلاس وروړلونه يو بل له | دا حکم دې | چې نصيحت کيږی تاسو ته |

ازادول دی | ددې نه وړاندې چې دواړه يو بل سره يوځائې شی | دا حکم څکه دې چې تاسوتري نصيحت

بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ ۝ فَمَنْ

په دې سره | او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | خبردار دی | پس هغه چا

واخلئ| او تاسو چې کوم کارونه کوئ الله ﷻ پرې ښه خبر دی | ..........نو څوک چې

لَّمْ یَجِدْ فَصِیَامُ شَهْرَیْنِ مُتَتَابِعَیْنِ مِنْ قَبْلِ

چې بیا نه موندو [غلام] | پس روژې نیول دی | دوه میاشتې | مسلسل | مخکښې

غلام پیدانه کړو | نو دوه میاشتې پرله پسې [مسلسل] روژې نیول لازم دی | ددې نه وړاندې

اَنْ یَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ

دلاس وروړلو نه یو بل له | پس هغه څوک | چې طاقت ئې نه لرو [دروژو] | پس خوراک ورکول دی

چې دواړه یو بل سره یوځائې شي | او څوک چې دا هم نشي کولې | نو شپیتو

سِتِّیْنَ مِسْكِیْنًا ؕ ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ

شپیتو مسکینانوته | دا حکم دی | دپاره ددې چې تاسو ایمان راوړئ | په الله باندې

مسکینانو ته خوراک ورکول دی | دا [حکمونه] خکه دی | ..........چې تاسو په الله او دهغهٔ په

وَرَسُوْلِهٖ ؕ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَلِلْكٰفِرِیْنَ عَذَابٌ

او په رسول دهغه باندې | او دا مقرر کړې شوی حدونه دالله دی | او دپاره دکافرانو | عذاب

رسول ﷺ ایمان راوړئ| او دا دالله ﷻ مقرر حدود دی | او د کافرانو دپاره دردناک عذاب مقرر دې

اَلِیْمٌ ۝ اِنَّ الَّذِیْنَ یُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا

دردناک دې | بیشکه هغه کسان | چې مخالفت کوی دالله | او درسول دهغه | هغوئ به ذلیله کړې شي

څوک چې دالله ﷻ او دده د رسول ﷺ [دحکم] مخالفت کوی | هغوئ به داسې ذلیله شي

كَمَا كُبِتَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَقَدْ اَنْزَلْنَآ

لکه څنګه چې | خوار او ذلیل کړې شوی دی | هغه کسان | چې مخکښې ددوئ نه وو | او نازل کړې دی مونږه

لکه څنګه چې پخوانی خلق ذلیله شوی وو | ..........او یقینا مونږ خو واضحه آیاتونه رالیږلی

اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِیْنَ عَذَابٌ مُّهِیْنٌ ۝ یَوْمَ

آیتونه واضحه | او دپاره دکافرانو | عذاب سپکونکې دې | په کومه ورځ

دی | او کافرانو دپاره رسوا کونکې عذاب مقرر دې | .......... په کومه ورځ چې

یَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِیْعًا فَیُنَبِّئُهُمْ بِمَا

چې به ژوندی راپورته کړی دوئ الله | ټول | پس خبر به کړی دوئ له | په هغه عمل

الله تعالی دا ټول خلق [دقبرونونه] راوچت کړی| بیا چې څه دوی کړی وی هغه ټول به ورته اوښائي

عَمِلُوْا ؕ اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ

چې کړې دې دوئ | شمار کړې دې هغه الله | او هیر کړې دې دوئ هغه | او الله | په هر څیز باندې

..........دغه کارونه الله ﷻ محفوظ کړی دی| او دوئ هیر کړی دی | او الله ﷻ په هر څیز باندې

| شَهِيْدٌ ⑥ |
| --- |
| گواه دی \| |
| ښه خبر دی |
| |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره علیه السلام) الله تعالیٰ دهغې زنانه خبره اورېدلې ده، چه تاسره د خپل خاوند باره کښې بحث کوی، او الله تعالیٰ ته فریاد کوی او الله تعالیٰ ستاسو د دواړو خبرې اوری، یقیناً الله تعالیٰ هرڅه اوری، او هر څه وینی په تاسو کښې چه کوم خلق د خپلو بیبیانو سره ظهار اوکړی، (د هغوی په دې عمل سره) هغه بیبیانې د هغوی میاندې نه جوړیږی، د هغوی میاندې خو هم هغه دی، کومو چه دوی زیږولې دی. حقیقت دادې، چه دا خلق داسې خبره کوی، چه ډېره بده ده. او دروغ ده او الله تعالیٰ معاف کونکې او ډېر بخونکې دې. او کوم خلق چه د خپلو بیبیانو سره ظهار اوکړی، بیا ئې چه څه وئیلې وی، د هغې نه رجوع کوی، نو دهغوی په ذمه یو غلام آزادول دی، مخکښې ددې نه چه دا خاوند او ښځه یو بل ته نزدې شی دادے هغه خبره، چه ددې تاسو ته نصیحت کولې شی، او تاسو چه څه کوئ، الله تعالیٰ په هغې باندې پوره خبر دې پس چاچه غلام ونه موندلو، نو دهغه په ذمه دوه میاشتې پرله پسې روژې نیول دی، مخکښې ددې نه چه هغه ښځه خاوند یو بل سره نزدې شی، بیا چه د چا د روژو طاقت هم نه وی، نو دهغه په ذمه شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکول دی، دا ددې دپاره، چه تاسو په الله تعالیٰ او دهغه په رسول باندې ایمان راوړئ او دا د الله تعالیٰ مقرر کړې شوې حدونه دی، او د کافرانو دپاره دردناک عذاب دې. یقین اوساتی، چه کوم خلق د الله تعالیٰ اودهغه د رسول مخالفت کوی، هغوی به داسې ذلیله شی، څرنګه چه ددوی نه مخکښې خلق ذلیله شوې وو او مونږ ښکاره ښکاره آیتونه نازل کړې دی، او د کافرانو دپاره داسې عذاب دې، چه ذلیل به ئې کړی په هغه ورځ چه الله تعالیٰ به دا ټول دوباره راژوندی کړی، بیا به دوی ته خبر ورکړی، چه دوی څه څه کړی دی الله تعالیٰ هغه شمارلو سره محفوظ کړې دی، او دوی هغه هیر کړې دی، او الله تعالیٰ په هر څیز باندې ګواه دې.

**شان نزول:** ددې سورت دَ شروع آیاتونو دَ نزول سبب یوه خاص واقعه ده چه حضرت عباده بن الصامت ﷺ یوخل خپلې بی بی خوله ته دا اووئیل چه أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ یعنی ته په ما داسې ئې لکه زما دَ مور شا یعنې حرامه ئې. دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت نه وړاندې زمانه کښې به دا لفظ دَ ابدی او دائمی حرمت دپاره وئیلې شوکوم چه دَ طلاق مغلظه نه هم سخت دې. حضرت خوله ﷺ ددې واقعه په پیښیدو باندې دحضورپاك په خدمت کښې دَدې شرعی حکم معلومولو دپاره حاضره شوه. دغه وخته پورې ددې خاص مسئلې متعلق په حضورپاك باندې څه وحی نه وه نازل شوې. په دې وجه حضورپاك دَ مشهور قول موافق هغې ته اوفرمائیل [مَا أَرَاكِ إِلَّا قَدْ حَرُمْتِ عَلَيْهِ] یعنی زما په رائې کښې ته په خپل خاوندباندې حرامه شوې. هغې ددې په اوریدو باندې شور جوړکړو چه زما ځوانی ټوله دَدې خاوند په خدمت کښې ختمه شوه اوس په بوډاوالی کښې ده ماسره داسې معامله اوکړه زه به چرته ځم؟ زما اوزمادَ بچو ګذاره به څنګه کیږی؟ او په یوروایت کښې دی چه حضرت خوله ﷺ اووئیل چه مَا ذَكَرَ طَلَاقًا یعنی زما خاوندخودَ طلاق نوم هم نه دې اخستې نوبیا طلاق څنګه اوشو. او په یوروایت کښې دی چه حضرت خوله ﷺ الله تعالیٰ ته فریاداوکړو [اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَشْكُوْ إِلَيْكَ] او په یوروایت کښې دی چه حضورپاك خوله ﷺ ته اووئیل [مَا

أُمِرْتُ فِي شَأْنِكِ بِشَيْءٍ حَتَّى الْآنَ] یعني تر اوسه پورې ستا دَ مسئلې متعلق په ما باندې څه حکم نه دې نازل شوي [كذا في الدر المنثور وابن كثير] (۱)

په دې وجه دَدې سورت دَ شروع آیاتونو کښې دَدې خاص مسئلې دکوم نوم چه ظهار دې شرعي حکم اوفرمائیلې شو په کوم کښې چه الله تعالی دحضرت خوله رضي الله عنها فریاد واوریدو اودهغې دپاره ئې آساني پیداکړه. دهغې د وجې نه الله تعالی په قرآن پاك کښې دا مستقل احکام نازل کړل په دې وجه حضرات صحابه کرامو دَهغوي دیر احترام کولو. یوه ورځ فاروق اعظم رضي الله عنه یوې مجمعې سره روان وو داښځه حضرت خوله رضي الله عنها دهغوي مخې ته راغله اودریده. څه ئې ونیل غوښتل. حضرت عمر رضي الله عنه په لار کښې اودریدو دَهغې خبره ئې واوریده. بعض خلقو اوونیل چه تاسودَدې بوډئې په خاطر دومره لویه مجمع رامنع کړه. نوهغوی اوفرمائیل چه خبرېږې داڅوك ده؟ داهغه ښځه ده دَچاخبره چه الله تعالی دَ اووه آسمانونو دَپاسه واوریده زه څوك یم چه دَدې خبره ردکړم. والله که چرې دا پخپله رخصت شوې نه وه نو زه به دَ شپې پورې دې سره اودریدم. [ابن کثیر] (۲)

## خلاصه تفسیر

﴿قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا﴾ [بیشکه الله تعالی دهغې ښځې خبره واوریده کو مې چه تاسره دخپل خاوندپه معامله کښې جګړه کوله] مثلا داسې ئې ونیل چه مَاذَكَرَطَلاَقًا یعني هغه خو دطلاق صیغه نه ده ذکرکړې بیاحرمت څنګه وشواو [دخپل رنج اوغم] شکایت ئې دَ الله تعالی نه کولو ﴿وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ﴾ [الله تعالی ته فریادکولو] مثلا داسې ئې ونیل اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَشْكُوْ اِلَيْكَ(۳) ﴿وَاللَّهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا﴾ [اوالله تعالی ستاسو ددواړوخبرې اوریدلې] ﴿إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ او[الله تعالی] خو [هرڅه اوریدونکې هرڅه لیدونکې دې] نو داخبره به ئې څنګه نه اوریدله او په فسمع الله سره دالله تعالی مقصوددخان دپاره صفت دَ اوریدو ثابتول نه دې بلکه دښځې تکلیف ختمول اوددې عاجزی قبلول دې ﴿الَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْكُمْ مِنْ نِسَائِهِمْ﴾ [په تاسوکښې چه کوم خلق دخپلو ببیبانو سره ظهارکوي مثلا] داسې ووائي انت علی کظهر امی ﴿مَا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ﴾ [هغه] بیبیانې ددوي میندې نه دی ﴿إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي وَلَدْنَهُمْ﴾ د دوي میندې خو بس هغه دې د کومونه چه دوي پیدا دي په دې وجه په دې الفاظو ونیلوسره دا ښځې د دوي میندې نه جوړېږي چه دهمیشه حرمت دمور په مثل ثابت شي اوڅه بل سبب هم د دائمي حرمت په څه دلیل سره متحقق شوي نه دي مثلا تحریم دنسب رضاع یامصاهرة کیدل وغیره پس د دائمي حرمت نفي وشوه ﴿وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُورًا﴾ اوهغه خلق کوم چه بیبیانوته میندې وائي بیشکه یوه نامعقوله او دروغ خبره کوي په دې وجه گناپه کښې خامخاده او که د دې گناه بندیزاوکړې شی نو هغه گناه به معاف هم شي ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ﴾ ځکه چه یقینا الله تعالی معاف کوونکې او بخښنې والا دې او وراندې ددې تدارك دخنوصورتونوپه اعتبار سره بیان دی ﴿وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ﴾ چه کوم خلق دخپلو بیبیانو سره ظهار وکړي ﴿ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا﴾ بیادخپلې ونیلې شوې خبرې دمقتضاکوم چه دتحریم په وجه دې تلافې کول غواړي

۱) تفسير الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۴۲۸] و تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۳۴]
۲) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۳۷] و تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۶۹]
۳) سنن ابن ماجة، ابواب الطلاق، باب الظهار [ج:۱ ص:۱۴۹ ]

يعني دبيبيانو نه نفع حاصلول غواړي ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا﴾ نو دهغوي په ذمه يو غلام ياوينځه ازادول دي وړاند د دي نه چه دواړه ښځه خاوند ديوبل سره خلط كوي په كور والي سره ياپه اسبابودكوروالي سره ﴿ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ﴾ په دي دكفاري په حكم كولو سره تاسوته نصيحت كولي شي دكفاري نه علاوه د ګناهونودكفاري دپاره هم ده نفع ده چه په دي سره داننده دپاره تا سوخبردارشي ﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾او الله تعالى ته ستاسو دټولو عملونو پوره خبردي چه دكفاري متعلق د احكامو پوره په خاي كول كوي اوكه نه‌پس كفاره كښي دوه حكمتونه شول يو دګناه معافي دكوم طرف ته چه اشاره ده په عفو غفور كښي دويم زجراو خبردارول دي د كوم چه په توعظون كښي بيان شوي دي اود دويم حكمت هم دكفاري داقسامو په ذكركښي مقدم دي په دي وجه ئي دا ددي سره ذكر كړو﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا﴾ بيادچاسره چه غلام ياوينځه نه وي نود ده په ذمه پرله پسي دوه مياشتي روژي دي وړانددي نه چه دواړه ښځه خاونددیو بل سره خلوت كنايةً كوروالي وكړي ﴿فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا﴾ بياچه دچا نه داهم نه شي كيدي نودده په ذمه شپيته مسكينانو له خوراك وركول دي وړانددي حكم دنورو احكامو په شان واجب التصديق كيدل خكه بيان فرمائي چه د دي حكم مقصدپخواني رسم اودجاهليت حكم ماتول دي په دي وجه اهتمام مناسب شو پس ارشاد وشو چه﴿ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ داحكم خكه بيان كړي شوي دي چه د دي حكم سره دمتعلقو مصلحتونو حاصلولو نه علاوه په الله تعالى او رسول ايمان هم راوړي يعني په دي احكاموكښي د دوي تصديق هم وكړي چه دايمان په حقله مصلحتونه درته هم حاصل شي او وړاند دزيات تاكيددپاره ارشاددي ﴿وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ﴾ چه دا د الله تعالى حدونه دي چه ټرلي شوي دي يعني ضابطي دي ﴿وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ اودكافرانو دپاره [كوم چه بالخصوص ددي احكامو تصديق نه كوي] سخت دردناك عذاب به وي مطلق عذاب په عمل كښي دخلل غورځوونكي دپاره هم كيدي شي اوددي حكم څۀ تخصيص نشته بلكه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾كوم خلق چه دالله تعالى اود رسول مخالفت كوي خوا په هر يو حكم كښي چه كوي لكه دمكي كافران هغوي، به په دنيا كښي هم ﴿كُبِتُوا كَمَا كُبِتَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾داسي ذليله شي لكه چه د دوي نه وړاند خلق ذليل شول چنانچه په ډيرو غزاګا نو كښي د دي وقوع وشوه ﴿وَقَدْ أَنزَلْنَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ﴾ او سزا به ولي نه وي خكه چه مونږ ښكاره احكام [چه صحت ئي دايتونو د اعجاز نه ثابت دي] نازل كړي دي نو ددوي انكار به لا محاله موجب سزاوي اوداسزاخو به په دنياكښي هم وي﴿وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ اوكافرانولره به په اخرت كښي هم دذلت عذاب وي اووړاند د دي عذاب وخت ښائي چه دابه ﴿يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا﴾په هغه ورځ وي په كومه ورځ چه دي ټولولره الله تعالى دوباره ژوندى كړي بيابه دهغوي ټولو كړي عملونه هغوي ته وښائي﴿أَحْصَاهُ اللَّهُ وَنَسُوهُ ۚ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ خكه چه الله تعالى هغه محفوظ كړي دي اودغوخلقو هغو لره هيركړي دي خواحقيقتا ياپه اعتباردبي التفاتي اوالله تعالى په هرڅۀ خبرداردي [خواه دهغوئ عملونه وي يانورڅۀ].

**معارف او مسائل**

﴿قَدْ سَمِعَ اللَّهُ﴾ ددي آيتونو د نازليدووجه چي پورته بيان شو بده،دا ده چي د اوس بن صامت رضي الله عنه

بی بی خوله بنت ثعلبه رضی الله عنها سره خپل خاوند ،ظهار کړی وو ، چې ددې شکایت په غرض د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه.
الله ﷻ هغې ته داعزت ورکړو چې دهغې باره کښې ئې داآیتونه نازل کړل. په دې ئې یواځې د ظهار شرعي حکم او دهغې تکلیف په لرې کولو بس والې اونه کړو بلکه د هغې د زړهٔ ساتلو دپاره ئې د کلام په شروع کښې اوفرمائیل چې مونږه د دغې بی بی خبرې آورېدلې کومې چې د خپل خاوند باره کښې تاسو ﷺ سره جګړه کوله. دلته د جګړې کولو مطلب دادې چې یو خل د خپلې خبرې د جواب آوریدو نه پس ئې هم خپله خبره بیا بیا اړوله را اړه وله او تینګار ئې پرې کولو. او په څینې روایتونو کښې دا هم راغلی دی چې کله نبی کریم ﷺ دغې بی بی ته جواب ورکړو چې ستا په معامله کښې ماباندې الله ﷻ څه حکم نه دې نازل کړې. نو په دې دا ډیره غمژنه شوه او دا خبره ئې د خلې نه بې اختیاره اوختله چې هسې خو په تاسو ﷺ باندې د هرې خبرې حکم نازلیږې ولې زما باره کښې درباندې وحی رانغله ؟ [ قر طبی ](1).
اوالله ﷻ ته ئې فریاد هم شروع کړو څنګه چې الله ﷻ فرمائی چې :﴿وَتَشْتَكِيٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ څکه دې باره کښې الله ﷻ دا آیت مبارک نازل کړو.
عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چې پاک دې هغه ذات چې آوریدل ئې د ټولو آوازونو راچاپیره دی دهر یو آواز آوری. زهٔ په دغه وخت نبی کریم ﷺ سره موجوده اوم خو سره ددې مې دخوله بنت ثعلبه رضی الله عنها ټولې خبرې واؤ نه ریدې او الله ﷻ ئې ټولې سراسری خبرې واوریدې لکه فرمائی: ﴿قَدْ سَمِعَ ٱللَّهُ﴾. [بخاری ، ابن کثیر ](2).
﴿ٱلَّذِينَ يُظَٰهِرُونَ مِنكُم مِّن نِّسَآئِهِم﴾ ﴿يُظَٰهِرُونَ﴾ د ظهار نه مشتق دې چې د خپلې بی بی په ځان باندې د حرامولو یو خاص صورت کښې وئیلې شی او د اسلام د زمانې نه وړاندې هم رواج لرلو. هغه صورت دادې چه خپلې بی بی ته ئی دا اووئیل چې [ انت علی کظهر امی] یعنی ته په ما باندې زما د مور پشان حرامه یې. دلته د شا یعنی ظهر ذکر کړل په توګه دَ کنایه دی اصل مراد خو بطن دې ذکرئې دَ شا اوکړو. څنګه چې قرطبی بیان کړل(3).
**ظهار څه ته وائی او شرعي حکم ئې څه دې ؟** د شریعت په اصطلاح کښې ظهار دې ته وائی چې خپلې بی بی لره دهغې ښځې دیو داسې اندام سره تشبیه ورکړی کومو ته ئې چې کتل حرام وی او دغه ښځې پرې همیشه دپاره حرامې وی لکه مور ، خور ، لور ، وغیره ، نو د مور شا یعنی ظهر هم ددې یو مثال دې د جاهلیت په زمانه کښې به د همیشه حراموالی دپاره استعمالولې اووئیلې شو چې د طلاقو نه بهٔ هم سخت صورت ګڼړلې شو ، ولې چې طلاق نه پس په رجوع یا بل نکاح کولو سره بیرته بی بی جوړیدلې شوه خو د ظهار په صورت کښې د جاهلیت د رسم په جوړ به دغه ښځه همیشه دپاره پرې حرامه وه ، هیڅکله په هیڅ صورت سره به ئې بیا ښځه نشوه جوړیدې.
ددې آیاتونو مبارکو په ذریعه اسلامی شریعت ددې اصلاح په دوؤ حیثیتو سره اوکړه اول خو

(1) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۷۰]
(2) صحیح البخاري کتاب التوحید ،باب قول الله تعالی وکان الله سمیعا بصیرا [ج:۲ص:۱۰۹۹]
(3) تفسیر القرطبي تفسیر سورة المجادلة [ ج:۱۷ص:۲۷۳]

ئې پخپله دغه رسم د ظهار ناروا او ګناه اوګرځوله د بی بی د جدا کولو طریقه ئې صرف طلاق اوګرځولو او ظهار ته ئې عبث او دروغ کلام اوفرمائیلو لکه چې قرآن کریم فرمائی: ﴿مَّا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ ۖ إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي وَلَدْنَهُمْ ۚ﴾ یعنی د عبث کلام په وجه ئې بی بی مور نشی جوړیدې ، مور خو ئې هغه ده د چا دخیټې نه چه دې پیدا دې بیا ئې اوفرمائیل چې: ﴿وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُورًا ۚ﴾ یعنی د دوئ خبره دروغ هم ده چې د واقع نه خلاف بی بی ته مور وائی ، او منکر یعنی ګناه هم ده.

دویمه اصلاح ئې دا اوفرمائیله چې که څوک ناواقف ، جاهل یا ددین د احکامو نه غافل سړې داسې اوکړې نو دشریعت په وجه په دې سره همیشه حرامولې نه ثابتیږی. خو لکه د وړاندې په شان بالکل آزاد هم نه دې چې خپلې بی بی نه په مخه فائده اخلی بلکه یو جرمانه اوکفاره پرې اولګولې شوه چې که بیا خپلې بی بی ته رجوع کول او ترې فائده ا خستل غواړی نو په کفارې ادا کولو سره دخپلې ګناه لرې کول کولې شی په وروسې آیت مبارک کښې: ﴿وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا﴾ هم دا مطلب دې په: ﴿يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا﴾ کښې لام حرف د عن په معنی سره اخستې کیږی. یعنی دخپل قول یعنی خپلې خبرې نه آوړی او د ابن عباس رضی الله عنه نه د: ﴿يَعُودُونَ﴾ تفسیر د يَنْدَمُونَ په لفظ سره هم منقول دې. ددې مطلب دادې چې ددې قول د وئیلو نه پس دوئ په خپل قول باندې پښیمانه شی او بیا خپلې بی بی سره ګډون کول غواړی. [ مظهری ][1].

ددې آیت نه معلومه شوه چې د کفارې واجبیدل هله دی چې بیا ئې خپله ښځه کول او ځان دپاره ئې حلالول غواړی. ظهار پخپله ددې کفارې علت نه دې بلکه ظهار کول یوه ګناه ده چې کفاره ئې توبه او استغفار دې چې ورته په: ﴿وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ﴾ سره اشاره کړې شویده او که څوک ئې بیا خپله ښځه کول غواړی نو څه ګناه پرې نشته. البته د خپلې بی بی حق بربادول ناروا دی که بی بې ترې د ګډون غوښتنه اوکړی نو د ګډون کولو دپاره ئې کفاره ادا کول یا طلاق ورکولو سره آزادول واجب دی او که دغه سړې ئې پخپله نه کوی نو بی بی به ئې اسلامی حاکم ته رجوع اوکړی چې هغه ئې په دې مجبوره کولې شی ، دا ټولې مسئلې د فقهې په کتابونو کښې په تفصیل سره لیکلې شوی دی.

﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ﴾ د ظهار کفاره داده چې یو غلام یا وینځه آزاد کړی که په دې قدرت نه لری نو دوه میاشتې به په مخه پرله پسې روژې نیسی. اوکه کمزورې وی یا بیمار وی او دغسې نشی کولې نو شپیتو مسکینانو ته به خوراک ورکوی. چې په مړه خیټه وی او ددې په ځائې داسې کول هم جائز دی چې یو یو مسکین ته د فطرانې یعنی سرسایه په اندازه غنم یا ددې قیمت ورکړی، دا زمونږ په اندازه پاؤ کم دوه سیره غنم کیږی. د ظهار باره کښې حکمونه او ددې د کفارې تفصیلی مسئلې د فقهې په کتابونو کښې کتلې شی.

کله چې دظهاردغه بیان شوی احکام نازل شواوظهار کړې بی بی دوباره ښځې په ډول دساتلو ګنجائش راوڅتو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ددغې بی بی خاوند راوبللو ، هغه په نظر کمزورې یو بوډا سړې وو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته دا حکم واؤرولو او ورته ئې اوفرمائیل چې د کفارې په

[1]) تفسیر المظهری سورة المجادلة [ ج:۹ص:۲۱۳]

دول یو غلام یا وینځه آزاده کړه . هغه عرض او کړو چې داخو زما په وس کښې نشته . بیا ورته نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې بیا په مخه دوه میاشتې روژې اونیسه . هغه قسم اوکړو او عرض ئې اوکړو چې زما حالت دادې چې د ورځې دوه دري ځل خوراک او نه کړم نو بیا مې نظر نه لګی . نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې شپیتو مسکینانوته خوراک ورکړه . هغه عرض اوکړو چې ددې وس مې هم نشته، سوا ددې نه چې تاسو راسره مدد اوکړئ. نبی کریم ﷺ ورته چې څه غله ورکړه، بیا ورته نورو خلقو هم راجمع کړه په کومې سره چې دشپیتو مسکینانو خوراکه پوره کیدیشوه . په دې شان هغه دغه کفاره ادا کړه . [ ابن کثیر ] (۱)

﴿ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۗ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ دلته د لِتُؤْمِنُوْا اوفرمائیل اود ایمان راوړو نه مراد په حکمونو او دشریعت په څیزونو باندې عمل کول دی . اوبیا ئې اوفرمائیل چې داکفارې وغیره حکمونه دالله ﷻ مقرر کړی حدونه دی ، دهغې نه تیریدل حرام دی . اشاره دې ته ده چې اسلام د نکاح ، طلاق ، ظهار او نورو ټولو معاملو د جاهلیت رسمونه ختم کړل دهغې په ځائې ئې د معتدل یعنی منځومیانه او صحیح طریقو تعلیم ورکړې دې، تاسو په هغې ولاړ پاتې کیږئی . او کوم خلق چې ددغې شرعی حدونو منکر او کافر دی هغوئ ته به دردناکه سزا ورکولې شی .

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ په تیر شوی آیت مبارک کښې د الله ﷻ د حدونو او د اسلامی شریعت دحکمونو دپابندئی تاکید کړې شوې وو. په دې کښې هغې خلقو ته زورنه ده چې د الله ﷻ دحدونو مخالف او منکر دی ، په دې وعید کښې هغوئ دپاره په دنیا کښې هم او آخرت کښې هم ذلت ، خواری او دهغوئ دکفری قصدونو دناکامئ او په آخرت کښې د دردناک عذاب بیان دې .

﴿اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوْهُ ۭ﴾ کښې په دې باندې خبرداری ورکول دی چې غافل انسان په دنیا کښې د فسق ، فجور کارونه کوی لګیا وی چې یاد ئې هم نه وی . او دهیرولو اصلی سبب ئې دا وی چې هغه دا کار څه اهمیت یا حیثیت نه ورکوی. ځکه ئې په ذهن کښې هم نه پاتې کیږی . هغه ټول الله ﷻ سره لیکلې شوی دی او الله ﷻ ته یادوی چې ددې ټولو به ورسره حساب کولې او عذاب به ورکولې شی.

| اَلَمْ تَرَ | اَنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| آیا ته نه وینې | چی بیشکه الله | خبریږی | دهغه څه نه | چی په آسمانونو کښی دی |
| آیا تا په دې خبره غور نه دې کړې | چې الله ﷻ د آسمانونو او د زمکې | | | |

| وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ | مَا يَكُوْنُ | مِنْ نَّجْوٰى | ثَلٰثَةٍ | اِلَّا هُوَ |
|---|---|---|---|---|
| او هغه چی په زمکه کښی دی | نه وی | دغوږ خبری | ددریو کسانو | مګر هغه |
| په هر څیز ښه پوهیږی | په دریو کسانو کښې هیڅ د غوږ مجلس داسې نه کیږی | | | |

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۸ ص:۱۲٦] و مسند احمد رقم الحدیث:[۲۷۳٦۰] حدیث خولة بنت ثعلبة رضی الله عنها

| رَابِعُهُمْ | وَلَا خَمْسَةٍ | إِلَّا هُوَ | سَادِسُهُمْ | وَلَا أَدْنَىٰ مِن ذَٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|
| خلورم دهغوئ وی | اونه دپنځو کسانو | مگر هغه | شپږم دهغوئ وی | او نه کم ددي نه |

چي خلورم په کښي الله نه وي|او نه په پنځو کښي چي شپږم به په کښي الله نه وي|او نه ددي نه کم

| وَلَا أَكْثَرَ | إِلَّا هُوَ | مَعَهُمْ | أَيْنَ مَا كَانُوا | ثُمَّ يُنَبِّئُهُم |
|---|---|---|---|---|
| او نه زيات | مگر هغه | دهغوئ سره وي | هر خائي کښي چي وي هغوئ | بيا به خبر ورکړي هغوی له |

اونه ددي نه زيات | خو الله ﷻ ددوئ سره موجود وي | په هرخائي کښي چي دوي وي | بيا به ورته د

| بِمَا | عَمِلُوا | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | إِنَّ اللَّهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه څه | چي کړي وي هغوئ | په ورځ دقيامت | بيشکه الله | په هر څيز باندي | بنه خبردار دي |

قيامت په ورځ د دوی عملونه وړاندي کړي| بيشکه چي الله ﷻ په هر څه عالم دي

| أَلَمْ تَرَ | إِلَى الَّذِينَ | نُهُوا | عَنِ النَّجْوَىٰ | ثُمَّ يَعُودُونَ |
|---|---|---|---|---|
| آيا تا اونه ليدل | هغه کسان | چي منع کړي شوی وو | دغوږ دخبرونه | بيا کوئ هغوئ |

آيا تا دهغه خلقو حال اونه ليدلو| چي دناجائزه پټو مشورو نه منع شوی وو| بيا دکومي خبري نه

| لِمَا | نُهُوا عَنْهُ | وَيَتَنَاجَوْنَ | بِالْإِثْمِ | وَالْعُدْوَانِ |
|---|---|---|---|---|
| هغه کار | چي منع کړي شوی وو دهغي نه | او پټي خبري کوی | دگناه | او دزيات [ظلم] |

چي دوئ منع کړي شوی وو| هم په هغي خبرو کښي لگيا دي |اود گناه| ود ظلم کولو

| وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ | وَإِذَا جَاءُوكَ | حَيَّوْكَ | بِمَا |
|---|---|---|---|
| او دنافرمانئ درسول | او کله چي راشي تاته | نو سلام کوی تاته | په هغه طريقه |

اودرسول ﷺ دنافرمانئ پټ پټ مجلسونه کوی | او [ائي نبی ﷺ] تاته چي مخامخ شي

| لَمْ يُحَيِّكَ | بِهِ اللَّهُ | وَيَقُولُونَ | فِي أَنفُسِهِمْ |
|---|---|---|---|
| چي نه دي کړي سلام تاته | په هغي سره الله | او وائي دوئ | په زړونو خپلو کښي |

نوبه داسي تکو درباندي سلام اچوی اچي الله درباندي هغه سلام نه دي اچولي | او په خپلو زړونو کښي وائي

| لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللَّهُ | بِمَا | نَقُولُ | حَسْبُهُمْ | جَهَنَّمُ |
|---|---|---|---|---|
| ولي نه راکوی عذاب مونږ ته الله | په هغه خبرو | چي وايو ئي مونږه | کافي دي دوئ له | دوزخ |

چي څه مونږ وايو| الله ﷻ مونږ ته دهغي سزا ولي نه راکوی | ..........دي خلقو دپاره دوزخ کافي دي

| يَصْلَوْنَهَا | فَبِئْسَ الْمَصِيرُ | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا |
|---|---|---|---|
| چي ننوزی به هغي ته | پس ډير بدخائي دي دورتلو | اے هغه کسانو | چي ايمان مو راوړي دي |

هغوئ به ورته داخليږي | اودغه ډيره خرابه ټيکانړه ده | ائي مومنانو !

| إِذَا تَنَاجَيْتُمْ | فَلَا تَتَنَاجَوْا | بِالْإِثْمِ | وَالْعُدْوَانِ |
|---|---|---|---|
| کله چي تاسو ديوبل سره پټي خبري کوئ | پس پټي خبری مه کوئ | دگناه | او دزياتي |

هرکله چي پټ مجلس کوئ | .........نو دگناه د زياتئ او د رسول د نافرمانئ

وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ

او دنافرمانئ | درسول | او کوئ پټې خبرې | دنيکئ | او دپرهيزګارئ | اواوېرېږئ دالله نه

مشورې هيڅ کله مه کوئ | ابلکه دنيکئ او پرهيزګارئ باره کښې صلاح مشورې کوئ | او دالله نه وېرېږئ

الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝ اِنَّمَا النَّجْوٰى

| هغه الله | چې هغه ته | به ورجمع کړې شئ تاسو | بيشکه چې دا پټې دغوږ خبرې |

هغه الله چې تاسو ټول به ورته پيش کولې شئ | ............... پټې صلاح ګانې

مِنَ الشَّيْطٰنِ لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

دشيطان نه دي | دپاره ددې چې غمژن شي | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړې دې |

دشيطان په راپارولو کيږي | ............چې مومنان پرې غمژن کړي

وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ وَعَلَى اللّٰهِ

حالانکه نه دې شيطان ضرررسونکې دوئ ته | هيڅ قدرله | مګرپه حکم دالله سره | اوخاص په الله باندې

حال دادې چې دالله ﷻ دحکم نه بغير شيطان هغوئ ته هيڅ ضرر نشي رسولې | او خاص په الله تعالی

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

پکار دې چې توکل اوکړي | مومنان | اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې |

دې مومنان بهروسه ساتی | ........................ائې مومنانو !

اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا

کله چې اووئيلې شي | تاسو ته | فراخي اوکړئ | په ځايونو دناستو کښې | پس فراخي اوکړئ

هرکله چې درته اووئيلې شي | چې په مجلس کښې لږ ځائې فراخه کړئ | نو تاسو ځائې

يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا

فراخي به اوکړي الله | تاسو ته | او کله چې اووئيلې شی | چې ولاړشئ | نو اودرېږې

فراخه کوئ | الله به تاسو ته فراخه ځائې درکړي | او چې درته اووئيلې شي چې ادمجلس نه پاسئ

يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ وَالَّذِيْنَ

پورته کوی الله | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړې دې | ستاسو نه | او هغه کسان

نو ولاړېږئ | الله ﷻ به په تاسو کښې د مسلمانانو او د علم دخاوندانو

اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝

چې ورکړې شوې دې علم | مرتبو ته | او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | خبردار دې |

مرتبې اوچتې کړي | ..........او تاسو چې څه کارونه کوئ الله ﷻ پرې ښه خبر دې

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ

اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | کله چې پټې خبرې کوئ تاسو | درسول سره |

ائې مومنانو تاسو چې کله د پيغمبر سره پټې صلاح مشورې کوئ |

| فَقَدِّمُوْا | بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ | صَدَقَةً ۭ | ذٰلِكَ | خَيْرٌ لَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| نو وړاندې ليږئ | مخکښې د پټو خبرو کولو نه | صدقه | دا کار | بهتر دې ستاسو دپاره |

نود خپلو پټو صلاح مشورو نه وړاندې څه (لږه ډيره) صدقه ورکوئ دا کار ستاسو دپاره ډير بهتر دې

| وَاَطْهَرُ ۭ | فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او زيات پاکيزه دې | پس که بيا نهٔ مونده تاسو صدقه | پس بيشکه الله | بخښونکې | مهربانه دې |

او د پاکئ ذريعه ده اخو که د صدقې وس نه لرئ انو بيشکه الله ﷻ بښونکې رحم کونکې دې

| ءَاَشْفَقْتُمْ | اَنْ تُقَدِّمُوْا | بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ | صَدَقٰتٍ ۭ |
|---|---|---|---|
| آيا اويريدئ تاسو | چې وړاندې ورکړئ | مخکښې د پټو خبرو کولو نه | صدقې |

آيا تاسو ددې نه يريدلئ چې د خپلو پټو مشورو نه وړاندې څه لږه ډيره صدقه ورکړئ ؟ انو خير دې!

| فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا | وَتَابَ اللّٰهُ | عَلَيْكُمْ | فَاَقِيْمُوا |
|---|---|---|---|
| نو کله چې اونهٔ کړو تاسو دا کار | او وکړه رجوع په رحمت سره الله | په تاسو باندې | پس قائموئ |

که دا کارونه نشوئ کولې | او الله ﷻ تاسو ته معافی اوکړه | نو اوس د مونځ پابند

| الصَّلٰوةَ | وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ | وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ ۭ | وَاللّٰهُ | خَبِيْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| مونځ | او ورکوئ زکاة | او خبره منئ د الله | او د رسول دهغه | او الله | خبردار دې |

اوسيږئ او زکوة ورکوئ او د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ هره خبره منئ | او الله ﷻ ته ستاسو ټول

| بِمَا | تَعْمَلُوْنَ ۝ |
|---|---|
| په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو |

کارونه معلوم دی |

آيا ته نه ګورې، چه په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دی، الله تعالٰى په هغې باندې عالم دې، کله په دريو سړو کښې څه پټه جرګه داسې نه کيږی، چه په هغې کښې الله تعالٰى څلورم نه وی، او نه د پنځو سړو پټه جرګه داسې وی، چه په هغې کښې هغه شپږم نه وی، او که پټې جرګې کونکې ددې نه کم وی، يا زيات، هغوی چه کوم ځائې هم وی، الله تعالٰى هغوی سره وی بيا به د قيامت په ورځ هغوی ته خبر ورکړی، چه هغوی څه څه عملونه کړې دی، بے شکه الله تعالٰى په هر څيز باندې پوهيدونکې دې. آيا تا هغه خلق نه دی ليدلې چه هغوی د پټو جرګو کولو نه منع کړې شوې وو، بيا هم هغوی هم هغه کار کوی، د کوم نه چه منع کړې شوې وو؟ هغوی يو بل سره داسې پټې خبرې کوی، چه په ګناه، زياتې او د رسول په نافرمانئ باندې مشتملې وی. او (اے پيغمبره) چه کله دوی تاته راځی، نو تاته په داسې طريقې سره سلام کوی، چه په هغې سره الله تعالٰى تاته سلام نه دې کړې او په خپلو زړونو کښې وائی، چه: مونږ څه وايو، په هغې باندې الله تعالٰى مونږ ته سزا ولې نه راکوی؟ جهنم د دوی (د سزا) دپاره کافی دې، ورننوځی به دوی په هغې کښې، او هغه ډير بد ځائې دې اے ايمان والو! چه کله تاسو يو بل سره پټې جرګې کوئ، نو داسې جرګې مه کوئ، چه په ګناه، زياتی او د رسول په نافرمانئ باندې مشتمل وی، او داسې جرګې کوئ، چه د نيکو کارونو او تقوٰی وی، او د الله تعالٰى نه ويريږئ، چه هغه ته به تاسو ټول راجمع کولې شئ، داسې جرګې خو د شيطان د طرف نه وی، دې دپاره چه ايمان والا په غم کښې اخته کړی، او

هوی د الله تعالی د حکم نه بغیر ایمان والو ته هیڅ نقصان نشی رسولې او مومنانو لره پکار دی، چه خاص په الله تعالی باندې بهروسه اوساتی. اے ایمان والو! چه کله تاسو ته اوویلې شی چه په مجلسونو کښې د نورو خلقو دپاره گنجائش پیدا کړئ، نو گنجائش پیدا کوئ الله تعالی به ستاسو دپاره فراخوالې پیدا کړئ. او کله چه درته اوویلې شی چه پاڅئ، نو پاڅئ. په تاسو کښې چه کومو خلقو ایمان راوړې دې او کومو ته چه علم ورکړې شوې دې، الله تعالی به دهغوی درجې اوچتې کړی، او څه چه تاسو کوئ، الله تعالی په هغې باندې ښه خبردار دې. اے ایمان والو! چه کله د رسول(ص) سره په تنهائی کښې څه خبره کول غواړئ، نو دخپلې دې تنهائی نه مخکښې څه صدقه ورکړئ دا طریقه ستاسو په حق کښې ډیره ښه، او ډیره پاکونکې ده، او که تاسو سره (د صدقې کولو دپاره) هیڅ نه وی، نو الله تعالی ډیر بخونکې، ډیر مهربان دې. آیا تاسو ددې خبرې نه اوویریدئ، چه د خپلې تنهائی دخبرې نه مخکښې صدقات ورکړئ؟ اوس هر کله چه تاسو داسې اونه کړل، او الله تعالی تاسو معاف کړئ، نو تاسو مونځ قائم کړئ، او زکوٰة ورکوئ، او د الله تعالی او د هغه د رسول(ص) فرمان برداری کوئ او څه کار هم چه تاسو کوئ، الله تعالی په هغې باندې خبردار دې.

**شان نزول:** دَدې آیاتونو شان نزول یو څو واقعات دی اول په یهودیانو او مسلمانانو کښې صلح وه لیکن یهودیانو چه به کله یو مسلمان لیدلو نو دَهغه خیالات پریشانه کولو دَپاره به ئې په خپل مینځ کښې غوږ ایستنې کولې. هغه مسلمان به گنړل چه زما خلاف څه سازش کوی. حضور پاك یهود دَدې نه منع کړل خو هغوی منع نه شو په دې باندې آیت ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَىٰ ثُمَّ يَعُودُونَ ﴾ الخ نازل شو.

**دوېم:** دغه شان به منافقانو هم خپل مینځ کښې غوږ ایستنې کولې په دې باندې آیت ﴿ إِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ﴾ الخ او آیت ﴿ إِنَّمَا النَّجْوَىٰ ﴾ الخ نازل شو.

**درېم:** یهودیان دَحضور پاك په خدمت کښې حاضر شو نو دَشرارت وجه به ئې دَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وئیلو په ځائې اَلسَّامُ عَلَيْكُمْ وئیل سام په معنی دَ مرگ دې.

**څلورم:** منافقانو به هم داسې وئیل په دې دوارو واقعاتو باندې ﴿ وَإِذَا جَاءُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللَّهُ ﴾ نازل شو او امام ابن کثیر رحمه الله دَ امام احمد رحمه الله په روایت سره دا هم نقل کړی دی چه یهودیانو به داسې سلام کولو سره پټ وئیل ﴿ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللَّهُ بِمَا نَقُولُ ﴾ یعنی که چرې مونږ دا گناه کړې وی نو په مونږ باندې عذاب ولې رانغلو[۱].

**پنځم:** یو ځل حضور پاك صفه مسجد کښې تشریف فرماوو او په مجلس کښې گڼره زیاته وه. یو څو صحابه کوم چه په غزوه بدر کښې شریك وو راغلل نو هغوی ته چرته ځائې ملاؤ نشو او نه دَ مجلس خلقو داسې اوکړه چه نیزدې نیزدې شوې وې او ځائې ارت شوې وې. حضور پاك چه کله اوکتل نو څه کسانو ته ئې د مجلس نه دپاسیدو دپاره اووئیل. منافقانو پیغورونه شروع کړه چه دا کوم انصاف دې او حضور پاك دا هم اوفرمائیل چه الله تعالی دې په هغه سړی باندې رحم اوکړی څوك چه دَخپل رور دَپاره ځائې پریږدی. نو خلقو ځائې پریخودو په دې باندې آیت نازل شو. ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَالِسِ ﴾ الخ نازل شو. رواه ابن کثیر عن ابی حاتم[۲]، د روایت د

[۱] مسند احمد، مسند عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه رقم الحدیث:[۶۵۸۹] وتفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۴۴]
[۲] تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۴۵]

تولو حصونه معلومیږي چه اول به حضورپاك دَ خانی دَ کولاوولودپاره فرمائیلي وي نو بعضو خو خانی کولاو کړو کوم چه ناکافی شوي وي او بعضو خانی کولاؤنه کړو نوحضورپاك تادیبًا لکه څنګه چه په مدرسو کښې کیږي هغوی ته دَ پاسیدودپاره اوفرمائیل کوم چه دَ منافقانوخوښ نه شو.

**دویم**: بعض غنیان خلق دَ حضورپاك په خدمت کښې حاضرشو اوتر ډیره وخته پورې بې حضورپاك سره پټې خبرې کولې او فقیرانو ته به دَ استفادې کم وخت ملاویدلو. هغوی ته به دَ دغه خلقو تر ډیر وخته پورې کیناستل او پټې خبرې ناخوښه کیدل په دې باندې دا آیت ﴿ إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ ﴾ الخ نازل شو. فتح البیان کښې دَ زید بن اسلم نه بلاسند نقل کړی دی چه یهودیانو اومنافقانوبه بغیرضرورته حضورپاك سره پټې خبرې کولې. دَمسلمانانو په دې خیال سره چه کیدې شی چرته څه نقصانی خبره پته کوی دابه ئې ناخوښه وو په دې باندې هغوی منع کړې شو دکوم ذکرچه په آیت ﴿ نُهُوا عَنِ النَّجْوَىٰ ﴾ کښې دی. خوچه کله هغوی منع نه شو نودا حکم نازل شو﴿ إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ ﴾الخ دَدې نتیجه دا شوه چه اهل باطل دَدې غوړایستنونه منع شو[1] څکه چه دَمال دَمحبت دَ وجې نه صدقه دَهغوی ناخوښه وه.

**دریم**: کله چه دَ حضورپاك دَغوږایستنونه وړاندې اول دَ صدقې کولو حکم اوشو نوډیر خلق دَ ضروری خبرې کولونه هم منع شو. په دې باندې آیت ﴿ ءَأَشْفَقْتُمْ أَنْ تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَاتٍ ﴾ نازل شو. حضرت حکیم الامت رحمه الله فرمائیلي چه دَ صدقې ورکولو په حکم کښې وړاندې هم ﴿ فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا ﴾ کښې غریبانانوته رخصت ورکړې شوې وولیکن بعض خلق داسې وی چه نه بالکل نادار وی او نه پوره مالدار وی لکه چه صاحب دَ نصاب وی. غالبا هم داسې خلقو ته به تنګی پیښه شوې وی چه دَ کوم وسعتنی دَ وجې نه خو خرچ کول ګران شو او په خپله نادرائی کښې ئې هم شك شو په دې وجه ئې نه صدقه ورکولې شوه اونه دَ خپل ځان ئې دَ رخصت محل ګنرلو. او پټې خبرې کول څه عبادت نه وو چه دَهغې پریخودل دَ ملامتیاسبب شی په دې وجه دَ دې نه منع شو. [الروایات کلها فی الدرالمنثور][2] په دې اسباب نزول سره په تفسیر پوهیدوکښې امداد او آسانی کیږی. [ازبیان القرآن][3]

## خلاصه تفسیر

﴿أَلَمْ تَرَ﴾ایاتا دې ته ونه کتل مطلب نوروته اورول دې کوم چه دمنع شوې دغوږ دخبرې نه نه منع کیدل ﴿ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ﴾ چه الله تعالی په هر څه پوهه دې کوم چه په اسمانونو کښې دې ﴿مَا يَكُونُ مِنْ نَجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ﴾ پس په پټوخبروکښې درې کسان داسې نه وې په کومو کښې ﴿إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ﴾ چه څلورم هغه یعنې الله تعالی نه وي ﴿وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ﴾ اونه دپنځو کسانو پټې خبرې وي په کوموکښې چه شپږم هغه نه وي ﴿وَلَا أَدْنَىٰ مِنْ ذَٰلِكَ﴾ اونه د دې نه په کموکښې وي لکه په دوه یاڅلورکسانو کښې﴿وَلَا أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا﴾ اونه ددې نه په زیاتوکښې وي لکه شپږو اووه کسانو کښې مګر هغه په هر حالت کښې د دغوکسانو سره وي خواه دغه خلق هر چرته چه وي ﴿ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ بیادوې تولو ته به دقیامت په ورځ د

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۳۰۱]
[2] ) تفسیر الدرالمنثور [ج:۹ ص:۴۳۸ تا ۴۴۱]
[3] ) تفسیر بیان القرآن [ج:۱۱ ص:۱۱۶ و۱۱۷]

دوي کړي کارونه وبنائي ﴿إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ بیشکه الله تعالی ته د هري خبري پوره خبردي
د دې ایت مضمون په کلي عنوان سره دراتلونکو مضامینو جزئیوتمهیددي یعني
دامسلمانانوته دازار رسولودپاره په باطله پټي خبري کوونکي دخدائي نه نه وزیږیږي چه
خدائي دهر څۀ نه خبردي اودوي ته به سزاورکړي وراند دغه جزئي مضامین دي یعني ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى
الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَىٰ﴾ ایاتاهغو خلقوته نۀ دي کتلي کوم چه د پټوخبرو کولونه منع کړي شوي
وو ﴿ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا نُهُوا عَنْهُ﴾ مګربیاهم هغوي هغه کارکوي دکوم نه چه هغوي منع کړي شوي
وو ﴿وَيَتَنَاجَوْنَ بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ﴾ اودګناواوظلم او رسول دنافرماني پټي خبري کوي
یعني داسي پټي خبري کوي دکومونه چه دوي منع شوي وو اوپه دي وجه په کښي ګناه هم ده
اومسلمانان دغمژن کولو په وجه زیاتي یعني ظلم هم دي اوپه دي وجه چه رسول ﷺ تري نه
منع کړي وه درسول نافرماني هم ده لکه چه په اوله اودویمه واقعه کښي ئې بیان وشو اوهغه
خلق داسي دي چه ﴿وَإِذَا جَاءُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللَّهُ﴾ هرکله ستاخوا ته راشي نوتاته په داسي
لفظ سره سلام کوي په کوم سره چه لله تعالی تا ته سلام نۀ دي کړي یعني دالله تعالی الفاظ
خودادي [سلام علی المرسلین(۱)، وَسَلَامٌ عَلَىٰ عِبَادِهِ الَّذِينَ اصْطَفَىٰ(۲)، صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا(۳)] اوهغوي
وائي [السام علیك] ﴿وَيَقُولُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ﴾ اوپه خپل زړه کښي یا په خپل مینځ کښي وائي ﴿لَوْلَا
يُعَذِّبُنَا اللَّهُ بِمَا نَقُولُ﴾ چه کۀ دا پیغمبر دي نوالله تعالی مونږ په دې ویناپه کومه کښي چه
سراسرد دوي ﷺ بي ادبي ده سزا فورا ولي نۀ راکوي لکه چه په دریمه اوڅلورمه واقعه کښي
تیرشول وراندد دوي په دې فعل وعید اوددې قول جواب دې چه دزر عذاب دځني حکمتونو
په سبب دنۀ راتلو نه مطلقا دعذاب نۀ ورکول نۀ لازمیږي ﴿حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا﴾ دهغوي دسزا
دپاره جهنم کافي دي په دې کښي به خلق ضرور داخلیږي ﴿فَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾ پس هغه بده ټکانه
ده وړاندایماندارو ته خطاب دي په کوم چه د منافقانو سره دمشابهت کولونه دوي لره هم منع
کړي شول او منافقانو ته ئې هم اورول منظوردي چي تاسو خو دعوی دَ ایمان کوئ نو په
مقتضاء دَ ایمان عمل وکړي پس ارشاد دي چه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَنَاجَيْتُمْ﴾ اے ایماندارو هر
کله چه تاسو په څه ضرورت سره پټي مشورې کوئ ﴿فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ﴾
نو دګناه او زیاتی او درسول ﷺ دنافرمانۍ پټي مشورې مه کوئ تفسیر دا دي الفاظ اوس
تیرشوي دي او ﴿وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ﴾ دفائدي او پرهیزګاري دَخبروخني په غوږ کښي مشورې
کوي برعدوان مقابل دي ددې نه مرادهغه نفع ده چه نوروته ورسی اوتقوی دَ اثم اودرسول
دَنافرماني مقابل دي ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ [اودالله تعالی نه ویره کوي کوم ته چه به
تاسوټول جمع کړي شي ﴿إِنَّمَا النَّجْوَىٰ مِنَ الشَّيْطَانِ﴾ داسي پټي مشورې محض دشیطان دطرف
نه] یعني دده دلمسي نه [ده ﴿لِيَحْزُنَ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ چه مسلمانانولره په رنج اوتکلیف کښي
واچوي] لکه چه بیان ئې په اوله واقعه کښي شوي دی او وراندي دغومسلمانانوته تسلی ده
هغه شیطان [بغیردخداي دارادې نه دوی مسلمانانوته ضررنه شي رسولي مطلب داچه که

---

(۱) ترجمه:- او سلام دې وی په پیغمبرانو باندې.

(۲) ترجمه:- او دهغه په هغه بندګانو باندې دې سلام وی کوم چې هغه منتخب کړی دی.

(۳) ترجمه:- دوئ باندې رحمت لیږئ او ښه ډیر سلام پرې لیږئ.

بالفرض دوی دشیطان په لمسه ستاسوخلاف څه تدبیرونه کوی بیاهم دغه ضرر بغیر د مشیت ازلیه نه تاسوته نه شی رسیدې بیاولې فکرکوی ﴿وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ اومسلمانانولره په هر کارکښې په الله تعالی توکل کول پکاردی وراندې پنځمې واقعې متعلق حکم دې یعنی مجلس ته چه څنې خلق وروستو راشی نودهغوی دپاره دخاې فراخولوحکم دې چه ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجٰلِسِ﴾ اې ایماندارو هرکله چه تاسوته ووئیلې شی [یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائی یا اولوالامریادواجب الا طاعت خلقونه څوك ووائی] چه په مجلس کښې خاې پریږدی چه راتلونکو ته په کښې هم خاې ملا وشی ﴿فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ﴾ نوتاسوخاې فراخ کړئ اوراتلونکوله خاې ورکوئ الله تعالی به تاسوته په جنت کښې فراخ خاې درکړی ﴿وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا﴾ اوهرکله چه څه ضرورت سره داسې ووئیلې شی چه دمجلس نه پورته شئ نوپورته کیږئ خواه دپورته کیدو درته په دې غرض سره ووئیلې شی چه راتلونکوته خائې فراخ شی اوکه خواه په دې غرض سره ووئیلې شی چه دمجلس صدرته دغه وخت په څه مصلحت سره دخاص مشورې یابل څۀ ضرورت ارام یاعبادت وغیره دپاره دیوازې کیدوضرورت وی کوم چه بغیردتنهایئ نه مطلقانه شی حاصلیدې یاکاملیدې نه شی پس دمجلس دصدرپه حکم سره پاسیدل پکاردی او داحکم دغیردرسول الله ﷺ دپاره هم عام دی لکه چه داسې په روح کښې دی پس دمجلس مشرته دضرورت په وخت کښې ددې اجازت دې چه چاته دَ پاسیدو داپاره ووائی البته راتلونکی له نه دی پکار چه څوك پاڅوی اودهغه په خاې کښینی لکه چه په حدیث کښې دی رواه الشیخان[1] غرض حکم داورکړې شوچه دمجلس دصدرپه وینابه پورته کیږی ﴿يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ﴾[الله تعالی به]ددې حکم په منلوسره[په تاسو کښې دایماندارواوپه ایماندارو کښې دهغوخلقونور زیات چاته چه ددین علم ورکړې شوې دې] داخرت دررجې اوچتې کړی یعنی ددې حکم دپه خاې کوونکودرې قسمونه دی یوکفارکوم چه ئې دڅۀ دنیوی مصلحت په وجه ومنی لکه منافقان دوی خودلفظ دمنکم په بناسره ددې وعدی نه خارج دی دویم ایماندارکوم چه صاحب علم نه وی ددوی دپاره محض ددرجې وچتیدل دی دریم هغه ایماندارکوم چه اهل علم هم وی چونکه په وجه دعلم اومعرفت ددوی دعمل منشا' زیاته ویره زیات خلوص دې په کوم سره چه دعمل ثواب زیاتیږی ددوی دپاره زیات وچتیدل ددرجودی ﴿وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ﴾اوالله تعالی ته ستاسودتولوعملونوپوره خبردې چه دچاعمل دایمان سره دې دچاعمل بغیردایمان نه دې بیاپه دې کښې دچاپه عمل کښې کم خلوص دې اودچاپه عمل کښې زیات خلوص دې په دې وجه دهریوپه جزااوثمره کښې تفاوت کیخودې شو وړاند دشپږمې واقعې په حقله حکم دې کومه چه داولې اودویمې واقعې سره مربوطه ده یعنی﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ﴾ اې ایماندارو هرکله چه تاسودنبی کریم صلی الله علیه وسلم سره دغوږخبره پټه مشوره کوئ یعنی اراده وکړئ﴿فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً﴾ نودخپلې دې غوږدخبرې نه وړاند څۀ خیرات مسکینانوته ورکوئ چه مقدارئې په ایت کښې منصوص نۀ دې اوداحا دیثوپه روایتونوکښې مختلف مقدارو نه راغلی دی ظاهرا مقدار غیرمعین معلومیږی لیکن معتد به کیدل ئې

[1] ) صحیح البخاري كتاب الإستئذان ،باب لا يقيم الرجل من مجلسه [ج:۲ص:۹۲۷] و صحیح مسلم کتاب السلام، باب تحريم إقامة الإنسان من موضع المباح الذي سبق إليه [ج:۲ص:۲۱۷]

ضروري دی ﴿ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ﴾ داستاسو دپاره دثواب حاصلولو په واسطه غوره ده او دګناهونو نه دپاکیدو بنه ذریعه ده ځکه چه په طاعت سره د ګناهونو کفاره کیږی دامصلحت دمالدارو مومنانو په اعتبار سره دي او دفقیرانو مومنانو په اعتبار سره داده چه دوی ته مالی نفع ورسی لکه چه په لفظ دصدقې سره معلومیږی ځکه چه د صدقې مصارف فقراء دی او دنبی کریم ﷺ په اعتبار سره داده چه په دې ددوی ﷺ دشان بلندی ده او د منافقانو د غوږ په خبره سره چه به دوی ﷺ ته کوم تکلیف کیدو دهغې نه نجات اوارام دي ځکه چه هغوئ ته خود غوږ دخبرې ضرورت د سره وونه او بې ضرورته محض ددې دپاره مال خرڅ کول دوی ته بې حده ګران وو او غالبا په دې صدقه کښې به حکم داوو چه دتولو په وړاندې دې صدقه ورکړی دې دپاره چه نه ورکونکی وو وړاندې فرمائی چه دا حکم خود مقدور په حالت کښې دې ﴿فَإِن لَّمْ تَجِدُوا﴾ [بیا که تاسو ته دصدقې ورکولو قدرت نه وی] او ضرورت پیښ شی د غوږ خبرې ته ﴿فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ [نو الله تعالی غفور رحیم دې] په دې صورت کښې به هغه تاسو معاف کړی ددې نه په ظاهره معلومیږی چه داحکم داصدقې واجب وو مګر دناداریئ صورت ترې نه مستثنی وو وړاندې داتمې واقعې په حقله کومه چه دشپږمې واقعې سره تړلې شوې ده ارشاددا دې چه ایا تاسو یعنی په تاسو کښې خنې دکومو بیان چه د اوومې واقعې لاندې شوې دې ﴿ءَأَشْفَقْتُمْ أَن تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَاتٍ﴾ [ایا تاسو دخپل غوږ دخبرې نه وړاند په خیرات ورکولو سره وویریدئ پس] خیر ﴿فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا﴾ [هر کله چه تاسو] دې لره [نه شئ کولې ﴿وَتَابَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ﴾ او الله تعالی ستاسو په حال عنایت وفرمائیلو] چه بالکل ئې دې لره منسوخ کړو او معاف ئې کړو چه ددې حکمت ظاهر دې چه دکوم مصلحت دپاره داحکم واجب شوې وو هغه مصلحت حاصل شو ځکه چه مصلحت سد باب وو کوم چه پس دنسخ نه هم باقی دې چه خلق احتیاط کوی غرض ارشاد دې چه کله الله تعالی دې لره منسوخ کړو ﴿فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ [نو تاسو] دنورو عباداتونو پابند وسئ یعنی [دمونځ پابندی کوئ ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ او زکوات ورکوئ ﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ او دالله تعالی او درسول خبره منئ] مطلب دادې چه ددې نسخ نه پس ستاسو دقرب او قبول دنجات دپاره په باقی احکامو باندا استقامت او همیشګی کافی ده ﴿وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ [او الله تعالی ته ستاسو دټولو عملونو] او ددې د باطنی او ظاهری حالت [نه پوره خبر دې]

## معارف او مسائل

دا آیتونه اګر چې د خاص واقعاتو په بنا باندې نازل شوی دی چې بیان ئې شان نزول کښې اوشو خو ښکاره خبره ده چې د نازلیدو سبب هر څه چې وی خو قرآنی هدایتونه عام دی. په دې کښې عقیدې، عبادتونه ، معاملې او دمعاشرت په باره کښې ټول حکمونه دی ،په دې آیتونو مبارکو کښې هم خپل مینځ کښې د پټو خبرو کولو مشورو په باره کښې څو داسې هدایتونه دی.

**پټو مشورو باره کښې هدایت** :: پټه مشوره عام طور دخاص او راز دار دوستانو تر مینځه وی چې په هغې تسلی لرلې شی چې دا راز به په چا نه ښکاره کوی ځکه په داسې موقعو باندې خینې د ظلم منصوبې هم جوړولې شی. په دې کښې په چا ظلم کول وی ، دچا وژل وی او دچا ملکیت باندې قبضه کول وی او دا سې نور ، الله ﷻ په دې آیتونو کښې ارشاد اوفرمائیلو چې

د الله ﷻ علم د ټولو کائناتو نه راچاپیره دې تاسو چې هر چرته او هر څنګه پټه مشوره کوئی ، الله ﷻ د خپل علم ، آوریدو او کتلو په اعتبار ستاسو سره موجود وی او ستاسو هره خبره وینی ګوری او پرې خبر وی ، که دې کښې څه ګناه او کړئی نو سزا نه به نه بچ کیږئی. په دې کښې خو دا خودل دی چې تاسو څومره کم یا زیات خلق چې په مشوره او پټ مجلس کولو کښې شریک یئ ، الله ﷻ په هغوئ کښې موجود وی، د مثال په طور دوه شمیر [ درې او پنځه ] ئې ورکړل او وې فرمائیل که درې کسان خپل مینځ کښې مشوره کوئی نو څلورم په کښې الله ﷻ موجود وی ، او که پنځه کسان مشوره کوی نو شپږم په کښې الله ﷻ موجود وی . د درې او پنځو د شمیر خاص کولو کښې شاید دې ته اشاره وی چې د ډلې دپاره الله ﷻ ته غوره شمیر طاق دې. دَ ﴿ مَا يَكُونُ مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ ﴾ الایه حاصل هم دې.

**د پټ مجلس کولو او مشورې باره کښې هوښدایت:** ﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ﴾ د شان نزول په واقعه کښې خودلې شوی دی چې په کومه زمانه کښې یهودو سره د نبی کریم ﷺ د صلح لوظنامه شوې وه. دغه وخت به هغوئ په ډاګه د مسلمانانو خلاف کار نه شو کولې. خو هر کله چې مسلمانانو او اسلام سره ئې د بغض نه زړونه ډک وو نو ددې براس ایستلو دپاره ئې دا طریقه غوره کړې وه چې کله به ئې صحابه کرامو ﷺ راتلونکی خپل ځان نه نزدې اولیدل نو خپل مینځ کښې به ئې د پټو خبرو اوپټې مشورې کولو شکل جوړ کړو اوراتلونکو مسلمانانو طرفته به ئې څه اشارې کولې ، اصل مطلب به ئې مسلمانان پریشانه کول وو چې ګنی د هغوئ خلاف څه منصوبه جوړوی ، څکه نبی کریم ﷺ ددغسې حرکتونو یعنی پټو خبرو نه منع اوفرمائیله ﴿ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ﴾ کښې ددغې منع کولو بیان دې. په دې شان مسلمانان هم ددأسې کولو نه منع کړې شو چې هسې نه په دې سره بل مسلمان ته څه ضرر اورسی.

بخاری او مسلم وغیره کښې د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې : اذاکنتم ثلاثة فلایتناجون رجلان دون الاخرحتی یختلطوابالناس فان ذالک یحزنه.

یعنی چرته چې تاسو درې کسان راجمع یئ نو دوه دې دهغوئ نه خپل مینځ کښې پټې او د غوږونو خبرې نه کوی چې هغه دریم کس یواځې پاتې شی ولې چې ددۀ به زړه مات شی.

دا دریم کس به محسوس کړی چې دواړه مې خپل بنده نه ګنړی. اودا هم شبهې راپیدا کیدیشی چې ګنی دا دواړه زما خلاف څه منصوبه جوړوی چې ما نه ئې پټوی. [ از مظهری ] (۱).

﴿ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ﴾ په تیرو شوؤ آیتونو کښې کافرانو ته په ناجائزه پټ مجلس کولو باندې خبرداری ورکړې شوې وو ، دې آیت مبارک کښې مسلمانانو ته هدایت دې چې په خپلو پټو خبرو او پټو مجلسونو کښې ددې خیال ساتی چې الله ﷻ زمونږ په ټولو حالاتو باندې او خبرو باندې خبردار دې اودې سره دې دا هم کوشش کوی چې زمونږ په دې پټ مجلس کښې د ګناه یا په نورو باندې د ظلم کولو یا د شریعت نه خلاف څه خبره نه وی بلکه هر کله چې څه مشوره کوئی نو د نیک کارباره کښې کوئ.

---

(۱) تفسیر المظهری[ج:۹ص:۲۲۳] و صحیح البخاري کتاب الإستئذان ،باب إذا کانوا اکثر ثلاثة فلا باس بالمسارة والمناجاة[ج:۲ص:۹۳۱]

**مخالفانو په شرارت باندې هم نرمي او د شريفانه په لهجو هدايت** د تيرو شوؤ آيتونو په ترڅ کښې د يهودو او منافقانو يو شرارت دا هم بيان شوې دې چې کله به د نبی کريم ﷺ مجلس ته راغلل نو د السلام عليکم په ځائې به ئې السام عليکم بۀ ئې ونيل. د سام معنی مرګ ده خو په الفاظو کښې ئې زيات فرق نه ښکاريدو ځکه به ورته د مسلمانانو خيال نه وو، يو ځل چې دوئ دغسې اوونيل نو عائشه صديقه رضی الله عنها جواب داسې ورکړو چې [السام عليکم ولعنکم الله وغضب عليکم] تاسو دې هلاک شئ اودرباندې دالله ﷻ لعنت اوغضب وې. نبی کريم ﷺ دداسې خبرونه عائشه صديقه رضی الله عنها منع کړه او وې فرمائيل چې الله ﷻ فحش کلام نه خوښوی سختئ نه ځان ساته او نرمی اختيار کړه. عائشه صديقه رضی الله عنها عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ! تاسو ددوئ خبره وانه وريده چې څه ئې اوونيل. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ما واوريدل او وې فرمائيل چې ددې برابر بدله مې داسې واخسته چې په جواب کښې مې ورته عليکم اووئيل يعنی تاسو دې هلاک شئ. اودا ښکاره خبره ده چې ددوئ دعا نه قبليږی هم زما دعا به قبليږی. په دې شان مې د هغوئ د شرارت بدله واخسته. [مظهری د بخاری نه][1].

**دمجلس ځينو آداب** :: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُواْ فِى ٱلْمَجَٰلِسِ فَٱفْسَحُواْ﴾ دا حکم دعامو مجلسونو دې چرته چې د مسلمانانو اجتماع غونده وی او څه خلق په کښې روستو راشی نو مسلمانان دې ورته ځائې ورکولو دپاره ځانونه راغونډوی، په داسې کولو باندې الله ﷻ وعده کړې ده چې داسې کسانو دپاره به الله ﷻ فراخی پيدا کړی، دا فراخی خوپه آخرت کښې ښکاره خبره ده خودا هم څه لرې خبره نه ده چې په دنيوی ژوند کښې هم ورته دا فراخی حاصله وی.

دې آيت مبارک کښې دمجلس د آدابو باره کښې داسې دی چې: ﴿وَإِذَا قِيلَ ٱنشُزُواْ فَٱنشُزُواْ﴾ يعنی کله چې مجلس نه د پاسيدو درته اووئيلې شی نو پاسيدل پکار دی، په دې آيت مبارک کښې د قيل لفظ مجهول راوړې شوېدې. دا تری نه معلوميږی چې ويونکی به څوک وی؟ خودصحيح احاديثو نه معلوميږی چې راتلونکی بنده له دا جائز نه دی چې بل بنده د ځائې نه پورته کړی او پخپله دهغه په ځائې کينی.

صحيحينو او مسند احمد کښې د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې: لايقيم الرجل الرجل من مجلسه فيجلس فيه ولكن تفسحوا وتوسعوا

يعنی يو کس دې دبل د هغه د ځائې نه نه پورته کوی چې پخپله هلته کينی. بلکه په مجلس کښې فراخی پيدا کړئ اوراتلونکې بنده ته ځائې ورکړی. [ابن کثير][2].

دې نه معلومه شوه چې چاته دهغه دځائی نه د پاسيدو دپاره وئيل د راتلونکی سری دپاره خو جائزنه دی ځکه چه په ظاهره هم داداسې وينا کونکې د مجلس مشر يا د مجلس انتظام کونکی کسان کيدې شی. نود آيت مطلب داشو که د مجلس مشر يا دهغه د طرف نه مقرر کړې

[1]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۲۲] و صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب لم يكن النبي ﷺ فاحشا ولامتفحشا [ج:۲ص:۸۹۱]

[2]) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۱٤٦]و صحيح البخاري كتاب الإستئذان ،باب إذا قيل لكم تفسحوا فى المجالس[ج:۲ص:۹۲۷] و صحيح مسلم كتاب السلام، باب تحريم إقامة الإنسان من موضع المباح الذي سبق إليه [ج:۲ص:۲۱۷]و مسند احمد ،مسند عبدالله بن عمر ﷺ رقم الحديث:[٤٦٥۹]

شوی منتظمین چاته دَهغه دَ ځائی نه دَ پاسیدو دَپاره اووائی نو دَ مجلس ادب دادې چه هغوی سره دې مزاحمت نه کوی دَخپل ځائی نه دې پاسی. ځکه چه بعض وخت پخپله صاحب مجلس دَ څه ضرورت دَ وجې نه خلوت اختیارول غواړی یا دَ څه مخصوص کسانو سره دَ راز څه خبره کول غواړی. یا روستو راتلونکو حضراتو دَپاره دَ دې نه بغیر بله څه لار نه وی چه بعض بې تکلف خلق دَ مجلس نه پاسوی دَ چا متعلق چه معلومه وی چه دَ دوی دَ مجلس نه په پاسیدو سره څه نقصان نه کیږی دوی بل وخت کښې استفاده کولې شی.

البته دمجلس مشرانو لره په داسې شان دځائې نه پورته کول پکار دی چې هغه سرې ئې خپل سپکاوې اونه ګڼړی او څه نقصان ورته اونه رسی.

دا ایت مبارک چې په کومه واقعه کښې نازل شوې دې هغه داسې وه چې نبی کریم ﷺ په صفه مسجد کښې تشریف فرما وو ،دغه ځائی د حاضرینو نه ډک شوې وو روستو څه داسې صحابه کرام ﷺ په ډیل سره راغلل چې دبدر په غزا کښې شریک شوی وو. دلته د ناستې ځائې نه وو ، ولاړ پاتې شو، ځکه نبی کریم ﷺ دوئ ته دځائې ورکولو دپاره خپل مینځ کښې دنزدې او جوخت کیناستو حکم اوکړو او ځینو صحابهٔ کرامو ﷺ ته ئې دپورته کیدو حکم هم اوکړو. غالبا دا هغه کسان وو چې هر وخت حاضر باش وو دغه فائده ئې بل وخت هم اخستې شوه ، مطلب دا چې څه نقصان ئې اونه شو. اوداهم کیدیشی چې نبی کریم ﷺ په حکم باندې ځینو صحابه کرامو ﷺ هغوئ ته د ځائې ورکولو کوشش نه وی کړې ځکه ورته هغوئ د آدب ورکولو په غرض دځائې نه د پاسیدو حکم ورکړې وی.

بهرحال ددې آیت مبارک او د وارد شوؤ احادیثو نه دمجلس د آدابو باره کښې یو خوداخبره معلومه شوه چې دمجلس شریکان دې روستو راتلونکو ته د ځائې ورکولو کوشش کوی ، دویمه دا خبره د معلومه شوه چې روستو راتلونکې دې د خپلو کیناستو دپاره بل څوک د ځائې نه نه پاسوی. دریمه خبره ترې دا معلومه شوه چې دمجلس مشر د ضرورت په وخت ځینې خلق د مجلس نه پورته کولې شی،اوځینې نورو احادیثو مبارکو نه څلورمه خبره ثابتیږی چې روستو راتلونکی خلق دې دننه د ورننوتو په ځائې دمجلس یو غاړې ته کینی. لکه په صحیح بخاری کښې د دریو راتلونکو سړوبیان دی چې هغوئ کښې یو داسې ووچې دننه په مجلس کښې ئې ځائې پیدانه کړونوغاړې ته یوګوټ کښې کیناستونبی کریم ﷺ بیا دهغه تعریف اوکړو(1).

**مسئله** :: دمجلس یو آدب داهم دې چې د دوؤ کسانو تر مینځه د هغوئ د اجازت نه بغیر نه ورننوځې ځکه چې کله کله د دوؤ ناستو کسانو تر مینځه یو خاص خبره وی نو د اسامه بن زید لیثی ﷺ په روایت ابی داؤد او ترمذی کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې:

لایحل لرجل ان یفرق بین اثنین الا باذنهما

یعنی چا دپاره دا حلال او جائز نه دی چې د دوؤ کسانو ترمینځه بیلتون راولی تر څو چې هغوئ اجازت اونکړی [ ابن کثیر ](2).

(1) صحیح البخاري كتاب العلم ،باب من قعد حيث ينتهى به المجلس..... إلخ [ج:١ص:١٥]

(2) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٤٨] و سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب فى الرجل يجلس بين الرجلين بغير إذنهما[ج:٢ص:٦٦٥ ] و جامع الترمذي ، ابواب الأدب باب ماجاء فى كراهية الجلوس بين الرجلين بغير إذنهما [ج:٢ ص:١٠٤]

﴿یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَاجَیْتُمُ الرَّسُوْلَ﴾ نبی کریم ﷺ به د خلقو د خودني او اصلاح ، ښیګړې په کار کښې شپه ورځ مشغول وو ، په عامو مجلسونو کښې به ټول حاضرین د مجلس د هغوئ د ارشاد نه فائده پورته کوله، په دې سلسله کښې یو صورت دا هم وو چې خینو خلقو به خان له یواخې په یواخې نبی کریم ﷺ سره پټې خبرې کولې او نبی کریم ﷺ به ورته وخت ورکولو ، ښکاره خبره ده چې یو کس سره یواخې په یواخې خبرو کولو کښې ډیر وخت لګی او ډیر محنت او خواری په کښې هم وی ، په دې کښې څه خود منافقانو شرارت هم شامل شو چې مخلصو مسلمانانو ته د تکلیف ورکولو د پاره به ئې نبی کریم ﷺ نه بیل د خان له مجلس کولو وخت غوښتلو . او په دې به ئې مجلس اوږدولو. خینو ناواقفو مسلمانانو به هم په خبرو اوږدولو سره مجلس اوږدولو ، الله ﷻ د دې پیټې سپکولو د پاره په اول کښې دا حکم نازل کړو چې څوک نبی کریم ﷺ سره خان له څه پټ مجلس کول غواړی نو هغه دې رومبې څه خیرات ورکوی . د دې صدقې څه اندازه په قرآن پاک کښې نقل نه ده مګر کله چې دا آیت مبارک نازل شو نو د ټولو نه اول پرې علی رضی الله عنه عمل اوکړو . او د یو دینار په خیرات کولو سره ئې خان له بیل مجلس نبی کریم ﷺ سره د کولو د پاره وخت واخستو.

**دا آیت مبارک بانده یواځې علی رضی الله عنه عمل کړې وو یا منسوخ شو اوبل هیچا ته پرې د عمل کول موقعه په لاس ورنغله::** او دا هم عجیبه اتفاق دې چې دې حکم سره هر کله چې په ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې تنګی راغله څکه ډیر زر منسوخ کړې شو. علی رضی الله عنه به فرمائیل چې په قرآن پاک کښې یو آیت مبارک داسې دې چې په هغې باندې سوا زما نه بل هیچا عمل نه دې کړې . او نه به ئې پرې اوکړی څکه چې هغه منسوخ شو ، هغه آیت د صدقې او خیرات کولو هم دا آیت مبارک دې[1].

دا حکم اګرچې منسوخ شو مګر د څه مصلحت او ښیګړې د پاره جاری کړې شوې وو ، هغه په دې شان حاصل شو چې د مسلمانانو خو نبی کریم ﷺ سره د زړه نه مینه وه څکه به ئې ورسره مجلس اوږدول نه غوښتل چې هسې نه پیټې پرې جوړ شی . او منافقان خو څکه داسې کول نه غواړی چې یو ئې په کښې مالی نقصان وو او بل دا چې منافقت به ئې ښکاره شی چې د مسلمانانو پشان لار ئې اختیار نه کړو . والله اعلم .

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِیْنَ تَوَلَّوْا قَوْمًا |
| [ آیا او نه کتل تا ] هغه کسانو ته [ چې دوستی کوی ] د هغه خلقو سره |
| آیا تا هغه خلقو ته نه دی کتلی اچې د داسې قوم سره دوستی کوی [ په |
| غَضِبَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ ؕ مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ ۙ |
| چې غضب کړې دې الله [ په هغوئ باندې [ نه دی هغوئ [ ستاسو نه [ او نه د هغوئ نه [ |
| چا چې د الله ﷻ غضب نازل شوې دې [ دا [ منافقان ] نه تاسو سره دی [ او نه د هغوئ [ کافرانو ] سره دی |
| وَیَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ یَعْلَمُوْنَ ۚ اَعَدَّ اللّٰهُ |
| او خوری قسمونه [ په دروغه باندې [ او هغوئ پوهیږی [ په دروغو ] خپلو [ تیار کړې دی الله [ |
| او سره د پوهې په دروغه قسمونه خوری [......................................... او الله ﷻ هغوئ د پاره |

[1]) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۰]

لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا

دپاره دهغوئ | عذاب سخت | بیشکه هغوئ چې دي | ډیر خراب دي | چې وو هغوئ |

سخت عذاب مقرر کړې دې | ...........بیشکه هغه کارونه ډیر خراب دي چې هغوئ

يَعْمَلُونَ ۝ اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ

چې کول به ئې | نیولی دي هغوئ | قسمونه خپل | یو ډال | پس منع ئې کړل خلق | دلارې دالله نه |

ئې کوی | ....دوئ خپل قسمونه خان دپاره ډال جوړ کړې دي | او خلق دالله ﷻ دلارې نه منع کوی

فَلَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ ۝ لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ

پس هغوئ لره دي | عذاب سپکونکي | هرگز به دفع نه کړی | دهغوئ نه | مالونه دهغوئ |

نوهغوئ دپاره د ذلت عذاب مقرر دې | ...........دالله د عذاب په مقابله کښې د هغوئ مال او د هغوئ

وَلَا أَوْلَادُهُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا ۚ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ

او نه اولاد دهغوئ | دعذاب دالله نه | څه څیز | دا کسان | خاوندان دوور دی | هغوئ به |

اولاد هغوئ ته هیڅ فائده نشي ورکولې | هم دغه خلق دوزخیان دي | ............ اوهمیشه به

فِيهَا خَالِدُونَ ۝ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا

په هغې کښې | همیشه وی | په کومه ورځ | چې به ژوندی راپورته کړی دوئ لره الله | ټول |

په کښې پراته وی | ............په کومه ورځ چې الله ﷻ دوئ ټول بیا راژوندی کړی

فَيَحْلِفُونَ لَهُ كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ

نو قسمونه به خوری دوئ | هغه ته | لکه څنګه چې | قسمونه خوری دوئ | تاسو ته |

نو دالله ﷻ په مخکښې به داسې قسمونه خوری | لکه څنګه چې [نن] ستاسو په مخکښې خوری

وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ

او ګمان به کوی دوئ | چې ددوئ به څه کار جوړ شي [په دې سره] | خبردار | بیشکه دوئ چې دی |

اودا خیال به کوی | چې ګنی ددوئ څه دین ایمان شته | ...........ښه واوره چې دوی

الْكَاذِبُونَ ۝ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَأَنْسَاهُمْ

هم دوئ دروغژن دی | غالب شوې دې | په دوئ باندې | شیطان | پس هیر ئې کړو ددوئ نه

بیخی دروغژن دی | [خبره داده چې] په دوئ باندې شیطان مسلط شوې دې | نو د دوی نه ئې

ذِكْرَ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ حِزْبُ الشَّيْطَانِ ۚ أَلَا إِنَّ حِزْبَ الشَّيْطَانِ

یا ددالله | دا کسان | ډله دشیطان ده | خبردار | بیشکه ډله دشیطان چې ده |

دالله ﷻ یاد هیر کړې دې | هم دغه دشیطان ټولګې دې او خان خبر کړئ چې دشیطان ټولګې

هُمُ الْخَاسِرُونَ ۝ إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ

هم دوئ خساره موندونکې دی | بیشکه هغه کسان | چې مخالفت کوی دالله | او د رسول دهغه |

تاوانیان دي | ...........بیشکه څوک چې دالله ﷻ اودهغهٔ د رسول ﷺ مخالفت کوی

أُولَٰئِكَ فِي الْأَذَلِّينَ ۝ كَتَبَ اللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي ۚ
هم دا کسان | په ذلیلانو کښې دی | لیکلي دي الله | چې خامخا به غالب کیږم | زه | او رسولان زما
نو دغه خلق ذلیلان دی | ............ الله ﷻ دالیکلی دی چې زه او زما رسول به غالب یو

إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ۝ لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ
بیشکه الله | قوي دي | غالب دی | بیا به نهٔ مومې ته | یو قوم | چې هغوئ ایمان لری په الله |
بیشکه الله ﷻ دقوت خاوند دې او غالب دې | ته بهٔ هیچرې دا پیدا نه کړې چې په الله ﷻ

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ
او په ورځ داخرت | چې هغوئ محبت کوی | دهغه چاسره | چې هغه مخالفت کوی دالله |
او په ورځ داخرت باندې ایمان راوړی | هغوئ دداسې خلقو سره دوستانې اوساتی | چې دالله ﷻ او

وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ
او درسول دهغه سره | او اګر که وی هغوئ | پلاران دهغوئ | یا خامن دهغوئ | یا رونړه دهغوئ |
دهغهٔ د رسول ﷺ مخالف وی | اګر که هغوئ ئې پلاران . یا خامن یا رونړه

أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ
یا خپلوان دهغوئ | دا کسان چې دی | لیکلي دي الله | په زړونو دهغوئ کښې | ایمان |
یا دکورنئ نورخلق وی | هم د دغه کسانوپه زړونو کښې الله تعالی د ایمان انورا اچولې دې

وَأَيَّدَهُمْ بِرُوحٍ مِنْهُ ۖ وَيُدْخِلُهُمْ
او محکم کړی ئې دی هغوئ | په یو روح سره | دطرفه خپل نه | او داخل به کړی هغوئ |
او هغوئ ئې پخپله مهربانئ سره مضبوط کړی دی | اوداسې باغونو ته به ئې

جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ
داسې باغونو ته | چې بهیږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | چې همیشه به وی | په هغې کښې |
داخل کړی | چې دهغې لاندې به نهرونه بهیږی | همیشه به په هغې کښې استوګن وی

رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ ۚ أَلَا
راضی شو الله | دهغوئ نه | او راضی شو هغوئ دهغه نه | دا کسان چې دی | ډله دالله ده | خبردار
الله ﷻ به دهغوئ نه راضی وی | او هغوئ به دالله ﷻ نه راضی وی | هم دغه دالله ﷻ ټولګې دې | خبردار

إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝
بیشکه ډله دالله | خاص هم دوئ فلاح [خلاصې] پیداکونکی دی |
چې هم دالله ﷻ ټولګې کامیاب دې

**آسان ترجمه قرآن**

آیا تهٔ نه ګورې هغه کسانو ته، چه هغوی داسې خلقو لره دوستان جوړ کړي دي، چه په هغوی باندې الله تعالی غضب کړي دې؟ دا نه خو ستاسو نه دي، او نه ددوی نه. او دوی سره د پوهې په الله تعالی باندې د

دروغو خبرو قسمونه خوري. الله تعالی ددوی دپاره سخت عذاب تیار کړي دي. حقیقت دا دي، چه ډیر بد دي هغه کارونه، کوم چه دوی کوی دوی خپل قسمونه یو ډهال جوړ کړي دي پیا دوی نورو خلقو لره د الله تعالی لارې نه منع کوی. ددوی دپاره داسې عذاب دي، چه دوی به ذلیله کړی. ددوی مال او ددوی اولاد به د الله تعالی په مقابله کښې ددوی هیڅ پکار رانشی. دا دوزخ والا خلق دی. دوی به همیشه په هغې کښې اوسیږی. په هغه ورځ چه الله تعالی به دوی ټولو لره دوباره ژوندی کړی، نو دهغه په مخکښې به هم دوی دغه شان قسمونه خوری څرنګه چه ستاسو مخکښې خوری، او دا به ګنړی، چه دوی ته څه مدد ملاؤ شوي دي، یاد ساتئ، چه دا خلق بالکل دروغژن دی. شیطان په دوی باندې پوره قبضه مضبوطه کړې ده. پس دوی ئې د الله تعالی د یادنه غافله کړي دی. دا د شیطان ډله ده. یاد ساتئ، چه د شیطان ډله نامراده کیدونکې ده. بے شکه چه کوم خلق د الله تعالی او د هغه د رسول مخالفت کوی، هغوی په ذلیل ترینو خلقو کښې شامل دی الله تعالی دا خبره لیکلې ده، چه زه او زما پیغمبر به ضرور غالب راځی، یقین او کړئ، چه الله تعالی لوئې قوت والا او لوئې اقتدار والا دي. کوم خلق چه په الله تعالی او د آخرت په ورځې باندې ایمان لری، هغوی لره به ته داسې اونه مومې چه د هغې خلقو سره دوستی ساتی، کومو خلقو چه د الله تعالی او د هغه د رسول مخالفت کړې دي، اګر که وی هغه ددوی پلاران، یا ددوی ځامن، یا ددوی رونړه، یا ددوی خاندان والا. دا هغه خلق دی، چه ددوی په زړونو کښې الله تعالی ایمان مضبوط کړې دي، او په خپل روح سره ئې ددوی مدد کړې دي، او دوی لره به هغه داسې باغونو ته داخل کړی، چه د هغې لاندې به نهرونه بهیږی، چه هلته کښې به دوی همیشه دپاره اوسیږی. الله تعالی ددوی نه راضی شوې دي، او دوی د الله تعالی نه راضی شوي دي. دا د الله تعالی ډله ده. یاد ساتئ، چه د الله تعالی ډله فلاح موندونکې ده.

## خلاصه تفسیر

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ﴾ [ایا تاسو هغو خلقو ته نه دی کتلی کوم چه ددا سې خلقو سره دوستی کوی په کومو چه الله تعالی غضب کړې دي] [داولنو خلقو نه مراد منافقان دی او دویمونه مراد یهود او ټول کفار مجاهرین] او منافقان چونکه یهودوو په دې وجه دهغوی دوستی دیهودو سره او دغه شان دنورو کفارو سره هم مشهوره او معلومه ده ﴿مَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَا مِنْهُمْ﴾ [دا] منافقان [خلق نه خو] پوره په پوره [تاسو نه دی اونه] پوره په پوره [دهغوی نه] بلکه په ظاهر کښې خو تاسو سره ملاوړدی او په باطن کښې او په عقیده کښې کفار و سره دی ﴿وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ﴾ [او په دروغ خبره باند قسمونه خوری] هغه دروغ خبره دا ده چه مونږ په مسلمانانو کښې شامل یو لکه داقول دالله تعالی دې ﴿وَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ وَمَا هُمْ مِنْكُمْ﴾ ﴿وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ [1] [او هغوی] په خپله هم [پوهیږی] چه مونږ دروغژن یو وراند ددوی دپاره دعذاب وعده ده چه ﴿أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا﴾ [الله تعالی دهغوی دپاره سخت عذاب تیار کړې دې] ځکه چه ﴿إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [بیشکه هغوی ناکاره کارونه کول] چنانچه دکفر او نفاق نه به زیات کوم کار وی او دهغوی ناکاره کاورنونه یو ناکاره کار دا دې چه ﴿اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً﴾ [دوی

---

[1] ترجمه:- اوداخلق په الله تعالی قسمونه خوری چې دوی ستاسو ډی حالانکه دوی ستاسو نه دی.

خپلو] دي دروغو [قسمونولره] د خپل بچاؤ دپاره [ډال جوړ کړي دي] چه مسلمانان مونږ لره مسلمانان وګڼړي زمونږ خان او مال باند غرض نه کوي ﴿فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾[بيا] نورو لره هم [د الله تعالى دلاري نه] يعني دين نه [منع کوي] يعني لمسوي يې ﴿فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ﴾[پس] په دي وجه سره [دهغوي دپاره دذلت عذاب کيدونکي دي] يعني دغه عذاب چه څومره سخت وي دغه شان ذليل کوونکي به هم وي اوهرکله چه دغه عذاب په دوي راشي نو ﴿لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْئًا﴾[دهغوي مالونه او اولاد به دالله تعالى] دعذاب [نه هغوي لره يوه ذره هم بچ نه کړي شي] او ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ﴾[داخلق دوزخيان دي] په دي کښي يې تعين وفرمائيلو دهغې سخت او ذليله کوونکی عذاب چه هغه دوزخ دي او ﴿هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾[هغه خلق په دغې] دوزخ [کښي هميشه پاتي کيدونکي دي] وړاند وخت دعذاب ښائي چه دغه عذاب به په هغه ورخ وي ﴿يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا﴾[په کومه ورخ چه الله تعالى دغوټولو لره] سره دنورو مخلوقاتو [دوباره ژوندي کړي ﴿فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ﴾ پس دوي به د هغه مخامخ هم] دروغ [قسمونه خوري ﴿كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ﴾ لکه څنګه چه ستاسو مخامخ قسمونه خوري] لکه دمشرکانو دروغ قسم چه دقيامت په ورخ په دي ايت کښي مذکوردي وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ(¹) ﴿وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ﴾ [او داسي خيال به کوي چه مونږه په څه ښه حالت کښي يو] چه ددي دروغو دقسم په وجه به خلاص شو ﴿اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ﴾[خبردار داخلق لويې دروغژن دي] چه دالله تعالى په وړاند په دورغو وئيلو باند هم اړنه دي او ددوي چه کوم حرکتونه پورتنی ذکردی وجه يې داده چه ﴿اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ﴾[په هغوي شيطان پوره قبضه کړي ده] چه دهغه په خبره عمل کوي ﴿فَاَنْسٰهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ﴾[پس هغه دهغوي نه دالله تعالى يادهير کړل] يعني د هغه احکام يې پريښودل واقعی ﴿اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ﴾[داخلق دشيطان ټولګی دی ﴿اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ﴾ خبرداردشيطان ډلي خامخابربادیدونکي دي] په اخرت کښي خو خامخااوکله په دنياکښي هم او ددوي داحالت به ولي نه وي چه دوی دالله تعالى او درسول مخالفت کړي دي او قاعده کليه ده ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ﴾[چه کوم خلق دالله تعالى اورسول مخالفت کوی ﴿اُولٰٓئِكَ فِي الْاَذَلِّيْنَ﴾ هغه خلق] دالله تعالى په نزد [په سختوذليلوخلقو کښي دي] هرکله چه دالله تعالى په نزد ذليل دی نو دذکرشوو اثارو مرتب کيدل پري څه لري خبره نه ده اوڅنګه چه الله تعالى ددوی دپاره ذلت تجويزکړي دي دغه شان دَ فرمانبردارود پاره عزت څکه چه دغه خلق دَالله تعالى اورسول تابعداردی او﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾[الله تعالى داخبره]په خپل حکم ازلی کښي [ليکلي ده چه زه او زماپيغمبران به غالب وي] کوم چه حقيقت دي دعزت دلته مقصود غلبه بيانول دی دانبياؤ ﷺ خپل ذکرئ دتشريف د انبياؤ ﷺ دَ پاره وفرمائيلو پس هرکله چه رسولان عزتمنددی نو ددوی متبعين هم اومعنی دَ غلبي دَسورت مائده دايت ﴿اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾(²) او دسورت مومن دايت ﴿لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا﴾(³)الخ لاندي تيره شوي ده ﴿اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ﴾ [بيشکه الله تعالى قوت والا غلبي والا دي ] په دي وجه هغه چالره چه

---

¹) ترجمه:- قسم دي وی په الله باندي ، بخپل پروردګار باندي چي مونږ مشرکان نه وو.
²) ترجمه:- پس دالله تعالى دله بيشکه هغه غالبه ده.
³) ترجمه:- مونږ د خپلو پيغمبرانو مدد کوو.

غوارې غالب كوى وراندې دكفارو په دوستئ كښې د منافقانو دحال خلاف دايمانداروحال بيان فرمائى چه ﴿لَا تَجِدُ قَوۡمًا يُؤۡمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ﴾[كوم خلق په الله تعالى اودقيامت په ورځ باندې پوره پوره ايمان لرى ﴿يُوَآدُّوۡنَ مَنۡ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ﴾ ته به هغولره ونه وينې چه هغوى به دداسې خلقو سره دوستى ساتى كوم چه دالله تعالى او درسول ﷺ خلاف دى ﴿وَلَوۡ كَانُوۡۤا اٰبَآءَهُمۡ اَوۡ اَبۡنَآءَهُمۡ اَوۡ اِخۡوَانَهُمۡ اَوۡ عَشِيۡرَتَهُمۡ﴾ اگر چه پلار نيكه يااولاد ياورونړه ياخاندان ولې نه وى ﴿اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمُ الۡاِيۡمَانَ﴾ددغو خلقو په زړونو كښې الله تعالى ايمان مضبوط كړې دې ﴿وَاَيَّدَهُمۡ بِرُوۡحٍ مِّنۡهُ﴾ او ددوې زړونو لره ې دخپل فيض سره قوت وركړې دې دفيض نه مرادنور دې يعنې په مقتضى دهدايت باندې ظاهراً عمل اوباطناً سكون دزړه اوالله تعالى په دې قول كښې ذكردې [فَهُوَ عَلٰى نُوۡرٍ مِّنۡ رَّبِّهٖ]([1]) چونكه دانور سبب دې دزيادت د ژوند معنوې په دې وجه ئې په روح سره تعبير وفرمائيلو دا دولت خودوې ته په دنيا كښې ملاوشو لكه داقول دالله تعالى دې ﴿اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنۡ رَّبِّهِمۡ﴾([2]) اوپه اخرت كښې به دوې ته دا نعمت ملاويږې ﴿وَيُدۡخِلُهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا﴾چه دوې لره به داسې باغونوته داخل كړې چه لاندې به ترې نهرونه بهيږې په كومو كښې چه به دوې هميشه اوسيږې ﴿رَضِىَ اللّٰهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُوۡا عَنۡهُ﴾ الله تعالى به ددوې نه راضى وې اودوې به دالله تعالى نه راضى وې ﴿اُولٰٓئِكَ حِزۡبُ اللّٰهِ﴾داخلق د الله تعالى ډله ده ﴿اَلَاۤ اِنَّ حِزۡبَ اللّٰهِ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ﴾خبردار دالله تعالى ډله مرادموندونكې ده [لكه چه داقول دالله تعالى دې وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ([3]) پس ددې قول نه چه اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنۡ رَّبِّهِمۡ.

## معارف او مسائل

﴿اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ تَوَلَّوۡا قَوۡمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيۡهِمۡ﴾ دې آيتونو كښې الله ﷻ د هغې خلقو بدحالى او بالآخر د سخت عذاب بيان كړېدې كوم چې دالله ﷻ د دښمنانو كافرانو سره دوستى لرى. كافران كه مشركان وى او كه يهود يا نصرانيان يا د بل قسم كافران هغوئ سره د زړه دوستى جائز نه ده. دا د عقل دمخې د سره كيدې ښكه نشى چې د مؤمن اصل پنګۀ د الله ﷻ مينه ده ، كافران د الله ﷻ مخالف او دښمنان دى اودَ چا په زړه كښې چې چاسره رښتينى محبت اودوستى وى هغه نه دا هيچرې نشى كيدې چې د هغه دښمن سره دې هم مينه وى او دوستى لرى ښكه د قرآن پاک په ډيرو آيتونو كښې كافرانو سره د دوستئ سخت حراموالئ راغلې دې. او كوم مسلمان چې يو كافر سره د زړه دكومى دوستى لرى نو هغه دپاره ددغې كافرانو په ډله كښې د شامليدو وعيد راغلې دې. خو دا ټول احكام دهغې دوستئ په باره كښې دى چې كوم د زړه د اخلاصه وى، كافرانو سره ښه رويه لرل ، همدردى كول ، خيرخواهى ئې لرل ، په هغوئ باندې احسان كول ، ښه خوى ورسره كول ، يا ورسره د سوداګرئې يا اقتصادى معاملې كول د دوستئ په مفهوم كښې داخل نه دى. داټول امور كافرانو سره هم جائز دى د نبى كريم ﷺ او صحابه كرامو ﷺ پرانستې خلاصه معامله كول په دې باندې ګواه ده البته په دې ټولو څيزونو كښې ددې لحاظ ساتل ضرورى دى ، مطلب دا چې كافرانو سره داسې معاملاتو كولو كښې

---

[1] ) ترجمه:-او هغوئ د خپل پروردګار په نور باندې دى.

[2] ) ترجمه:-بس دا خلق په صحيح لار باندې دى.

[3] ) ترجمه:-او دا خلق دى پورا كامياب.

هیڅ بدیت نشته دي چې خپل دین اسلام ته مضر نه وي ، په ایمان او عمل کښې سستی نه پیدا کوي او نورو مسلمانانو دپاره هم ضرري نه وي.

دې مسئله کښې د موالاة ، مؤاساة او د معاملاتو تر مینځه فرق په پوره تفصیل سره د سورة آل عمران د آیت ﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ(١) مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ لاندې هم په دې تفسر معارف القرآن کښې تیر شوی دی. هلته ئې اوګورئی.

﴿وَيَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ﴾ په ځینو روایتونو کښې دی چې دا آیت مبارک د عبدالله بن ابی او عبدالله بن نبتل منافق باره کښې نازل شوې دې. دهغې واقعه داده چې یو ورځ نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ سره تشریف فرما وو نو وې فرمائیل چې اوس تاسو ته داسې یو سړې راتلونکې دې چې زړه ئې د جبار یعنی ظالم زړه دې ،دې شیطان په سترګو کتل کوی ، په دې کښې عبدالله بن نبتل منافق راغئ نو سترګې ئې آسمانی رنګ وو پچپله غنم رنګې ، تیټ قدوالا ، وړه ږیره ئې وه ، نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ته اوستا ملګری ما ته کنځل کوی ، هغه قسم اوکړو چې ما داسې نه دی کړی. بیا ئې خپل ملګری هم راوبلل هغوئ دغسې په دروغه قسمونه اوکړل، الله ﷻ په دې ایت مبارک کښې د هغوئ د دروغو خبر ورکړو. [قرطبی][۲]

**د مسلمان د زړه د هغوی دوستی چا کافر سره نشی کیدی** :: ﴿لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ﴾ په ړومبو آیتونو کښې کښې کافرانو اومشرکانو سره دوستی کوونکو باندې د الله ﷻ د غضب او د سخت عذاب بیان دې. دې آیت مبارک کښې د مخلصانو مؤمنانو حال د هغوئ په مقابل کښې بیان شوې دې. چې دوئ داسې چا سره دوستی او د زړهٔ تعلق نه لری. چې دالله ﷻ مخالف یعنی کافر دې اګر چې هغه ئې پلار او اولاد یا رور یا بل نزدې خپلوان او عزیز وی.

دتولوصحابه کرامو ﷺ د احال وو دلته مفسرینو د ډیرو صحابه کرامو ﷺ واقعات په داسې شان سره بیان کړی دی چې په کښې ئې د پلار ، خوئې یا رور وغیره نه څه خبره دَ اسلام یا د نبی کریم ﷺ خلاف واوریدله نو دغه ټول تعلقات ئې شاته او غورځول او هغوئ ته ئې سزا ورکړه او ځینې ئې په کښې اووژل.

عبدالله بن ابی منافق د خپل خالص مسلمان خوئې عبدالله ﷺ په وړاندې د ر رسول الله ﷺ په شان کښې د ګستاخئ خبره اوکړه نو هغوئ د نبی کریم ﷺ نه اجازه اوغوښته چې زه خپل پلار اووژنم. نبی کریم ﷺ منع کړو. د ابوبکر صدیق ﷺ په وړاندې دهغوئ ﷺ پلار ابوقحافه د رسول الله ﷺ په شان کښې ګستاخی اوکړه ، نو په دې کښې زیات رحم کوونکی ابو بکر ﷺ ته دومره غصه ورغله چې سه په زوره څپیړه ئې ورله راخلاصه کړه ،ابوقحافه راپریوتو نو نبی کریم ﷺ چې ددې نه خبر شو نو ورته ئې اوفرمائیل چې بیا داسې او نه کړې.

په جنګ احد کښې د ابی عبیده ابن جراح پلا رجراح چې دمسلمانانو مقابلې دپاره میدان ته راووتو نو بیا د ابی عبیده ﷺ مخې ته پدې غرض راتلو چې هغه شهید کړی خو هغوئ ﷺ

---

[۱] ترجمه:- مسلمانانو ته پکار دی چې کافرانو لره خپل دوستان نه جوړوي.

[۲] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۳۰۳]

به ترې ډډه کوله خو چې نه کيده نو آخر ئې په خپل لاس جهنم ته ا ورسولو(۱).
داسې نور ډير واقعات د صحابه کرامو ﷺ شته چې دې باره کښې دا آيتونه نازل شوېدی. [قرطبی](۲).

مسئله :: ډيرو فقهاء کرامو هم دا حکم د فاسقانو ، فاجرانو ، او په عمل سره ددين نه آوړيدلو مسلمانانو دا حکم گرځولې دی چې د چا مسلمان دوئ سره د زړه دوستی نشی کيدې . په کارو روزگار ، تجارت وغيره کښې ورسره شريکيدل يا ملگرتيا دضرورت په وجه بيل څيز دې . په زړۀ کښې فاسق فاجرسره د چا دوستی هغه وخت کيديشی چې د فسق او فجور جراثيم پخپله ددۀ په زړه کښې موجود وی . ځکه به نبی کريم ﷺ په خپلو دعاګانو کښې فرمائيل چې [ اَللّٰهُمَّ لَاتَجْعَلْ لِفَاجِرٍ عَلَیَّ يَدًا ](۳) يعنی يا الله په مابانديې د چا فاسقانو دلاسه احسان اومه خيژوې ولې چې شريف طبيعته انسان دخپل محسن په محبت باندې طبعا مجبوره وی . ځکه د فاسقانو فاجرانو احسان قبلول چې ورسره مينې کولو ذريعه جوړه شی ، ددې نه هم رسول الله ﷺ پناه اوغوښتله [ قرطبی ](۴).

﴿وَاَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ﴾ دلته دَ روح تفسير ځينې حضراتو په نور سره کړې دې چې د الله تعالی د طرفه مؤمن ته ورکولې شی او هم هغه ددۀ دنيک عمل او د زړۀ د سکون او تسلئ ذريعه وی . اوداسکون او تسلئ لوئې طاقت دې . اوځينې حضراتو د روح تفسير په قرآن پاک او په دليلونو د قرآن سره کړې دی چې هم هغه د مؤمن اصلی قوت او طاقت دې . [ قرطبی ](۵) والله اعلم.

تَمَّتْ سورة المجادلة بحمده وعونه لغرة

جمادی الاولی ۱۳۹۱ھ يوم الجمعة

ولله الحمدويتلوه انشاء الله تعالی

تفسير سورة الحشر

---

۱) مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱٤۹۰۹] باب مناقب ابی عبيدة بن الجراح ﷺ
۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۳۰۷]
۳) تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۳۰۸]
٤) كنز العمال بألفاظ مختلفة رقم الحديث:[۳۸۱۰]
۵) تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۳۰۸ ، ۳۰۹]

| آیاتونه | سورة الحشر مدنية وهي اربع وعشرون اية وثلاث ركوعات | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| (۲۴) | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | (۳) |

سَبَّحَ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الْاَرْضِ ۚ

پاکي بيانوي | الله لره | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دي | او هغه څه | چې په زمکه کښې دي |

په زمکه او آسمانونو کښې چې څه دي ټول دالله ﷻ پاکي بيانوي

وَهُوَ الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ① | هُوَ الَّذِيْٓ | اَخْرَجَ | الَّذِيْنَ

او هغه غالب دې | او حکيم دې | هغه هغه ذات دې | چې وې ايستل | هغه کسان |

او هغه ډير غالب او صاحب دحکمت دې | الله ﷻ هغه ذات دې چې کتابيان

كَفَرُوْا | مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ | مِنْ دِيَارِهِمْ | لِاَوَّلِ الْحَشْرِ ۭ

چې کفر ئې اوکړو | داهل کتابونه | دکورونو دهغوئ نه | په اول د ايستلو سره |

کافران ئې په اول ځل په جمع دکورونو نه اوويستل | ..............................

مَا ظَنَنْتُمْ | اَنْ يَّخْرُجُوْا | وَظَنُّوْٓا | اَنَّهُمْ

نه کوئ ګمان تاسو | چې اوبه وځي هغوئ | او ګمان کړې وو هغوی | چې بيشکه هغوئ چې دي |

تاسو داګمان هم نه کولو | چې دوئ به اوځي | اوهغوئ دا ګمان کولو چې خپلې

مَّانِعَتُهُمْ | حُصُوْنُهُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | فَاَتٰىهُمُ اللّٰهُ | مِنْ حَيْثُ

منع کونکې دي هغوئ لره | قلاګاني دهغوئ | دالله نه | پس راغې په هغوئ الله | دداسې طرفنه |

قلعه ګانې به ئې دالله ﷻ د عذاب نه بچ اوساتي | نو دالله ﷻ عذاب پرې دهغه طرف نه راغلو

لَمْ يَحْتَسِبُوْا ۤ | وَقَذَفَ | فِيْ قُلُوْبِهِمُ | الرُّعْبَ | يُخْرِبُوْنَ

چې ګمان نه وو دهغوئ | او واچوله الله | په زړونو دهغوئ کښې | يره بيره | چې ورانول هغوئ |

چې ددوئ په ګمان کښې هم نه وو | ............ اودهغوئ په زړونو کښې ئې رعب واچولو

بُيُوْتَهُمْ | بِاَيْدِيْهِمْ | وَاَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ ۤ | فَاعْتَبِرُوْا | يٰٓاُولِي

کورونه خپل | په لاسونو خپلو سره | او په لاسونو دمومنانو | پس عبرت واخلئ | اے خاوندانو

چې خپل کورونه ئې په خپلو اودمسلمانانو په لاسونو نړول | نوائې دسترګو خاوندانو ددې نه

الْاَبْصَارِ ② | وَلَوْلَآ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ | عَلَيْهِمُ | الْجَلَاۗءَ

دسترګو | او که چرې نه وې ليکلې الله | په هغوئ باندې | وتل دوطن خپل نه |

عبرت حاصل کړئ ......... اوکه الله ﷻ دهغوئ په حق کښې جلاوطني ليکلې نه وې | نو په دنيا

لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ

نو خامخا به ئې عذاب ورکړې وو هغوی له | په دنیا کښې | او هغوی لره دي | په آخرت کښې |

کښې به ئې د (قتل) سزا ورکوله | او ابواخې د دنیا عذاب نه بلکه | په آخرت کښې حو دوی دپاره د

عَذَابُ النَّارِ ۝ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللّٰهَ وَرَسُولَهُ ۚ

عذاب دوور | دا کار | په سبب ددې وو چې هغوی | محالفت اوکړو دالله | او درسول دهغه

اور سزا مقرر ده | دا ځکه چې دوی دالله ﷻ او د رسول ﷺ مخالفت کړې دې |

وَمَنْ يُشَاقِّ اللّٰهَ فَإِنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ۝ مَا قَطَعْتُمْ

اوڅوک چې مخالفت کوی دالله | پس بیشکه الله | سخت عذاب ورکونکې دې | هغه چې پرې کړې تاسو

اوڅوک چې دالله ﷻ مخالفت کوی | نو الله ﷻ په سزا ورکولو کښې ډیر سخت دې | تاسو چې

مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَىٰ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللّٰهِ

دونو دکجورو نه | یا پریښودې تاسو هغه | ولاړې | په جرړو خپلو باندې | پس په اجازت دالله سره دی

دکهجورو کومې ونې کټ کړې یامو په بیخونو باندې ولاړې پریخودې | نو دا دَالله ﷻ په حکم وو

وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِينَ ۝

او دپاره ددې چې الله ذلیله کړی | فاسقان خلق |

او (ځکه) چې الله ﷻ نافرمانه خلق رسوا کړی |

## آسان ترجمه قرآن

په آسمانونو اوزمکه کښې چه څه څیزونه دی، هغوی د الله تعالیٰ تسبیح کړې ده، او هم هغه دې، چه د اقتدار مالک هم دې، د حکمت مالک هم دې، الله هغه ذات دې، چه هغه د اهل کتابو نه کافران خلق دخپلو کورونو نه د اولې اجتماع په موقع راوویستل (مسلمانانو!) تاسو ته دا خیال هم نه وو، چه دوی به راووځی او دوی هم دا گنړل، چه ددوی قلعه گانې به دوی د الله تعالیٰ نه بچ کړی، بیا الله تعالیٰ هغوی ته د داسې ځائې نه راغلو، چه د هغې ځائې نه دهغوی گمان هم نه وو. او الله تعالیٰ د هغوی په زړونو کښې رعب واچولو چه هغوی خپل کورونه په خپلو لاسونو باندې هم او د مسلمانانو په لاسونو باندې هم وړانول لهٰذا اے د نظر خاوندانو! عبرت حاصل کړئ. اوکه الله تعالیٰ د دوی په قسمت کښې جلاوطنی نه وه لیکلې، نو هغه به هم دنیا کښې دوی ته عذاب ورکړې وو او په آخرت کښې دوی دپاره د دوزخ عذاب دې دا ددې وجې نه، چه دوی د الله تعالیٰ او دهغه رسول سره دشمنی اوکړه او کوم سړې چه الله تعالیٰ سره دشمنی کوی، نو الله تعالیٰ ډیر سخت عذاب ورکونکې دې. تاسو چه د کجورو کومې اونې پریکړې، یا هغې لره مو په خپلو جرړو باندې ولاړې پریخودې، نو دا ټول هر څه د الله تعالیٰ په حکم سره وو او دې دپاره چه الله تعالیٰ نافرمانو لره رسوا کړی.

**ربط سورت او شان نزول** په شاتنی سورت کښې چه دَ یهودو دوستی کومو منافقانو اختیار کړې وه دَهغې دَ مذمت بیان وو په دې سورت کښې په یهودو باندې په دنیا کښې دَ وطن پریخودو سزا اودَ آخرت عذاب ذکر دې اودَ هغه یهودو قصه ده چه کله حضور پاك مدینې منورې ته تشریف

راورو نو یهودو سره د صلح معاهده شوې وه او د هغه یهودیانو په مختلفو قبیلو کښې یوه قبیله د بنونضیر وه هغه هم د صلح په معاهده کښې داخله وه. دا خلق د مدینې طیبې نه د دوو میلو په فاصله باندې اوسیدل. یو ځل دا واقعه پیښه شوه چه د عمرو بن امیه ضمری د لاسه دوه قتلونه شوي وو. د کوم خون بها چه تولو له په یو ځائی اداکول وو. رسول الله ﷺ د دې د پاره د مسلمانانو نه چنده راجمع کړه. بیا دا اراده اوشوه چه یهود دې هم د صلحنامې د وجې مسلمانانو سره د خون بها په رقم کښې شریک کړې شي. د دې کار د پاره حضور پاك قبیله بنونضیر ته تشریف یوړو. هغوی دا سازش اوکړو چه د رسول الله ﷺ د قتل موقع په لاس راغلـه. په دې وجه نې حضور پاك په یو ځائی کښې کینولو او ورنی ونیل چه مونږ د خون بها د رقم انتظام کوو. او پټه مشوره ئې اوکړه اودا فیصله ئې اوکړه چه د کوم دیوال لاندې حضور پاك تشریف فرما دې یو سړې دې پورته اوخیژی او یو درونـد کانړې دې په حضور پاك باندې د پاسه راګذار کړی نو د حضور پاك کار به خلاص شي. رسول الله ﷺ ته زر د هغوی دا سازش د وحی په ذریعه معلوم شو. حضور پاك د هغه ځائی نه پاسیدو واپس ئې تشریف یوړو او هغوی ته ئې اووئیل چه تاسو وعده خلافی اوکړه او صلح مو ماته کړه په دې وجه اوس تاسو ته د لسو ورځو مهلت درکولې شي په دې کښې چه تاسو چرته تلل غواړئې لاړشئې. دې نه پس چه کوم سړې دلته په نظر راغلو د هغه سټ به وهلې کیږی. هغوی د تللو اراده اوکړه نو عبدالله بن ابی منافق هغوی منع کړل چه چرته مه ځئی. ما سره د دوو زرو کسانو لښکر دې چه خپل ځان به ورکوی په مونږ به هیڅ نقصان نه راځی. او په روح المعانی کښې د ابن اسحاق رحمه الله په روایت سره په دې کښې عبدالله بن ابی سره ودیعه او سوید راعس شریکیدل هم لیکلی دی. دا خلق د هغه په وینا کښې راغلل او حضور پاك ته ئې جواب راولیګلو چه مونږ چرته هم نه ځو تاسو چه څه کولې شئې اوکړئې. حضور پاك صحابه کرامو سره په دغه قبیله باندې حمله اوکړه او دا خلق په قلعه کښې رابند شو او منافقانو مخونه پټ کړی کیناستل. حضور پاك د هغوی نه ګیره واچوله او د هغوی ونې ئې اوسوزولې څه ئې پرې کړې. آخر تنګ شو نو وطن پریخودل ئې منظور کړل. رسول الله ﷺ په دې حال کښې هم هغوی سره رعایت اوکړو او حکم نې اوکړو چه څومره سامان تاسو ځان سره اوړلې شئې یوسئې بغیر د وسلونه چه هغه به ضبط کولې شي. دا خلق اووتل څه شام ته لاړل څه خیبر ته او د دنیا د حرص د وجې نه ئې د خپلو کورونو لرګی تختې او زنځیرونه راوویستل. اودا قصه د غزوه احد نه پس په ربیع الاول څلورم هجری کښې پیښه شوه. بیا حضرت عمر په خپل خلاقت کښې دوی سره د نورو یهودیانو شام طرف ته اوویستل. دې دواړو ځل د وطن نه ویستلو ته حشر اول او حشر ثانی ونیلی شي. [کذا فی زاد المعاد] (۱)

**خلاصه تفسیر:** ﴿سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ﴾ [دالله تعالی پاکی بیانوی ټول هغه څه چه په اسمانونو کښې دی او څه چه په زمکه کښې دی] مخلوقات ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝﴾ [او هغه زبردست او] [حکمت والا دې] [چنانچه د هغه دلوې شان او قدرت او حکمت یو اثر دادې چه ﴿هُوَ الَّذِيْٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ ؔ﴾ [هغه دې چا چه دې کفارو اهل کتابو] یعنی [بنی نضیر] [لره د هغوی د کورونو نه اول ځل په جمع وویستل] یعنی په قول د زهری ددې نه وړاندې په دوی دا مصیبت نه وو واقع شوې دا مصیبت په دوی اول ځل راغلې دې کوم

۱) روح المعانی تحت هذه الآیة [ج: ۲۰ ص۴۳۲]

چه ددوی دبدو حرکتونوثمره ده او په دې کښې يوه باريکه اشاره ده يوې پيشنګويۍ طرف ته چه ددوی دپاره به بيا داسې اتفاق وی چنانچه دوباره حضرت عمر ﷛ ټول يهوديان دعربود جزيرې نه وويستل لکه چه په خازن کښې دی او اشارې ته باريکه ځکه ووئيلې شوه چه لفظ د اول هميشه ددې مقتضی نه وی چه ددې ثانی دې هم وی لکه چه وانی دفلانی ښځې اول ځل بچې پيدا شوې دې دهغوی دکورونو نه ويستل دمسلمانانو دطاقت اوغلبې اثروو ورانديې ددې تقرير دې چه اے مسلمانانو ددوی سامان اوشوکت چه مووليدو ﴿مَا ظَنَنْتُمْ أَنْ يَخْرُجُوا﴾ [ستاسو ګمان هم نه وو چه هغوی به ]چرې دخپلو کورونونه [اوځی او]په خپله ﴿وَظَنُّوا أَنَّهُمْ مَانِعَتُهُمْ حُصُونُهُمْ مِنَ اللَّهِ﴾ [هغوی دا ګمان کړې وو چه ددوی قلاګانې به دوی لره د الله ] دانتقام[نه بچ کړی ]يعنی دخپلو قلاګانو په استحکام باندې داسې مطمئن وو چه ددوی په زړه کښې دغيبی انتقام خطره هم نه راتله پس ددوی حالت مشابه دهغه سړی دې دچاچه داګمان وی چه ددوی قلا به د الله تعالی دګرفت نه دوی لره بچ کړی او که خاص دبنی نضير دقبيلې قلاګانې ډيرې نه وې نو په حُصُونُهُمْ کښې دجمع ضمير مطلق يهودوطرف ته به وی اوأَنَّهُمْ ضميرهم او صرف دَ ظَنُّوا ضمير به بنونضير طرف ته شی يعنی بنی نضيرو دا خيال وو چه ددوی قلاګانې به ټول يهوددحوادثونه بچ کړی په دې ټولو يهودو کښې دوی هم راغلل چه خپله قلاتې خپله محافظ ګڼړله ﴿فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا﴾ [پس په هغوی ] د [الله تعالی ] عذاب[دداسې طرف نه راورسيدو چه دهغوی خيال ]اوګمان [هم نه وو] مرادداسې طرف نه دادې چه دمسلمانانو په لاسو وويستلې شول چه دهغوی بې سرو سامانئی ته ئې کتل ددې ګمان ئې هم نه وو چه دابې سامانه به په دې خاوندانو دسامان غالب شی ﴿وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ﴾ [او د دوی په زړونو کښې ]الله تعالی دمسلمانانو[رعب واچولو چه ] ددې رعب په وجه ئې دوتلوقصد وکړو او دغه وخت ئې داحالت وو چه ﴿يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُمْ بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ﴾ [خپلو کورونو لره ئې په خپلو لاسونوسره هم اودمسلمانانو په لاسونو هم ورانول ]يعنی په خپله ئې دکهړکو اوتختوړلو دپاره خپل مکانونه نړول او مسلمانانوهم ددوی زړۀ ته دتکليف رسولو دپاره د ورانولو نسبت ددوی طرف ته ځکه وکړو چه سبب ددې ورانول دغه خلق وو ځکه چه دوی وعده ماته کړه اودغه کار ديهودو دې پس اسناد دسبب دوی طرف ته شو اودمسلمانانولاسونه په منزله دآلې شو ﴿فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ﴾ [پس اې هوښيارانو ]ددې حالت ته وګورې [عبرت حاصل کړې ]چه دالله او درسول دمخالفت انجام څنې وخت په دنيا کښې هم ډير بد وی ﴿وَلَوْلَا أَنْ كَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَاءَ﴾ [اوکه الله تعالی دهغوی په قسمت کښې جلاوطن کيدل نه وې ليکلې ﴿لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا﴾ نو هغوی ته به ئې په دنيا کښې ] دقتل [سزا ورکړې وه ] څنګه چه ددوی نه پس دبنوقريظه سره معامله وشوه [او]اګر چه په دنيا کښې دقتل دعذاب نه بچ شول ليکن ﴿وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ﴾ [دهغوی دپاره په اخرت کښې ددوزخ عذاب ]تيار [دې ]او ﴿ذَٰلِكَ﴾ [دا]سزا د جلاوطنۍ په دنيا کښې او سزا داور په اخرت کښې ﴿بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ [په دې وجه وه چې دې خلقو دالله او دهغه درسول مخالفت وکړو ﴿وَمَنْ يُشَاقِّ اللَّهَ﴾ او څوک چه دالله مخالفت کوی ]او دا مخالفت درسول هم دې ﴿فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ [نو الله تعالی سخته سزا ورکوونکې دې ]دا مخالفت په دوه قسمه شو يو مخالفت دعهد ماتولو چه سزا دجلاوطنۍ پرې ورکړې شوه او دويم نشتوالې دايمان چه داخرت دعذاب سبب دې وراندې

يهودو د طعن جواب دې كوم چه نې د ونو د پريكولو او سوزولو په باره كښې كړې وو چه واسې كول خو فساد دې او فساد مذموم دې لكه چه په درمنثور كښې دى او دا رنګ خنې مسلمانانو سره د اجازت نه داسې ګنړله چه ترك دجائز جائز دې او په اخر كښې به دا ونې د مسلمانانو شى نو پريخودل ئې غوره دى پرې ئې نه كړلې او خنو داسې وګنړله چه ديهودو زړونه پرې درديږى پرې ئې كړې [لكه چه په درمنثور(۱) كښې دى] سره دجوابه ددې دواړو كارونو صحيحوالي دې پس ارشاد دې چه ﴿مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ﴾ [كومې دكهجورو ونې تاسو پريكړې] دغه شان كومې چه مو اوسوزولې ﴿أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَىٰ أُصُولِهَا﴾ [يا دغى لره مو په بيخونو باند] په خپل حال [ولاړې پريښودې پس] دواړه خبرې ﴿فَبِإِذْنِ اللَّهِ﴾ [دالله د حكم ]او رضا [موافق دى] ﴿وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِينَ﴾ ددې دپاره چه [كافرانولره ذليل كړى] يعنى په دواړو كارونو كښې مصلحت دې چنانچه په پريخوودو كښې هم دمسلمانانو يوه كاميابى او كفاريه غصه كښې اچول دى چه د مسلمانانو په كار به اوس راخى او په پريكولواو سوزولو كښې ئې هم دمسلمانانو بله كاميابى يعنى دغلبې داثارو ظهور او كفارو لره په غصه كښې اچول دى چه مسلمانان زمونږ په څيزونو كښې څنګه تصرفات كوى پس دواړه كارونه جائز دى او په حكمت مبنى دى په دې سبب په كښې څه قباحت نشته

## معارف او مسائل

**دسورة حشر خصوصيتونه او دبنى نضير قبيلې تاريخ** :: سورة حشر سراسرى ديهودو د بنى نضير قبيلې باره كښې نازل شوې دې . او ابن عباس ﷺ په دې سورت ته د بنى نضير سورت نوم اخستو . [ ابن كثير ](۲).

بنونضير د هارون ﷺ په اولاد كښې يوه قبيله وه چې يهود وو د دوئ پلاران او نيكونه د تورات عالمان وو. تورات كښې د خاتم الانبياء ﷺ خبر او د نبى كريم ﷺ صورت مبارك او نښې نښانې بيان شوې وې . هغې كښې دا هم وو چې هجرت د نبى كريم ﷺ به يثرب يعنى مدينې منورې ته كيږى . دا خاندان په دې په طمع وو چې مونږ به نبى كريم ﷺ سره او سيږو ، د شام ملك نه مدينې منورې ته منتقل شو د دوئ په موجوده خلقو كښې هم د تورات عالمان وو. كله چې نبى كريم ﷺ مدينې منورې ته هجرت اوفرمائيلو نو دوئ په ليدو سره نبى كريم ﷺ پيژندلى هم وو. خو د دوئ خيال دا وو چې آخرى نبى به د هارون ﷺ په اولاد كښې ددوئ په خاندان كښې وى مګر نبى كريم ﷺ د بنى اسرائيلو په ځائې په بنى اسماعيل كښې مبعوث شو. دې حسد دوى لره د ايمان راوړلونه هم منع كړل . خو په زړه كښې نبى كريم ﷺ لره د دوئ اكثرو خلقو پيژندل چې هم نبى كريم ﷺ آخرى پيغمبر خاتم الانبياء دى كله ئې چې د بدر په غزا كښې د مسلمانانو هغه ښكاره فتح او د مشركانو ماتې اوليدله نو د دې يعنى ديهودو يقين څه نو رهم زيات شوې وو. د دې اقرار ددوئ د ژبو نه واوريدې شو ، خو دا ظاهرى فتح او ماتې د حق اود باطل دپيژندلو پيمانه جوړول يو كچه او كمزورې بنياد وو ، نتيجه دا شوه چې د احد د غزا په شروع كښې كله چه مسلمانانو ماتې او خوړه څه صحابه

---

(۱) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۲ ص:۱۱٤]
(۲) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۵٦]

کرام ﷺ په کښې شهيد ان شو نو د دوئ يقين متزلزل شو او ددې نه پس ئې د مکې مشرکانو سره يو ځائې ساز باز شروع کړو

ددې نه مخکښې دا واقعه شوې وه چې نبی کريم ﷺ مدينې منورې ته په رسيدو باندې د سياسی حکمت د غوښتنې په بنا باندې د ټولونه اولنی کار دا کړې وو چې په مدينه منوره کښې او د ښار خواؤشا څه ديهودو قبيلې آبادې وې ، هغوئ سره ئې د صلح لوظنامه داسې کړې وه چې دا خلق يعنی يهود به نه دمسلمانانو په خلاف جنگ کوی ، او نه به د چا جنگ کوونکی امداد کوی که په دوئ باندې څوک حمله کوی نو مسلمانان به ئې امداد کوی ، په صلح نامه کښې نورې هم گڼرې دفعات وو چې تفصيل ئې په سيرت ابن هشام وغيره کښې راغلې دی[۱] . دغسې د يهودو په شمول بنی نضير د مدينې منورې نه په دوه ميله فاصله کښې خپله علاقه آبادی ، مضبوطې قلاګانې او باغونه لرل .

د احد غزاپورې خو په ښکاره ددغې صلحنامې پابند ښکاريدل ، خود احد نه پس ئې غداری اوکړه او پټ په پټه ئې ورانې کول شروع کړل . ددې تکې او ورانی شروع ددې نه اوشوه چې د بنی نضيرو يو سردار کعب بن اشرف د احد دغزانه پس د يهودو دڅلورو کسانو قافلې سره مکې مکرمې ته اورسيدو ، او دغه ځائې کښې د قريشود هغه کافرانو سره ئې ملاقات اوکړو چې دبدر د غزا دماتې د بدلې داخستو په غرض چې غزوه احد ته تلې وو او په آخره کښې ئې دغلته هم ماتې اوخوړه . اوواپس راغلی وؤ او په دې دواړو کښې دمسلمانانو په خلاف د جنگ کولو يوه معاهده سرته اورسيدله چې د هغې تکميل داسې اوشو .

چې کعب بن اشرف سره د څلويښتو يهوديانو او ابوسفيان سره د څلويښتو کسانو قريشو د بيت الله شريف په حرم کښې ورننوتل او د بيت الله شريف پرده ئې اونيوله چې مونږ به يو بل سره ملگرتيا کوؤ او مسلمانانو سره به جنگ کوؤ[۲] .

کعب بن اشرف چې ددغې لوظنامې کولو نه پس مدينې منورې ته راواپس شو نو جبرائيل امين نبی کريم ﷺ لره د ټولو واقعاتو نه خبر کړو ، نبی کريم ﷺ د کعب بن اشرف د وژلو حکم جاری کړو محمد بن مسلمه صحابی ﷺ هغه لره مردار کړو .

دې نه پس د بنی نضير مختلف خيانتونه او سازشونه نبی کريم ﷺ ته ښکاره کيدل په کوم کښې چې يوه هغه واقعه ده کومه چې پورته د شان نزول په عنوان سره ليکلې شوې ده ، چې د رسول الله ﷺ د قتل کولو منصوبه يې جوړه کړه . اوکه فوری توگه باندې نبی کريم ﷺ د وحی په ذريعه خبر کړې شوې نه وې نو دغه خلق به په خپل سازش کښې کامياب شوې وې . ځکه چه د کوم کور لاندې هغوی رسول الله ﷺ کينولې وو د هغې په چت باندې ختلو سره يولوئی کاڼړې د حضورپاك په سرمبارك باندې د راګذارولو منصوبه تقريباً مکمل شوې وه . کوم سړې چه دې منصوبې ته عملی شکل ورکونکې وو د هغه نوم عمر بن جحاش وو . الله تعالی د رسول الله ﷺ حفاظت اوکړو اودا منصوبه ناکامه شوه .

**يو عبرت** : دا هم يوه عجيبه معامله ده چې کله ټول بنی نضير جلاوطن کړې شو او مدينې منورې نه اووتل په هغوئ کښې صرف دوه کسان په خپل کور کښې په خپل ځائې محفوظ

---

[۱]) سيرة ابن هشام ، كتابه صلى الله عليه وسلم بين المهاجرين والأنصار وموادعة يهود [ج: ص: ۵۰۱ تا ۵۰۳]

[۲]) صحيح البخاري كتاب المغازي باب قتل كعب بن اشرف [ج:۲ص:۵۷۶ ]

پاتې شو کوم چې مسلمانان شو یو په کښې همدغه عمر بن جحاش وو او بل په کښې د هغوئ تره یامین بن عمرو بن کعب وو. [ ابن کثیر ][1].

**دعمرو بن امیه ضمری واقعه** :: شان نزول کښې د عمروبن امیه ضمری رضی الله عنه واقعه داسې بیان شوې وه چې ددوئ رضی الله عنه د لاسه کوم دوه قتلونه شوی وو نبی کریم ﷺ دهغې دخون بها جمع کولو دپاره د بنی نضیر علاقې ته تشریف اوړې وو. دغه ټوله واقعه ابن کثیر داسې بیان کړې ده چې د مسلمانانو په خلاف دکافرانو سازشونه او د ظلم داستانونه خو ډیر اوږده دی ، د هغې ځنې یوه واقعه دبیر معونه په تاریخ کښې مشهور ده چې ځینې منافقینو او کافرانو نبی کریم ﷺ ته د اخواست اوکړو چې ورته دتبلیغ اسلام دپاره دصحابهٔ کرامو رضی الله عنهم یوهٔ ډله راولیږی. نو نبی کریم ﷺ ورته اویا صحابهٔ کرام رضی الله عنهم اولیږل. روستو معلومه شوه چې دا دهغوئ یو سازش وو ، دغه صحابه کرام رضی الله عنهم ئې راګیر کړل او شهیدان ئې کړل . په هغوئ رضی الله عنهم کښې صرف عمرو بن امیه ضمری رضی الله عنه ترې په څه شان ځان راخلاص کړو ددغې واپسئ په دوران کښې ورته په لار کښې دوه کافران په لاس ورغلل ، د ډیرې جذبې نه ئې هغه دواړه اووژل. روستو معلومه شوه چې دغه دواړه د بنی عامر قبیلې غړی وو چا سره چې نبی کریم ﷺ د صلح لوظنامه شوې وه.

د مسلمانانو لوظنامې بهٔ د اوسنئ زمانې د سیاسی خلقو پشان نه وې چې رومبې نه په کښې د خلاف ورزئ کولو اراده ئې وی. بلکه د هغوئ د قلم اوږبې نه به چې څه وتل هغه به ئې د الله ﷻ حکم ګڼړلو چې هیڅ قسم خلاف ورزی به ئې نه کوله . په دې بنا کله چې نبی کریم ﷺ په دغې غلطئ خبر شو نود شریعت د اصولو مطابق ددغو دواړو وژلو شوؤ خون بها دیت ادا کولو فیصله ئې اوکړه او دهغې دپاره ئې دمسلمانانو نه چنده اوکړه په دغې سلسله کښې بنی نضیرو نه هم چندې راجمع کولو دپاره ئې تشریف یوړو . [ ابن کثیر ][2].

**بنی نضیرو لره مجلا وطن کولو په وخت د اسلام او مسلمانانو رواداری داوسنو سیاسی خلقو دپاره سبق ازده کولو معامله ده** :: دنن ورځې لوئې حکمرانان او لوئې حکومتونه چې د انسانی حقونو په حفاظت کولو باندې لوئې لوئې لکچرونه ورکوی . اوددې دپاره اداری قائموی او په دنیا کښې د انسانی حقونو دحفاظت دپاره چودهریان بللې شی ، لږ شان نظر واچوئی چې د نن زمانې حکمرانانو به دغې خلقو سره څه سلوک کولو؟ نن صبا خو په ژوندی باندې پټرول اچولو سره میدان صفاکول دَ څه لوئې اقتدار والا او دَحکومت محتاج نه وی. څه غنډګان او شریان خلق جمع شی او دا ټول هر څه کوی ، د شاهانه قهراوغضب کرشمې خو ددې نه دوه ګوتې پورته دی.

مګر داد الله ﷻ او د نبی کریم ﷺ حکومت وو ،کله چې غدار یانې او ورانکارئی ، انتهاء ته اورسیدې خو دغه وخت ئې د دوئ د عام قتل اراده بیا هم اونه فرمائیله ، په زړه کښې ئې هم دا رانه غلل چې ټول مال ، اسباب ترې وشوکلې شی بلکه دا فیصله ئې اوکړه :

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۹]

[2] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۸] و سیرة ابن هشام ، خروج الرسول ﷺ إلی بنی نضیر لیستعینهم فی دیة قتلی بن عامر وهمم بالغدر به [ج: ۲ ص:۱۸۹]

① چې ښار دې خالي کړي او ټول سامان هم ځان سره اوړې شي ② دلسو ورځو مهلت ئې هم ورکړو چې ښۀ په آسانئ او تسلئ سره د سفر انتظام اوکړې شي ③ خو کله ئې چې ددې هم خلاف ورزی اوکړه نو په قومي توګه د قدم پورته کولو ضرورت راپيښ شو. ځکه ونې اوسوځولې شوې، څه پريکړې شوې چې په دوئ ئې اثر اوغورزيږي خو بيا هم قلاته د اور وراچولو يا ددوئ د عام وژلو حکم دغه وخت هم ورنکړې شو.

③ کله چې په مجبورئی سره دغې خلقوښار خالي کول منظور کړل نو ددې فوجي قدم پورته کولو باوجود ورته دا اختيار ورکړې شو چې په اوښ باندې څومره سامان يو کس اوړې شي هومره دې يوسي، نو د هغې په نتيجه کښې هغوئ د خپلو مکانونو کهړکئ تختې دروازې وغيره بار کړې يوړې.

⑤ خو دَدغې سازوسامان دَمنتقل کولو باوجود هم هغوئ ته هيڅ يو مسلمان په کوږ نظر او نه کتل، ښه په آسانه او په امن تسلئ سره ئې سامان واخستو او روان شو.

دا ټولې دهغه وخت خبرې وې چې رسول الله ﷺ ورسره هر څه کولې شو ټول حالات د هغوئ ﷺ په قابو کښې وو او دغه ټکان او خيانتګر وو ، ددې بل مثال دمکې د فتح موقعه وه چې نبی کريم ﷺ خپلو د سر او دين دښمنانو سره څه ښکلې سلوک اوکړو.

﴿لِأَوَّلِ الْحَشْرِ﴾ د بني نضير دغې جلاوطنئ ته قرآن پاک اول حشر اوفرمائيلو ، د حشر معنی پورته کيدل او اوډريدل دی ، د اول حشر وئيلو وجه د تفسير په خلاصه کښې بيان کړې شوې ده چې د اخلق پخوانئ زمانه کښې چرته چې آباد وو هغه ځائې نه کډې کول د اول ځل وو، او بله وجه ئې داهم ده چې د اسلام راتلونکې اصل حکم دا وو چې جزيرة العرب دغير مسلمو نه خالي کړې شي او د اسلام يوه مضبوطه قلا جوړه شي. ددې په نتيجه کښې يو بل حشر په راتلونکي وخت کښې د جلاوطنئ په شکل کښې کيدونکې وو چې د عمر فاروق ؓ په خلافت کښې عمل ته راغلو. يعنی د دوئ چې کوم خلق خيبر ته منتقل شوی وو ، هغوئ ته دجزيرة العرب نه د بهر وتو حکم اوشو ، په دې بنا د بنی نضيرو دغه جلاوطنی اول حشر او دوئمه جلاوطنی د عمرفاروق ؓ په خلافت کښې دويم حشر و شو.

﴿فَأَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا﴾ ددې لفظي ترجمه خو داسې ده چې راغلو د دوئ خواته الله ﷻ په داسې انداز سره چې ددوئ ګمان هم نه وو دالله ﷻ د راتلونه مراد د الله ﷻ د حکم اودهغه فرښتو راتلل دی.

﴿يُخْرِبُوْنَ بُيُوْتَهُمْ بِأَيْدِيْهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ د دوئ خپل مکانونه او کورونه په لاس سرنه خرابول خو داسې وو چې خپلې دروازې او درشلې کهړکيانې د ځان سره اوړلو په غرض ئې راويستلې او د مسلمانانو دلاسه خرابول ئې داسې وو چې کله دوئ قلا بند وو نو مسلمانانو ئې ونې ريبلې او سوځولې ئې او داسې ئې مکانونه هم د دوئ اونړول.

﴿مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى أُصُوْلِهَا فَبِإِذْنِ اللّٰهِ وَلِيُخْزِيَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ لينة دقجورې هرې ونې ته يا د عجوه قجورې نه علاوه نورو ونو ته وئيلې شي. کله چې بنی نضير قلا بند شو نو څينې صحابه کرامو ؓ د هغوئ ته دَغصې ورکولو او په هغوی باندې رعب اچولو دَپاره دَ هغوی قجورو څه ونې پرې کړې يا ئې اوسوزولې او څينې صحابه کرامو ؓ داخيال اوکړو چه انشاء الله فتح به زمونږ وی اودا ونې اوباغونه به دَمسلمانانو لاس ته راځی نو هسې ئې ولې

ضائع کړو هغوی ددې د پرې کولو او سوزولو نه منع شو داد يو رائې اختلاف وو روستو ئې چه کله خپل مينځ کښې خبرې اترې اوکړې نو د ونو پريکوونکی او سوزونکی فکر من شو چې مونږه ګنی ګناهګار شو ، مسلمانانو ته په لاس راتلونکې مال مو هسې ضائع کړو ، خکه دا آيت نازل شو دکوم ترمخه چې دواړه قسمه عملونه جائز او دالله ﷻ حکم اوګرځولې شو

**د رسول الله ﷺ حکم په حقيقت کښې هم دالله ﷻ حکم وی دحديث نه منکرانو ته خبرداری** دې آيت مبارک کښې ددغې ونو ريبل او سوزول او په خپل حال پريخودل دواړه عملونه د الله ﷻ په حکم خودلې شويدی، حالانکه په قرآن پاک کښې دا دواړه حکمونه چرته هم نه دی بيان شوی ښکاره خو دادی چې دواړه قسمه عملونه په اجتهاد باندې بنا وو زيات نه زيات دا کيديشی چې دغه عملونه دې ئې د نبی کريم ﷺ په اجازت سره کړی وی چې قرآن پاک ورته د الله ﷻ اذن اوفرمائيلو داواضحه کړه چې نبی کريم ﷺ ته داحکامو د شرعی ګرځولو اختيار ورکړې شوې دې . او کوم حکم چې نبی کريم ﷺ جاری کړی هم هغه د الله په حکم کښې داخل دی چې د هغې سرته رسول لکه د قرآنی آيتونو حکم سرته رسولو پشان فرض دی

**د اجتهادی اختلاف هيڅ يو اړخ ته ګناه نشو وئيلی** :: دوئم مهم اصول ددې آيت نه د امعلومه شو چې کوم خلق د شرعی اجتهاد جوګه دی که د هغوئ د اجتهاد ترمينځه څه اختلاف راشی نو يو اړخ به ئې ناجائز نه شی ګڼړلې بلکه ټول اړخونه به ئې جائز ګڼړلې شی چې ګناه به نه وی. خکه په دې باندې د نهی عن المنکر قانون نه جاری کيږی او په :

﴿وَلِيُخْزِيَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ کښې د ونو ريبلو او سوزولو د عمل توجيه بيان کړې شوې ده چې هغه هم په فساد کښې داخل نه دی. بلکه مطلب ئې د کافرانو ذليله کول او د ثواب باعث دی .

**مسئله** : د جنګ په حال کښې د کافرانو کورونه نړول ، سوزول يا دهغوئ فصلونه باغونه او ونې تباه کول جائز دی که نه؟ په دې کښې د ائمه فقهاء مختلف اقوال دی د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله نه په حالت د جنګ کښې دا ټول کارونه جائز کيدل نقل دی. مګر شيخ ابن همام رحمه الله فرمائيلی دی چه دا جواز په هغه وخت کښې دې کله چه ددې نه بغير په کافرانو باندې غلبه حاصلول مشکل وی يا په هغه صورت کښې کله چې د مسلمانانو د فتح ګمان غالب نه وی نو دا ټول کارونه ددې وجې نه جائز دی چه په دې سره دکافرانو دطاقت او رعب ماتول مقصود دی. يا دعدم فتح په صورت کښې هغوی مالونه ضائع کول هم د هغوی طاقت کمزورې کولو د پاره په دې کښې داخل دی. [ مظهری ][1].

| عَلٰى رَسُوْلِهٖ | وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ |
| --- | --- |
| رسول خپل ته | او هغه چې واپس کړل الله |
| [د جنګ نه بغير] | او الله ﷻ چې خپل رسول ته څه |

| وَّلَا رِكَابٍ | مِنْ خَيْلٍ | عَلَيْهِ | فَمَآ اَوْجَفْتُمْ | مِنْهُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| اونه داوښانونه | داسونونه | په هغې باندې | پس نه دی زغلولی تاسو | دهغوی نه |
| ددې [يهودو] نه ورکړل نو په هغې باندې تاسو خپل آسونه يا اوښان زغلولی نه دی | | | | |

[1] تفسير المظهري [ج:۹ ص:۲۳٦] و فتح القدير كتاب السير باب كيفية القتال [ج: ۱۲ ص:۳۹۹]

وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ

وليكن الله | غالب راولي | رسولان خپل | په هغه چاباندې چې خوښه ئې شي | او الله

بلكه الله ﷻ په هغه چا خپلو پيغمبرانو ته غلبه وركوي چه اوغواړي | او الله ﷻ

عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۝ مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى

په هر خيز باندې | قادر دي | هغه مال چې واپس كړو الله | رسول خپل ته | دخلقو دكلونه

په هر خيز پوره پوره قدرت لري | الله چې خپل پيغبر ته دنورو كلو خلقو نه كوم مال د فئ وركړې دې

فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِی الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى

پس هغه الله لره دې | او رسول لره دې | او رشته دارانو لره دې | او يتيمانو لره دې

نو هغه دالله ﷻ ... اودرسول ... اودهغه دخپلوانو ... اود يتيمانو

وَالْمَسٰكِیْنِ وَابْنِ السَّبِیْلِ ۙ كَیْ لَا یَكُوْنَ دُوْلَةً ۢ

او مسكينانو لره دې | او مسافرانو لره دې | دپاره ددې | چې نه شي | گرزيدونكي

اودمسيكنانو ... اودمسافرو حق دې | ... چې دغه مال فئ ستاسو دمالدارو په

بَیْنَ الْاَغْنِیَآءِ مِنْكُمْ ؕ وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ

په منځ دمالدارو خلقو كښې | ستاسو نه | او هغه چې دركړي تاسو ته | رسول

قبضه كښې رانشي | ... اورسول چې تاسو ته څه دركوي هغه واخلئ

فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ

نو واخلئ هغه | او هغه چې منع كړي تاسو | دهغې نه | پس منع شئ | اواويريږئ دالله نه

اوچې د څه نه مو منع كوي د هغې نه منع شئ | اود الله ﷻ نه ويريږئ | بيشكه الله ﷻ

اِنَّ اللّٰهَ شَدِیْدُ الْعِقَابِ ۝ لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِیْنَ

بيشكه الله | سخت عذاب وركونكې دې | دا مال] دپاره دفقيرانو | هجرت كونكو دې

په سزا وركولو كښې ډير سخت دې | ..........د هغې حاجتمند و مهاجرينو

الَّذِیْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِیَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ یَبْتَغُوْنَ

هغه مهاجرين اچې ايستلي شوي دي | دكورونو خپلو نه | او دمالونو خپلو نه | چې طلب كوي هغوئ

[دنورو نه زيات] حق دې | چې دخپلو كورونو اود مالو نو نه ويستلي شوي دي

فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا وَّیَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ

فضل | دالله نه | او رضا [دهغه] | او امداد كوي هغوئ دالله سره | او درسول دهغه سره |

دالله ﷻ فضل او دهغه رضا لټوي | اودالله ﷻ [ددين] اودهغهٔ د رسول ﷺ مدد كوي

اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۝ وَالَّذِیْنَ تَبَوَّؤُ

دا كسان چې دي | هم دوئ رښتينی دي | او [دغه مال] هغه كسانو لره دې | چې اوسيدل هغوئ

همدغه كسان رښتوني [مسلمانان] دي | او [دا مال] دهغه خلقو [حق دې] چې [دهجرت] په كور [مدينه]

الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ

په دارهجرت [مدینه] کښې || او ایمان ئې راوړې وو | مخکښې د راتلو دمهاجرینو نه | هغوئ محبت کوی

کښې دوړاندې نه دیره [انصار] دی او په ایمان کښې [ثابت قدم] دی | او دهغې خلقو سره مینه ساتی

مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً

دهغه چاسره | چې هجرت ئې اوکړو هغوئ ته | او نهٔ پیدا کوی هغوئ | په زړونو خپلو کښې | څه حاجت

چې د هغوئ ښار ته ئې هجرت کړې دې او پخپلو زړونو کښې هیڅ تنګی نه ساتی |

مِمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ

د هغه نه چې ورکړې کیږی مهاجرو له | او ترجیح ورکوی هغوئ | په ځانونو خپلو باندې [نورو له] |

شئ کښې چې دوی ته ورته ورکړې شی || او نور [د حاجت په پوره کولو کښې ] د خپلو ځانونو نه وړاندې کوی |

وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ

او اګر که وی | په هغوئ باندې | محتاجی || او هغه څوك | چې وساتلې شو | دبخل دزړهٔ خپل نه |

اګر که پخپله اوږی وی | او څوک چې دخپل نفس دبخل نه اوساتلې شو |

فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ وَالَّذِينَ جَاءُو

نو هم دغه کسان | خلاصې پیدا کونکی دی | او دغه مال هغه کسانو لره دې | چې راغلل هغوئ |

نوهم دغه خلق کامیاب دی | ................................. او د هغه چا [په کښې حق دې ] چې

مِنْ بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا

روستو ددوئ [مهاجرو او انصارو ] نه | وائی هغوئ | اے ربه زموږه | معافی اوکړه موږ ته |

د دوئ نه پس راشی | او دا دعا کوی چې ائې زموږ ربه | .................موږ ته بخښنه اوکړه

وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ

او روڼړو زموږ ته | هغه روڼړه | چې وړاندې شوی دی زموږ نه | په ایمان سره | او مهٔ پیدا کوه |

اوزموږ هغه روڼړه هم وبخښه چې زموږ نه وړاندې مسلمانان شوی دی | او زموږ په

فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ

په زړونو زموږ کښې | کینه | هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړې دې | اے ربه زموږه | بیشکه ته

زړونو کښې د هغه روڼړو دپاره هیڅ کینه مه پیدا کوه چې ایمان ئې راوړې دې | ائې زموږه ربه بیشکه ته

رَءُوفٌ رَحِيمٌ ⑩

مهربانه ئې | رحم کونکې ئې |

مهربان رحم کونکې یئ |

## آسان ترجمه قرآن

او الله تعالی چه خپل رسول ته خپل کوم مال د فئی په طور سره ورکړو دهغې دپاره تاسونهٔ خپل اسونه اوزغلول، او نهٔ اوښان. لیکن الله تعالی خپلو پیغمبرانو ته په چا چه اوغواړی غلبه ورکوی او الله تعالی په

هر څيز باندې پوره قدرت لرونكې دې. الله تعالى چه خپل رسول ته (د لورو) كلو نه كوم مال د فئ په طور سره وركړى، نو هغه د الله تعالى حق دې، او د هغه د رسول او د رشته دارانو، او يتيمانانو، او مسكينانو، او مسافرو، دې دپاره چه هغه مال صرف په هغې خلقو كښې گردش ونه كړى، كوم چه په تاسو كښې مالدار دى، او رسول چه تاسو ته څه دركوى، هغه اخلئ، او د كوم څيز نه مو چه منع كوى، دهغې نه منع شئ، او د الله تعالى نه ويرېږئ. بے شكه الله تعالى سخته سزا وركونكې دې (او دا مال فئ) دهغې حاجت مندو مهاجرينو حق دې، چه هغوى د خپلو كورونو او مالونو نه بے دخله كړې شوې دى هغوى د الله تعالى د طرف نه د هغه د فضل او رضامندئ طلبكار دى او د الله تعالى او د هغه د رسول (ص) مدد كوى، هم دا خلق رشتونې دى. (او دا مال فئ) دهغې خلقو حق دې، چه د مخكښې نه په دې ځائې (يعنى مدينه منوره) كښې دايمان سره مقيم دى څوك چه هجرت اوكړى، او هغوى ته راشى، نو دوى هغوى سره مينه كوى، او څه چه دغې (مهاجرينو) ته وركولې شى، دوى په خپلو سينو كښې دهغې څه خواهش هم نه محسوس كوى، او هغوى ته په خپلو ځانونو باندې ترجيح وركوى، اگركه په دوى باندې د تنگدستئ حالت تيرېږى او كوم خلق چه د خپل طبيعت د كنجوسئ نه بچ شى، هم هغوى دى چه كاميابي موندونكې دى (او دا مال فئ) د هغې خلقو هم حق دې، چه د دوى (مهاجرينو او انصارو) نه پس راغلې دى هغوى دا وائى چه اے زمونږ پروردگاره! زمونږ مغفرت هم اوكړه، او زمونږ دهغې رونړو هم، چه زمونږ نه مخكښې ئې ايمان راوړې دې، او زمونږ په زړونو كښې د ايمان والو دپاره څه بغض مه ساته. اے زمونږ پروردگاره! ته ډير شفقت كونكې، او ډير مهربان ئې.

## خلاصه تفسير

بره چه څهٔ بيان شول هغه خو د بنو نضيرو سره معامله وه [او] د دوى د مالونو سره چه كومه معامله وشوه دهغې بيان دادې چه ﴿وَمَآ أَفَآءَ اللهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ﴾ [څهٔ چه الله تعالى خپل رسول ته ددې نه وركړل پس] په دې كښې تاسو هيڅ مشقت نهٔ دې كړې چنانچه ﴿فَمَآ أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ﴾ [تاسو په دې] يعنى ددې په حاصلولو [نهٔ اسونه وزغلول او نهٔ اوښان] مطلب دادې چه نهٔ دريباندې دسفر مشقت راغې ځكه چه دمدينې منورې نه په دوه ميله كښې وو او نهٔ دجنگ او برائې نام چه كومه مقابله وشوه هغه غير معتد به وه لكه چه داسې په روح(۱) كښې دى په دې وجه په دې مال كښې ستاسو استحقاق دتقسيم او ملكيت نشته لكه ځنگه چه په مال دغنيمت كښې وى ﴿وَلٰكِنَّ اللهَ﴾ [ليكن] دالله تعالى عادت دې چه ﴿يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ﴾ [خپلو رسولانو لره] دخپلو دښمنانو نه [په چاچه غواړى] په خاص طور سره [مسلط كوى] يعنى محض په رعب سره ئې مغلوب كوى چه په دې كښې چاته څهٔ مشقت كول نهٔ پرېوځى چنانچه په دغو رسولانو كښې الله تعالى خپل رسول محمد ﷺ لره په مالونو دبنى نضيرو په دې طريقه مسلط وفرمائيلو په دې كښې ستاسو هيڅ حق نشته بلكه په دې كښې دمالكانه تصرف كولو مكمل اختيار صرف دوى ﷺ ته دې ﴿وَاللهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ [او الله تعالى په هر څهٔ پوره قدرت لرى] پس هغه چه ځنگه غواړى دښمنانو لره مغلوب كوى او ځنگه چه غواړى خپل رسول ته

---

(۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص: ۴۱۶]

اختیار او تصرف ورکوی او لکه څنګه چه دمالونودبنی نضیرو دا حکم دي دغه شان ﴿مَآ أَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ أَهْلِ الْقُرٰى﴾ [څۀ چه الله تعالی] په دې طور سره [خپل رسول ته دنورو کلود] کافرانو [خلقو نه ورکړی دی] لکه باغ دفدك او يوجزء دخيبر داسې په لاس ورغې [پس] په هغې کښې هم ستاسو هيڅ حق دملکيت نشته بلکه [هغه] هم ﴿فَلِلّٰهِ﴾ [دالله تعالی حق دې] يعني هغه چه څنګه غواړی په هغې کښې حکم کوی لکه چه په نورو څيزونو کښې دهغۀ دغه شان حق دې او تخصيص دحصر دپاره نه دې ﴿وَلِلرَّسُوْلِ﴾ [او درسول] حق دې چه الله تعالی ورته په دغې مال کښې مالکانه تصرفات په خپل صوابديد سره دکولو اختيار ورکړې دې ﴿وَلِذِى الْقُرْبٰى﴾ [او] ددوی ﷺ [دخپلوانو] حق دې ﴿وَالْيَتٰمٰى﴾ [او ديتيمانو] حق دې ﴿وَالْمَسٰكِيْنِ﴾ [او دغريبانو] حق دې ﴿وَابْنِ السَّبِيْلِ﴾ [او دمسافرانو]

حق دې يعني دا ټول دنبی کريم ﷺ دصوابديدموافق په دې مال کښې مصرف دې اوپه دوی کښې انحصارنشته نبی کريم ﷺ چه چالره په خپله رائے سره ورکول غواړې هغه هم په دې کښې شامل دې اودبيان شوې اقسامو په خاص طورسره ذکرشايد په دې وجه وشو چه د دوې په باره کښې دا شبهه کيدې شوه چه هرکله په جهاد کښې دشريکانوپه دې مال کښې حق نشته نو دا اقسام چه په جهادکښې شريك نۀ دې د دوئ به هم حق نۀ وي مګر په ايت کښې ددوې ذکر په خاص صفتونو ديتيم غريب مسافر وغيره سره وشو او اشاره ئې وکړه چه دا خلق دخپلو دې صفتونو په وجه ددې مال مصرف په اختيارد نبی کريم ﷺ کيدې شی دجهاد دشرکت سره ددوی تعلق نشته بياپه دې اوصافو کښې يو وصف دذوی القربی يعنی دنبی کريم ﷺ دقريبی رشته داروهم دې دوی له په دې مال کښې څکه ورکولې شی چه دا ټول دنبی کريم ﷺ مددګار وو په هر مشکل وخت کښې به ئې په کار راتلل دا حصه د نبی کريم ﷺ دوفات نه پس قطع شوه لکه چه په سوره انفال کښې ددې بيان تير شوې دې او دابيان شوې حکم څکه مقرر کړې شو چه ﴿كَيْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ﴾ هغه مال دفئ ستاسو دمالدارو په قبضه کښې رانۀ شی لکه چه په جاهليت کښې به ټول غنيمتونه اوحاصلا ت دجنګ د اقتدار خاوندانوخوړل اوفقيران به بالکل محرومه پاتې کيدل په دې وجه الله تعالی درسول ﷺ په رائی باندوساتله او مصارف ئې هم وښودل چه دوې ﷺ سره دمالك کيدونه بياهم په حاجتمندو او عامو موقعو د مصلحت کښې ئې صرف کوی اوهرکله چه دامعلومه شوه چه دنبی کريم ﷺ په رائې کښې مصلحت دې ﴿وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ﴾ نو رسول ﷺ چه تاسو ته څۀ درکوې هغه اخلئ ﴿وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا﴾ اودڅۀ شي داخستو نه چه تاسو منع کوې نوتاسومنع کيږئ اوپه عموم دالفاظوسره داحکم په ټولوافعالو کښې دې اواحکاموکښې هم ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ إِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ اودالله تعالی نه ويره کوئ بيشکه الله تعالی مخالفت کوونکو لره سخته سزاورکونکې دې اوهسې خويه فئ کښې مطلقا دټولو مسکينانو حق دې ﴿لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ أُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ﴾ ليکن دهغو حاجتمندو مهاجرينو خاص حق دې کوم چه دخپلو کورونو اوخپلو مالونونه جبرا اوظلما جدا کړې شوې دې يعني کفارودوې لره دومره تنګ کړل چه کور کلې ئې پريښودواوپه هجرت کولومجبوره شول اوپه دې هجرت سره ﴿يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا﴾ هغوې دالله تعالی دفضل يعنی جنت [اورضامندئ طلب کوونکی دی] په څه دنيوی غرض سره ئې هجرت نه دې کړې ﴿وَيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [اوهغه] خلق [دالله تعالی اودهغه درسول] صلی الله

عليه وسلم ددين [مددكوونكى دى] او ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ هم [داخلق] په ايمان كښې [رښتونى دى او] دارنګه ﴿وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ [دهغو خلقو] هم حق دې [كومو چه په داراسلام] يعنى مدينه [كښې اوايمان كښې ددوى مهاجرينو دراتلو [نه وړاند قرارنيولې دې] مراد ددې نه انصارى حضرات دې او په مدينه كښې ددوى دوړاندې نه قرارنيول خو ظاهره ده چه هغوى ددې ځائ اوسيدونكى وو او په ايمان كښې داول قرار نيولو دامطلب نه دې چه دټولو انصارو ايمان دټولو مهاجرينو نه مقدم دې بلكه مراد دادې چه دمهاجرينو مدينې ته دراتلونه وړاندداحضرات په اسلام مشرف شوى وو خواه اصل ايمان ددوى د خنو مهاجرينو دايمان نه وروستو وى ﴿يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ﴾ [ځوك چه هغوى ته هجرت كوى راخى دوئ سره داخلق محبت كوى ﴿وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا﴾ اومهاجرينو ته چه] دمال غنيمت وغيره نه [څه رسى په هغې سره دوى] انصار په وجه دمحبت [په خپلوزړونو كښې څه شك نه پيداكوى او] ددې نه زيات محبت ورسره كوى چه په خوراك وغيره كښې هغولره ﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ [دځان نه مقدم ساتى اګرچه په دوى ياند] په خپله [لوږه وى] يعنى ديركرته په خپله وږى ناست وى اوخوراك مهاجرينوته وركوى [او] واقعى ﴿وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ﴾ [ځوك چه دخپل طبيعت دبخل نه محفوظ وساتلى شى] لكه چه داخلق دى چه دحرص اوددې په مقتضاء د عمل كولونه الله تعالى دوى پاك ساتلى دى ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ پس [داسې خلق مرادموندونكى دى ﴿وَالَّذِينَ﴾ او دهغوخلقو] هم دفئ په دې مال كښې حق دې [كوم چه] په دارالاسلام كښې يا په هجرت كښې ياپه دنياكښې ﴿جَاءُوا مِن بَعْدِهِمْ﴾ [ددوى] مهاجرينو اوانصارو بيان شوو [نه وروستو راغلل] يا راشى ﴿يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ﴾ [كوم چه دعاكوى چه اے زمونږ پروردګاره مونږ وبخښې اوزمونږ هغو ورونړولره] هم ﴿سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ﴾ [كوموچه زمونږ نه وړاند ايمان راوړې دې] خواه نفس ايمان يا ايمان كامل چه موقوف په هجرت وو ﴿وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ آمَنُوا﴾ [اوزمونږ په زړونو كښې دايماندارو په باره كښې كينه مه پيداكوې] دادعامتقدمينونه علاوه معاصرينولره هم شامله ده ﴿رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ [اے زمونږ ربه ته لوئ شفيق او رحيم ئې]

## معارف او مسائل

﴿وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ مِنْهُمْ﴾ لفظ د افاء د فئ نه مشتق دې چې معنى ئې راواپس كيدل دى ، دې وجې نه كوم سورې چې د غرمې نه پس مشرق ته واپس شى هغې ته هم فئ وئيلې شى . د غنيمت مالونه چې دكافرانو نه حاصلولې شى د هغې ټولو اصل حقيقت دادې چې ددوئ د باغى كيدو په وجه د هغوئ مالونه دسركار [اسلامى] په حق كښې ضبط كولې نيولې شى . اوددوئ د ملكيت نه په راوتو سره بيا حقيقى مالك الله ﷻ ارخ ته راواپس كيږى . څكه ئې د هغې د حاصليدو نه په افاء سره تعبير اوكړو . ددې تقاضا دا وه چې د كافرانو ټولو حاصلو شوؤ مالونو ته فئ وئيلې شوې وې خو دجهاد او جنګ په ذريعه ترې حاصل شوې مال كښې د انسانى عمل او كوشش هم يو قسم دخل وى څكه ئې ددې نه په لفظ غنيمت سره تعبير اوكړو چې ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ﴾ (۱) ليكن د كافرانو نه بې د جنګ ، جهاد نه حاصل شوې مال فئ

(۱) ترجمه:-اوپه دې خبره پوهه شئ چې كوم څيز د غنيمت په طور تاسو ته حاصل شو.

بللې شي چې په مجاهدینو او غنیمت کوونکو کښې د غنیمت د قانون په جوړ نشي ویشلې بلکه ددې کل مختار به پخپله نبی کریم ﷺ وی چاله چې څومره ورکوی یا هیچاته ئې نه ورکوی پخپله ئې ځان ته ساتی ، البته د اپابندی ئې اولګوله چې د حقدارانو څو قسمونه اوټاکلې شو چې هم په دغې کسانو دې مال تقسیم کړې شی ، ددې بیان په راتلونکې آیت کښې داسې فرمائی چې:

﴿مَآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡقُرَىٰ﴾ دلته د اهل قری نه مراد بنی نضیر او ددې پښان نورې قبیلې د بنی نضیر وغیره دی چې مالونه ئې بغیر د جنګ جهاد نه حاصل کړې شو ، وریسې ئې د خرچ کولو ځایونه او حقداران پنځه قسمه خودلې شوی دی . چې بیان ئې راروان دې.

دې آیت مبارک کښې د فئ احکام ددې حقدارو او په دوئ ئې د تقسیم کولو طریقه بیان کړې ده.

د سورة انفال په شروع کښې دغنیمت د مال اود فئ فرق په واضح ډول بیان شوې دې چې غنیمت هغه مال ته وئیلې شی چې د کافرانو د جهاد او قتال یعنی جنګ په نتیجه کښې تر لاسه کیږی . خو فئ هغه مال دې چې بې دجنګ جهاد نه مسلمانانو ته دکافرانو نه په لاس راشی خواه په دې شان چې اوتښتی او خپل مال په ځائې پریږدی . یا په رضا سره د جزئې خراج یا تجارتی ډیوټئ وغیره په ذریعه دهغې نه حاصلیږی .

ددې څه تفصیل د سورة انفال په شروع کښې په معارف القرآن کښې او ددې نور تفصیل د سورة انفال آیت نمبر یوڅلویښتم [۴۱] لاندې هم په معارف القرآن کښې لیکلې شوې دې .

دلته دا خبره د غور کولو جوګه ده چې دسورة انفال په آیت نمبر ۴۱ کښې کوم الفاظ د غنیمت دمال د پنځمې برخې باره کښې راغلې دې تقریبا هم هغه الفاظ دلته د مال فئ باره کښې دی . په سورة انفال کښې دی چې:

﴿وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَا غَنِمۡتُم مِّن شَيۡءٖ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُۥ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِ﴾

دې دواړو آیتونو کښې د مال د حقدارانو شپږ نومونه ذکر کړې شوی دی . الله ﷻ ، رسول ﷺ ، ذوی القربی ، یتیم ، مسکین ، مسافر ، داښکاره ده چې الله ﷻ خو ددنیا اوآخرت او ټولو مخلوقاتو حقیقی مالک دې . د الله ﷻ نوم مبارک خو د خصوصیت په بیان کښې خالص د تبرک په غرض دې فائدې دپاره دی . چې ددې نه ددې مال شرافت او غوروالی او حلال او پاک کیدو اړخ ته اشاره اوشی . د حسن بصری رحمه الله ، قتاده رحمه الله ، عطاء رحمه الله ، ابراهیم رحمه الله ، شعبی رحمه الله او د عامو مفسرینو هم دا قول دې . [ مظهری ][1].

د الله ﷻ په نوم یادولو سره ددې مال غوروالی او شرافت اړخ ته اشاره څنګه اوشوه ؟ ددې تفصیل بیان د سورة انفال په شروع کښې شوې دې . چې دهغې حاصل دادې الله ﷻ پیغمبرانو ﷺ دپاره هغه مال هم نه دې حلال کړې کوم چې د مسلمانانو نه دصدقې په ډول حاصلیږی . کوم مال غنیمت او فئ چې کافرانو نه حاصل شی په هغې داشبه کیدې شوه چې د ارسول الله ﷺ دپاره څنګه حلال شو ؟ ددې شبهې لرې کول په دې شان سره اوشو چې د الله ﷻ نوم یاد کړې شو او دا اوخودلې شو چې په حقیقت کښې د هر څیز مالک الله ﷻ دې هغه پخپل فضل سره د یو خاص قانون لاندې ، انسانانو ته د ملکیت حق ورکړې دې . لیکن کوم

---

[1] ) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۳۸]

انسانان چې باغیان شي هغوئ لره په صحیح لاره باندې راوستولو دپاره خو پیغمبران ﷺ او آسماني هدایتونه را اولیږلې شو چې هغې نه ئې هم اثر قبول نکړو نو هغوئ ته دا حق ورکړې شو چې کم نا کم د اسلامي قانون تابعداري قبوله کړي او تاکلې جزیه او خراج د خپل مال څه حصه حکومت ته ادا کوي ، کومو خلقو چې ددې نه هم بغاوت اوکړو دهغوئ په مقابله کښې دجهاد او جنګ حکم اوشو. دهغې حاصل دادې چې دهغوئ جان او مال اود عزت ورنه دې ، دهغوئ مالونه د الله ﷻ د حکومت په حق کښې ضبط شو او دجهاد او جنګ په ذریعه کوم مال چې د هغوئ نه حاصل شو هغه دچا انسان ذاتي ملکیت پاتې نشو بلکه نیغ په نیغه د الله ﷻ ملکیت ته واپس شو او د فئ په لفظ کښې دې مفهوم ته اشاره هم ده چې ددې اصلي معنی واپس کیدل دی ، دې مال ته فئ ځکه اووئیلې شو چې اصل مالک حقیقي الله ﷻ ته واپس شو ، اوس په دې کښې د څه ملکیت هیڅ دخل نشته ، دې نه پس کومو حقدارانو ته چې ددې څه برخه ورکړې شي دا به نیغ په نیغه د الله ﷻ د طرفه وي، ځکه به هغه داسې حلال وي لکه اوبه او پخپله راتوکیدونکې وابنهٔ کوم چې نیغه په نیغه د الله ﷻ ورکړه ده او انسان دپاره حلال او پاکیزه دي.

خلاصه داده چې دلته د الله ﷻ د نوم مبارک ذکر کولو نه اشاره دې اړخ ته ده چې دا ټول مال په اصل کښې د الله ﷻ دې چې دهغه د اړخه حقدارانو ته ورکولې شي ، دا د چا صدقه اوخیرات نه دې. اوس حقداران او د خرڅ کولو ځایونه صرف پنځه پاتې شو. ① رسول ، ② ذوی القربی ③ یتیم ④ مسکین ⑤ مسافر . هم دا پنځه دغنیمت د مال د خرچ کولو ځایونه هم دی ، چې بیان ئې په سورة انفال کښې شو بدې ، او هم دا د فئ د خرڅ کولو ځایونه هم دی ، او ددې دوارو حکم دادې چې دا ټول مالونه په حقیقت کښې د نبی کریم ﷺ اود نبی کریم ﷺ نه پس د نبی کریم ﷺ د خلفاء راشدینو په مکمل اختیار کښې دی.

نبی کریم ﷺ که غواړي نو دغه ټول مالونه دعامو مسلمانانو دفائدې دپاره بندولې شي چې په بیت المال کښې ئې جمع کړي. او هیچا ته ترې نه څه ورنکړي او که غواړي نو تقسیم دې کړي. البته هم په دې پنځو قسمونو باندې ئې ویشل پکار دی ، [ قرطبی ] [1].

د خلفاء راشدینو او نورو صحابه کرامو ﷺ دعمل کولو نه ثابت شو چې دنبی کریم ﷺ په زمانه کښې خود فئ مال د نبی کریم ﷺ په اختیار کښې وو ، د نبی کریم ﷺ درائې په جوړ لګولې شو. نبی کریم ﷺ نه پس د نبی کریم ﷺ د خلفاء راشدینو په اختیار کښې دی او د هغوئ پهرائې به ویشلې شي.

بیا د نبی کریم ﷺ دپاره تاکلې برخه د نبی کریم ﷺ په وفات کیدو باندې ختمه شوه ، خپلوانو ته ئې ددې مال د ورکولو دوه وجې وې ، یوه دا چې هغوئ به د نبی کریم ﷺ امداد ددین په کارونو کښې کولو پدې لحاظ به ئې غنیان خپلوانو ته هم ددې برخه ورکولې شوه.

دویم دا چې د نبی کریم ﷺ په خپلوانو باندې د صدقې مال حرام کړې شوې دې ، نو ددوئ فقیرانو او مسکینانو ته د صدقه په بدله کښې د مال فئ نه به څه برخه ورکولې شوه . د نبی کریم ﷺ دوفات نه پس د امداد سلسله ختمه شوه نو دا وجه باقي پاتې نه شوه ځکه د

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ ج:۱۸ص:۱۵]

نبی کریم ﷺ د غنیانو خپلوانو برخه هم ختمه شوه. البته د غریبانانو خپلوانو برخه ئې دغریبئ اومحتاجئ په وجه دهغوئ برخه په دغې مال کښې باقی پاتې شوه ، او هغه بهٔ په دې مال کښې د نورو فقیرانو او مسکینانو په مقابله کښې وړاندې لرلې شی ، [ هدایه ][1] ددې پوره تفصیل په سورة انفال کښې راغلې دې.

﴿كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنكُمْ﴾ دَوْلَةً هغې مال ته وائی چې دپاره استعمالیږی چې کوم په لین دین کښې د یو دلاس نه بل ته ورځی [ قرطبی ][2] د آیت معنی داده چې د فئ د مال حقداران ځکه مقرر کړې شو چې دغه مال هم ستاسو د مالدارو ترمینځه گردش کوونکې دولت جوړ نشی. په دې کښې اشاره هغه رسم ماتولو ته ده چې په کښې به په داسې تولو مالونو باندې سرداران پخپله قابض او مالکان کیدل به چې د غریبانانو او مسکینانو دحق به په دې کښې څه برخه نه پاتې کیده.

**د دولت په خزانه څولو باندې د اسلامی قوانینو سخت څدار:** الله رب العالمین دې ، د الله تعالی د مخلوق په حیث په انسانی ضروریاتو کښې دتولو انسانانو یو شان حق دې چې په کښې د کافراو مؤمن فرق هم نشته ، دخاندانی او طبقاتو ، امیر او غریب فرق به په کښې ولې وی ، الله ﷻ په دنیا کښې ددولت د ویشلو لویه برخه چې دانسان په فطری او اصلی ضروریاتو باندې مشتمله ده، ددې تقسیم پخپله د خپل قدرت په لاس کښې داسې لرلې دې چې ترې هره طبقه، علاقه او هر کمزورې او قوی یو شان فائده اوچته کړې شی نو دا څیزونه الله ﷻ پخپل حکمت بالغه سره د عامې انسانی قبضې نه بهر لرلې دې ، هیڅوک په دې باندې ذاتی قبضه نشی کولې ، هوا ، فضا ، نمر ، سپوږمئ ، د ستورو رڼرا ، په فضا کښې پیدا کیدونکې وریځې ، دهغې بارانونه ، دا داسې څیزونه دی چې ددې نه بغیر انسان لږ ساعت هم ژوندی نشی پاتې کیدې. دا تول قدرت خداوندی داسې وقف شوی څیزونه جوړ کړل چې څوک لوئې نه لوئې حکومت او طاقت هم په دې قبضه نشی کولې دا څیزونه د مخلوق ته هر ځائې کښې یو شان ملاویږی.

دضرورت د څیزونو دریم قسط د زمکې نه راوتونکې اوبه او دخوراک څیزونه دی ، اگر چې دا خو دومره عام نه دی مگر په اسلامی قانون کښې غرونو ، غیرآباد ځنگلونو اوقدرتی چینو لره ئې عام وقف څیزونه پریخودل او د یو خاص قانون په جوړ خاص خاص انسانانو ته د زمکې برخو باندې د ملکیت جائز حق هم ورکولې شی او ناجائز قبضه کوونکی هم پرې ختیه وراچولې شی خو په قدرتی ډول څوک لوئې مالدار هم غریبو کروندگرو او مزدورانو لره د ځان سره ملگرې کولونه بغیر فائده نشی حاصلولې، نو دیو قسم قبضې باوجود هغه په دې کښې د نورو کمزورو غریبانانو په برخه ورکولو باندې مجبور دی.

دریم قسط سره سپین زر روپئ پیسې دی چې په اصل او فطری ضروریاتو کښې داخل نه دی ، خو نبی کریم ﷺ دې لره د تولو ضروریاتو د حاصلولو ذریعه جوړه کړې ده. او دَ د کانونو نه د راویستونه پس د یو خاص قانون لاندې د رایستونکو ملکیت جوړیږی. او دهغې نه ئې دهغوئ ملکیت په مختلفو طریقو سره نورو ته منتقل کیږی. که ددې گردش په تولو انسانانو

---

[1] ) الهداية كتاب السير، فصل في باب الغنائم، فصل في كيفية القسمة [ج:۲ ص:۵۷۷ و ۵۸۸]

[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۸ ص:۱٦]

کښې خاطرخواه جاري وي نو هيڅ انسان وږې ، برېنډ نشي پاتې کېدې . مګر کېږې داسې چې د مال نه هم پخپله فائده پوره کوي نورو لره ترې فائده اخستو ته نه پرېږدي. کنجوسئ او لالچ د دولت خزانه کولو او د سرمايه پرستئ زړې او نوې ډيرې طريقې ايجاد کړې چې ددې په وجه عام غريبانان او مسکينان ترې بې نصيبه کړې شو او ددې په عکس العمل کښې کمونزم او سوشلزم غوندې د عقل نه لرې طريقې راؤوتلې . اسلامي قانون خود شخصي ملکيت دومره احترام اوکړو چې د يو کس مال ئې دهغه دځان په شان اوخان ئې د بيت الله دحرمت پشان اوګرځولو . په دۀ باندې ئې د چا ناجائز تصرف ئې په سختئ سره منع کړو. بل اړخ ته کوم لاس چې هغې ته په ناجائزه وراوږدشو هغه پرېکړې شو ، دريم اړخ ته داسې ټولې دروازې ئې بندې کړې چې په قدرتي وسيلو سره حاصليدونکو څيزونو باندې څه خاص بنده يا ډله قبضه اوکړي او عام خلق ترې محرومه کړي .

دکار کسب او ګټې وټې په رواجي طريقو کښې سود ، خمار ، جواري داسې څيزونه دي چې ددې په ذريعه ذلت راغونډ شي او د څوکسانو تر مينځه اونخلي چې بس هم د هغوئ دلاس نه بهر نه اوځي . دا ټول ئې سخت حرام اوګرځول ، په ټولو معاملو ، تجارت او کرايه دارئي وغيره کښې ئې ددې جړې پرېکړې . او په جائز طريقو سره جمع کيدونکي دولت کښې ئې هم د غريبانانو ، فقيرانو ، حقوق ، زکوة ، عشر ، صدقة الفطر کفارې وغيره دمقررو فرائضو په صورت کښې او ددې نه زيات په رضا کارانه صورت کښې قائم کړې او ددې ټولو خرڅ کولو نه پس بياهم چا سره د مرګ نه پس څۀ پاتې وي د خاص حکيمانه اصولو مطابق ئې هغه تقسيم کړو، نو ددې حقدار ئې دمړي هغه خپلوان اوګرځول کوم چې زيات نزدې وي بيا وريسې دويم ، دريم نمبر کښې ورته نزدې وي ، که ددې ويش ئې په عامو فقيرانو مسکينانو مقرر کړې وي ، نو مړکيدونکي به دخپل مرګ نه وړاندې دا خاتې بې ځايه خرڅ کړې وې ، او دغسې به خپل طبعي خواهش پوره کړې وو چې دا ورته معلوم وي چې زما د مرګ نه پس زما مال زما خپلوانو ته رسي نودغه خواهش بۀ ئې بيا پاتې کيږي .

دا طريقه خود کار کسب اوګټې وټې په عامو رواجي طريقو کښې د دولت راغونډولو نه ځان ساتلو دپاره اختيار کړې شوۀ ، د دولت د حاصليدو دويمه طريقه جنګ او جهاد دې ، ددې نه حاصليدونکو مالونو کښې ئې هغه شرعي تقسيم جاري کړو چې ذکر ئې څه په سورة انفال کښې تير شوې دې . او څه په دې سورت کښې بيان شوې دې . هغه خلق څومره بې بصيرته دي چې د اسلام دا منصفانه ، عادلانه او حکيمانه نظام پرېخودلو سره نوي نوي آزميښتونه اختياروي او ددنيا امن تباه کوي .

﴿وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ دا آيت اګر چې د مال فئ دويش په سلسله کښې راغلې دې . او ددې سلسلې مناسب ددې مفهوم دادې چې په مال فئ کښې اګر که نبي کريم ﷺ د حقدارانو طبقې بيان کړې دي خود اخيره د نبي کريم ﷺ په صوابديد پريخودې شوې ده چې په دوئ کښې هر يو ته څومره څومره ورکوي ،ځکه پدې آيت مبارک کښې مسلمانانو ته دا هدايت ورکړې شوې دې چې چا ته څومره نبي کريم ﷺ ورکړي هغه دې پرې راضي شي او هغه دې واخلي او چاله چې ورنه کړي نو هغه دې فکر نه کوي نو دائې په وَاتَّقُوا اللّٰه سره مؤکد کړه ، که ده په څه تګئ ټورئ سره زيات هم حاصل کړو نو الله ﷻ ته د

تولو خبردې هغه به ورته ددې سزا ورکوی.

**دقرآن پاک د حکم پشان د رسول الله ﷺ په حکم باندې هم عمل کول واجب دی** :: ليکن د آيت الفاظ عام دی صرف مالونو سره مخصوص نه دی بلکه احکام هم په دې کښې داخل دی. څکه په عام انداز کښې د آيت مفهوم دادې چې کوم يو حکم مال يا بل څيز هغوئ چاته ورکړی نو دهغې اخستل پکار دی اودهغې مطابق عمل دپاره تيارېدل پکار دی او د کوم څيز نه چې منع کړی دهغې نه منع کيدل پکار دی.

ډيرو صحابه کرامو ﷺ دا عام مفهوم اختيار کړو او درسول الله ﷺ هر حکم ئې ددې آيت په بنا هم د قرآن پاک حکم گرځولې دې چې عمل کول پرې واجب دی. امام قرطبي رحمه الله فرمائی چې دې آيت مبارک کښې دَ آتیٰ په مقابله کښې د نَهیٰ لفظ راغلې دې. دې نه معلومیږی چې دلته آتیٰ د امر معنی کوی چې کوم د نَهیٰ صحيح مقابل دی[1].

او قرآن پاک دنهی په مقابل کښې اَمَر لفظ راوړلو په ځائې آتیٰ لفظ راوړل شايد دامطلب لری چې د کوم مضمون په روانئ کښې دا آيت مبارک راغلې دې چې د فئ د مال ويشل دی هغې لره هم د آيت مضمون شامل دې. عبدالله بن مسعود ﷺ يو سړې داسې اوليدو چې د احرام په حالت کښې ئې گنډلې جامې اغوستې وی نو حکم ئې ورکړو چې دا جامې لرې کړه. دغه کس اووئيل چې په دليل کښې راته د قرآن کريم څه آيت مبارک پيش کولې شی چې گنډلې جامې اغوستل په کښې منع کړې شوی وی ؟ ابن مسعود ﷺ اوفرمائيل چې او زه درته داسې آيت مبارک خودلې شم چې هم دا آيت مبارک ﴿ما اٰتاکم الخ﴾ ئې اولوستو.

امام شافعي رحمه الله يو ځل خلقو ته اووئيل چې ستاسو دهر سوال جواب قران کريم نه درکولې شم. يو سړی عرض اوکړو چې يو محرم مچئ مړه کړی نو دهغې څۀ حکم دې ؟ امام شافعي رحمه الله هم دا آيت مبارک ﴿ ما اٰتاکم الخ ﴾ تلاوت کړو ، او د حديث پاک نه ئې ددې حکم بيان کړو [ قرطبي ][2].

﴿لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ﴾ پدې څو آيتونو کښې دَآخر د رکوع پورې د مهاجرينو او انصارو فقيرانو بيان دې. اودغسې ورپسې راتلونکو امتيانو بيان دې. د ترکيب نحوی په اعتبار سره ﴿لِلْفُقَرَآءِ﴾ د ﴿وَلِذِي الْقُرْبٰى﴾ بدل اوگرځولې شو چې په رومبی آيت مبارک کښې ذکر شوې دې [ مظهری][3].

او دآيت مطلب دادې چې رومبي آيت چې عامو يتيمانو ، مسکينانو او مسافرانو لره د هغوئ د فقيرئ او محتاجئ په بنا باندې د فئ دمال په حقدارانو کښې شمير کړې شوې دی په دې آيتونو کښې ددې زياته تشريح داسې کړې شوې ده چې اگر که ددې مال حقداران ټول فقيران او مسکينان دی ليکن بيا په هغوئ کښې دا حضرات د نورو ټولو خلقو وړاندې دی دچا چې دينی خدمتونه ذاتی صفتونه او دينی کمالونه مشهور او معلوم دی.

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۸ص:۱۷]
[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۸ص:۱۷]
[3] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۳۹]

**د صدقې په مالونو کښې نيکان او ديني خدمت کوونکي حاجت مند دې وړاندې شي** دې نه معلومه شوه چې د صدقې مالونه د فقيرانو مسلمانانو د حاجت پوره کولو دپاره دی خو په دې کښې دې هم نيکان، صالحان، ديندارن، خصوصا ديني خدمت کوونکي طالبان، عالمان، دې د نورو نه وړاندې اولرلې شي. هم دغه وجه ده چې په اسلامي حکومتونو کښې به دخلقو ته د مال فئ نه ورکولو رواج وو، چا به چې دتعليم تبليغ کار کولو اودخلقو د اصلاح په کارونو کښې مشغول عالمان، مفتيان او قاضيان وو. ولې چې په دې آيتونو کښې هم اول د صحابه کرامو ﷺ دوه درجې قائمې کړې شوې. يو مهاجر چا چې دټول نه اول اسلام راوړو او نبي کريم ﷺ دپاره ئې لوئې قربانئ پيش کړې اسلام دپاره ئې لوئې مصيبتونه تير کړل. آخر، مال او جائيداد، وطن او ټولو خپلوانو وغيره ته ئې رخصت ورکړو او مدينې منورې ته ئې هجرت اوکړو ورپسې د مدينې منورې انصاردی چا چې د نبي کريم ﷺ او ورسره راتلونکو مهاجرينو لره راوبلل او ټوله دنيا ئې خپله مخالفه جوړه کړه. او ددغې حضراتو ميلمستيا ئې داسې اوکړه چې مثال ئې په دنيا کښې نه ملاويږي. ددې دواړو ډلو نه پس درجه ئې دهغه مسلمانانو اوکړخوله چې د صحابه کرامو ﷺ نه پس په اسلام کښې داخل شوی وو. او دهغوئ په نقش قدم روان وو چې په کښې ترقيامته راتلونکي مسلمانان ټول شريک دی، ورپسې ددې دواړو طبقو څه فضيلتونه او ديني خدمتونه بيان شوی دی.

**د مهاجرينو فضيلتونه** :: ﴿الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا وَيَنصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ دې کښې د مهاجرينو ﷺ رومبې صفت ئې دا بيان کړو چې هغوئ د خپل وطن او مال وجائيداد نه اوويستلې شو. يعنی د مکې کافرانو صرف په دې جرم کښې چې داخلق مسلمانان او د نبي کريم ﷺ مرستيال او مددګار شوی وو، په دوئ باندې قسماقسم ظلمونه اوکړل تردې چې خپل وطن مال وجائيداد ئې پريخودل او په هجرت باندې مجبور شو ځينې خلقو به د لوږې نه په مجبوره کيدلو په خيټو کانړی تړل او ځينې خلقو به د يخنئ نه ځان ساتلو دپاره په زمکه کښې کنده کوله [مظهری، قرطبی][1].

**يو مهمه مسئله د مسلمانانو په مالونو باندې د کافرانو د قبضې کولو حکم** :: دې ايت مبارک کښې مهاجرينو حضراتو ته فقراء فرمائيلی شوی دی او فقير هغه چاته وئيلې شي چې په ملک کښې ئې هيڅ نه وی. يا کم نا کم د نصاب په اندازه څۀ ځيزونه ورسره نه وی. حالانکه اکثر مهاجرين ﷺ په مکه مکرمه کښې د مالونو او جائيداد خاوندان وو او که دغه مالونه د هجرت نه پس هم د دوئ په قبضه کښې وې نو فقيران ورته وئيل صحيح نه وو، هرکله چې قرآن پاک ورته فقيران اووئيل نو دې ته اشاره اوکړه چې د هجرت نه پس د هغوئ جائيداد او مال چې په مکه مکرمه کښې ترې پاتې شوې وو او کافرانو پرې قبضه اوکړه نو هغه د دوئ د ملک نه اووتل.

هم دغه وجه ده چې امام اعظم ابوحنيفه ﷬ او امام مالک ﷬ اوفرمائيل چې که مسلمانان چرته په هجرت کولو سره لاړشي او دهغوئ په مال او جائيداد باندې کافران قبضه اوکړي يا الله ﷻ دې نه کړي چې که کافران په دارلاسلام باندې غالب شي او د مسلمانانو مالونه او

[1] القرطبي [ ج:۱۸ص:۱۹، ۲۰] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۴۲]

جائیدادو نه قبضه کړی نو دا هم د هغوئ ملک ګرځي . د هغوئ یعني کافرانو تصرفات اخستل خرخول په دغې مالونو کښې جاري کیږی ، د حدیثو په روایتونو کښې هم ددې تائید کیږی ، په تفسیر مظهری کښې دلته دغسې ټول روایتونه نقل کړې شوی دی[1].

دویم صفت د مهاجرینو په دې آیت کښې ئې دا ذکر کړې دې چې : ﴿يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا﴾ مطلب دا چې په اسلام راوړلو ، هجرت کولو ، مال ، وطن وغیره پریخودو کښې د دوئ څه دنیوی غرض نه وو. بلکه خالص د الله ﷻ فضل او رضا ئې لټوله چې دې نه د اخلاص کمال معلوم شو. لفظ د فضل عموما دنیوی نعمت دپاره او رضوان د آخرت د نعمت دپاره وئیلې شی ، څکه مطلب دا شو چې دې حضراتو ﷺ خپل ټول سامانونه دژوند مکان ، جائیدادوغیره خو پریخودو او دنیوی ضرورتونه هم او د آخرت نعمتونه ئې هم صرف د اسلام په سیورې کښې لټول او ددنیا د ژوند ضروریات هم دالله ﷻ او درسول ﷺ د رضا لاندې حاصلول مقصود وو.

د مهاجرینو حضراتو دریم صفت ئې دا بیان کړو چې :: ﴿وَيَنصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ یعنی دا ټول کارونه هغوئ ﷺ څکه اختیار کړل چې د الله ﷻ او دهغه درسول ﷺ مدد اوکړی د الله مدد نه مراد دَ الله ﷻ ددین مددکول دی چې په دغې باره کښې هغوئ ﷺ قربانئ پیش کړې .

څلورم صفت د هغوئ ﷺ :: ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ دې ، یعنی دا خلق د قول او عمل رېښتونی دی ، داسلام کلمې په وئیلو سره چې کوم لوظ ئې الله ﷻ او رسول ﷺ سره کړې وو ، هغه ئې مکمل سر ته اورسولو. دې آیت مبارک کښې ئې دا اعلان اوکړو چې ټول مهاجرین صحابه کرام ﷺ صادقان دی ، څوک چې په دوئ کښې چالره دروغژن اوګرځوی هغه مسلمان نشی کیدې ، څکه چې هغه ددې آیت منکر دې ، معاذالله. رافضیان چې هغوئ ﷺ ته منافقان وائی دادې آیت لره په ډاګه دروغژن بلل دی. ددغې مهاجرینو صحابه کرامو ﷺ مقام د الله ﷻ د رسول ﷺ په نزد دا وو چې پخپلو دعاګانو کښې به هغوئ ﷺ ددغې مهاجرینو فقیرانو په وسیله دعاغوښتله . [ بغوی ، مظهری ][2].

**د انصارو فضیلتونه** :: ﴿وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ د تَبَوَّءُوا معنی کور جوړول دی ، او دار نه مطلب ایمان دې ، یا دار هجرت دې. څکه بدا مام مالک ﷫ په یو حیثیت سره مدینه منوره د نورو ښارونو نه زیات غوره بللو. فرمائیل به ئې چې ددنیا هر ښاراو ملک ته تر دې چې مکه مکرمه هم چرته چې اسلام رسیدلې دې هغه ټول دجهادپه ذریعه فتح شوی دی خو مدینه منوره یواځې ایمان سره فتح شوې ده ، [ قرطبی ][3].

دې آیت مبارک کښې د تَبَوَّءُوا لاندې دار سره د ایمان هم ذکر فرمائیلې شوی دې . حالانکه د تیکاؤنړې نیولو تعلق د یومقام او ځائې سره وی ، ایمان داسې څه څیز نه دې چې ګنی هلته بهٔ څه تیکاؤنړه جوړولې شی . څکه ځینې حضراتو اوفرمائیل چې دلته یو لفظ محذوف دې ،

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۴۰ و ۲۴۱]

[2] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۴۲]و تفسير البغوي [ج: ۸ ص۷۵] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۸۵۵]

[3] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۳]

یعنی اخلصوا یا تمکنوا ، مطلب به دا وی چې داهغه حضرات دي چې چا په دار هجرت کښې تیکاؤنړه جوړه کړه . او په ایمان کښې مخلص او مضبوط شو ، او دا هم کیدیشي چې دلته د استعارې په ډول باندې دایمان یو محفوظ مکان سره تشبیه ورکړې شي ، او په دې کښې ئې پناه گزین کیدل بیان کړی دی او لفظ د مِنْ قَبْلِهِمْ یعنی د مهاجرینو نه مخکښې مطلب دادې چې ددغې انصار مدینه یو فضیلت دادې چې کوم ښار د الله ﷻ په نزد د ار هجرت او دار ایمان جوړیدونکې وو ، په دې کښې ددغې خلقو ﷺ استوګنه اوپاتې کیدل د مهاجرینونه مخکښې شوی وو او د مهاجرینو دلته د منتقل کیدو نه وړاندې دې حضراتو ﷺ په ایمان قبلولو سره پاخه پاتې شوی وو.

دویم صفت د انصارو حضراتو ﷺ په دې آیت مبارک کښې دا بیان کړې شو هدې چې ﴿يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ﴾ دا خلق داسې خلقو سره مینه لرې چې په هجرت کولو سره د دوئ ښار ته راغلی دی چې د عامی دنیا انسانانو د مزاج نه خلاف دی داسې بې کوره او بې وطنه خلق خپل کور کلی او علاقه کښې ډیره کول څوک خوښوی ؟ هر چرته ملکی او غیر ملکی سوالونه راپورته کولې شی مگر دې انصارو حضراتو صرف دا اونکړل چې هغوئ لره ئې په خپله علاقه کښې ځائې ورکړو . بلکه خاص په خپلو کورونو کښې ئی دیره کړل په خپل مالونو کښې ئې د برخې خاوندان کړل او داشان په عزت او احترام سره ئې د هغوئ استقبال اوکړو هغه داسې چې یو یو مهاجر ته خپل ځان سره د ځائې ورکولو دپاره ګڼړو انصاری حضراتو خواست اوکړو ددې فیصله په قرعه اندازئې باندې کول راغلل نو په قرعه باندې یو یو مهاجریو یو انصاری ته اوسپارلې شو . [ مظهری ][1].

دریم صفت ئې د انصارو حضراتو ﷺ د ااوفرمائیلو چې : ﴿وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا﴾ ددې جملې تعلق هغې واقعې سره دې چې د بنی نضیرود جلاوطن کیدو اودهغوئ په باغونو او مکانونو باندې د مسلمانانو د قبضې کولو په وخت راپیښه شوه .

**د بنی نضیر د مالونو د ویش واقعه** :: صورت دا وو چې کله په دې آیت کښې د فئ د مالونو ویش د مهاجرو او انصارو ترمینځه خالص د رسول الله ﷺ خوښې ته اوسپارلې شو ، دا هغه وخت وو چې مهاجرین د انصارو په ځایونو او مکانونو کښې اوسیدل ولې چې هغوئ پخپله دهیڅ مکان او جائیداد خاوندان نه وو هر څه ترې په مکه مکرمه کښې پاتې وو. ګذاره بهٔ ئې په خوارئې مزدروئ کوله ، کله چې د بنی نضیرو او بنی قینقاع مالونه د فئ په ډول مسلمانانو ته حاصل شو نو نبی کریم ﷺ د مدینې د انصارو سردارثابت بن قیس بن شماس راؤبللو او وې فرمائیل چې خپل قوم انصار زما خواته راؤبلې هغوئ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ د خپلې قبیلې خزرج او که ټول انصار هغوئ اوفرمائیل چې ټول رابللِ دی . دغه حضرات ټول راجمع شو نو نبی کریم ﷺ یوخطبه اوفرمائیله چې په دې کښې ئی د حمد و صلوة نه پس ئې د مدینې منورې د انصارو تعریف په دې خبره اوکړو چې دوئ مهاجرینو رونړو سره په لاس امداد کولو کښې د ډیر همت نه کار اخستې دې ، بیا ئې اوفرمائیل چې الله ﷻ د بنی نضیرو مالونه تاسوته درکړو که تاسو غواړئ نو زه بهٔ دا مالونه په مهاجرینو انصارو کښې تقسیم

[1]) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۴۳]

کرم، خو مهاجرین به دَ مخکښې دستور مطابق ستاسو په کورنوکښې اوسیږی اوکه تاسو غواړئ نوداسې اوکړئ چه دا بې کوره بې ماله خلق دی دا مالونه به صرف هم په دوئ اوویشو او دا خلق به ستاسو کورونه پریږدی خان له به خپل کورونه جوړ کړی.

ددې په آورېدو د انصارو د مدینې دوه لوئې سرداران سعد بن عباده ﷺ او سعد بن معاذ ﷺ اودریدو او عرض ئې اوکړو چې یارسول الله ﷺ زمونږ رائې دا ده چې دا ټول مالونه هم صرف په مهاجرو رونړو باندې اوویشلې شی او بیا دې هم زمونږ په مکانونو کښې په مخه اوسیږئ. د دوئ د خبرو په آوریدو ټول موجوده انصارو عرض اوکړو چې مونږ په دې فیصلې باندې راضی او خوشحاله یو دغه وخت نبی کریم ﷺ ټولو انصارو او د انصارو خامنو ته دعا اوکړه او مالونه ئې صرف په مهاجرینو اوویشل صرف دوه انصاری حضراتو ﷺ ته په دې کښې څه برخه څکه ورکړه چې هغوئ حاجت مند و ، یعنی سهل بن حنیف ﷺ او بل ابو دجانه ﷺ ، سعد بن معاذ ﷺ ته ئې توره ورکړه چې د ابن ابی الحقیق یوه خانګړې توره وه [ مظهری په حواله د سبیل الرشاد د محمد بن یوسف صالحی ] ([1]).

﴿وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا﴾ کښې د حَاجَةً نه مراد دهر ضرورت څیز دی. ﴿مِّمَّا أُوتُوا﴾ کښې ضمیر مهاجرینو ته راجع دې ، د آیت مبارک معنی داده چې په دې تقسیم کښې څه چې مهاجرینو ته په ویش کښې ورکړې شو نو د مدینې انصارو په خوشحالئ سره داسې قبول کړل چې ګویا کښې هغوئ ته ددې څیزونو هیڅ ضرورت نشته دې. دې لره د بدګنړلو یا شکایت کولو خو څه سوال نه وو ، بل طرفته کله چې بحرین فتح شو نو نبی کریم ﷺ ټول مال یواځې په انصارو باندې ویشل او غوښتل خو انصارو عرض اوکړو چې مونږ یواځې دا نه قبلرؤ څو پورې چې زمونږ مهاجرینو رونړو ته نه وی ورکړې شوې. [ بخاری روایت کړی دی دانس بن مالک ﷺ د ا بن کثیر] ([2]).

خلورم صفت د مدینې د انصارو په دې آیت مبارک کښې ذکر کړې شوې دې: ﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ د خصاصة معنی لوږه اونیستئ ده ا د ایثار معنی داده چې د نورو خواهش اوحاجت په خپل خواهش حاجت باندې وړاندې کړې شی. د آیت معنی داده چې انصارو به نورو مهاجرینو ﷺ ته په خپلو ځانونو ترجیح ورکوله. یعنی د خپلو ضرورتونو او حاجتونو پوره کولو نه به ئې وړاندې د هغوئ حاجت پوره کولو اګر چې دوی پخپله حاجت مند او لوږې نیستئ وهلی وی.

**د صحابه کرامو ﷺ خصوصا د انصارو ﷺ د ایثار څو واقعات**: اګر چې د آیتونو دتفسیر دپاره د واقعاتو د بیانولو ضرورت نشته خو دا واقعات هرکله چې د ډیر عبرت او نصیحت سبقونه دی په ژوند کښې بشکلې بدلون راولی. څکه مفسرینو خصوصا قرطبی ﷺ په دې موقعه باندې دا تفصیل سره لیکلی دی چې د هغې نه څو واقعات نقل کولې شی([3]).

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۴۴]
[2]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۸ ص:۶۹] و صحیح البخاري کتاب المناقب ،باب قول النبی ﷺ للأنصار اصبروا حتی تلقوني علی الحوض [ج:۱ص:۵۳۵ ]
[3]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۴]

ترمذي شريف كښې د ابوهريره ؓ نه روايت دې چې د يو انصاري په كور كښې د شپې څوک ميلمه راغلو ، هغه سره د خوراک دومره څه وو چې يواځې د خپل ځان او بال بچ كار ئې پرې كيدې شو. هغه ؓ خپلې بي بي ته اوفرمائيل چې ماشومان په څه چل ول اوده كړه او ډيوه مړه كړه ، بيا د ميلمه په وړاندې خوراک كيږده. زما سره كينه چې ميلمه پوهه شي چې مونږ هم ورسره خوراک كوؤ خو مونږ به خوراک نه كوؤ. چې ميلمه ښه په ډاډه خوراک اوكړي نو په دې دا آيت مبارک نازل شو چې: ﴿ وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ ﴾ [ترمذي روايت كړو او ورته ئې حسن صحيح حديث وئيلې دې ]([1]).

او هم په ترمذي شريف كښې د ابوهريره ؓ نه روايت دې چې يو كس د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو چې زه د ولږې نه تنګ يم. نبي كريم ﷺ خپلې بي بي ؓ ته خبر اوليږلو هغې ؓ ورته اوفرمائيل چې مونږ سره خو دا وخت سوا د ابو نه بل څه نشته. بلې ته ئې پيغام اوليږلو د هغه ځائې نه هم دغسې جواب راغلو وريسې دغسې جوابونه وار په وار د ټولو امهات المومنين نه راغلل. بيا نبي كريم ﷺ په مجلس كښې موجود خلقوته اوفرمائيل چې نن شپه به ددې كس ميلمستيا څوک كوي ؟ يو انصاري ؓ عرض اوكړو چې زه به ئې او كړم ؟ داسې ئې اووئيل او هغه ميلمه ئې ځان سره بوتلو ، خپلې بي بي ته ئې اووئيل چې كور كښې خوراک دپاره څه شته دې ؟ بي بي ورته اووئيل چې صرف دماشومانو خوراک شته ؟. دغه انصاري ورته د ماشومانو د اوده كولو دپاره اووئيل اودائې هم ورته اووئيل چې ميلمه دپاره خوراک راوړئې مونږ به هم ورسره كينو او ډيوه مړه كړه چې ميلمه په دې خيال ډاډه خوراک اوكړې شي چې ګني دوئ راسره خوري ، صبا وختي چې انصاري د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو نو نبي كريم ﷺ ورته اووئيل چې ستا بيګانئ معامله د ميلمه سره دالله ﷻ ډيره خوښه شوه([2]).

او مهدوي هم دغسې يو واقعه د انصاري بزرګ د ثابت بن قيس ؓ سره دشپې د خوراک كولو بيان كړې ده چې په مړه ډيوه په دغسې شان خوراک كړې وو([3]). دې ټولو واقعاتو سره روايت كښې داهم دي چې دا آيت مبارک ددغې واقعې باره كښې نازل شوې دې.

او قشيري ؒ د عبدالله بن عمر ؓ نه نقل كړي دي چې صحابه كرامو ؓ كښې يو بزرګ ته چا د چيلئ سر په ډالئ كښې پيش كړو ، دغې بزرګ خيال اوكړو چې زمونږ فلانې رور اوهغه بال بچ زمونږ نه زيات ضرورت مند دى ، دغه سر ئې هغوئ ته اوليږلو دغه شان هغوى دريم كورته او هغوى څلورم كورته اوليږلو تردې چه هغه سر اووم كورته ور اورسيدو او هغه هم په دغې خيال بيا په ناخبرئ كښې هم دغه رومبي خيرات كوؤنكي بزرګ ته وركړو. نو په دغې باره كښې دغه بيان شوي آيتونه نازل شو([4])، دغه واقعه ثعلبي ؒ د انس ؓ نه هم روايت كړې وه.

[1]) صحيح مسلم كتاب الأشربة، باب إكرام الضيف وفضل إيثاره [ج:۲ص:۱۸۳ و ۱۸٤] و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب تفسير سورة الحشر [ج:۲ ص:۱٦٦]

[2]) صحيح مسلم كتاب الأشربة، بابإكرام الضيف وفضل إيثاره [ج:۲ص: ۱۸٤]

[3]) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۵]

[4]) المستدرك للحاكم تفسير سورة الحشر رقم الحديث:[۳۷۹۹]

مؤطا امام مالک کښې د عائشه صدیقه ﵂ نه روایت دې چې یو مسکین د هغې ﵂ نه سوال اوکړو. د دوئ په کور کښې صرف یوه روټئ وه. او په دغه ورځ ئې روژه هم وه. دوئ خپلې خادمې ته اوفرمائیل چې دا روټئ ده له ورکړه. هغې عرض اوکړو چه ستاسو روژه هم ده که دا روټئ هغه ورکړو نو تاسو به د روژه ماتی د پاره څه کوئی؟ عائشه صدیقه ﵂ اوفرمائیل چې خیر دې دا ورکړه. دغه خادمه وائی چې کله مابښام شونو د داسې سړی د کور نه یوه سلامته وریته کړې چیلئ په ډالئ کښې راغله چې د هغه سړی د ډالئ لیږلو عادت نه وو. او د هغه چیلئ د پاسه لګیدلې شوې میده هم ورسره پخ کړې شوې وه، چې په عربو کښې به بهترینه خوراکه ګڼړلې شوه. عائشه صدیقه ﵂ خادمه راؤبلله او ورته ئې اوویل چې راشه اوخوره، د هغې روټئ نه زیاته غوره خوراکه ده.(۱)

او نسائی د عبدالله بن عمر ﵁ یوه واقعه نقل کړې ده چې هغوئ ﵁ بیمار وو، انګورو ته ئې زړه اوشو. ده د پاره د یو درهم انګورې واخستې شو. یو مسکین سوال کړئی دوئ ﵁ ته راغلو، دوئ ﵁ اوفرمائیل چې هم دغه د انګورو غونچه ده ته ورکړئی. د حاضرینونه یو سړی ورپسې په پټه ورغلو او دغه غنچه ئې د هغه مسکین نه په پیسو واخسته. او بیائې عبدالله بن عمر ﵁ ته پیش کړه. خو هم دغه سوالکړئی بیا راغلو او سوال ئې اوکړو. دوئ ﵁ ورته بیا هم هغه غنچه ورکړه. بیا بل څوک ورپسې په پټه لاړو او هغه غنچه ئې ترې په یو درهم واخسته او ابن عمر ﵁ ته پیش کړه. هغه سوالکړئی بیا راتلو خو خلقو منع کړو. دغه غنچه عبدالله بن عمر ﵁ اوخوړه. که هغوئ ته معلوم وې چې دا هم هغه غنچه ده نو هیڅکله به ئې هم نه وه خوړلې. خو خیال ئې دا وو چې دا ګنی د بازار نه راوړې شوې ده. نو په دې وجه ئې اوخوړه.(۲)

او ابن مبارک ﵀ په خپل سند سره روایت کړی دی چې یو ځل فاروق اعظم ﵁ د څلورو سوؤ دینارو نه یوه ډکه تهیلئ د غلام په لاس د ډالئ په طور ابی عبیده بن جراح ﵁ ته اولیږله چې خپل ضرورتونه پرې پوره کړی. غلام ته ئې دا هدایت اوکړو چې تر څه وخته پورې هغوئ ﵁ سره کور کښې ایسار شه او اندازه اوکړه چې هغوئ دغې دینارونو سره څه کوی؟ ابی عبیده ﵁ د دغې تهیلئ په وصولولو د عمر فاروق ﵁ شکریه ادا کړه. اودا دعا ئې اوکړه چې الله ﷻ دې ورته اجر ورکړی. او په هغه دې خپل رحمت اوکړی. او زر ئې خپله وینځه راؤبلله او ورته ئې اوویل چې دد دې نه به دومره فلانی ته ورکړی او دومره به فلانی ته ورکړې.
او داسې په ګڼړو کسانو ئې هغه اوویشل او خلاص شوې.

دغې غلام په واپسئ عمر فاروق ﵁ ته ټوله واقعه بیان کړه. عمر فاروق ﵁ د څلورو سوو دینارو یوه بله تهیلئ معاذ بن جبل ﵁ ته وراولیږله. او غلام ته ئې اوویل چې د هغه حالات معلومولو د پاره هلته ایسار شه. معاذ بن جبل ﵁ ته چې دغه ډالئ پیش کړې شوه نو عمر فاروق ﵁ ته ئې دعا اوکړه چې یاالله ﷻ هغه ته دې اجر ورکړه. او په هغه رحمت اوکړه. او بیا ئې ټې پخپله اوویشل. او د ډیر کورونو برخه ئې په دې کښې اوکړه. د معاذ بن جبل بی

---

(۱) موطا امام مالک کتاب الصدقة باب الترغیب فی الصدقة [ج۲ ص:۹۹۷]
(۲) تفسیر القرطبي[ ج:۱۸ص:۲۷] و المعجم الکبیر للطبراني رقم الحدیث:[۱۲۸۹۱] و مجمع الزوائد رقم الحدیث:[۱۵۸۶۵] باب ماجاء فی عبدالله بن عمر ﵁

بی دا پخپله کتل او په دغې موقعه ئې اووئیل چې مونږ هم قسم په الله ﷻ مسکینان یو . مونږ. ته هم په کښې څه برخه راکره . په هغې کښې صرف دوه دیناره پاتې وو. هغه ئې ورکړه . غلام په واپسئ کښې عمر فاروق رضی الله عنه ته دا ټوله واقعه بیان کړه . هغوئ رضی الله عنه اوفرمائیل چې دا ټول رونړه رونړه دی د ټولو مزاجونه یو شان دی[1] .

او حذیفه عدوی رضی الله عنه فرمائی چې زه په جنګ یرموک کښې د خپل تربور د جسد په لټون کښې اووتم چې شهیدانو کښې ئې اولټوم ، څه اوبه مې خان سره واخستې چې که ساه په کښې وی نو اوبه ورته بیا ورکړم . هغوئ رضی الله عنه ته چې کله اورسیدل نو څه ساه په کښې وه . ما ورته د اوبو ورکولو اراده اوکړه . هغه اشارې سره بل ته د ورکولو اشاره اوکړه . څکه چې هغه هم دتندې نه زبیرګی کول . کله چې هغه ته ورغلم او اوبه مې ورکولې نو هغه د دریم کس د زبیرګی آواز واوریدو . نو ماته ئې اووئیل چې دغې دریم کس ته ئې ورکړه . دغه شان اوم شهید ته اورسیدم . راوی وائی چې کله هغه اووم شهید ته اورسیدم نو هغه شهید شو. دغه شان وار په وار بۀ واپس راتلم چې خپل تربور ته راغلم نو هغه هم شهید شوې وو[2] .

دا څو واقعات د انصارو او مهاجرینو دی داکثرو باره کښې وئیلی شوی دی چې د ایثار آیت هم په دې واقعه کښې نازل شوی دې، مګر په دې کښې هیڅ تضاد او اختلاف نشته دې.څکه چې په څنګه واقعه کښې یوآیت نازل شوې دې که دهغې په شان یوه بله واقعه پیښه شی نودا وئیلی شی چه په دې کښې دا آیت نازل شوې. او حقیقت دادې چې دا ټول واقعات د آیت مبارک دنا زلیدو سبب یا مصداق دی.

**د یوې شبهې جواب :** د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ایثار کوم واقعات چې بیان کړې شو . په دې باندې د احادیثو د روایتونو ترمخه دا شبه کیدې شی چې نبی کریم ﷺ د خپل ټول مال خیرات کولو نه منع فرمائیلې ده[3] . لکه یوحدیث کښې دی چې یو سړی د هګئی په اندازه د سرو زرو د یوې ټوټې خیرات کولو اراده اوکړه او دهغوئ په خدمت کښې ئې پیش کړه هغو ﷺ بیاهغه دهغه دطرف نه ور اوویشته او وې فرمائیل چې په تاسو کښې څینې خلق خپل ټول مال خیرات کولو دپاره راوړئی خو بیا حاجتمند کیدو سره خیر غوښتو ته کینی[4] .

هم ددې روایتونو نه ددې شبهې جواب راوځی چې دخلقو حالات مختلف وی ، د هر حال حکم بیل دې ، ټول مال خیرات کول هغه دپاره منع کړې شوی دی چې دهغې د خیرات کولو نه پس په نیستئ ، لوږې باندې صبر نه شی کولې ، خپل خیرات کړی څیز باندې پښیمانه شی . بیا د خلقو نه خیرخیرات غوښتو ته کینی او هغه خلق چې د عزم او همت ئې دا حال وی د هغوئ د ثابت قدمئ او مستقل مزاجئ د احال وی چې ټول هر څه خیرات کولو نه پس ئې پریشانی نه وی . بلکه همت سره په هغې صبر کولې شی نو هغوئ دپاره ټول مال د الله ﷻ په لار کښې خیرات کول جائز دی ، څنګه چې صدیق اکبر رضی الله عنه په یو جهاد کښې ټول خپل مال په چنده

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۷] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۱٦٤٧٦] و مجمع الزوائد رقم الحديث :[٤٦٨٧] باب في الإنفاق.

[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۸] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۳۳۴۸]

[3] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۷]

[4] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۸]و سنن ابوداود، كتاب الزكوة، باب الرجل يخرج من ماله [ج:۱ص:۲۳۵ ]

کښې ورکړو. د دې مثالونه دغه واقعات دي کوم چې دلته ذکر شوي دي. داسې حضراتو خپل
اهل و عیال هم دصبر او مستقل مزاجۍ عادت کړی وو ، څکه په دې کښې د دوئ هم حق تلفی
نه وه که مال پخپله د دوی د بال بچ په قبضه کښې وې نو هغوئ به هم دغسې کول. [ قرطبی د
څو څیزونو په زیاتولو سره][1].

**د حضراتو مهاجرینو د طرف نه د انصارو د ایثار بدله:** د دنیا هیڅ یو اجتماعی کار په یو اړخیزې
رواداری او ایثار سره قائم نشي پاتې کیدې. تر څو چې د دواړو اړخونه داسې معامله نه وي،
څکه خو نبی کریم ﷺ څنګه چې مسلمانانو ته دا شوق ورکړې دې چې مسلمانان دې خپل
مینځ کښې په هدیئ او ډالئ ورکولو سره محبت زیاتوی[2]. دغسې هغه کسانو ته ئې هم د
بدلې ورکولو او احسان کولو تعلیم ورکړې دې چې ډالئ ورکړې شوې وی ، که مالی وس د چا
رسی نو په مال سره ګنی نو په دعا سره دې د هغوئ بدله پوره کوی[3] ، هسې بې پرواهئ سره
د چا د احسان بار په سر باندې اخستل د شرافت او اخلاقو خلاف خبره ده .

انصارو رضی الله عنهم مهاجرینو رضی الله عنهم سره د لوئې ایثارنه کار واخستو ، په خپلو مکانونو، دکانونو،
کاروبار زمکې او کرونده ګرئ کښې ئې هغوئ شریک کړل ، لیکن کله چې الله ﷻ دغې مهاجرینو
ته توفیق ورکړو نو هغوئ هم د انصارو حضراتو په بدله ورکولو باندې څه سرپه اونه کړه .

امام قرطبی رحمه الله د صحیحینو په حواله د انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت کړېدې چې کله
مهاجرین دمکې مکرمې نه مدینې منورې ته راغلل نو په لاس کښې ئې هیڅ نه وو او دمدینې
منورې انصار د زمکې اوجائیداد خاوندان وو. مهاجرین ئې پخپل نیم مال او جائیداد کښې
حصه دار جوړ کړل ، د خپلو باغونو نیمه میوه به ئې هر کال نبی کریم ﷺ ته ورکوله او انس
رضی الله عنه والدې ام سلیم رضی الله عنها د کهجورو یو څو خپلې ونې نبی کریم ﷺ ته ورکړې وې چې نبی
کریم ﷺ د اسامه بن زید رضی الله عنه والدې ام ایمن رضی الله عنها ته ورکړې وې[4].

امام زهری رحمه الله وائی چې ماته انس بن مالک رضی الله عنه خبر راکړو چې کله نبی کریم ﷺ د خیبر د
جهاد نه په کامیابئ سره فارغ شو او مدینې منورې ته راغلو نو تولو مهاجرینو رضی الله عنهم ته ئې دهغوئ
تول ورکړی څیزونه په حساب سره واپس کړل او نبی کریم ﷺ أم ایمن نه د کهجورې ونې واخستې
اوزما مورته ئې واپس کړې او دهغې په ځائې ئې ام ایمن ته د خپل باغ نه ونې ورکړې[5].

﴿وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ د انصارو رضی الله عنهم د ایثار او خپل تول هر څه د الله ﷻ په لار
کښې د قربانولو د بیان نه پس ئې عامه ضابطه ارشاد کړه چې څوک دخپل نفس د بخل نه
خلاص شو نو د الله ﷻ په نزد هم هغوئ خلاصې او کامیابی موندونکی دی. شح او بخل
تقریبا دواړه یوه معنی لری البته په شح لفظ کښې څه مبالغه شته دې. یعنی سخت بخل په

---

1) تفسیر القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۸]
2) موطا مالك كتاب حسن الخلق باب ماجاء في المهاجرة ، رقم الحديث [۳۳۶۸]
3) مسند احمد ،حديث الصديقة عائشة بنت الصديق رضي الله عنها رقم الحديث:[۲۴۵۹۳]
4) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۵] و صحيح مسلم كتاب الجهاد ، باب رد المهاجرين إلي الأنصار..... ألخ [ج:، ص:۹۶]
5) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۲۶] و صحيح مسلم كتاب الجهاد ، باب رد المهاجرين إلي الأنصار منائحهم من الشجر والثمر..... الخ [ج:۲ص:۹۶]

واجبو حقوقو کښې بخل او شح کول حرام دی که هغه د الله ﷻ حقونه وی لکه زکوة ، صدقة الفطر ، عشر او قربانی وغیره چې په دې کښې کوتاهی اوکړی . یا د انسانانو په حقونو کښې وی لکه د بال بچ نفقه یا د خپلو حاجت مندو والدینو او عزیزانو واجبه خرچه شوه چې کوم بخل ددې په ادا کولو کښې خند جوړیږی هغه قطعا حرام دی . او کوم چې په مستحبو کارونو اود غوره خرچ کولو ترمینځه خند جوړیږی نو هغه مکروه او بدیت لرونکی دی او په رسمی څیزونو کښې خندان راپیدا کول څه شرعی بخل نه دی .

بخل ، شح او نورو سره حسد کول داسې خراب خصلتونه دی چې په قرآن و حدیث کښې ئې ډیره بدی بیان شوې ده . او ددې نه ځان ساتونکو دپاره لوئې زیرې دی نو د انصارو ﷺ په بیان کړو صفتونو کښې داهم شامل دی چې دوئ د بخل اوحسد خراب او گنده خصلتونه نه لری .

**د شحم او حسد نه پاکيدل د جنتي كيدو نښه ده ::** ابن کثیر ﷫ په حواله د امام احمد ﷫ د انس ﷜ نه روایت کړې دې چې مونږ نبی کریم ﷺ سره ناست وو ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې اوس ستاسو په وړاندې یو سړې راتلونکې دې چې د جنتیانو نه دی . نو یو صاحب د انصارو نه راغلو چې د ږیرې نه ئې د تازه اودس څاڅکی څڅیدل او په گس لاس کښې ئې خپلې پڼړې راخستې وې . بله ورځ هم داسې واقعه راپیښه شوه او هم دغه کس هم په دغه حالت کښې راغلو ، په دریمه ورځ هم دغسې اوشو او هم دغه سړې راغلو ، کله چې نبی کریم ﷺ د مجلس نه پورته شو نو عبدالله بن عمرو بن العاص ﷜ دغه سړی پسې اولگیدو ادې دپاره چې دَ جنتی کیدو راز ئی معلوم کړی او ورته ئې اووئیل چې ما په څه جګړې کښې قسم خوړلې دې چې درې ورځو پورې به خپل کور ته نه ځم . که مناسب گڼړی نو دغه درې ورځې راته ځان سره د پاتې کیدو ځائې راکړه . هغه اومنله ، عبدالله بن عمرو ﷜ ورسره دغه درې شپې تیرې کړې . وې لیدل چې د شپې تهجد و له نه پاسی ، البته اودهٔ کیدو دپاره به چې په پوزی سملاستو نو دالله ﷻ څه ذکر به ئې کولو ، بیا به د صبا مونځ دپاره پاسیدو البته په دې درې واړو ورځو کښې مې د هغه د خلې نه د خیر دخبرې نه سوا بل څه واؤنه ریدل . کله چې درې شپې تیرې شوې او نزدې وه چې په زړه کښې مې دهغه دعمل سپکوالې راشی نو خپل راز مې ورته ښکاره کړو . ورته مې اوئیل چې په کور کښې مې هیڅ جګړه نه وه کړې خو تر درې ورځو پورې مې نبی کریم ﷺ نه په مخه واؤریدل چې تاسو سره داسې یو سړې راتلونکی دې چې جنتی دې چې درې واړه ورځې هم ته راغلې خکه مې ستاسو عمل کتل غوښتل چې په کوم عمل سره ته جنتی یې خو عجیبه خبره داده چې ستاسو څه ډیر عمل کول مې اونه لیدل . نو هغه څه څیز دې چې ته ئې دې درجې ته اورسولې ؟ هغه اووئیل چې تاڅه اولیدل دهغې نه سوا ما سره څه بل عمل نشته ، کله چې ترې په واپس کیدو شوم نو زه ئې اوبللم او راته ئې اووئیل چې زه په خپل زړه کښې دچا مسلمان د طرفنه کینه او خرابی نه پیدا کوی او چا سره حسد کول نه مومم کله چې الله ﷻ بل چاته زما نه څه ښه څیز ورکړې وی . عبدالله بن عمرو اووئیل چې بس هم دا هغه صفت دې چې کوم تاته دا لوړ مقام درکړې دې .

ابن کثیر رحمه الله دانقل کړل او وې وئيل چې دې لره نسائی هم په عمل اليوم والليلة کښې نقل کړې دې او ددې اسناد په شرط د شيخينو سره صحيح دی([1]).

**دمهاجرينو رضي الله عنهم او انصارو رضي الله عنهم نه پس د امت عام مسلمانان:** ﴿وَالَّذِيْنَ جَآءُوْمِنۢ بَعْدِهِمْ﴾ ددې آيات مبارک په مفهوم کښې تر قيامته پورې هغه ټول مسلمانان شامل دی چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او مهاجرينو رضي الله عنهم او انصارو رضي الله عنهم نه پس راغلی دی ، نودې آيت مبارک دغه ټول مسلمانان د فئ د مال حقداران ګرځولی دی ، هم دغه وجه ده چې عمر فاروق رضي الله عنه کله ددنيا لوئې ملکونه ، عراق ، شام او مصر وغيره فتح کول نو دهغوئ زمکې ئې په غانمينو کښې تقسيم نه کړې بلکه هغه ئې دراتلونکو نسلونو دپاره دعام وقف په ډول پرېخودلې ، چې کټه ئې بيت المال ته راځی او تر قيامته پورې راتلونکی مسلمانان دې نه فائده پورته کولې شی ، کله چې ځينې صحابه کرامو رضي الله عنهم د عمرفاروق رضي الله عنه نه د هغې زمکوباره کښې تپوس اوکړو چې فتح کړې شوې وې نو ددې آيت په حوالې ورکولو سره ئې اوفرمائيل چې که زما په وړاندې د آئنده راتلونکو نسلونو معامله نه وې نو ما به د فتح شوؤ ملکونو ټولې زمکې په غنيمت ورکړې شوو کښې تقسيم کړې وې څکه چې نبی کريم ﷺ د خيبر زمکې تقسيم کړې وې ، که دا ټولې زمکې په موجوده مسلمانانو تقسيم کړې شی نو د راتلونکو مسلمانانو دپاره به څه پاتې شی.[مالک رحمه الله روايت کړو ، قرطبی]([2]).

**دامت په حق باندې دکېدو پېژندل په دې شان کېږي چې په زړونو کښې ئې د صحابه کرامو رضي الله عنهم مينه او لوئيوالې وي:** په دې مقام کښې الله جل جلاله د ټول امت محمديه ﷺ درې طبقې جوړې کړې ① مهاجرين ② انصار ③ او نور ټول امت . د مهاجرينو او انصارو خاص صفتونه او فضيلتونه ئې هم دلته ذکر کړل مګر د نور امت فضيلتونو ، کمالونو او صفتونو ځينې څخه ئې صرف يو ځيز دا اوخودلو چې هغه د صحابه کرامو رضي الله عنهم د ايمان روميې والې او د ايمان تر مونږه پورې رارسيدو ذريعه کيدل او پيژنی او ټولو دپاره دمغفرت دعا اوکړی او خپل ځان دپاره دا دعا اوکړی چې زمونږ په زړونو کښې مسلمانانو سره کينه اوکرکه نه وی.

دې نه معلومه شوه چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه پس څومره مسلمانان دی دهغوئ د اسلام او ايمان قبليدو او خلاصی موندو دپاره دا شرط دې چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم عظمت او محبت په خپلو زړونو کښې لری او هغوئ دپاره به دعا کوی ، چا کښې چې دا شرط نشی موندې هغه ددې قابل نه دې چې مسلمان ورته اووئيلې شی ، څکه خو مصعب بن سعد رحمه الله او فرمائيل چې د امت ټول مسلمانان په درې درجو کښې دی دوه درجې خو تيرې شوی چې مهاجرين او انصار وو او اوس صرف يوه درجه پاتې شوې ده . يعنی هغه مسلمان چې صحابه کرامو رضي الله عنهم سره مينه لری د هغوئ عظمت او پيژنی اوس که تاسو په امت کښې څه ځائې حاصلول غواړئ نو په دې درجه کښې داخل شئ.

---

[1]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:٦٩] و مسند احمد ،مسند انس بن مالك رضي الله عنه رقم الحديث:[۱۲٦۹۷]

[2]) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۳۲]

حسين رضي الله عنه نه چا د عثمان غنى رضي الله عنه باره کښې سوال اوکړو ، نو حسين رضي الله عنه د سوال کوونکي نه تپوس اوکړو چې تاسو په مهاجرينو کښې يئ ؟ هغه انکار اوکړو ، بيا ئې تپوس اوکړو چې تاسو په انصارو کښې يئ ؟ هغه دې نه هم انکار اوکړو نو وې فرمائيل چې اوس دريم آيت ﴿وَالَّذِينَ جَاءُوا مِن بَعْدِهِمْ﴾ پاتې شو ، که تاسو د عثمان غنى رضي الله عنه په شان کښې شک شبه پيدا کول غواړئې نو ددې درجې نه به هم اوځئ.

قرطبى رحمه الله اوفرمائيل چې دا آيت مبارک ددې خبرې دليل دې چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم محبت په مونږ باندې واجب دې ، امام مالک رحمه الله اوفرمائيل چې څوک صحابى رضي الله عنه ته بد وائى ياد هغوئ باره کښې دبدئى څه عقيده لرى د مسلمانانو په مال فئ کښې د هغه هيڅ برخه نشته بيا ئې دا آيت مبارک په دليل کښې پيش کړو او هرکله چې په مال فئ کښې د هر مسلمان برخه ده نو د چا چې په دې کښې برخه پاتې نه شوه دهغه اسلام او ايمان شکى دې.

عبدالله بن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې الله ﷻ ټولو مسلمانانو ته د محمد ﷺ داصحابو رضي الله عنهم دپاره د بخښنې غوښتو او دعا کولو حکم ورکړې دې ، سره ددې چې الله ﷻ ته دا معلومه ده چې د دوئ ترمينځه به دجنګونو جګړې فتنې هم راپورته کيږى. [په دې وجه يو مسلمان لره هم دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم دَ اختلافاتو په وجه هغوى نه بدګمانه کيدل جائزنه دى] (١).

عائشه صديقه رضي الله عنها اوفرمائيل چې ماستاسو دنبى ﷺ نه آوريدلى دى چې دا امت به تر هغې نه هلاکيږى چې ترڅو ددې روستنى په وړاندينو باندې لعنت او ملامت نه کوى (٢). عبدالله بن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چې کله تاسو چالره دَ صحابى رضي الله عنه په بدو وئيلو باندې اووينئ نو ورته وايئ چې په تاسو کښې څوک زيات خراب دې . په هغه دې دَ الله ﷻ لعنت وې (٣) ، دا ښکاره ده چې زيات خراب خو صحابهٔ کرام رضي الله عنهم نشى کيدې هم هغه څوک کيديشى چې دهغوئ رضي الله عنهم بدى بيانوى خلاصه داده چې په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې چا ته بد وئيل د لعنت سبب دى.

او عوام بن حوشب اوفرمائيل چې ما د امت ړومبى خلق په دې خبره باندې مستقيم او مضبوط پيدا کړى دى چې هغوئ به خلقو ته دا خودنه کوله چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم بهتروالى او خوبئ بيانوئ ، دپاره ددې چې د خلقو په زړونو کښې د هغوئ محبت پيدا شى او هغه جنګ جګړې او اختلافات چې د دوئ ترمينځه راغلى دى دهغې يادګيرنه مه کوئ چې هغوئ پرې زړور کيږى او بې ادبى کيږى . [دا ټول روايتونه د تفسير قرطبى نه راخستې شوى دى] (٤).

| يَقُولُونَ | نَافَقُوا | إِلَى الَّذِينَ | أَلَمْ تَرَ |
|---|---|---|---|
| [آيا تا اونه کتل [هغه کسانو ته [چې هغوئ منافقت اوکړو]وائى هغوئ | | | |
| [آيا تا هغه خلق نه دى کتلى چې منافقت ئې اختيار کړې دې] هغوئ خپلو | | | |

١) تفسير القرطبي [ ج:١٨ص:٣١ و ٣٢]

٢) المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث:[ ٥٣٩٩] و مجمع الزوائد، كتاب المناقب باب ماجاء في حق الصحابة رضي الله عنهم والزجر عن سبهم رقم الحديث :[١٦٤٢٨]

٣) جامع الترمذي ، ابواب المناقب باب فيمن سب أصحاب النبي ﷺ [ج:٢ ص:٢١٥]

٤) تفسير القرطبي [ ج:١٨ص:٣١ تا ٣٣]

لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ لَئِنْ

رونړو خپلو ته | هغه رونړو ته | چې هغوئ کفر اوکړو | داهل کتابونه | که چرې

اهل کتابو نه کافرانو رونړو ته وائی | ............ که چرې

أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ

اوویستلې شوئ تاسو | نوخامخا به اوزو مونږ | ستاسو سره | او نه به منو مونږ | په حق ستاسو کښې

تاسو [دمدینې نه] اوویستلې شوئ | نو مونږ به هم تاسو سره اوځو | او ستاسو په معامله کښې به

أَحَدًا أَبَدًا وَإِنْ قُوتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ

خبره دهیچا | همیشه | او که جنګ اوکړې شو ستاسو سره | خامخا به مونږ امداد کوؤ ستاسو

دهیچا خبره نه اورؤ ، | او که تاسو سره جنګ کیږي | نو خامخا به ستاسو مدد کوو

وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكٰذِبُونَ ۝ لَئِنْ أُخْرِجُوا

او الله | ګواهي کوی | چې بیشکه دا خلق | خامخا دروغژن دي | که چرې اوویستلې شو هغوئ

او الله ﷻ په دي ګواهي ورکوی چې دوئ دورغژن دی | ......... کچرې کتابیان اوویستلې شو

لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ وَلَئِنْ قُوتِلُوا لَا يَنْصُرُونَهُمْ

نو دوئ به اونه وځی | دهغوئ سره | او که جنګ اوکړې شو دهغوئ سره | نو دوئ به امداد نه کوی دهغوئ

نو دوئ به ورسره نه اوځی | .........او که چرې هغوئ سره جنګ اوشو | نو دوئ به ئې مدد نه کوی

وَلَئِنْ نَصَرُوهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُونَ ۝

او که دوئ امداد اوکړو دهغوئ | نو خامخا به ګرزوی شاګانې | بیا به امداد اونه کړې شي دهغوئ سره

او که چرې مدد ئې هم اوکړ | نو په شابه تښتی | ...........او بیا به دوئ سره مدد نشی کولې

لَأَنْتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً فِي صُدُورِهِمْ مِنَ اللَّهِ

خامخا تاسو چې یئ زیات سخت یئ | په لحاظ دیرې سره | په زړونو ددوئ کښې | په مقابله دالله کښې

[مسلمانانو] بیشکه ددوئ په زړونو کښې دالله ﷻ نه هم زیاته ستاسو ویره پرته ده

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ ۝

دا ویره | په سبب ددې ده چې بیشکه دوئ | یو داسې قوم دی | چې نه پوهیږی

دا خکه چې دوئ داسې خلق دی | چې د کار په انجام باندې نه پوهیږی

لَا يُقٰتِلُونَكُمْ جَمِيعًا إِلَّا فِي قُرًى مُحَصَّنَةٍ أَوْ مِنْ وَرَاءِ

دوئ به جنګ اونه کړی ستاسو سره | ټول په جمع سره | مګر | په کلو قلابندو کښې | یا روستو

دوئ که ټول راجمع شي انو هم تاسو سره جنګ نشی کولې اخو په داسې کلو کښې به درسره کوی چې قلعه نما

جُدُرٍ بَأْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيدٌ تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا

د دیوالونو نه | جنګ ددوئ | په منځ ددوئ کښې | سخت دی | ته ګمان کوې په دوئ | چې یوه ډله ده

وی | یا د دیوالونو شاته وی | ددوئ جنګ په خپل مینځ کښې ډیر سخت وی | ستا پرې داګمان دی چې ګنی

وَّقُلُوۡبُهُمۡ شَتّٰىؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ قَوۡمٌ لَّا يَعۡقِلُوۡنَ ؁

او حال داچې زړونه ددوئ | جداجدا دی | دا په دې وجه چې دوئ | يو داسې قوم دې | چې عقل نه لري

يو موټي دی | حالانکه ددوئ زړونه بيل بيل دی | دا ځکه چې دا خلق دعقل نه کار نه اخلي

كَمَثَلِ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ قَرِيۡبًا ذَاقُوۡا وَبَالَ

په شان | دهغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | په نزدې زمانه کښې | چې وې څکله | سزا

ددوئ مثال دهغه خلقو پشان دې | چې د دوی نه وړاندې تير شوی دی | هغوئ

اَمۡرِهِمۡ‌ۚ وَلَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ‌ۚ ؁ كَمَثَلِ الشَّيۡطٰنِ اِذۡ قَالَ

دعمل خپل | او دپاره ددوئ | عذاب | دردناك دې | په مثال دشيطان | کله چې | اووئيل هغه

دخپلو کارونو سزا اوڅکله | اودوی دپاره دردناک عذاب دی | د دوئ مثال د شيطان دې

لِلۡاِنۡسَانِ اكۡفُرۡ‌ۚ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّىۡ بَرِىۡٓءٌ مِّنۡكَ

انسان ته | چې کفراوکړه | پس هر کله چې | هغه کفر اوکړو | نو وې وئيل | چې زه ذمه وار نه يم ستا

چې انسان ته وائی کافر شه | کله چې هغه کافر شی | نوبيا ورته وائی | چې زه ستا نه بيزاره يم

اِنِّىۡۤ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الۡعٰلَمِيۡنَ ؁ فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَاۤ اَنَّهُمَا

زه خو ويريږم دالله نه | چې پالونکې دمخلوقاتو دې | پس وی به | انجام ددواړو | چې بيشکه هغوئ دواړه به

زه خو دالله ﷻ نه ويريږم | چې دټول مخلوق رب العالمين دې | نو د دواړو انجام دا شو | چه دواړه

فِى النَّارِ خَالِدَيۡنِ فِيۡهَا‌ ؕ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِيۡنَ ؁

په وور کښې وی | هميشه به وی دواړه | په هغې کښې | او دا | بدله ده | دظالمانو

به په اورکښې وی | اوهميشه به په کښې وی | ........... او هم دا د ظالمانو سزا ده

## آسان ترجمه قرآن

آيا ته نه ګورې هغه کسانو ته، چه د منافقت نه ئې کار اخستلې دې چه هغوی خپلو ورونړو ته، چه د اهل کتابو نه کافران دی، دا وائي چه: که تاسو ويستلې شوئ، نو مونږ به هم تاسو سره اوځو. او ستاسو باره کښې به چرې هم د بل چا خبره نه منو. اوکه تاسو سره جنګ اوکړې شو نو مونږ به ستاسو مدد اوکړو. او الله تعالی ګواهي ورکوي، چه دا خلق بالکل دروغژن دي. دا يقيني خبره ده که دا (اهل کتاب) اوويستلې شو، نو دوی د هغوی سره نه اوځي اوکه د هغوی سره جنګ اوکړې شو. نو دوی د هغوی مدد نه کوي، اوکه فرض کړه د هغوی مدد هم اوکړي، نو شا به کړي او اوبه تښتي، بيا به ددوی هيڅوک مدد نه کوي. (اے مسلمانانو) حقيقت دادې، چه ددوی زړونو کښې ستاسو ويره د الله تعالی نه زياته ده. دا ددې وجې نه چه دوی داسې خلق دی، چه نه پوهيږي. دا ټول خلق به په جمع سره هم تاسوسره جنګ ونه کړي، مګر په داسې کلو کښې چه په قلعه کالو کښې محفوظ وی يا د ديوالونو نه شاته به پټه باندې. ددوی مينځ کښې مخالفتونه ډير سخت دی. تاسو دوی يو ځائې ګنړئ. حالانکه ددوی زړونه (يو بل نه) جودلې دی، ځکه چه دوی داسې خلق دی، چه عقل په کښې نشته ددوی حالت د هغې خلقو پشان دې، چه

دوی نه لېرې هان محکېږي ئې د خپلو کارونو مزه څکلې ده او ددوی دپاره دردناک عذاب دې ○ددوی مثال د شيطان پشان دې، چه هغه انسان ته وائي چه: کافر شه، بيا چه کله هغه کافر شي، نو وائي چه: زه ستا نه بری يم، زه د الله تعالیٰ نه ويريږم، چه د ټولو جهانونو پروردګار دې نو ددغې دواړو انجام دادې، چه دا دواړه به په دوزخ کښې وي، هلته کښې به دوی هميشه دپاره وي، او هم دا د ظلم کونکو سزا ده.

## خلاصه تفسير

﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِیْنَ نَافَقُوْا﴾ [آيا تا دهغو منافقانو] يعنی عبد الله بن ابی وغيره [حالت لره ونه ليدو ﴿یَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْکِتٰبِ﴾ چه خپلو] هم مذهب [رونړو ته چه کفار اهل کتاب دی] يعنی بنونضيروته [وائی] يعنی وئيل ئې څکه چه داسورت د واقعې دجلاوطنې دبنونضيرونه پس نازل شوې دې [الکه چه په روح کښې داسې دی په دليل دحديث او سير] ﴿لَئِنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَکُمْ﴾ [چه په الله تعالی قسم دې] مونږ په هرحال کښې تاسوسره يوپس [که تاسو] دخپل وطن نه جبرا [وويستلې شوئ نو مونږ به] هم [تاسوسره] دخپل وطن نه [اوخو ﴿وَلَا نُطِیْعُ فِیْکُمْ اَحَدًا اَبَدًا﴾ اوستاسوپه معامله کښې به مونږ چرې د چاخبره ونه منو] يعنی که خواه مونږ څوك هرڅنګه پوهوی چه په خروج او قتال کښې کوم چه وړاند بيان شوی دی ستاسوملګرتياونه کړو ليکن مونږ به ئې نه منو پس جمله دلَانُطِیْعُ دسياق اوسباق دواړو په حقله ده ﴿وَّاِنْ قُوْتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّکُمْ﴾ [اوکه تاسو سره دچاجنګ جوړشو نو مونږ به ستاسو مددوکړو ﴿وَاللّٰهُ یَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَکٰذِبُوْنَ○﴾ او الله تعالی ګواه دې چه هغوی بالکل دروغژن دی] داخو ددوی ددروغژن کيدواجمالا بيان وشو وړاند تفصيلا فرمائی چه ﴿لَئِنْ اُخْرِجُوْا لَا یَخْرُجُوْنَ مَعَهُمْ﴾ [په الله تعالی قسم دې چه که اهل کتاب وويستلې شول نو دوی] منافقان [به دهغوی سره ونه وځی ﴿وَلَئِنْ قُوْتِلُوْا لَا یَنْصُرُوْنَهُمْ﴾ او که ددوی سره جنګ وشو نو هغوی به ئې مددونه کړی ﴿وَلَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ لَیُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ﴾ اوکه] بالفرض والمحال [دهغوی مدد هم وکړی] او په جنګ کښې شريك شی [نوبه شابه وتښتی ﴿ثُمَّ لَا یُنْصَرُوْنَ○﴾ بيابه] ددوی د تښتيدونه پس [دهغوی] اهل کتابو [هيڅ مددونه کړې شی] يعنی کوم چه مدد کوونکی ووهغوی خو وتښتيدل او بل څوك به ئې هم مددګار نه وی پس خامخابه مغلوب اومقهوروی مطلب داچه دمنافقانوچه کوم غرض دې چه ددوی په دې ورونړو څه افت رانه شی په دې کښې به په هرشان سره ناکامه وی چنانچه داسې وشوه چه هرکله په اخرکښې بنونضير وويستلې شول نو منافقان ورسره ونه وتل او هرکله چه په اول کښې ددوی محاصره وشوه چه احتمال دجنګه په کښې وو په هغې کښې ئې هم دې منافقانومدد ونه کړو اوپس دواقعې د وقوع نه داسې فرمانيل ﴿لَئِنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَکُمْ﴾ الخ کوم چه ائنده واقع کيدو باندلالت کوی يا خوتيرو واقعولره په حاضرو او موجودو فرض کولو باندمبنی دی چه ددوی وعده خلافی او رسوائی ښه راوړاندشی او يااننده چه کوم احتمال موجود وو چه ددوی د ملګرتيانه نفی وکړی وړاند ددوی سره دملګرتيانه کولوسبب بيان فرمائی چه ﴿لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِیْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ﴾ [بيشکه ستاسوخلقو ويره ددې] منافقانو [په زړونو کښې دالله تعالی نه هم زياته ده] يعنی دايمان په دعوی سره چه دوی کومه خپله ويره دالله تعالی نه بيانوی هغه خوخلاف واقع ده ګنې کفر به ئې پريښودې وو اوستاسو ويره واقعی ده پس ددې ويرې په وجه داخلق دبنی نضيرملګرتيانه شی کولې او ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا یَفْقَهُوْنَ○﴾ [دا] ددوی ستاسونه

ویریدل او دالله تعالی نه نه ویریدل [په دې سبب سره دی چه هغه داسې خلق دی چه] دکفر په
وجه دالله تعالی په لویئ باندې [نه پوهیږي] اودایهودعام دی دبنونضیرو او غیربنی نضیرونه
اومنافقان جداجداخوستاسو د مقابلې به څه حوصله وکړی شی ﴿لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا﴾ [داخلق] خو
[که ټول په جمع شی هم تاسو سره جنګ نه شی کولې ﴿إِلَّا فِيْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ أَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ﴾ مګرپه
محفوظوکلوکښې یاد دیوال] دقلاع اوښار [دخوانه] د حفاظت نه مراد عام دې دخندق نه وی
یا دقلاوغیره نه اودې نه دانه لازمیږی چه چرته داسې واقعه دې پیښه شوې وی چه منافقانو
دمسلمانانو مقابله دڅه قلا او محفوظ مقام نه کړی وی ځکه چه مقصود دادې چه که یهود
اومنافقان ځان ځان له یا په جمع ستاسو مقابلې له راشی هم نو ددوی مقابله به دمحفوظ
قلاګانویا دښار دديوال دشانه وی چنانچه یهوددبنوقریظه او دخیبرخلق دغه شان په مقابله
باندراغلل اومنافقان نه ددوی ملګری شول اونه ددوی چرې دومره حوصله وشوه چه په ډاګه
دمسلمانانو مقابلې له راشی په دې کښې دمسلمانانو همت افزائی هم ده چه هغوئ دې
اندیښنه نه کوی او ددوی دځنوقبیلو لکه داوس او خزرج جنګ د واقعاتو په لیدو باندې دا
اندیښنه ونه کړی چه شاید دغه شان دمسلمانانو په مقابله کښې هم دوی څه وخت راشی خبره
داده چه ﴿بَأْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ﴾ [ددوی جنګ په خپل مینځ کښې ډیرتیز دې] مګردمسلمانانو په
مقابله کښې هیڅ نه دې اودغسې دا احتمال دې نه شی کولې چه اګرکه دمسلمانانوپه مقابله
کښې یوازې دوی کمزوری دی مګرډیر کمزوری چه یوځائ شی نو قوی شی شایدچه دغسې
داټول جمع شی او دمسلمانانو مقابله وکړې شی دا احتمال ځکه قابل التفات نه دې چه
﴿تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا﴾ [اې مخاطبه ته دوی لره] په ظاهرکښې [متفق ګنړې ﴿وَقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى﴾ حال دادې
چه ددوی زړونه غیر متفق دی] یعنی اګر چه داهل حقو سره ددوی دښمنی یوه وجه داشتراك ده
مګرپه خپله هم په دوی کښې دعقیدو داختلاف په وجه افتراق او دښمنی ده لکه چه په سوره
مائده کښې تیرشوی دی والقینا بینهم العداوة الخ[1] او ددوی په خپل مینځ کښې دمجتمع کیدو
داحتمال نفی هم دزیادت دتاکید او تقویت دمقصود دپاره ده ورنه دالله تعالی مشیت ددوی
دمغلوبئ او مقهوریت سره شوې دې نو که اتفاقا وشی هم نو څه په کار راځی وړاند ددوی
دنااتفاقئ وجه بیانوی چه ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ﴾ [دا] پراګندګی اختلاف د زړونو [په دې
وجه سره ده چه هغه داسې خلق دی کوم چه] ددین [عقل نه لری] په دې وجه هریو دخپل خپل
خیال تابع دې نو هرکله چه نظریات او غرضونه مختلف وی ددې سره اختلاف دزړونولازم دې
او په دې دا شبهه نه شی کولې چه په بې دینوکښې ډیرکرته اتفاق لیدې شی خبره داده چه
دلته مقصود قاعده کلیه بیانول نه دی بلکه په دوی کښې چه کومه نااتفاقی وه دهغې سبب
بیانول مقصوددې چه ددوی دپاره هم دا امرسبب شوې وو چنانچه ظاهره ده وړاندخاص
دبنونضیرو او ددې منافقانو کومو چه وعده دمدد کړې وه په دوکه کښې ئې واچول او په عین
وخت کښې ئې تګی وکړه ددوی د حالت بیان دې چه ددوی دمجموعې دوه مثالونه دی یو مثال
خاص دبنو نضیرواو دویم دمنافقینو د بنونضیرو مثال خو ﴿كَمَثَلِ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِيْبًا﴾ [دهغو
خلقو په شان مثال دې کوم چه ددوی نه وړاندتیرشوی دی ﴿ذَاقُوْا وَبَالَ أَمْرِهِمْ﴾ کومو چه] په
دنیاکښې هم [دخپل کردارمزه څکلې ده او] په اخرت کښې هم ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيْمٌ﴾ [دهغوی

[1] ترجمه:- او مونږ ددوئ په مینځ کښې دښمنی جوړه کړه.

دپاره دردناك عذاب] كيدونكي [دي] مراد ددې نه يهود دبني قينقاع دي چه قصه ئې داسې وشوه چه دبدر د واقعې نه پس هغوی ددوی ﷺ سره په سنه ۲ هجری كښې عهد شكنى وكړه جنګ ئې وكړو بيا مغلوب اومقهور شول او دقلانـه ددوی ﷺ په فيصله بهرراووتـل ددوی لاسونه وتړلې شول بيا دعبدالله بن ابی دزاری او اصرار په وجه ددوی په دې شرط سره جان بخشی وشوه چه دمدينې نه د دې اوخی چنانچه هغه اذرعات شام ته لاړل او ددوی مالونه دمال غنيمت په شان تقسيم كړې شول لكه زادالمعاد(١)كښې داسې دی اوددې منافقانو مثال ﴿كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ﴾ [دشيطان په شان دی] اول خو﴿اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ﴾ [انسان ته وائی چه ته كافرشه﴿فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّنْكَ﴾ بيا چه كله هغه كافرشی] اودكفر په وبال كښې اخته شی خواه په دنياكښې خواه اخرت كښې [نو] هغه وخت صفاجواب وركړی او [وائی چه زماتاسره هيڅ واسطه نشته﴿اِنِّیْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ زهٔ خودالله تعالى رب العلمين نه ويريږم] په دنيا كښې دداسې ويزاره كيدو قصه خو په سوره انفال كښې په ايت ﴿وَاِذْ زَیَّنَ لَهُمُ الشَّیْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ﴾ الخ(٢) كښې تيره شوې ده او په اخرت كښې ويزاری دګمراه كوونكو دګمراهانونه په ډيرو ايتونو كښې ذكرده ﴿فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَآ اَنَّهُمَا فِی النَّارِ خَالِدَیْنِ فِیْهَا﴾[پس اخرى انجام ددواړو داشوچه دواړه دوزخ ته لاړل كوم ځائ چه به هميشه وسيږی] يو دګمراهۍ په وجه دويم دګمراه كولو په وجه ﴿وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِیْنَ﴾[او دظالمانو داسزاده] پس لكه څنګه چه دې شيطان دې انسان لره اول ئې دهوكه كړی بيائ په وخت باند ورسره ملګرتيا ونه كړه او دواړه په تاوان كښې پريوتل دغه شان دې منافقانو اول بنی نضيرو ته بده راۍ وركړه چه تاسووځئ مه بيا په عين وخت ئې دوی لره دوكه وركړه او دواړه په مصيبت اخته شول بنی نضير خو د جلاوطنۍ په مصيبت كښې اومنافقان دناكاميابۍ په ذلت كښې اخته شول

## معارف او مسائل

﴿كَمَثَلِ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِیْبًا﴾ دا د بنی نضيرو د مثال بيان دې او د ﴿اَلَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ په تفسير كښې مجاهد رحمه الله اوفرمائيل چې دې نه مراد د اهل بدر كافران دی او ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل چې مراد ترې يهود بنی قينقاع دی چې د دواړه په انجام كښې خوار زار پاتې راتلل او وژلې كيدل دغه وخت ښكاره شوې وو ځكه چې بنی نضير د بدر او د احد د غزاګانو نه پس جلا وطن شوی وو او د بنی قينقاع واقعه هم د بدر نه پس راپيښه شوې وه ، بدر كښې د عربو د مشركانو او يا سرداران وژلې شوی وو او پاتې په ډير ذلت او خواريې سره واپس شوی وو او د ابن عباس رضی الله عنه په قول هم دا مراد دې نو دآيت مطلب واضح دې چې د دوی باره كښې ئې په آيت كښې اوفرمائيل ﴿ذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ﴾ يعنى هغوئ د خپلو كړو بدله پيداكره. دا دآخرت نه وراندې په دنيا كښې د ستركو په وړاندې راغلل ، دغه شان:

﴿اَلَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ نه مراد كه د بنی قينقاع يهود وی نو د هغوئ واقعه هم دغه شان عبرتناكه ده.

**د بنی قينقاع جلاوطنی**: دا واقعه داسې وه چې كله نبی كريم ﷺ مدينې منورې ته هجرت اوكړو نو دمدينې منورې په چاپير چل كښې چارچاپيره چې څومره د يهودو قبيلې وې تولو سره ئې دصلح

(١) قد مر تخريجه.

(٢) ترجمه :- او دوئ ته دهغه وخت ذكر اوكړئ چې كله شيطان دوئ ته ددوئ عملونه ښائسته اوخودل.

لوظنامې شوې وې، دهغې یو شرط داهم وو چې ددوئ هیڅوک به د نبي کریم ﷺ او د مسلمانانو د چا مخالف امداد نه کوي. دغه شان لوظنامه بني قینقاع سره هم شوې وه خو څو میاشتې پس هغوئ تکي او لوظنامه ماتول شروع کړل او د بدر د غزا په موقع مشرکانو سره د پټ سازش او امداد څه واقعات مخې ته راغلل دغه وخت د قرآن پاک دا آیت مبارک نازل شو چې:

﴿وَاِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً فَانْبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ﴾ یعنی که د لوظنامې او صلح نه پس د یو قوم د خیانت خطره پیدا شي نو ورسره د صلح لوظنامه ختمولې شي، بنو قینقاع دغه لوظنامه په خپلې غدارئی سره پخپله ماته کړې وه څکه نبي کریم ﷺ ددوئ خلاف د جهاد اعلان اوکړو. او دجهاد بیرغ ئې حمزه ﷺ ته ورکړو. د مدینې منورې په ښار باندې ئې ابولبابه ﷺ خپل خلیفه مقرر کړو او پخپله هم دغې جهاد ته ئې تشریف یوړو. دغه خلق د مسلمانانو د لښکر په لیدو په خپله قلعه کښې بند پاتې شو، نبي کریم ﷺ د قلعه نه راچاپیره شو تر پنځلس ورځو پورې دغسې قلعه بند پاتې شوه او ګزاره ئې کوله آخر الله ﷻ د هغوئ زړونو کښې رعب واچولو او دوئ پوهه شو چې مقابلې سره هم څه کار نه سمیږي څکه ئې د قلعه دروازه خلاصه کړه او وې وئیل چې مونږ ته د نبي کریم ﷺ هر قسم فیصله منظوره ده چې زمونږ په باره کښې ئې کوي.

د دوئ باره کښې دا فیصله کیدونکې وه چې نارینه دې اووژلې شي خو عبدالله بن ابي منافق نبي کریم ﷺ ته ډیر منت زاري اوکړه چې ددوئ د نارینو وژل دې اونه کړې شي، آخر هغوئ دا فیصله اوفرمائیله چې دا خلق دې خپل دا کلې خالي کړي او جلاوطن دې شي د دوئ مالونه به مسلمانان د غنیمت په ډول اخلي ددې قرار داد په جوړ دغه خلقو مدینه منوره پریخوده او د شام ملک اذرعات علاقې ته جلاوطن شو. نبي کریم ﷺ د دوئ مال دَ مال غنیمت دَ قانون مطابق داسې تقسیم کړو چې په پنځو کښې څلور برخې په مسلمانانو غازیانو تقسیم کړې او پنځمه برخه ئې بیت المال کښې پریخودله. د بدر غزا نه پس دا اولنئ پنځمه برخه وه چې په بیت المال کښې داخله شوه، دا واقعه د هفتې په ورځ په پنځم [۵] شوال ګال دویمهٔ هجري دَ رسول الله ﷺ دَ هجرت نه شل میاشتې پس راپیښه شوه.

﴿كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ﴾ دا دویم مثال دهغه منافقانو دې چې چا بني نضیر دې ته راوپارول چې د جلاوطنئ حکم دې نه مني او نبي کریم ﷺ سره دې جنګ اوکړي او هغوئ ورسره په دې کښې د مدد کولو وعده اوکړه مګر کله چې مسلمانان د هغوئ نه راچاپیره شو نو هیڅوک منافق ئې هم امداد ته اونه رسیدو دمنافقانو مثال قرآن کریم د شیطان په یوې واقعې سره ورکړې دې چې انسان لره ئې په کفر آماده کړو او قسما قسم وعدې ورسره اوکړې خو کله چې هغه په کفر کښې اخته شو نو د هر څه نه واوړیدو.

د شیطان دا قسم واقعې به خدائې خبر چې څومره شوي وي، د هغې څینې یو واقعه خو داسې د قرآن کریم په سورة انفال کښې راغلې ده چې ﴿وَاِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَاِنِّيْ جَارٌ لَّكُمْ ۚ فَلَمَّا تَرَآءَتِ الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَقَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكُمْ﴾[1].

---

[1] ترجمه: اوهغه وخت یادکړه کله چه شیطان دوی(کافرو)، ته دهغوی عملونه ښائسته کړل او ورته ئې اووئیل نشته غالب په تاسو نن ورځ دخلقو نه اوبیشکه زه ساتونکې یم تاسو لره نوکله چه دوو ډلو (کافرانو اومسلمانانو) یوبل اولیدل نو شیطان په خپلو پوندو واپس شو او دا ئې اووئیل زه ستاسو (دملګرتیا نه) بیزاره یم

دا دبدرد غزا واقعه ده چې په کښې شیطان دوسوسې په ذول یا په انسانی شکل کښې مخامخ راتلو سره ئې د مکې مشرکان د مسلمانانو مقابلې ته راوپارول او دخپل مدد یقین ئې ورکړو خو کله ئې چې د مسلمانانو سره مقابله شوه نو دمدد کولو نه ئې بیخې انکار اوکړو ، ددې واقعې پوره وضاحت په معارف القرآن سورة انفال کښې دبیان شوی آیت مبارک لاندې اوګورئ. که په ایت مبارک کښې دې واقعې ته اشاره وی نو په دې بنا خو ورته شیطان د کفر کولو وینا نه ده کړې بلکه ورته ئې دا وئیلی وو چې مقابلې دپاره راجمع شئ ولې چې هغوئ خو د وراندې نه کافران وو نو دکفر کولو د وینا مطلب څۀ شو؟

جواب ښکاره دادې چې مقابلې دپاره تیارول هم کفر خکه شو چې دا په کفر کلک اودریدل دی او د نبی کریم ﷺ دمقابلې دپاره ئې تیارول دی.

تفسیر مظهری ، قرطبی او ابن کثیر وغیره د لته د شیطان داسې واقعات د بنی اسرائیلو دګنړو راهبانو اوعبادت کوؤنکو باره کښې لیکلی دی چې شیطان هغوئ دهوکه کړل او کفر ته ئې اورسول. لکه یو راهب عبادت کوؤنکی به په خپل عبادت خانه کښې همیشه دپاره په عبادت کښې لګیا وو او روژې به ئې پدې شان نیولې چې په لسو ورځو کښې به ئې صرف یو ورځ روژه ماتوله. او په دې شان ئې اویا کاله تیر کړل. شیطان لعین ده پسې اولګیدو او دتولو نه زیات مکرجن اوهوښیار خپل شیطان ئې ورپسې اولګولو ، هغه ورته د یو راهب عبادت ګزار په شکل کښې راغلو چې ددغې عبادت کوونکی نه بۀ ئې ډېر زیات عبادت کولو ، تردې چې ددغې راهب هم پرې اعتبار او شو.

آخر د امصنوعی راهب په دې خبره کښې کامیاب شو چې دغه اصلی راهب ته ئې د بیمارئی دشفا حاصلیدو دعاګانې اوخودلې ، دغه شیطان راهب به په خپل اثر سره څوک بیمار کړو او هم دغې اصلی راهب ته بۀ ئې دعا دپاره اولیږلو چې دهغه په دعا به هغه روغ شو او هغه شیطان بۀ ترې خپل اثر لرې کړو. تر ډیرې زمانې پورې دا سلسله جاری وه ، آخر د یو سردار ښکلې لور دغې شیطان پخپل اثر سره بیماره کړه او دعا دپاره ئې دغې راهب ته اولیږله. تر دې چې هغه راهب ورسره په زنا کولو کښې هم اخته شو ، د هغې نه ئې اولاد په خیټه شو ، شیطان دغې راهب لره دهغې وژلو ته تیار کړو

چې شرم نه خلاص شی ، چې هغه ئې اووژله نو دغې شیطان په دغې تولو هر څه خلق خبر کړل ، خلقو دراهب عبادت خانه ورانه کړه اودهغه د وژلو دپاره په سولئ د خیژلو فیصله ئې اوکړه.

دغه وخت ورته هم شیطان بیا راؤرسید و چې اوس خو د خلاصی هیڅ صورت پاتې نشو که ماته دې سجده اوکړه نو زه بۀ دې خلاص کړم. نوشیطان ته ئې سجده اوکړه ، شیطان ورته دغه وخت صفا اووئیل چې ما ستا د کافر کولو دپاره دا ټول چلونه جوړ کړی دی اوس دې زه هیڅ امداد نشم کولې.

دا واقعه په تفسیر قرطبی او تفسیر مظهری کښې په تفصیل سره لیکلې شوې ده[1] والله اعلم.

---

[1]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۸ص:۳۷] وتفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۵۲ تا ۲۵۴]

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ

ای هغه کسانو | چی ایمان مو راوړی دی | اویریږی دالله نه | او پکار دی چی اوګوری | یو نفس

ائې مومنانو ! دالله ﷻ نه ویریږئ| ....... ........اوهر سړی دې سوچ فکر اوکړی

مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌۢ

هغه | چی مخکښی ئې لیږلی دی | دپاره دصبا | او او یریږئ دالله نه | بیشکه الله | خبردار دی

چې د صبا ورځې دپاره ئې څه وړاندې لیږلی دی |اودالله ﷻ نه ویریږئ| هغه ستاسو دکارونو نه پوره

بِمَا تَعْمَلُونَ ۝١٨ وَلَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ نَسُوا۟ ٱللَّهَ

په هغه څه | چی تاسو ئې کوئ | او مه کیږئ تاسو | پشان دهغه کسانو | چی هغوئ هیر کړو الله

پوره خبر دی | ............اودهغه چا په شان مه کیږئ | چې الله ﷻ ئې هیر کړې دی

فَأَنسَىٰهُمْ أَنفُسَهُمْ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ۝١٩ لَا يَسْتَوِىٓ

نو هیر کړل الله دهغوئ نه | نفسونه دهغوئ | دا کسان چی دی | هم دوئ فاسقان دی | نه برابریږی

نو الله ﷻ ترې نه خپل ځانونه هیر کړل | هم دغه خو نافرمانه خلق دی | ............دوزخیان

أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ وَأَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ۚ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ۝٢٠

ملګری دوور | او ملګری دجنت | ملګری دجنت چی دی | هم دوئ کامیاب دی |

او جنتیان هیڅ کله برابر نه دی | هم جنتیان کامیاب خلق دی

لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُۥ خَٰشِعًا

که نازل کړې وې مونږه | دا قرآن | په یو غر باندې | نو خامخا به لیدلې وې تا هغه لره | عاجزی کونکې

که مونږ دا قران پاک په یو غرباندې نازل کړې وې | ............نو تابه لیدلې وو

مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ ٱللَّهِ ۚ وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ نَضْرِبُهَا

توټې توټې کیدونکې | دویرې دالله نه | او دا مثالونه دی | چی بیانوؤ ئې مونږه |

چې دالله ﷻ د ویرې نه بهٔ فرمان منونکې چاؤدلې وو | اودا مثالونه مونږ د خلقو دپاره بیانوو

لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ۝٢١ هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ

دپاره دخلقو |دپاره ددې چی هغوئ | فکر اوکړی | هغه الله هغه ذات دی |چی نشته لائیق دعبادت

چې هغوی [دالله په وحدانیت کښې ] غور اوفکر اوکړی| الله ﷻ خو هغه ذات دی چې دهغه نه

إِلَّا هُوَ ۖ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ۖ هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلرَّحِيمُ ۝٢٢ هُوَ ٱللَّهُ

مګر هم هغه دی | خبر دی دپټ او دښکاره نه | هغه بخښونکې | مهربانه دی | هغه الله

سوا بل څوک دعبادت لائق نشته| دپټ اوښکاره هرڅه نه خبر دی |هغه ډیر مهربان رحم کونکې دی الله ﷻ

ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلْمَلِكُ ٱلْقُدُّوسُ

هغه ذات دی | چی نشته لائیق دعبادت | مګر | هم هغه دی | بادشاه دی | پاک دی

هغه ذات دی | ....... چې دهغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته | بادشاه دی د هر عیب نه پاک دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| السَّلٰمُ | الْمُؤْمِنُ | الْمُهَيْمِنُ | الْعَزِيْزُ | الْجَبَّارُ | |
| سلامتیا ورکونکې | امن ورکونکې دې | ساتونکې دې | غالب دې | خپل حکم په زور جاری کونکې دې | |
| امن ورکونکې دې | حفاظت کونکې دې | زبردست دې | خپل حکم په زور جاری کونکې دې | | |
| الْمُتَكَبِّرُ ط | سُبْحٰنَ اللّٰهِ | عَمَّا | يُشْرِكُوْنَ ﴿۲۳﴾ | | |
| لوئ دې په حقیقت کښې | پاکی ده دالله | دهغې نه | چې دا خلق ئې شریکوی دهغې سره | | |
| دیر لوئې دې | ......... الله ﷻ د دوئ دشرک نه بیخی پاک دې | | | | |
| هُوَ اللّٰهُ | الْخَالِقُ الْبَارِئُ | الْمُصَوِّرُ | لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ط | | |
| دغه هم الله دې | راایستونکې دې څیزونو لره | شکل جوړونکې دې | هغه لره دی نومونه ښه ښه | | |
| هم الله پیدا کونکې ، ناشنا پیدا کونکې ، صورت جوړونکې دې | دهغه ښکلی ښکلی نومونه دی | | | | |
| يُسَبِّحُ | لَهٗ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ۚ | وَهُوَ |
| پاکی بیانوی | هغه لره | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی | او هغه |
| په آسمانونو اوپه زمکه کښې هر څه د هغه پاکی بیانوی | ......... او هغه | | | | |
| الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ﴿۲۴﴾ | | | | |
| غالب | او حکیم دې | | | | |
| غالب او صاحب دحکمت دې | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو! د الله تعالی نه اوویریږئ، او هر سړی دې دې ته خیال اوکړی، چه هغه د صبا دپاره څه مخکښې لیږلي دي، او د الله تعالی نه اوویریږئ. یقین اوکړئ، چه څه تاسو کوئ، الله تعالی دهغې نه ښه خبردار دې. او تاسو دهغې خلقو پشان مه کیږئ، چه الله تعالی ئې هیر کړې دې، نو الله خپله هغوی د خپل ځان نه غافله کړل هم دا هغه خلق دي، چه نافرمانه دي. جنت والا او دوزخ والا خلق برابر کیدې نشي. جنت والا هغه خلق دي، چه کامیاب دي. که مونږ دا قرآن مجید په یو غر باندې نازل کړې وې، نو تا به هغه لیدلې وو، چه د الله تعالی د ویرې د وجې نه به راټیټ شوې او څودلې به وو. او مونږ دا مثالونه خلقو ته ځکه بیانوو، چه هغوی د غور او فکرنه کار واخلی. هغه الله تعالی دې، چه دهغه نه سوا هیڅوک معبود نشته هغه پټ او ښکاره هره خبره باندې پوهیږی. اوهم هغه دې، چه په ټولو باندې مهربان او ډیر زیات مهربان دې الله تعالی هغه ذات دې، چه د هغه نه سوا بل څوک معبود نشته. چه بادشاه دې، د تقدس (پاکوالی) مالک دې سلامتی ورکونکې دې، امن ورکونکې دې، د ټولو ساتونکې دې، د لوئې اقتدار مالک دې، د هرې خرابئ اصلاح کونکې دې دلوئی مالک دې. پاک دې الله تعالی دهغې شرک نه، کوم چه دا خلق جوړوی. الله تعالی هغه ذات دې، چه پیدا کونکې دې په وجود کښې راوستونکې دې، شکل جوړونکې دې دهغه دپاره ټول ښائسته نومونه دی. په آسمانونو اوزمکه کښې چه څومره څیزونه دی، ټول دهغه تسبیح کوی، اوهم هغه دې، چه د اقتدار مالک هم دې دحکمت مالک هم دې.

## خلاصه تفسير

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ [ اے ایمانداراو] تاسو دنافرمانو انجام واوریدو پس تاسو ﴿ٱتَّقُوا ٱللَّهَ﴾ [دالله تعالى نه ويره كوئ ﴿وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ او هريوسړي دګوري چه دصبا] يعنى قيامت [دپاره هغه څه] ذخيره [ليږلي ده] يعنى په نيكوعملونو كښې كوشش كوئ كومه چه ذخيره ده داخرت [او] لكه څنګه چه دنيكوعملونو په حاصلولو كښې دتقوى حكم دې دغه شان دګناهونو نه دبچ كيدو په باره كښې تاسوته حكم دې چه ﴿وَٱتَّقُوا ٱللَّهَ﴾ دالله تعالى نه ويره كوئ ﴿إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ بيشكه الله تعالى ستاسو دټولو عملونو نه خبرداردې] پس په ګناهونو كښې په اخته كيدو سره دعذاب ويره ده پس اولنې اتَّقُوا اللَّهَ دطاعاتونو په حقله دې چه قرينه ئ قَدَّمَتْ لِغَدٍ ده اودويم دګناهونو په حقله دې چه قرينه ئ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ده [او] وراندددې احكامو دنور تاكيددپاره ارشاددې چه ﴿وَلَا تَكُونُوا كَٱلَّذِينَ نَسُوا ٱللَّهَ﴾ [تاسودهغوخلقو په شان مه كيږئ كومو چه دالله تعالى] داحكامو [نه بې پروائى وكړه] يعنى په احكاموئ عمل پرينبودو دغه شان د او امرونه ئ خلاف وكړو او دنواهيوارتكاب ئ وكړو [پس] ددې اثر داشو چه ﴿فَأَنسَىٰهُمْ أَنفُسَهُمْ﴾ [الله تعالى په خپله دهغوى دځان نه هغوى بې پرواه كړل] يعنى ددوى عقل داسې ووهلې شو چه په خپله ئ خپله حقيقى نفع ونه پيژندله اونه ئ حاصله كړه ﴿أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ﴾ [داخلق نافرمان دى] او دنافرمانئ سزا به وځكى اوپورته چه دكومو دوه قسمه خلقو ذكروشو يعنى يوهغه كوم چه اهل تقوى شول او بل هغه كوم چه داحكامو پرينبودونكى شول په دوى كښې يو اهل جنت دى بل اهل دوزخ او ﴿لَا يَسْتَوِىٓ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ وَأَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ﴾ [جنتيان او دوزخيان ديويل سره برابرنه دى] بلكه ﴿أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ﴾ [كوم چه جنتيان دى هغه خلق كامياب دى] او دوزخيان ناكامه دى لكه چه بره په ﴿أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ﴾ سره معلومه شوه پس تاسو لره په جنتيانوكښې داخليدل پكاردى په دوزخيانو كښې نه دى پكار اوداخونصيحتونه چه دكوم قرآن په ذريعه تاسوته اوزرولې شى هغه داسې دې چه ﴿لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ عَلَىٰ جَبَلٍ﴾ [كه مونږ دې قرآن لره په غره باندې نازل كړې وې] او په ده كښې مود پوهيدوماده اينبودې وې دشهواتونه [نو] ﴿لَّرَأَيْتَهُۥ خَٰشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ ٱللَّهِ﴾ اے مخاطبه تابه ده لره ليدلې وو چه دالله تعالى د ويرې نه به ښكته شوې او ټوټې ټوټې شوې وو] يعنى قرآن فى نفسه داسې موثر اوقوى الاثر دې مګر په انسان كښې په وجه دغلبې دشهواتو قابليت فاسدشو چه ددې په سبب پرې اثرنه كيږى پس هغوى له پكار دى چه په حاصلولو دطاعاتواو پرينبودو دمعاصى سره خپلو شهواتولره مغلوب كړى چه دقرآن وعظونه پرې اثر وكړى او په احكامو استقامت او مداومت او ذكرفكر ئ نصيب شى دكوم چه بره ذكر شوې دى ﴿وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ﴾ [او دې عجيبه مضامينولره مونږ دخلقو د] نفع [دپاره بيانوو ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ چه هغوى سوچ وكړى] او نفع واخلى په دې وجه دامضمون لوانزلنا الخ دلته بيان كړې شو وراند دالله تعالى دكمال صفتونه بيانولې شى په كومو سره چه دالله تعالى عظمت په زړه نقش شى او داحكامو په اداكولو كښې مددګارثابت شى پس ارشاددې چه ﴿هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ [هغه داسې معبود دې چه دهغه نه سوا څوك بل معبود] لائق دعبادت [نشته ﴿عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ﴾ هغه پوهه دې په پټو څيزونو او په ظاهرو څيزونو ﴿هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلرَّحِيمُ﴾ هغه لوئ مهربان رحم والادې] او چونكه توحيد يو لوئ

مهتم بالشان څیزدي په دې وجه ددې دتاکید دپاره مکرر فرمائي چه ﴿هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ [هغه داسې معبود دې چه دهغه نه سوا څوک بل معبود] لائق دعبادت [نشته ﴿اَلْمَلِكُ﴾ هغه بادشاه دې] دټولو عیبونو نه ﴿الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ﴾ [پاك دې سالم دې] یعني نه په ماضي کښې په هغه کښې څه عیب وشو کوم چه مطلب دې دقدوسي: او نه اننده ددې احتمال شته کوم چه مطلب دې دسلام لکه داسې په تفسیر کبیر(¹) کښې دی خپلو بندګانو لره دویرې دڅیزونو نه ﴿الْمُؤْمِنُ﴾ [امن ورکوونکې دې] خپلو بندګانو لره دویرې دڅیزونو نه ﴿الْمُهَيْمِنُ﴾ [ساتونکې دې] یعنی دافتونو نه ئې هم ساتي او راغلی افتونه ترې نه هم لرې کوی ﴿الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ﴾ [زبردست دې دخرابئ درست کوونکې دې لوئ عظمت والا دې ﴿سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ الله تعالی] چه دهغه شان دادې چه [دخلقو دشرك نه پاك دې ﴿هُوَ اللّٰهُ﴾ هغه معبود] برحق [دې ﴿الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ﴾ پیداکوونکې دې تیك تیك جوړوونکې دې] یعنی هرشې دحکمت موافق جوړوی [صورت] شکل ﴿لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى﴾ [جوړوونکې دې دهغه ښه ښه نومونه دی] کوم چه په ښوښو صفتونو دلالت کوی ﴿يُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [ټول څیزونه دهغه تسبیح] او پاکی [بیانوی] حالایا قالا [کوم چه په اسمانونو او په مزکه کښې دی ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ اوهغه زبردست حکمت والادې] پس دداسې باعظمته دحکمونو منل ضروری او نهایت ضروری دی

**معارف او مسائل**

د سورة حشر اول سر نه د کافرانو ، اهل کتابو ، مشرکانو او منافقانو حالات او معاملات بیانول او په هغې باندې د دنیا اوآخرت د وبال بیانولو نه پس اوس د سورة تر آخره پورې مؤمنانو ته خبردارې ورکول او ورته د نیکو عملونو د پابندئ کولو هدایت دې.

اوس ددې آیتونو کښې په رومبنی آیت کښې په یو بلیغ انداز سره دآخرت د فکر اوهغې دپاره دتیارئ کولو حکم دې چې په کښې رومبې فرمائی چې ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ یعنی اے ایمان والو! الله ﷻ نه ویرېږئ او په تاسو کښې هر نفس لره په دې باندې غور کول پکار دی چې هغه آخرت دپاره څه سامان لیږلې دې.

دلته څو خبرې د غور جوګه دی:

① یوه دا چې قیامت ته ئې صبا یعنې راتلونکې ورځ اوویل ، په دې کښې دوو څیزونو ته اشاره ده ، اول دې ته چې توله دنیا د آخرت په مقابله کښې ډیره لږه او لنډه ده ، ګویا کښې دنیا دآخرت په مقابله کښې د یو ې ورځې پشان ده اګر چې د حساب په لحاظ سره ئې دا نسبت هم ډیر مشکل څکه دې چې دنیا ختمیدونکې او آخرت همیشه او نه ختمیدونکې دې، د انسانی دنیا عمر څو څو زره کلونه خلق ښائی که د زمکې او آسمان د پیدائش نه حساب اولګولې شی نو څولکونه کلونه به شی مګر بیا ئې هم څۀ نسبت څکه نشی کیدې چې آخرت نه ختمیدونکې او دنیا ختمیدونکې ده.

① د حدیث پاک په بعضې روایاتو کښې دی چې ﴿اَلدُّنْيَا يَوْمٌ وَّلَنَا فِيْهِ صَوْمٌ﴾ توله دنیا یوه ورځ ده او په هغه ورځ زمونږ روژه ده(²)، او که غور اوکړې شی نو د انسان د پیدائش نه ئې شروع کړه

---

¹) التفسیر الکبیر للرازی تحت هذه الآیة [ج:۱۵ ص:۳۱۴]
²) تفسیر المظهری [ج:۹ ص:۲۵۵]

یا دَ تخلیق دَ زمکې او آسمان نه دا دواړه څیزونود یو خان له انسان دَ پاره قابل اهتمام نه بلکه دَ هریو کس دنیا دَهغه دَ عمر ورځې او کلونه دی. اوهغه دآخرت په مقابله کښې څومره حقیر اوسپکه موده ده دَدې هرسړې اندازه کولې شي.

۲ دويمه اشاره په دې کښې د قيامت دَ يقيني کيدو طرف ته ده. لکه څنګه چې د نن نه پس دَ صبا راتلل يقيني امردی په دې کښې څه شك نه وی. هم دغه شان دَ دنيانه پس دَ قيام اوآخرت راتلل يقيني دی.

۳ دريمه اشاره دې طرف ته ده چې قيامت ډير نزدې دې لکه دَ نن نه پس صبا څه دومره لرې نه دی. ډير نيزدې ګڼرلې شي دغه شان دَ دنيا نه پس قيامت هم نيزدې دې. او قيامت خو يو پوره عالم دې. کله چه زمکه او آسمان ټول فناشي اوهغه هم سره دَدې چه دَ زرګونو او لاکهونو کلونونه پس وی مګر دَآخرت دَ مودې په مقابله کښې هم بيخی نيزدې دې. بل قيام دَهرانسان خپل دې کوم چه دَهغه دَ مرګ په وخت راځی لکه چه وئيلی شوی دی [مَنْ مَاتَ فَقَدْ قَامَتْ قِيَامَتُهُ] (۱) يعنی کوم سړې چه مړ شو دَهغه قيام خو هم دغه وخت قائم شو. ځکه چه هم دَ قبرنه دآخرت آثار شروع کيږی اودَعذاب اوثواب نمونې مخې ته راځی. ځکه چه عالم قبر کوم ته چه عالم برزخ هم وئيلی شی دَ دې مثال دَ دنيا انتظارګاه [ويټنګ روم] په شان دې چه دَ فرسټ کلاس نه واخله تر تړډ کلاس دَخلقو دَپاره دَمختلفو قسمونووی. اودَ مجرمانو ويټنګ روم حوالات يا جيل خانه وی. هم دَ دغه انتظارګاه نه هرسړې خپله درجه اوخپل حيثيت متعين کولې شی. په دې وجه دَ مرګ سره دَ هرانسان خپل قيامت راځی. اودَ انسان مړه کيدل الله تعالی يوه داسې معمه جوړه کړې ده چه دَ لوئی نه لوئی فلسفی او سائنسدان دَدې يقينی وخت مقرر کولې نه شی. بلکه هروخت او هره لمحه انسان دَدې خطرې نه بهر کيږی نه چه کيدې شی وراندې ګهړنې دَ ژوند په حالت کښې رانه شی. خاص کر دې دَ بجلئی په شان په تيزه زمانه کښې خودَ زړه دَ فيل کيدو واقعات خوروزمره خبره جوړه شوې ده.

خلاصه داده چې په دې آيت مبارک کښې قيامت تهغَدٍ يعنی صبا ورځ فرمائيلو سره د انسان مخه دې ته راوګرځوله چې قيامت څه لرې نه دې ډير نزدې دې چې دصبا ورځې نه وړاندې هم راتلې شی.

دويمه دغور قابله خبره په دې آيت مبارک کښې داده چې الله تعالی انسان ته په دې باندې دَ غور اوفکر کولو دعوت ورکړې دې چې قيامت دَ کوم راتلل چې يقينی هم دی او نزدې هم نودَ دې پاره تاسو څه سامان ليګلې دې دَدې نه معلومه شوه چې د انسان اصل وطن او مقام آخرت دې، په دنيا کښې دده مقام دَ يو مسافر پشان دې ، د وطن د دائمی اوسيدو او پاتې کيدو دپاره هم ددې ځائې نه څه سامان ليږل ضروری دی او د انسان ددې سفر اصلی مقصد هم دادې چې دلته په اوسيدو سره څه اوګټی او جمع کړی اوبيا هغه خپل اصلی وطن آخرت طرف ته اوليږی او دا هم ښکاره خبره ده چې دې ځائې نه ددنيا سامان ، مال او دولت هيڅوک هلته خان سره نشی اوړلې نو دليږلو هم يو صورت دې دَ يوملك نه بل ملك ته دَ مال منتقل کولوکومه طريقه په دنياکښې رائج ده چې دَدې ځائی دَ حکومت په بنك کښې جمع کړی اودَ بل

---

(۱) شرح السنة للبغوی کتاب الفتن باب قول الله تعالی عزوجل ومامرالساعة الا کلمح البصر[ج: ۱۵ ص:۹۷]

ملك كرنسي حاصله كړې كومه چه هلته چليږي. هم دغه صورت دَ آخرت په معامله كښې هم دې كوم څه چې د الله ﷻ په لار كښې اودَ الله تعالى دَ احكامو په پوره كولو كښې خرچ كولې شي هغه دَ آسماني حكومت بنك [اسټيټ بنك] كښې جمع كيږي دَهغه خائې كرنسي دَ ثواب په صورت كښې دَهغه دَپاره ليكلې كيږي اوهلته په رسيد وسره بغيردَ څه دعوى او مطالبې دَ ده په حواله كولې شي.

او دَ ﴿مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ لفظ عام دې دنيكو او بدو دواړو عملونو دپاره ، هغه داسې چې دنيک عمل خاوندانو ته بهٔ د ثواب په صورت كښې او بد عملوته به د فرد جرم په صورت كښې د آخرت نقده بدله وركولې شي ، دې نه پس ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ دوباره اوفرمائيلې شو ، دا تاكيد دپاره هم كيديشي او هغه مراد ترې هم كيديشي چې كوم وړاندې د تفسير په خلاصه كښې بيان كړې شو ، هغه داسې چې په ړومبى ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ سره د واجباتو او فرضو د ادا كولو بندوبست خودلې شوې دې ، او په بل ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ سره دگناهونو نه د خان ساتلو انتظام خودلې شوې دې.

او دا هم كيدشي چې په ړومبى ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ سره د عملونو اوداللہ ﷻ د حكمونو په تعميل كولو سره آخرت دپاره د څهٔ سامان ليږلو حكم وى اوپه بل ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ سره دې اړخ ته هدايت وى چې هلته ليږونكې سامان په غور سره گورئى چې كوټه او ناخالص نه وى. يعنى دغه ليږلې عمل دې د اخلاص اود الله ﷻ د رضا دپاره وى ، كوټه سامان دَهغه ځائې دَپاره دا دې چه دهغې صورت خودَنيك عمل وى مگر په هغې كښې دَ الله تعالى دَ رضا اخلاص نه وى بلكه دَ نوم، نمائش دپاره وى يا بل څه نفساني غرض په كښې شامل وى ، يا شكل خو ئې د نيک عمل اوعبادت وى مگر په دين كښې دهغې ثبوت نه وى چې بدعت اوگمراهى ده.

نو د دويم ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ خلاصه دا شوه چې آخرت دپاره صرف دسامان صورت جوړول كافى نه دى ، وې گورئى اوّ وې ليږئى كوټه سامان نه وى چې هلته بيا قبلولې او اخستلې نه شى.

﴿فَأَنْسٰهُمْ أَنْفُسَهُمْ﴾ يعنى دې خلقو دَالله ﷻ په هيره كښې څه واچول په حقيقت كښې ئې خپل خانونه په داسې هيره كښې واچول چې خپل نفع نقصان باندې نه پوهيږي.

﴿لَوْ أَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰى جَبَلٍ﴾ دا يو تمثيل دې چې كه قرآن پاک د غرونو پشان په سختو او درونو ځيزونو باندې نازل كړې شوې وې او د انسان پشان پوهه او شعور وركړې شوې وې نو غرونه به هم ددې قرآن د لويئ په وړاندې راتيټ شوى وى بلكه ذره ذره شوى به وو خو انسان په خپلې خواهش پرستئ او خود غرضئ كښې اخته شو او خپل فطرى شعور ئې اوبائيللو دقرآن پاک نه اثر نه قبلوى گويا كښې دا فرضى مثال دې چې كه په غرونو كښې شعور وې او ځينو حضراتو فرمائيلى دى چې په غرونو ، ونو او ددنيا په تولو ځيزونو كښې دَ ادراک او شعور شته والې دعقل او نقل نه ثابت دې ، خكه دا فرضى مثال نه بلكه حقيقت دې [ مظهرى ][۱] والله اعلم.

انسان ته د آخرت فكر او د قرآن پاک د عظمت خودلو نه پس په آخرت كښې د الله ﷻ د كمال څو صفتونه بيانولو سره سورت ختمولې شى.

[۱]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۵۵]

﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ يعنى الله ﷻ ته هر پټ او ښکاره هريو موجود او ناموجود څيز په پوره شان معلوم دي.

﴿الْقُدُّوسُ﴾ هغه ذات چې د هر عيب نه پاک او د هر داسې څيز نه بری دې چې شان سره ئې مناسب نه وی.

﴿الْمُؤْمِنُ﴾ انسان دپاره دا لفظ چې استعمال شی نو معنی ئې ايمان راوړونکې او د الله ﷻ او د الله ﷻ د رسول ﷺ د کلام تصديق کوونکې راځی، او کله چې دا لفظ الله ﷻ دپاره وئيلې شی نو معنی ئې امن ورکوونکې شی. څنګه چې ابن عباس رضي الله عنه او فرمائيل[1]. مطلب ئې د ادې چې په الله ﷻ او رسول ﷺ باندې ايمان راوړنکو ته د هر شان عذاب او مصيبت نه امن او سلامتی ورکوونکې دې.

﴿الْمُهَيْمِنُ﴾ په قول د ابن عباس رضي الله عنه، مجاهد رحمه الله او قتاده رحمه الله د دې معنی څارنه کوونکې دې، په قاموس کښې دی چې د هَيمَنَ،يُهَيمِنُ [ض] معنی نګرانی کول راځی. [مظهری][2].

د ﴿الْعَزِيزُ﴾ معنی قوی ده. د ﴿الْجَبَّارُ﴾ معنی د جبروت او لوئې خاوند او دا هم کيدېشی چې د جبر نه مشتق وی کوم چې د مات هډوکی د پيوندولو معنی ورکوی. په دې بنا جبيرة هغې پټې ته وئيلې شی چې د مات هډوکی پيوندولو نه پس پرې ترلې شی. نو د دې لفظ معنی به داوی چې هغه د هرمات ګډ څيز سموونکې او اصلاح کوونکې دې [مظهری][3].

﴿الْمُتَكَبِّرُ﴾ د تکبر نه جوړ دې چې مجرد ئې کبرياء دی، معنی ئې لوئی ده او هره لوئی په حقيقت کښې الله ﷻ دپاره مخصوص ده چې په هيڅ څيز کښې د هيچا حاجت مند نه دې، ولې چې حاجت مند لوئې کيدې نشی، څکه د الله ﷻ نه سوا نورو دپاره دا لفظ استعمالول عيب دې او د ګناه خبره ده، څکه چې په حقيقت کښې د لوئې نه حاصليدو باوجود د لوئې دعوی کول په دروغه دی او هغه ذات چې په حقيقت کښې د ټولو نه لوئې او بې نيازه دې د هغه په خاص صفت کښې د شريکيدو دعوی ده څکه د متکبر لفظ الله ﷻ دپاره صفت کمال دې او غير الله دپاره د دروغو دعوی ده.

﴿الْمُصَوِّرُ﴾ يعنی صورت جوړونکې، مراد دا دې چې ټولو مخلوقاتو ته الله ﷻ خاص خاص شکل او صورت ورکړې دې چې د هغې په وجه هغه د نورو څيزونو نه بيل شو او پيژندلې شی، د دنيا عام مخلوقات د آسمانی او زمکنی خاصو خاصو صورتونو نه پيژندې شی بيا په هغې کښې د قسمونو او د صنفونو ويش او د هر قسم او صنف بيل بيل ځانګړې شکل او صورت او هم په يو انسانی قسم کښې د نارينه او زنانه د شکل صورت فرق، بيا د نارينوؤ او زنانوؤ د شکلونو تر مينځه داسې فرقونه چې په اربونو او کهربونو انسان پيدا شو خو د يو شکل بل سره نه ملاويږی. چې بيخی فرق ئې نشی کيدې، دا کامل قدرت خالص د الله ﷻ کيدېشی چې په کښې ورسره هيڅوک شريک نشته، څنګه چې غير الله دپاره تکبر جائز نه دې، ولې چې لوئی صرف د الله ﷻ صفت دې، دغه شان تصوير جوړول هم غير الله دپاره جائز

---

[1]) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ۸ص: ۸۷]

[2]) تفسير المظهري [ج: ۹ص: ۲۵۶]

[3]) تفسير المظهري [ج: ۹ص: ۲۵۶]

نه دی ولې چې دا هم دالله ﷻ په مخصوص صفت کښې د شریکید و عملي دعوی ده
﴿لَهُ الْأَسْمَآءُ الْحُسْنٰى﴾ یعنی دالله ﷻ ښکلي نومونه دی . قرآن پاک کښې د دې شمیر نه دې خودلې شوې . صحیح احادیثو کښې ئې یو کم سل شمیر خودلې شوې دې ، د ترمذی شریف یو حدیث پاک کښې دا ټول یو ځائې ذکر شوی دی . او ډیرو عالمانو په اسماء حسنی باندې مستقل کتابونه لیکلي دی ، د احقر هم یوه لنډه رساله د اسماء حسنی په نوم سره د مناجات مقبول په شروع کښې چاپ شوې ده .
﴿يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ دا تسبیح په زبان حال سره کیدل خو ښکاره دی چې ټول مخلوقات او په دې کښې دننه ایخودلی شوی عجیبه کاریگرئی او صورتونه په زبان حال سره د خپل جوړونکي په ثناء صفت کښې مشغول دی ، او کیدیشي چې حقیقي تسبیح مراد وی ولې چې تحقیق هم دادې چې د تولې دنیا څیزونه د خپل خپل شان مطابق عقل او شعور لری او د عقل او شعور ړومبې غوښتنه خپل جوړوونکې پیژندل او د الله ﷻ شکر گزار کیدل دی ، په دې بنا د هر څیز حقیقي تسبیح وئیلو کښې څه لرې والې نشته اگر چې مونږ د هغې تسبیح په غوږونو نه شو آورېدې ځکه الله ﷻ یو ځائې کښې فرمائی چې ﴿وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ﴾ یعنی تاسو د هغې تسبیح نه آورئی او پرې نه پوهیږئی .
**سورة حشر د آخری آیتونو فضائل او برکتونه** :: ترمذی شریف کښې د معقل بن یسار رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوک د صبا په وخت کښې درې ځل [ اعوذ بالله السمیع العلیم من الشیطان الرجیم ] او هغې نه پس د سورة حشر آخری درې آیتونه د ﴿هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ نه تر دسورت آخره پورې اووائی نو الله ﷻ اویا زره فرښتې مقرر کړی چې تر ماښامه پورې هغه دپاره د رحمت دعاگانې کوی ، که په دغې ورځ کښې مړ شو نو شهادت به ورته حاصل شی او چا چې د ماښام په وخت هم دا درې کلمې اووئیلې نو هغه ته به هم دغه درجه حاصله شی [مظهری][1]

تَمَّتْ بِعَوْنِ اللهِ تَعَالىٰ سُبْحَانَهُ وَحَمْدِه سُوْرَةُ الْحَشْرِ
لِعَاشِرِ جُمَادَى الْاُوْلىٰ ۱۳۹۱ھ صحا يَوْمَ الْاَحَدِ وَيَتْلُوْهَا اِنْشَآءَ اللهُ تَعَالىٰ سُوْرَةُ الْمُمْتَحِنَة

[1]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۵۷] و جامع الترمذي ، ابواب فضائل القرآن باب ماجاء فيمن قرا حرفا من القرآن ماله من الأجر[ج:۲ ص:۱۱۹].

| اياتونه | سورة الممتحنة مدنية وهي ثلاث عشرة اٰية وفيها ركوعان | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۱۳ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکي دي | ۲ |

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَّخِذُوۡا عَدُوِّىۡ وَعَدُوَّكُمۡ

اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړي دي | مه نیسئ تاسو | دشمن زما | او دشمن ستاسو |

ائي مومنانو ! زما دشمنان اوخپل دشمنان دوستان مه جوړوئ

اَوۡلِيَآءَ تُلۡقُوۡنَ اِلَيۡهِمۡ بِالۡمَوَدَّةِ وَقَدۡ كَفَرُوۡا بِمَا

دوستان | تاسو غورزوئ | [مخکې] هغوئ ته | دوستي | حال دا چې انکار کړې دي هغوئ | په هغه څيز

تاسو هغوئ ته ددوستئ [او محبت] پيغام ليږئ | حال دا دي چې هغوئ دهغه حق دين د منلو نه انکار

جَآءَكُمۡ مِّنَ الۡحَقِّ ۚ يُخۡرِجُوۡنَ الرَّسُوۡلَ وَاِيَّاكُمۡ

چې راغلي دي تاسو ته | دحق نه | اوباسي هغوئ | رسول لره | او تاسو لره [دوطن نه] |

کړې دی | کوم چې تاسوته راغلې دي | هغوئ خو [ستاسو] رسول ﷺ اوتاسو [ستاسو دوطن نه ] صرف په

اَنۡ تُؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ رَبِّكُمۡ ؕ اِنۡ كُنۡتُمۡ

صرف په دې خبره چې ایمان راوړې دي تاسو | په الله باندې | چې رب ستاسو دي | که يئ تاسو |

وجه اوباسي چې تاسو په الله ﷻ چې ستاسو رب دې ايمان راوړې دې | ..................که تاسو

خَرَجۡتُمۡ جِهَادًا فِىۡ سَبِيۡلِىۡ وَابۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِىۡ ۖ

چې راوتلي يئ تاسو | دپاره دجهاد | په لار زما کښې | او دپاره دغوښتلو | درضا زما |

زما په لار کښې د جهاد او زما د رضا حاصلولو دپاره [دخپلو کورنو نه ] راوتلي يئ [نو هغوی سره دوستي مکوئ]

تُسِرُّوۡنَ اِلَيۡهِمۡ بِالۡمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعۡلَمُ بِمَاۤ

تاسو پټ پټ ليږئ | هغوئ ته | پيغامونه ددوستي | حال دا چې زه ښه پوهيږم | په هغه څه |

تاسو ورسره پټه پټه مينه ساتئ | اوتاسو چې څه پټوئ او څه ښکاره کوئ زه په هغې باندې ښه

اَخۡفَيۡتُمۡ وَمَاۤ اَعۡلَنۡتُمۡ ؕ وَمَنۡ يَّفۡعَلۡهُ

چې پټوئ ئې تاسو | او په هغې چې ښکاره کوئ ئې تاسو | او هغه څوک چې اوکړئ دا کار |

پوهه يم | ............................اوڅوک چې [دبيادپاره] داسې اوکړی

مِنۡكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ ۝۱ اِنۡ يَّثۡقَفُوۡكُمۡ

ستاسو نه | پس ورکه کړې ئې ده | برابره لار | که پيداکړې هغوئ تاسو

نو هغه دسمې لارې نه بې لارې شو | ......... که د هغوئ درباندې لاس بر شي

يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاءً وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ

نو شي به | تاسو لره | دشمنان | او اوږده به کړي هغوئ | تاسو ته | لاسونه خپل |

نو ستاسو دښمنان به وي | او خپل لاسونه او خپلې ژبې به در ته بدۍ باندې راوږدې کړي

وَأَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوءِ وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ ﴿٢﴾ لَنْ تَنْفَعَكُمْ

اوژبې خپلې | په بدۍ سره | او غوارۍ هغوئ | چې کافران شئ تاسو | هر گز به فائیده اونه رسوي تاسو ته

او هغوئ خو دا غوارۍ چې تاسو کافران شئ | ............دقیامت په ورځ به تاسو ته ستاسو

أَرْحَامُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ

خپلوی ستاسو | او نه اولاد ستاسو | په ورځ دقیامت | فیصله به اوکړي الله |

رشته داران او اولاد هیڅ فائده درنکړي | ............الله ﷻ به ستاسو په مینځ کښې

بَيْنَكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٣﴾ قَدْ كَانَتْ

په منځ ستاسو کښې | او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | الیدونکې دې | بیشکه ده

فیصله اوکړي | او الله ﷻ ستاسو کارونه وینې گوري | ............او تاسو دپاره خو دابراهیم علیه السلام

لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ

دپاره ستاسو | نمونه ښه | په طریقه دبراهیم علیه السلام کښې | او دهغه کسانو کښې

او د هغوئ د ملگرو په [ژوند] کښې یوه ښه نمونه [موجوده] ده | کله چې هغوی خپل

مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ

چې دهغه سره ملگري وو | کله چې | اووئیل هغوئ | قوم خپل ته | بیشکه مونږه بې زاره یو |

قوم ته اووئیل | ............چې مونږ ستاسو نه

مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا

ستاسو نه | او دهغه معبودانو نه | چې تاسو ئې عبادت کوئ | ماسوا دالله نه | کفر اوکړو مونږه |

بیزاره یو | اودهغې معبودانو نه چې تاسوئې دالله ﷻ نه سوا عبادت کوئ | مونږ

بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ

په تاسو باندې | او ښکاره شو | په منځ زمونږ | او په منځ ستاسو کښې | دشمني | او بغض |

تاسو نه منکر یو | اوزمونږ اوستاسو په مینځ کښې دهمیشه دپاره دښمني او بغض ښکاره شوې دي

أَبَدًا حَتَّى تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ إِلَّا قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ

همیشه | تر هغې پورې | چې تاسو ایمان راوړئ | په الله باندې | یوازې | مگر ته وینا | دابراهیم |

تر څو چې تاسو په یو الله ﷻ باندې ایمان رانه وړئ | ............البته ابراهیم علیه السلام

لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَا أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللَّهِ

پلار خپل ته | چې خامخا به زه بخښنه غوارم | دپاره ستا | او نه لرم اختیار زه | دپاره ستا | دالله نه |

خپل پلار ته داوئیلي وو | چې زه ستا دپاره بخښنې دعا کوم | او زما دالله ﷻ په وړاندې

مِنْ شَيْءٍ ۭ رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا

دخه څیز دحاصلولو | اے ربه زمونږه | په تاباندې | بروسه اوکړه مونږه | او خاص تاته | رجوع اوکړه مونږه

هیڅ اختیار نشته | اثي زمونږه ربه ! مونږ په تاباندې بهروسه کووا | او مونږ هم ستا طرفته رجوع کوو

وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ﴿٤﴾ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِلَّذِينَ

او خاص تاته | واپس درتلل دی | اے ربه زمونږه | مه جوړوه مونږه | یوه فتنه | دپاره دهغه کسانو

اوهم ستا طرفته بیرته تګ دې | اثي زمونږه ربه ! مونږ د کافرو دپاره امتحان مه جوړه |

كَفَرُوا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۚ إِنَّكَ أَنْتَ

چې کفر ئي کړې دې | او معافي اوکړه مونږ ته دګناهونو | اے ربه زمونږه | بیشکه ته | هم ته

......او زمونږ ګناهونه معاف کړه | اثي زمونږه ربه بیشکه ته

الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٥﴾ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ

غالب ئي | او دحکمت خاوند ئي | بیشکه ده | ستاسو دپاره | په [ژوند] ددوئ کښې | نمونه

زبردست او صاحب د حکمت یئ | د دغې خلقو په ویناکښې ستاسو دپاره بهترینه

حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ۚ وَمَنْ يَتَوَلَّ

| ښه | دپاره دهغه چا | چې وی | چې امید لری دالله | او دورځې داخرت | او هغه څوک چې مخ ګرزوی

نمونه ده | خود هغه چا دپاره چې الله ته د ورتلو اوداخرت دورځې عقیده ساتی | او څوک چې مخ واړوی

فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦﴾

پس بیشکه الله | هم هغه بې حاجته دې | ستائیلې شوې دې |

نو الله ﷻ [خوبالکل] بې پرواه او ستائیلی شوې دې |

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو! تاسو زما دښمنانو لره او خپلو دښمنانو لره داسې دوستان مه جوړوئ، چه هغوی ته د مینې پیغامونه اولیږئ. حالانکه تاسو ته چه کوم حق راغلې دې، هغوی دغې حق ته دومره دروغژن ویلې دی چه هغوی رسول لره هم او تاسو لره هم صرف په دې وجه (د مکې نه) بهر راویستلی، چه تاسو په خپل پروردګار الله باندې ایمان راوړې دې، که تاسو زما په لاره کښې د جهاد کولو په خاطر او زما رضامندی حاصلولو دپاره (د کورونو نه) وتلې یئ. تاسو د هغوی سره په پټه د دوستۍ خبرې کوئ. حالانکه څه چه تاسو په پټه کوئ، او څه چه په ښکاره کوئ، زه په هغې باندې پوره طریقې سره پوهه یم. او په تاسو کښې چه څوک هم داسې اوکړی، هغه د نیغې لارې نه بے لارې شوې دې که تاسو هغوی ته په لاس ورشئ. نو هغوی به ستاسو دښمنان شي، او خپل لاسونه او ژبې به تاسو پسې اوږدوی، دې دپاره چه تاسو سره بدی اوکړی، او ددوی دا خواهش دې، چه تاسو کافران جوړ شئ. د قیامت په ورځ به نه ستاسو رشته دارئ ستاسو څه په کار راشي او نه ستاسو اولاد. الله تعالی به ستاسو په مینځ کښې فیصله اوکړی. او تاسو چه څه کوئ، الله تعالی هغې لره ویني ستاسو دپاره په ابراهیم علیه السلام او دهغه په ملګرو کښې

بهترینه نمونه ده. چه کله هغوی خپل قوم ته اوویل چه زمونږ تاسو سره، او د الله تعالی نه سوا چه تاسو د څه څه عبادت کوئ، هغوی سره هیڅ تعلق نشته، مونږ ستاسو (د عقائدو نه) منکر یو، او زمونږ او ستاسو په مینځ کښې همیشه دپاره دشمنی او بغض پیدا شوې دې، تر څو پورې چه تاسو په یو الله تعالی باندې ایمان راوړئ، البته ابراهیم علیه السلام خپل پلار ته ضرور دا وئیلې وو چه زه به ستا دپاره د الله تعالی نه د مغفرت دعا ضرور غواړم، اګر چه د الله تعالی په مخکښې زه تاته د څه فائدې د رسولو اختیار نه لرم اے زمونږ پروردګاره! هم په تا باندې مونږ بهروسه کړې ده، او هم تا طرف ته مونږ رجوع کوؤ، او هم تا طرف ته د ټولو واپسی ده اے زمونږ پروردګاره! مونږ د کافرانو دپاره آزمائش مه ګرځوه، او اے زمونږ پروردګاره! زمونږ مغفرت اوکړه، یقیناً صرف هم ستا ذات هغه دې، چه د هغه اقتدار هم کامل دې، او حکمت ئې هم کامل دې. (اے مسلمانانو!) یقیناً ستاسو دپاره د هغې خلقو په طریقه کښې بهترینه نمونه ده، د هر هغه سړی دپاره چه د الله تعالی نه او د ورځې د آخرت نه امید ساتی او کوم سړې چه مخ واړوی، نو (هغه دې یاد اوساتی چه) الله تعالی د ټولو نه بے نیازه دې، او ستائیلې شوې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ﴾ [اے ایماندارو تاسو زما دښمنان او خپل دښمنان دوستان مه جوړوئ چه ددوی سره د دوستئ اظهار کول شروع کړئ] یعنی اګر چه په زړه سره دوستی نه وی مګر داسې دوستانه سلوک ورسره هم مه کوئ ﴿وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُم مِّنَ الْحَقِّ﴾ [حال دا دې چه تاسو ته کوم حق دین راغلې دې هغوی ددې نه منکر دی] په کوم سره چه ددوی د خدائ دښمنان کیدل معلوم شول کوم چه په ایت کښې په لفظ د عَدُوِّیْ سره بیان شو ﴿يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ﴾ [او تاسو لره په دې بناچه تاسو په خپل پروردګار ایمان راوړو دبهارنه ویستلی یئ] دا بیان دې د عدوکم یعنی دوی صرف د الله تعالی دښمنان نه دی ستاسو هم دښمنان دی غرض د داسې خلقو سره دوستی مه کوئ ﴿إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِي﴾ [که تاسو زما په لاره کښې جهاد کولو په غرض سره او زما د رضا د ټولو په غرض سره] [د خپلو کورونو نه] وتلی یئ د کفارو دوستی چه مطلب ئې د کفارو د رضامندئ فکر دې او د الله تعالی د رضا جوئ او ددې د مناسب عملونو سره منافی ده ﴿تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ﴾ [تاسو د دوی سره پټې پټې خبرې د دوستئ کوئ] یعنی اول خو دوستی بدشي دې بیا په پټه پیغام لیږل کوم چه د خصوصی ربط او تعلق علامه ده دانوره زیاته ناکاره ده ﴿وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنتُمْ﴾ [حال دا دې چه ماته ستاسو د ټولو څیزونو ښه خبر دې تاسو چه څه په پټه کوئ او څه په ښکاره کوئ] یعنی په مثل د نورو ذکر شوو موانعو دا امر هم د دوی د دوستئ نه مانع ښکار دې چه الله تعالی د هر شي نه خبر دې [او] وړاند په دې وعید دې چه ﴿وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾ [کوم سړې په تاسو کښې داسې کوی هغه د برابرې لارې نه بې لارې شو] او انجام د ګمراهانو خو معلوم دی چه ﴿إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاءً﴾ [که ددوی په تاسو لاس ورسی نو] فورا به [د دښمنئ اظهار وکړی او] هغه اظهار د دښمنئ دا چه ﴿وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُم بِالسُّوءِ﴾ [په تاسو به د بدئ] ضرر رسانئ [لاسونه اوږدې وچلوی] دا خو دنیوی نقصان دې [او] دینی ضرر دا چه ﴿وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ﴾ [هغوی دا خبره غواړی چه تاسو کافر شئ] پس داسې خلق کله

ددوستئ قابل دی اوکه ددوستئ په باره کښې تاسو سره دخپل اهل وعيال خيال وی نو ښه پوهه شئ چه ﴿لَنْ تَنْفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَآ أَوْلَادُكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ [ستاسو رشته دار او اولاد د قيامت په ورځ ستاسو] هيڅ [په کار نه راځی ﴿يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ﴾ الله تعالى به ستاسو په مينځ کښې فيصله وکړی ﴿وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ﴾ او الله تعالى ستاسو ټول عملونه ښه وينی] پس د هر عمل فيصله به ټيك ټيك وکړی پس که ستاسو عملونه موجب د سزا وی نو د دغې سزانه اولاد او خپلوان تاسو نه شی بچ کولې نو بيا د دوی د رعايت د پاره د الله تعالى د حکمونو نه خلاف کول ډير بد کار دې او په دې سره د مالونو ناقابل رعايت کيدل نور زيات ظاهر دی وړاند په ذکر شوی حکم باندې تحريض يعنی د عمل د تيزولو د پاره د حضرت ابراهيم ﷺ قصه ارشاد ده چه ﴿قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْٓ إِبْرٰهِيْمَ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ﴾ [تاسو د پاره په ابراهيم ] ﷺ [کښې او په هغو خلقو کښې کوم چه] [په ايمان او اطاعت کښې] [د هغه سره شريك حال وو يو عمده نمونه ده] يعنی په دې باره کښې د کفارو سره داسې سلوك ساتل پکار دی لکه څنگه چه ابراهيم ﷺ او د دهٔ تابعدارو کړې وو ﴿إِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللهِ﴾ [هر کله چه دې ټولو] په مختلفو وختونو کښې د [خپل قوم] خلقو [ته ووئيل چه مونږ تاسو نه او د کومو چه تاسو د الله تعالى نه سوا عبادت کوئ د هغوی نه بيزاره يو] مختلف وختونه څکه ووئيلې شو چه ابراهيم ﷺ څه وخت اول دا خبره خپل قوم ته کړې وه هغه وخت دې بالکل يوازې وو بيا چه به کوم کوم د دهٔ سره کيدل د کفارو نه به ئې قطع تعلق قولا اوفعلا کولو وړاند د دې بيزارئ بيان دې چه ﴿كَفَرْنَا بِكُمْ﴾ [مونږ تاسو] يعنی د کفارو او د دوی د معبودانو [نه منکر يو] يعنی ستاسو د عقيدې او د معبودانو د عبادت نه منکر يو دا خو بيزاری په اعتبار د عقيدې شوه [او] بيزاری په اعتبار د معاملې او سلوك داده چه ﴿وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَآءُ أَبَدًا﴾ [په مونږ او تاسو کښې د هميشه د پاره دښمنی او بغض] زيات [ظاهر شو] څکه چه بنا د دښمنئ اختلاف د عقيدو دې او اوس د دې زيات اعلان وشو نو د دښمنئ هم زيات اظهار وشو دښمنی او بغض قريب قريب دی او د دواړو جمع کول د تاکيد د پاره دی او دا دښمنی به زمونږ تاسو سره هميشه وی ﴿حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللهِ وَحْدَهٗٓ﴾ [تر څو پورې چه تاسو په الله واحد باندې ايمان رانه وړئ] غرض ابراهيم ﷺ او د دهٔ تابعدارو د کفارو سره صفا قطع تعلق وکړو ﴿إِلَّا قَوْلَ إِبْرٰهِيْمَ لِأَبِيْهِ﴾ [ليکن د ابراهيم] ﷺ [دومره خبره خو د خپل پلار سره شوې وه] [د کومې نه چه په ظاهره د دهٔ سره د محبت او دوستئ احتمال وو] ﴿لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ﴾ [چه زهٔ به تا د پاره استغفار کوم او تا د پاره] د استغفار نه زيات ﴿وَمَآ أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللهِ مِنْ شَيْءٍ﴾ [ما ته د الله تعالى په وړاند د هيڅ خبرې اختيار نشته] چه د عا پرې قبوله کړم يا باوجود د ايمان نه راوړو تا لره د عذاب نه بچ کړم مطلب دا دې چه دومره خبره خو ابراهيم ﷺ کړې وه چه مطلب ئې په تاسو کښې څنو خلقو مطلق استغفار گڼرلې وو حال دا دې چه دلته د استغفار نورې معنې دی يعنی د هغه د پاره د دعا کول چه هغه ايمان راوړی او د مغفرت مستحق شی د کومې چه ټولو ته اجازت دې او په واقع کښې د اد قطع تعلق نه خلاف هم نه ده مگر د ظاهری صورت د تعلق او د ظاهری معنی د استغفار په اعتبار سره صورتا دې لره مستثنی کولې شی دا خبرې خود حضرت ابراهيم ﷺ د خپل قوم سره وشوې وړاند د دوی ﷺ د دعا مضمون دې يعنی د کفارو نه ئې قطع تعلق وکړو هغوی په دې باره کښې الله تعالى ته عرض وکړو چه ﴿رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا﴾ [اے زمونږ پروردگاره مونږ] د کفارو سره د بيزارئ او د دښمنئ د اعلان په معامله کښې [په تا توکل

کوواو] [خاص ته زمونږ دټولو مهماتو او مشکلاتو کفالت او د دښمنانو دازارونو نه حفاظت وفرمائي او دارنګ په ایمان راوړو کښي] ﴿وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا﴾ خاص [ستاطرف ته رجوع کوواو] عقیده لروچه ﴿وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ﴾ [ستاطرف ته] دټولو [واپسی ده] پس ددې اعتقاد په وجه مونږ چه دکفارونه کوم چه اعلان دبیزارۍ کړې دې محض په خلوص سره موکړې دې په دې کښي څه دنیوي غرض نشته اوددې نه مقصود تفاخر هم نه دې بلکه عرض دسوال دې او ﴿رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [اے زمونږ پروردګاره مونږ لره دکافرانو دپاره امتحان مه جوړوې] یعنی چه ددې بیزارۍ په وجه په مونږ داکفارظلم زیاتي ونه کړی ﴿وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا﴾ [اواے زمونږ پروردګاره زمونږ ګناهونه معاف کړې ﴿إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ بیشکه ته زبردست حکمت والا یې] او په هرشان تاته قدرت حاصل دې ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ﴾ [بیشکه په دې خلقو کښي] یعنی په ابراهیم ﷺ او دده په متبعینو کښي [تاسو دپاره یعنی دداسې سړی دپاره عمده نمونه ده کوم چه دالله تعالی] په وړاند دتللو [اودقیامت دورځې] دراتللو [عقیده لرې] یعنی داعقیده مقتضی ده په دې باره کښي داتباع ابراهیمی ﷺ [او] وړاند په بل طرز وعیددې لکه چه ددې نه وړاند په وَمَن يَفْعَلْهُ کښي وعید راغلې دې یعنی ﴿وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ﴾ [څوک چه] ددې حکم نه [مخ واړوی پس] ضرر به دده وی څکه چه [الله تعالی] خو [بالکل بې نیازه او] په وجه دجامع الکمالات کیدو [لائق دحمددې]

## معارف او مسائل

ددې سورت روميې برخه کافرانو او مشرکانو سره د دوستانه تعلقاتو قائمولو په حراموالی او منع کیدو کښي راغلې ده او ددې دنازلیدو یوه خاص واقعه ده.

**شان نزول**: تفسیر قرطبی کښي د قشیري او ثعلبی په حواله سره بیان شوی دی چې د بدر د غزا نه پس د مکې د فتح نه روميې د مکې مکرمې یوه سندرغاړې ښځه اول مدینې منورې ته راغله. ددې نوم ساره وو. نبی کریم ﷺ د هغې نه تپوس اوکړو چې هجرت دې اوکړو ؟ هغې ورته اووئیل چې نه. بیا ئې ورته اووئیل چې مسلمانه شوې راغلې ؟ هغې اووئیل چې نه. بیا ئې ورته اووئیل چې بیا په څه غرض سره راغلې یې ؟ هغې اووئیل چې تاسو خلق دمکې مکرمې د اعلی خاندان خلقو یئ هم په تاسو کښي زما ګزاره وه. اوس د مکې لوئې سرداران خو د بدر په غزا کښي قتل کړې شو او تاسو دلته راغلئ څکه مې ګزاره ګرانه شوه. سخته ضرورتمنده او حاجتمنده شوې تاسو له راغلم چې ماسره مدد اوکړئ. نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې ته د مکې مکرمې کسبې سندرغاړې یې هغه د مکې خوانان څه شو ؟ [چې په تاباندې به ئې د پیسو باران کولو] هغې اووئیل چې د بدر د واقعې نه پس د هغوی تقریبونه او د غزلو مجلسونه ختم شو] د هغه وخت نه زه چا نه یم بللې. نبی کریم ﷺ بنی عبد المطلب ته د مدد کولو دپاره اوفرمائیل، هغوئ ورته څه نقدې پیسې او جامې ورکړې او رخصت ئې کړه.

دا هغه زمانه وه چې دمکې مکرمې مشرکانو صلح حدیبیه ماته کړې وه. نبی کریم ﷺ دمکې مکرمې کافرانو باندې د حملې کولو اراده کړې وه او تیاری ئې هم کړې وه. اودا دعا ئې هم کړې وه چې زمونږ راز دې د مکې مکرمې په خلقو باندې د وخت نه وړاندې ښکاره نشي. بل خوا په مهاجرین اولین کښي یو صحابی حاطب بن ابی بلتعه ﷺ چې په اصل کښي دیمن او سیدونکې وو او په مکه مکرمه کښي مقیم شوې وو. هلته ددوئ ﷺ څه قام قبیله نه

وه. هم هلته مسلمان شو ، بیا یې هجرت کولو سره مدینې منورې ته راغلو د دوئ بال بچ هم په مکه مکرمه کښې وو ، د نبی کریم ﷺ او ډیرو نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم د هجرت کولو نه پس به کافرانو هغه مسلمانانو ته کوم چې مکه مکرمه کښې پاتې شوې وو آزارول او پریشانه کول دکومو مهاجرینو خپل خپلوان چې مکه کښې موجود وو ، هغوئ څه قدرې په حفاظت کښې وو، لیکن ابی بلتعه رضی الله عنه ته دا فکر وو چې زما د بال بچ څوک مرستیال هلته نشته . دوئ رضی الله عنه د خپل بال بچ د حفاظت کولو دا موقعه غنیمت اوګڼله چې په اهل مکه باندې څه احسان اوکړی نو هغوئ به د دوئ په بال بچ باندې ظلم نه کوی.

هسې خو دوئ رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته د الله ﷻ په فتح ورکولو باندې یقین ساتلو. خیال ئې دا وو که ما دا راز ښکاره کړو نو نبی کریم ﷺ یا اسلام ته به څه نقصان اونه رسی . که د نبی کریم ﷺ د حملې د ارادې نه مې د مکې خلق خبر کړل نو زما د بال بچ د حفاظت انتظام به اوشی ، په دې بنا دوئ رضی الله عنه نه دا غلطی اوشوه چې ددې خبر ورکولو پټ خط ئې دغې ساره نومې ښځې ته ورکړو . [ قرطبی ، مظهری ][1].

نبی کریم ﷺ معاملې دې نه د وحی په ذریعه خبر کړې شو او داهم دوی ﷺ ته معلومه شوه چې دغه ښځه اوس د روضهٔ خاخ مقام ته رسیدلې ده .

صحیحینو او مسلم کښې د علی رضی الله عنه په روایت راغلی دی چې نبی کریم ﷺ ماته او ابی مرثد او زبیر بن العوام رضی الله عنهما ته حکم اوکړو چې په آسونو سوارهٔ دې دغې ښځې پسې روضهٔ خاخ مقام ته اورسی او هغې سره د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه یو لیکلې شوې خط د مشرکین مکه په نوم باندې لیږلې دې ، هغه دې نه واخلئ ، علی رضی الله عنه فرمائیلی چې مونږ دحکم مطابق په تیزئی سره هلته اورسیدو هلته موجوده ښځه په اوښ سوره پیدا شوه . مونږ دهغې نه دَ خط راویستلو غوښتنه اوکړه ، هغې اوونیل چې ما سره هیڅ خط نشته ، مونږ دهغې اوښ چوکړو تالاشی مو واخسته خو خط مو ورسره پیدانه کړو. مونږ په زړه کښې اوونیل چې د رسول الله ﷺ خبر خو د روغ نشی کیدې ، ښځې دغه خط ضرور چرته پټ کړې دې ځکه مو ورته اوونیل چې یا خط راوُباسه او یا په تالاشئ کښې دې جامې اوباسو.

کله چې زمونږ دا قصد ورته معلوم شو نو دخپل لنګ نه ئې دغه خط راوویستو مونږ چې دغه خط نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړو نو عمر فاروق رضی الله عنه عرض اوکړو چې هرکله دې کس الله ﷻ ،رسول ﷺ ، او ټولو مسلمانانو سره دهوکه کړې ده ، ددوئ د سټ وهلو دپاره اجازت راکړئی .

نبی کریم ﷺ د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چې ولې دې دا کار کړې دې ؟ هغوئ اوفرمائیل چې اوس هم زما په ایمان کښې لږ شان فرق نشته اصل خبره داده چې زما بال بچ په مکه مکرمه کښې دی ، هلته مې څوک خپلوان نشته چې دهغوئ حفاظت اوکړی نو ونیل مې چې اهل مکه سره دغه احسان د خبر ورکولو اوکړم چې هغوئ مې ددې به بدل کښې په بال بچ باندې خیال ساتی.

نبی کریم ﷺ چې دَ حاطب رضی الله عنه بیان واوریدو نو اوفرمائیل چې دې رښتیا وائی ددهٔ باره کښې د خیر نه بغیر بل څه مه وایئ . فاروق اعظم رضی الله عنه دَ خپل ایمانی غیرت په بنا بیا د هغوئ د

[1] تفسیر القرطبی [ ج:۱۸ص:۵۰ و ۵۱ ] و تفسیر المظهری[ج:۹ص:۲۵۸]

وژلو اجازت اوغوښتو نو نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چې دې بدري دې ، دې د بدر په غزا کښې شریک شوي دې او ددوئ باره کښې الله ﷻ د بخښنې وعده کړې ده. ددې په آوریدو سره د عمر فاروق رضي الله عنه په سترګو کښې اوښکې راغلې او عرض ئې اوکړو چې الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ ته دحقیقت علم دې. [ داد بخاري روایت کتاب المغازي د غزوة بدر په بیان کښې دی په حواله د ابن کثیر ]( ).

او په څینې روایتونو کښې د حاطب رضي الله عنه دا قول هم دې چې ما دا کار اسلام او مسلمانانو ته ضرر رسولو دپاره هیڅ کله نه دې کړې ، ولې چې زما یقین وو چې ستاسو ﷺ فتح به وی که اهل مکه خبر هم شي نو بیا به هم تاسو ته څه نقصان نه وی.

ددې واقعې په بنا د سورة ممتحنه ابتدائي آیتونه نازل شو چې په کښې زورنه اوخبرداري دې او مسلمانانو دپاره کافرانو سره هر قسم دوستانه لړل حرام ګرځولي شوي دي.

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ﴾ یعنی اې ایمان والو ! زما او خپل دښمن دوستان مه جوړوئی چې تاسو ورته ددوستئ پیغام ورکړئی. دې کښې دغې ذکر شوي واقعې ته اشاره ده چې دغسې خط لیکل هم کافرانو ته د دوستئ پیغام لیږل دی ، دلته د کافرانو په خائې د ﴿عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ﴾ عنوان راوړو سره دې ته اشاره اوکړې شوه چې دالله ﷻ اوخپلو دښمنانو د دوستئ طمع لړل سخت دهوکه او خطا وتل ښکه دی چې دوئ په الله ﷻ هم اوپه تاسو باندې هم هیڅ قسم صرفه نه کوی ښکه ترې ځان ساتئ. بلکه دې اړخ ته اشاره شوه چې کافر د کفر په حالت کښې د هیڅ یو مسلمان دوست نشي جوړیدې ، ولې چې هغه دالله ﷻ دښمن دې نو د مسلمان به څنګه دوست جوړ شي چې دالله ﷻ د دوستئ دعویدار دی.

﴿وَقَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ﴾ دحق نه مراد قرآن پاک یا اسلام دې، په دې آیت کښې د هغوی دکفر اصل سبب چې عداوت دې د هغې د بیانولونه پس ئې دهغوی ظاهری عداوت هم اوخودلو چه هغوی تاسو اوستاسو رسول ﷺ دهغوی دخوږ وطن نه اوویستلی اود دغه ویستلو وجه څه دنیاوی سبب نه وو بلکه صرف ستاسو ایمان ددې سبب وو. نودا خبره ښکاره شوه چې ترکومې چې تاسو مومنان یئی هغوی ستاسو دوستان کیدې نه شي. اشاره دې خبرې طرف ته ده لکه څنګه چې حاطب رضي الله عنه خیال کړې وو چه په هغوی به څه احسان اوکرم نوهغوی به زما د بال بچ حفاظت کوی. داخیال غلط وو ښکه چې هغوی ستاسو د ایمان د وجې ستاسو دښمنان دی. ترکومې پورې [ الله تعالی دې نه کړی ] چه ستاسو ایمان سلب نکړی هغوی نه د څه قسم دوستئ او تعلق توقع لړل دهوکه ده..

﴿اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِيْ سَبِيْلِيْ وَابْتِغَآءَ مَرْضَاتِيْ﴾ په دې کښې هم اشاره دې ته ده چې که ستاسو هجرت واقعې د الله ﷻ په خاطر اود نبي کریم ﷺ د رضا دپاره وو نو د الله ﷻ دښمن نه په دې صورت کښې څه طمع کیدیشی چې هغه به ستاسو څه لحاظ اوساتی ؟

﴿تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ۖ وَاَنَا اَعْلَمُ بِمَآ اَخْفَيْتُمْ وَمَآ اَعْلَنْتُمْ﴾ په دې کښې داهم اوخودلې شو چې کوم خلق کافرانو سره پټه دوستی ساتی ، هغه به هم ښکاره ښکه شي چې الله ﷻ ستاسو د پټ

( ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۸ ص: ۸۲ و ۸۳] وصحيح البخاري كتاب المغازي باب فضل من شهد بدرا [ج: ۲ ص: ۵۶۷ ]

او بیکاره هر حالت او عمل نه خبر دي. څنګه چې دې واقعه کښې هم الله ﷻ خپل پیغمبر په دغې سازش باندې دوحی په ذریعه خبر کړو او هغه قابو کړې شو.
﴿إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاءً وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُم بِالسُّوءِ﴾ یعنی ددې خلقو نه دا طمع لرل چې هغوی سره د وس بر کیدو به تاسو سره څه رواداری اوستاسو لحاظ اوکړی؟ دَدې هیڅ امکان نشته دې. د دوی چې کله هم په تاسو باندې غلبه حاصله شی نو دهغوی لاسونه او ژبې به ستاسو د بدئی اوخرابئی نه سوا دَ بل هیڅ څیز طرف ته اوچت نه شی.
﴿وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ﴾ دې کښې اشاره ده چې لکه تاسو دَهغوی طرف ته دَ دوستئی لاس وړاندې کوئی نو دهغوی دوستی به صرف ستاسو دَ ایمان په قیمت وی. ترڅو چې تاسو په کفر کښې راګیر نه شئی هغوی به کله هم تاسو نه راضی نه شی.
﴿لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ یعنی د قیامت په ورځ به ستاسو خپلولئ او ستاسو اولاد ستاسو پکار رانشی. الله ﷻ به دا ټول تعلقات ستاسو ترمینځه ختم کړی، مور، پلار، نه به اولاد تښتی، په دې کښې د حاطب رضی الله عنه د عذر تردید داسې دې چې کوم اولاد سره د ښیګړې په خاطر حاطب رضی الله عنه داکار کړې وو هغه اولاد به هم د قیامت په ورځ ستاسو پکار رانشی. او الله ﷻ نه هیڅ پټ پناه نه دی.
اوس په وړیسې آیتونو کښې کافرانو سره د تعلق پریخودو تائید او تاکید دَ پاره دَ ابراهیم علیه السلام واقعه ذکر کړې شوې ده چې هغوئ علیه السلام خپل ټول مشرک خاندان سره یواځې د بائیکاټ اعلان نه بلکه ورسره د دښمنئ اعلان کړې وو او دا ئې خودلی وو چې تر څو پورې تاسو ایمان نه وی راوړې او دخپل شرک نه منع نشئ زمونږ اوستاسو ترمینځه به د بغض عداوت دیوال ولاړ وی. دَ ﴿قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ﴾ هم دا مطلب دې.

**د یو شبهې جواب:** پورته آیت کښې مسلمانانو ته دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په اسوهٔ حسنه او سنت باندې دَ تللو تاکید فرمائیلې شوې دې اودَ ابراهیم علیه السلام نه دَ خپل مشرک پلار دپاره استغفار کول ثابت دی دکوم ذکر چه په سورت توبه وغیره کښې راغلې دې. نودَ اتباع سنت ابراهیمی حکم سره چاته شك شبه کیدې شوه چه دَ خپل مشرك مور پلار یادَ خپلوانو دپاره دَ مغفرت دعا کول هم په دې کښې داخل دی. دا جائز کیدل پکار وو. په دې وجه دَ دې اسوهٔ ابراهیمی دَ اتباع نه داسې مستثنی کولو سره فرمائیلی یې دی چې په نورو ټولو څیزونو کښې دَ اسوهٔ ابراهیمی اتباع لازم ده مګر دهغوی ددې فعل اقتداء دمسلمانانو دَپاره جائز نه ده چې دَ مشرك مور پلار یا خپلوانو دَپاره دَ مغفرت دعا اوکړی. لیکن آیت ﴿إِلَّا قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ﴾ مطلب هم دغه دې. اودَ حضرت ابراهیم علیه السلام عذر په سورت توبه کښې راغلې دې چې هغه دَ پلار دَ پاره د استغفار وعده دَ ممانعت نه وړاندې کړې وه. یانې په دې ګمان باندې کړې وه چې دَهغه په زړه کښې ایمان راغلې دې. کله چه معلومه شوه چې هغه دَ الله دښمن دې نودَ دې نه ئې هم دَ برائت او بیزارئی اعلان اوکړو. ﴿فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ﴾ آیت هم دغه مطلب دې.
او ځینې مفسرینو حضراتو دَ ﴿إِلَّا قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ﴾ استثنی ته استثناء منقطع ګرځولې ده، دکوم حاصل چې دادې ابراهیم علیه السلام دَخپل پلار دپاره استغفار دَ هغه د اسوهٔ ابراهیمی علیه السلام منافی نه

دی ځکه چې هغوی په دې بناء باندې استغفار کړې وو چې ابراهيم عليه السلام ګمان کړې وو چې هغه مسلمان شوي دي. دغه په استغفار کولو کښې هيڅ بدی نشته دی [قرطبی] (۱). خلاصه دا چه په مذکوره تفسير کښې هم دا صورت اختيارولو سره تفسير کړې شوي دی. والله اعلم.

عَسَى اللّٰهُ | أَنْ يَّجْعَلَ
نزدې دی الله | چې پيدا کړی
دا څه عجيبه نه ده | چې الله ﷻ

بَيْنَكُمْ | وَبَيْنَ الَّذِيْنَ | عَادَيْتُمْ | مِّنْهُمْ | مَّوَدَّةً
په منځ ستاسو کښې | او په منځ دهغه کسانو کښې | چې دشمني لرئ تاسو | دهغوئ سره | مينه
ستاسو او دهغې کسانو په مينځ کښې محبت پيدا کړی | چې [ئن] ورسره ستاسو دشمني ده

وَاللّٰهُ | قَدِيْرٌ | وَاللّٰهُ | غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ | لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ | عَنِ الَّذِيْنَ
او الله | قادر دی | او الله | ببښونکي مهربانه دی | نه منع کوی تاسو لره الله | دهغه کسانو نه
او الله ﷻ قادر دی | او الله ﷻ ببښونکي زيات مهربان دی | الله ﷻ تاسو دهغه چا نه نه منع کوی

لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ | فِي الدِّيْنِ | وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ | مِّنْ دِيَارِكُمْ
چې جنګ ئې اونه کړو ستاسو سره | په دين کښې | اووې نه ويستلئ تاسو | دکورونو ستاسو نه |
چې ددين په باره کښې ئې تاسو سره جنګ نه وی کړی | اونه هغوئ تاسو دخپلو کورونو نه ويستلی يئ

أَنْ تَبَرُّوْهُمْ | وَتُقْسِطُوْا إِلَيْهِمْ | إِنَّ اللّٰهَ | يُحِبُّ | الْمُقْسِطِيْنَ
چې تاسو نيکی اوکړئ | او انصاف اوکړئ دهغوئ سره | بيشکه الله | خوښوی | انصاف کونکی خلق |
چې تاسو هغوئ سره ښه سلوک کوئ | او انصاف ورسره کوئ | بيشکه انصاف کونکی کسان دالله ﷻ خوښ وی

إِنَّمَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ | عَنِ الَّذِيْنَ | قٰتَلُوْكُمْ | فِي الدِّيْنِ
بيشکه منع کوی تاسو لره الله | دهغه کسانونه | چې جنګ ئې اوکړو ستاسو سره | په دين کښې |
الله ﷻ خو تاسو دهغه خلقو د دوستئ نه منع کوی | چې ددين په باب کښې درسره جنګيدلی دی

وَأَخْرَجُوْكُمْ | مِّنْ دِيَارِكُمْ | وَظٰهَرُوْا | عَلٰى إِخْرَاجِكُمْ
اووې ايستلئ تاسو | دکورونو ستاسو نه | او امداد ئې اوکړو ديويل سره | په ايستلو ستاسو باندې |
او هغوئ تاسو دخپلو کورونو نه ويستلی يئ | او ستاسو په ويستلو کښې ئې ديوبل

أَنْ تَوَلَّوْهُمْ | وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ | فَأُولٰٓئِكَ
چې تاسو دوستی اوکړئ دهغوئ سره | او څوک چې دوستی کوی دهغوئ سره | نو هم هغوئ |
سره مدد کړې دی | او څوک چې دغې خلقو سره دوستی کوی | نو هم دغه خلق

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۵۷]

| هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ |
| --- |
| ظالمان دی |
| ظالمان دی |

## آسان ترجمه قرآن

لرذي ده، چه الله تعالٰی ستاسو او کومو خلقو سره چه ستاسو دښمني ده، د هغوی په مینځ کښې دوستي پیدا کړي، او الله تعالٰی لوئي قدرت والا دې، او الله تعالٰی ډېر بخښونکې او ډېر مهربان دې الله تعالٰی تاسو ددې خبرې نه نه منع کوي، چه کومو خلقو تاسو سره د دین په معامله کښې جنګ نه دې کړې، او تاسو ئې ستاسو د کورونو نه ویستلي نه یئ، چه هغوی سره تاسو د څه نیکئ یا انصاف معامله او کړئ. یقیناً الله تعالٰی د انصاف کونکو سره مینه کوي الله تعالٰی خو تاسو ددې خبرې نه منع کوي، چه کومو خلقو تاسو سره د دین په معامله کښې جنګ کړې دې، او تاسو ئې د خپلو کورونو نه ویستلي یئ. او ستاسو په ویستلو کښې ئې د یو بل مدد کړې دې چه تاسو دهغوی سره دوستي او کړئ [یعنی دوستي ورسره مه کوئ]، او کوم خلق چه دهغوی سره دوستي او کړي، هغوی ظالمان خلق دی.

## خلاصه تفسیر

اوچونکه دَدوی دَ دښمنئ په اوږیدو دمسلمانانو سره فکرکیدي شوڅه ورته دخپلولو په قطع کولورنج کیدي شو په دې وجه په طور دخوشخبرئ وړاند پیشینګوئي فرمائي چه ﴿عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ عَادَيْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً ؕ﴾ [دالله تعالی نه امید دې] یعنی [دهغه] وعده ده [چه په تاسو کښې او په هغوخلقو کښې دکومو سره چه ستاسودښمني ده دوستي پیداکړي] اګرچه دخنوسره وی یعنی هغوی لره مسلمانان کړی چه دښمنی په دوستئ کښې بدله شي [او] داڅه بعیده مه ګنړئ ځکه چه ﴿وَاللّٰهُ قَدِيْرٌ ؕ﴾ [الله تعالی لره لوئ قدرت دې] چنانچه دمکې دفتح په ورځ ډېر خلق په خوشحالئ سره مسلمانان شول مطلب داچه اول خوکه قطع تعلق دهمیشه دپاره وې بیابه هم په وجه دماموربه واجب العمل وو بیا خصوصاهرکله چه دلږې مودې دپاره وی اوبیاپه مشارکت دایمان سره به دوستي اوتعلق دپخوا په شان راواپس شي نوهیڅ دفکرخبره نه ده [او] تراوسه چه دچانه چه ددې حکم خلاف خطاشوې ده دکومې نه چه اوس هغه توبه ګارشوې دې نو ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝﴾ [الله تعالی] ددۀ دپاره [بخښونکې مهربان دې] اوتردې پورې خو ددوستانه تعلقاتو په نسبت حکم فرمانیلې وو چه دهغوی سره قطع تعلق واجب دې وړاندې احسانمندو تعلقاتو دحکم تفصیل فرمائي هغه داچه ﴿لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ﴾ [الله تعالی تاسو لره دهغوخلقو سره داحسان اوانصاف دسلوك کولو نه نه منع کوي کوم چه تاسو سره ددین په باره کښې نه دی جنګیدلی ﴿وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْا اِلَيْهِمْ ؕ﴾ او تاسولره ئې ستاسو دکورونو نه نه دی ویستلی] مرادهغه کافران دی کوم چه ذمي یا مصالح دی یعنی دنیکئ سلوك ددوی سره جائز دې باقي پاتې شو دعدل اوانصاف منصفانه سلوك نو په دې کښې دذمي یا مصالح شرط نشته بلکه داخو دهرکافر بلکه دخاروی سره هم واجب دې په دې ایت کښې دعدل اوانصاف نه مراد محسنانه سلوك کول دی په دې وجه ئې دمصالحینو سره مخصوصه کړه ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۝﴾ [الله تعالی دانصاف کوونکو سر

محبت ساتي] البته ﴿إِنَّمَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ قٰتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ﴾ [صرف دهغوخلقو سره ددوستئ] يعنى نيكئ اواحسان [كولونه الله تعالى تاسولره منع كوي كوم چه تاسوسره ددين په باره كښې جنګيدلى دى] خواه بالفعل يا بالعزم ﴿وَأَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ﴾ [اوتاسو لره ئې ستاسو دكورونو نه ويستلي نى او] كه ويستلي ئې هم نه يئ ليكن ﴿وَظٰهَرُوْا عَلٰى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ﴾ [ستاسو په ويستلوكښې] ئې دويستونكو [مددكړې وى] يعنى [دهغوى سره] شريك شوى وى خواه دهغوى په عمل كښې ئې شركت كړې وى يا عزم اراده ئې لرلې وى په دې كښې هغه ټول كافران راغلل دكومو سره چه دمسلمانانو څه معاهده دصلح يا عقدد ذمه نه وو دهغوى سره دنيكئ او احسان معامله جائز نه ده بلكه دهغوى سره جنګ اومقابله مطلوب ده ﴿وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ﴾ [اوڅوك چه دداسې خلقو سره ددوستئ] سلوك يعنى نيكى او احسان [كوى ﴿فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ پس هغه خلق به ظالمان وى]

## معارف او مسائل

تيرو شوؤ آيتونو كښې كفارو سره د دوستانه تعلق لرلو نه د سختې منع او حراموالى بيان راغلې دې اګر چې هغوئ كافرانو سره پخپلوئى كښې هر څومره نزدې دى صحابه كرامو ﷺ به د الله ﷻ اود نبى كريم ﷺ د حكمونوپه باره كښې نه دَ ذاتى خواهش پروا كوله نه د چا خپل او عزيز ، په دې عمل اوكړې شو چې په نتيجه كښې ئې كور په كور دا صورت راپيښ شو چې پلار مسلمان څوئې ئې كافر ، يا ددې برعكس خبره به وه نو دوستانه تعلقات ختم كړې شو.

ظاهره ده چې په انسانى فطرت او طبيعت باندې دا عمل آسانه وو، څكه په دې آيتونو كښې د دوئ د مشكل زر آسانولو خبر واؤرولو.

د حديث پاك په ځينو روايتونو كښې دى چې دالله ﷻ څوك بنده كله چې دالله ﷻ د رضا لټولو دپاره خپل د خوښې ځيز پريږدى نو كله هم داسې كيږى چې الله ﷻ دغه ځيز ورته حلال كړى او وروې رسوى ، او كله ورته دهغې نه زيات غوره ځيزونه وركوى.

دې آيتونو كښې الله ﷻ دې ته اشاره اوفرمائيله چې نن څوك په كفر كښې دى او په دغې وجه هغوئ ستاسو او تاسو د هغوئ دښمنان يئ ، نيزدې ده چې الله تعالى به ستاسو دغه دښمنى په دوستئ سره بدله كړى. مطلب دادې چې هغوى به په ايمان راؤړلو سره ستاسو د نوى سره دوستان جوړ شى. دا پيشنګوئى هغه وخت ښكاره شوه چې د مكې په فتح كيدوسره هغه ټول كافران مسلمانان شوى وو چې ژوندى پاتې شوى وو او كوم چې وژلى شوى وو نو دهغوئ خو قيصه خلاصه شوه. [ مظهرى ](١).

قرآن پاك كښې ددې بيان په ﴿يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ أَفْوَاجًا﴾ كښې كړې شوې دې ، چې دا خلق به ډلې ډلې په كثرشمير كښې د الله ﷻ په دين يعنى اسلام كښې داخل شى. او هم دغسې اوشو. صحيح بخارى كښې د اسماء بنت ابى بكر ﷺ نه روايت دې چې ددې مور په حالت دكفر كښې دمكې مكرمې نه مدينې منورې ته راؤرسيدله. [ دمسند احمد په روايت دادهغه وخت خبره ده چې دصلح حديبيه نه پس د مكې قريشو سره ئې صلح شوې وه. د اسماء د مور نوم قبيله وو. خپلې لور بى بى ﷺ دپاره ئې څه دالن مدينې منورې ته راوړې نو هغه اسماء ے

(١) تفسير المظهري[ج:٩ص:٢٦١]

ترې هغه وخت قبولې نکړې اوتر هغې ئې خپل کور ته دننه نه راپرېخوده تر څو ئې چې نبی کریم ﷺ نه اجازت نه وو اخستې[1]. غرض دا چې اسماء د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چې مور مې زما ملاقات دپاره راغلې ده او کافره ده نو څه رويه ورسره اوکړم ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې خپلې مور بی بی سره خپل ولی اوپاله. دې باندې دا آیت مبارک نازل شو چې:

﴿لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِى الدِّيْنِ﴾ خینې روایتونو کښې راغلی دی چې دَ اسماء ﷺ مور قبیله ته صدیق اکبر ﷺ د جاهلیت په زمانه کښې طلاق ورکړې وو. اسماء ﷺ دهغې لور وه او دَدې دَ خور بی بی عائشه ﷺ مور بی بی بله وه چې ام رومان وه اوهغه مسلمانه شوې وه. [ ابن کثیر ، مظهری][2]. دې آیت مبارک کښې داسې کافرانو سره د احسان ،ښهسلوک او عدل و انصاف کولو هدايت کړې شوې دې چا چې مسلمانانو سره جنګ نه وی کړې او د هغوئ د کورونونه ئې په ويستلو کښې څه برخه نه وی اخستې. عدل و انصاف کول خو هر کافر سره ضروری دې چې په کښې ذمی ، صلح کوؤنکې او حربی کافر او دښمن ټول برابر دی بلکه په اسلام کښې خو عدل و انصاف کول څناور سره هم واجب دی. چې د هغې د طاقت نه پرې زيات نه دی اچول پکار ، د هغې د ګياه، واښو خصمانې پالنې او آرام خيال دې ساتی ، دې آيت مبارک کښې اصل مقصود د نيکئ او احسان کولو هدايت دې.

**مسئله**:: دې آيت نه ثابت شو چې نفلی خيراتونه ذمی او صلح کوؤنکی کافر ته ورکول هم جائز دی صرف حربی کافر ته ئې ورکول منع دی.

﴿إِنَّمَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ قٰتَلُوْكُمْ فِى الدِّيْنِ وَأَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيٰرِكُمْ وَظٰهَرُوْا عَلٰٓى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ﴾ ، دې آيت مبارک کښې د هغې کافرانو بيان دې چې د مسلمانانو په مقابله کښې جګړه کوی او مسلمانانو لره د خپلو کورونو نه ويستلو کښې څه حصه اخلی د هغوئ باره کښې ارشاد دافرمائی چې الله ﷻ دوی سره د دوستئ اوتعلق لرلو نه منع کوی په دې کښې د نيکئ او ښيګړې کولو نه څه منع نشته ، بلکه صرف د قلبی دوستئ او دوستانه تعلقاتو نه منع ده.

او دا منع يواځې د جنګيدونکو د ښمنانو سره نه بلکه ذميانو او صلح کوؤنکو کافرانو سره د زړه تعلق لرل او دوستی کول هم جائز نه دی ، دې نه تفسير مظهری دامسئله راويستلې ده چې حربی کافرانو سره هم په اسلام کښې عدل وانصاف ضروری دې او منع ئې صرف د موالات يعنی دوستئ نه شويده د نيکئ او احسان کولو نه منع نه ده شوې[3]. دې نه معلوميږی چې د احسان کولو سلوک هغې دښمنانو يعنی کافرانو سره هم روا دې چې په جنګ کښې مسلمانانو سره لګيا وی. البته د نورو نصونو په بنا باندې دا شرط شته چې ورسره په احسان کولو کښې مسلمانانو ته د څه نقصان او ضرر خطره نه وی ، ګنی نو بيا دوئ سره نيکی او ښيګړه کول جائز نه دی ، البته عدل و انصاف په هر حال کښې هر چا دپاره ضروری او واجب دې. والله سبحانه وتعالی اعلم

---

[1] ) مسند احمد ، حديث اسماء بنت ابي بكر الصديق ﷺ رقم الحديث:[۲۶۹۱۵] وصحيح البخاري كتاب الأدب ،باب صلة الوالد المشرك [ج:۲ص:۸۸٤]

[2] ) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۹۰] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۶۲]

[3] ) تفسير المظهري تحت هذه الأية [ج:۹ص:۲۶۲]

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ

| اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړی دی | کله چې راشي تاسو ته | مومناني ښځې

| ائي مومنانو ! څه وخت چې مومني ښځې هجرت اوکړي

مُهٰجِرٰتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ ؕ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ

هجرت کونکی | پس امتحان واخلئ دايمان دهغوئ | الله ښه پوهه دی | په ايمان دهغوئ باندې |

اوتاسو ته راشي[نو د هغوئ امتحان اخلئ] الله ﷻ دهغوئ دايمان [او نفاق] نه ښه خبر دی

فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ اِلَى الْكُفَّارِ ؕ

پس که چرې معلومې شي تاسو ته هغوئ | چې مومناني دی | پس مه واپس کوئ هغوئ کافرانو ته |

نو که ستاسو باور اوشي چې هغوئ مومني دی | نو کافرانو ته ئې مه واپس کوئ

لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ ؕ

نه هغوئ | حلالې دی | دپاره دهغوئ | او نه هغوئ [کافران] | حلاليږي | دپاره دهغوئ |

نه دغه ښځې کافرانو دپاره حلالې دی | اونه کافران سرې د هغوئ دپاره حلال دی

وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا ؕ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

او ورکړئ هغوئ [کافرانو] ته | هغه مهر | چې ورکړې ئې وو ښځوله | او نشته گناه | په تاسو باندې |

او[کافرانو]له هغه هرڅه ورکړئ اکوم چې هغوئ [په دې ښځو] خرڅ کړې وی[او په تاسو هيڅ گناه نشته

اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ ؕ

چې تاسو په نکاح سره واخلئ هغوئ | کله چه | ورکړئ تاسو هغوئ له | مهرونه دهغوئ |

که تاسو هغوئ سره نکاح اوکړئ | خو په دې شرط چې مهرونه ورته ورکوئ

وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَاسْئَلُوْا مَآ

او مه ساتئ تاسو په نکاح کښې | ښځې کافرانې [يخپله هم] | او اوغواړئ | هغه مهر چې

او چې کومې کافرانې ښځې دی | هغوئ سره [ازدواجي] تعلق باقي مه ساتئ | او چې څومره خرچ مو په هغوی

اَنْفَقْتُمْ وَلْيَسْئَلُوْا مَآ اَنْفَقُوْا ؕ

تاسو ورکړې وو[خپلو کافرو ښځوله [او دې غواړی هغوئ [هغه مهر چې هغوئ ورکړې وو خپلو مسلمانانو ښځوله

کړې وی | هغه ترې اوغواړئ | او هغوی [کافرانو] چې پرې کوم خرج کړې وی هغه دې [تاسونه] اوغواړی

ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ ؕ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ

دا حکمونه چې دی | دا حکم دالله دی | هم هغه فيصله کوی | په منځ ستاسو کښې | او الله

هم دا دالله ﷻ حکم دی | هغه په ستاسو په مينځ کښې فيصله اوکړی | ..........او الله ﷻ

عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝ وَاِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ

ډير پوهه دی | او دحکمت خاوند دی | او که پاتې شي ستاسو نه [يعنې ملاو نشي تاسو ته] | څه څيز

ډير پوهه صاحب د حکمت دی | او که چرې ستاسو په ښځو کښې يوه ښځه

مِّنۡ أَزۡوَٰجِكُمۡ إِلَى ٱلۡكُفَّارِ فَعَاقَبۡتُمۡ

دکافرو ښځو دمهرونو ستاسو نه | کافرانو ته | اوبيا سزا ورکړه تاسو [په غالب کيدو سره په هغوئ باندې]

کافرانو ته لاړه شي | اوبيا تاسو هغو [کافرانو] باندې غلبه حاصله کړه |

فَـَٔاتُواْ ٱلَّذِينَ ذَهَبَتۡ أَزۡوَٰجُهُم

پس ورکړئ تاسو | هغه کسانو له | چې تلې دی ښځې دهغوئ [هلته پاتې شوې دی]

نودچا دلاس نه چې ښځې وتلې دی [او کافرانو سره شاملې شوې وي] نو هغوئ ته د هغه مال په اندازه

مِّثۡلَ مَآ أَنفَقُواْۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ٱلَّذِيٓ أَنتُم

په مثل دهغې [يعنی هغومره مال] | چې ورکړې وو هغوئ | اواويريږئ دالله نه | هغه الله | چې تاسو

ورکړئ | کوم چې هغوی خرچ کړی ووا ..........او دهغه الله ﷻ نه ويريږئ | چې تاسو پرې

بِهِۦ مُؤۡمِنُونَ ﴿١١﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِذَا جَآءَكَ ٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ

په هغه باندې | ايمان راوړونکي يئ | اے نبی کله چې | راشی تاته مومنانې ښځې

ايمان راوړې دي | ..........اې پيغمبره ﷺ ! چې مومنې ښځې درته راشی

يُبَايِعۡنَكَ عَلَىٰٓ أَن لَّا يُشۡرِكۡنَ بِٱللَّهِ شَيۡـٔٗا وَلَا يَسۡرِقۡنَ

چې بيعت کوی ستاسره [په دې خبره چې هغوئ به نه شريکوی] دالله سره | هيڅ څيز [او نه به غلا کوی

اوددې خبرې بيعت درسره کوی [چې الله ﷻ سره به هيڅوک نه شريکوی [او غلا به نه کوی

وَلَا يَزۡنِينَ وَلَا يَقۡتُلۡنَ أَوۡلَٰدَهُنَّ وَلَا يَأۡتِينَ بِبُهۡتَٰنٖ يَفۡتَرِينَهُۥ

اونهٔ به زنا کوی | اونهٔ به وژنی اولاد خپل | اونهٔ به راتله کوی | په دروغو سره | چې جوړوی ئې هغوئ

اوزنا بهٔ نه کوی | او خپل بچې به نه وژنی | اود دروغو الزام به په چا نه لګوی | چې هغه ئې

بَيۡنَ أَيۡدِيهِنَّ وَأَرۡجُلِهِنَّ وَلَا يَعۡصِينَكَ فِي مَعۡرُوفٖ

په منځ دلاسونو او خپو خپلو کښې [يعنی دخپله خانه] | اونهٔ به نافرمانی کوی ستا | په نيکئ کښې |

په خپل مينځ کښې جوړ کړی وی ا..........او د نيکئ په کارونو کښې به

فَبَايِعۡهُنَّ وَٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُنَّ ٱللَّهَۖ إِنَّ ٱللَّهَ

پس بيعت اوکړه دهغوئ سره | او دبخښنې دعا اوغواړه | دپاره دهغوئ | دالله نه | بيشکه الله |

ستا نافرمانی نه کوی انو ته هغوئ سره بيعت اوکړه ا او دهغوئ دپاره د الله نه بخښنه غواړه ابيشکه الله

غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿١٢﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَوَلَّوۡاْ قَوۡمًا

ښښونکي مهربانه دي | اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | مهٔ کوئ دوستی | دهغه قوم سره

ښښونکې دير زيات مهربان دې | اې مومنانو ! هغه خلقو سره يارانې مه ساتئ

غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمۡ قَدۡ يَئِسُواْ مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِ كَمَا

چې غضب کړې دې الله | په هغوئ باندې | نااميد شوی دی | دآخرت نه | الکه څنګه چې |

چې د الله ﷻ په غضب اخته وی | د آخرت نه داسې مايوسه دی | لکه چې

| يَئِسَ الْكُفَّارُ | مِنْ أَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ |
|---|---|
| ناامید شوي دي کافران [ دخاوندانو | دقبرونو نه [يعنې چې پراته دي په قبرونو کښې ] |
| په قبرونو کښې پراته کافران چې مايوسه دي | |

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو! چه کله تاسو ته مسلمانانې زنانه هجرت اوکړي او راشي، نو تاسو د هغوی امتحان واخلئ، الله تعالٰی د هغوی د ایمان باره کښې ښه پوهیږي، بیا چه کله تاسو ته دا معلومه شي، چه هغه مومنانې زنانه دي، نو تاسو هغوی کافرانو ته واپس مه لیږئ. هغوی د دغې کافرانو دپاره حلالې نه دي، او هغه کافران ددوی دپاره حلال نه دي او هغې کافرانو چه څه (د مهر په صورت کښې) دوی باندې خرچ کړي وي هغه هغوی ته ادا کړئ او په تاسو باندې د دغې زنانو سره د نکاح په صورت کښې هیڅ ګناه نشته. هرکله چه تاسو د دوی مهرونه دوی ته ادا کړي وي، او تاسو د کافرو ښځو عزتونه په خپله قبضه کښې باقي مه ساتئ، او څه چه تاسو (په دغې کافرو ښځو باندې د مهر په صورت کښې) خرچ کړي وي، هغه تاسو (د هغوی د نوې خاوندانو نه) اوغواړئ او هغوی چه څه (په خپلو مسلمانو شوې ښځو باندې) خرچ کړي وي، هغه دې (د هغوی د نوې مسلمانانو خاوندانو نه) اوغواړي، دا د الله تعالٰی فیصله ده، هم هغه ستاسو په مینځ کښې فیصله کوي، او الله تعالٰی لوئې علم والا، او لوئې حکمت والا دې. اوکه ستاسو د ښځو نه څوک کافرانو ته لاړه شي، او ستاسو د لاسونو نه اوځي، بیا ستاسو نمبر راشي نو د کومو خلقو ښځې چه تلې وي، هغوی ته هغومره پیسې ادا کړئ څومره چه هغوی (په خپلو هغو ښځو باندې) خرچ کړي وي، او د الله تعالٰی نه ویریږئ، چه تاسو پرې ایمان راوړې دې. اے نبي علیه السلام: چه کله تاته مسلمانانې زنانه په دې خبره باندې بیعت کولو دپاره راشي، چه هغوی به الله تعالٰی سره هیڅ څیز شریک نه منې، او غلا به نه کوي، او زنا به نه کوي، او خپل اولاد به نه وژني، او نه به داسې بهتان تړي، چه هغوی د خپلو لاسونو او پښو ترمینځه جوړ کړې وي او نه به په نیک کار کښې ستا نافرماني کوي، نو ته هغوی سره بیعت اوکړه. او دهغوی په حق کښې د الله تعالٰی نه د مغفرت دعا کوه، یقیناً الله تعالٰی ډیر بخونکې ډیر مهربان دې. اے ایمان والو! هغې خلقو لره دوستان مه جوړوئ، په کومو باندې چه الله تعالٰی غضب فرمائیلې دې هغوی د آخرت نه داسې مایوسه شوې دي، څرنګه چه کافران خلق په قبرونو کښې دفن کړې شوې خلقو نه مایوس دي.

## خلاصه تفسیر

**د سبب نزول واقعه** دا ایتونه هم دیوخاص موقعې په حقله دي اوهغه موقع دصلح حدیبیه ده چه بیان ئې دسوره فتح په شروع کښې شوې دې منجمله ددې شرطونو نه کوم چه په صلح نامه کښې لیکلې شوي وو یوشرط داهم وو چه کوم سړې دمسلمانانو نه کافرانو ته لاړشي هغه به واپس ورکولې شي چنانچه ځنې مسلمانان سړي راغلل او واپس کړې شول بیا ځنې ښځې مسلمانانې شوې راغلې اودهغوی خپلوانو دواپسئ درخواست وکړو په دې داایتونه په حدیبیه کښې نازل شول په کوموکښې چه دښځود واپس کولو ممانعت وشو پس عموم دمضمون دصلح نامې په دې سره مخصوص اومنسوخ شو او دداسې ښځو په باره کښې څه خاص احکام

مقررکړي شول اوددې سره څه احکام داسې دښځو په باب کښې مقررشول کومې چه اول دمسلمانانو په نکاح کښې وې مګراسلام ئې قبول نه کړو او په مکه کښې پاتې شوې اوچونکه مداردې احکامو ددغوښځو مسلمانیدل دی په دې وجه طریقه دامتحان ئې هم وښودله پس په عام خطاب سره ارشاد فرمائی چه ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ﴾ [اے ایماندارو هرکله چه تاسوته مسلمانانې ښځې] ددارالحرب نه [هجرت وکړی راشی] خواه په مدینه کښې چه دارالاسلام دې خواه په حدیبیه کښې چه داسلامی لښکرځائ په حکم ددارالاسلام کښې دې لکه چه په کتاب الحدود دَ هدائ کښې دی ﴿فَامْتَحِنُوْهُنَّ ۭ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ﴾ [نوتاسو ددوی دمسلمانیدو [امتحان واخلئ] چه طریقه ئې وړاندې په خاص خطاب يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ کښې راځی اوپه دې امتحان کښې په ظاهری امتحان باندې بسوالې کوئ ځکه چه پس که هغوی لره [دهغوی] حقیقی [ایمان لره] خو هم الله تعالی ښه پیژنی [تاسو ته دَهغه تحقیق دَ سره کیدې نه شی] ددې امتحان له مخه [مسلمانانې وګنړئ نو هغوی لره کفاروته مه واپس کوئ] ځکه چه ﴿لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ﴾ [نه خو هغه ښځې هغوکافرانو لـه حلالې دی ﴿وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ ۭ﴾ اونه هغه کافران هغوښځولره حلال دی] ځکه چه دمسلمانې ښځې نکاح دکافرسړی سره مطلقا نه پاتې کیږی [او] په دې صورت کښې ﴿وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا ۭ﴾ دې کافرانو چه څه] دمهر په بابت کښې په دغوښځو [خرڅ کړی وی هغه هغوته واپس ورکړئ ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ ۭ﴾ اوتاسو لره به دهغو ښځو سره په نکاح کښې څه ګناه نه وی هرکله چه تاسو دهغوی مهرونه هغوئ ته ورکړئ ﴿وَلَا تُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ﴾ [او] اے مسلمانانو [تاسو دکافروښځو سره تعلقات باقی مه ساتئ] یعنی کومې چه ستاسو بیبیانې په دارالحرب کښې دکفر په حالت کښې پاتې شی دهغوی دنکاح تاسوسره ختمه شوه دهغوی دتعلقاتو هیڅ اثرباقی مه ګنړئ [او] په دې صورت کښې ﴿وَاسْـَٔلُوْا مَآ اَنْفَقْتُمْ﴾ [چه څه تاسو] دهغو ښځو په مهر کښې [خرڅ کړی وی] دهغوکافرانو نه [غواړئ او] دغه شان ﴿وَلْيَسْـَٔلُوْا مَآ اَنْفَقُوْا ۭ﴾ [څه چه هغو کافرانو] دمهرپه بابت کښې [خرڅ کړی وې هغه] [تاسونه] دا غواړی لکه چه بره ارشاد شوې دې ﴿وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا ۭ﴾ شایددا تکرار دَ معنون په اختلاف دعنوان ځکه وی چه ستاسو په ذمه چه کوم دنورو حق وی هغه زیات مؤکدوګنړئ ﴿ذٰلِكُمْ حُكْمُ اللّٰهِ ۭ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ۭ﴾ [دا] څه چه ووئیلې شول [دالله تعالی حکم دی] ددې تابعداری وکړئ [هغه ستاسو په مینځ کښې] داسې مناسب [فیصله کوی ﴿وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾ او الله تعالی لوئ علم او حکمت والا دی] دعلم اوحکمت مناسب احکام مقرر فرمائی ﴿وَاِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ اِلَى الْكُفَّارِ﴾ اوکه ستاسو په بیبیانو کښې [څوك بی بی د کافرانو سره دپاتې کیدو په وجه] بالکل [ستاسوپه لاس رانه شی] یعنی نه هغه ملاوشی ﴿فَعَاقَبْتُمْ فَاٰتُوا الَّذِيْنَ ذَهَبَتْ اَزْوَاجُهُمْ﴾ اونه ئې دمهربدل ملاوشی اوبیاکافرانوته دمهرورکولو [ستاسونوبت راشی] یعنی ستاسو په ذمه دچاکافرحق دمهرواجب الادا وی [نو] تاسودغه مهرهغوکافرانو ته مه ورکوی بلکه [دکومو] مسلمانانو [چه بیبیانې دلاسه وتلی وی] دکومو چه اوس ذکر وشوپه فَاتَكُمْ کښې ﴿مِّثْلَ مَآ اَنْفَقُوْا ۭ﴾ [څومره ] مهر [چه هغوی] په دې بیبیانو[خرڅ کړې وو دهغې برابر] ددې رقم واجب الادانه [تاسوهغوی ته ورکړئ ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ﴾ او دالله تعالی نه په کوم چه تاسوایمان لرئ ویره کوئ] او په واجبواحکامو کښې خلل مه اچوئ وړاند

په خاص خطاب کښې دکافرد ایمان دامتحان طریقه فرمائی چه ﴿یٰاَیُّهَا النَّبِیُّ﴾ [اے پیغمبر] صلی الله علیه وسلم ﴿اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ﴾ [هر کله چه مسلمانانې ښځې تاته] په دې غرض سره [راشی ﴿یُبَایِعْنَكَ عَلٰۤی اَنْ لَّا یُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَیْـًٔا﴾ چه تاسره په دې خبره کښې بیعت وکړی چه دالله تعالی سره به چالره نه شریکوی ﴿وَلَا یَسْرِقْنَ وَلَا یَزْنِیْنَ﴾ اونه به غلا کوی اونه به بدکاری کوی ﴿وَلَا یَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ﴾ اونه به خپلو بچولره قتلوی ﴿وَلَا یَاْتِیْنَ بِبُهْتَانٍ یَّفْتَرِیْنَهٗ بَیْنَ اَیْدِیْهِنَّ﴾ اونه به دبهتان اولاد راوړی کومو لره چه دلاسونو ﴿وَاَرْجُلِهِنَّ﴾ اودپښوپه مینځ کښې] دخاوند دنطفې نه دپیداشوی اولاد کیدو دعوی کوی [جوړوی] لکه په جاهلیت کښې چه به د ځنوښځو دستور وو چه دبل بچې به ئې راواخستواو ونیل به ئې چه دا زمادخپل خاوندنه بچې دې اویابه ئې دچاسره بدکاری وکړه اودهغه حرامې نطفې ته به ئې دخپل خاوند نطفه ونیله چه په دې کښې علاوه دزنا دګناه نه دخپل خاوندسره دغیر دبچی پیوست کول هم دی په کوم باندچه په حدیث کښې هم وعید راغلې دی [رواه ابوداؤد والنسائی] ([1]) ﴿وَلَا یَعْصِیْنَكَ فِیْ مَعْرُوْفٍ﴾ [او په مشروع خبروکښې هغوی به ستاخلاف نه کوی] په دې کښې تول شرعی احکام راغلل پس دغه ښځې که داشرطونه قبول کړی دکومو چه شرط عقیده دایمان ده اوالتزام دعمل شرط دکمال دایمان دې ﴿فَبَایِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ﴾ [نوته ددوی سره بیعت وکړه او ددوی دپاره دالله تعالی نه] د تیرو ګناهونو [مغفرت طلب کوه ﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ﴾ بیشکه الله تعالی بخښونکې مهربان دی] مطلب دادې چه کله ددې احکامو حق والې او واجب العمل والې وګنړی او اظهارئې وکړی نو هغه مسلمانې وګنړئ او هرخومره که په خپله په اسلام سره هم دتیرګناهونو مغفرت کیږی مګردلته داستغفار حکم یاخو په مکمل طور دمغفرت داثارو حاصلولو دپاره دې اویا حاصل ددې دعاده دایمان دقبول په کوم چه مغفرت مرتب کیږی ﴿یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا﴾ [اے ایماندارو ﴿لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ﴾ دهغوخلقو سره] هم [دوستی مه کوئ په کومو باندچه الله تعالی غضب کړې دی] مراد ددې نه یهود دی لکه چه داقول دالله تعالی دې په مائده کښې ﴿مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَیْهِ﴾ الایة ﴿قَدْ یَئِسُوْا مِنَ الْاٰخِرَةِ﴾ [یقینًا هغوی داخرت] دخیراوثواب [نه داسې نا امیده شوی دی ﴿كَمَا یَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ اَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ﴾ لکه چه کفارکوم چه په قبرونوکښې] دفن [دی] داخرت اوثواب نه [ناامیده دی] کوم کافرچه مرشی په وجه ددې چه دئ ته معائنه داخرت وشی په حقیقت دامر باند په یقین سره مطلع شي چه اوس زما بخشش هرګز نه شی کیدې چونکه موافق دایت ﴿یَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا یَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ﴾ ([2]) هم ستاسونبوت لره اودغه شان دنبی کریم ﷺ مخالف کافران او غیرناجی کیدلو لره ښه پیژنی اګر چه دعار اوحسدپه وجه ئې اتباع نه کوله په دې وجه ددوی په زړه سره یقین وو چه مونږ نجات موندونکی نه یو اګرچه دحسد نه په ظاهره ددې خلاف کوی پس حاصل داشو چه دکومو ګمراهی داسې مسلمه ده چه هغوی په زړه سره داتسلیموی دداسې ګمراهانو سره تعلق ساتل څه ضروری دی؟ اودادې نه شی ګنړلې چه کوم دسختې درجې ګمراه نه وی دهغه سره دوستی جائزده ددوستئ دجوازنه خو مطلق کفر

[1] ) سنن النسائی کتاب الطلاق باب التلغیظ فی الإنتقام من الولد[ج:۲ ص:۱۱۰] و سنن ابوداود، کتاب النکاح ، باب التلغیظ فی الإنتقام من الولد، [ج:۲ص: ۱۹۲۸]

[2] ) ترجمه:-دا خلق رسول کریم ﷺ داسې پیژنی لکه څنګه چې خپل خامن پیژنی.

مانع دي مگر په دې صفت سره دغه عدم جواز نور سخت شی اوشاید تخصیص ديهودو دلته
ځکه وی چه په مدینه کښې یهود زیات وو او بل دغه خلق مفسد او شریر هم زیات وو

## معارف او مسائل

**دصلح حدیبیه د ځینې شرطونو تفصیل** :: په سورة فتح کښې د حدیبیه دا واقعه په تفصیل سره راغلې ده . چې په دغې موقعه آخر د رسول الله ﷺ یو لوظنامه [معاهده] قریشو سره دلسو کالو دپاره اولیکلې شوه . ددغې معاهدې ځینې شرطونه داسې وو چې د هغې نه د مسلمانانو لاندې کیدل او دبې کیدل معلومیدل چې ګنی دغه لوطنامه ئې د خپلې کمزورئی په وجه کړیده . ځکه صحابه کرامو ﷺ په دې باندې غم غصه ښکاره کړه خو نبی کریم ﷺ د الله ﷻ په اشارو سره محسوسول چې زمونږ دا ځو ورځې دبې مغلوب پاتې کیدل بهٔ آخر همیشه دپاره دفتح مبین بنیاد جوړ شی ځکه ئې قبوله کړه او بیا د ټولو صحابه کرامو ﷺ هم تسلی اوشوه .

ددغې صلح نامې یو شرط دا هم وو چې دمکې مکرمې نه څوک که مدینې منورې ته لاړ شی نو هغه بهٔ واپس کولې شی اگر چې هغه مسلمانان شوی وی ، او د مدینې منورې نه مکې مکرمې ته راتلونکې بهٔ نشی واپس کولې ، ددې لوظنامې الفاظ عام وو چې نارینه او زنانه دواړه تر مراد اخستې شو .

کله چې دا لوظنامه مکمله شوه او اوس لا نبی کریم ﷺ په حدیبیه کښې تشریف فرما وو نو دغه وخت هم څو واقعات داسې راپیښ شو چې مسلمانانو دپاره ډیرې د آزمیښت وې ، یو واقعه د هغې څخه دا وه چې ابو جندل ﷺ مسلمان شوې ووچې قریشو په قیدخانو کښې اچولی وو د قریشو دمکې نه ئې په څه چل ځان راخلاص کړو او نبی کریم ﷺ ته راؤرسیدو ، صحابه کرامو ﷺ کښې دَ دوې په لیدلو سره سخته پریشانی خوره شو چې ددهٔ واپس کول به کافرانو ته راځی نو ظالم ته مظلوم دوباره ورکول څنګه کیدې شی؟

مگر نبی کریم ﷺ لوظنامه لیکلې وه ، او داصول شریعت دَ حفاظت او په هغې باندې پوخوالې دَ یوکس دَ وجې نه نشی پریخودې . او دې سره دَ حضورپاک ﷺ د بصیرت سترګې ډیر زر دَ دغه ټولو مظلومانو فاتحانه خلاصې لکه چه مشاهده کولو . طبعی خفګان او تکلیف خودَ ابوجندل واپس کولو کښې به حضورپاک ته یقیناً وو مگر حضورپاک دَ معاهدې دَ پابندئی دَ وجې نه هغه پوهه راپوهه کړو رخصت ئې کړو .

هم دې سره یوه بله واقعه داسې راپیښه شوه چې سعیده بنت الحارث الاسلیمه ﷺ چې مسلمانه شوې وه مگر د صیفی بن انصب کافر په نکاح کښې وه ، په ځینې روایتونو کښې ددغې کافر نوم مسافر المخزومی خودلې شوې دې . تر دغه وخت پورې کافر سره نکاح کول حرام شوی نه وو خواه سړې به کافر وو یا ښځه به کافره وه . ، دغه بی بی هم د مکې مکرمې نه په تیښته د نبی کریم ﷺ خدمت ته حاضره شوه ورسره دهغې خاوند هم حاضر شو او نبی کریم ﷺ نه ئې د هغې دواپسۍ غوښتنه اوکړه چې زما ښځه ده ماته دې واپس کړې شی ځکه چې تاسو پخپله دا شرط قبول کړې دې او تر اوسه پورې ددغې لوظنامې سیاهی او مهر هم اوچ شوې نه دې .

دې واقعه کښې دا آيتونه نازل شو چې په اصل کښې ورسره د مسلمانانو او مشرکانو تر مينځه نکاح کول حرام گرځولې شوې دی او ددې په نتيجه کښې دا هم چه کومه مسلمانه ښځه خواه د زنانه مسلمانيدل د ړومبې نه هم معلوم وی لکه ذکرشوی سعيده رضي الله عنها چې وه يا دهجرت په وخت دهغې مسلمانيدل په صحيح ډول ثابت شی. هغه که هجرت اوکړی او نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته راؤ رسی نو کافرانو ته ئې واپس کول نشته دې. ځکه چې خپل کافر خاوند دپاره هغه اوس حلاله پاتې نشوه ؟. [ په تفسير قرطبی کښې دا واقعه د ابن عباس رضي الله عنه په روايت سره نقل شوې ده ][1].

غرض دا چې ددې آيتونو په نازليدو سره دا په ډاګه شوه چې اوس د واپس کولو دا شرط صرف دنارينه باره کښې دې، دزنانه باره کښې دا د قبليدو وړ نه دې البته دومره خبره په کښې شته چې د هجرت کوونکې مسلمانې زنانه خاوند به ددې هغه مهر واپس کولې شی کوم چې پرې هغه خرچ کړې دې، نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم ددې آيت دا مطلب په ډاګه کړو او هغه بی بی ئې ورته واپس نکړه.

ځينو روايتونو کښې دی چې ام کلثوم رضي الله عنها بنت عتبه بن ابی معيط د مکې مکرمې نه نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته راؤرسيدله دهغوئ رضي الله عنهم دخاندان خلقو د بيان شوی شرط په بنا دهغې د واپس کولو غوښتنه اوکړه چې دا آيتونه پرې نازل شو. او ځينو روايتونو کښې دی چې ام کلثوم رضي الله عنها دعمرو بن العاص رضي الله عنه په نکاح کښې وه چې لا تر اوسه پورې مسلمان شوې نه وو، دې بی بی سره دوه روڼړه هم په تيښته او د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو، ورسره ددغې بی بی خاوند عمرو بن العاص هم حاضر شو او ددغې بی بی د واپس کولو غوښتنه ئې اوکړه. نبی کريم صلی الله عليه وسلم دشرط مطابق ددغې بی بی دواړه روڼړه عماره اووليد واپس کړو خو ام کلثوم ئې واپس نه کړه او وې فرمائيل چې دا شرط د نارينوؤ د واپس کولو باره کښې دې د زنانوؤ د واپس کولو باره کښې نه دې نو په دې باندې دا آيتونه دنبی کريم صلی الله عليه وسلم د تصديق دپاره نازل شو[2].

دغسې د زنانوؤ نور واقعات هم په دغې موقعه په روايتونو کښې راغلی دی. خو ددغې ټولو تر مينځه بې سمونې ځکه نشته چې کيديشی چې دغه ټول واقعات هم په دغه موقعه راغلی وی.

**ددغې شرط نه مبتشو مستثنی کېدل د وعدې ماتول نه دي بلکه د طرفينو په قبلولو سره ديو شرط وضاحت کول دي** :: د قرطبی د روايت نه خو معلوم شو چې د لوظنامې د شرط الفاظ اګر چې عام وو خو د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په نزد هغه د زنانوؤ لره عام او شامل نه وو ځکه ئې ددې وضاحت هم هلته په حديبيه کښې اوکړو او ددې په تصديق کښې دا آيتونه مبارک نازل شو.

او ځينو روايتونو نه معلوميږی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم خودا شرط په عموم سره قبول کړې وو چې زنانه په کښې هم شاملې وې خو ددې آيتونو نازليدلو ددې عموم منسوخ کړو او نبی کريم صلی الله عليه وسلم د مکې په قريشو هم دغه واضح کړل چې زنانه به په دې شرط کښې داخلې نه وی. نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته زنانه واپس نه کړې، په دې بنا نه خو دا صورت دلوظنامې ماتول اونه ئې ختمول وو بلکه ديو شرط د واضح کولو معامله وه خواه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم مراد د ړومبې نه هم دا وو اوکه دا آيت مبارک په نازليدو سره ئې دغسې اوکړل، په هر حال اوشو داسې چې ددې

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:٦١]
[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:٦١]

وضاحت نه پس دغه لوظنامه دواړه طرفونو قبوله کړه او په دې باندې تر يو مودې پورې د دواړو طرفونو نه عمل کيدو ددغې صلح په نتيجه کښې لارې په امن شوې او نبی کريم ﷺ د دنيا د بادشاهانو په نومونو خطونه اوليږل او هم ددې په نتيجه کښې د ابی سفيان قافله په بې فکرئ سره شام ته اورسيده. چرته چې هرقل هغه لره خپل دربار ته راؤغوښتلو او د نبی کريم ﷺ د حالاتو او واقعاتو تحقيق ئې اوکړو.

خلاصه دا شوه چې ددغه صلح د شرطونو په عامو الفاظو کښې د ښځونه شامليدل که هغه د مخکښې نه د حضورپاك په نظر کښې وو يا د آيت د نازليدلو نه پس رسول الله ﷺ ښځې ددې عموم نه خارج کړې. په هردوو صورتونو د کفار قريش او مسلمانانو په مينځ کښې دا معاهده ددې وضاحت نه پس هم مکمل ګنړلې شوه او د يوې مودې پورې په دې باندې عمل کيدلو. په دې وجه ددې شرط وضاحت په نقض عهد يا نبذ عهد کښې نه شی داخلولې. والله اعلم. وړاندې د آياتونو مفهوم دهغې د الفاظو لاندې اوګورئ.

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ ؕ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ﴾ د آيت مراد دادې چې د زنانؤ مستثنی کيدل د شرط د صلح نه په وجه د مسلمانيدو او د مؤمن کيدو دی، مکې نه مدينې ته په راتلونکو ښځو کښې دا احتمال هم کيديشو چې خالص د اسلام او ايمان په خاطر نه بلکه د خپل خاوند نه د خفه کيدو په وجه، يا دمدينې چا سړی سره د ياراني او مينې په وجه يا په بل څه دنيوی غرض ئې هجرت کړې وی، نو هغوئ د الله ﷻ په نزدې ددې شرط نه مستثنی نه دی بلکه د هغوئ واپس کول د صلح د شرطو تر مخه ضروری دی څکه مسلمانانو ته حکم ورکړې شو چې دهجرت کوؤنکو زنانؤ د ايمان امتحان اخلئ، دې سره ئې دا جمله اوفرماتيله چې: ﴿اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِهِنَّ ۚ﴾ په دې سره ئې دې ته اشاره اوکړه چې حقيقی او اصلی ايمان د بنده زړه سره تعلق لری چې پرې د الله ﷻ نه سوا هيڅوک نشی خبريدې البته د ژبې او اقرار په قرينو سره د بنده د ايمان اندازه لګولې شی، نو مسلمان ته هم دا حکم دې او هم په د ې باندې مکلف دی.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې چې ترمذی ورته حسن صحيح وئيلې دې چې دهغوئ د امتحان صورت هغه بيعت وو چې بيان ئې په راتلونکو آيتونو کښې په تفصيل سره راغلې دې ﴿اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ﴾[1] ګويا د مهاجرينو زنانؤ د امتحان هم دا طريقه وه چې د نبی کريم ﷺ په لاس مبارک به ئې ددې خيزونو لوظ کولو چې ددې بيعت په بيان کښې دې پسې راروان دی او هم دا څه لرې خبره نه ده چې په ابتدايی دول پرې دغه خبرې او کلمې وئيلې شی کومې چې په روايت د ابن عباس رضی الله عنهما پورته ذکر شوی دی. اوددې تکميل په هغې بيعت سره کيږی دکوم چې وړاندې بيان دې. والله اعلم.

﴿فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ اِلَى الْكُفَّارِ ؕ﴾ يعنی کله چې په دغې شان تاسو ددغې مهاجرو زنانؤ په امتحان اخستو سره ئې مؤمناني اومنئ نو بيا کافرانو ته ئې واپس کول جائز نه دی.

﴿لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ ؕ﴾ يعنی نه دا زنانه کافرو نارينؤ دپاره حلالې دی او نه کافران نارينه دوئ دپاره حلاليدې شی چې ورسره دوباره نکاح اوکړې شی.

[1] جامع الترمذي، ابواب التفسير باب سورة الممتحنة [ج:۲ ص:۱۶۶]

**مسئله** :: دې آيت مبارک دا په ډاګه کړل چې د کافر ښځه کله چې مسلمانه شي نو کافر خاوند سره ئې پخپله نکاح ماته شي ، يعنې هغه دواړه خپل مينځ کښې په يو بل باندې حرام شو او هم دا هغه شرط دې چې په صلح کښې د واپسئ نه پس د مستثنى کولو دې چې اوس هغه د ورانديني کافر خاوند دپاره حلاله پاتې نشوه.

﴿وَاٰتُوهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا﴾ يعنې مهاجرې مؤمنې ته چې کافر په نکاح کښې کوم مهر وغيره ورکړې دې هغه ټول دې دغه خاوند ته واپس کړې شي ولې چې د صلح د شرط نه مستثنى صرف دزنانو واپسي وه چې د دوئ د حراميدو په وجه نشي کيدې مګر کوم مال چې کافرانو دغې ښځو ته ورکړې دې هغه د شرط مطابق واپس کول پکار دی . ددغې مال د واپسئ خطاب زنانو ته نه بلکه عامو مسلمانانو باندې ددې ذمه داري واچولې شوه ځکه چې کيديشي بلکه غالب دادې چې کوم مال دهغوئ خاوندانو هغوئ ته ورکړې وی هغه ترې لګيدلې او ختم شوی وی ، په دې بنا که د بيت المال نه دغه مال ورکيديشي نو دغه خاتې کښې دې ورکړې شي ګني د عامو مسلمانانو دچندې نه دې ورکړې شي ، [ قرطبی ] (۱).

﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ﴾ په تير شوی آيت کښې دا په ډاګه شوی ده چې د هجرت کوونکو مسلمانانو ښځو نکاح کافرانو خاوندانو سره ماته شوې ده او دوئ پرې حرامې شوې دی . اوس په دې آيت کښې د دغې حکم تکمله داده چې اوس مسلمان سره ئې نکاح کيديشي اګر چې هغه مخکښې خاوندئی ژوندې هم وی او هغه طلاق هم نه وی ورکړې مګر شرعی حکم سره هغه نکاح ماته شوی ده. ځکه بل مسلمان سړی سره ئې نکاح کول حلال شو. د کافر سړی ښځه چه مسلمانه شی نو د نکاح فسخ کيدل په آيت مذکوره سره معلوم شو ليکن بل يو مسلمان سره د هغې نکاح کوم وخت جائز کيږی؟ ددې متعلق د امام ابو حنيفه ﷫ په نيز اصل ضابطه خو داده چې د کوم کافر سړی ښځه مسلمانه شی نو اسلامی حاکم به د هغې خاوند راغواړی ورته به وائی که چرې ته هم مسلمان کيږې نو نکاح به په خاتې پاتې شی ګنی نکاح به فسخ کيږی. که هغه په دې باندې هم د اسلام راوړلو نه انکار اوکړی نو اوس به په دې دواړو کښې د جدائيئ تکميل اوشی. دغه وخت هغه يو مسلمان سړی سره نکاح کولې شی. مګر دا ښکاره خبره ده چه د حاکم اسلام د خاوند حاضرول هلته کيدې شي چرته چه اسلامی حکومت وی. که په دارلکفر يا دار الحرب کښې داسې واقعه پيښه شی نو خاوند ته د اسلام راوړلو دپاره وينا کول او د هغه د انکار صورت به نه وی. په کوم سره چه په دواړو کښې د جدائيئ فيصله اوکړی شی. په دې وجه په دې صورت کښې د زوجين په مينځ کښې د تفريق تکميل هغه وخت کيږی کله چه دا ښځه هجرت اوکړی او دارالاسلام ته راشی يا د مسلمانانو لښکر له راشی. دارالاسلام ته د راتللو صورت مذکوره واقعاتو کښې مدينې طيبې ته د رسيدو نه پس کيدې شی. او د اسلامی لښکر په حديبيه کښې موجود وو هغې ته په رسيدو سره هم د دې تحقق کيږی. د کوم نه چه د فقهاؤ په اصطلاح کښې اختلاف دارين سره تعبير کړې شوې دې. يعنی کله چه د يو کافر سړی او د هغه د مسلمانې ښځې په مينځ کښې د دارين فاصله اوشی يعنی يو په

---

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۶۹ ]

دارالکفر کښې دې دويم دارالاسلام کښې نو دې تفريق مکمل کيدو سره ښځه بل سره دَ نکاح دَپاره آزاديږي. [هدايه وغيره] ([1]).

او په دې آيت کښې چې ﴿إِذَآ ءَاتَيۡتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّۚ﴾ دشرط په ډول اوفرمائيلې شو چې تاسو ورسره نکاح کولې شئ خو شرط دادې چې دهغوئ مهر ورکړئي. دا په حقيقت کښې د نکاح شرط نه دې ځکه په اتفاق د امت سره د نکاح کيدل په ادا کولو د مهر اړه نه لري البته په نکاح کولو سره مهر ادا کول واجب او لازم ضروري دي، دلته د شرط په ډول ځکه دا ذکر شو چې هسې نه دې سره نکاح کوونکې مسلمان دا اونه ګڼړي چې يو مهر خو ئې کافر خاوند ته ادا کړې شو نو د بل مهر ورکولو ضرورت به دغې زنانه ته نه وي ځکه ئې اوفرمائيل چې هر نکاح سره بيل بيل د مهر تعلق دې، دې دويم نکاح سره به دويم ځل نوې مهر لازميږي.

﴿وَلَا تُمۡسِكُواْ بِعِصَمِ ٱلۡكَوَافِرِ﴾ عصَم د عصمَت جمع ده، ددې اصلي معنی حفاظت او استحکام ده، دې نه مراد دنکاح هغه عقد وغيره دي چې حفاظت ئې کولې شي.

کوافر جمع د کافرة ده، مراد ترې مشرکه ښځه ده ولې چې کتابئې کافرې سره د نکاح کولو اجازت د قرآن پاک په نص سره ثابت دې. د آيت مبارک مراد دادې چې تر اوسه پورې د مسلماني او کافر تر مينځه دنکاح کولو اجازت وو هغه ختم کړې شو اوس د چا مسلمان نکاح مشرکې ښځې سره جائز نه دې او وړاندې دغسې شوی نکاحونه هم اوس ختم شو اوس څوک مشرکه ښځه په خپل نکاح کښې حصارول حلال نه دي.

کله چې دا آيت مبارک نازل شو نو دکومو صحابه کرامو ﷺ په نکاح کښې چې مشرکه ښځه وه هغه ئې پريخوده، عمر فاروق ﷺ هغه خپلو دوؤ مشرکو ښځو ته طلاق ورکړو کومې چې د هجرت کولو په وخت کښې ترې په مکه مکرمه کښې حصارې شوې وې. [بغوی د زهري په سند سره روايت کړو په حواله د مظهري] ([2]). دلته د طلاق مطلب صرف پريخودل دي ولې چې په دې کښې د طلاق ورکولو ضرورت ورسره نشته ځکه چې ددې آيت مبارک په ذريعه نکاح بخپله ماته شوه.

﴿وَسۡـَٔلُواْ مَآ أَنفَقۡتُمۡ وَلۡيَسۡـَٔلُواْ مَآ أَنفَقُواْۚ﴾ يعني چې کله معامله داسې اوشوه چې مسلمانه هجرت کوونکې زنانه دې بيرته مکې مکرمې ته نشي وړليږلې البته دې ته چې خپل کافر خاوند کوم مهر وغيره ورکړې وي هغه دې ورته واپس کړې شي، هم داسې به دهغې ښځې حکم وې چې الله دې نکړي په مرتد کيدو سره مکې مکرمې ته لاړه شي. يا د رومبی کفر په وجه دخاوند نه هلته پاتې شي. [د تفسير په خلاصه کښې هم دا صورت شايد ځکه اختيار کړې شوې دې چې داسې څه واقعه هډو پيښه شوې نه ده چې يوه مسلمانه ښځه مرتد کيدو سره مکې ته تلې وي اوبيا هلته هم کافره شوې پاتې وي. اوداسې واقعات پيښ شوی دي چې دَ اول نه هم کافران وو اودخپل مسلمان خاوند دَ قبضې نه وتلې اوهم په مکه کښې پاتې شوې] د مکې مکرمې کافران به هغه نه راواپس کوی مګر دَ هغې مسلمان خاوند چې کوم مهروغيره هغې ته ورکړې وی دَ هغې واپس کول به دَ مکې دَ کافرانو په ذمه وی. په دې وجه دَداسې معاملې فيصله په

[1]) الهداية کتاب النکاح باب نکاح اهل الشرك[ج: ۲ ص:۳۴۷]

[2]) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۹۸] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۶۵]

خپل مینځ کښې حساب کتاب سره چه اوکړې شي نو دَ طرفين چه کوم څه په مهر وغيره کښې خرچ کړې شوي دي هغه دې معلوم کړې شي دهغې مطابق دې لين دين اوکړې شي.
په دې حکم خو مسلمانانو په خوشحالئ عمل اوکړو ولې چې دقرآن پاک حکمونو پابندي کول د هغوئ په نزد فرض دي، په دې وجه څومره چې مهاجرې بيبيانې چې مدينې منورې ته راغلې دهغوئ مهرونه ئې کافرو رومبو خاوندانو ته واپس کړل ليکن د مکې مکرمې کافرانو پرې څکه عمل اونه کړو چې په قرآن پاک باندې د هغوئ ايمان نه وو څکه په دې باره کښې دا راتلونکې آيت مبارک نازل شو. [بغوی د زهرى نه ، مظهرى ][1].
﴿وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ﴾ عَاقَبْتُمْ دمعاقبة نه مشتق دې. دَ کوم يوه معنى چې دَ انتقام او بدل اخستل هم ده، دلته دا معنى هم مراد کيديشي. [ په حواله د قرطبي د قتاده اومجاهد نه][2]. په دې صورت کښې به د آيت مطلب دا شي که دَمسلمانانو څه ښځې دَ کافرانو په قبضه کښې راشي دي نو دَ صلح دَ شرط مطابق په نورو باندې لازم وو چې دَهغوی مسلمانانِ خاوندان دهغوی ورکړې شوې مهر وغيره واپس کړې لکه څنګه چه دَمسلمانانو دَ طرف نه دَ مهاجراتو کافرانو خاوندانو ته دَهغوی مهرواپس کړې شو. ليکن کله چې کافرانو داسې اونه کړه او دَمسلمانانو ښځو مهرونه ئې هغوی ته ورنه کړل نو دَهغوی دَدې عمل که تاسو انتقام اوبدله اخستل غواړئ داسې چې دَ مکې کافرانو ته کوم رقم دَ مهاجراتو دَ مهر اداکول وو تاسو هم هغه دَخپل حق مطابق حصار کړئ نو دَدې حکم دا دې چه ﴿فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُمْ مِّثْلَ مَا أَنفَقُوا﴾ يعنى تاسو دَهغه رقم نه کوم چه دَ مهاجراتو دَ مهر رامنع کړې دې دَهغه مسلمانانو خاوندانو خرچ کړې شوې مهروغيره اداکړئ دَ چاښځې چه دَ مکې د کافرانو په قبضه کښې دی.
دويمه معنى دَ ﴿فَعَاقَبْتُمْ﴾ عقبتم، اعقبتم ده چې په جنګ کښې د غنيمت مال حاصلول هم ده، په آيت کښې دَ عَاقَبْتُمْ دا درې واړه قرآتونه هم د مختلفو قاريانو منقول دي او دغسې د قتاده رحمه الله او مجاهد رحمه الله نه د درې واړو لفظونو معنى غنيمت هم منقول ده، او په دې صورت کښې د آيت معنى به دا وي چې دکومو مسلمانانو خاوندانو ښځې چې د کافرانو په قبضه کښې ورغلى دي او د صلح د شرط مطابق کافرانو دهغوئ مسلمانانو خاوندانو ته ادائيګئ د مهر او نه کړه بيا چې مسلمانانو ته دغنيمت مال په ګوتو ورشي نو د هغې نه دې د مسلمانانو خاوندانو مهر ورکړې شي. [ قرطبى ][3].
**آيا د مسلمانانو څه ښځې مرتدې شوې مکې ته تللې وې؟:** د څينو حضراتو په نزد داسې صرف يوه واقعه راپيښه شوې وه چې د عياض بن غنم قريشى رضي الله عنه ښځه ام الحکم بنت ابى سفيان مرتده شوې مکې مکرمې ته تللې وه او بيا دا هم دوباره مسلمانه شوې وه او ابن عباس رضي الله عنهما تولې شپږ ښځې داسې ذکرکړې دي چې اسلام نه په آوړيدو کافرانو سره يو ځائې شوې وې چې يو په کښې هم دغه ام الحکم بنت ابى سفيان وه او پاتې نورې پنځه هغه وې چې د هجرت په وخت هم په مکه مکرمه کښې پاتې شوې او د رومبې نه کافرې وې ، کله چې د قرآن پاک دا آيت

[1]) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ۸ ص: ۹۹] و تفسير المظهري [ج: ۹ ص: ۲۶۵]
[2]) تفسير القرطبي [ ج: ۱۸ ص: ۶۹]
[3]) تفسير القرطبي [ ج: ۱۸ ص: ۶۹]

مبارک نازل شو دکوم تر مخه چې مسلمان خاوند سره د مشرکې ښځې نکاح ماتیدل بیان شوی دی. دغه وخت هم هغه ښځې مسلمانیدو ته تیارې نه شوې ددې په نتیجه کښې دا هم په هغه ښځو کښې شمیر کړې شوی چې مهرونې کفار مکه نه ددوئ مسلمانانو خاوندانو ته واپس کول وو، کله چې هغوئ ورنکړو نو نبی کریم ﷺ دهغوئ دغه حق د مال غنیمت نه ادا کړو.
دې نه معلومه شوه چې دښځې د مرتد کیدو او مدینې منورې نه د مکې مکرمې ته د تلو صرف هم دغه یوه واقعه وه، پاتې پنځه ښځې خو رومبې نه کافرانې وې چې په کفر باندې کلکې ولاړې وې، په دې وجه ددې آیت مبارک تر مخه د مسلمانانو د نکاح نه اووتلې، خکه دوئ هم په دغې ښځو کښې شمیر کړې شوې، اویوه ښځه چه دهغې مرتد کیدل اومکې ته تلل ذکر شوی دی دا هم روستو بیا مسلمانه شوه. [قرطبی]([1]) او بغوی رحمه الله په روایت د ابن عباس رضي الله عنهما نقل کړی دی چې باقی پاتې پنځه ښځې کومې چه په دې کښې شمیر کړې شوی دی هغه هم بیا روستو مسلمانانې شوې. [مظهری]([2]).

د زنانوبیعت :: ﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُؤْمِنَـٰتُ يُبَايِعْنَكَ﴾ په دې آیت مبارک کښې د مسلمانانو ښځو نه د یو تفصیلی بیعت اخستو ذکر شوې دې چې په کښې د ایمان او عقیدو سره د احکام شرعیؤ د پابندئی هم لوظ کول دی. په تیرو شوؤ آیتونو کښې چې په چلن کښې ئې دبیعت دا آیت مبارک هم راغلې دې، هغه اگر چې دهغې مهاجراتو د ایمان د امتحان په سلسله کښې دې او دا بیعت د هغوئ د ایمان او امتحان تکمیل دی، لیکن د آیت الفاظ عام دی چې نورؤ مسلمانانو شوؤ بیبیانو سره څه خصوصیت نه لری بلکه ټولو مسلمانانو بیبیانو دپاره عام دی او واقعه هم دغسې راپیښه شوه چې په دغه بیعت کښې نبی کریم ﷺ نه بیعت کوؤنکې صرف نوې مسلمانې شوې هجرت کوؤنکې ښځې نه،بلکه نورې پخوانۍ ښځې هم شریکې وې څنگه چې په صحیح بخاری([3]) کښې د ام عطیه رضي الله عنها نه او د بغوی رحمه الله په سند د امیمه بنت رقیه رضي الله عنها نه منقول دی. امیمه رضي الله عنها نه روایت دې چې ما د څو نورو زنانوؤ په ملگرتیا کښې نبی کریم ﷺ نه بیعت اوکړو په هغې کښې د نورو شرعی احکامو د پابندئی نه علاوه په دغې بیعت کښې دالوظ هم شامل وو.

[فِيمَا ٱسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ] یعنی مونږ دهغه څیزونو پابندئی عهد ترهغه حده پورې کوو څومره چې زخمونږ طاقت او استطاعت وی. امیمه رضي الله عنها ددې په نقل کولو سره اوفرمائیل چې دې نه معلومه شوه چې د نبی کریم ﷺ رحمت او شفقت په مونږ باندې پخپله زما د ذات نه هم زیات وو چې مونږ خو بې د څه قید او شرط نه لوظ کول غوښتل خو هغوئ د خپله خانه ددې شرط خودنه اوکړه چې د څه مجبورئی په حالت کښې په خلاف ورزئی کیدلو سره دا په لوظ ماتولو کښې رانشی. [مظهری]([4]).

او په صحیح بخاری کښې عائشه صدیقه رضي الله عنها د زنانوؤ ددې بیعت باره کښې اوفرمائیل چې د زنانوؤ نه دا بیعت صرف د خبرو اترو په ذریعه اوشو د نارینه په بیعت کښې چې لاس په لاس

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۷۰]
[2]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۶۵] و تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۹۹]
[3]) صحيح البخاري كتاب التفسيرباب إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُؤْمِنَـٰتُ يُبَايِعْنَكَ [ج:۲ص:۷۲۶]
[4]) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۱۰۳]و تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۶۷]

کښې د ايخودو کوم دستور دې د زناناؤ په بيعت کښې دغسې او نکړې شو او نبی کريم ﷺ خپل لاس مبارک د چا پردئې زنانه لاس ته نه دې وراوړې [مظهری] (۱)

او د حديث پاک د روايتونو نه ثابت دی چې دا د زناناؤ بيعت صرف د حديبيه د واقعې نه پس نه بلکه بيا بيا شوې دی تر دې چې د فتح مکه په ورځ هم چې رسول الله ﷺ د نارينو د بيعت نه فارغ شو نو په کوه صفا باندې ئې د زناناؤ نه بيعت واخستو ، د غرة په لمن کښې عمر بن الخطاب ﷺ به د نبی کريم ﷺ د طرفه د نبی کريم ﷺ الفاظ مبارک دوباره کول او لاندې جمع کيدونکو زناناؤ ته به ئې رسول چې په دې بيعت کښې شريکې وې .

دغه وخت بيعت کوؤنکو زناناؤ کښې د ابی سفيان بی بی هنده هم وه ، چې په اول کښې نې د حيا په وجه خپل ځان نه ښکاره کولو خو چې په بيعت کښې د احکامو څه تفصيل راغلو نو په خبرو او تپوس کولو باندې مجبوره شوه ګنړ سوالونه ئې اوکړل ، [دا واقعه په تفصيل سره تفسير مظهری کښې بيان شوې ده ] .

**د نارينو په بيعت کښې اجمال او د زناناؤ په بيعت کښې تفصيل** :: د نارينو نه بيعت عموما په اسلام او جهاد اخستې شوې دې ، دعملی احکامو تفصيل په دې کښې نشته دې په خلاف د زناناؤ د بيعت نه چې په هغې کښې هغه تفصيل دې کوم چې وړاندې راروان دې د فرق وجه داده چې د نارينو د ايمان او تابعدارئی په بيعت اخستو کښې دا ټول حکمونه داخل وو ځکه د تفصيل ضرورت اونه ګنړلې شو ، اوښځې عمومًا په عقل اوفهم کښې دَ نارينو نه کمې وی په دې وجه دَ دوی په بيعت کښې تفصيل مناسب او ګنړلې شو ، دا د هغې بيعت شروع ده کوم چې زناناؤ نه شروع شو مګر مخ ته دَ زناناؤپورې خاص نه دی دَ نارينو نه هم دَ دغه څيزونوبيعت اخستل د احاديثو په روايتونو کښې ثابت دی . [ څنګه چې د عباده بن صامت ﷺ نه روايت شوېدې ، قرطبی ] (۲) .

دې نه علاوه دکومو احکامو د پابندئی لوظ چې زناناؤنه اخستې شوې دې عموما زنانه په هغې کښې د بې لارئی اختيارولو عادت وی . ځکه هم په خصوصيت سره د هغوئ په بيعت کښې دا لاندې بيان شوې تفصيل راغلو :

﴿يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰٓ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْـًٔا﴾ دې کښې خو اولنئ خبره هم هغه د ايمان ده اوشرک نه د بچ کيدو ده چې په عامو نارينه بيعتونو کښې هم راځی بله خبره غلا نه کول دی . ډيرې زنانه د خپل خاوند نه دمال دغلا کولو عادت وی ، ځکه دا ذکر کړې شو ، دريمه خبره د زنانه پرهيز کول دی چې په کښې زنانه پخې شی نو د نارينو خلاصيدل ترې هم آسان شی . څلورمه خبره داده چې خپل ماشومان دې نه وژنی .

---

(۱) صحيح البخاري كتاب التفسيرباب ﴿إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ يُبَايِعْنَكَ﴾ [ج:۲ص:۷۲۶] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۶۷]

(۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۷۱] و صحيح مسلم كتاب الحدود ، باب الحدود كفارات لأهلها [ج:۲ص:۷۳]

د جاهلیت په زمانه کښې د جینکو د ژوندئی ښخولو او هلاکونکو رواج وو ، دا بند کړې شو ، پنځمه خبره داده چې څه تور او دروغ دې نه تپي . په چا باندې ددې د نه تپلو سره دا الفاظ هم دی چې : ﴿بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ﴾ یعنی د خپلو لاسونو او پښو تر مینځه دې تور او دروغ په چا نه پورې کوی . دَ دې ذکر دلته ځکه اوشو چې د قیامت په ورځ به دانسان لاسونه ، پښې ددوئ د عملونو ګواهی ورکوی . مطلب دا شوچې دداسې ګناهونو کولو په وخت داخیال لرل پکار دی چې زه د څلورو ګواهانو تر مینځه داکار کوم چې زما خلاف به ګواهی ورکوی .

دلته د بهتان لفظ عام دې په خپل خاوند وی او که په بل چا وی ولې چې تور او دروغ پورې کول هر چاباندې تر دې چې په کافر باندې هم حرام دی . خصوصا په خپل خاوند باندې دروغ او تور پورې کول نوره هم زیاته سخته ګناه ده . او په خپلو خاوندانو د تور پورې کولو یو صورت دا هم دې چې یوه زنانه پردې ماشوم واخلی او د خپل خاوند ماشوم ئې ښکاره کوی او دهغه په نسب کښې ئې داخلوی او داهم چې معاذ الله بدکاری اوکړی او حمل ئې پاتې شی چې دهغې په نتیجه کښې داماشوم ددې د خاوند په نسب کښې داخل اوګڼړلې شی .

شپږمه خبره یوه عامه ضابطه ده چې : ﴿وَلَا يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ﴾ یعنی هغه به په څه نیک کار کښې ستا د حکم خلاف ورزی نه کوی . دلته د نیک کار قید لګول هرکله چه دا یقینی دی چې دَ رسول ﷺ هیڅ حکم هم دَ معروف اونیکئی دَ کارونونه سوا بل څه هیڅکله کیدې نه شی یا خوځکه دی چې عام مسلمانان په ښه شان سره پوهه شی چې دالله ﷻ د حکم په خلاف دچا مخلوق تابعداری کول جائز نه دی . تردې چې دنبی کریم ﷺ تابعدارئ سره ئې هم دا شرط اولګولو .

دا هم کیدیشی چې دلته معامله د زنانوُ ده ، ددوئ نه عام اطاعت غوښتل چې د نبی کریم ﷺ د هیڅ حکم خلاف به نه کوی . دې سره شیطان د دوئ په زړونو کښې د ګمراهئ وسوسه پیداکولې شوه ، ځکه ددې د لارې نیولو دپاره ئې دا قید اولګولو . والله سبحانه وتعالی اعلم

تمت سورة الممتحنة بعون الله تعالى وحمده

لعشرين خلت من جمادى الاولى ۱۳۹۱ھ يوم الثلثاء

ويتلوها انشاء الله سورة الصف

| اياتونه | سورة الصف مدنية وهي اربع عشرة اية وفيها ركوعان | رکوع گانی |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۱۴ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان　زيات رحم کونکي دي | ۲ |

سَبَّحَ　لِلّٰهِ　مَا　فِي السَّمٰوٰتِ　وَمَا　فِي الۡاَرۡضِ ۚ

تسبيح وائی | الله لره | هغه څه | چی په آسمانونو کښی دي | او هغه څه | چی په زمکه کښی دی |

په زمکه او آسمانونو کښی چې څومره څه دی دالله ﷻ پاکی بیانوی

وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ　الۡحَكِيۡمُ ①　يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ　اٰمَنُوۡا　لِمَ تَقُوۡلُوۡنَ

او هغه غالب دي | او حکمت والا دي | اے هغه کسانو | چی ایمان موراوري دي | ولي وایئ تاسو |

او هغه غالب اوصاحب دحکمت دي | اثي مومنانو ! تاسي داسي خبري ولي کوئ

مَا　لَا تَفۡعَلُوۡنَ ②　كَبُرَ مَقۡتًا　عِنۡدَ اللّٰهِ　اَنۡ　تَقُوۡلُوۡا

هغه خبري | چی نه ئې کوئ تاسو | لويه ده په لحاظ دغصې سره | په نز دالله | دا خبره | چی اووایئ تاسو

چې هغه نه [پوره] کوئ | د ا دالله ﷻ په نیز د ناراضګئ سبب دي | چې تاسو داسې خبرې کوئ

مَا　لَا تَفۡعَلُوۡنَ ③　اِنَّ اللّٰهَ　يُحِبُّ　الَّذِيۡنَ　يُقَاتِلُوۡنَ　فِيۡ سَبِيۡلِهٖ

هغه | چی نه یې کوئ تاسو | بیشکه الله | خوښوی | هغه کسان | چی جنګ کوی | په لار دهغه کښی

چې هغه نه [پوره] کوئ | ........ الله ﷻ هغه کسان خوښوی | چې د هغه په لاره کښې په صف بندئ کښې

صَفًّا　كَاَنَّهُمۡ　بُنۡيَانٌ　مَّرۡصُوۡصٌ ④　وَاِذۡ قَالَ مُوۡسٰى

صف تړونکی | داسې لکه چی هغوئ | دیوال وی | دویلی کړې شوی تانبې | او کله چی اووئیل موسی

داسې جنګیږی | لکه چی هغوی د ویلې شوې تانبې دیوال دي | او کله چې موسی خپل قوم ته اووئیل

لِقَوۡمِهٖ　يٰقَوۡمِ　لِمَ تُؤۡذُوۡنَنِيۡ　وَقَدۡ تَّعۡلَمُوۡنَ　اَنِّيۡ

قوم خپل ته | اے قومه زما | ولې تاسو ضرر رسوئ ماته | حال دا چی پوهه یئ تاسو | چی بیشکه زه

اثې زما قومه ! ولې ماته تکلیف راکوئ | ............ او په دې ښه پوهه یئ چې زه تاسو ته د الله ﷻ

رَسُوۡلُ اللّٰهِ　اِلَيۡكُمۡ ؕ　فَلَمَّا　زَاغُوۡۤا　اَزَاغَ اللّٰهُ　قُلُوۡبَهُمۡ ؕ

رسول د الله یم | تاسو ته | پس هر کله چی | کاږه شو هغوئ | نو کاږه کړل الله | زړونه دهغوئ

رسول راالیږلې شوېي یم | نو هر کله چې هغوئ ګمراهی اختیار کړه | نو الله ﷻ د هغوئ زړونه واړول

وَاللّٰهُ　لَا يَهۡدِي　الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِيۡنَ ⑤　وَاِذۡ قَالَ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ

او الله | نه ښائی برابره لار | قوم فاسق ته | او کله چی اووئیل عیسی څوی دمریم |

او الله ﷻ داسې نافرمانه خلقو ته لاره نه ښائی | او څه وخت چې عیسی ؑ د بی بی مریم څوی

يٰبَنِيۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ　اِنِّيۡ　رَسُوۡلُ اللّٰهِ　اِلَيۡكُمۡ　مُّصَدِّقًا

اے بنی اسرائیلو | چی بیشکه زه | رسول دالله یم | تاسو ته | تصدیق کونکي یم |

اووئیل | اثې بنی اسرائیلو ! زه تاسو ته دالله ﷻ رسول رالیږلې شوی یم | د تورات

لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَمُبَشِّرًا بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ

هغې لره | چې وړاندې زما دي | دتوراة نه | او زيرې درکونکې يم | په يو رسول سره | چې راځي به

تصديق کونکې يم | کوم چې زما نه وړاندې نازل شوې وو | او د يو [بل] پيغمبر زيرې درکوم

مِنْۢ بَعْدِي اسْمُهٗٓ اَحْمَدُ ؕ فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

روستوزمانه | چې نوم دهغه به | احمد وي | پس هرکله چې راغې هغه هغوئ ته | دواضحه نښونښانو سره

چې زمانه پس به راځي | دهغه نوم به احمد ﷺ وي | نو هرکله چې [هغه پيغمبر] ادوی ته په ښکاره دلائلو سره راغلو

قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

نو اووئيل هغوئ | دا | جادوگر دي | ښکاره | او څوک دي ډير ظالم | دهغه چانه | چې جوړنې کړل

نودوئ اووئيل | دا خو ښکاره جادو دي | ......................او د هغه چا نه لوئې ظالم څوک دي

عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعٰٓى اِلَى الْاِسْلَامِ ؕ وَاللّٰهُ

په الله باندې | دروغ | حال دا چې هغه ته دعوت ورکړې کيږي | طرف داسلام ته | او الله

چې په الله ﷻ باندې دروغ تړي ؟ | حال دا دي چې هغه داسلام طرفته رابللې شي | او الله ﷻ

لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ

هدايت نه کوي | قوم | ظالم ته | دوئ غواړي | چې مړ کړي | نور دالله |

داسې ظالمانو ته هدايت نه کوي | ......................دوئ غواړي چې دالله ﷻ نور دخولې په

بِاَفْوَاهِهِمْ وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝

په خلو خپلو سره | او الله | پوره کونکې دي | دنور خپل | او اگر که نه خوښوی ئې کافران |

پوکو باندې مړ کړي | او الله ﷻ دخپل نور کمال ته رسونکې دي | اگر که په کافرانو بدلگي

هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ

هغه هغه ذات دي | چې وي ليږلو | رسول خپل | دهدايت سره | او دحق دين سره | دپاره ددې چې غالب کړي دي

الله ﷻ هغه ذات دي چې خپل رسول ئې په هدايت او په حق دين سره [تاسو ته] رالیږلو

عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ۝

دين لره | په دينونو ټولو باندې | اگر که نه ئې خوښوی مشرکان

چې دا دين په نورو ټولو دينونو باندې غالب کړي | اگرچې په مشرکانو بده نه لگی!

**آسان ترجمه قرآن**

په آسمانونو او زمکه کښې چه کوم څيزونه دي، هغوی د الله تعالیٰ تسبيح کړې دهٔ، او هم هغه دې، چه د اقتدار هم مالک دې، دحکمت مالک هم دې اے ايمان والو! تاسو داسې خبرهٔ ولې وائئ، چه کوئ ئې نه؟ د الله تعالیٰ په نزد دا خبرهٔ ډيرهٔ ناخوښه دهٔ، چه تاسو داسې خبرهٔ اووائئ، چه کوئ ئې نه. حقيقت دادې، چه الله تعالیٰ دهغې خلقو سرهٔ مينه کوی، کوم چه دهغه په لارهٔ کښې داسې صفونو جوړولو سرهٔ جنگيږی، لکه چه هغوی د فولاد نه جوړ کړې شوې عمارت وی. او هغه وخت ياد کړئ، چه کله موسیٰ عليه

السلام خپل قوم ته وئيلي وو چه اے زما د قوم خلقو! تاسو ما ته تکليف ولې رارسوئ، حالانکه تاسو پوهيږئ. چه زه تاسو ته د الله تعالىٰ پيغمبر راغلي يم؟ بيا چه کله هغوى کوږوالې اختيار کړو، نو الله تعالىٰ د هغوى زړونه کاږه کړل او الله تعالىٰ نافرمان خلق هدايت ته نه رسوى او هغه وخت ياد کړه. چه کله عيسىٰ بن مريم عليه السلام وئيلي وو چه: اے بنواسرائيلو! زه تاسو ته د الله تعالىٰ د طرف نه داسې پيغمبر جوړ کړې شوې راغلي يم. چه زما نه مخکښې کوم تورات (نازل شوې) وو. زه دهغې تصديق کوونکې يم او د هغې رسول خوشخبرى درکوونکې يم. چه زما نه پس به راځى، چه دهغه نوم احمد دې. بيا چه کله هغه دوى ته ښکاره ښکاره نښې راوړې، نو دوى اووئيل چه: دا خو ښکاره جادو دې. او د هغې سړى نه به لوئې ظالم څوک وى، چه په الله تعالىٰ باندې دروغ تړى، او حال دا چه هغه رابللې شى اسلام طرف ته؟ او الله تعالىٰ داسې ظالمان خلق هدايت ته نه رسوى. دا خلق غواړى، چه په خپلو خولو سره د الله تعالىٰ نور مړ کړى، حالانکه الله تعالىٰ به د خپل نور تکميل کوى. اګر که کافرانو ته دا خبره ډيره ناخوښه وى هم هغه دې، چه خپل رسول ئې هدايت او رښتونې دين سره راليږلو. دې دپاره چه هغه لره په نورو ټولو دينونو باندې غالب کړى، اګر که مشرکانو ته دا خبره ډيره ناخوښه وى.

### خلاصه تفسير

﴿سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ [ټول څيزونه دالله تعالى پاکي بيانوى] قالاً ياحالاً [څه چه په اسمانونو کښې دى او څه چه په زمکه کښې دى ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ او هغه زبردست حکمت والا دى] پس کوم چه داسې دعظمت اوشان خاوند وى دهغه اطاعت په هرحکم کښې ضرورى دې په کوموکښې چه يوحکم دجهاددې کوم چه په دې سوره کښې ذکردې چه د نزول سبب ئې دادې چه يوځل څنومسلمانانو ديوبل سره خبرې کولې چه که مونږ ته څه داسې عمل معلوم شى کوم چه دالله تعالى په نزد ډيرزيات محبوب دې نومونږ به ئې په خپل عمل کښې راولواو ددې نه وړاندې په جنګ احد کښې څنې دجهاد نه تښتيدلى ووچه قصه ئې په سوره ال عمران کښې ده اودارنګ دجهاد دحکم دنزول په وخت کښې څنوته ګران معلوم شوې وو چه قصه ئې په سوره نساء کښې تيره شوې ده په دې دا ارشاد نازل شو ﴿يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ﴾ [اے ايماندارو داسې خبره ولې کوئ کومه چه کوئ نه ﴿كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ﴾ دالله تعالى په نزد داخبره ډيره دناراضګئ ده چه داسې خبره وايئ چه کوئ ئې نه ﴿اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا﴾ الله تعالى خو هغو خلقو لره] په خاص طورسره [خوښوى کوم چه ددا په لاره کښې داسې يوځاى جنګيږى ﴿كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ﴾ چه ګويا هغه يو ديوال دې چه قلعى تانبه پرې شوې ده] يعنى لکه څنګه چه داعمارت مستحکم اوناقابل شکست وى دغه شان دغه مجاهدين ددښمن دمقابلې نه واپس کيږى نه مطلب داشو چه تاسو کومه داخبره کوئ چه که مونږ ته هغه کار معلوم وې کوم چه دالله تعالى په نزد زيات محبوب دې نو هغه عمل خوجهاددې بيا ددې دنزول په وخت کښې ګرانى ولې وه او داحدنه تښتيدئ ولې پس باوجود ددې ټولو کارونو ترمخه کيدو چه نهايت نازيباخبره اودخداى ناخوښه ده دداسې دعوې خبرې کول چه خلاف کول ئې معلوم شوى هم دى نوپه دې کښې په لافوکولو اوغلطودعوويانو زجر وشو وعظ بې عمله ددې مفهوم نه خارج دې [او] وړاندې ددې خبرې دعلت بيان دى چه داکفارمستحق دقتل قتال دى يعنى ازار رسول، تکذيب اومخالفت درسول بيان فرمائيل

مقصود دی اویه دي مناسبت سره دموسی ﷺ او عیسی ﷺ قصه ذکرفرمانی پس ارشاد دي چه هغه وخت قابل ذکردي ﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ﴾ هر کله چه موسی] ﷺ [خپل قوم ته وفرمائیل ﴿يَا قَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِي﴾ چه اے زما قومه ماته ولې ازاررسوئ ﴿وَقَد تَّعْلَمُونَ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ﴾ حال دادي چه تاسوته معلومه ده چه زهٔ تاسوته دالله تعالی رالیږلې شوې راغلې یم] دغه ازارونه په مختلف طورسره وو په کومو کښې چه ځنې ځنې په قرآن کريم کښې هم مخصوص په سورت بقره کښې مذکور دی مطلب ددې تولو سرکشی اومخالفت دی ﴿فَلَمَّا زَاغُوا﴾ [بیا هر کله چه] ددې پوهولونه پس هم [هغه خلق کږیدل] او په لاره رانغلل ﴿أَزَاغَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ﴾ [نو الله تعالی دهغوی زړونو لره نور] زیات [کاږه کړل] یعنی ماده دمخالفت اونافرمانۍ ئې نوره زیاته شوه لکه چه قاعده ده چه په گناه باند په مداومت کولو سره دالله تعالی طرف ته د زړهٔ میلان او اطاعت جذبه کمیږی ﴿وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾ [او] د [الله تعالی] معمول دې چه هغه [داسې نافرمانوته] د [هدایت] توفیق [نه ورکوی] دغه شان داخلق نبی کريم ﷺ ته په قسم قسم مخالفتونو سره ازارونه رسوی په دې وجه د دوی کوروالې فسق زیاتیږی چه امید داصلاح ئې پاتې نه شو پس ددوی د فساد ختمولو دپاره دقتال حکم کول مصلحت شو ﴿وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ﴾ [او] دغه شان هغه وخت هم قابل ذکردې [هر کله چه عیسی ﷺ خوئ دمریم] ﷺ [ارشادوفرمائیلو ﴿يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ﴾ چه اے بنی اسرائیلو زهٔ تاسوته دالله تعالی رالیږلې شوې یم چه زمانه وړاند کوم تورات] راغلې [دې زهٔ دهغې تصدیق کوونکې یم ﴿وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِن بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ﴾ اومانه پس چه یو رسول راتلونکې دې چه نوم] مبارك [به ئې احمد وی زهٔ دهغه خوشخبری ورکوونکې یم] اوددې خوشخبرئ دحضرت عیسی ﷺ نه نقل کیدل په خپله داهل کتابو دبیان نه په حدیثوکښې ثابت دی چنانچه په خازن کښې په روایت دابوداؤد دحبشې دنجاشی بادشاه کوم چه دنصاراؤ عالم هم وو داقول راغلې دې چه واقعی هغه ته یئ دکوم خوشخبری چه حضرت عیسی ﷺ ورکړې وه([1]) او په خازن کښې دترمذی نه دعبدالله بن سلام قول کوم چه دیهودو دعالمانونه وو راغلې دې چه په تورات کښې دنبی کريم ﷺ صفت لیکلې دې اوداچه حضرت عیسی ﷺ به ددوی ﷺ سره دفن کیږی([2]) اوچونکه حضرت عیسی ﷺ دتورات مبلغ وو په دې وجه په تورات کښې ددا دخوشخبری کیدل هم دحضرت ﷺ نه منقول ونیلې شی.

اومولانارحمت الله صاحب په اظهارحق کښې په خپله دتورات دموجوده نسخونه ډیربشارتونه نقل کړی دی جلددویم ص ۱۶۴ مطبوعه قسطنطنیه او ددې مضامینو په موجوده انجیلونو کښې نه کیدل څکه مضرنه دی چه دمحققینوعالمانو دتحقیق مطابق دانجیلونو نسخې محفوظې نه دی پاتې شوی مگر بیا هم چه څه موجود دی په هغې کښې هم ددې قسمه مضمون موجود دې چنانچه دیوحنا انجیل مترجمه عربی مطبوعه لندن سنه ۱۸۳۱ء وسنه ۱۸۳۳ء په څوارلسم باب کښې دی چه تاسودپاره زماتلل غوره دی څکه چه که زهٔ لاړ نه شم نو

---

[1] ) تفسير الخازن تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٩٢] و سنن ابوداود، كتاب الجنائز، باب في صلاة المسلم يموت في بلاد الشرك [ج:٢ص:٤٥٧]

[2] ) تفسير الخازن تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٩٢] و جامع الترمذي، ابواب المناقب باب فضل النبي ﷺ [ج:٢ ص:٢٠١]

فارقلیط به تاسو ته رانه شي پس که زۀ لاړشم نو هغه به تاسو ته راولیږم "فارقلیط" ترجمه داحمد ده داهل کتابو عادت دې چه دوی دنومونو هم ترجمه کوی حضرت عیسی علیه السلام په عبرانۍ کښې احمد فرمائیلي وو هرکله چه په یونانۍ کښې ئې ترجمه وشوه نو بیرکلوطوس ئې ولیکلو چه معنی ئې ده احمد یعنی ډیرحمد کوونکې بیا چه هرکله دیونانۍ نه په عبرانۍ کښې ترجمه شونو دائې فارقلیط کړو او په څنوعبرانی نسخوکښې تراوسه پورې نوم مبارک احمد ﷺ موجود دې وګورئ دپادری پار کهرست داعبارت دبادحمده خل بکوتیم ازحمایت الاسلام مطبوعه بریلی سنه ۱۸۷۳ء سنه ۸۴۸۱ء ترجمه اپالوجی ګاوفری هینګنس مطبوعه لندن سنه ۱۸۲۹ء او ددې فارقلیط په نسبت په دې انجیل یو حنا کښې دا الفاظ دی هغه به تاسو ته ټول څیزونه وښائی ددې جهان سردار راځی هغه چه راشی دنیالره به په ګناه اود راستۍ او دعدالت په خلاف باندسزا ورکوئ دادی هغه الفاظ کوم چه دنبی په مستقل والی دال دی اوپوره بحث ددې مقام په تفسیرحقانی کښې دی ددې یوه حصه شمه نقل کړې شوه غرض عیسی علیه السلام دا ارشاد وفرمائیلو ﴿فَلَمَّا جَاءَهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ﴾ [بیاهرکله چه] داټول مضامین ئې ارشاد وفرمائیل دخپل نبوت داثبات دپاره [هغه] عیسی علیه السلام [هغوخلقو ته ښکاره دلیلونه راوړل ﴿قَالُوا هَٰذَا سِحْرٌ مُبِينٌ﴾ نو هغوخلقو] ددغودلیلونو یعنی معجزو په نسبت [ووئیل چه دا ښکاره جادو دې] او جادوئ ورته ووئیل دنبوت تکذیب ئې وکړو لکه چه په سوره مائده کښې دی ﴿وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُم بِالْبَيِّنَاتِ﴾ الخ(۱) دغه شان پس دحضرت عیسی علیه السلام نه بیا دنبی کریم ﷺ په دور رسالت کښې موجوده کفارو ددوی تکذیب وکړو اومخالفت ئې وکړو اوداظلم عظیم دې پس ددې ظلم زیاتې ختمولو دپاره دقتال حکم ورکول مصلحت شو [او] واقعی ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ﴾ [دهغې سړی نه به زیات څوك ظالم وی کوم چه په الله تعالی دروغ جوړوی ﴿وَهُوَ يُدْعَىٰ إِلَى الْإِسْلَامِ﴾ حال دادې چه هغه اسلام طرف ته بلنه کوی ﴿وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ﴾ او الله تعالی داسې ظالمانو ته] د [هدایت] توفیق [نه ورکوی] په الله تعالی دروغ جوړول دادی چه دنبوت تکذیب ئې وکړو یعنی کوم شې چه دالله تعالی دطرف نه وی هغه دالله تعالی طرف ته منسوب کول اوکوم چه دالله تعالی دطرف نه په واقع کښې وی دهغې نفی کول دواړه ﴿افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ﴾ دی او ﴿وَهُوَ يُدْعَىٰ﴾ ئې ځکه زیات کړو چه په دې سره دهغوی زیات تقبیح وشوه یعنی په خپله خو په خبرورکولو سره هم خبردارنه شو او ﴿وَاللَّهُ لَا يَهْدِي﴾ ئې ځکه زیات کړو چه ددوی موجوده حالت داصلاح نه لرې شوې وو په دې وجه دقتال سزا تجویز کول مصلحت شو چنانچه چاته چې اوس هم داسلام خبرنه وی رسیدلې اول دۀ ته داسلام دعوت ورکول پکار دی کله چه ددې نه انکار وکړی کوم چه ظاهرا علامت دناامیدئ دې بیا جهاد روادې ورانند دجهاد دترغیب دپاره وعده دنصرت اوغلبه دحق اومغلوبیت دباطل ارشاد دې چه ﴿يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ﴾ [داخلق داغواړی چه دالله تعالی نور] یعنی دین اسلام [لره په خپلوخلوسره] په پوکې کولو [مرکړی] یعنی دعملی تدبیرسره په خلې هم درد او اعتراض خبرې په دې غرض سره کوی چه حق دین ترقی پیدانه کړی اوځنې وخت قولی شبهات اثر کوی یادا تمثیل دې چه ددوی داسې مثال دې لکه څوك چه په خلې سره نورالهی لره مړکول غواړی یعنی په داسې

(۱) ترجمه:-او ما بنی اسرائیل ستاسو نه لرې اوساتل کله چې تاسو هغوئ لره دلیلونه راوړی وو.

طریقه سره ئې مرکوی چه ناکام په کښې پاتې شو ﴿وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ﴾ [حال دادې چه الله تعالی خپل نور] ذکرشوی [الره به کمال ته رسوی ﴿وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ﴾ اګرچه کافران خلق څومره ناخوښه وی] چنانچه ﴿هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ﴾ [هغه الله تعالی داسې دې کوم چه] دداسې اتمام نور دپاره [خپل رسول] ﷺ [الره دهدايت] دسامان یعنی قرآن [اوربښتونی دین] یعنی اسلام [سره] دنیاته [لیږلې دی ﴿لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ﴾ ددې دپاره چه دې] دین [الره] چه دامذکوره نوردې [په ټول] بقیه [دینونو غالب کړی] چه دا اتمام دې ﴿وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ﴾ [اګرچه مشرکان هرڅومره ناخوښه وی] اوتفسیر داتمام اوږ ظهور په سوره براءة کښې ددې په شان په ایت کښې تیرشوې دې

## معارف او مسائل

**شان نزول** ترمذی شریف کښې دعبدالله بن سلام ﷺ نه روایت دې او حاکم چې دا روایت کړو نودَ دې سند ئې صحیح اوبللو ، حدیث پاک دادې چې د صحابه کرامو ﷺ یوې ډلې پخپل مینځ کښې دا خبرې اترې اوکړې چې که مونږ ته معلومه شي چې د الله ﷻ کوم یو عمل زیات خوښ دې؟ نو مونږ به په هغې عمل کوؤ . بغوی په دې کښې دا هم نقل کړی دی چې په دغې حضراتو کښې ځینو څه داسې الفاظ هم اووئيل چې که مونږ ته د الله ﷻ په نزد زیات غوره عمل معلوم شي نو مونږ به خپل ځان اومال ټول هغې دپاره قربان کړو [مظهری] (۱)

ابن کثیر په حواله د مسند احمد روایت کړې دی چې دغې څو حضراتو ﷺ خپل مینځ کښې دا خبرې اترې اوکړې او دائې غوښتل چې څوک لاړ شي او نبی کریم ﷺ نه په دې باره کښې سوال اوکړی . خو د هیچا همت اونه شو اودا حضرات هم په دې حالت کښې د نبی کریم ﷺ پیغام د بللو راورسیدو چې ددغې حضراتو بیل بیل نومونه ئې په کښې اخستې وو ددې نه معلومه شوه چې نبی کریم ﷺ ته دوحی په ذریعه دَ دوی اجتماع اودَ دوی خبرې اترې خودلې شوی وې. کله چې دغه صحابه کرام ﷺ حاضر شو نو نبی کریم ﷺ ورته ټول سورة صف په لوستلو واوږولو چې دغه په نبی کریم ﷺ نازل شوې وو(۲).

دې سورت دا هم اوخودل چې احب الاعمال دَ کوم په لټون کښې چه دا حضرات وو هغه جهاد فی سبیل الله دې اودې سره چه دې حضراتو کوم داسې کلمات وئيلې وو که چرې مونږ ته معلومه شي نو مونږ به په دې باندې عمل کولو کښې داسې داسې بهادرئی اوښایو وغیره. په کوم کښې چه یو قسم دعوی ده چه مونږ داسې کولې شو په دې باندې دې حضراتو ته تنبیه ورکړې شوه چه دَ یو مؤمن دپاره داسې دعوې کول صحیح نه دی. هغه ته څه معلوم دی چې په وخت راتلو باندې به هغه خپلې وعدې پوره هم کړې شي او که نه. دَدې اسباب جمع کيدل او دَ موانع ختمیدل دَهغه په اختیار کښې نه دی بیا پخپله دَهغه خپې لاسونه او اندامونه او جوارح بلکه دَ زړه اراده اوعزم په دې کښې هیڅ یو څیز ټول په ټول دَهغه په قبضه کښې نه دی په دې وجه پخپله رسول الله ﷺ ته په قرآن پاک کښې دا تلقین کړې شوې دې چې کوم یو کار ته

۱) تفسیر المظهري تحت هذه الآية [ج:۹ص:۲۷۰]
۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۱۰٤] و مسند احمد حدیث عبدالله بن سلام ﷺ رقم الحدیث:[۲۳۷۸۹]

راتلونکی صباکښې کول غواړې او هغه بیانول وی نو دَ ان شاء الله په قید سره ئې بیانوه یعنی چه که الله تعالی او غوښتل نو زه به صباله فلانکې کار کوم. ﴿لَا تَقُولَنَّ لِشَيْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ۝ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ﴾(۱) دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم نیت ددې باوجود چې ددعوی نه وو خو صورت ئې ددعوې وودغه دَ الله تعالی په نیز خوښ نه دې او چه انشاء الله ورسره او وائی دَدې تنبیه دَپاره دا آیت نازل شو. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝﴾

دَ ﴿مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾ ظاهری معنی خو هم دغه ده چه کوم کار تاسو کولې نشئی دَهغې دعوی ولې کوئی؟ په کوم سره چه دَ داسې کار دعوې ممانعت خو واضح شو دَ کوم دَ کولو عزم او اراده چه دَ انسان په زړه کښې هم نه وی ځکه چه دا خو صرف یوه دروغو دعوی ده. دَ ځان خودلو دَپاره کیدې شی. مګر ښکاره خبره ده چه دَ شان نزول په واقعه کښې کومو صحابه کرامو مذاکره او کړه هغوی داسې نه وو چه په زړه کښې هډو دَ کولو څه اراده نه وه او دعوی یې کړې وه په دې وجه هغوی په مفهوم کښې داهم شامل کړل چې د دې باوجود چې په زړه کښې دَ څه کار کولو اراده وی بیا هم په خپل نفس باندې یقین کولو سره دعوی کول چې مونږ به فلانکې کارکوو دَ بندګئی دَ شان نه خلاف دی. اول خودَدې دَ وینا کولو څه ضرورت دې کوم وخت چه موقع ملاؤ شی اودې کړی اوکه دَ څه مصلحت دَ وجې نه وئیل هم وی نو دادې ان شاء الله سره مقید کړی نو بیا به هغه دعوی پاتې نه شی.

**مسئله**: دَدې نه معلومه شوه چې دَ داسې کار کولو دعوی کول دَ کوم دَ کولو چه څه اراده نه وی او هغه هډو کول نه غواړی نو دا کبیره ګناه ده او دَ الله ﷻ د سخت ناراضګئی سبب دې، ﴿كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ﴾ مصداق هم دغه دې. او چرته چې دا صورت نه وی بلکه اراده ئې دَ کولووی نوهلته هم په خپل قوت او قدرت باندې یقین کولوسره دعوی کول منع او مکروه دی.

**په دعوې او دعوت کښې فرق**: دَ مذکوره تفسیرنه دا معلومه شوه چې دَ دې آیاتونو تعلق دعوی سره دې چه کوم کار سړې نه کوی دَهغې دعوی کول دَ الله تعالی دَ ناراضګئی سبب دې. پاتې شوه معامله دَ دعوت تبلیغ او وعظ او نصیحت نو چه کوم کار سړې پخپله نه کوی او دَهغې نصیحت نوروته اوکړی او دَهغې طرف ته نورو مسلمانانوته دعوت ورکړی هغه دَدې آیت په مفهوم کښې شامل نه دې. ځکه چې دَدې احکام په نورو آیاتونو او احادیثو کښې ذکر دې. مثلاً قرآن کریم فرمائیلی دی ﴿أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ یعنی تاسو خونورو خلقو ته د نیک کار حکم ورکوئی او پخپله خپل ځانونه هیروئی او پخپله په دغه نیکئ باندې عمل نه کوئی. دې آیت دامر بالمعروف او وعظ او نصیحت کونکی په دې خبره باندې شرمنده کړی دی چې خلقو ته دَ یونیك کار دعوت ورکوئی او پخپله په هغې باندې عمل نه کوئی. مقصد دادې چې کله نوروته نصیحت کوئی نو خپله خپل ځان ته نصیحت کول دَدې نه مقدم دی دَ کوم کار طرف ته چه خلق راغواړئی نو په خپله هم په هغې باندې عمل او کړئی. لیکن داسې ئې نه دی فرمائیلی چې پخپله ئې نه کوئی نو نورو ته هم وینا کول پرېږدئی. ددې نه معلومه شوه چه دکوم نیک کار پخپله دکولو همت او توفیق نه وی دَهغې طرف ته بل راغوښتل او دَ نصیحت

---

(۱) ترجمه:- او ته کار به باره کښې داسې مه وایه چې زه به دا سبا کوم مګر د الله تعالی غوښتل ورسره یوځائې کوه.

کولو سلسله دې نه پریږدي. امید دې چه په دغه وعظ او نصیحت سره یو وخت کښې هغه ته هم دَ عمل کولو توفیق ملاؤشي لکه څنګه چه په کثرت سره په تجربه او مشاهده کښې راغلی دی البته که هغه عمل دَ واجب یا سنت مؤکده په درجه کښې وي نو په مذکوره آیاتونو باندې نظر کولو سره په خپل نفس کښې پښیمانه او شرمنده کیدو سلسله جاري ساتل هم واجب دی او که چرې مستحباتو سره متعلق دی نو دا سلسله دَ خپیمانتیا هم مستحب ده.

وروستي آیتونو کښې د هغې اصل معاملې بیان دې چې ددې سورت د نازلیدو سبب جوړ شو. یعنی ددې بیان چې د الله ﷻ په نزد کوم یو عمل زیات خوښ دې ، دهغې په باره کښې فرمائي چې: ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ﴾ یعنی د الله ﷻ په نزد خوښ هغه صف دَ جنګ کول دي چې د الله ﷻ د دښمنانو په مقابله کښې د الله ﷻ د کلمې اوچتولو دپاره قائم وي او د مجاهدینو دَ عزم او همت په وجه ګویا په اوسپنې پیوند شوې یو دیوال پشان وي چې په هیڅ شان ئې پښې نه خوځیږي.

دې پسې د موسی ﷺ او عیسی ﷺ دجهاد فی سبیل الله او د الله ﷻ په لار کښې د تکلیفونو او زیانونو تیرولو بیان دې او ددې نه پس بیا مسلمانانو ته د جهاد خودنه او کړې شوه. د موسی ﷺ او عیسی ﷺ کوم واقعات چې دلته بیان شوي دی په هغې کښې هم ډیر څه علمي او عملي فائدې او هدایات دي. نو د عیسی ﷺ په قیصه کښې فرمائي چې کله هغوئ ﷺ بني اسرائیلو ته د خپلې پیغمبرئی د منلو او د تابعدارئی کولو بلنه ورکړه نو دوه څیزونه ئې ورته په خصوصیت سره بیان کړل. یو دا چې زه څه ځان له رسول نه یم او نه مې خانله خبرې راوړي دي بلکه زمانه وراندې هم ګڼړ پیغمبران راغلي دي. او هم هغه خبرې ئې کړي دي کومې چې زه کوم او هم د هغوئ په کتابونو کښې راغلي دي کوم چې زما په کتاب کښې راغلي دي او د نبي کریم ﷺ په کتاب کښې به راځي او هغوئ به ئې بیانوي.

غالباً دلته په خصوصیت سره تورات څکه ذکر کړې شو چې بني اسرائیلو ته راغلې نژدې آسماني کتاب دا وو ګنې د پیغمبرانو ﷺ تصدیق خو ټولو پخوانو آسماني کتابونو لره شامل او عام دې. داشان په دې کښې اشاره دې ته هم کیدیشي چې شریعت عیسی ﷺ اګر چې مستقل شریعت دې خو ددې اکثر احکام د شریعت موسوي ﷺ او د تورات د احکامو مطابق دي. صرف څو احکام په په کښې بدل کړې شوي دي. دا خو د پخوانو پیغمبرانو ﷺ او کتابونو د تصدیق مضمون وو ، بل څیز دا چې د روستو راتلونکی رسول ﷺ زیرې واؤرولې شو په دې کښې هم دې ته اشاره ده چې د نبي کریم ﷺ هدایتونه به هم ددې مطابق وي څکه پې ایمان راؤړل بعینه تقاضا د عقل او دیانت ده

ور سره د کوم راتلونکی رسول ﷺ زیرې چې عیسی ﷺ بني اسرائیلو ته واؤرولو نو د نبي کریم ﷺ نوم او پته هم په انجیل کښې اوخودلې شوه په دې کښې بني اسرائیلو ته دا هدایت دې چې کله دغه رسول ﷺ تشریف راوړي نو ستاسو فرض دی چې ایمان پرې راوړئی او تابعداري ئې کوئی په ﴿مُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِن بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ﴾ کښې هم ددې بیان دې ، په دې کښې د راتلونکی پیغمبر ﷺ نوم احمد ﷺ خودلې شوې دې. دغسې د هغوئ ﷺ محمد ﷺ او نور نومونه هم وو خو دلته د احمد نوم په انجیل کښې د خودلو مطلب او مصلحت شاید صرف دا وي چې په عربو کښې محمد نوم ایخودل زوړ دستور وو ، څکه ددې نوم خلق

په عربو کښې نور هم وو. البته احمد نوم په عربو کښې مشهور نه وو هغه د نبي کريم ﷺ ذات مبارک پورې مخصوص وو.

**په انجيل کښې د رسول الله ﷺ ذکر:** دا تولو ته معلومه ده او پخپله نصارى هم دا اقرار کوي چې په تورات او انجيل کښې بدلون راغلي دي او حقيقت هم دادې چې په دې دواړو کښې دومره بدلون راوستې شوې دې چې اصل کلام په کښې پيژندل څه آسان کار پاتې نشو. دموجوده بدل شوي انجيل په بنا باندې د نن زماني عيسايان د قرآن پاک دا خبر نه مني چې په انجيل کښې د احمد نوم چرته د رسول الله ﷺ د تشريف راوړلو زيرې ورکړې شوې دې نو د دې هغه مختصر جواب کافي دې کوم چې په خلاصه د تفسير کښې بيان شوې دې.

البته د دې د تفصيلي جواب د پاره د مولانا رحمت الله کيرانوي رحمه الله د کتاب اظهار الحق مطالعه دې اوکړې شي چې په دې باره کښې بې مثله دې چې د عيسائيت مذهب حقيقت څه دې انجيل کښې بدلونونه شوي دي او سره د بدلونونو نه په کښې د نبي کريم ﷺ زيرې موجود دې. پخپله د لويو عيسايانو مقولې چاپ شوي دي چې که په دنيا کښې دا کتاب خوريدو نو د عيسائيت مذهب به هيڅ ترقي اونه کړې شي.

دا کتاب په عربي ژبه کښې ليکلې شوې وو، بيا په ترکي او انګريزئي کښې د دې ترجمې چاپ شوې خو د دې باره کښې ليدلې شوي دي چې عيسائي مشن د دې کتاب په ورکولو کښې خپلو کوشش لګولې دې، د دې اردو ترجمه تر اوسه پورې نه وه شوې، خو اوس اوس د دې اردو ترجمه د دار العلوم کراچئ مدرسې مولانا اکبر علي او تحقيقات جديده مفيده د موجوده زمانې دموجوده انجيلونونه مولانا محمد تقي عثماني ليکلې ده.

چې په دريو جلدونو کښې خواره شوي دي، د دې په دريم جلد کښې د صفحه نمبر ۱۸۲ نه تر صفحه نمبر ۳۲۲ پورې هم د دې زيرو تفصيل د موجوده انجيلونو په حواله او د شبهو جوابونه بيان شوي دي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ
| اے هغه کسانو |
| اٰمَنُوْا | هَلْ اَدُلُّكُمْ | عَلٰى تِجَارَةٍ | تُنْجِيْكُمْ |
| چې ايمان مو راوړې دې | آيا اوښايم زه تاسو ته | يو تجارت | چې خلاص به کړي تاسو |

| اٰئي مومنانو! | آيا داسې سوداګري درته اوښايم | چې د دردناک عذاب |

| مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝ | تُؤْمِنُوْنَ | بِاللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖ | وَتُجَاهِدُوْنَ |
| دعذاب دردناک نه | ايمان راوړئ | په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | او جهاد کوئ |

نه مو بچ کړي | ......... (هغه دا چې) په الله ﷻ او په پيغمبر ﷺ ايمان راوړئ | او د الله تعالى په لار

| فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | بِاَمْوَالِكُمْ | وَاَنْفُسِكُمْ | ذٰلِكُمْ |
| په لار دالله کښې | په مالونو خپلو سره | او په نفسونو خپلو سره | دا کار |

کښې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوئ | ......... دا ستاسو د پاره

خَيْرٌ لَّكُمْ　إِنْ كُنْتُمْ　تَعْلَمُونَ ⑪　يَغْفِرْ لَكُمْ　ذُنُوبَكُمْ

بهتره دي ستاسو دپاره | كه يئ تاسو | چې پوهیږئ | اوبه ښښي تاسو لره | ګناهونه ستاسو

غوره ده | كه تاسو پوهيږئ | ........................ الله ﷻ به ستاسو ګناهونه معاف كړي

وَيُدْخِلْكُمْ　جَنّٰتٍ　تَجْرِيْ　مِنْ تَحْتِهَا　الْأَنْهٰرُ　وَمَسٰكِنَ

او داخل به كړي تاسو لره | داسې باغونو ته | چې بهيږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه | اوكورونه

او داسې باغونو ته به مو داخل كړي | چې دهغې لاندې به نهرونه بهيږي | اوښكلي پاك د استوګنې

طَيِّبَةً　فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ　ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ⑫　وَأُخْرٰى

پاك پاك ښه ښه | په باغونو دهميشه اوسيدو كښې | دا كاميابي لويه ده | او دويم څيز |

ځايونو ته به مو داخل كړي | چې د هميشه اوسيدو باغونو دي | هم دغه لويه كاميابي ده | او بله يوه

تُحِبُّوْنَهَا　نَصْرٌ مِّنَ اللّٰهِ　وَفَتْحٌ　قَرِيْبٌ　وَبَشِّرِ

چې تاسو خوښوئ هغه | امداد دي دطرفه دالله نه | او فتحه | نزدې ده | او زيرې وركړه

[ غته ګټه] چې ستاسو ډيره خوښه ده | يعني د الله مدداو [په دشمن باندې] زر كاميابي حاصلول اومؤمنانو

الْمُؤْمِنِيْنَ ⑬　يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا　كُوْنُوْۤا　اَنْصَارَ اللّٰهِ　كَمَا

مومنانو له | اے هغه كسانو چې ايمان مو راوړي دي | شئ | مددګاران دالله | لكه څنګه چې

ته [ددې] زيرې وركړه | ائې مومنانو ! د الله ﷻ [د دين] مددګار شئ | .......................... لكه څنګه

قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ　لِلْحَوَارِيّٖنَ　مَنْ اَنْصَارِيْۤ　اِلَى اللّٰهِ

اووئيل | عيسى خوى دمريم | حواريانو ته | څوك دي مددګار زما | طرف دالله ته

چې عيسى ﷺ د مريم خوى حواريانو ته وئيلي وو | چې څوك ما سره دالله ﷻ په دين كښې مدد كوي

قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ　نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ　فَاٰمَنَتْ　طَّآئِفَةٌ

اووئيل حواريانو | مونږه مددګاران دالله يو | پس ايمان راوړو | يوې ډلې |

حواريانو جواب وركړو | چې مونږ دالله ﷻ [ددين] مددګاران يو | نوبيا په بني اسرائيلو كښې

مِّنْ بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ　وَكَفَرَتْ طَّآئِفَةٌ　فَاَيَّدْنَا　الَّذِيْنَ

دبني اسرائيلو نه | او انكار اوكړو بلې ډلې | پس تائيد اوكړو مونږه | دهغه كسانو |

يوې ډلې ايمان راوړو | او بلې ډلې انكار اوكړو | ........... نو مونږ د هغوى د دښمن په مقابله كښې

اٰمَنُوْا　عَلٰى عَدُوِّهِمْ　فَاَصْبَحُوْا　ظٰهِرِيْنَ ⑭

چې ايمان ئې راوړو | په مقابله د دشمنانو دهغوئ كښې | پس شو هغوئ | غالب

دمؤمنانو مدد اوكړو | ...................................... نو هغوئ غالب اوګرځيدل

**آسان ترجمه قرآن**

اے ايمان والو! آيا زه تاسو ته د يو داسې تجارت پته دركړم، چه تاسو ته دردناك عذاب نه نجات دركړي؟ (هغه دادې چه) تاسو په الله تعالیٰ او دهغه په رسول باندې ايمان راؤړئ، او په خپل مال او

دولت او په خپلو ځانونو سره د الله تعالى په لاره کښې جهاد اوکړئ، دا ستاسو دپاره ډیره بهتره ده، که تاسو پوهيږئ ددې په نتيجه کښې به الله تعالى تاسو ته ستاسو ګناهونه اوبخښي.او تاسو به په هغه باغونو کښې داخل کړی چه دهغې لاندې به نهرونه بهيږی.او په داسې ښائسته کورونو کښې به مو دیره کړی،چه د هميشه والی په جنتونو کښې به واقع وی هم دا زبردسته کاميابی ده. او يو بل څيز به تاسو ته درکړی، چه تاسو ته ډير خوښ دې، (او هغه څيز دادې) د الله تعالى د طرف نه مدد. او يوه داسې فتح چه ډير زر به تاسو ته حاصله شی. او (اے پيغمبره) ايمان والؤ ته ددې خبرې خوشخبری واؤروه. اے ايمان والؤ! تاسو د الله تعالى د دين مددګار جوړ شئ. څرنګه چه عيسٰی بن مريم عليه السلام خپلو حواريينو ته وئيلې وو چه: هغه څوک دی چه د الله تعالى دپاره به زما مددګار شی؟ حواريينو اووئيل: مونږ د الله تعالى د دين مددګار يو.نو بيا د بنی اسرائيلو يوې ډلې ايمان راؤړو، او يوې ډلې کفر اختيار کړو. نو چه کومو خلقو ايمان راؤړې وو، مونږ د هغوی د دشمنانو خلاف د هغوی مدد اوکړو. نتيجه دا شوه. چه هغوی غالب راغلل.

## خلاصه تفسیر

وراند اول دجهاد داخرت ثمره بيا ددنياد ثمرې وعده کوی او ترغيب ورکوی چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ تِجَٰرَةٖ تُنجِيكُم مِّنۡ عَذَابٍ أَلِيمٖ﴾ [اے ايماندارو ايا زهٔ تاسو ته داسې تجارت ونبايم کوم چه تاسو لره ديو دردناك عذاب نه بچ کړی] هغه داچه ﴿تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ﴾ [تاسو خلق په الله تعالى او دهغه په رسول ايمان راوړئ ﴿وَتُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡ﴾ او دالله تعالى په لاره کښې په خپل مال او خان سره جهاد کوئ ﴿ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ﴾ داتاسو دپاره ډيره غوره ده که تاسوڅه پوهه لرئ] چه داسې وکړئ نو ﴿يَغۡفِرۡ لَكُمۡ ذُنُوبَكُمۡ﴾ [الله تعالى به ستاسو ګناهونه معاف کړی ﴿وَيُدۡخِلۡكُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ﴾ اوتاسو لره به] دجنت [داسې باغونوته داخل کړی دکومو لاندچه به نهرونه بهيږی ﴿وَمَسَٰكِنَ طَيِّبَةٗ فِي جَنَّٰتِ عَدۡنٖ﴾ او په ښائسته مکانونوکښې] به موداخل کړی [کوم چه به دهميشه اوسيدو په باغونوکښې] جوړ شوی [وی ﴿ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ﴾ دالويه کاميابی ده] او ددې حقيقی او اخروی ثمرې نه علاوه ﴿وَأُخۡرَىٰ تُحِبُّونَهَا﴾ [يوه بله ثمره] ددنيا [هم ده چه تاسودغې لره] هم په خاص طور [خوښوئ] يعنی ﴿نَصۡرٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَتۡحٞ قَرِيبٞ﴾ [دالله تعالى دطرف نه مدد او زرفتح يابی ده او] ددې په خاص طور سره محبوب کيدل خکه دی چه انسان طبعا زر ثمره هم غواړی [او] اے پيغمبر ﷺ ﴿وَبَشِّرِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾ [ته] ددې تولو کارونو [مؤمنانوته خوشخبری ورکړی] چنانچه دفتح اونصرت دپيشنګوئ ظهور داسلامی فتوحاتونه ظاهردې وراند دعيسی ﷺ دملګرو قصه يادوی اوددين دنصرت ترغيب ورکوی چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُونُوٓاْ أَنصَارَ ٱللَّهِ﴾ [اے ايماندارو تاسودالله تعالى] ددين [مددګارشئ] په داسې طريقه سره کومه چه تاسو دپاره مشروع ده يعنی جهاد ﴿كَمَا﴾ [لکه چه] حواريان دخپل شريعت دطريقې موافق ددين مددګاران شوی وو او هرکله چه خلق په کثرت سره دعيسی ﷺ دښمنان اومخالف شوی وو او هرکله چه ﴿قَالَ عِيسَى ٱبۡنُ مَرۡيَمَ لِلۡحَوَارِيِّـۧنَ مَنۡ أَنصَارِيٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ [عيسی خوئ دمريم ﷺ] [دغو حواريانو ته وفرمائيل چه دالله تعالى دپاره زماڅوك مددګار کيږی ﴿قَالَ ٱلۡحَوَارِيُّونَ نَحۡنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ﴾ دغوحواريانو ووئيل چه

مونږ دالله تعالی] ددین [مددګاریو] چنانچه دغو حواریانو ددین دا امدادوکړو چه ددي په اشاعت کښې ئې کوشش وکړو [پس] ددي کوشش نه پس ﴿فَـَٔامَنَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ [دبنی اسرائیلونه څنوخلقو ایمان راوړو ﴿وَكَفَرَت طَّآئِفَةٌ﴾ او څني خلق منکر شول] بیا ددوی په مینځ کښې په مذهبی اختلاف سره دښمنئ او خانه جنګئ شروع شوې یا مذهبی خبرې وشوې ﴿فَأَيَّدْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ﴾ [پس مونږ دایماندارو ددوی ددښمنانو په مقابله کښې تائید وکړو ﴿فَأَصْبَحُوا۟ ظَٰهِرِينَ﴾ پس هغوی غالب شول] دغه شان تاسو ددین محمدی ﷺ دپاره کوشش اوجهاد کوئ اوکه ابتداء ددې خانه جنګو دکفارو دطرف نه وی نو په دې سره په دین عیسوی کښې دجهاد کیدل نه لازمیږی

## معارف او مسائل

﴿تُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ﴾ په دې آیتونو کښې ایمان او په نفس او مال سره جهاد کولو ته تجارت وئیلې شوې دې ولې چې څنګه په تجارت کښې د څه مال خرچ کولو او محنت کولو په بدله کښې څه نفع حاصلیږی ،دغسې سره د ایمانه د الله ﷻ په لار کښې د ځان او مال خرچ کولو په بدله کښې د الله ﷻ رضا او د آخرت همیشه نعمتونه حاصلیږی چې ذکر ئې په راتلونکی آیت کښې دې چې چا دغه تجارت اختیار کړو نو الله ﷻ به ئې ګناهونه معاف کوی او په جنت کښې به ورته پاکیزه او زیات غوره د استوګنې ځایونه او مکانات ورکړی چې په کښې به د هر قسم آرام او مزو سامان وی لکه په حدیث پاک کښې د مساکن طیبه په تفسیر کښې ددې بیان چې راغلې دی[1] ، وروسې د آخرت د نعمتونو سره د څه دنیوی نعمتونو هم وعده فرمائی : ﴿وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ۖ نَصْرٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ۗ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ لفظ د أخرى د نعمت صفت دې معنى داده چې د آخرت نعمتونه اود جنت مکانونه خو به ورکولې شی څنګه چې وعده ورسره شوې ده خو په دنیا کښې هم یو نغد نعمت هم ورکیدونکې دې چې هغه دالله ﷻ مدد دې او دهغې په ذریعه فتح قریب یعنی د دښمنانو د ملکونو فتح کیدل دی ، دلته قریب که په مقابله دآخرت کښې واخستې شی نو روستو راتلونکې اسلامی فتحې د عربو او عجمو تولې په دې کښې داخلې دی اوکه نزدې عرفی مراد واخستې شی نو دهغې رومبې مصداق د خیبر فتح ده . او وروسې بیا دمکې مکرمې فتح ده او ددې فتح قریب باره کښې اوفرمائیل چې : ﴿تُحِبُّونَهَا﴾ چې ستاسو خوښ دی ، ولې چې انسانی طبیعت کښې تلوار او تادی پرته ده لکه قرآن کریم کښې دی چې ﴿وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ عَجُولًا﴾ یعنی انسان جلد باز دې ددې دا مطلب نه دی چې د آخرت نعمتونه ګنی د هغوئ خوښ نه وو بلکه مطلب دادې چې د آخرت د نعمتونو طلب او محبت خو ښکاره ده ، مګر په طبعی دول څه نغد نعمت په دنیا کښې هم ستاسو مطلوب او خوښ دی هغه به هم درکړې شی.

﴿كَمَا قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّـۧنَ مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ حواریین د حواری جمع ده چې معنی ئې خالص دوست ده چې دهر عیب نه پاک او صفا وی [روح د زهری نه][2] څکه کومو خلقوچې په

---

[1] ) تفصیل دپاره اوګورئ:- المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث:[١٤٧٦٨] و مسند البزار مسند عمران بن حصین رضی الله عنه رقم الحدیث :[٣٥٦٣]

[2] ) تفسیرروح المعانی تحت هذه الآیة [ج: ٢٠ ص:٤٩٣]

عيسى ﷺ باندې ايمان راوړو هغوى ته حوارى وئيلې شى چې دغه دولس كسان وو لكه په سورة آل عمران كښې تير شوى دى په دې آيت مبارک كښې د عيسى ﷺ د زمانې د يوې واقعې په ذكر كولو سره مسلمانانو ته د دې شوق وركړې شوې دې چې د الله ﷻ د دين د مدد د پاره تيار شى لكه چې عيسى ﷺ كله چې د دښمنانو نه تنګ شو نو خلقو ته ئې اووئيل چې ﴿مَنْ أَنصَارِيٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ يعنى د الله ﷻ د دين په خورولو كښې به مې څوک مدد كوى ؟ جواب كښې دولسو كسانو د وفادارئى لوظ اوكړو او بيا د عيسى ﷺ د دين په خورولو كښې ئې خدمتونه اوكړل نو مسلمانانو لره هم د نبى كريم ﷺ د دين امداد كوؤنكى جوړيدل پكار دى.

صحابه كرامو ﷺ په داسې شان داحكم منلو او عمل ئې پرې اوكړو چې په پخوانو امتونو كښې د دې مثال نه ملاويږى ، د نبى كريم ﷺ د مدد كولو او د دين په خاطر ئې د ټولو عربو او عجمو دښمنى په سر واخسته. د دغې خلقو دلاسه ئې زيانونه او تكليفونه په سر واخستل ، خپل خان و مال او اولاد ئې په هغې قربان كړو او آخر كښې الله ﷻ په خپلې فتح او مدد سره اوپالل او په ټولو دښمنانو ئې غالب او بريالى كړل ، د دښمنانو ملكونه د نبى كريم ﷺ لاسونو ته راغلل او د دنيا حكومت كول هم الله ﷻ د دوى نصيب كړل.

﴿فَـَٔامَنَت طَّآئِفَةٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَكَفَرَت طَّآئِفَةٌ ۖ فَأَيَّدْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا۟ ظَٰهِرِينَ﴾.

**عيسايانو درې فرقې** :: بغوى ﷺ د دې آيت په تفسير كښې د عبد الله بن عباس ﷺ نه روايت كړې دې چې كله عيسى ﷺ آسمان ته اوخيژولې شو نو عيسايان درې ډلې شو. يوې ډلې اووئيل چې هغه پخپله خدائى وو چې آسمان ته لاړو. بلې ډلې اووئيل چې د خدائى ځوئې وو چې الله تعالى آسمان ته اوخيژولو او په دښمنانو ئې بر كړو. دريمې ډلې صحيح او حق خبره داسې اوكړه چې نه خو خدائى وو او نه د خدائى ځوئې وو بلكه د الله ﷻ بنده او د هغه رسول وو. الله ﷻ د ښمنانو نه د حفاظت او د هغوئ ﷺ د رجو پورته كولو په خاطر هغوئ ﷺ لره پورته كړو. د غه خلق صحيح مؤمنان وو ، درې واړو ډلو سره عام خلق هم ملګرى شو او د دوئ ترمينه اختلاف پيدا شو او خپل مينځ كښې د جنګ صورت اختيار كړو په اتفاق سره دواړه كافرې ډلې په مؤمنانو باندې غالبې شوې تر هغې چې الله ﷻ خپل رسول خاتم الانبياء ﷺ راؤليږلو. هغوئ ﷺ د دغې مؤمنې ډلې تائيد اوكړو. او په دې شان دغه مؤمنه ډله د حجت او دليل تر مخه په هغې نورو ډلو غلبه راغله [ مظهرى ][1].

د دې تفسير مطابق : ﴿ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ نه به مراد د عيسى ﷺ د امت مؤمنان وى چې د خاتم الانبياء ﷺ په تائيد او مرستې سره كامياب او فتح مند شو [ مظهرى ][2]

او ځينو حضراتو فرمائيلى دى چې د عيسى ﷺ د پورته كولو نه پس د عيسايانو دوه فرقې شوې يو فرقې عيسى ﷺ ته الله ﷻ يا د الله ﷻ ځوئې وئيلو چې مشركان شو ، بله ډله په صحيح دين باندې قائمه پاتې شوه چې هغوئ ﷺ ته به ئې د الله ﷻ بنده او د الله تعالى رسول وئيلو بيا د دغه مشركانو او مؤمنانو ترمينځه جنګ اوشو نو الله ﷻ د عيسى ﷺ د امت مؤمنان د هغوئ د امت په كافرانو باندې غالب كړل.

---

[1] ) تفسير البغوى [ج: ۸ ص: ۱۱۰] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۷۴]

[2] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۷۴]

خو مشهوره داده چې د عيسى ﷺ په مذهب کښې د جهاد او د جنګ حکم نه وو د مؤمنانو جنګ کول څه لرې خبره معلومیږی . [روح المعانی] (¹).

مګر د تفسير په خلاصه کښې ددې جواب ته اشاره کړې شوې ده چې کیدیشی چې د جنګ شروع د نصرانيانو کافرانو کړې وی او مؤمنانو صرف د هغوئ په شا تمبولو باندې مجبوره شوی وی ، په دې شان دا دجهاد او قتال په حکم کښې نه راځی . والله سبحانه وتعالى اعلم .

تمت سورة الصف بحمدالله وعونه

للحادی والعشرين من جمادی الاولى ۱۳۹۱هجری يوم الخميس ويتلوها انشآء الله

| ایاتونه | | سورة الجمعه مدنية وهي احدى عشر اية وفيها ركوعان | | رکوع گاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ① | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ② |

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

پاکی بیانوی | الله لره | هغه څه | چی په اسمانونو کښی دی | او هغه څه | چی په زمکه کښی دی |

په زمکه او آسمانونو کښې چې څه دی دالله ﷻ پاکی بیانوی

الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ① هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ

چی بادشاه دي | پاك دي | غالب دي | دحکمتونو خاوند دي | هغه هغه ذات دي | چی وې لیږو |

چی بادشاه دې | پاک دې | ......غالب دې |صاحب د حکمت دې | [الله تعالى] هغه ذات دې چې په

فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ

په امیانو ناپوهانو کښی | یو رسول | دهغوئ نه | چی لولی وائی | په هغوئ باندې | ایتونه دهغه |

امیانو [عربو] کښې ئې هم د دوی نه یو پیغمبر راولیږلو | چې د الله ﷻ آیاتونه ورته آوروی

وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۗ وَاِنْ كَانُوْا

او پاکوی هغوئ لره | اوښائی هغوئ ته کتاب | او دحکمت خبری | حال دا چی | وو هغوئ |

اود کتاب او دحکمت خبرې ورته ښائی | ..........................حال دا چې دوئ وراندې په ښکاره

مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۙ ② وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ

مخکښې ددې نه | په ګمراهئ ښکاره کښی | او دد؛ پیغمبری دهغه نورو دپاره هم ده | ددوئ نه |

ګمراهئ کښې وو | ..............................او په د وئ کښې مو نورو ته هم [ته لیږلې ئی]

لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ③ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ

چی نه دی ملاؤ شوی | ددوئ سره | او هغه | غالب | او حکیم دی | دا فضل دالله دي

چې هغوئ لا تر اوسه را رسیدلی نه دی | او هغه غالب اوصاحب د حکمت دې | دا د الله ﷻ فضل دی

(¹) تفسیر روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۴۹۳]

يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ④ مَثَلُ الَّذِينَ

چي ورکوي ئې هغه چاته | چي خوښه ئې شي | او الله | خاوند دفضل لوئ دې | مثال دهغه کسانو |

هغه چا ته ئې ورکوي چې وې غواړي| او الله ﷻ دلوئې فضل خاوند دې | چاته چې تورات باندې

حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا ۚ

چې بار کړې شوې وو پرې تورات | بيا پورته نه کړو هغوئ هغه | پشان دهغه خر دې | چې باروي کتابونه |

دعمل کولو حکم شوې وو|او هغوئ په دې عمل اونه کړو|د هغوئ مثال دخر دې چې کتابونه پرې بار وي

بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ

ډير خراب دي | مثال دقوم | هغه قوم | چې دروغ ئې اوګڼړل | آيتونه دالله | او الله |

د هغې قوم مثال ډير خراب دې | چې د الله ﷻ آيتونو ته ئې نسبت د دروغو اوکړو | او الله ﷻ

لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ⑤ قُلْ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ هَادُوا

نه کوي هدايت | قوم ظالم ته | اووايه | اے هغه کسانو | چې يهوديان شوي يئ |

ظالمانو ته هدايت نه کوي | ..................ته اووايه | ..................چې اے يهودو !

إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلَّهِ مِنْ دُونِ النَّاسِ

که ګمان کوئ تاسو | چې بيشکه تاسو | دوستان يئ دالله | بې دنورو خلقو نه [يعنې يوازې تاسو] |

که تاسودا دعوه کوئ| .........چې په ټولو خلقو کښې صرف تاسو د الله ﷻ دوستان ئې|

فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ⑥ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُ أَبَدًا

پس ارزو اوکړئ | دمرګ | که يئ تاسو | رښتينی | او هر ګز به ارزو اونه کړي ددې | هميشه |

نو د مرګ ارزو اوکړئ | که تاسو رښتونی يئ | ...................اودوئ به چرې هم دا ارزو اونکړي

بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۚ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ⑦

په سبب دهغې | چې مخکښې ليږلی دی | لاسونو ددوئ | او الله | ښه عالم دې | په ظالمانو باندې |

ځکه چې دخپله لاسه وړاندې ليږلی عملونه ورته معلوم دی|او الله ﷻ په دې ظالمانو ډير عالم دې

قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِي تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيكُمْ

اووايه | بيشکه مرګ | هغه | چې تاسو تښتئ | دهغې نه | پس بيشکه هغه | ملاويدونکې دې ستاسو سره

ته ورته اووايه چې تاسو دکوم مرګ نه تښتئ | هغه به تاسو باندې خامخا راځي

ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ

بيا به واپس شئ تاسو|هغه ذات ته چې عالم دې په غيبو|او په ښکاره باندې | پس هغه به خبر درکړي تاسو ته

بيا به پټ او ښکاره هر څه عالم [ الله ﷻ ] ته ور اووړاندې کيږئ| ............نو هغه به درته خپل

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ⑧

په هغه کارونو | چې وئ تاسو | چې کول به مو |

عملونه يو په يو اوښائي [چې تاسو دا عملونه کړي وو]|

## آسان ترجمه قرآن

په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دي، هغه د الله تعالی تسبیح کوي، چه بادشاه دې، د لوئې تقدس مالک دې، چه دهغه اقتدار هم کامل دې، او د هغه حکمت هم کامل دې. هم هغه ذات دې، چه په امیانو خلقو کښې ئې د هغوی د جنس نه یو رسول اولیږلو، چه په هغوی باندې د هغه آیتونه تلاوت کړي، او هغوی پاک کړي، او هغوی ته د کتاب او حکمت تعلیم ورکړي، اګر چه هغوی ددې نه مخکښې په ښکاره ګمراهئ کښې وو. او (دا رسول چه چا طرف ته لیږلې شوې دې) په هغوی کښې نور خلق هم دي، چه لاتر اوسه پورې دوی سره یو ځائې شوې نه دي او هغه د لوئې اقتدار والا، لوئې حکمت والا دې. دا د الله تعالی فضل دې، هغه چه چاته اوغواړي ورکوي، او الله تعالی د لوئې فضل خاوند دې په کومو خلقو باندې چه د تورات پیټې اچولې شوې وو، بیا هغوی دهغه پیټې اوچت نه کړې شو، نو د هغوی مثال د هغې خر پشان دې، چه ډیر کتابونه پرې بار کړې شوې وي، ډیر بد مثال دې، د هغې خلقو دپاره، چه د الله تعالی آیتونه دروغ ګنړي، او الله تعالی داسې ظالمان خلق هدایت ته نه رسوي. (اے پیغمبره علیه السلام! دوی ته) اووایه چه: اے هغه خلقو چه یهودیان شوي یئ، که ستاسو دعوی دا ده، چه د ټولو خلقو نه سوا تاسو د الله تعالی دوستان یئ، نو د مرګ تمنا اوکړئ، که تاسو رشتونی یئ او دوی چه په خپلو لاسونو باندې کوم عملونه مخکښې لیږلې دي، د هغې په وجه دوی چرې هم د مرګ تمنا نه کوي او الله تعالی دهغه ظالمان ښه پیژنی. اووایه چه: د کوم مرګ نه تاسو تښتئ، هغه تاسو ته راتلونکې دې، بیا به تاسو هغه (الله) طرف ته واپس کولې شئ، چه هغه ته د ټولو پټو او ښکاره خبرو علم دې، بیا به هغه تاسو ته اوښائي چه تاسو کوم عملونه کول.

## خلاصه تفسیر

﴿يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ [ټول څیزونه څه چه په آسمانونو کښې دی اوڅه چه په مزکه کښې دی] قالا یاحالا [دالله تعالی پاکی بیانوی ﴿الْمَلِكِ﴾ کوم چه بادشاه دې] ﴿الْقُدُّوسِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ﴾ دعیبونونه [پاك دې زبردست دې حکمت والا دې ﴿هُوَ الَّذِي﴾ هغه دې ﴿بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ﴾ کوم چه] دعربو [ناخوانده خلقو کښې په دوی] [په قوم] کښې [یعنی په عربو کښې] [یوپیغمبرولیږلو ﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ﴾ کوم چه دوی ته دالله تعالی ایتونه اوروی او دوی لره] دباطلوعقیدو اوناکاره اخلاقونه [پاکوی ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ او دوی ته کتاب اوپوهه] خبرې ئې په کوموکښې چه ددین ضروری عملونه راغلل [اورزده کوی ﴿وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ اوداخلق] ددوی ﷺ دبعث نه [وړاندې په ښکاره ګمراهئ کښې وو] یعنی په شرك اوکفر کښې اومراد ترې نه اکثر دی ځکه چه په جاهلیت کښې هم څنې موحدین وو مګربیاهم دهدایت دتکمیل هغوی هم مداح وو [او] علاوه ددې موجودینونه ﴿وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ﴾ [دنورو دپاره هم] دوی ﷺ لره مبعوث وفرمائیل [کوم چه] په اسلام راوړلو سره [ددوی نه کیدونکې دی لیکن لا اوس په دوی کښې شامل شوی نه دی] خواه په وجه ددې چه موجود دی مګراسلام ئې نه دې راوړې یا په وجه ددې چه اوس لا پیداشوی نه دی په دې کښې تول امت ترقیامته پورې عجمی اوعربی تول راغلل او دوی ته ئې منهم ځکه وفرمائیل چه مسلمانان تول په رشته داسلام کښې منسلك اومتحد دی لکه په خازن کښې داسې دی ﴿وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ [اوهغه زبردست حکمت والادې] چه په خپل حکمت اوقدرت سره ئې داسې نبی ولیږلو او په

اولنی ایت کښې فی نفسه دد غو صفتونو اثبات مقصود وو پس تکرار رانغې او ﴿ذٰلِكَ﴾ [دا]
درسول په ذریعه سره د ګمراهئ نه وتل د کتاب اوحکمت دهدایت طرف ته راتلل ﴿فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ
مَنْ يَّشَآءُ﴾ [دالله تعالی فضل دې هغه چاله چه غواړی فضل ورکوی ﴿وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ﴾
اوالله تعالی لوئ فضل والادې] اوکه په تولو فضل وکړی نو وسعت دې مګر هغه په خپل
حکمت سره چاله چه غواړی خاص فرمائی اوچاله چه غواړی بې حصې کوی ئ لکه چه پورته
دامیین په ایمان راوړو سره او په راتلونکی ایت کښې دیهود دعالمانو په ایمان نه راوړو سره
دا امر ظاهر دې وراند دخنودروغژن کوونکو درسالت تقبیح دې چه ﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ ثُمَّ لَمْ
يَحْمِلُوْهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا﴾ [کوموخلقو ته په تورات دعمل کولو حکم ورکړې شو بیا هغوی
په دې عمل ونه کړو دهغوی حالت دهغه خرد حالت په شان دې په کوم چه دډیروکتابونو بار
پروت وی] مګرهغه دهغوکتابونو دنفع نه محرومه وی دغه شان اصل مقصود اونفع دعلم عمل
دې هرکله چه دانه وی اوصرف په تحصیل اوحفظ دعلم کښې خان سترې کوی نوبالکل ئ
مثال دغسې شو او دخرتخصیص ځکه اوشو چه داپه ښناورو کښې بې وقوفه مشهور دې نو په
دې زیات تنفیر وشو غرض ﴿بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ﴾ [د هغو خلقو بدحالت دې
کوموچه دالله تعالی ایتونه دروغژن کړل] لکه دایهود چه دی ﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ﴾
[اوالله تعالی داسې ظالمانوته] د[هدایت] توفیق [نه ورکوی] ځکه چه سره دپوهې عنادکوی
اوکه هدایت ورته کیږی نو پس دپریښودو دعناد نه به کیږی او په تورات دعمل کولو
دلوازمونه ایمان راوړل دی په نبی کریم ﷺ لکه چه په دې کښې حکم دې پس ایمان نه راوړل
مستلزم دی په تورات دعمل نه کولولره اوکه داخلق داوائی چه مونږه سره ددې حالت نه هم
دالله تعالی مقبول یونو ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْٓا﴾ [ته] دوی ته [ووایه چه اے یهودیانو ﴿اِنْ زَعَمْتُمْ
اَنَّكُمْ اَوْلِيَآءُ لِلّٰهِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ﴾ که ستاسو دادعوی وی چه تاسو بغیر دشرکت دغیرنه دالله تعالی
مقبول] محبوب [یئ ﴿فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ﴾ نوتاسو] د دې دتصدیق دپاره لره [دمرګ تمناوکړئ] وښایئ
﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ [که تاسو] په دې دعوی کښې [رښتونی یئ او] مونږ ددې سره دا
وایوچه ﴿وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗٓ اَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ﴾ [دا] خاص مدعیان [به چرې ددې] مرګ [تمناونه کړی
په وجه د] ویرې دسزا د [هغو عملونو] د کفر [چه دوی په خپلولاسونو وراندلیږلی دی ﴿وَاللّٰهُ
عَلِيْمٌ بِالظّٰلِمِيْنَ﴾ او الله تعالی ښه خبردې] په حال [ددې ظالمانو باند] هرکله چه تاریخ د
مقدمې راشی اوفردجرم واوړولې شی دسزا حکم اوشی او ددې وعدې دسزا دتاکید دپاره ﴿قُلْ
اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ﴾ [ته] دوی ته داهم [ووایه کوم مرګ نه چه تاسوتښتئ] او ددې
تمناسره ددعوې دولایت نه ځکه نه کوئ چه سزا به ځکل وی درله ﴿فَاِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ﴾ نو [دغه]
مرګ [به] یوورځ تاسولره ونیسی] ﴿ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ بیا به تاسو پټ اوظاهر
پیژندونکی] الله تعالی [ته بوتلې شئ] ﴿فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ بیا به هغه تاسو ته ستاسو
تول عملونه وښائی] او سزا به درکړی

## معارف او مسائل

﴿يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾ د قرآن پاک کوم سورتونه چې د سبح یا یسبح نه شروع کیږی
هغې ته مسبحات وئیلې شی. په هغې کښې زمکې، آسمانونو او په دې کښې د موجود تولو

ځيزونو ټولو د پاره د الله ﷻ تسبيح وئيل ثابت کړي شوي دي. په ژبان حال باندې د هر ځيز په تسبيح وئيلو باندې هر څوک پوهيږي خو صحيح خبره داده چې هر ځيز په خپل طرز کښې حقيقي تسبيح کوي ولې چې الله ﷻ هر ځيز ته دخپل شان مطابق پوهه او شعور ورکړې دې ، ددې لازمي غوښتنه تسبيح کول دي ، ددې ځيزونو تسبيح لره خلق نه آوري لکه چې قرآن پاک هم فرمائي چې:

﴿وَلَكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ﴾(۱) د اکثرو سورتونو په شروع کښې سبح د ماضي په صيغه کښې راغلې ده صرف په سورة جمعه او سورة تغابن کښې په لفظ دمضارع سره يسبح راوړې شوې دې. د عنوان په دې بدلولو کښې يو بلاغت او لطافت هم ددې سبب شوې دې ، هغه دادې چې د ماضي صيغه په قطعيت او يقين باندې دلالت کوي ، ځکه ئې اکثر هم دا استعمال او فرمائيله او صيغه د مضارع په استمرار او هميشوالي باندې دلالت کوي. په دوؤ ځايونو کښې ددې فائدې دپاره دغه صيغه استعمال اوفرمائيله:

﴿هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ﴾ اميين د امي جمع ده ، ناخوانده بنده ته وئيلې شي ، د عربو خلق په دې لقب سره ځکه مشهور دي چې په دوئ کښې د ليکلو لوستلو رواج نه وو. ډيرو کمو خلقو به کښې ليکل لوستل کړي وو ، په دې آيت مبارک کښې د الله ﷻ د لوئې قدرت ښکاره کولو دپاره په خاص دول ئې د عربو دپاره دا لقب اختيار اوفرمائيلو او دا هم چې کوم نبي کريم ﷺ اوليږلې شو هغه هم د دوئ ځينې ځخه يعني امي دې. په دې بنا دا معامله ډيره حيرانوؤنکې ده چې ټول قوم هم امي ، ورته ليږلې شوې رسول ﷺ هم امي وو ، او دوئ يعني نبي کريم ﷺ ته حواله کړې شوي فرائض چې په راتلونکي آيت مبارک کښې بيانولې شي. هغه ټول علمي ، تعليمي او اصلاحي داسې وي چې نه ئې څوک امي خودلې شي او نه څوک امي قوم د هغې د ازده کولو جوګه کيدې شي.

دا صرف د الله تعالى په کامل قدرت سره د رسول الله ﷺ معجزه کيديشي چې نبي کريم ﷺ کله د تعليم ورکولو او اصلاح کولو کار شروع کړو نو هم په دغې اميانو کښې دغه عالمان او حاکمان پيدا شو د چا علم و حکمت ، عقل او پوهې او دهر کار اعلى کولو صلاحيت چې په ټول جهان باندې رعب قائم کړو.

د پيغمبر ﷺ د پيغمبر کيدو درې مقصدونه: ﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ دې آيت مبارک کښې د نبي کريم ﷺ درې صفتونه دالله ﷻ د نعمتونو په ترڅ کښې خودلې شوي دي يو د قرآن پاک د آيتونو تلاوت چې خپل امت ته ئې په لوستو آوروي. بل دا چې خلق د ظاهري او باطني ګندګئ او پليتئ نه پاکوي چې په کښې د بدن اولباس وغيره ظاهري پاکي هم داخله ده او د عملونو او عقيدو او اخلاقو ، عادتونو پاکوالئ هم دريم د کتاب او حکمت تعليم ورکول دي.

دا درې واړه ځيزونه امت دپاره دالله ﷻ انعامات دي او د نبي کريم ﷺ د پيغمبر کولو مقصدونه هم دي. ﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ﴾ د تلاوت اصلي معنى تابعداري کول دي ، په اصطلاح کښې دا لفظ د کلام الله د لوستلو دپاره استعماليږي او د آيتونو نه مراد د قرآن کريم آيتونه

---

(۱) ترجمه:- خو تاسو خلق دهغه پاکي بيانولو باندې نه پوهيږئ.

دي. د عليهم په لفظ سره دا اوخودلې شو چې د نبي كريم ﷺ يو منصب او د مبعوث كولو مقصد دادې چې قرآني ، آيتونه خلقو ته په لوستو آوروي.

دې آيت كښې د نبي كريم ﷺ دمبعوث كولو دويم مقصد ﴿وَيُزَكِّيهِمْ﴾ اوخودلې شو ددې مصدر تزكيه دې چې معنى ئې پاكول دي. اكثر د معنوي او باطني پاكئ دپاره استعمالولې شي. يعني د كفر ، شرك او خرابو عادتونو او اخلاقو نه پاكيدل او كله مطلقا د ظاهري او باطني پاكئ دپاره هم استعمالولې شي. دلته په ظاهره هم دا عامه معنى مراد ده.

دريم مقصد ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾ دې. دَ كتاب نه مطلب قرآن كريم او حكمت نه مراد هغه تعليمات اوهدايات دى چې دهغوئ نه په قول او عمل سره ثابت دى ، هم په دې بنا ډيرو مفسرينو حضراتو دلته د حكمت تفسير سنت فرمائيلې دې.

**يو سوال او جواب**: دلته داسوال پيدا كيږي چې د تلاوت نه پس دتعليم بيان راغلې دې ، وروسته د تزكيه بيان پكار وو ، ځنګه چې طبعي ترتيب هم داسې جوړيږي چې اول تعليم د الفاظو ، بيا تعليم د معنو ، او ددې دواړو په نتيجه كښې د عملونو او اخلاقو صحيح والئ چې د تزكئې مفهوم دې. خوقرآن پاک كښې دا آيت مبارک په ډيرو ځايونو كښې راغلې دې ، په اكثرو ځايونو كښې دا ترتيب داسې بدل كړې شوچې دتلاوت او تعليم ترمينځه د تزكيه بيان راغلو.

روح المعاني كښې ئې ددې كيفيت دا خودلې دې چې دترتيب طبعي مطابق دا درې واړه څيزونه په يو ځائې كيدو سره يو څيز حسابيږي ځنګه چې د ډيرو داروګانو يو ځائې كيدو سره د هغې يو نوم وى. خو دلته د بيل بيل نومونو اخستلو مطلب دا حقيقت واضح كول دى چې دا درې واړه بيل بيل د الله ﷻ مستقل نعمتونه دى[1] ، څكه درې واړه د پيغمبرئى بيل بيل فرض خودلې شوى دى چې هم دغې ته په كښې اشاره اوكړې شي.

ددې آيت مبارک مكمل تفسير او تشريح په سوره بقره كښې تيره شوې ده هلته ئې اوګورئى چې ډيرې مسئلې او فائدې ترې راويستلې شوى دى.

﴿وَاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ د آخرين لفظي معنى نور خلق.

دَ ﴿لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ﴾ معنى داده چې دغه خلق لا تر اوسه امينو سره نه دى يو ځائې شوى ، ددې نه مراد هغه ټول مسلمانان دى چې ترقيامته پورې به په اسلام كښې داخليږى[2]. دې كښې اشاره دې ته ده چې تر قيامته پورې راتلونكى مسلمانان ټول په ټوله اولينو مؤمنانو يعنى صحابه كرامو ﷺ سره يو ځائې شوى حسابيږي. دا د وروستو مسلمانانو دپاره لوئې زيرې دى [روح][3]

د آخرين لفظ په عطف كښې دوه قولونه دى ، څنې ئې په امين باندې عطف بولي. دهغې حاصل دا راوځى چې الله ﷻ خپل رسول ﷺ په امينو او په هغو كښې ليږلې دې چې تر اوسه دوئ سره نه دى يو ځائې شوى. امين كښې خويقينا نبي كريم ﷺ راليږلې شوى دو خو تر قيامته پورې راتلونكو خلقو ته د نبي كريم ﷺ دليږلو مطلب څه كيديشى؟ ددې

[1]) تفسيرروح المعاني [ج: ۲۰ ص:٤٩٥]
[2]) تفسيرروح المعاني [ج: ۲۰ ص:٤٩٦]
[3]) تفسيرروح المعاني [ج: ۲۰ ص:٤٩٦]

جواب په بیان القرآن کښې دا ورکړې شوې دې چې دې کښې دَ لیږلو نه مطلب دَ دوی دپاره لیږل دی ولې چې لفظ دَ فی په عربۍ ژبه کښې دې معنی دپاره هم استعمالیږی[1]

او ځینو مفسرینو فرمائیلی دی چې د اخرین عطف دَ يُعَلِّمُهُمْ په ضمیر منصوب باندې دې ، ددې مطلب دا راوځی چې نبی کریم ﷺ امیینو ته هم او هغې خلقو ته هم تعلیم ورکوی چې لا تراوسه دَ امیینو سره نه دی یو ځائې شوی . [مظهری دا غوره کړل][2]

صحیح بخاری او مسلم کښې د ابی هریره ﷺ روایت دې چې مونږ نبی کریم ﷺ سره وُ چې او سورهٔ جمعه په نبی کریم ﷺ نازل شو نبی کریم ﷺ مونږ ته واؤروله کله چې نبی کریم ﷺ ﴿وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ﴾ آیت اولوستو نو مونږ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! دا څوک دی چې اخرین سره یاد کړې شوی دی ؟ حضور پاك خاموشی اختیار کړه، خو چې څو ځله دغه سوال پورته کړې شو نو نبی کریم ﷺ خپل لاس مبارک په سلمان فارسی ﷺ باندې کیخودو او وې فرمائیل چې که ایمان پیروونو ستوری په اندازه هم لوړ وی نو ددهٔ ﷺ دقوم خلق به دهغې ځائې نه هم ایمان راوړی . [مظهری][3]

دې روایت کښې هم داهل فارس د تخصیص څه ثبوت نشته بلکه دومره ثابت شو چې دا هم دَ آخرین په مجموعه کښې داخل دی، دې حدیث پاک کښې داهل عجم لوئې فضیلت دې [مظهری][4]

﴿مَثَلُ الَّذِينَ حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا﴾ اسفار د سِفر په کسره دَ سین جمع ده معنی ئې لوئې کتاب ده . په تیرو شوؤ آیتونو کښې دا اوخودلې شو چې نبی کریم ﷺ به په امیینو کښې پیغمبر اومبعوث کولې شی او نبی کریم ﷺ د پیغمبرئی درې مقصدونه هم خودلې شوی وو . څنګه چې په پخوانی آسمانی کتاب تورات کښې هم دَ نبی کریم ﷺ دغسې بیان راغلې وو پکار وو چې د نبی کریم ﷺ په لیدلو سره پرې یهودو ایمان راوړې وې خو هغوئ لره ددنیا مرتبو او مال دتورات د حکمونو نه هم رانده کړل او سره د علمه هغوئ دَعمل په اعتبار سره دا شان شو لکه چې بیخی جاهلان او ناخبره ویی . ددغې خلقو بدی په دې آیت مبارک کښې داسې بیان شوه داخلق په کوم وچې تورات بار کړې شوې وؤ یعنی دَ دوی دَ غوښتنې نه بغیر دوی ته دَ الله تعالی دانعمت ورکړې شوې وو حق ادانه کړو یعنی په احکامو باندې تورات ئی څه پروا اونکړه نو ددوئ مثال داسې شو لکه په خر باندې غټ غټ کتابونه بار کړې شی چې پورته کړی خوئې وی مګر په هغې کښې د موجودو مضامینو نه خبر نه وی او نه ترې څه فائدې اخستلو باندې پوهیږی نو د یهودو هم دغه حال دې چې ددنیا جوړولو دپاره تورات ځان سره دوی راګرځوی، پدې سره په خلقو کښې خپل ځان له مقام او مرتبه جوړوی خو د هدایتونو نه ئې څه فائده نه پورته کوی.

---

[1] تفسیر بیان القرآن [ج:۱۲ ص:۵]

[2] تفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۷۵]

[3] تفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۷۵] و صحیح البخاري کتاب التفسیر ، باب سورة الجمعة [ج:۲ص:۷۲۷] و صحیح مسلم کتاب الفضائل، باب فضل الفارس [ج:۲ص:۳۱۲]

[4] تفسیر المظهري[ج:۹ص:۲۷۵]

**د بې عمله عالم مثال** مفسرینو فرمائیلي دي چې د یهودو دا مثال دهغې دیني عالمانو هم دي چې په خپل علم باندې عمل نه کوي :

نه محقق بود نه دانشمند چارپائے بردکتابے چند

داسې عالم نه محقق او عالم نشي وئیلې بلکه دا یو څاروې دې چې کتابونه ئې پرې بار کړي دي ﴿قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ هَادُوٓاْ إِن زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَآءُ لِلَّهِ مِن دُونِ ٱلنَّاسِ فَتَمَنَّوُاْ ٱلْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ یهودو به سره د خپل کفر او شرک او نورو بد اخلاقیانو دا دعوی هم لره ؟ ﴿نَحْنُ أَبْنَٰٓؤُاْ ٱللَّهِ وَأَحِبَّٰٓؤُهُۥ﴾ یعني مونږ خود الله پاك اولاد او دوستان یو اوډ خپل ځان نه سوا بل هیڅوک ئې د جنت حقدار نه ګنړل بلکه داسې به ئې وئیل چې ﴿لَن يَدْخُلَ ٱلْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا﴾[1] ګویا کښې د آخرت د عذاب نه به ئې خپل ځانونه بیخي په امن کښې ګنړل او دجنت نعمتونه به ئې خپل ذاتی جاګیر ګنړل ښکاره خبره ده چې د چا ایمان وي چې دآخرت نعمتونه ددنیا د نعمتونو نه په لکونو درجې زیات غوره او بهتر وي او په دنیا کښې هر وخت دا هم وینې ګوری چې ددې ځانې ژوند د رنځ وغم ، تکلیفونو ا و محنتونو نه خالي نه وي او رنځور نه هم په کښې خامخا وي او دا یقین ئې وي چې په مرګ راتلو سره به راته د آخرت هغه عظیم نعمتونه ضرور راکولې شي نو دهغې غوښتنه داده چې که لږ غوندې عقل او فهم هم په کښې وي نو د هغه په زړه کښې د مرګ آرزو پیدا کیږي ا و د زړه نه به غواړي چې زر مړ شي چې ددنیا د غمونو او تکلیفونو ، مصیبتونو نه خلاص شي او د خالص آرام او راحت دائمي ژوند ته اورسي .

څکه ورته الله ﷻ په دې آیت مبارک کښې اوفرمائیل چې تاسو ﷺ یهودو ته اوفرمائي چې که تاسو په دعوی خپل ځانونه په ټول مخلوق کښې د الله ﷻ خوښ او نیازبین بولئ او دآخرت د عذاب خطره درته بیخي نه وي نو بیا د عقل تقاضا داده چې تاسو د مرګ خواهش اولرئ او د هغې مشتاق اوسئ. بیا قرآن پاك پخپله دوئ په دروغه اوبلل او وې فرمائیل چې ﴿وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُۥٓ أَبَدًۢا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ او داخلق دمرګ ویره هیچرې څکه نه لري چې د دوئ لاسونو آخرت دپاره کوم کفر اوشرك اوبداعمالي مخې ته لیږلي دي په هغه دوئ ښه پوهیږي چې په آخرت کښې مونږ دپاره د جهنم د عذاب نه سوا بل هیڅ نشته . او د دوئ دا دعوی هم بیخي په دروغه ده چې وائي مونږ دالله ﷻ اولاد او دوستان یو بلکه ددې دروغوالي پخپله په دوئ هم واضح دي مګر ددنیا دڅه فائدو او حاصفلولو ډ پاره داسې دعوې کوي اودوئ داهم پیژني چې که مونږ د نبی کریم ﷺ په فرمائیلو د مرګ خواهش ښکاره کړه نو هغه به ضرور قبوله شي او مونږ به مړه شو څکه ئې اوفرمائیل چې دوئ هرګز دغسې خواهش نشي کولې په یو حدیث پاک کښې د رسول الله ﷺ دا فرمان راغلې دې چې که په دغه وخت په دوئ کښې چا د مرګ خواهش کړی وی نو هم دغه وخت به مړ شوې وو . [ روح ][2].

**دمرګ خواهش لرل جائز دي اوکه نه** دا بحث په تفصیل سره سورة بقره کښې تیر شوې دې په حدیث پاک کښې د مرګ د خواهش کولونه منع راغلې ده[3] ددې لوئې سبب دادې چې

---

[1]) ترجمه:- جنت ته هیڅوك داخل نشي سوا دهغه خلقو نه چې یهودیان دی.

[2]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۱ ص:۱]

[3]) صحيح البخاري كتاب التمني باب مايكره من التمني [ج:۲ص:۱۰۷۶]

هيڅوک ددې يقين کولو حق نه لرې چې په مر کيدو سره بۀ هغه جنت ته خامخا ورځي او د هيڅ قسم عذاب خطره بۀ ئې نه وي. داسې حالت کښې د مرګ خواهش د الله ﷻ په وړاندې ګويا خپله بهادري خودل دي.

﴿قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِي تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيكُمْ﴾ يعني يهود چې سره د دغې دعوې دمرګ د خواهش نه تيښته کوي، ددې حاصل د مرګ نه تښتيدل دي، دوئ ته اوفرمايه چې دکوم مرګ نه تاسو تښتئ هغه به دربانديې خامخا راځي کړه او س نه وي ځو ورځې پس به دربانديې راځي ځکه دمرګ نه تيښته د چا د وس خبره نه ده.

**د مرګ د اسبابو نه د تيښتې حکمونه** کوم څيزونه چې د مرګ سبب جوړيږي دهغې نه تيښته کول د عقل او شريعت دواړو تقاضا ده، کله چې رسول الله ﷺ ديو کوږ شوي ديوال لاندې تيريدل نو په تادئي تير شو. دغسې چرته چې اور اولګي دهغې نه وتل د عقل اوشريعت دواړو نه خلاف دي خو د مرګ نه هغه تښتيدل چې بدي ئې په دې آيت مبارک کښې بيان شوې ده هغه په دې کښې داخل نه دي. کله چې عقيده سالمه وي او دائې يقين وي چې زما د مرګ په راتلو به زما تيښته، مالره بچ نشي کړې، مګرچونکه دۀ ته معلومه نه ده چې په دې اور کښې يا زهرو يا بل هلاکوونکي څيز کښې يقينا زما مرګ ليکلې شوې دې. په دې وجه داسې څيز نه تښتيدل اوځان ترې ساتل د مرګ نه په تښتيدو کښې داخل نه دي. دکوم چې بدي په دې آيت مبارک کښې بيان شوېدې.

پاتې شوه دامسئله چې چرته طاعون مرض راشي د هغه ځائې نه تښتيدل څنګه دي؟ نو ددې تفصيلات د فقهې او حديث په کتابونو کښې بيان شوي دي. هلته ئې اوګورئې په تفسير روح المعانی کښې هم ددې آيت لاندې په دې مسئله کافي بحث شوې دې او مسئله واضحه کړې شوې ده، دلته د هغې د نقل کولو ګنجائش نشته.

| | | |
|---|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | إِذَا |
| اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | کله چې |

ائې مومنانو هرکله چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نُودِيَ | لِلصَّلَاةِ | مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ | فَاسْعَوْا | إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ |
| آواز اوکړې شي | دپاره دمانځه | په ورځ دجمعې | نو منډه وهئ | ذکر [ياد] دالله ته |

دجمعې په ورځ دمونځ دپاره اذان اوشي | نو دالله ﷻ د ذکر دپاره اجمات ته | روان شئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَذَرُوا | الْبَيْعَ | ذَٰلِكُمْ | خَيْرٌ | لَكُمْ | إِنْ كُنْتُمْ | تَعْلَمُونَ ۝ |
| اوپريږدئ | اغستل خرڅول | دا کار | بهتر دې | ستاسو دپاره | که يئ تاسو | چې پوهيږئ |

اواپه دغه وخت کښې | اخستل خرڅو ل پريږدئ | دا ستاسو دپاره بهتره ده | که تاسو پوهيږئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَإِذَا | قُضِيَتِ الصَّلَاةُ | فَانْتَشِرُوا | فِي الْأَرْضِ | وَابْتَغُوا |
| پس هر کله چې | پوره کړې شي مونځ | نو بيا خوارۀ شئ | په زمکه کښې | او تلاش اوکړئ |

بيا کله چې مونځ پوره شي | نو په زمکه کښې خواره شئ | او د الله ﷻ اِمقرر کړې

مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ۝

دفضل دالله | او ياد كړئ الله | ډير | دپاره ددې |چې تاسو كاميابي پيداكړئ|

روزى تلاش كوئ | ..........او الله ﷻ ډير ډير يادوئ | د دې دپاره چې كامياب شئ

وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا انْفَضُّوْا اِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ

او كله چې اوليدو دوئ | تجارت | يا تماشا |نو منډه كړه دوئ | هغې ته | او پريښودې ته

اوابعضو| چې د سودا يا د تماشې څيز اوليدو| نو هغې پسې په منډه خواره واره شو| اوته ئې ولاړ پريخودلې

قَآئِمًاؕ قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِؕ

ولاړ | اورته اووايه | هغه چې دالله سره دى | بهتر دى | دتماشې نه | او دتجارت نه

ته ورته اووايه | چې دالله ﷻ سره كوم ثواب دې | هغه دتماشو او د سوداګانو نه ډير بهتر دې

وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ۝

| او الله | بهتره درزق وركونكو نه دې |

او الله ﷻ ډير ښۀ روزى رسان دې

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والوا چه کله د جمعې په ورځ د مانځه دپاره راوبللې شي، نو د الله تعالٰی ذکر ته منډې کړئ. او اخستل خرڅول پریږدئ . دا ستاسو دپاره بهتر دی، که تاسو پوهیږئ. بیا چه کله مونځ پوره شي، نو په زمکه کښې خواره شئ. او د الله تعالٰی فضل تلاش کړئ او الله تعالٰی په کثرت سره یادوئ. دې دپاره چه تاسو کامیابۍ ته اورسئ. او کله چه څه خلقو تجارت یا لوبې اولیدلې. نو هغې بانديې ورمات شول. او ته ئې ولاړ پریښودې اووایه چه: څه چه الله تعالٰی سره دی، هغه د لوبو او تجارت نه ډیر زیات بهتر دی، او الله تعالٰی د ټولو نه بهترین رزق ورکونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ﴾ [اے ايماندارو هر كله چه دجمعې په ورځ د مونځ د] جمعې د[پاره اذان وكړې شى ﴿فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَؕ﴾ نو تاسو د الله تعالى د يادو] يعنى مونځ اوخطبې [طرف ته] فورا [روان شئ او اخستل خرڅول] او دغه شان نور مشاغل مانعه عن السعى لكه په ردالمحتار([1])كښې دى [پريږدئ] اوتخصيص دبيعې په وجه دزيات اهتمام دې چه ددې ترك لره نفع فوت كيدل كنړلې شى ﴿ذٰلِكُمْ﴾ [دا] تلل اونورې مشغلې دبيعې وغيره پريښودل ﴿خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ۝﴾ [تاسو دپاره زيات غوره دى كه تاسوڅه پوهيږئ] خكه چه ددې نفع باقى ده او دبيعې وغيره نفع فانى ده ﴿فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ﴾ [بياچه هر كله مونځ] دجمعې [پوره شى] اوكه په ابتداء كښې خطبه وروستئ وه نو مونځ پوره كيدونه مراد ددې سره دمتعلقاتونه پوره كيدل دى چه مطلب ئې مونځ اوخطبه پوره كيدل دى نو دغه وخت تاسوته

---

[1] ) رد المختار باب العيدين [ج: ۲ ص:۱٦٥]

اجازت دي چه ﴿فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ [تاسو په مزکه کښې گرځئ] ﴿وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللهِ﴾ او د الله تعالی روزی تلاش کوئ] يعني دغه وخت د دنيا د کارونو د پاره د گرځېدو اجازت دې [او] په دې کښې هم ﴿وَاذْكُرُوا اللهَ كَثِيرًا﴾ [الله تعالى لره ډېر ياد وئ] يعني په دنيوی مشغولو کښې داسې مه ورننوځئ چه د ضروری احکامو او عبادتونو نه غافله شئ ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [چه تاسو فلاح بيا مومئ] د څنو خلقو دا حال دې چه ﴿وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا﴾ [هغه خلق هر کله چه څه تجارت يا د مشغولا څه بل شي ويني نو هغې طرف ته د منډې وهلو د پاره خوارهٔ شی او تا لره ولاړ پرېږدی ﴿قُلْ مَا عِنْدَ اللهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ﴾ ته ووايه چه کوم شي] لکه ثواب او قرب [د الله تعالى سره دي هغه د داسې مشغلې او تجارت نه په ډېرو درجو غوره دی او] که ددې نه د رزق زياتيدو طمع کوئ نو پوهه شئ چه ﴿وَاللهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ﴾ [الله تعالى د ټولو نه غوره رزق ورکوونکې دې] د هغه په ضروری اطاعت کښې په مشغوليدو سره مقرر رزق ورکوی بيا ولې د هغه احکام پرېښودې شی

## معارف او مسائل

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ دغې ورځې ته يوم الجمعة څکه وئيلې شی چې دا د مسلمانانو د جمع کيدو روځ ده او الله ﷻ ټول مخلوق په کومو شپږو ورځو کښې چې پيدا کړی دی د هغې آخری ورځ جمعه ده. هم په دې ورځ کښې آدم ﷺ پيدا کړې شو، په دغه ورځ په جنت کښې داخل کړې شو، بيا په دغه ورځ کښې ئې زمکې ته راکوز کړو[1] هم په دغه ورځ به قيامت قائم کيږی. او په دې ورځ کښې داسې يو گړئ راځی چې په کښې د انسان هره دعا قبليږی[2] دا ټولې خبرې د صحيح احاديثو نه ثابتې دی، ابن کثير][3]

الله ﷻ د خلقو د راجمع کيدو او په هر هفته کښې د اختر ورځ دا جمعه ايخودې وه، خو د پخوانو امتونو دا توفيق او نه شو. يهودو يوم السبت، د خپلو جمع کيدو ورځ اوټاکله، نصاراؤ د اتوار ورځ اوټاکله، الله ﷻ دې امت ته توفيق ورکړو چې د جمعې ورځ چوڼر کړی. [بخاری ومسلم د أبی هريره ﷺ نه ابن کثير][4].

د جاهليت په زمانه کښې به دې ورځ ته عروبه وئيلې شوه. په عربو کښې د ټولو نه رومبې کعب بن لوئې ددې ورځې نوم جمعه کيخودو. قريش به په دې ورځ راجمع کيدل او کعب بن لوئې به خطبه ورکوله، دا واقعه د نبی کريم ﷺ د پيغمبر کيدو نه پنځه سوه شپيته کاله وړاندې ده.

کعب بن لوئی د رسول الله ﷺ په نيکونو کښې راځی. هغوئ لره الله ﷻ د جاهليت په زمانه کښې د بت پرستئ نه اوساتلو او د توحيد توفيق ئې ورکړې وو. قريشو کښې د هغوئ د لوئيوالی داشان وو چې عربو د تاريخ حساب د دوئ د وفات نه شروع کړو چې د نبی کريم ﷺ د پيغمبر کيدو نه پنځه سوه شپيته کاله وړاندې شوې وو ددې نه اول به عربو تاريخ

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الجمعة، باب فضيلة يوم الجمعة...... إلخ [ج:١ص:٢٨٣]

[2]) جامع الترمذي، ابواب التفسير باب ومن سورة البروج [ج:٢ ص:١٧١]

[3]) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:١١٩]

[4]) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:١١٩] صحيح البخارى كتاب الجمعة، باب فرض الجمعة[ج:١ ص:١٢٠] و صحيح مسلم كتاب الجمعة، باب فضيلة يوم الجمعة على باقى الأيام وبيان ان خير الأمم هديت إليه [ج:١ص:٢٨٢]

دکعبي د ودانولو د وخت نه اخستو د کعب بن لوئي نه پس د دې نه تاريخ جاري شو بيا چه کله د فيل واقعه راپيښه شوه نو بيا د تاريخ سلسله دهغې نه جاري شوه. خلاصه د اده چې په عربو کښې د جمعې اهتمام د اسلام نه وړاندې د کعب بن لوئي په زمانه کښې شوې وو نو ددې نوم جمعه ايخودل هم هغوئ ته منسوب دی. [مظهری] [1].

په ځينې روايتونو کښې راغلی دی چې دمديني منورې انصارو وړاندې دهجرت نه دجمعې دمونځ د فرض کيدو نه وړاندې په خپل اجتهاد سره دجمعې په ورځ د جمع کيدو او عبادت کولو بندوبست کړې وو، [عبدالرزاق روايت کړې دې په صحيح اسناد سره دمحمد بن سيرين نه، په حواله د مظهری] [2].

﴿إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ﴾ د صلوة د نداء نه مراد اذان دې. د ﴿مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ﴾ معنی: ﴿فِي يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ﴾ ده. ﴿فَٱسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ﴾ دسعی معنی منډه وهل هم راځی او چې په پوره انتظام سره څه کار کولې شي هغې دپاره هم استعماليږي. دلته هم دا دويمه معنی مراد ده. ځکه چې نبي کريم ﷺ مونځ ته په منډه راتلو نه منع فرمائيلې ده. او دائې فرمائيلی دی چې کله مونځ دپاره راځئ نو په آرام او حوصله راځئ [3]. په دې بنا د آيت معنی به دا شي چې کله د جمعې په ورځ دجمعې اذان اوشی نو د الله ﷻ ذکر طرفته ته منډه کړئی يعنی مونځ او خطبې دپاره مسجد ته د تلو بندوبست کوئی لکه چې منډه وهونکې څۀ بل کار ته مخه نه کوی دغسې تاسو هم بل هيڅ کار ته سوا د مونځ او خطبې نه مخه مه کوئی، [ابن کثير] [4].

﴿ذِكْرِ ٱللَّهِ﴾ نه مراد دجمعې مونځ هم کيدشی او د جمعې خطبه هم کيدیشی چې د جمعې په شرطونو او فرضو کښې داخله ده نو دا هم په دې وجه که د دواړو مجموعه مراد واخستې شي نو دابهتر دی. [مظهری وغيره] [5].

﴿وَذَرُوا ٱلْبَيْعَ﴾ يعنی پريږدئی خرڅولو له. دلته ئې يواځې د خرڅولو منع اوفرمائيله خو مراد ترې اخستل او خرڅول دواړه دی. اووجه د اکتفاء علی البيع داده چې يو نه وی نو بل به خامخانه وی چې خرڅول د يو ځيز نه وی نو اخستل به ئې څنګه وی؟

دې کښې اشاره دې ته هم معلوميږی چې د جمعې د اذان نه پس چې کوم خرڅول او اخستل دې آيت حرام کړی دی نو په دې باندې عمل کول په خرڅونکو او اخستونکو تولو باندې فرض دی مګر ددې عملی انتظام به داسې کيدې شي چې کله د جمعې اذان اوشی نو دکانداران دې دکانونه بند کړی چې اخستل او خرڅول نه وی نو اخستل پخپله بند شی اوداشان اخستل او خرڅول دواړه بند شی. مطلب دا چې د خرڅ کوؤنکی او اخستوؤنکی دواړو ددې انتظام کول فرض دی. خو عملی اقدام د خرڅوؤنکو يعنی دکاندارو پکار دې چې دوئ ځيزونه نه خرڅوی نو اخستونکی به پخپله داخستونه بندشی. هسې خو يو يو اخستونکې بندول ډير ګران خکه شی چې دوئ ګنړ وی خو چې لږ دکانداران دکانونه بند کړی نو د اخستلو او خرڅولو

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۷۸]
[2] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۷۸] و مصنف عبدالرزاق رقم الحديث: ۵۱۴۴ کتاب الجمعة باب اول من جمع.
[3] ) صحيح البخاری کتاب الجمعة، باب المشی الی الجمعة[ج:۱ ص:۱۲۴]
[4] ) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۱۲۰]
[5] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۸۲]

سلسله به په خپله بنده شي. ځکه ئې صرف ﴿وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ او فرمائيل چې خرڅول پريږدئي.

**مسئله** د جمعې د اذان نه پس د ټولو شغلونو نه منع كول مقصود وو چې په كښې زراعت مزدوري وغيره ټول داخل دي خو قرآن پاک صرف د بيع ذكر او فرمائيلو دې سره دې ته هم اشاره كيديشي چې د جمعې د مونځ مخاطب د ښارونو او قصبو والا دي په ورو كو كلو ځنګلونو كښې جمعه نشته. ځكه هغه شغلونه منع كړې شو چې په ښارونو او قصبو كښې اختياروليږ شي. چې هغه عموما اخيستل او خرڅول وي. په خلاف د كلي والو نه چې د هغوئ شغلونه د كروندې او زمكې باره كښې وي او د امت د فقهاؤ په اتفاق سره دلته دبيع نه مراد صرف خرڅول نه دي بلكه هر هغه كار چې جمعې ته د تلو په كار كښې خنډ جوړيږي هغه ټول د بيع مفهوم كښې داخل دي ځكه د جمعې د اذان نه پس خوراک، څښاک اوده كيدل چاسره خبرې كول تر دې چې د كتاب مطالعه كول وغيره ټول منع دي صرف هغه كارونه چې د جمعې د تيارئي سره تعلق لري نو هغه كولې شي.

د جمعې اذان په شروع كښې صرف يو وو كوم چې د خطبې په وخت د امام وړاندې كولې شي د نبي كريم ﷺ ابی بكر رضی الله عنه او عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه كښې هم دا يو اذان وو چې د خطبې په وخت امام ته مخامخ كولې شي. د عثمان رضی الله عنه په زمانه كښې هر كله چې مسلمانان زيات كنړ شو دغه اذان لرې پورې نه شو رسيدې ولې چې هغوئ د مدينې په خواؤشا كښې هم خوارهٔ وو دغه يو اذان هغوی د پاره كافی نه وو نو عثمان رضی الله عنه يو بل اذان د مسجد نه بهر په خپل مكان زوراء كښې شروع كړو چې آواز به ئې ټولې مدينې منورې ته رسيدو. په صحابه كرامو رضی الله عنهم كښې هيچا په دې باندې اعتراض اونكړو په دې وجه د اول اذان په اجماع د صحابه كرامو رضی الله عنهم سره مشروع شو او د جمعې د اذان په وخت د بيع اوشراء وغيره ټولو مشاغلو حرام كيدلو حكم چې اول به د اذان خطبه نه پس به كيدل اوس د اول اذان نه پس شروع شو ځكه چې د ﴿نُودِيَ لِلصَّلٰوةِ مِن يَّوْمِ الْجُمُعَةِ﴾ الفاظ په دې باندې صادقيږی ، دا ټولې خبرې د حديث پاک او د تفسير او د فقه په عامو كتابونو كښې بې اختلافه بيان شوی دی.

په دې باندې د ټول امت اجماع او اتفاق دې چې د جمعې په ورځ د ماسپخين په ځائې د جمعې مونځ فرض دې او په دې باندې هم اتفاق او اجماع ده چې د جمعې مونځ د عامو مونځونو پشان نه دې ، دې د پاره څۀ نور زياتي شرطونه هم شته. عام پنځه واړه مونځونه بې جمع ځان له هم كولې شي. او صرف دوه كسان ئې په جمع هم كولې شي او جمعه نشي ادا كولې او ددې جمع په تعداد كښې د فقهاؤ قولونه مختلف دی ، دا شان عام پنځه مونځونه په غرونو ، دريابونو او ځنګلونو كښې هم ادا كولې شي مګر د جمعې مونځ په ځنګل او صحرا كښې د هيچا په نزد نشی ادا كيدې ، په زنانو ، مريضانو ، مسافر باندې جمعه فرض نه ده. دوئ به د جمعې په ځائې د ماسپښين مونځ كوی.

د امام شافعی رحمه الله په نيز په هغې آبادئ كښې د جمعې مونځ كيديشي په كومه كښې چې څلوېښت نارينه ، اصيل عاقلان بالغان استوګنه كوی ، ددې نه چې كم وی هلته جمعه نشی كيدې. د امام مالک رحمه الله په نزد دې د پاره داسې آبادي ضروری ده چې مكانات ئې متصل او يو ځائې وی او بازار هم په كښې وی ، د امام اعظم رحمه الله په نزد جمعې د پاره دا شرط دې چې هغه ښار ، قصبه يا لوئې كلې وی ، په هغې كښې كوڅې او بازارونه وی او څوک قاضی ،

حاکم د معاملاتو د فیصلې دپاره وي. د مسئلې او د دلیلونو د تفصیل دا موقعه نه ده، علماء کرامو په دې موضوع باندې مستقل کتابونه لیکلي او هر څه واضح کړي دي.
خلاصه دا ده چې: ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ او ﴿فَاسْعَوْا﴾ د جمهور امت په اتفاق سره عام مخصوص البعض دې. مطلقا په هر مسلمان باندې جمعه فرض نه ده بلکه څه قیدونه او شرطونه د تولو په نزد شته دې. اختلاف صرف د شرطونو په تاکلو کښې دې البته چرته چې فرض ده، هغوئ له ددې فرضو لوئې اهمیت او تاکید دې، په دغې خلقو کښې چې څوک بې شرعي عذر نه جمعه پریږدي نو په صحیح احادیثو کښې په هغې باندې سخت وعیدونه راغلي دي. او کوم خلق چې ددې د شرطونو او آدابو سره ئې ادا کوي نو هغوئ دپاره د مخصوص فضیلتونو او برکتونو وعده ده.

﴿فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ﴾ په تیرو شوؤ آیتونو کښې د جمعې د آذان نه پس د بیع شراء وغیره ټول دنیوی څیزونه منع کړې شوي وو.
دې آیت مبارک کښې ددې اجازت ورکړې شوې دې چې د جمعې د مونځ نه په فراغت باندې دخپل تجارتي کاروبار او دخپل رزق حاصلولو بندوبست ټول کولې شي.

**د جمعې نه پس په تجارت او کسب کښې برکت**: عراک بن مالک ﷺ چې به د جمعې د مونځ نه پس فارغ شو او بهر به راؤتل نو د مسجد په دروازه به ؤ اودریدو او دا دعا به ئې کوله چې:
اللهم اني اجبت دعوتك وصليت فريضتك وانتشرت كما امرتني فارزقني من فضلك وانت خير الرازقين
یعنې یاالله ﷻ! ما ستا حکم اومنلو او ستا فرض مې ادا کړل او څنګه چې تا حکم ورکړې دې مونځ مې اوکړو بهر ته اوخم ته راته په خپل فضل روزي راکړې او ته خو د ټولو نه زیات غوره روزي ورکوونکې ئې. [ابن ابی حاتم په حواله د ابن کثیر] (۱).
او د خینو پخوانو بزرګانو نه منقول دي چې څوک د جمعې د مونځ نه پس تجارتي کاروبار کوي نو الله ﷻ هغه دپاره اویا څله برکتونه نازلوي. [ابن کثیر] (۲).

﴿وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ یعنې کله چې د جمعې د مونځ نه فارغ شئ نو په کاروبار او تجارت وغیره اخته شئ خو لکه د کافرو پشان د الله ﷻ نه مه غافله کیږئ خالص د اخستلو خرڅولو او مزدورئ په وخت هم د الله ﷻ یاد جاري لرئ.

﴿وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا انْفَضُّوْٓا اِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ قَآئِمًا ۗ قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ ۗ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴾ دې آیت مبارک کښې دغې خلقو ته خبرداري ورکړې شوې دې چې جمعې په پریخودو سره تجارتي کار ارخ ته ئې مخه کړې وه. امام ابن کثیر ﷫ اوفرمائیل چې دا واقعه د هغه وخت وه چې رسول الله ﷺ به د جمعې خطبه د مونځ نه پس ورکوله. لکه څنګه چې تر اوسه پورې په اخترونو کښې په دې عمل جاري دې د یوې جمعې په ورځ دا واقعه راغله چې د جمعې د مونځ نه په فارغیدو باندې نبی کریم ﷺ خطبه ورکوله چې ناګهانه یوه تجارتي قافله د مدینې منورې بازار ته راؤرسیده او په ډولکو باجو وغیره سره د هغې اعلان کول شروع شو. خلق د جمعې د مونځ نه فارغ شوي وو خو خطبه جاري وه. ډیر صحابه کرام ﷡ بازار ته لاړل او نبی

---

(۱) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص: ۱۲۲، ۱۲۳] و تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث: [۱۸۸۹۷]
(۲) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص: ۱۲۳]

کریم ﷺ سره لږ شان پاتې شو چې شمیر ئې دولس خودلې شوې دې . [ دا روایت ابوداؤد په مراسیل کښې بیان کړې دې ]([1]).

دحدیث په ځینو روایتونو کښې دی چې نبی کریم ﷺ په دغې موقعه اوفرمائیل چې که تاسو ټول تلی وې نو دمدینې منورې ټوله وادی به دعذاب د اور نه ډکه شوې وه . [ ابو یعلی روایت کړې دې په حواله د ابن کثیر ]([2]).

د تفسیر د امام مقاتل بیان دې چې دا تجارتی قافله د دحیه بن خلف کلبی وه چې د شام ملک نه راغلې وه ، او د مدینې په تاجرانو کښې به ددې قافلې عموما ټول ضروریات راوړل څکه به ددې په راتلو ټول د مدینې منورې خلق په منډه ورتلل . دا دحیه بن حلف دغه وخت پورې مسلمان شوی نه وو ، ددې نه روستو بیا مسلمان شوې دې .

او حسن بصری ﷫ اوابو مالک ﷫ فرمائی چې داد هغه وخت خبره ده چې په مدینه منوره کښې به د ضروری څیزونو کمې وو او سخته ګرانی وه . [ تفسیر مظهری ]([3]).

دغه وجه د ه چې د صحابه کرامو ﷢ کثر شمیر دغې تجارتی قافلې دپاره راغلل ، اصلی فرض مونځ د جمعې خو ادا شوې وو د خطبې په باره کښې دا پته نه وه چې دا هم د فرض یوه برخه ده. بله دا چې ګرانی وه . دریم داچې خلق به په دغې قافله ډیر ورماتیدل چې د لږې سستئ په وجه به هر چا دا خیال کولو چې دخپل ضرورت څیز به بیا په کښې بیا نه مومی .

بهرحال دا لغزش د صحابه کرامو ﷢ نه په دغې وجوهاتو اوشو ،چې په دې باندې حدیث پاک کښې دَ وعید دا الفاظ وارد شو چې که ټول د مسجد نه وتی وې نو د مدینې منورې وادی بهٔ د عذاب د اور نه ډکه شوې وه ، په دې باندې د پیغور او خبرداری ورکولو دپاره دا آیت نازل شو : ﴿وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً﴾ او هم په دې سبب رسول الله ﷺ پخپله دَخپلې خطبې ورکولو طرز بدل کړو چې دجمعې دمونځ نه ئې رومبې خطبه ورکول شرع کړل چې اوس سنت دی ، [ ابن کثیر ]([4])

دې آیت مبارک کښې نبی کریم ﷺ ته حکم ورکړې شوې دې چې تاسو دغې خلقو ته اوښایئ چې څه الله ﷻ سره دی هغه ددغه تجارت او غرز درز نه ډیر ښه دی ، دې نه یقینا د آخرت ثواب مراد دې لیکن دا هم لرې نه ده چې څوک د مونځ او خطبې دپاره تجارت اوکار روزګار پرېږدی، دالله ﷻ د طرفه په هغوئ خاص برکتونه نازلیږی لکه چې پورته د سلف صالحینو نه په روایت د ابن کثیر نقل کړې شوی دی.

تمت الحمدلله سورة الجمعة یوم الخمیس ۲۸ جمادی الاولی ۱۳۹۱هجری.

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۱۲۳] و مراسیل ابی داود باب ماجاء فی الخطبة یوم ا لجمعة رقم الحدیث :[۶۰]

[2] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۱۲۳ ، ۱۲۴] و مسند ابی یعلی الموصلی ، رقم الحدیث:[۱۹۳۵ ] و مسند جابر و صحیح ابن حبان رقم الحدیث:[۶۷۷۷]

[3] ) تفسیر المظهري تحت هذه الآیة [ج:۹ص:۲۹۹]

[4] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص: ۱۲۴]

| اياتونه | سورة المنافقون مكية وهي احدى عشرة اية وفيها ركوعان | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑪ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ② |

اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ

كله چي | راشي تاته | دا منافقان | نو وائي | مونږ گواهي كوو | چي بيشكه ته | خامخا رسول دالله ني

[ائي نبي ﷺ] كله چي تاته منافقان راشي [نو وائي چي مونږ گواهي كوو چي بيشكه ته د الله رسول يي

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ

او الله | ښه پوهيږي | چي بيشكه ته | خامخا رسول دهغه ني | او الله گواهي كوي | چي بيشكه دا منافقان

او الله ته معلومه ده | چي ته د الله ﷺ رسول يي | خو الله ﷻ [ددي خبري] گواهي وركوي | چي منافقان

لَكٰذِبُوْنَ ۚ اِتَّخَذُوْۤا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ

خامخا دروغژن دي | جوړ كړي دي دوئ | دقسمونو خپلو نه | ډال | پس منع كوي خلق | دلارې دالله نه

دروغژن دي | دوئ د خان دپاره خپل قسمونه ډالونه جوړ كړي دي | بيا دوئ [نور خلق هم] د الله

اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۞ ذٰلِكَ

بيشكه دوئ چي دي | ډير بد دي | هغه عملونه | چي دي دوئ | چي كوي ني | دا هر څه

ﷺ دلارې نه منع كوي | كوم كارونه چي دوی كوي هغه ډير بد دي | ............ دا څكه چي

بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ

په سبب ددي چي دوئ | ايمان راوړو | بيا | كفر اوكړو دوئ | پس مهر اووهلي شو | په زړونو ددوئ باندي

دوئ ايمان راوړو | بيا كافران شول | نو د دوی په زړونو مهر اولگولي شو | ............

فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ۞ وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ

نو اوس دوئ | نه پوهيږي | او كله چي | اووينې ته دوئ لره | نو په تعجب كښي به واچوي تا لره

نو اوس دوی نه پوهيږي | ............ او كله چي ني ته اووينې | نو د دوی بدنونه تاته ډير ښه ښكاره شي

اَجْسَامُهُمْ ؕ وَاِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ؕ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ

جوثي ددوئ | او كه خبري كوي دوئ | نو غوږ ږدې | خبرو ددوئ ته | لكه چي دوئ | لرگي دي

............ او چي خبري كوي | نو ته ددوئ خبري آوري | ادوئ اينختي لكه [په ديوال پوري]

مُّسَنَّدَةٌ ؕ يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ؕ هُمُ الْعَدُوُّ

ودرولي شوي ديوال ته | گمان كوي دوئ | هر آواز | خلاف دخپل خان | هم دوئ [ياخه] دشمنان دي

اودرولي شوي لرگي دي | دوئ هر آواز په خپل خان گنړي | ............ دوئ [ستا] دښمنان دي

فَاحْذَرْهُمْ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۚ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۞ وَاِذَا

پس خان اوساته ددوئ نه | هلاك دكړي دوئ لره الله | كوم طرفته | دوئ بوتللي كيږي | او كله چي

ددوئ نه خان ساته | الله تعالى دي دوئ هلاك كړي | څنگه دوی د حق دين نه اړولي شي | او كله چي ورته

قيل | لهم | تعالوا | يستغفر | لكم | رسول الله لووا

| اوونیلې شي | دوئ ته | چې راشئ | چې بښنه اوغواړي | ستاسو دپاره | رسول دالله نو تاؤ کړي دوئ

اوونیلې شي | چې راځئ چې دالله پیغمبر ستاسو دپاره بښنه اوغواړي | نو [ دوئ په تکبر سره ]

رءوسهم | ورأيتهم | يصدون | وهم | مستكبرون ⑤

| سرونه خپل | اووینې ته دوئ لره | چې منع کیږي دراتلو نه | او دوئ | تکبر کونکي دي

خپل سرونه تاؤ کړي | اوته به ئې اووینې | چې دوئ مخونه تاووي | اوخان غټ ګڼړي

سواء | عليهم | أستغفرت لهم | أم لم تستغفر

یو شان ده | په حق ددوئ کښې | که بښنه اوغواړې ته [ اے نبی ﷺ ] دپاره ددوئ | او که بښنه اونه غواړې

د دوئ دپاره برابره ده | که ته دوی دپاره بښنه غواړې | او که دوی دپاره بښنه نه غواړې

لهم | لن يغفر الله | لهم | إن الله | لا يهدي | القوم

دپاره ددوئ | هرګز به بښنه اونه کړي الله | دوئ ته | بیشکه الله | لار نه ښائی | قوم |

الله ﷻ به دوئ ته هیڅرې بښنه اونکړي | ............ بیشکه الله ﷻ نافرمانه خلقو ته

الفسقين ⑥ | هم الذين | يقولون | لا تنفقوا | على من

فاسق ته | دا هم هغه خلق دي | چې وائی | چې خرچ مه کوئ | په هغه چاباندې |

هدایت نه کوی | داخو هغه خلق دی | چې وائی څوک چې دالله ﷻ پیغمبر سره ملګري شوی دي

عند رسول الله | حتى | ينفضوا | ولله | خزائن السموت

چې دالله درسول سره دی | تر دې پورې | چې خوارهٔ شي | او الله لره دی | خزانې | دآسمانونو |

په هغوئ خرچ مه کوئ | چې خواره واره شي | حال دا چې دآسمانونو او دزمکې خزانې د الله ﷻ سره دی

والأرض | ولكن المنفقين | لا يفقهون ⑦ | يقولون | لئن رجعنا

او دزمکې | ولیکن دا منافقان خلق | نه پوهیږی | وائی دوئ | که واپس لاړو مونږه

خو منافقان په دې نه پوهیږی | ............ دوئ وائی که مونږ مدینې ته واپس لاړو

إلى المدينة | ليخرجن | الأعز | منها | الأذل | ولله العزة

مدینې ته | خامخا به اوباسی | عزتمند خلق | ددې مدینې نه | ذلیلو خلقو لره | او الله لره دې عزت

نو عزت مند خلق به ذلیله خلق د مدینې نه بهر اوباسی | او عزت خو بس دالله ﷻ

ولرسوله | وللمؤمنين | ولكن المنفقين | لا يعلمون ⑧

او رسول دهغه لره دې | او مومنانو لره دې | ولیکن منافقان خلق | نه پوهیږی |

او د رسول ﷺ او د مومنانو دې | ............ خو منافقان خلق نه پوهیږی

**آسان ترجمه قرآن**

چه کله منافقان تاته راشي، نو وائي: موږ ګواهي ورکوو، چه ته د الله تعالی رسول یې. او الله تعالی پوهیږي، چه ته واقعي د الله تعالی رسول یې. او الله تعالی دا (هم) ګواهي ورکوي، چه دا منافقان دروغژن

دي. دوی خپل قسمونو لره يو ډهال جوړ کړي دي بيا دا خلق نورو لره د الله تعالیٰ د لارې نه منع کوي، حقيقت دادې، چه ډير بد دي هغه کارونه، کوم چه دا خلق کوي. دا ټولې خبرې ددې وجې نه دي، چه دوی (په شروع کښې په ظاهر کښې) ايمان راوړو بيا دوی کفر اختيار کړو، ددې وجې نه ددوی په زړونو باندې مهر اولګولې شو. نتيجه دا شوه، چه دا خلق په حقه خبره باندې بالکل پوهيږي نه. چه کله ته دوی ته اوګورې نو د دوی ډيل ډول په تاته ډير ښه معلوم شي، او که دوی خبرې اوکړي، نو ته په ددوی خبرې اورې ددوی مثال داسې دې، لکه دا لرګی دي، چه دشه په اډا لرې [سهاره] سره ولاړ دي دوی هر شور او شوغا خپل خلاف ګنړي هم دادی، چه (ستاسو) دشمنان دي، ددې وجې نه ددوی نه خبردار شئ. الله تعالیٰ دې دوی تباه کړي، کوم طرف ته دوی اړولې شي؟ او چه کله دوی ته اوويلې شي، چه راشئ، چه د الله تعالیٰ رسول ستاسو په حق کښې د مغفرت دعا اوکړي، نو دوی خپل سرونه اړوي او تاسو به ويني دوی لره چه دوی د ډير غرور په حالت کښې مخ اړوي. (اے پيغمبره عليه السلام) ددوی په حق کښې دواړه خبرې برابر دي که ته ددوی د مغفرت دعا کوې او که نه کوې، الله تعالیٰ به دوی چرې هم اونه بښي، يقين اوکړه، چه الله تعالیٰ داسې نافرمان خلق هدايت ته نه رسوي. هم دا هغه خلق دي، چه وائي، چه کوم خلق د رسول الله (ص) سره دي، په هغوی باندې هيڅ مه خرچ کوئ، ترڅو پورې چه دوی خپله خوارۀ شي، حالانکه د آسمانونو او زمکې ټولې خزانې الله تعالیٰ سره دي، ليکن منافقان خلق نه پوهيږي ○ دوی وائي چه: که مونږ مدينې ته واپس لاړ شو، نو کوم چه عزت والا دي، هغوی به د هغه ځائې نه ذلت والا بهر اوباسي، حالانکه عزت خو الله تعالیٰ ته حاصل دې، او دهغه رسول ته، او ايمان والو ته، ليکن منافقان خلق نه پوهيږي.

## خلاصه تفسير

﴿إِذَا جَاءَكَ الْمُنٰفِقُونَ﴾ [هر کله چه تاته دامنافقان راشی ﴿قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللّٰهِ﴾ نو وائی چه مونږ] په زړۀ سره [ګواهی ورکوو چه ته بيشکه دالله تعالی رسول يئې ﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ﴾ او داخو الله تعالی ته معلومه ده چه ته دالله تعالی رسول يئې] په دې کښې ددوی دقول تکذيب نه شی کولې [او] باوجود ددې ﴿وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِينَ لَكٰذِبُونَ﴾ [الله تعالی ګواهی ورکوی چه دامنافقان] په دې وينا کښې [دروغژن دي] چه مونږ په زړۀ سره ګواهی ورکوو ځکه چه دغه ګواهی محض زبانی ده دزړۀ په عقيده سره نه ده ﴿اِتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً﴾ [دې خلقو خپلو قسمونو لره] دخپل ځان اومال دبچ کولو دپاره [دالونه جوړکړی دي] ځکه چه که دکفراظهار ئې کولې نو ددوی حالت به هم په شان دنورو وو چه جهاد به ورسره کولې شو اوقتل اولوټ کولې به شول [بيا] ددې لازمی خرابئ سره متعدی خرابی هم ده چه ﴿فَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ [داخلق] نورولره هم [دالله تعالی دلارې نه منع کوی ﴿إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ بيشکه ددوی داعملونه ډير بددي] او ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ آمَنُوا﴾ زمونږه [دا] ويناچه ددوی عملونه ډير بددی [په دې سبب سره ده چه دې خلقو] اول په ظاهر کښې [ايمان راوړو ﴿ثُمَّ كَفَرُوا﴾ بيا] خپلو شيطانانو لره لاړل دکفر کلمات ﴿إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُونَ﴾[1] ئې ووئيل [کافران شول] مطلب داچه په دوی دبدو عملونو

[1] ترجمه:- بيشکه مونږ تاسره يو مونږ به صرف استهزاء کوؤ.

حکم کول ددوی دنفاق په سبب سره دي چه دابدترین عمل دکفردي [پس] ددي نفاق په وجه ﴿فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ﴾ [ددوی په زړونو مهرولګولي شو ﴿فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ﴾ نو] په حقه خبره [نه پوهيږي او] په ظاهره دوی داسي پاسته اونرم دي ﴿وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ﴾ [هر کله چه ته دوی ته ګورې] نو دظاهري شان شوکت په وجه ﴿تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ﴾ ددوی قد وقامت به تاته ښه لګی [او په خبروکښې داسي دي چې] ﴿وَاِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ﴾ [دوی خبرې کوی نو ته به ددوی خبرې] د ډير فصاحت او خوږ والی په وجه [اورې] ليکن چونکه دننه خاوزې هم نشته په دي وجه په ظاهری قداو قامت سره دباطنی کمالاتو نه دخالی کيدو په سبب ددوی داسي مثال دي چه ﴿كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ﴾ [ګويادوی لرګی دی کوم چه] ددیوال [په اډانره ولاړوی] چه په بدنونو سره خوښه غټ کټ او اوږدهٔ دی مګرمحض بې جانه او عام عادت دادي چه اکثرکوم لرګي چه فی الحال په کارکښې نه لګی هغه دغسي ايښودې شی داسي لرګی بې نفع محض هم وی دغه شان داخلق په ظاهری ليدو کښې خو شاندار دی ليکن ددننه نه محض بې کاره او چونکه په وجه دعدم اخلاص او عدم ايمان هروخت ددوی سره انديښنه وی چه چرته مسلمانان زمونږ د حال نه په څه قرينه يا په ذريعه د وحی خبرنه شی او په شان دنورو کفارو په مونږ هم جهاد وغيره شروع نه شی په دې خيال سره داسي په ويره کښې وی چه ﴿يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ﴾ [هريوشور اوازلره] ګوپه هره وجه چه وی [په خپل ځان] پريتونکي [خيال کوی] يعنی کله چه څه شور زوږ شی نو داسي ګنړی چه چرته په مونږه څه پټ مصيبت راپريوتونکي نه وی په حقيقت کښې ﴿هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ﴾ [داخلق] ستاسوپوره [دښمنان دی ته د دوی نه هوښيار وسه] يعنی ددوی په څه خبره اعتماد مه کوه ﴿قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ﴾ [الله تعالی ددوی خوارکړی چرته] دحق دين نه [واپس کيږی] يعنی روزانه ترې نه لرې کيږی [او] ددوی دتکبراوشرارت داکيفيت دې ﴿وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ﴾ [چه هرکله دوی ته ووئيلې شی چه] نبی کريم ﷺ ته ﴿تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ﴾ [راشئ چه تاسودپاره رسول الله] ﷺ [استغفار وکړی ﴿لَوَّوْا رُءُوْسَهُمْ﴾ نو دوی خپل سرونه وګرځوی ﴿وَرَاَيْتَهُمْ يَصُدُّوْنَ وَهُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ﴾ او ته ﷺ به دوی ته ګورې چه دوی] ددې خيرخواهئ او استغفار درسول نه [په تکبرکولو سره بې مخی کوی] هرکله چه ددوی د کفرداحالت دې نو ﴿سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ اَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ اَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ﴾ [ددوی په حق کښې دواړه خبرې برابردی خواه که ددوی دپاره استغفارکوې اوکه استغفارنه کوې ﴿لَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ﴾ دوی لره به الله تعالی هرګز ونه بخښی] مطلب دادې چه که دوی تاته راشی هم اوته ددوی دظاهری حالت په سبب سره استغفار هم وکړې بيا هم دوی ته څه نفع نه رسی دا خودماضی په اعتبار سره ددوی حالت شو او دانندہ دپاره داده چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ [بيشکه الله تعالی داسي نافرمانو خلقوته] توفيق د] هدايت نه کوی ﴿هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ﴾ دا هغه دی کوم چه وائی چه کوم خلق دنبی کريم] ﷺ [سره] جمع [دی په هغوی خرڅ مه کوئ ﴿حَتّٰى يَنْفَضُّوْا﴾ تردې پورې چه داخلق خوارهٔ شی او] ددوی داخبره محض جهل دې ځکه چه ﴿وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [دالله تعالی دی ټولې خزانې د اسمانونو اودمزکې ﴿وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ﴾ ليکن منافقان نه پوهيږی] چه درزق مدار دښاردخلقو ورکړه ګنړی او [دا] خلق ﴿يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ﴾ [داسي وائی چه که مونږه اوس مدينې ته واپس شو ﴿لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ

مِنۡهَا الۡاَذَلَّ ﴾ نو عزت والا به دهغه ځائ نه ذلت والا بهراوباسي] يعني مونږه به دې مسافرو پرديسيانو لره اوباسو بهريه کړو [او] په دې قول کښې چه خان ته عزت والا او مسلمانانو ته ذلت والا وائي دامحض جهل دې بلکه ﴿وَلِلّٰهِ الۡعِزَّةُ وَلِرَسُوۡلِهٖ﴾خاص [دالله تعالى دې عزت] بالذات [او دهغه درسول دې] په واسطه دتعلق دالله تعالى سره ﴿وَلِلۡمُؤۡمِنِيۡنَ﴾[او دمسلمانانو دې] په واسطه دتعلق دالله تعالى او درسول سره ﴿وَلٰـكِنَّ الۡمُنٰفِقِيۡنَ لَا يَعۡلَمُوۡنَ﴾ [ليکن منافقان نه پوهيږي] بلکه مدار فاني امورو لره ګنړي.

## معارف او مسائل

**سورة منافقون د نازلېدو تفصيلي واقعه :** دا واقعه د محمد بن اسحاق رحمه الله د روايت مطابق په شعبان کال شپږمه هجرئي کښې او د قتاده او عروه د روايت مطابق په شعبان کال پنځمه هجرئي کښې د غزوۀ بني المصطلق په موقعه راپيښه شوې وه . [ مظهري ][1] چې د محمد بن اسحاق او دمغازي او سير د اکثرو عالمانو د روايت مطابق داده چې نبي کريم ﷺ ته دا خبر اورسيدو چې د بني المصطلق سردار حارث بن ضرار نبي کريم ﷺ په خلاف د جنګ تياري کوي ، دا حارث بن ضرار د جويريه رضي الله عنها والد دې چې روستو مسلمانه شوې او په امهات المؤمنين کښې شامله شوه او پخپله حارث بن ضرار هم روستو مسلمان شوې دې .

ددغې جنګ دتيارئي نه په خبريدو باندې نبي کريم ﷺ د مسلمانانو د يو ټولي سره مقابلې ته راؤوتو په دغې جهاد کښې ډير منافقان هم د غنيمت د مال په طمع شامل شوي وو. اګر چې دوئ دزړه نه کافر وو خو يقين ئې لرلو چې دالله امداد نبي کريم ﷺ سره دې او هم دوئ به غلبه او فتح پيداکوي.

کله چې نبي کريم ﷺ د بني المصطلق مقام ته اورسيدو نو د حارث بن ضرار لښکر سره د مريسيع نومې چينې يا کوهي په مقام سره مخامخ شو ځکه دې غزا ته غزوۀ مريسيع هم وئيلې شي. دواړو اړخونو ته صفونه جوړ شو او د غشو سره مقابله شروع شوه په هغې کښې د بني المصطلق ډير سړي اووژلې شو باقي اوتښتيدل الله ﷻ نبي کريم ﷺ ته فتح ورکړه د دوئ د غنيمت څه مالونه او څه نارينه زنانه قيديان د مسلمانانو په لاس ورغلل ددې[2] جهاد قضيه خو ختمه شوه .

**د وطني يا نسبي قوميت په بنياد باندې يو بل سره مدد غوښتل دکفر او جاهليت نعره ده :** ددې نه پس د مسلمانانو لښکر لا په مريسيع مقام باندې پروت وو چې په دغه اوبو باندې د يو انصاري اويو مهاجر ترمينځه جګړه راولاړه شوه ، انصاري سره خپله انصاري ډله او مهاجر سره خپله مهاجره ډله اودريده. او ددې نه لويه جګړه جوړه شوه خو نبي کريم ﷺ ته په وخت خبر اوشو نو تشريف ئې راوړو او په سخت خفګان سره ئې اوفرمائيل چې [ مابال دعوى الجاهلية ] داڅه د جاهليت نعره ده[3] .چې دوطني او نسبي قوميت په بنياد باندې ستاسو ترمينځه دا جګړه راولاړه شوه او وې فرمائيل چې [ دعوها فانها منتنة ] دا مرداره نعره پريږدئي . او وې فرمائيل چې

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:٩ص:٣٠١] و دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[١٣٩٤]

[2] ) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١٩٦٥٢] و دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[١٣٩٦]

[3] ) صحيح البخاري كتاب التفسير ، تفسير سورة المانفقون قوله : يَقُوۡلُوۡنَ لَئِنۡ رَّجَعۡنَاۤ [ج:٢ص:٧٢٩]

هر مسلمان دې د خپل رور مسلمان مدد کوی خواه هغه ظالم وی یا مظلوم ، د مظلوم مدد کول خو ښکاره دی چې هغه دې د ظلم نه اوساتلې شی چې پرې ظلم اونشی[1] ، اود ظالم د مدد کولو مطلب دادې چې هغه دې د ظلم کولو نه بندوی ځکه چې دا د هغه حقیقی مدد دې ، مراد دادې چې په هره معامله کښې دا کتل پکار دی چې مظلوم څوک دی او ظالم څوک دې ، بیا دهر مسلمان مهاجر ویا انصار دافرض دی چې مظلوم دظالم د ظلم نه اوساتی خواه د دؤی قبیلې یا خاندان وی او د ظالم لاس اونیسی خواه هغه خپل ځکه رور یا پلار وی، دا د نسبی او وطنی قومیت جاهلانه او بد بوداره نعره ده چې دګندګئ نه سوا بل څه ترې په لاس نه راځی.
نبی کریم ﷺ ددې ارشاد په آؤریدو جګړه ختمه شوه ، په دې معامله کښې زیاتی د جهجاه مهاجر ثابته شوه ، ددهٔ مقابل سنان بن وبره جهنی انصاری زخمی شوې وو. د عباده بن صامت ﷺ په پوهولو سره سنان بن وبره ﷺ خپل حق معاف کړو او دغه ظالم او مظلوم بیا خپل مینځ کښې رونړه جوړ شو.
دمنافقانو یو تولې چې دمال غنیمت په طمع کښې مسلمانانو سره یو ځائی شوی وو د هغوئ سردار عبدالله بن ابی وو چې په زړه کښې ئې نبی کریم ﷺ اومسلمانانو سره دښمنی وه خو د دنیوی فائدو په خاطر ئې ځان ته مسلمان وئیلو کله چې ده ته ددغې مقابلې خبرو اورسیدو نو هغه دمسلمانانو تر مینځه د جګړې راولاړول دا موقعه غنیمت په کښې اوګڼرله اودغه دخپل مجلس جمع منافقانو کښې چې یواځې زید بن ارقم ﷺ یو مؤمن په کښې موجود وو. هغه انصارولره ، د مهاجرو خلاف رااوپارول او وې وئیل چې دوئ تاسو خپل وطن ته راؤبلل او په خپلو سرونو مو مسلط کړل خپل مالونو او جائیدادونو کښې مو حصه دار جوړ کړل ، ستاسو په روټو پالل اوس تاسو ته راپورته شوی دی که تاسو اوس هم خپل انجام اونه پیژندو نو بیا به ستاسو ژوند مشکل کړی ، ځکه تاسو له پکار دی چې په آئنده کښې د دوئ مالی مدد مه کوئ نو پخپله به یو خوا بل خوا اوتښتی او اوس تاسو له پکار دی چې په تاسو کښې د عزت خاوندان دې دغه ذلیلان بهر اوباسی.
دعزت خاوندان ئې خپل خلق او انصار اوبلل او ذلیل ئې رسول الله ﷺ او مهاجرینو ته اووئیل ، زید بن ارقم ﷺ چې دا خبره واؤریدله نو سمدستی ئې اووئیل چې والله هم ته ذلیل ، کمینه او خراب ئې او نبی کریم ﷺ د الله ﷻ د طرفه په ورکړی شوی عزت او دمسلمانانو د زړه په محبت سره کامیاب دی.
عبدالله بن ابی خپل منافقت باندې پرده اچول غوښتل ځکه ئې الفاظ صفا نه وو وئیلی چې زید بن ارقم ﷺ په غصه شو نو ددهٔ عقل په ځائې شواوپوهه شو چې اوس به زما کفر ښکاره شی، ځکه ئې زید ﷺ ته عذر اوکړو چې ما دا خبره هسې په خندا کښې کړې وه ،زما مطلب د نبی کریم ﷺ خلاف څه کول نه وؤ. زید ﷺ ددغې مجلس نه چې نبی کریم ﷺ ته راغلو نو د ابی دغه تولـه واقعه ئې واؤروله، نبی کریم ﷺ ډیر خفه شو. مخ مبارک باندې ئې هم نخښې ښکاره شوې . نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې هلکه! دروغ خونه وائې. زید ﷺ په قسم سره اووئیل چې ما پخپلو غوږونو دهغه دغه کلمات آؤریدلی دی. نبی کریم ﷺ بیا اوفرمائیل چې تاته خو څه شبه نه ده شوې. زید بن ارقم ﷺ بیا هم هغه جواب ورکړو او بیا د

[1] ) صحیح البخاري ابواب المظالم والقصاص ،باب اعن اخاك ظالما او مظلوما [ج:۱ص:۳۳۰]

ابن ابی دا خبره د مسلمانانو په پوره لښکر کښې خوره شوه او خپل مينځ کښې د دغې خبرې نه سوا بله څه خبره پاتې نشوه ، بل خوا انصارو حضراتو زيد بن ارقم ﷺ ملامته کولو چې تا د قوم په سردار باندې تور پورې کړو او خپلوی دې ورسره پريخوده. زيد بن ارقم ﷺ اوفرمائيل چې قسم په الله ﷻ د خزرج په ټوله قبيله کښې راته د ابن ابی نه بل څوک زيات خوښ نه وو. او که زما پلار هم دغسې خبره کړې وې نو هغه به مې هم ضرور نبی کريم ﷺ ته رسولې وه.

بل طرفته عمر بن خطاب ﷺ نه د عبدالله بن ابی د سر پريکولو اجازت غوښتو او بل روايت کښې دی چې عمر ﷺ دا عرض اوکړو چې تاسو ﷺ عباد بن بشر ﷺ ته د ابن ابی د سر پريکولو حکم اوکړئی چې تاسو ته ئې پيش کړی ، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ددې به څه کيږی چې کله خلقو کښې مشهوره شی چې نبی کريم ﷺ خپل اصحاب ﷺ وژنی. په دې وجه نبی کريم ﷺ دهغه د سر قلم کولو هيڅ دپاره اجازت ورنکړو کله چې په دې خبرو باندې د ابن ابی ځوئې عبدالله چې پوخ مسلمان وو خبر شو سمدستی د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو که واقعی د دغې خبرو اترو په نتيجه کښې زما د پلار سر غوځول غواړئی نو ماته حکم اوکړئی زه دې ته تيار يم چې دهغه پخپله پرې کړې شوې سر ستاسو په خدمت کښې حاضر کړم.

چې تاسو ﷺ به ددې مجلس نه لا پاسيدلی هم نه يئ او عرض ئې اوکړو چې د خزرج ټوله قبيله ددې ګواه ده چې دخپلو والدينو دټولو نه زيات خدمت کوونکئ هم زهٔ يم مګر د الله ﷻ او درسول ﷺ خلاف د هغوئ نه مې څۀ خيز نشی برداشت کيدې. او زما خطره ده که ستاسو په حکم زما پلار چا اووژلو او بيا هغه وژونکې په ما پيښ شو نو زما غيرت به جوش کښې راشی او زه به هغه اوژنم. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې زما دهغه د وژلو اراده نشته. او نه مې چاته ددې حکم ورکړې دې.

ددې واقعې نه پس نبی کريم ﷺ دعام عادت خلاف د بې وخته سفر کولو عام اعلان اوکړو او پخپله په قصوی نومې اوښه باندې سور شو کله چې عام صحابه کرام ﷺ روان شو نو نبی کريم ﷺ عبدالله بن ابی راوبللو او تپوس ئې ترې اوکړو چې آيا تا داسې وئيلی دی ؟ هغه په قسم سره اووئيل چې ما هيڅرې داسې نه وو وئيلی .دغه هلک يعنی زيد بن ارقم ﷺ دروغژن دې ، هرکله چې د عبدالله بن ابی پخپل قوم کښې عزت وو نو ټولو دا اوګنړل چې کيدشی زيد بن ارقم ﷺ نه څۀ غلطی شوې وی، ابن ابی به دغسې نه وی کړی.

بهر حال نبی کريم ﷺ د ابن ابی قسم اوعذر قبول کړو. دې سره د زيد بن ارقم ﷺ په خلاف د خلقو غصه او ملامتئ نوره هم زياته شوه اوزيدبن ارقم ﷺ بهٔ دشرمه د ټولو خلقو نه پټ ګرځيدو ، د پوره يو شوا روز مزل کولو نه پس په دويمه ورځ هم سفر جاری اولرلو ، چې نمر تيز شو نو نبی کريم ﷺ قافله په يو ځائې کښې پړاؤ اوکړو ، دپوره شواروز دسفر نه ستړی شوی صحابه کرام ﷺ سمدستی اوده شو خوب پرې غالب شو.

راوی وائی چې د نبی کريم ﷺ دبې وخته سفر شروع کولو او بيا دسفر د دومره اوږدولو مقصد د نبی کريم ﷺ داوو چې دعبدالله بن ابی د معاملې نه دخلقو ذهن بل طرفته واوړی. او دغه خبرې اترې بيخی ختمې شی.

دې نه پس بيا رسول الله ﷺ سفر شروع كړو ، په دې دوران كښې چې ترڅو د ابن ابی باره كښې دقرآن پاك آيتونه نه وو نازل شوی نو عباده بن صامت ﷺ ابن ابی ته نصيحت اوكړو چې ته پخپله د نبی كريم ﷺ په مخكښې د خپل جرم اقرار اوكړه . نبی كريم ﷺ به تاته معافی اوكړی او ته به خلاص شې ، ابن ابی چې دا واؤريدل نو مخ ئې واړولو . عباده ﷺ دغه وخت اووئيل چې ضرور به ستا ددې مخ اړولو باره كښې قرآن پاك نازل شی .

زيد بن ارقم ﷺ په سفر كښې د نبی كريم ﷺ ملګرې وو ، زيد بن ارقم ﷺ به بيا بيا نبی كريم ﷺ ته نزدې كيدل ځكه چې دده يقين وو چې دې منافق سرې زه په ټول قوم كښې دروغژن ګرځولوسره رسوا كړم ، ضرورالله ﷻ به زما په حق كښې او د هغه په خلاف قرآن كريم نازلوی ، اچانك زيد بن ارقم ﷺ اوكتل چې د نبی كريم ﷺ رنګ مبارك بدل شو حالت ئې هغسې ښكاريدو ځنګه چې به ئې د وحی راتلو په خت كښې وو . سا اخستل ئې په زوره زوره شروع كړل او په تندی مبارك ئې خوله راتلل شروع شو . اوښه مبارك باندې وزن زيات شو . نودؤی ﷺ ته د وحی راتلو اميد پيدا شو . كله چې د نبی كريم ﷺ د وحی دغه حالت ختم شو ، زما سورلی چونكه د نبی كريم ﷺ سورلئ سره بيخی نزدې وه . زيد بن ارقم وائی چې همدغسې سور په سور ئې زما غوږ اونيوؤ او راته ئې اووئيل چې [ ياغلام صدق الله حديثك ونزلت سورة المنافقين فی ابن ابی من اولها الی اخرها ] يعنی ائې هلكه ! الله ﷻ ستا د خبرې تصديق اوكړو او ټول سورة المنافقين د ابن ابی ددغې واقعې باره كښې نازل شو .

ددې روايت نه معلومه شوه چې سورة منافقين هم د سفر په دوران كښې نازل شوې وو([1]) خو د بغوی په روايت كښې دی چې كله نبی كريم ﷺ د سفر نه واپس مدينې منورې ته راؤرسيدو او زيد بن ارقم ﷺ دشرم او حيا په وجه په كور كښې پټ ناست وو ، هغه وخت دا سورة نازل شو([2]) . والله اعلم .

يو روايت كښې دی چې نبی كريم ﷺ مدينې منورې ته نزدې وادئ عقيق ته اورسيدو نو د عبدالله بن ابی منافق ، مؤمن ځوئې عبدالله را وړاندې شو او په ټولو سورلو كښې ئې لټول شروع كړه كله چې د خپل پلار ابی سورلئ ته نزدې راؤرسيدو د هغه اوښه ئې چو كړه او دهغې په ګوډو ئې ښه كيخوده او پلارته ئې اووئيل چې قسم په الله ته مدينې منورې ته تر هغې نشې داخليدې ترڅو چې نبی كريم ﷺ درته د داخليدو اجازت درنكړی . او ترڅو چې ته دا خبره واضحه نه كړې چې ستا دا خبره څنګه ده چې دعزت خاوند به د ذلت خاوند بهر اوباسی نو په دې كښې دې د عزت اوذلت خاوند چاته وئيلی دی؟ څوك چې به ورسره خوا كښې تيريدل هغوئ به عبدالله ﷺ لره ملامته كولو چې د پلار مخه ئې نيولې وه په آخر كښې چې دغلته د نبی كريم ﷺ سورلی مباركه راغله نو تپوس ئې اوكړو چې څه معامله ده ؟ خلقو ورته عرض اوكړو چې عبدالله ﷺ د پلار مخه نيولې ده چې ترڅو ورته نبی كريم ﷺ مدينې ته د داخليدو اجازت نه وی كړې نو تر هغې به مدينې ته نه داخليږی . نبی كريم ﷺ ورته اوكتل چې عبدالله بن ابی منافق دخپل ځوئې نه ځومره مجبوره دې او دا وائی چې زه

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۹ص:۳۰۵]
[2]) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۱۳۳]

خود ښځو او ماشومانو نه هم زیات ذلیل یم نبی کریم ﷺ چې دا واوریدل نو عبدالله ته ئې اووئیل چې ددهٔ مخه پریږده چې مدینې منورې ته داخل شئ ، هله ئې ورته خوئې لار پریښوده دسورة منافقون د نازلیدو واقعه خو هم دومره وه چې تر دې اولیکلې شوه ، د قیصې په شروع کښې دا هم اجمالا ذکر شوی دی چې د غزوهٔ بنی المصطلق اصل ذمه دار د ام المؤمنین جویریه رضي الله عنها والد حارث بن ضرار شوې وو بیا جویریه رضي الله عنها ام المؤمنین جوړه شوه . او پلار ئې هم مسلمان شو .

ددې واقعه په مسند احمد ، ابی داود وغیره کښې دا منقول ده چې کله بنی المصطلق ماتې اوخوړه نود مال غنیمت سره دهغوئ څه قیدیان هم دمسلمانانو لاس ته راغلل د اسلامی قانون مطابق ټول قیدیان او مال غنیمت په مجاهدینو اوویشلې شو ، د حارث بن ضرار لور بی بی جویریه رضي الله عنها هم قیده وه . دا د ثابت بن قیس بن شماس رضي الله عنه په برخه کښې راغله . هغوئ رضي الله عنه د کتابت په ډول ددې د آزادولو لوظ اوکړو . کتابت دې ته وائی چې غلام یا وینځه په څه شان سره مقرر رقم مالک ته ادا کړی دهغې نه پس آزاد کړې شی .

جویریه رضي الله عنها باندې د مقرر شوی رقم ادا کول دهغې رضي الله عنها په وس کښې نه وو ، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او درخواست ئې اوکړو چې زه مسلمانه شوې یم ،ګواهی ورکوم چې الله ﷻ یو دې هغه سره بل شریک نشته او تاسو ﷺ د الله تعالی رسول یئ . بیا ئې خپله واقعه بیان کړه چې زه ثابت بن قیس مکاتبه کړې یم خو هغه ته مقرر رقم ادا کول زما د وس نه بهر دی ، په دې کښې تاسو زما څه مدد اوکړئ .

نبی کریم ﷺ دهغې خواست منظو رکړو ، بیا ئې آزاده کړه او هغې لره خپله بی بی جوړول اوغوښتل ، جویریه رضي الله عنها به دا دومره لوئې نعمت څنګه نه قبلولو؟ ښه په خوشحالئ ئې قبول کړو[1] . اودا په ازواجو مطهراتو کښې داخله شوه . ام المؤمنین جویریه رضي الله عنها بیان کوی چې په غزوه بنی المصطلق کښې د نبی کریم ﷺ دتشریف راوړلو نه درې ورځې مخکښې ما په خوب کښې لیدلی وو چې د یثرب د طرفنه سپوږمئ راغله او زما په غیږ کښې پریوته . دغه وخت خو مې دا خوب چاته نه وو ذکر کړې اوس مې د هغې تعبیر په خپلو سترګو اولیدو .

دا د قوم دسردار لور وه . دا چې په ازواجو مطهراتو کښې داخله شوه نو په ټوله قبیله ئې ښه اثر پریوتو او یو فائده ئې هغه ټولو ښځو ته اوشوه چې دوئ رضي الله عنها سره بندیوانې شوې وې او ددوئ رشته دارې وې . څکه چې ددې خپلوانې ټولې وینځې ددې د خاطر آزادې کړې شوې ولې چې د هغوئ وینځې لرل ئې بې ادبی ګڼړل په دې شان سل وینځې دوی سره آزادې شوې او بیا ددوئ رضي الله عنها والد هم مسلمان شو کله ئې چې د نبی کریم ﷺ یوه معجزه اولیدل .

**په دې واقعه کښې زیاتې مهمې فائدې او هدایتونه ::** د سورة منافقین د نازلیدو واقعه ددې په تفسیر باندې پوهیدلو کښې مدد کوی ، ددې په ضمن کښې ډیر مهم هدایتونه ، مسئلې ، داخلاقو سیاست او معاشرت متعلق راغلی دی ، څکه احقر ددې واقعې پوره تفصیل دلته نقل کړې دې هغه هدایتونه دادی :

---

[1] ) مسند احمد ،حدیث السیدة عائشة رضي الله عنها رقم الحدیث:[۲٦٤۰۸] و سنن ابوداود، کتاب العتق، باب فی بیع المکاتب اذا فسخت الکتابة رقم الحدیث :[۳٤۲۹]

**د اسلامي سياست سټ بنياد خالص اسلامي ورور ولي او قامول دي چې په هغې رنګ، نسل، ژبه، ملکي او غير ملکي ټول امتيازونه بالکل ختم کړې شي** په بني المصطلق غزا کښې راپيښيدونکې د يو انصاري او مهاجر جګړه او دواړه طرفه د انصارو او مهاجرينو خپل خپل مدد دپاره د خپلو خلقو رابلل، دا د جاهليت هغه بت وو چې نبي کريم ﷺ مات کړي وو، او ټول مسلمانان د ملک، رنګ، نسل او ژبې د بيلتون باوجود خپل مينځ کښې رونړه رونړه جوړ کړي وو په انصارو کښې او مهاجرينو کښې بيا مواخات قائم کړل او ددوئ شريکه اسلامي برادرئ ئې جوړه کړه خو دشيطان دا زوړ چال دې چې خلق په کښې راګيروي او دخلقو تر مينځه دجګړو راولاړيدو بنياد جوړوي. ددې لازمي نتيجه دا وي چې يو بل سره مدد اسلامي پيمانه حق او انصاف دټولو ذهنونو نه اووځي. صرف د رور ولئ او قوميت په بنياد باندې يو بل سره د مدد کولو اصول جوړ شي، په دې شان سره هغه مسلمانانو لره په خپل مينځ کښې جنګوي څنګه چې دې واقعه کښې همدغسې صورت راولاړيدونکې وو. خو نبي کريم ﷺ سمدستي په موقعه راورسيده او دغه شر ئې ختم کړو. او وې خودل چې دا د جاهليت او کفر بدبويه نعره ده، دې نه ځان ساتئ او بيا ئې د قرآن کريم د مدد په اصولو باندې قائم کړل په کوم کښې چې ارشاد دې چې: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۚ﴾ يعنې مسلمانانو دپاره د چا د مدد کولو يا مدد حاصلولو پيمانه دا پکار ده چې څوک په عدل، انصاف او په نيکئ باندې دې د هغه مدد کوي اګر چې هغه په نسب، خاندان زبان او وطن کښې تاسو نه بيل وي او څوک چې په ګناه او ظلم باندې وي د هغه هيچرې امداد مه کوئ اګر چې هغه ستاسو پلار اورور وي. دا هغه معقول او منصفانه بنياد دې چې اسلام قائم کړې دې او نبي کريم ﷺ په هرقدم باندې دهغې پخپله لحاظ اوساتلو او ټولو ته ئې داخودنه اوکړه چې ددې تابع دې اوسيږي او د حجة الوداع په خپله آخري خطبه کښې ئې اعلان اوفرمائيلو چې د جاهليت ټول رسمونه زما د پښو لاندې ختم شو اوس د عربي، عجمي، تور، سپين، ملکي، غير ملکي بيلتونونه بتان مات شوي دي خپل مينځ کښې د لاس مدد کولو اسلامي بنياد صرف حق او انصاف دې، چې ټول دې ددې تابعداري کوي.

دې واقعې مونږ ته دا سبق هم راکړې دې چې د اسلام دښمنان د نن نه څه چې بلکه هميشه دپاره دمسلمانانو د ډلې د خوړولو دپاره هم دا د رورولئ او وطني قوميت حربه استعمالوي، کله اوچرته چې موقعه په کوتوورسي دهغې په کاراخستوسره په مسلمانانو کښې بيلتون اچوي.

افسوس دې چې د اوږدې زمانې راسې بيا مسلمانانو خپل دا سبق هير کړو او غيرو خلقو د اسلامي يو والي په ټوټې ټوټې کولو کښې بيا هم هغه چال خور کړو او د دين او د اصولو ددين نه د غفلت په بنا د عامي دنيا مسلمانان په دې حال کښې انختلوسره په خپل مينځ کښې د خانه جنګئ ښکار شو او د کفر والحاد د مقابلې دپاره ددوئ يو شوې قوت ټکړې ټکړې شو، يواځې عربي، عجمي نه، عربو کښې مصري، شامي، حجازي او يمني يو بل سره يو ځائې پاتې نشو. په هندوستان او پاکستان کښې پنجابي، بنګالي، سندهي، هندي، پښتون او بلوچ خپل مينځ کښې د اختلاف ښکار شو فالى الله المشتكى

د اسلام د ښمنان زمونږ دې اختلاف سره لوبې کوي او هم دې په نتيجه کښې هغوئ په هرميدان کښې په مونږ غالب راځي او مونږ هر ځائې شکست خوړلې په غلامانه ذهنيت

کښې اخته هم ددوئ په پناه اخستو مجبوره ښکارو ، کاش چې نن هم مونږ مسلمانان په خپلو قرآنی اصولو او د نبی کریم ﷺ په هدایاتو باندې غور اوکړو ، د غیرو خلقو په آسره د ژوندی پاتې کیدو په ځائې خپله اسلامی ورورولی مضبوطه جوړه کړو ، د رنګ و نسل ، ژبې او وطن بتان بیا یو ځلې مات کړو نن به هم د الله ﷻ د امداد لیدل په غریدلو سترګو اوشی.

**دصحابه کرامو ﷺ په اسلامی اصولو باندې بې مثله ثابت قدمی او لوړ مقام** دې واقعې دا هم اوخودل چې اګر چې په وختی توګه شیطان څه خلق د جاهلیت په نعره کښې اخته کړی وو خو په حقیقت کښې د ټولو زړونه په ایمان سره ښه مضبوط وو په لږ شان خیال کولو سره ټول ددې خیالونو نه توبه ګار شو او د دوئ په زړونو باندې د الله ﷻ او د نبی کریم ﷺ دمحبت داسې غلبه وه چې په کښې هیڅ خپلوی ، ورورولی او قومیت خنډ جوړ نه شو. ددې ګواهی پخپله په دې واقعه کښې د زید بن ارقم ﷺ د بیان نه واضحه شوه چې هغه پخپله هم د خزرج قبیلې غړې او ابن ابی ددې قبیلې سردار وو ا و زید بن ارقم ﷺ هم دهغه دعزت او لوئې اقراری وو. لیکن څه وخت ئې چې دهغه د ژبې نه د مؤمنانو مهاجرینو او پخپله د نبی کریم ﷺ خلاف الفاظ واؤریدل نو برداشت ئې اونه کړې شو. هم په دغه مجلس کښې ئې ابن ابی ته سخت جواب ورکړو ، بیا ئې د نبی کریم ﷺ په وړاندې شکایت پیش کړو ، که د نن صبا رور ولی وې نو د خپلې ورورولئ د سردار داخبره به ئې کله هم نبی کریم ﷺ ته نه وه رسولې.
هم په دې واقعه کښې پخپله د ابن ابی د صاحبزاده عبدالله ﷺ واقعې دا څومره روښانه کړه چې ددوئ دمینې او لوئې تعلق صرف الله ﷻ او د الله ﷻ رسول ﷺ سره وو کله ئې چې د خپل پلار نه هم دهغوئ خلاف خبره واؤریدله نو د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او دخپل پلار د سر قلم کولو پیشکش ئې اوکړو او اجازت ئې اوغوښتو خو نبی کریم ﷺ ددې نه منع کړو ، مدینې منورې ته په رسیدو ئې دخپل پلار سورلی چو کړه او مدینې منورې ته د ورتلو لار ئې ورته بنده کړه. پلار ئې مجبوره کړو چې هغه دې دا اقرار اوکړی چې عزت دار صرف نبی کریم ﷺ دې او هغه پخپله خوار او ذلیل دې ، بیا د نبی کریم ﷺ د اجازت ورکولو نه پس د خپل پلار لار ئې خلاصه کړه نو ددې په کتو باندې بې ساخته په ژبه باندې راځی.

توئخل خوش ثمر کیستی که سرو وسمن همه زخویش بریدند وباتو پیوستند

ته کومه داسې ښکلې میوه داره ونه ئې چې سرو او رامبیلو ، ټول دخپل ځان نه پریکړل او تاسره ئې یو ځائې کړل.
دې نه علاوه د بدر ، احد او احزاب جنګونو په ذریعه دتورې په ذریعه ددې قوم پرستی او وطن پرستئ بتان ټکړې ټکړې کړل او ثابته ئې کړه چې مسلمان هر قوم او وطن او د هر رنګ او ژبې وی ، دوئ ټول خپل مینځ کښې رونړه رونړه دی او څوک چې الله ﷻ اورسول ﷺ لره نه منی هغه اګر چې حقیقی رور او پلار ولې نه وی خو دښمن دې.

هزار خویش که بیګانه از خدا باشد فدائے یک تن بیګانه کآشنا باشد

په زرګونو خپلوان چې د الله ﷻ تعالی نه بیګانه وی ، هغه دې دیو داسې کس نه قربان وی چې الله ﷻ سره آشنا وی.

دمسلمانانو د عامو مجلسو لحاظ ساتل او دوئ لره د غلط فهمئ نه د بچ کولو انتظام دي واقعې مونږ ته يو سبق دا راکړو چې کوم کار پخپله جائز او صحيح وي مگر د هغې په کولو سره څه داسې خطره وي چې يو مسلمان ته به ترې پخپله غلط فهمي پيدا کيږي يا دښمنانو ته د غلط فهمئ پيدا کولو موقعه په گوتو راځي نو هغه دې اونه کړې شي، لکه چې نبي کريم ﷺ د ابن ابي د منافقت ښکاره کيدو نه پس عمر فاروق رضي الله عنه ته دهغه دسر قلم کولو اجازت ورنکړو ځکه چې دا خطره وه چې بيا به دښمنان دا غلط فهمي خوره کړي چې نبي کريم ﷺ خپل صحابه کرام رضي الله عنهم هم وژني.

مگر د نورو روايتونو نه دا ثابت دي چې د غلط فهمئ د خطرې په وجه داسې کارونه پريخودې شي چې د شرعي مقصدونو څخه نه وي اگر چې مستحب او د ثواب کار وي خو مقصد داسې خطرې دپاره نه شي پريخودلې کيدې بلکه دخطرې د لرې کولو فکر به کيديشي او دغه کار به کولې شي.

دسورة ترجمه او تفسير خلاصه پورته ليکلې شوې ده اوس ددې د خاصو خاصو جملو زيات وضاحت اوکورئ.

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ﴾ عبدالله بن ابی رئيس المنافقين دَ چا په معامله کښې چې دا سورة نازل شوې دې او په دې کښې دهغه قسمونه واضح کړې شوی دی چې هغه په دروغه وو، په دې باندې ورته خلقو خير خواهئ نه دا اووئيل چې تاته معلومه ده چې ستا په باره کښې قرآن پاک کښې څه نازل شوی دی؟ اوس هم وخت نه دې تير شوې، ته د نبي کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شه او د خپل جرم اقرار اوکړه نو نبي کريم ﷺ به ستا دپاره د مغفرت دعا اوکړي. هغه جواب کښې اووئيل چې تاسو خلقو ماته وئيلي وو چې ايمان راوړه، ما ايمان راوړو بيامو راته اووئيل چې دخپل مال نه زکوة ورکوه هغه شان کوم، اوس د دې نه سوا څه پاتې شوی دی چې زه محمد ﷺ ته سجده اوکړم؟ په دې باره کښې دغه آيتونه مبارک نازل شو، دې کښې واضح کړې شو چې هر کله دهغه په زړه کښې ايمان نشته نو هغه دپاره د چا مغفرت فائده او نفع نشي ورکولې ابن ابی ددې واقعې نه پس مدينې منورې ته په رسيدو سره څو ورځې ژوندې پاتې شو، بيا زر مړ شو. [مظهری][1]

﴿هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا﴾ دا هغه خبره ده چې د جهجاه مهاجر او سنان انصاري په مينځ کښې دجگړې په وخت ابن ابی ورته وئيلې وه ددې جواب الله ﷻ دا ورکړو چې دا بيوقوفان داسې پوهيږي چې مهاجرين زمونږ د ورکړې حاجت مند دی هم مونږ دوئ ته ورکوو. حالانکه د آسمان او زمکې خزانې خو ټولې د الله ﷻ په لاس کښې دی، الله ﷻ چې غواړي نو مهاجرينو ته ستاسو څه امداد نه بغير ټول هر څه ورکولې شي دهغه دا پوهيدل اوکنړل هر کله چې د بې عقلئ او بې وقوفئ دليل دې ځکه قرآن پاک دلته د لَا يَفْقَهُونَ لفظ اختيار کړو او وې خودل چې داسې خيال کوونکې بې عقله او بې پوهې دې.

﴿يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ﴾ دا هم د دغې منافق عبدالله بن ابی قول دې چې په کښې ئې الفاظ اگر چې صفا او نه وئيل خو مطلب ئې ښکاره وو چې هغه خپل ځان او د

---

[1] تفسير المظهري [ج:۹ص:۳۰۶]

مديني انصار دعزت خاوندان اوبلل او دهغوئ مقابل نبي كريم ﷺ او مهاجرين صحابه ئي معاذالله ذليل اوبلل. مطلب ئې د مديني منورې انصار راپارو وو چې دا كمزوري او ذليل خلق دې د مديني منورې نه بهر كړي، الله ﷻ ددې په جواب كښې دهغه خبره هم په هغه ورواړوله چې كه دعزت خاوندانو د ذلت خاوندانو لره ويستل نو زور به ئې هم تاسو ته خكه چې عزت خو دالله ﷻ ، دالله ﷻ درسول ﷺ او د مؤمنانو حق دې ، مگر تاسو دخپل جهالت په بنا ددې نه بې خبره يئ.

دلته قرآن پاک د لَا يَعْلَمُوْنَ لفظ استعمال كړې دې او ددې نه وړاندې ئې لَا يَفْقَهُوْنَ فرمائيلي وو، وجه د فرق ئې داده چې څوک انسان خپل خان د بل انسان روزي رسان اوگنړي نو دا سودا سراسر بې عقلي ده ، ددهٔ داسې گنړل د بيوقوفئ او بې عقلئ نخښه ده. او عزت اوذلت په دنيا كښې كله چاته او كله چاته ملاويږي، په دې كښې چاته غلطي را ولاړيدل ددې واقعاتو نه د بې خبرتئ او ناواقفتيا دليل دې خكه ئې دلته لَا يَعْلَمُوْنَ اوفرمائيل.

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تُلْهِكُمْ | اَمْوَالُكُمْ | وَلَآ اَوْلَادُكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | غافله دنه كړي تاسو | مالونه ستاسو | اونه اولاد ستاسو |

اے مومنانو ! [ياد ساتئ] ستاسو مالونه او اولاد مو دالله ﷻ دياد نه غافله نكړي

| عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ | وَمَنْ يَّفْعَلْ | ذٰلِكَ | فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| دياد دالله نه | او هغه چاچې اوكړو | دا كار | نو هغوئ | خاص هم هغوئ | په نقصان كښې دي |

او څوک چې داسې اوكړي | نو هغوئ تاوانيان دي

| وَاَنْفِقُوْا | مِمَّا | رَزَقْنٰكُمْ | مِّنْ قَبْلِ | اَنْ يَّاْتِيَ |
|---|---|---|---|---|
| او خرچ اوكړئ | دهغې مال نه | چې دركړې دې مونږ تاسو لره | مخكښې ددې نه | چې راشي |

اومونږ چې درته څه دركړي دي | دهغې نه [په صدقاتو كښې] خرڅ كوئ | ددې نه وړاندې چې

| اَحَدَكُمُ | الْمَوْتُ | فَيَقُوْلَ رَبِّ | لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ | اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ |
|---|---|---|---|---|
| يو له تاسې نه | مرگ | او بيا وائي اے ربه زما | ولې دې روستو نه كړو ماله | نيتې نزدې ته |

به تاسو كښې يو كس ته مرگ راشي انو بيا به وائي اے زما ربه ! ما ته دې ولې څو ورځې مهلت را نكړو

| فَاَصَّدَّقَ | وَاَكُنْ | مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۞ | وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ | نَفْسًا |
|---|---|---|---|---|
| چې ما صدقه وركړې وې | او شوې وې | دصالحانونه | او هرگز نه روستو كوي الله | يو نفس لره |

چې ما خيراتونه كړې وې | اوپه نيكانو كښې شامل شوې وې | او الله ﷻ هيچا ته مهلت نه وركوي

| اِذَا جَآءَ | اَجَلُهَا ؕ | وَاللّٰهُ | خَبِيْرٌۢ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| كله چې راشي | نيته دهغه | او الله | خبردار دې | په هغه كارونو | چې تاسو يې كوئ |

كله چې ئې نيته پوره شي | او الله ﷻ ستاسو دكارونو نه پوره پوره خبر دې

## آسان ترجمه قرآن

اے ايمان والو! تاسو دې ستاسو دولت او ستاسو اولاد د الله تعالى د ياد نه غافله نه كړي، او كوم خلق چه داسې كوي، نو هغوى د ډير تاوان سودا كونكې دي. او مونږ چه تاسو ته كوم رزق دركړې دې، دهغې نه (د

الله تعالى د حکم مطابق) خرچ کوئ، مخکښې ددې نه چه په تاسو کښې چا ته مرګ راشي، نو هغه دا اووائي چه: اے زما پروردګاره! تا ما ته لږ شان وخت د پاره مهلت ولې را نکړو، چه ما به صدقه کړې وې، او په نيکانو کښې شامل شوې وې. او کله چه د يو سړي مقرره نيټه راشي، نو الله تعالى هغه ته هيڅ کرې مهلت نه ورکوي او څه چه تاسو کوئ، الله تعالى په هغې ښاندې مکمل خبردار دې.

## خلاصه تفسير

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلۡهِكُمۡ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُمۡ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِۚ﴾ [اے ايماندارو تاسوله دې ستاسو مال او اولاد] مراد ددې نه ټوله دنياده [دالله تعالى دياده] او اطاعت [نه] مراد ددې نه مجموعه دين دې [غافله نه کړي] يعنى په دنيا کښې داسې مه مشغوليږئ چه په دين کښې خلل راولي: ﴿وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ﴾ [او څوک چه داسې وکړي داسې خلق ناکامه وي] ځکه چه دنيوي نفع خو به ختمه شي او داخرت ضرر او خساره به دائمي پاتې شي [او] منجمله دطاعاتونه ديو مالي طاعت حکم کولې شي چه د ﴿لَا تُلۡهِكُمۡ أَمۡوَٰلُكُمۡ﴾ دعام مضمون نه يو خاص فرددې يعنى ﴿وَأَنفِقُواْ مِن مَّا رَزَقۡنَٰكُم مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ أَحَدَكُمُ ٱلۡمَوۡتُ﴾ [مونږ چه تاسوله څه درکړي دي ددې نه] حقوق واجبه لره [ددې نه وړاندې خرچ کړئ چه په تاسوکښې چاته مرګ راشي ﴿فَيَقُولَ رَبِّ لَوۡلَآ أَخَّرۡتَنِيٓ إِلَىٰٓ أَجَلٖ قَرِيبٖ﴾ بيا هغه] په طور دتمنا او حسرت [ووائي چه اے زما پروردګاره ماته لږې نورې ورځې مهلت تاولې رانه کړو ﴿فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ چې ماخيرخيرات کړې وى او په نيکوخلقوکښې شامل شوې وې] او ددۀ داتمنا او حسرت به ځکه غيرمفيدوي چه ﴿وَلَن يُؤَخِّرَ ٱللَّهُ نَفۡسًا إِذَا جَآءَ أَجَلُهَاۚ﴾ [الله تعالى هيڅاته هر کله چه ددۀ ميعاد] دعمر په ختميدو [راشي هرګز مهلت نه ورکوي ﴿وَٱللَّهُ خَبِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ﴾ او الله تعالى ستاسو په ټولو کارونو پوره خبرداردې] هم هغسې به دجزا مستحق يئ:

## معارف او مسائل

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلۡهِكُمۡ أَمۡوَٰلُكُمۡ﴾ ددې سورة په رومبئ رکوع کښې د منافقانو د دروغو قسمونو او دهغوئ د سازشونو بيان وو. او د ټولو خلاصه دا وه چې ددنيا د محبت نه مغلوب کيدل وو. په دې وجه په ظاهر کښې به ئې د اسلام دعوى کوله چې دمسلمانانو د ملامتې نه خلاص شو او د غنيمت د مالونو وغيره برخه راته هم حاصله شي. په دې وجه د هغوئ دا سازش وو چې په مهاجرينو صحابه کرامو ﷺ باندې کول بند خرچ کړئي ، په دې دويمه رکوع کښې مؤمنانو مخلصانو ته خطاب دې چې په هغې کښې دې نه ويرولې شوى دى چې ددنيا په مينه کښې داسې مه مستيرئى ځنګه چې منافقين مست شوى دى ، ددنيا د ټولو نه لوئې دوه څيزونه دى چې انسان لره د الله ﷻ د ياد نه غافله کوي ، مال او اولاد ځکه د دوارو نوم واخستې شو ګنى دې نه مراد ددنيا ټول سامان دې او د ارشاد حاصل دادې چې مال ، اولاد سره مينه کول په يو درجه کښې څه بديت نه لرى . دې سره تر يوې درجې پورې شغل لرل يو اخې جائز نه بلکه واجب هم شي خو ددې آخرى حد هر وخت مخامخ پاتې کيدل پکار دى چې دا څيزونه انسان لره دالله ﷻ د ذکر نه غافله نه کړي . دلته ځينې مفسرينو د ذکر نه مراد پنځه وخته مونځ ، ځينو حج او زکوة او ځينو تري قرآن اخستې دې . حسن بصرى ﷫ اوفرمائيل چې د ذکر نه مراد دلته

ټول طاعتونه او عبادتونه دي او دا قول ډټولو جامع دي [ قرطبي ] ( ۱ ).

خلاصه دا ده چې ددې دنيوي ژوند په سامان کښې دومره مشغوليدل خو جائز دي او ددې اجازت دې چې هغه د الله ﷻ د ذکر يعني طاعت نه غافل نه کړي چې دهغې په محبت کښې په اخته کيدو سره د فرضو او واجباتو په ادا کولو کښې کوتاهي کوي يا په حرامو او مکروهو کښې اخته شي او څوک چې داسې کوي دهغوئ باره کښې فرمائي چې : ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ يعني هم دا خلق دي په زيان کښې پريوتونکي ، ولې چې هغوئ د آخرت د عظيم او هميشه باقي پاتې کيدونکو نعمتونو په بدله کښې ددنيا سپک او فاني نعمتونه اختيار کړل ددې نه به لوئې زيان بل څه وي ؟

﴿وَأَنفِقُوا مِن مَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾ دې آيت مبارک کښې د مرگ راتلو نه مراد د مرگ د نخښو ليدل دي ، مراد دادې چې د مرگ د نخښو مخې ته دراتلو نه وړاندې او د قوت په حالت کښې خپل مالونه د الله ﷻ په لار کښې په خرچ کولو سره د آخرت درجې حاصلې کړئي ، گنې د مرگ نه پس به مال وغيره ستاسو هيڅ پکار رانشي . پورته معلومه شوې ده چې د ذکر نه مراد عبادتونو او د شرعي احکامو پابندي کول دي چې په کښې د ضرورت په موقعو باندې مال خرچ کول هم داخل دي ، بيا دلته د مال دخرچ کولو ځان له بيان کړې شو د هغې وجهې کيديشي ، اول دا چې د الله ﷻ تابعداري کولو او دهغه په حکمونو باندې عمل کول انسان لره په غفلت کښې اچوونکې د ټولو نه لوئې څيز هم مال دې ځکه په کومو څيزونو کښې چې مال خرچ کول وي لکه زکوة ، عشر ، حج وغيره هغه ئې په مستقله توگه بيان کړل . دويمه وجه ئې دا هم کيديشي چې د مرگ دنخښو نښانو د ليدلو په وخت دا خو نه د چا په وس کښې دي او نه د چا په تصور کښې راتلې شي چې دغه وخت قضا مونځونه ادا کړم يا قضا شوې فرض حج دې ادا کړم يا د رمضان شريف پاتې شوې فرض روژې دې ادا کړم ، خو مال ئې په وړاندې وي او دا يقين ئې اوشي چې اوس د امال زما د لاسه نه اووتو نو دغه وخت هم آرزو کيديشي چې زر تر زره په مال خرچ کولو سره د مالي عبادت د کوتاهئ نه خلاصې بيا مومي دغسې دا خبره هم ده چې خيرات ورکول د ټولو نورو بلاګانو ، مصيبتونو او د عذاب په ايسارولو کښې هم اثر ناک دي .

صحيح مسلم کښې د ابوهريره ﷺ نه روايت دې چې يو سړي د نبي کريم ﷺ نه پوښتنه اوکړه چې د کوم خيرات کولو زيات اجر او ثواب دې ؟ هغوئ ورته اوفرمائيل چې په داسې وخت کښې د الله ﷻ په لار کښې خرچ کول چې انسان رزغ جوړ وي او آئنده ضروورياتو باره کښې ئې دا ويره هم وي چې په مال خرچ کولو سره هسې نه بيا پخپله حاجتمند نشم . او وې فرمائيل چې د الله ﷻ په لار کښې خرچ کول تر هغې مه ايساروئي چې ساه مو مرئي ته راؤرسي او د مرگيدو وخت مو شي او هغه وخت بيا وائې چې دومر مال فلاني ته ورکړئي دومره په فلاني کار کښې خرچ کړئي ( ۲ ) .

---

۱ ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۱۲۹ ]

۲ ) صحيح البخاري كتاب الزكاة ،باب فضل صدقة الشحيح الصحيح [ج:۱ص:۱۹۰ ]

﴿فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَآ أَخَّرْتَنِيٓ﴾ ابن عباس ﷺ ددې آيت مبارک په تفسير کښې اوفرمائيل چې د چا په ذمه زکوة واجب وو ، او د ائې ورنکړو هغه به د مرګ په مخامخ راتلو نه پس الله ﷻ نه ددې آرزو لرى چې بيا دې زه دنيا ته بيرته لاړشم يعنى په مرګ کښې څه نور ډيل راکړې شي دپاره ددې چې زه څه صدقه ، او خيرات اوکرم او د فرضو ذمه دارئى نه خلاص شم . ﴿وَأَكُن مِّنَ الصَّٰلِحِينَ﴾(١) يعنى هغه به دمر کيدو په وخت دا هم خواهش لرى چې څه ډيل راکړې شى او زه داسې عملونه اوکړم دکوم په وجه چې په نيکانو کښې داخل شم يعنې د پاتې شوو فرضو او واجباتو قضا راوړم او په کومو حرامو او مکروهاتو کښې چې اخته شوې يم دهغې نه په توبې کول او بخښنې غوښتلو سره خلاص شم خو الله ﷻ په ورپسې آيت مبارک کښې اوخودل چې دمرګ د راتلو نه پس چاته ډيل نشى ورکولې . دا خواهشات عبث او بې فائدې دى

تمت بحمد الله تعالى سورة المنافقون

قبل صلوة الجمعة للثالث عشر من جمادى الثانية ١٣٩١هجرى

| اياتونه | | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | سورة التغابن مكية وهي ثماني عشرة اٰية وفيها ركوعان | |
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ۱۸ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکي دې | ۲ |

يُسَبِّحُ | لِلَّهِ | مَا | فِي السَّمَٰوَٰتِ | وَمَا | فِي الْأَرْضِ

تسبيح [پاکي] بيانوى | الله لره | هغه څه | چې په اسمانونو کښې دى | اوهغه څه | چې په زمکه کښې دى

په زمکه او آسمانونو کښې چې څه دى ټول د الله ﷻ پاکى بيانوى

لَهُ الْمُلْكُ | وَلَهُ الْحَمْدُ | وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيرٌ ① | هُوَ الَّذِي

هغه لره باداشاهى ده | او هغه لره ثناده | او هغه په هر څيز باندې | قادر دې | هغه هغه ذات دې

بادشاهى صرف د هغه ده | او ټول تعريفونه دهغه دپاره دى | اوهغه په هر څيز قدرت لرى | اوهغه [الله]

خَلَقَكُمْ | فَمِنكُمْ | كَافِرٌ | وَمِنكُم | مُّؤْمِنٌ

چې پيدا ئې کړئ تاسو | پس څينى له تاسو نه | کافر دې | او څينى له تاسو نه | مومن دې

هغه ذات دې | چې ټول ئې پيدا کړئ | نو بعضې په تاسو کښې کافران دى | اوبعضې مومنان دى

وَاللَّهُ | بِمَا | تَعْمَلُونَ | بَصِيرٌ ② | خَلَقَ السَّمَٰوَٰتِ | وَالْأَرْضَ

| او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | ليدونکې دې | هغه پيدا کړل آسمانونه | او زمکه

او الله ﷻ ستاسو کارونه وينې ګورى | ........................ آسمانونه او زمکه ئې

بِالْحَقِّ | وَصَوَّرَكُمْ | فَأَحْسَنَ | صُوَرَكُمْ | وَإِلَيْهِ

په حقه سره | او شکل ئې جوړ کړوستاسو | پس ډير ښائيسته ئې کړل | شکلونه ستاسو | اوخاص هغه ته

په يومقصد سره پيدا کړل | اوتاسوته ئې شکلونه درکړل | اوډير ښائسته ئې درته درکړل | اودهغه طرفته

---

(١) تفسير المظهري [ج:٩ ص:٣١٠]

الْمَصِيرُ ۝ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

واپس ورتلل دی | معلوم دی هغه ته | هغه څه چی په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی

واپس کيدل دی | په زمکه او په آسمانونو کښې چې څه دی ټول هغه [الله] ته معلوم دی

وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ

او معلوم دی هغه ته | هغه چی پټوئ ئې تاسو | او هغه چی | ښکاره کوئ ئې تاسو | او الله | عالم دی

او الله تعالى ستاسو په پټو او ښکاره کارونو باندې ښه پوهيږي | ...... .......... ...... ........او الله ﷻ ته د

بِذَاتِ الصُّدُورِ ۝ أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِينَ كَفَرُوا

په حال دسينو باندې | آيا نه دي راغلي تاسو ته | خبر | دهغه کسانو | چی کفر ئې اوکړو

زړونو ټول رازونه ښه معلوم دی | آيا تاسو ته دپخوانو خلقو خبر راغلي نه دې | چې تاسو نه

مِنْ قَبْلُ ۫ فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝

مخکښی ددې نه | پس اوڅکو هغوئ | عذاب | دعملونو خپلو | او دې دپاره دهغوئ | عذاب دردناک

وړاندې ئې کفر کړې وو انو هغوئ دخپلو کارونو په عذاب کښې راګير شول او هغوئ دپاره دردناک عذاب دي

ذٰلِكَ بِأَنَّهُ كَانَتْ تَأْتِيهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

دا انجام | په سبب ددې شو | چی راتلل به هغوئ ته | رسولان دهغوئ | دواضحه نښونښانو سره

دا په دې وجه چې هغوئ ته پيغمبران په ښکاره نښو سره راغلي ووا

فَقَالُوا أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوْا

نو اوبه وئيل هغوئ | آيا انسان دې | چی هدايت به کوی مونږ ته | پس انکار اوکړو هغوئ | او مخ ئې واړووه

نو وې وئيل چې آيا [زمونږ پشان] انسانان به مونږ ته لارې ښائی | نو انکارئې اوکړو او مخ ئې واړولو

وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ۗ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ۝ زَعَمَ الَّذِينَ

او بې پروا شو الله | او الله | بې پروا دې | ستائيلې شوې دې | په دعوی سره اووئيل هغه کسانو

او الله ﷻ هم د هغوئ څه پرواه اونکړه | او الله ﷻ بې پرواه دې | ستائيلی شوې دې | دکافرانو خيال

كَفَرُوا أَنْ لَنْ يُبْعَثُوا ۗ قُلْ

چی انکار ئې کړې وو | چی هرګز به هغوئ نه راپاڅولې کيږی [پس دمرګ نه] | ورته اووايه

دې | چې هغوئ به هيڅ کله دوباره ژوندی نشی راپورته کولې | ...... ............ .......ته اووايه

بَلٰى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ

ولې نه | قسم دې په رب زما | چی خامخا به تاسو راپاڅولې کيږئ | بيا به خامخا خبر درکړې کيږی تاسو له

چې ولې نه | زما دې په خپل رب قسم وی | چې تاسو به خامخا راپاڅولې شئ | بيا به درته ټول عملونه

بِمَا عَمِلْتُمْ ۗ وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيرٌ ۝ فَاٰمِنُوا

دهغې کارونو | چی کړی دی تاسو | او دا کار | په الله باندې | آسان دې | پس ايمان راوړئ

په ګوته کولې شی | ................ او دا کار الله ﷻ ته ډير آسان دې | نو په الله ﷻ

بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا ۭ

په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | او په [قران] نور باندې | هغه نور | چه نازل کړی دی مونږ |

او د هغه په رسول ﷺ او په هغه نور [قرآن] باندې ایمان راوړئ | چې مونږ رالیږلی دی

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝ يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ

او الله تعالی | په هغه کارونو | چې کوئ یې تاسو | خبردار دی | په کومه ورځ | چې به راجمع کړي تاسو |

او الله ستاسو دکارونو نه خبر دی | په کومه ورځ چې به هغه تاسو دجمع کیدو [یعنی دقیامت] په ورځ

لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ۭ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ

ورځې دراجمع کیدو ته | دغه به ورځ دکتې تاوان وی | او چاچې ایمان راوړو | په الله باندې |

راجمع کړي | هم دغه د [سود] زیان ورځ ده | ..........او څوک چې په الله ﷻ ایمان راوړي

وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ

او عمل نې اوکړو نیك | لرې به کړي الله | دهغه نه | گناهونه دهغه | او داخل به کړي هغه | داسې باغونو ته |

او دنیکئ کارونه کوی | نو الله ﷻ به دهغه گناهونه معاف کړي | او هغه به داسې باغونو ته داخل کړي

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۭ ذٰلِكَ الْفَوْزُ

چې بهیږی به | لاند دونو دهغې نه | نهرونه | همیشه به وی | په هغې کښې | همیشه | دا کامیابی ده

چې دهغې لاندې به نهرونه بهیږی | همیشه به په هغې کښې اوسیږی | ..........او دا ډیره لویه

الْعَظِيْمُ ۝ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰۗىِٕكَ

لویه | او هغه کسان | چې کفر نې اوکړو | او دروغ نې اوگڼل | آیتونه زمونږه | دغه کسان

کامیابی ده | او چا چې انکار کړي وی | او زمونږ آیتونه نې دروغ گڼرلی وی | نو هغوئ

اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝

خاوندان دوور دی | همیشه به وی | په هغې کښې | او ډیر بد ځائې دی | دورتلو |

دوزخیان دی | همیشه به په هغې کښې وی | ..........او دغه ډیر ناکاره ټیکاؤنړه ده

## آسان ترجمه قرآن

په آسمانونو او زمکه کښې چه څه څیزونه دی، هغه ټول د الله تعالی تسبیح کوی، او بادشاهی هغه دپاره ده، او تعریف هغه دپاره دې، او هغه په هر څیز باندې پوره قدرت لری. هم هغه دې، چه تاسو ئې پیدا کړئ، بیا په تاسو کښې څوک کافران دی، او څوک مومنان، او څه چه تاسو کوئ، الله تعالی هغه ښه وینی هغه آسمانونه او زمکه په حقه سره پیدا کړي دی، او ستاسو صورتونه ئې جوړ کړي دی، او ښائسته ئې جوړ کړي دی ستاسو صورتونه، او هغه طرف ته آخر کښې دټولو واپس تلل دی. په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دی، هغه په هغې باندې پوهیږی او څه چه تاسو په پټه باندې کوئ، او څه چه ښکاره کوئ، دهغې هم هغه سره پوره علم دې، او الله تعالی عالم دې د سینو په خبرو باندې هم. آیا تاسو ته دهغې خلقو واقعات نه دی رارسیدلې، چه هغوی اول کفر اختیار کړې وو، بیا ئې د خپلو کارونو وبال اوڅکلو، او

(آئنده) د هغوی په حصه کښې یو دردناک عذاب دې؟ دا ټول هر څه ددې وجې نه او شو چه هغوی ته به د هغوی پیغمبران ښکاره دلائلو سره راتلل. نو هغوی به دا وئیل چه: آیا زمونږ په شان انسان دې چه مونږ ته به هدایت را کوي؟ غرض دا چه هغوی کفر اختیار کړو. او مخ ئې وا رولو. او الله تعالیٰ هم دهغوی نه بې پرواهي اوکړه. او الله تعالیٰ بالکل بے پرواه [بې حاجته] دې. او ستائیلې شوې دې. کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، هغوی دا دعوی کوي، چه چرې به هم دوی دوباره ژوندي نه کړې شي. او وایه چه: ولې نه؟ زما دې په خپل پروردګار قسم وي، تاسو به ضرور دوباره ژوندي کولې شئ. بیا به تاسو ته خبر هر کولې شي چه تاسو څه څه کړي دي. او دا د الله تعالیٰ دپاره معمولي خبره ده. لهٰذا په الله تعالیٰ باندې او د هغه په رسول باندې او په هغې رڼرا باندې ایمان راوړئ. کومه چه مونږ نازله کړې ده. او تاسو چه څه کوئ. الله تعالیٰ په هغې باندې پوره خبردار دې (دا دوباره ژوندیه) په هغه ورځ (وي) چه کله الله تعالیٰ تاسو د حشر په ورځ راجمع کړي. هغه به داسې ورځ وي. چه په دې کښې به څه خلق نورو لره په افسوس کښې واچوي او کوم سړي چه په الله تعالیٰ باندې ایمان راوړې وي او نیک عملونه ئې کړې وي. الله تعالیٰ به دهغه ګناهونه معاف کړي. او هغه لره به داسې باغونو ته داخل کړي. چه دهغې لاندې به نهرونه بهیږي. چه په هغې کښې به هغه همیشه دپاره اوسیږي. او دا لویه کامیابي ده. او کومو خلقو چه کفر اختیار کړې وي. او زمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړلې وي. هغوی به دوزخیان وي. چه په هغې کښې به هغوی همیشه دپاره اوسیږي. او هغه ډیر ناکاره ځائې دې.

### خلاصه تفسیر

﴿یُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ﴾ [تول څیزونه کوم چه په اسمانونوکښې دی اوکوم چه په مزکه کښې دی دالله تعالی پاکي] قالایاحالا [بیانوی ﴿لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ﴾ دهغه حکومت دې او هغه دثناء لائق دې ﴿وَهُوَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ﴾ او هغه په هرشی قادر دې] داتمهید دراتلونکی بیان دې چه هغه په داسې کمالی صفتونو سره متصف دې نو دهغه اطاعت واجب او معصیت قبیح دې ﴿هُوَ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ﴾ [هغه دې چاچه تاسولره پیداکړل] ددې مقتضی داوه چه ټول ایمان راوړئ [پس] سره ددې هم ﴿فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ﴾ [په تاسو کښې څنې کافران دی اوځنې مؤمنان دی ﴿وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ﴾ اوالله تعالی ستاسوعملونه] دایمان اوکفر [لره وینی] بس دهریومناسب به جزا درکړی ﴿خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ﴾ [هغه اسمانونو اومزکې لره په ټیك طور] یعنی پرحکمت او پرمنفعت [پیداکړل ﴿وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ﴾ اوستاسو صورتونه ئې جوړکړل پس ښکلی صورتونه ئې جوړکړل ستاسو] ځکه چه دانسان د اندامونو په شان دبل یو حیوان په اندامونوکښې تناسب نشته ﴿وَاِلَیْهِ الْمَصِیْرُ﴾ [او خاص هغه ته] دټولو [واپسی ده] او ﴿یَعْلَمُ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [هغه ټول څیزونه پیژنی کوم چه په اسمانونوکښې دی او په مزکه کښې دی ﴿وَیَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ﴾ اوټولو هغه څیزونو لره پیژنی کوم چه تاسوپټ کوئ اوکوم چه په ښکاره کوئ ﴿وَاللّٰهُ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ﴾ او الله تعالی دزړونو په خبرو پوهه دې] او داټول کارونه مقتضی ددې دی چه تاسو دهغه اطاعت کوئ او علاوه ددغومقتضیاتو نه ﴿اَلَمْ یَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ﴾ [آیاتاسوته دهغوخلقو خبرنه دې رسیدلې] چه دغه خبرهم مقتضی د وجوب

داطاعت دي [کوموچه] تاسونه [مخکښې کفر وکړو ﴿فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ﴾ بيا هغوی دخپلو] دغو [عملونو وبال] په دنيا کښې هم [وڅکلواو] ددې نه علاوه په اخرت کښې هم ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ [دهغوی دپاره دردناك عذاب کيدونکې دې ﴿ذَٰلِكَ﴾ دا] وبال ددنيا او عذاب داخرت ﴿بِأَنَّهُ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ﴾ [په دې سبب سره دې چه هغوخلقو ته دهغوی پيغمبرانو واضح دليلونه راوړی وونو ﴿فَقَالُوا﴾ هغوخلقو] دهغې رسولانو په نسبت [ووئيل ﴿أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا﴾ چه ايا انسان به مونږ ته هدايت کوی؟] يعنی بشرچرته پيغمبرياهادی کيدې شی؟ ﴿فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوا وَّاسْتَغْنَى اللَّهُ﴾ [غرض هغوی کفر وکړو او الله تعالی] هم دهغوی څه [پرواه ونه کړه] بلکه قهرئ پرې وکړو ﴿وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ﴾ [اوالله تعالی] دتولونه [بې نياز] او [ستوده صفات ستائيلی شوی دې] دهٔ لره نه دچاپه معصيت سره ضرر اونه دچاپه طاعت سره نفع په خپله دمطيع او عاصی نفع او ضرر دې او ﴿زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا﴾ [داکافران] چه مضمون دعذاب داخرت واوری لکه چه په ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ کښې مذکور دې [دادعوی کوی چه هغوی به هرگز دوباره بيا ژوندی نه کړې شی] دکوم نه پس چه دعذاب اليم وقوع ښودلې شی ﴿قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ﴾ [ته ووايه چه ولې نه په الله تعالی قسم دوباره به ژوندی کړې شئ بيا چه څه تاسو کړی دی تاسوتولو ته به وښودلې شی] او په دې به سزا درکړې شی ﴿وَذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ [اودا] بيا پورته کيدل اوجزا [الله تعالی ته] په وجه دکمال قدرت [بالکل اسانه ده پس] هرکله چه دامقتضيات دايمان مجتمع دی نوتاسو له پکار دی چه ﴿فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ [تاسوپه الله تعالی اودهغه په رسول ﴿وَالنُّورِ الَّذِي أَنزَلْنَا﴾ او په هغه نور] يعنی په قرآن [کوم چه مونږ نازل کړې دې ايمان روړی ﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ او الله تعالی ستاسو دتولو عملونو پوره خبرلری] او هغه ورځ ياده کړئ ﴿يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ﴾ [په کومه ورځ چه به تاسوتول دهغې جمع کيدويه ورځ جمع کړې شئ ﴿ذَٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ﴾ دا ورځ ده دسودفائدې او دزيان] دظاهريدو يعنی دمسلمانانو دنفع او دکافرانو دنقصان ظهور به په دغه ورځ عملا وشی [او] بيان دهغې دادې چه ﴿وَمَن يُؤْمِن بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا﴾ [کوم سړی په الله تعالی ايمان راوړې وی اونيك عمل ئې کړې وی ﴿يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ الله تعالی به دهغه گناه لرې کړی او هغه به دهٔ لره] [داسې باغونوته داخل کړی چه لاندې به ترې نه نهرونه جاری وی په کومو کښې چه به دهميشه هميشه دپاره وسيږی] او ﴿ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾ دا جنت [دالويه کاميابی ده ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ اوکومو خلقو چه کفر کړې وی اوزمونږ ايتونه ئې دروغژن کړی وی ﴿أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ خَالِدِينَ فِيهَا﴾ داخلق دوزخيان دی په دې کښې به هميشه وسيږی ﴿وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾ او داناکاره ځای دې]

## معارف او مسائل

﴿خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ﴾ يعنی الله ﷻ تاسو پيدا کړئ نو په تاسو کښې ځينې کافران ځينې مؤمنان پاتې شو. ﴿فَمِنكُمْ﴾ کښې فاء د تعقيب د ه مطلب ئې دادې چې دپيدا کيدو په اول کښې څوکافر نه وو بيا روستو څوک په کښې کافر شو چې دا دهغه د کسب او اختيار تابع

وو کوم چې الله ﷻ هر انسان ته بخښلي دي او ددې کسب او اختیار په وجه هغه ته ګناه او ثواب منسوب کیږي ، یو حدیث نه هم ددې مفهوم تائید کیږي چې په کښې د نبی کریم ﷺ ارشاد دي چې [کل مولود یولد علی الفطرة فأبواه یهودانه وینصرانه] یعنی هر پیدا کیدونکو انسان په سلیم فطرت باندې پیدا کیږي. خو بیا د هغه مور پلار هغه لره یهودي یا نصراني وغیره جوړوي. [قرطبی][1].

**دوه قومیزم نظریه:** قرآن کریم دلته انسانان په دوو ډلو ویشلي دي ، کافر او مؤمن. دې نه معلوم شو چې د آدم علیه السلام اولاد ټول یوه رورولي ده او ددنیا ټول انسانان ددې رورولئ غړي دي. ددې رورولئ پریکوونکې او بله ډله په کښې جوړ ونکې څیز یواځې کفر دې ، څوک چې کافر شو هغه د انساني رورولئ تار اوشلولو. په داسې شان په ټولې دنیا کښې د انسان ډله بندي صرف د ایمان او کفر په بنا کیدیشي. رنګ، ژبه ، نسب او خاندان ، وطن او ملک دې کښې یو هم داسې څیز نه دې چې انساني رورولي په مختلفو ډلو کښې اوویشی دیو پلار اولاد که مختلفو ښارونو کښې اوسیږي یا مختلفې ژبې وائی ، یا ئې په رنګونو کښې فرق وی ، نو هغوئ بیلې بیلې ډلې نشی کیدې ، د رنګ ، ژبې ، وطن او ملک داختلاف باوجود هم ټول خپل مینځ کښې رونړه وی ، څوک پوهه انسان دوئ ته مخلتف ډلې نشی وئیلې. د جاهلیت په زمانه کښې دنسب او قبیلو بیلتون د قومیت او ډله بندئ بنیاد جوړ کړې شو ، په دې شان د ملک او وطن په بنیاد ، څه ډله بندی شروع شوه نو رسول الله ﷺ دغه ټول بتان مات کړل او مسلمانان خواه د هر ملک او هرې علاقې چې وی او دهر رنګ یا خاندان که وی ، هره یوه ژبه چې وائی دغه ټول ئې یوه رورولي او ګرخوله لکه قرآن پاک په ډاګه فرمائی چې ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾ یعنی مؤمنان ټول په ټوله خپل مینځ کښې رونړه رونړه دي. دغسې کافران چې دهر ملک او هر قوم سره تعلق ساتی هغوئ داسلام په نظر کښې یو ملت یعنی یو قوم دې. نو د قرآن کریم دا اوسنې آیت هم په دې ګواه دې چې الله ﷻ ټول بنی آدم صرف کافر او مؤمن په دوو ډلو کښې اوویشل د رنګ او ژبې اختلاف لره قرآن پاک د الله ﷻ د کامل قدرت یوه نښه اوګرخوله او هر کله چې دا دانسان دپاره په ګڼرو معاشی فائدو باندې مشتمل وو څکه ئې یو عظیم نعمت اوبللو. خو دې لره په بنیادمو کښې د ډله بندئ د ذریعې جوړولو اجازت نه دې ورکړې. او دایمان او کفر په بنیاد باندې د دوو قومونو تقسیم په یو اختیاری څیز باندې اړه لری څکه چې ایمان او کفر هم دواړه اختیاری څیزونه دی که څوک بنده دیو قومیت په پرېخودلو په بل کښې شاملیدل غواړی نو په ډیر آسانئ سره د خپلو عقیدو په بدلولو سره په بل کښې شاملیدې شی. په خلاف د نسب ، خاندان ، رنګ او ژبې او وطن چې دهیچا په اختیار کښې ددې بدلول نشته دې. دَ چا په اختیار کښې نسب یا رنګ بدلول هیچرې نشته ، ژبه او وطن اګر چې بدلیدې شی دَ ژبې او وطن په بنیاد جوړونکی قومونه ، نورو لره عادتا په خپل څان کښې جذب کولو دپاره نشی تیارې دې اګرچې هغه هم د هغوئ ژبه وائی او دهغوئ په وطن کښې آباد شی.

---

[1]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۸ص:۱۳۳] و صحیح البخاري کتاب الجنائز :باب ما قیل فی اولاد المشرکین [ج:۱ص:۱۸۵] و صحیح مسلم کتاب القدر، باب معنی کل مولود یولد علی الفطرة..... إلخ [ج:۲ص:۳۳۶]

دا هغه اسلامي رورولي او ايماني برادري وه چې په لږه زمانه کښې ئې د مشرق مغرب ، جنوب ، شمال ، تور ، سپين د عربو او عجمو بې شميره غړي په يو لړئي کښې پيئللي وو چې دهغې دقوت او طاقت مقابله د دنيا قومونو اونکړې شوه نو هغوئ بيا هغه بتان راژوندي کړل کوم چې رسول الله ﷺ ذره ذره کړي وو ، مسلمانان ئې د ملک ، وطن ، ژبې ، رنګ ، نسل او خاندان په مختلفو ټکړو کښې ويشلو سره ئې خپل مينځ کښې سره اوجنګول حالانکه مسلمانان د ټولو نه زيات لوئې يو ملت او يو قوم وو ، په دې شان د اسلام د دښمنانو د چپاؤ دپاره ميدان صفا شو چې دهغه نتيجه نن د سترګو خاوندان وينی چې د مشرق او مغرب مسلمانان چې يو قوم او يو زړه وو اوس په ورکوټو ورکوټو ډلو کښې ويشلې شوی يوبل سره په جنګ دی او د دوئ په مقابله کښې دکفر شيطان طاقتونه د مسلمانانو په مقابله کښې ټول يو قوم معلوميږي حالانکه د هغوئ خپل مينځ کښې هم ډير اختلافات شته .

﴿وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ﴾ يعنی الله ﷻ ستاسو شکل جوړ کړو او بيا ئې ستاسو شکلونه زيات ښه جوړ کړل . صورت ګرې په حقيقت کښې د کائناتو د خالق صفت دې خکه د الله ﷻ په نومونو مبارکو کښې يو نوم مبارک مصور هم راغلې دې . او غور اوکړئی چې په کائناتو کښې څومره مختلف جنسونه او په هر جنس کښې څومره مختلف قسمونه دی او په هر قسم کښې مختلف صنفونه دی او په هر صنف کښې په لکونو کروړونو مختلف افراد بياموندې شی . د يو شکل د بل شکل سره نه يوځائې کيږی ، په يو نوع انساني کښې د ملکونو علاقو اختلاف د نسلونو اوقومونو د اختلاف نه په شکل و صورت کښې نتوتي بيلتونونه بيا په دې کښې د هر کس د شکل وصورت د بل نه بيليدل داسې د يو حيرانئی کاريګری او صورت ګری ده چې عقل حيران پاتې شی . انساني څهره چې دشپږو اوؤ مربع انچو نه زياته نه ده په اربونو پدمونو کهربونو انسانانو کښې د يو شان څهرو باوجود د يو شکل د بل شکل سره بيخی يو ځائې کيږی . چې پيژندل ئې ګران شی ، په آيت مبارک کښې يو نعمت د صورت ګرئی دې ، ددې د بيان نه پس ئې اوفرمائيل چې :

﴿فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ﴾ يعنی انساني شکل مونږ د ټولو کائناتو اومخلوقاتو دشکلونو نه زيات ښکلې او غوره جوړ کړې دې . څوک انسان پخپله ډله کښې که هر څومره د بدشکله ګڼرلې شی خو بيا هم د نورو حيواناتو وغيره د شکلونو په اعتبار سره هغه هم ښکلې دې ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ . ﴿فَقَالُوا أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا﴾ لفظ د بَشَر اګر چې مفرد دې خو معنی ئې د جمع ده خکه يهدون لفظ د جمع استعمال شوې دی ، بشريت لره د پيغمبرئی نه خلاف خيال ګول هم د کافرانو باطل خيال وو خکه قرآن پاک کښې په دې باندې ځائې په ځائې رد کړې شوې دې .

افسوس دې چې اوس په مسلمانانو کښې هم ځينې خلق د رسول الله ﷺ د بشريت نه منکر موندلې شی هغوئ لره سوچ پکار دی چې کوم خوا روان دی . بشر کيدل نه خود نبوت سره بې جوړه دی او نه د رسول الله ﷺ د نور کيدو سره خکه چې هغه نور هم دې او بشر هم ، خو د نبی کريم ﷺ نور د ډيوې ، نمر او سپوږمئ په نور باندې قياس کول غلطی ده .

﴿فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالنُّورِ الَّذِي أَنْزَلْنَا﴾ نو ايمان راوړئی په الله ﷻ باندې او د الله ﷻ په رسول باندې او په هغې نور باندې چې مونږ نازل کړې دې . د نور نه مراد دلته قرآن پاک دې ، خکه چې د نور حقيقت دا دې چې هغه پخپله هم ښکاره او روښانه وی او نور ځيزونه هم ښکاره او

روښانه کړی دقرآن پاک ښکاره او روښانه کیدل څرګنده خبره ده . او ددې په ذریعه دالله ﷻ د راضی کیدلو او خفه کیدو سبب او احکام شریعتونه او تول حقیقتونه د عالم آخرت د کومو پیژندلو چې انسان ته ضرورت دی هغه روښانه کیږی.

**قیامت ته د یوم تغابن وئیلو وجه** ﴿يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذَٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ﴾ کومه ورځ چې تاسو لره الله ﷻ جمع کوی د جمع کیدو په ورځ کښې دا ورځ به د تغابن یعنی نقصان وی. یوم الجمع او یوم التغابن دواړه د قیامت د ورځې نومونه دی. یوم الجمع کیدل خو ئې ښکاره دی ولې چې تول په تولو مخلوقات اولین اوآخرین به په دې ورځ د حساب کتاب او جزاء سزاء دپاره راجمع کولې شی. او یوم التغابن ورته ځکه وئیلې شی چې تغابن د غبن نه مشتق دې چې معنیٰ ئې خساره او نقصان ، مالی نقصان او خسارې ته هم غبن وائی. او د رائې او عقل نقصان ته هم ، امام راغب اصفهانی په مفردات القرآن کښې اوفرمائیل چې مالی خسارې دپاره دا لفظ د مجهول په صیغې سره داسې استعمالولې شی[1].

[غُبِنَ فُلَانٌ فَهُوَ مَغْبُوْنٌ] او دعقل او رائې نقصان دپاره د باب سمع نه داسې استعمالولې شی.

[غبن فلان] د تغابن لفظ د اصل په اعتبار سره د دواړو طرفونو د کاروبار دپاره وئیلې شی چې یو کس بل ته او هغه کس ده ته نقصان اورسوی یا د هغه د نقصان خساره ښکاره کړی دلته مراد د یو طرف نه د غبن کول غبن ښکار کول دی څنګه چې دا استعمال ئې مشهور دی،

قیامت ته یوم تغابن ځکه وئیلې شی چې د صحیح احادیثو تر مخه الله ﷻ هر انسان دپاره په آخرت کښې دوه کورونه پیدا کړی دی. یو په جهنم کښې او بل جنت کښې ، جنتیانو ته به په جنت کښې دا خلولو نه وړاندې هغه مقام هم خودلې شی چې د ایمان او عمل د نیشتوالی په صورت کښې ده دپاره تاکلې شوې وو ، دپاره ددې چې په ددې په لیدلو سره ئې د جنت د مقام زیات قدر په زړه کښې پیدا شی او دالله ﷻ زیات شکر ګزار وی. داشان جهنمیانو ته به په جهنم کښې د داخلولو نه وړاندې د جنت هغه مقام وراوخودلې شی چې د ایمان او نیک عمل په صورت کښې هغوئ دپاره تاکلې شوې وو، په دې غرض چې ارمان او افسوس ئې نور هم زیات شی. په دې روایتونو کښې داهم دی چې کوم مقامات په جنت کښې د جهنمیانو دپاره وو ، هغه به هم جنتیانو ته ورکړې شی او په جهنم کښې کوم مقامات چې د جنتیانو دپاره وو هغه به هم د جهنمیانو په برخه کښې راشی. دا روایتونه په صحیحینو او دحدیث پاک په نورو کتابونو کښې په تفصیل سره په مختلفو الفاظو کښې راغلی دی[2]. په دغه وخت کله چې د کافرانو فاجرانو اوبدبختو څومره مقامات هم دجنتیانو په قبضه کښې راشی نو خپل غبن او زیان به ورته محسوس شی چې څه ئې پریخودل او څه ئې بیا موندل.

په صحیح مسلم او ترمذی وغیره کښې د ابی هریره ﷺ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ دصحابه کرامو ﷺ نه سوال اوکړو چې تاسو پیژنئ نیستمن څوک دی؟ صحابه کرامو ﷺ ، عرض اوکړو چې چا سره مال ، اسباب نه وی ، نو مونږ هغه نیستمن ګڼرو ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زما د امت نیستمن هغه څوک دې چې دقیامت په ورځ نیک عملونه مونځ ،

---

[1]) مفردات القرآن للراغب كتاب الغبن [ج: ۱ ص:۶۰۲]

[2]) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۲۷۱] وسنن ابن ماجة، ابواب الزهد ،باب صفة الجنة [ج:۲ ص:۳۲۳]

روژې او زکوتونه وغیره څان سره راوړې خو د هغه حال به دا وي چې په دنیا کښې به ئې چاته کنځل کړي وي ، په چا به ئې د درغو تور پورې کړې وي ، څوک به ئې وهلي وي، څوک به ئې وژلي وي، دچا نه به ئې په ناحقه مال اخستې وي، څوک به ئې مونځ واخلي ، څوک به ئې روژه ، څوک به ئې زکوة او نورې نیکئ او کله ئې چې نیکئ ختمې شي نو د مظلومانو ګناهونه به ددې ظالم په ذمه کړې شي او بدله به ور کړې شي ، ددې انجام به دا وي چې ظالم به جهنم کښې واچولې شي[1] .

او په صحیح بخاري کښې دي چې نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چې د چا په ذمه چې د چا څه حق وي نو هغه له پکار دي چې هم په دنیا کښې هغه ته ادا کړي یا ترې معاف کړي او خپله غاړه خلاصه کړي، ورنه د قیامت په ورځ خو به روپئ او اشرفئ نه وي چې څوک به ئې مطالبه کوي ، نو ددغې کس نیک عملونه به دهغې په بدل کښې ورکولې شي چې نیک عملونه ئې ختم شي نو په حق د مظلوم ګناه به په هغه باندې اوچولې شي. [ مظهري ][2] .

ابن عباس ﷺ او د تفسیر نورو امامانو قیامت ته د یوم تغابن وئیلو وجه دا بیان کړې ده او نورو ډیرو ائمه دتفسیر فرمائیلي دي چه هغه ورځ به د غبن اوخسارې احساس یواځې بدبختو فاجرانو اوکافرانو ته نه بلکه صالحانو مؤمنانو ته هم داسې کیږي چې هغوئ به د قیامت په ورځ دا ارمان کوي چې کاش مونږ نور هم زیات نیک عمل کړې وې چې جنت کښې مو زیاتې درجې حاصلې کړې وې ، په دغه ورځ به هر څوک د خپل عمر په وختونو باندې ارمان کوي چې مونږ عبث ضائع کړل لکه په حدیث کښې دي چې:

[مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا لَمْ يَذْكُرِ اللهَ فِيهِ كَانَ عَلَيْهِ تِرَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ][3] چا چې په تول مجلس کښې دالله ﷻ یاد اونه کړو نو دا مجلس په دقیامت په ورځ هغه دپاره ارمان جوړیږي.

قرطبي کښې دي چې هر مؤمن به هم په دغه ورځ دنیک عمل په کوتاهئ باندې دخپل غبن او زیان احساس کوي ، نو د قیامت نوم یوم التغابن ایخودل داسې دي لکه چې په سورة مریم کښې ددې نوم یوم الحسرة راغلې دې. ﴿وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ﴾ په روح المعاني کښې ددې آیت مبارک تفسیر دا لیکلې شوې دې چې په دغه ورځ به ظالم او بد عمله خلق په خپلو کوتاهیانو باندې ارمان کوي تر دې چې مؤمنان صالحان به هم په نیکو عملونو کښې کوتاهي کولو باندې ارمانونه کوي ، مطلب دا چې هر څوک به د خپل خپل شان مطابق مختلف قسم ارمانونه کوي[4] ، ځکه ورته یوم التغابن اووئیلې شوه.

| مَا أَصَابَ | مِن مُّصِيبَةٍ | إِلَّا | بِإِذْنِ اللَّهِ | وَمَن | يُؤْمِن |
|---|---|---|---|---|---|
| نه رسیږي | څه مصیبت | مګر [رسیږي] | په حکم دالله سره | او هغه څوک | چې ایمان ئې راوړو |
| [دنیا کښې] هیڅ مصیبت دالله ﷻ د حکم نه بغیر نه راځي | | | | او څوک چې په الله ﷻ ایمان راوړي | |

[1] ) صحیح مسلم کتاب البر والصلة ،باب تحریم ظلم [ج:۲ص:۳۱۹]و جامع الترمذي ، ابواب صفة القیامة باب شان الحساب والقصاص [ج:۲ ص:۶۷]

[2] ) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۳۱۳] و صحیح البخاري کتاب الرقاق ،باب القصاص یوم القیامة [ج:۲ص:۹۲۷]

[3] ) شعب الإیمان للبیهقي فصل فی إدلته ذکر الله عزوجل رقم الحدیث[۵۳۹]

[4] ) تفسیر روح المعاني تفسیر سورة مریم آیة:۳۹ [ج: ۱۱ ص:۴۹۳]

بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ۭ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ⑪ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ

په الله باندي | هدايت به اوكړي زړه دهغه ته | او الله | په هر څيز باندي | عالم دي | او حكم اومنئ دالله

نو الله د هغه زړه ته هدايت كوي | او الله ﷻ په هرڅيز ښه پوهه دي | اوتاسو دالله ﷻ تابعداري اوكړئ

وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا

او حكم اومنئ درسول | پس كه چرې مخ واړوئ تاسو | پس بيشكه | په رسول زمونږ باندي |

او د رسول تابعداري اوكړئ | نو كه مخ مو ترې نه واړولو | نو زمونږ په پيغمبر خو په ښكاره باندي

الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ⑫ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ وَعَلَى اللّٰهِ

رسونه ښكاره ده | الله چي دي | نشته دي لائق دعبادت | مگر هم هغه دي | او خاص په الله باندي |

حكمونه رسول دي | دالله ﷻ نه سوا بل څوك معبود نشته | ............او ايمان دار

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑬ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

پكار دي چي توكل اوكړي | مومنان | اے هغه كسانو | چي ايمان مو راوړي دي |

كسان دي صرف په يو الله ﷻ باندي بهروسه ساتي | ..............ائي ايمان والو !

اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ۚ

بيشكه څيني دښځو ستاسو نه | او داولاد ستاسو نه | دشمنان دي ستاسو دپاره | پس ځان اوساتئ دهغوئ نه

ستاسو په ښځو او اولاد كښې بعضې ستاسو دښمنان دي | نود هغوئ نه ځان ساتئ

وَاِنْ تَعْفُوْا وَتَصْفَحُوْا وَتَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

او كه معافي اوكړئ تاسو | او مخ اوگرځوئ تاسو | او بخښنه اوكړئ تاسو | پس بيشكه الله | بښونكي

اوكه معافي اوكړئ او سترگې پرې پټې كړئ | او وې بښئ نو الله ﷻ بښونكي

رَّحِيْمٌ ⑭ اِنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۭ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗٓ

مهربانه دي | بيشكه | مالونه ستاسو | او اولاد ستاسو | يو آزميښت دي | او الله چي دي | دهغه سره

مهربان دي | بيشكه ستاسو مالونه او ستاسو اولاد يو امتحان دي | ..........او الله ﷻ سره

اَجْرٌ عَظِيْمٌ ⑮ فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوْا

اجر دي | لوئ | پس اوويريږئ دالله نه | تر څو چي طاقت كيږي ستاسو | او اورئ خبره

دير لوئي اجر دي | ..........نود الله ﷻ نه ويريږئ | څومره چي ستاسو وس وي | او خبره آورئ

وَاَطِيْعُوْا وَاَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ ۭ وَمَنْ يُّوْقَ

او حكم اومنئ | او مال خرچ كړئ | دا بهتره ده | دپاره دنفسونو ستاسو | او هغه څوك چي اوساتلې شو

او حكم منئ | او د دالله ﷻ په لاره كښې | خرڅ كوئ | دا به ستاسو دپاره بهتره وي | او څوك چي

شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ⑯ اِنْ تُقْرِضُوا اللّٰهَ

دبخل دنفس خپل نه | پس دغه كسان چي دي | هغوئ كامياب دي | كه تاسو قرض وركړو الله له

دنفس دشومتيا نه بچ شي | نو هم دغه كسان كامياب دي | كه تاسو الله ﷻ ته قرض وركړو قرض ښه

| قَرْضًا حَسَنًا | يُّضٰعِفْهُ | لَكُمْ | وَيَغْفِرْ لَكُمْ | وَاللّٰهُ شَكُوْرٌ |
|---|---|---|---|---|
| قرض حسن | نو دوچند به کړي هغه | دپاره ستاسو | او اوبه بخښي تاسو لره | او الله قدردان دي |
| نو هغه به ئې درله په څو څو چنده زياتوي \| او ستاسو قصور به معاف كوي \| او الله ﷻ ډير قدردان | | | | |
| حَلِيْمٌ | عٰلِمُ الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ |
| صبر ناك دي | عالم دي په غيبو | او په ښكاره | غالب دي | او دحكمت خاوند دي |
| او ډير برداشت كونكي دي \| په پټه او په ښكاره هرڅه باندې پوهه دي \| غالب دي \| دحكمت خاوند دي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

هيڅ يو مصيبت د الله تعالی د حکم نه بغير نه راځي او څوک چه په الله تعالی باندې ايمان راوړي، الله تعالی د هغه زړه ته هدايت وربخي او الله تعالی په هر څيز باندې ښه پوهيدونکي دې او تاسو د الله تعالی فرمانبرداري کوئ، او د رسول فرمان برداري کوئ، بيا که تاسو مخ واړولو، نو زمونږ د رسول ذمه داري صرف داده، چه هغه صفا صفا خبره دراورسوي. الله تعالی هغه ذات دې، چه د هغه نه سوا څوک معبود نشته او مومنانو لره په الله تعالی باندې بهروسه ساتل پکار دي. اے ايمان والو! ستاسو د ښځو نه او ستاسو د اولاد نه بعضې ستاسو دشمنان دي، ددې وجې نه د هغوي نه خبرداره اوسيږئ، او که تاسو معافي اوکړئ، او درگذر اوکړئ، او بخنه اوکړئ، نو الله تعالی ډير بخونکي او ډير مهربان دې ستاسو مال او ستاسو اولاد خو ستاسو دپاره يو آزمائش دې او هغه ذات الله تعالی دې، چه هغه سره لوئې اجر دې، لهٰذا د الله تعالی نه ويريږئ څومره چه ستاسو طاقت وي، او واوړئ، او اومنئ. او (د الله تعالی د حکم مطابق) خرچ کوئ، دا ستاسو دپاره بهتره ده او کوم خلق چه د خپل زړونو د کنجوسۍ نه محفوظ شي، هم هغوی فلاح موندونکي دي. که تاسو الله تعالی ته ښه قرض ورکړئ، نو الله تعالی به ستاسو دپاره هغه څو چنده زيات کړي او ستاسو گناهونه به اوبخي، او الله تعالی لوئې قدردان، او ډير صبرناک دې. هغه په هر غيب او ښکاره څيز باندې پوهيدونکي دې، د لوئې اقتدار او د لوئې حکمت مالک دې.

## خلاصه تفسير

ځنګه چه كفر داخرت دفلاح نه كليتا مانع دې دغه شان په مال او اولاد ښځو وغيره كښې مشغوليدل دالله تعالى په احكامو كښې كوتاهي كول هم په يوه درجه كښې داخرت دفلاح نه مانع دى په دې وجه په مصيبت كښې خوداكنړل پكار دى چه ﴿مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ [هيڅ مصيبت بغير دالله تعالى دحكم نه نه راځي] اوچه داوګڼړي نو صبراو رضااختيارول پكار دى ﴿وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ﴾ [اوكوم سړي چه په الله تعالى] پوره [ايمان لرى الله تعالى دهغه زړه ته] دصبراو رضا [لاربښائي ﴿وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ﴾ او الله تعالى هرشي لره ښه پيژني] چه چاصبر او رضااختيار كړل او چا اختيارنه كړل او هريوته دحكمت مطابق جزا اوسزا وركوى [او] لنډه خبره داده چه په هر كاركښې په كوم كښې چه مصيبتونه هم داخل دى ﴿وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ﴾ [دالله تعالى خبره منئ او درسول خبره منئ ﴿فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ﴾ اوكه تاسو] داطاعت نه [اعراض وكړئ ﴿فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ﴾ نو] يادساتئ چه [زمونږ درسول په ذمه صرف صفاصفارسول دى] كوم چه هغه په ښه طريقه سره كړى دى په دې وجه دهغه هيڅ ضرر نشته

ستاسوضرر به وی اوچونکه الله تعالی ته خودضرر رسیدو احتمال نشته په دې وجه یې دلته دابیان نه کړو اوتاسو خلقو لره او خصوصاً اهل مصیبت لره داسې ګنړل پکار دی چه ﴿اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ [دالله تعالی نه سوا بل معبود] دجوړیدوقابل [نشته ﴿وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ اومسلمانانو له هم په الله تعالی باند] په مصیبتونو وغیره کښې [توکل ساتل پکاردی ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا﴾ اے ایمان والو] لکه چه په مصیبت کښې تاسوته دصبراو رضاحکم شوې دی دغه شان دنعمت په باره کښې تاسوته دنه مشغولیدو حکم کولې شی پس د نعمت په باره کښې داسې ګنړل پکار دی چه ﴿اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ﴾ [ستاسو ځنې بیبیانې او اولاد ستاسو] ددین [دښمنان دی] هرکله چه هغوی دخپلې دنیوی نفعې دپاره تاسو ته دداسې خبرې حکم کوی کوم چه ستاسو داخرت دپاره مضروی ﴿فَاحْذَرُوْهُمْ﴾ [پس تاسو ددوی نه] یعنی دداسې کسانو نه [هوښیار اوسیږئ] او ددوی په داسې امر عمل مه کوئ [او] که تاسولره په داسې فرمائشونو باند غصه راځی او تاسو په دوی سختئ اوکړئ او هغوی دغه وخت معذرت او توبه وکړی او ﴿وَاِنْ تَعْفُوْا وَتَصْفَحُوْا وَتَغْفِرُوْا﴾ [تاسو] دغه وخت دهغوی دغه خطا [معاف کړئ] یعنی سزا ورنکړئ [او درګزر کوئ] یعنی زیات یې نه ملامته کوئ [او بخښنه کوئ] یعنی په زړه او په ژبه سره یې هیر کړئ ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [نو الله تعالی] ستاسو دګناهونو [بخښنې والا] او ستاسو په حال [رحم کوونکې دې] په دې کښې ترغیب دې دعفوې او داخنې وخت واجب ده هرکله چه په سزا سره غالب احتمال دبې باکۍ وی او ځنې وخت مستحب ده وراندد اولاد سره دمال په حقله هم ددې قسمه مضمون دې چه ﴿اِنَّمَاۤ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ یقیناً [ستاسومالونه او اولاد بس تاسودپاره دیوازمائش شې دې] چه وګورو چه څوك په دې کښې مشغولیږی دالله تعالی احکام هیروی او څوك یې یادساتی [او] څوك چه په دې مشغول شی الله تعالی لره یادساتی نو ﴿وَاللّٰهُ عِنْدَهٗۤ اَجْرٌ عَظِيْمٌ﴾ [دالله تعالی سره] دده دپاره [لوئ اجردې نو] داتولې خبرې واورئ] ترڅوپورې چه تاسو نه کیدې شی ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ دالله تعالی نه ویره کوئ ﴿وَاسْمَعُوْا﴾ او [ دهغه احکام [اورئ اومنئ او] بالخصوص دحکم په موقعو کښې ﴿وَاسْمَعُوْا وَاَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ﴾ [خرچ ] هم [کوئ دابه تاسودپاره غوره وی] غالبا ددې تخصیص خکه دې چه داپه نفس باندزیات ګران دې ﴿وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ﴾ [اوکوم سړې چه د نفس دحرص نه محفوظ شو ﴿فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ پس هم داسې خلق] په اخرت کښې [مرادمونندنکی دی] وراند ددې دبهتروالی اوموجب دفلاح کیدو بیان دې چه ﴿اِنْ تُقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ [که تاسوالله تعالی لره په ښه شان] په خلوص سره [قرض ورکړئ ﴿يُضٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ﴾ نو هغه به داتاسودپاره په مخه زیاتوی اوستاسو ګناهونه به وبخښی ﴿وَاللّٰهُ شَكُوْرٌ حَلِيْمٌ﴾ اوالله تعالی لوئ قدردان دې] چه نیك عمل قبلوی [اولوئ بردبار دې] چه دګناه په کارباندفی الفور مواخذه نه فرمائی او ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ [پټ او ظاهر] عملونه [پیژنی] او [زبردست دې] او [حکمت والا دې] دشکور نه ترحکیم پورې دټولو مضامینو دسورت دپاره په منزله دعلت دی چه ټول مضامین په دغومرتب اومتفرع کیدې شی

## معارف او مسائل

﴿مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ وَمَن يُؤْمِن بِاللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُ ۚ﴾ يعني هيڅ چا ته هم څه مصيبت د الله ﷻ د اذن نه بغير نه شي رسيدلې اوڅوک چې په الله ﷻ باندې ايمان راوړي، الله ﷻ دهغه زړۀ ته هدايت کوي. مطلب دادې چې دا خبره خو پخپل ځائې يو يقيني حقيقت دې چې د الله ﷻ د اجازت او ارادې نه بغير چرته يوه ذره هم نه شي خوزيدې، د الله تعالى د اذن نه بغيرنه څوک چاته څه نقصان اوتکليف رسولې شي او نه نفع او آرام مگر د چا چې په الله ﷻ او د هغه په تقدير باندې ايمان نه وي د مصيبت په وخت هغه دپاره د قلارئې او آرام څه سامان نه وي، هغه د مصيبت د لرې کولو دپاره لاس پښې وهي، په خلاف د مؤمن نه چې دهغه په تقدير الهي باندې ايمان وي نو په هغې سره الله ﷻ د هغه زړه په آرم کښې کړي چې هر څه د الله ﷻ په اذن سره او ارادې سره کيږي او کوم مصيبت چې راته رسيدل وو هغه راؤرسيدو چا ايسارولې نه شو او کوم مصيبت نه چې خلاص شوم هغې نه زما خلاصيدل مقرر وو د چا څه مجال نه وو چې دغه مصيبت ئې په ما راوستلې وې، ددې ايمان او اعتقاد په نتيجه کښې ورته د آخرت د ثواب وعده هم رامخې ته کيږي چې ورسره ئې د لوئې نه لوئې مصيبت هم آسانيږي.

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوهُمْ ۚ﴾ يعني ائې مسلمانانو! ستاسو ځينې بيبيانې او اولاد ستاسو دښمنان دی دهغوئ د شر نه ځان ساتئ.

ترمذی او حاکم وغيره په صحيح سند سره د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړی دی چې د اآيت مبارک د مسلمانانو په باره کښې نازل کړې شوې دې کوم چې دمدينې منورې نه پس په مکه مکرمه کښې مسلمانان شوی وو. او اراده ئې اوکړه چې په هجرت کولو سره د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شي، خو د دوئ بال بچ دوئ لره هجرت کولو ته پرې نه خودل [روح][۱] داهغه زمانه وه چې په کښې هجرت کول د مکې مکرمې نه په هر مسلمان فرض وو.

ځکه قرآن کريم په دې آيت مبارک کښې دغسې ښځه او اولاد ئې دانسان دښمن اوګرځولو او ددوئ د شر نه د بچ پاتې کيدو تاکيد ئې ورته اوفرمائيلو ځکه چې ددې نه زيات ديو انسان بل څوک دښمن کيديشی چې هميشه دپاره ئې دعذاب او دجهنم په اور کښې اخته کړي.

او د عطاء بن ابی رباح روايت دې چې دا آيت مبارک د عوف بن مالک اشجعی رضي الله عنه باره کښې نازل شو د هغه واقعه داسې وه چې دې په مدينه منوره کښې موجود وو. د غزا او جهاد په موقعه به ورته بال بچ فرياد شروع کړو چې ته جهاد له ځې نو مونږ چاته پريږدی. دۀ زړه کلک نه کړو او جهاد نه پاتې شو. [روح، ابن کثير][۲].

ددې دوارو روايتونو تر مينځه څۀ تضاد نشته، دواره ددې آيت مبارک د نازليدو سبب ګرځيدې شی، ولې چې د الله ﷻ په څه فرض کښې خواه هغه جهاد وی او که هجرت دچا دبال بچ فرمائش څه خند جوړ شی نو په دې سره ئې هغه دښمن ګرځی.

﴿وَإِن تَعْفُوا وَتَصْفَحُوا وَتَغْفِرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ په تير شوی آيت کښې د چا بی بی او اولاد چې

---

[۱]) تفسير روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۵۳] و جامع الترمذي، ابواب التفسير باب ومن سورة التغابن و المستدرك للحاكم كتاب التفسير، تفسير سورة التغابن رقم الحديث:[۳۸۱٤]

[۲]) تفسير روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۵۳]

دښمنان گرځولي شوي دي کله چې هغوئ ته دخپلې غلطئ معلومات اوشو نو اراده ئې اوکړه چې بيا دپاره به خپل آل وعيال سره د سختئ او زورنې معامله کوي، په دې باندې د آيت مبارک په دې برخه کښې ارشاد نازل شو چې اگر چې دغې بال بچ تاسو ته سره ددښمن پشان کار اوکړو ، د فرض په ادا کولو کښې تاسو خندان جوړ شو خو سره ددې نه ورسره د سختئ او بې رحمئ معامله مه کوئ بلکه د عفو ، پښې رانښکلو او معافئ سلوک کوی نو دا به تاسو دپاره زيات غوره وی ولې چې د الله ﷻ عادت هم د مغفرت او د رحمت دی.

**دنافرمان بال بچ نه ويزاره کيدل او بغض ورسره ساتل نه دي پکار** :: علماء کرامو ددې آيت مبارک نه دليل نيولې دې چې که د بال بچ نه څه خلاف شرع کار اوشی بيا هم د هغوئ نه ويزاره کيدل ، ورسره بغض لرل يا دوئ دپاره خيرې کول مناسب نه دی(١) ﴿إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ دفتنه معنی آزميښت او امتحان ده ، ددې آيت مراد دادې چې د مال ، اولاد په ذريعه الله ﷻ د انسان آزميښت کوی چې د هغوئ په محبت کښې گرفتاريدو سره داحکامو اوفرضو نه غفلت کوی يامينه پخپل حد کښې ساتلو سره د خپلو فرضو نه نه غافله کيږی.

**مال، اولاد دانسان دپاره لويه فتنه ده** :: حقيقت دادې چې دمال ، اولاد محبت انسان دپاره لويه فتنه او آزميښت دې انسان په اکثرو گناهونو کښې خصوصا په حرامه گټه کښې هم ددوئ د مينې په وجه گرفتاريږی.يو حديث پاک کښې دی چې د قيامت په ورځ به څينې خلق راويستلې شی دهغې په ليدلو به خلق وائی چې : [ أَكَلَ عِيَالُهُ حَسَنَاتِهِ] ددهٔ نيکئ ددهٔ بال بچ اوخوړې [ روح](٢).

يو حديث پاک کښې نبی کريم ﷺ د اولاد باره کښې اوفرمائيل چې [ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ ] دا د بخل بزدلئ ، نامردئی او کمزورتی اسباب دی(٣) . ځکه چې د دوئ دمحبت په وجه په جهاد کښې د شريکيدو نه پاتې کيږی. څينو پخوانو بزگانو فرمائيلی دی چې [ الْعِيَالُ سُوسُ الطَّاعَاتِ ] بال بچ د انسان د نيکيانو دپاره وينه دې. ځکه چې وينه غله خوری دغه شان د انسان بال بچ دهغه نيکيانې خوری(٤).

﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ يعنی دخپل طاقت په جوړ تقوی اختيار کړئی ، کله چې ﴿اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ﴾ آيت نازل شو چې معنی ئې داده چې داسې تقوی اختيار کړئی ځنگه چې د الله ﷻ حق دې. نوصحابه کرامو ﷺ ته ډيره گرانه خکه ښکاره شوه چې د الله ﷻ د حق په جوړ څوک د هغه نه ويرې کولو طاقت لرلې شی ؟ دې باندې دا آيت مبارک نازل شو چې تاسو تر خپله وسه پورې د الله ﷻ ويره اختيار کړئی . د وس نه زيات په ويره کولو باندې تاسو پړ نه يئ. مطلب دا چې د الله ﷻ نه په ويريدو کښې خپل پوره وس استعمالول پکار دی. دې سره هم د الله ﷻ حق ادا کيږی. [ روح ملخصًا](٥). تمت سورة التغابن والله الحمد

---

(١) تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص:٥٣]

(٢) تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص:٥٤]

(٣) سنن ابن ماجة، ابواب الأدب باب بر الوالد والإحسان إلى البنات[ج:٢ ص:٢٦١ ] و مسند احمد بن حنبل حديث يعلى بن مرة الثقفي رقم الحديث:[١٧٥٩٨]

(٤) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٨ص:١٤٣]

(٥) روح المعاني [ج: ٢١ ص:٥٥]

| اياتونه | سورة الطلاق مدنية وهي اثنتا عشرة اية وفيها ركوعان | ركوع گاني |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| (۱۲) | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | (۲) |

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ

اے نبی ﷺ | كله چي | طلاق وركوئ تاسو | ښځو له | نو طلاق وركوئ هغوئ له | دپاره دعدت دهغوئ

اے نبي (مسلمانانوته اووايه) كله چي تاسو ښځو ته طلاق وركوئ نو دعدت دزماني نه وړاندي ئې وركوئ

وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ ۚ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ

او شمارئ | موده دعدت | اوويريږئ دالله نه | چي رب ستاسو دي | مه اوباسئ تاسو هغوئ لره |

اود عدت (دورځو) شمير كوئ (اودخپل رب نه ويره كوئ) ......... او هغوئ دخپلو كورونو نه بهر

مِنْ بُيُوْتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ

دكورونو دهغوئ نه | او نه دي پخپله اوځي | ماسوا ددي نه | چي راتله اوكړي | په كار دبي حيايئ |

مه اوباسئ (او پخپله دي هم نه اوځي | خو هله ؛ چي د بي شرمئ كار په ښكاره اوكړي

مُّبَيِّنَةٍ ۭ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۭ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ

ښكاره سره | او دا حدونه دالله دي | او هغه څوك چي واوړيدو | دحدونو دالله نه | نو ظلم ئې اوكړو |

اودغه دالله (مقرر كړي) حدود دي (او څوك چي د الله دمقررو حدودو نه وړاندي تير شي (نو هغه په خان

نَفْسَهٗ ۭ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ①

دخان خپل سره | نه لگي پته تاته | كيدي شي چي الله | پيدا كړي | روستو ددي نه | څه شكل دزړه لگيدو

زياتي اوكړو) تاته معلومه نه ده كيدي شي چي الله ﷻ ددي نه پس يو نوي خبره پيدا كړي

فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ

پس هر كله چي | اورسيږي هغوئ | نيتي خپلي ته (دعدت) | نو اوساتئ هغوئ په نكاح خپله كښي

نو چي هغوئ خپل ميعاد ته په رسيدو شي (نو (يا خو) د رواج مطابق هغوئ (په نكاح كښي) باقي اوساتئ

بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَّاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ

په ښه طريقي سره | يا جدا كړئ هغوئ لره | په ښه طريقي سره | او گواهان اونيسئ | دوه تنه خاوندان دعدل

اويائې د رواج مطابق جدا كړئ | او پخپلو كښي پرې دوه كسان معتبر گواهان مقرر كړئ

مِّنْكُمْ وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ۭ ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ

ستاسو نه | او ټيك ټيك كوئ گواهي دپاره دالله | دا خبرې دي (چي نصيحت كيدي شي) په دې سره

..... او صحيح طريقه باندي گواهي دالله ﷻ دپاره وركوئ (په دې مضمون هغه چاته نصيحت كولې شي

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ڛ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ

هغه چاته | (چي ايمان لري | په الله باندي | او په ورځ داخرت باندي | او هغه څوك چي يريږئ دالله نه

چي په الله ﷻ او په ورځ د اخرت ايمان راوړي | ..........او څوك چي د الله ﷻ نه ويريږي

يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ

پيدا به کړي هغه لره | څه لار دوتلو [دمشکلاتو نه] | او رزق به ورکړي هغه لره | دداسې خائي نه

نو الله ﷻ به د هغه دپاره دخلاصی څه لار راوباسی ||او دداسې طرف نه به ورته روزي ورکړي اچې د هغه

لَا يَحْتَسِبُ ۭ وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ

چې دهغه په گمان کښې به نه راځي | او هغه څوك چې بروسه اوکړي | په الله باندې | نو هغه |

به پرې گمان هم نه راځي||او څوک چې په الله ﷻ بهروسه کوي| ..........نو هغه دپاره

حَسْبُهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۭ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ

کافي دې هغه لره | بيشکه الله | رسونکې دې | کار خپل لره | جوړه کړې ده الله | دپاره دهر څيز |

يواځې الله کافي دې | الله ﷻ خپل کار[په هر حال کښې] سرته رسوي ||الله د هر څيز دپاره يوه اندازه

قَدْرًا ۝ وَالّٰۗـِٔيْ يَىِٕسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَاۗىِٕكُمْ

يوه اندازه | او هغه ښځې | چې نااميده شي | دحيض نه | دښځو ستاسونه |

مقرر کړې ده | اوستاسو په طلاقو شوؤ ښځو کښې څوک چې دحيض نه مايوسه شوي وي

اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ۙ وَّالّٰۗـِٔيْ

که چرې په شك کښې يئ تاسو | نو عدت دهغوئ | درې مياشتې دې | او هغه ښځې |

که چرې ستاسو شک وي | نود هغې عدت درې مياشتې دې | اودغسې

لَمْ يَحِضْنَ ۭ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ

چې حيض نې نه وي راغلې | او ښځې خاوندانې دحملونو چې دي | نيتې دهغوئ |

دهغې ښځو چې حيض نې لا راغلی نه وي [نابالغه وي] درې مياشتې عدت دې||او د اميدوارو ښځو عدت

اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۭ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ

دا دی چې وځيږوي | حمل خپل | او هغه څوك | چې يريږئ دالله نه | پيدا کوي الله | هغه لره |

دا دې چې اولاد اوزيږوي | ......او څوک چې دالله ﷻ نه ويريږي| نو الله ﷻ به د هغه په هر کار

مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا ۝ ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ اَنْزَلَهٗٓ اِلَيْكُمْ ۭ وَمَنْ

پکار دهغه کښې | آسانتيا | داحکم دالله دې | چې نازل کړې نې دې | تاسو ته | او هغه څوك

کښې آساني پيدا کړي | ..........دا دالله ﷻ حکم دې اچې تاسو ته ئې راليږلې دې ||وڅوک چې

يَّتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُعْظِمْ لَهٗٓ اَجْرًا ۝

چې يره کوي دالله نه | نو لرې به کړي دهغه نه | گناهونه دهغه | اولوئ به کړي | هغه لره اجر |

دالله ﷻ نه ويره کوي|نو الله ﷻ به ترې نه گناهونه لرې کړي | او لوئې اجر به ورته ورکړي

اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا تُضَاۗرُّوْهُنَّ

اوسوئ هغوئ | په هغه ځائې کښې اچې اوسيږئ تاسو ادخپل طاقت مطابق ||وتکليف مه ورکوئ هغوئ ته

دغه [طلاقې شوې] ښځې دخپل حيثيت مطابق هغه ځائې کښې اوسوئ | په کوم ځائې کښې چې تاسو

لِتُضَيِّقُوْا عَلَيْهِنَّ ۚ وَاِنْ كُنَّ اُولٰتِ حَمْلٍ

دپاره ددې چې تنگی راولی | په هغوئ باندې | او كه چرې وي هغوئ | خاوندانې دحمل

اوسيږئ | او د هغوئ دتنگولو دپاره ورته تكليف مه وركوئ | او كه هغوئ اميداوارې وي | نو خرڅ

فَاَنْفِقُوْا عَلَيْهِنَّ حَتّٰى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ

نو خرڅ كوئ | په هغوئ باندې | تر هغې پورې | چې وخيږوي هغوئ | حمل [بچي] خپل

خوراك وركوئ | ............ تر دې چې اولاد اوزيږوي

فَاِنْ اَرْضَعْنَ لَكُمْ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ ۚ

پس كه چرې تئى وركړې هغوئ | دپاره ستاسو | پس وركړئ تاسو هغوئ له | مزدوري دهغوئ

بيا كه هغوئ تاسو ته [دغه] ماشوم پالى | نو خپل [مناسب] اجرت ورته وركوئ

وَاْتَمِرُوْا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوْفٍ ۚ وَاِنْ تَعَاسَرْتُمْ

او مشوره كوئ | په منځ ستاسو كښې | په ښه طريقې سره | او كه چرې تنگ كړو تاسو يو بل

او په خپل مينځ كښې د رواج مطابق اجر خلاصوئ | ............ او كه يو بل سره مو سختي راواخسته

فَسَتُرْضِعُ لَهٗٓ اُخْرٰى ۗ لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ

نو تئى به وركوى | هغه بچي لره | بله ښځه | نفقه دې وركړي | خاوند دطاقت [مالدار سړې]

نو بله ښځه به ورله [دماشوم] پالنه اوكړي | مالداردې دخپل وس [طاقت] مطابق خرچه وركوى

مِّنْ سَعَتِهٖ ۗ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهٗ فَلْيُنْفِقْ

دطاقت خپل نه | او هغه څوك | چې تنگ كړې شو | په هغه باندې | رزق دهغه | نو خرچ دې اوكړي

............ | او دچاچې لاس تنگ وى [امدنى ئې كمه وى] نو چې څه ورته الله تعالى وركړى وى

مِمَّآ اٰتٰىهُ اللّٰهُ ۗ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا مَآ

دهغه مال نه | چې وركړې دې هغه ته الله | نه وركوئ تكليف الله | هيڅ يو نفس ته | مگر | هغه

دهغې نه دې خرچ خوراك وركوى | الله ﷻ په چا باندې هغه هومره بوج | اچوى څومره چې ئې

اٰتٰىهَا ۗ سَيَجْعَلُ اللّٰهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا ۟

قدر چې وركړې ئې وى هغه ته | زر دې چې جوړ به كړي الله | روستو | دتنگئ نه | اسانوالي

ورته طاقت وركړې وى | ............ الله ﷻ به پرې د تنگئ نه پس فراخي راولى

## آسان ترجمه قرآن

اے نبي عليه السلام! چه كله تاسو ښځو ته طلاق وركوئ، نو هغوى ته د هغوى د عدت په وخت كښې طلاق وركړئ او عدت په ښه طريقې سره شماروئ. او د الله تعالى نه ويريږئ، چه ستاسو پروردگار دې، دغې ښځو لره د خوى د كورونو نه مه اوباسئ او نه دې هغوى خپله اوځي، مگر دا كه هغوى چرته د ښكاره بے حيائئ ارتكاب اوكړى او دا د الله تعالى (مقرر كړې شوې) حدونه دى. او څوك چه د الله تعالى (مقرر كړې شوې) حدونو نه تيرشي، هغه په خپله خپل ځان باندې ظلم اوكړو ته نه پوهيږې، كيدې شي، الله تعالى

ددې نه پس څه نوې خبره پیدا کړی یعنې چه کله هغه ښځې خپل (د عدت) نیټې ته اورسي، نو تاسو یا خو هغوی لره په ښه طریقې سره (په خپلې نکاح کښې) ایسارې کړئ، یا په ښه طریقې سره ئې جدا کړئ او په خپلو کښې دوه کسان گواهان جوړ کړئ چه عدل والا وی او د الله تعالی دپاره برابر گواهي ورکړئ اے خلقو! دا هغه خبره ده چه ددې نصیحت هغه سړی ته کیدې شی. چه په الله تعالی باندې او په ورځې د آخرت باندې ایمان لری، او څوک چه د الله تعالی نه اویریږی. الله تعالی به دهغه دپاره د مشکل نه د وتلو دپاره څه لاره پیدا کړی او هغه ته به د داسې ځائې نه رزق ورکړی چه هغه ځائې نه به دهغه گمان هم نه وی او څوک چه په الله تعالی باندې بهروسه اوکړی نو الله تعالی د هغه (کار جوړولو) دپاره کافی دې. یقین اوکړه، چه یقیناً الله تعالی خپل کار پوره کونکې دې. (البته) الله تعالی د هر څیز دپاره یوه اندازه مقرره کړې ده او ستاسو په زنانو کښې چه کومې دحیض راتلو نه مایوسه شوې دی، که تاسو ته (د هغوی د عدت باره کښې) شک وی، نو (یاد اوساتئ چه) د هغوی عدت درې میاشتې دې او دهغې زنانو (عدت) هم (دغه دې) چه هغې ته لا تر اوسه پورې حیض راغلې نه وی، او کومې زنانه چه حاملې وی د هغوی د (عدت) نیټه داده، چه هغوی د خپلې گیډې بچې اوزیګوی، او څوک چه د الله تعالی نه اویریږی، الله تعالی به دهغه په کار کښې آسانی پیدا کړی. دا د الله تعالی حکم دې، چه هغه تاسو باندې نازل کړې دې، او څوک چه د الله تعالی نه ویره اوکړی، الله تعالی به د هغه گناهونه معاف کړی، او هغه ته به زبردست ثواب ورکړی دهغې ښځو ته دخپل حیثیت مطابق هغې ځائې کښې رهائش ورکړئ، کوم ځائې چه تاسو اوسیږئ، او د هغوی د تنگولو دپاره هغوی ته تکلیف مه ورکوئ او که هغه حامله وی، نو هغې ته تر هغه وخته پورې نفقه ورکوئ، چه کله هغه دخپلې گیډې بچې اوزیګوی بیا که هغه ستاسو دپاره بچې ته پئی ورکوی، نو هغې ته دهغې اجرت ادا کړئ، او (د اجرت مقررولو دپاره) په خپلو کښې په ښه طریقې سره خبره فیصله کړئ، او که تاسو یو بل دپاره مشکل پیدا کوئ نو هغه بچی ته به بله ښځه پئی ورکړی هر وسعت والا دې د خپل وسعت مطابق نفقه ورکړی، او د چا دپاره چه دهغه رزق تنگ کړې شوې وی، نو څه چه الله تعالی هغه ته ورکړې وی، هغه دې د هغې نه نفقه ورکړی، الله تعالی چه چا ته څومره ورکړې دی، په هغه باندې د هغې نه زیات بوج نه اچوی که څه مشکل وی، نو الله تعالی به د هغې نه پس څه آسانی هم پیدا کړی.

### خلاصه تفسیر

﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ [اے پیغمبر] ﷺ ته خلقو ووایه چه ﴿إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ﴾ [کله تاسو] داسې [ښځوته طلاق ورکوئ] دکومو سره چه خلوت شوې وی ځکه چه دعدت حکم دداسې ښځو سره متعلق دې لکه چه په نوروایتونو کښې دی ﴿ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ﴾ (1) ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ﴾ [نو دوی لره] دزمانې [دعدت] یعنی حیض [نه وړاند] یعنی په طهر کښې [طلاق ورکړئ] او داپه صحیح احادیثوسره ثابته ده چه په دغه طهر کښې صحبت نه وی شوې په کوم کښې چه طلاق ورکول وی [او] دطلاق ورکولو نه پس ﴿وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ﴾ [تاسو عدت لره یادساتئ] یعنی ښځه سړې دواړه دې یادساتی لیکن په خطاب کښې

(1) ترجمه: بیا تاسو هغوئ ته دلاس لگولونه وړاندې طلاق ورکړلی نوستاسو په هغوئ باندې هیڅ عدت نشته دې.

دتخصيص دصيغې دمذکراشاره دې طرف ته ده چه په ښځوکښې غفلت غالب وی نو سړولره هم ددې اهتمام ساتل پکار دی لکه چه مدارك کښې دی(۱) ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ﴾ [او دالله تعالی نه ويره کوئ کوم چه ستاسورب دی] يعنی په دې بابونوکښې کوم چه دهغه احکام دی ددې خلاف مه کوئ يعنی داچه درې طلاقه په يوځای مه ورکوئ او داچه په حالت دحيض کښې طلاق مه ورکوئ لکه چه په صحيح احاديثوکښې راغلی دی اوداچه په عدت کښې ﴿لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ﴾ [دې ښځولره] اوسيدو د [کورونو نه مه وباسئ] ځکه چه حق دسکونت دمطلقې په مثل د منکوحې حق واجب دې ﴿وَلَا يَخْرُجْنَ﴾ [اونه دې هغه ښځې په خپله دکوره وځی] ځکه چه دا د اوسيدوځای محض دخاوندحق نه دې کوم چه ددې په رضاسره ساقط شی بلکه حق د شرع دې ﴿إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ﴾ [مګرهاه هرکله چه ښکاره بې حيائی وکړی نو بله خبره ده] يعنی مثلا بدکاری يا غلا وکړی نو دسزا دپاره دې ويستلې شی يا په قول دځنو عالمانو زبان درازی او هروخت تکرار کوی نو بيادغه هم ويستلې شی ﴿وَتِلْكَ حُدُودُ اللّٰهِ﴾ [اوداتول دالله تعالی مقررکړی احکام دی ﴿وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللّٰهِ﴾ اوکوم سړې چه دالله تعالی داحکامونه تيرې کوی] مثلادابنځه ئې دکوره وويستله ﴿فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ﴾ پس يقينا [دا په خپل ځان ظلم وکړو] يعنی ګناهګارشو وړاندطلاق ورکوونکی ته ترغيب ورکوې چه په طلاقوکښې طلاق رجعی غوره دی پس ارشاد دې چه اے طلاق ورکوونکيه ﴿لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ أَمْرًا﴾ [ته څه خبرئ چه شايدالله تعالی پس ددې] طلاق ورکولو [نه څه نوې خبره] ستاپه زړه کښې [پيداکړی] مثلا په طلاق پښمانه شې نوپه طلاق رجعی کښې ددې تدارك په اسانئ سره کيدې شی ﴿فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ [بيا چه هر کله هغه] طلاقې شوې [ښځې] چه دوی ته طلاق رجعی ورکړې شوی وی په قرينه د ﴿فَأَمْسِكُوهُنَّ﴾ [خپل عدت تيريدو ته نزدې ورسی] او عدت ئې نه وی ختم شوې [نو] تاسوته دوه اختياره دی ياخو ﴿فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾ [دوی لره دقاعدې موافق] په رجعت کولو سره [په نکاح کښې پريږدئ ﴿أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾ يادقاعدې موافق دوی لره ازادې کړئ] يعنی دعدت ختميدو پورې رجوع مه کوئ مطلب داچه دريمه خبره مه کوئ چه ساتل موهم مقصود نه وی مګر د اوږدوالی دعدت په ذريعه ښځې ته دتکليف رسولو په غرض سره رجوع وکړئ [او] هرڅه چه هم کوئ جدائی يا واپسی په هغې ﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ﴾ [په خپل مينځ کښې دوه معتبرسړی ګواهان کوئ] دامستحب دی لکه چه په هدايه(۲) کښې دی او په رجعت کښې خوځکه چه چرته خپل نفس شرارت ونه کړی چه ددروغودعوی وکړی چه مارجعت کړې وو [او] اے ګوهانو که دګواهئ حاجت پيښ شی نو ﴿وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ﴾ [تاسوتيك تيك دالله تعالی دپاره] بغيردرو رعايت نه [ګواهی ورکوئ ﴿ذٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ په دې مضمون سره هغه سړی ته نصيحت کولې شی کوم چه په الله تعالی او په ورځ دقيامت يقين لری] مطلب دادې چه ايماندار دنصيحت نه نفع اخلی اوهسې خو نصيحتونه دټولودپاره عام دی ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا﴾ [او] بره چه کوم دتقوی حکم دې داحکامونه پس ددې ډيرفضيلتونه ارشاد فرمائی اول ضررونو نه [دنجات لاره راوباسی

(۱) مدارك التنزيل المعروف بتفسير النسفي تحت هذه الآية [ج:۳ ص:۴۴۰]
(۲) الهداية كتاب الطلاق باب الرجعة [ج:۲ ص:۳۹۵]

او] نفعې ورته رسوی چنانچه یو لوئ منفعت دې رزق پس ﴿وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ [دا ته دداسې ځاې نه رزق رسوی دکوم ځاې نه چه دده ګمان هم نه وی] یوه شعبه ددې تقوی توکل دې ددې داخاصیت دې چه ﴿وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾ [کوم سړې په الله تعالی توکل کوی نو الله تعالی دده [مشکلاتو داصلاح] دپاره کافی دې یعنی دخپل کفایت اثرخاص په اصلاح دمهماتو کښې ظاهرفرمائی ورنه دده کفایت خودټول عالم دپاره عام دې اودا اصلاح دمهماتوهم عامه ده ظاهراً وی یا باطناوی ځکه چه ﴿إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ﴾ [الله تعالی خپل کار] څنګه چه غواړي [پوره کوی] اودغه شان داصلاح دمهماتووخت هم دده په اراده دې ځکه چه ﴿قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا﴾ [الله تعالی دهرشی یواندازه] په خپل علم کښې [مقررکړې ده] او دهغې موافق دهغې واقع کول قرین حکمت وی وړاند بیا واپسی ده احکامو طرف ته یعنی بره خودعدت اجمالا ذکر وو [او] تفصیل دهغې راروان دې هغه داچه ﴿وَالَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ﴾ [ستاسو] دطلاقو شوو [بیبیانونه چه کومې ښځې] په وجه دزیات عمر [دحیض دراتللونه ناامیده شوې وی ﴿إِنِ ارْتَبْتُمْ﴾ که ستاسو] ددوی دعدت په تعین کښې [شبهه وی] لکه چه په واقع کښې شبهه شوې وه اوتپوس ئې کړې وو ﴿فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ﴾ [نو ددوی عدت درې میاشتې دې ﴿وَالَّائِي لَمْ يَحِضْنَ﴾ اودغه شان دکوموښځوچه] تراوسه په وجه دکم عمرئ [حیض نه وی راغلې] ددوی عدت هم درې میاشتې دې ﴿وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ [او دحملدارو ښځو عدت ددوی د دغې حمل پیداکیدل دی] خواه کامل وی یا ناقص په دې شرط چه څه اندام په کښې جوړشوې وی اګرچه یوه ګوته وی [او] چونکه تقوی په خپله هم مهتم بالشان ده او په ذکرشوواحکامو کښې کوم چه ددنیادمعاملوسره متعلق دی په عاموطبائعو کښې خیال راتلې شی چه ددې دنیوی معاملاتو ددین سره څه تعلق دې مونږه چه څنګه غواړو کوو په دې وجه وړاند بیادتقوی مضمون دې یعنی ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا﴾ [کوم سړې چه دالله تعالی نه ویریږی الله تعالی به دهغه په کار کښې اسانی پیداکړی] داخرت یا ددنیاظاهرا یا باطنا وړاندې بیا دَ تاکید دامتثال داحکامودپاره ارشاددې چه ﴿ذَلِكَ أَمْرُ اللَّهِ أَنْزَلَهُ إِلَيْكُمْ﴾ [دا] څه چه ذکرشول [دالله تعالی حکم دې کوم چه هغه تاسوته رالیږلې دې ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا﴾ او کوم سړې چه] په دې معاملاتو کښې او په نورو کارونو کښې هم وی [دالله تعالی نه ویریږی الله تعالی به دهغه ګناهونه لرې کړی] کوم چه دَتولو نه دَ لوئې مضرت نه نجات دې او ده ته به لوئې اجر ورکوی کوم چې دټولونه د لوئ نفع حصول دې وړاندې بیا دمطلقاتوداحکامو بیان دې یعنی په عدت کښې علاوه دعدم تطویل دعدت اوحق دسکنی ددوی نور حقونه هم دی هغه داچه ﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُجْدِكُمْ﴾ [تاسودې] طلاقوشوو [ښځوته دخپل وسعت موافق داوسیدو مکان ورکړئ کوم ځاې چه تاسوسیږئ] یعنی په عدت کښې دمطلقې دپاره داوسیدو کورهم ورکول واجب دی البته په طلاق بائن کښې په یو مکان کښې په خلوت سره ددوارو اوسیدل جائز نه دی بلکه پرده حائل کول ضروری دی ﴿وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ﴾ [او دوی لره دتنګولودپاره] داوسیدو کور په باره کښې [تکلیف مه ورکوئ] مثلا څه داسې خبره وکړئ چه هغه پرې پریشانه شی او ووځی ﴿وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ [اوکه چرې هغه] طلاقې شوې

[ښځې حملدارې وی نو دحمل پیدا کیدو پورې دوی ته] دخوراك څښاك [خرڅ ورکوئ] په خلاف دغیرحملدارو نه چه دهغوی دنفقې حد درې حیضونه یادرې میاشتې دی او دا احکام خودعدت په حقله وو ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ﴾ [بیا که چرې] دعدت نه پس [دغه] طلاقې شوې [ښځې] هرکله چې دمخکښې نه بچو والا وی یائې دبچې په پیداکیدو سره عدت ختم شوې وی [تاسودپاره] بچې لره په اجرت بانداړ [تئی ورکوی ﴿فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ نو تاسودوی ته] مقرره [اجرت ورکوئ او] داجرت په باره کښې ﴿وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوفٍ﴾ [په خپل مینځ کښې په مناسب طور مشوره کوئ] یعنی نه دې ښځه دومره زیات غوارې چه سړې دبلې پئ ورکونکې لټون شروع کړی اونه دې سړې دومره کم ورکوی چه دهغې ګذاره پرې نه کیږی بلکه حتی الامکان دواړه دې ددې خیال ساتی چه پئ ورلره مور ورکړی چه دبچی په دې کښې زیات خیر دې ﴿وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ﴾ [اوکه تاسو دیو بل سره کشمکش کوئ نو څوك بله ښځه دې ورله تئی ورکوی] مقصود ددې خبرې نه امردې یعنی بله دائی دې ورله تلاش کړې شی نه دې مور مجبورکولې شی اونه دې پلار او په صورت دخبرکښې دانکته ده چه سړې ته په کم اجرت تجویز کولو زورنه ده چې آخر به پرې یوه ښځه اوځکوی اوهغه به هم غالباً دیرکم اجرت نه اخلی. نوبیا دا کمې هم دَ مور دپاره ولې تجویزکولې شی او ښځې له په زیات اجرت غوښتلو زور نه ده چه که ته پئ ورنه کړې نو بله به پیداشی څه په دنیاکښې یوازې ته نه یې چه دومره ګرانی کوې ورآند دبچی دنفقې په باره کښې ارشاد دې چه ﴿لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ﴾ [اوسعت والا لره دخپل وسعت موافق] په بچی [خرڅ کول پکاردی ﴿وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ﴾ او دچاچه امدنی کمه وی ده له پکاردی چه الله تعالی ده له څومره ورکړی دی دهغې نه خرڅ کوئ] یعنی مالدارسړې دې دَ خپل حیثیت موافق خرڅ کوی او غریب سړې دې دَ خپل حیثیت موافق ځکه چه ﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا﴾ [الله تعالی په چاباند زیات تکلیف دهغې نه نه اچوی کوم څه چه ئې ورله ورکړی وی] اوتنګدست سړې دې په خرڅ کولوکښې ددې نه نه ویریږی چه په خرڅ کولوسره به ختم شی لکه چه ځنې خلق ددې ویرې نه اولاد قتلوی پس ارشاد دې چه ﴿سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا﴾ [الله تعالی به دتنګئ نه پس زر فراخی هم ورکړی] اګرچه په قدرد حاجت او ضرورت وی او دالکه داقول دالله تعالی دې ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ﴾ (1)

## معارف او مسائل

**نکاح او طلاق شرعی حیثیت او ددې حکیمانه نظام ::** معارف القرآن د سورة بقره په تفسیر کښې هم ددې عنوان لاندې پوره تفصیل لیکلې شوې دې هغه اوګورئې د هغې خلاصه داده چې د نکاح او طلاق معامله په هر مذهب او ملت کښې د عامو معاملو اخستل او خرڅول او اجارې پشان نه ده چې ګنې د طرفینو په رضا مندئی سره هر څنګه او په هر شان کول ئې کیدیشی بلکه د هر مذهب او ملت خلق همیشه په دې متفق دی چې دې معاملاتو ته یو خاص مذهبی تقدس حاصل دې. دهغې د هدایتونو لاندې دا کار سر ته رسول پکار دی. اهل کتاب یهود او نصاری خو په هر حال یو آسمانی دین او آسمانی کتاب سره نسبت لری. په هغې کښې د سوړنو

---

1) ترجمه:- او خپل اولاد د غریبئ په وجه مه قتل کوئ موږ هغوئ ته هم رزق ورکوو او تاسو ته هم.

بدلونونو باوجود دومره قدر مشترک اوس هم کافي دي چې په دې معاملاتو کښې د څه مذهبي قيدونو او حدونو پابند دی. کافران او مشرکان چې څه آسماني کتاب او مذهب نه لرې، مګر په څه نا څه صورت کښې د الله ﷻ قائل دی، لکه هندوان، آريه، سکهان، مجوسيان، آتش پرست، ستوري پرست، خلق هغوئ هم د نکاح او طلاق معاملو لره د عامو معاملو اخستل او خرڅول يا اجارې پشان نه ګوری. د هغوئ په نزد څه مذهبي رسمونه دي چې د هغې پابندی په دغې معاملاتو کښې لازم ګڼړی او هم په دغې اصولو او رسمونو باندې د دتولو مذهبونو عائلي قوانين چليږی.

صرف دهريه او بې مذهبه د الله ﷻ نه د منکرو خلقو يوه ډله چې د الله ﷻ او مذهب نه ويزاره دی، هغوئ دغې څيزونو لره هم د اجارې پشان خپل مينځ کښې په رضامندئ سره سرته رسيدونکې يوه معامله بولی چې مقصد ئې د شهوت د جذباتو د تسکين نه سوا بل څه نه دی. افسوس دې چې نن صبا په دنيا کښې هم دغه نظريه عامه کيدونکې ده. چا چې انسانان د ځنګلی خنارو په قطار کښې اودرولی دی. الىالله والیه المشتکى

اسلامي شريعت ديو مکمل او پاکيزه نظام حيات نوم دې، په دې کښې نکاح ته صرف د يوې معاملې او لوظنامې نه بلکه د يو قسم عبادت حيثيت بخښلې شوې دې چې په کښې د کائناتو د پيداکوونکی د طرفنه په انساني فطرت او طبيعت کښې دا کيخودې شوې جذباتو او آرام زيات غوره او پاکيزه سامان هم دې او د سړی او ښځې ترمينځه ددغې تعلقاتو چې کومې مسئلې دی او د نسل د بقاء او پالنې د اولاد سره تعلق لرې د هغې هم معتدلانه او حکيمانه زيات غوره نظام موجود دې او هرکله چې د ښځې خاوند د معاملې په صحيحوالی باندې د عام انساني نسل صحيحوالې اړه لرې. ځکه په قرآن پاک کښې دغې عائلي مسئلو ته د نورو تولو معاملو نه زيات اهميت ورکړې دې. څوک چې قرآن پاک په غور لولی نو هغه به دا عجيبه ليدل کوی چې د دنيا په عامو معاشي مسئلو کښې د تولو نه زياتې مهمې مسئلې تجارت، شرکت، اجاره وغيره دی، قرآن پاک صرف ددې په اصولو خودلو باندې بس والې کړې دې. ددې فرعي مسئلې په قرآن پاک کښې شاذ ونادر دی پخلاف د نکاح او طلاق نه چې صرف د هغې په اصولو خودلو بس والې نه دې کړې شوې. بلکه ددې نه زيات فروع او جزئيات هم نيغ په نيغه الله ﷻ په قرآن پاک کښې نازل کړی دی.

دا مسئلې د قرآن پاک په اکثرو سورتونو کښې څه نا څه او په سورۂ نساء کښې په څه زيات تفصيل سره راغلی دی. دا سورت چې سورۂ طلاق نوميږی، دې کښې په خصوصيت سره د طلاق او عدت وغيره احکام بيان شوی دی، ځکه د حديث پاک په څينې روايتونو کښې دې سورت ته سورۂ نساء صغری وئيلې شوی دی. يعنی وړوکې سورۂ نساء | قرطبي په حواله د بخاری [۱]

د اسلامي اصولو روح دا دې چې په نارينه او زنانه کښې د اسلامي اصولو مطابق د ښځې خاوند تعلقات قائم وی، هغه دې د تول عمر دپاره وی چې ورسره دين او دنيا هم سم وی او ددې نه پيدا کوونکی اولاد عملونه او اخلاص هم درست وی ځکه د نکاح په معامله کښې د شروع نه تر آخره پورې په هر قدم باندې اسلامي هدايتونه دادی چې تعلقات دې د تلخيانو

[۱]) صحيح البخاري کتاب التفسير، باب سورة الطلاق [ج:۲ص:۷۲۹]

او خفګانونو نه پاک او صفا او ساتلې شي او که پيدا هم شي نو دهغې د لرې کولو کوشش کړې شوې دې خو سره ددې ټولو کوششونو نه کله خو د دواړو طرفونو د ژوند کاميابي هم په دې باندې اړه لري چې دا تعلق ختم کړې شي په کومو مذهبونو کښې چې د طلاق اصول نشته په هغې کښې په داسې وختونو کښې ډير مشکلات راپيښيږي او کله خو ترې ډيرې لرې خرابې نتيجې راخيژي ځکه خو اسلام د نکاح د قوانينو په شان د طلاق هم قواعد و اصول مقرر کړل خو ورسره ئې دا هدايات هم ورکړل چې طلاق د الله ﷻ په نزد انتهائي ناکاره او بد ګڼړلې شوې کار دې تر وسه پورې د هغې نه پرهيز کول پکار دي حديث پاک کښې د عبدالله بن عمر ؓ نه منقول دي چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې په حلالو څيزونو کښې د ټولو نه زيات خراب او ناکاره څيز د الله ﷻ په نزد طلاق دې[1] او علي ؓ نه روايت دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې:

[تزوجوا ولا تطلقوا فان الطلاق يهتز منه عرش الرحمن][2] يعني نکاح کوئي او طلاق مه ورکوئي ولې چې په طلاقو سره د رحمان عرش خوزيږي. او د ابي موسى ؓ په روايت نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې ښځو ته طلاق مه ورکوئي بغير د څه بدکارئي نه ځکه چې نبي کريم ﷺ داسې نارينه نه خوښوي چې صرف خوند اخستونکي دي او هغه زنانه هم نه خوښوي. [قرطبي د ثعلبي په روايت][3]. او دارقطني د معاذ بن جبل ؓ نه روايت کړې دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې:

الله ﷻ په زمکه باندې چې څه پيدا کړي دي په هغې ټولو کښې د الله ﷻ په نزد خوښ غلامان آزادول دي او څومره څيزونه ئې چې په زمکه پيدا کړي دي په هغې ټولو کښې ناخوښه او بد ګڼړلې شوې طلاق دې. [قرطبي][4].

بهر حال اسلام اګر چې د طلاقو حوصله افزائي نه ده کړې بلکه تر وسه پورې ئې ترې منع کړې ده، خو د ځينې ضرورتونو په موقعو ئې ددې اجازت ورکړې دې او دې د پاره ئې اصول او قواعد جوړ کړي دي. د هغې حاصل دا دې چې که د غه د ښځې خاوند تعلق ختمول ضروري شي نو هغه دې هم په ښه شان سره وي خالص د غصې ويستلو او د بدل اخستلو به دې ترې نه جوړوي، پدې صورت کښې د طلاق احکام په دې شان سره شروع کړې شو چې اول ئې نبي کريم ﷺ لره په ﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ سره مخاطب کړو چې د امام قرطبي د بيان مطابق په هغې موقعو کښې استعماليږي چرته چې حکم ټول امت د پاره عام وي او چرته چې څه حکم د نبي کريم ﷺ د ذات مبارک سره تعلق لري نو هلته په ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ﴾ سره ورته خطاب کولې شي.

ددې جملې ﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ تقاضا دا وه چې وروستو هم په صيغې د مفرد سره د احکامو بيان وې خو دلته ئې د هغې په خلاف په صيغې د جمع سره خطاب اوکړو نو ﴿إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ﴾ اګر چې بې واسطې خطاب نبي کريم ﷺ ته دې او په صيغې د جمع په خطاب کولو کښې د نبي کريم ﷺ

---

[1] ) سنن ابوداود، کتاب الطلاق ، باب فی کراهية الطلاق [ج:۱ص: ۲۹۶]

[2] ) کنز العمال رقم الحديث:[۲۷۸۷٤]

[3] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۱۵۰] ومسند البزار رقم الحديث:[۳۰٦٦] و المعجم الکبير للطبراني رقم الحديث:[۱۵۷٦]

[4] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۸ص:۱۵۰] و سنن الدار قطني رقم الحديث :[۳۹۸٤]

تعظیم او عزت کول هم دی ورسره دې طرفته اشاره هم ده چې د احکم خالص تاسو ﷺ دپاره نه دي ټول امت په دې کښې شریک دي.

او ځينې حضراتو دغلته جمله محذوفه منلې ده ، او د آیت مبارک تفسیر ئې دا کړې دې چې: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِلْمُؤْمِنِينَ إِذَا طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ﴾ یعنی ائې نبی ﷺ! تاسو مسلمانانو ته اوښايئ چې کله طلاق ورکوی ، نو وروسته د بیان کړی قانون پابندی دې کوی او د تفسیر په خلاصه کښې دې لره اختیار کړې شوې ده وروسته د طلاق ځينې احکام بیان شوی دی.

**دوهم حکم** :: د عدت لفظی معنی شمیرل دی په شرعی اصطلاح کښې هغې مودې ته وئیلې شی چې په کښې ښځه د یو خاوند د نکاح د وتو نه پس د بل نکاح نه منع کړې شوې وی د انتظار دغې مودې ته عدت وئیلې شی د خاوند د نکاح نه د وتو دوه صورتونه کیدیشی ، یو صورت دادې چې خاوند ئې مړ شی هغې ته دوفات عدت وئیلې شی چې غیر حاملې دپاره څلور میاشتې اولس ورځې مقرر دی ، دویم صورت دَ نکاح نه د وتو طلاق دی ، دهغې عدت غیر حاملې دپاره د امام ابو حنیفه رحمه الله او د ځينې نورو امامانو رحمهم الله په نزد درې پوره حیضونه دی ، او د امام شافعی رحمه الله او ځينې نورو امامانو په نزې درې طهره دی. بهر حال دې دپاره څه د شمیر میاشتې یا ورځې نه دی ټاکلې شوې په څومره میاشتو کښې چې درې حیضه یا درې طهره پوره شی هم هغه به د طلاق عدت وی او دکومو ځینکو ښځو حیض چې د کم عمرتی په وجه نه راځی یا دزیات عمرئ په وجه حیض ختم شی دهغوی حکم په مستقله توګه راروان دې او دغسې د حملدارو ښځو حکم هم راروان دې په دې کښې دوفات او طلاق دواړو عدت یو شان دې. ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ﴾ او د صحیح مسلم په حدیث کښې دی چې نبی کریم ﷺ دې لره : ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِقِبَلِ عِدَّتِهِنَّ﴾ تلاوت کړو([1]). اوابن عمر رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه په قرآت کښې هم په یو روایت کښې ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِقِبَلِ عِدَّتِهِنَّ﴾ او په بل روایت کښې دی ﴿فِي قِبَلِ عِدَّتِهِنَّ﴾ منقول دي. [روح]([2]).

او صحیح مسلم او بخاری کښې د عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې چې هغوی رضي الله عنه خپلې بی بی ته د حیض په حالت کښې طلاق ورکړې وو ، عمر فاروق رضي الله عنه چې دهغې ذکر نبی کریم ﷺ ته اوکړو نو نبی کریم ﷺ سخت خفه شو او وې فرمائیل چې:

[ليراجعها ثم يمسكها حتى تطهر ثم تحيض فتطهر فان بدا له فليطلقها طاهرا قبل ان يمسها فتلك العدة التى امرها الله تعالى ان يطلق بها النساء ]([3])

هغوئ لره د حیض په حالت کښې ورکړی شوی طلاق نه رجوع کول پکار دی تر هغې پورې دې خپله ښځه لری چې د حیض نه پاکه شی ،بیا وروسته حیض راشی بیا ئې دحیض نه پاکی راشی دا وخت که طلاق ورکول وی نو په دغې پاکئ کښې د کور والی نه بغیر دې طلاق ورکړی هم دا هغه عدت دې چې دکوم الله ﷻ په دې آیت مبارک کښې حکم ورکړې دې.

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الطلاق، باب تحریم طلاق الحائض ..... إلخ(بإختلاف یسیر) [ج:۱ص:۴۷۵]

[2]) روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۵۹]

[3]) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۳۱۸] و صحیح البخاري کتاب التفسیر ، باب سورة الطلاق [ج:۲ص:۷۲۹]او صحیح مسلم کتاب الطلاق، باب تحریم طلاق الحائض ..... إلخ(بإختلاف یسیر) [ج:۱ص:۴۷۵]

دې حديث پاک کښې څو خبرې ثابتې شوې ، اوله دا چې د حيض په حالت کښې طلاق ورکول حرام دی. بله دا چې که دغسې اوکړل نو دغې طلاق نه رجوع کول واجب دی. دريمه دا چې په کوم طهر کښې طلاق ورکول وی په هغې کښې دې ښځې سره کور والې نه وی. څلورمه دا چې دقرآن آيت مبارک: ﴿فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ﴾ همدا تفسير دې.

دَمذکوره آيت دوارو قراءتونو نه بيا د يو روايت د حديث نه ددې آيت مبارک مذکوره مفهوم دا متعين شو چې کله يوې ښځې ته طلاق ورکول وی نو د عدت شروع کيدو نه وړاندې دې طلاق ورکړې شی. د امام ابو حنيفه رحمه الله په نيز چونکه عدت دَ حيض نه شروع کيږی نو دآيت دا معنی اوګرځولې شوه چه په کوم طهر کښې دَطلاق ورکولو اراده وی په هغې کښې دې ښځې سره کور والې نه کوی او په آخر طهر کښې د حيض شروع کيدو نه وړاندې دې طلاق ورکړی. او دامام شافعي رحمه الله وغيره په نيز چونکه عدت هم دَ طهرنه شروع کيږی په دې وجه [قبل عدتهن] مفهوم دا اوګرځولې شو چې بالکل دې دَطهر په شروع کښې طلاق ورکړی او دابحث چې عدت درې حيضه دی يا درې طهر دې،نو ددې بيان د سورة بقره د آيت ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ په تفسير کښې تير شوې دې.

بهر حال د طلاقو باره کښې رومبې حکم ددې آيت مبارک نه په اجماع د امت سره دا ثابت شو چې دحيض په حالت کښې طلاق ورکول حرام دی. او په داسې طهر کښې هم چې ورسره په کښې کور والې کړې شوې وی يعنی په دې کښې هم طلاق ورکول حرام دی. او د حراموالی وجه په دواړو کښې داده چې په دې دواړو صورتونو کښې به د ښځې عدت اوږد شی او ښځې ته به تکليف شی ولې چې په کوم حيض کښې طلاق ورکړې شوې دې هغه به په عدت کښې نشی شميرلې بلکه ددغې حيض چې ورځې پوره شی او وريسې بل طهر هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد خالی تير شی وريسې چې بل حيض راشی د هغې به عدت شروع کيږی چې په کښې ډير اوږد والې دې.

او د امام شافعي رحمه الله د مذهب مطابق کم نه د کم حيض پاتې ورځې کومې به چې د عدت نه وړاندې تيريږی. هغه به زياتې پاتې شی. د طلاق هم دې رومبی حکم کښې دا مهم هدايت موجود دې چې طلاق څه دغصې اوښکلو يا دبدلې اخستو خيز نه دې بلکه د مجبورئی په درجه کښې د دواړو طرفونو د آرام سامان دې څکه هم د طلاق ورکولو په وخت ددې خيال لرل ضروری دی چې په ښځه باندې اوږد عدت تيريدل رانشی او دا حکم صرف هغې ښځو دپاره دې چې په هغوئ باندې عدت دحيض يا طهر تر مخې تيرول راځی او په کومو ښځو چې د سره عدت تيرول واجب نه وی لکه هغه ښځه چې ورسره خلوت تر اوسه پورې شوې نه وی په هغې باندې د سره عدت لازم نه دې چې ورته د حيض په حالت کښې هم طلاق ورکړې شی نو روا دی. داسې دهغې ورو جينکو او د زياتو بوډئی ګانو ښځو چې حيض نه راځی يا حيض راتلل ئې بند شوی وی د هغوئ په عدت کښې هم د طهر يا حيض اعتبار نشته بلکه د هغوئ عدت به د مياشتو په حساب سره درې مياشتې وی هغوئ ته په هر حال کښې طلاق ورکول جائز دی ، دغسې دکور والی نه پس طلاق ورکول جائز دی ، ددې بيان په آئنده کښې آيتونو کښې راروان دې. [ مظهری سره دځينو تشريحاتو][1]

[1]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۳۱۸]

**دویم حکم** :: ﴿وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ﴾ دی د احصاء معنی شمیرل دی د آیت معنی داده چې د عدت ورځې په غور سره یادې لرل پکار دی هسې نه چې هیر ئې شی او د عدت ختمیدو نه وړاندې عدت له ختم اوګڼړي. او دا ذمه داري په ښځه خاوند دواړو باندې ده خو دلته صیغه د مذکر استعمال کړې شوې ده ولې چې په عام ډول کم احکام چې په سړي او ښځه کښې شریک دي هغې د پاره عموما صیغه د مذکر راوړلې شي. ښځې په کښې تبعا داخلیږي. او په دې خاص مسئله کښې هغه حکمت هم کیدیشی چې د تفسیر په خلاصه کښې لیکلې شوې دې چې د ښځو دغفلت احتمال زیات دې ځکه نیغ په نیغه ذمه داري په نارینه‌و باندې واچولې شوه.

**دریم حکم** :: ﴿لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ﴾ یعنی د کورونو نه ئې مه اوباسئ او نه دې هغوئ پخپله اوځي. دلته بُيُوتِهِنَّ کښې مکانونه د ښځو اوبللې شو، په دې کښې اشاره دې طرفته شوه چې تر څو پورې د هغوئ د استوګنې حق د خاوند په ذمه دې نو په دغې کور کښې ئې حق شته. په دې کښې استوګنه جاري لرل څه احسان نه بلکه د واجب ادا کول دی. د ښځې د حقونو څخېنې یو حق د استوګنې هم دې، دې آیت مبارک اوخودل چې د احق صرف په طلاق ورکولو سره نه ختمیږي، بلکه د عدت تر ورځو پورې ښځه د غلته د استوګنې کولو حقداره ده او د هغې د کور نه ویستل ظلم او حرام دی. تر څو چې د هغې عدت نه وی تیر شوې. دغسې پخپله دې د پاره هم د خپل خاوند د کور نه وتل حرام دی اګر چې خاوند ئې هم اجازت ورکړي ولې چې هم په دغه کور کښې د استوګنې کولو حق ورکول د الله ﷻ دي چې د الله تعالی د طرف نه په معتده باندې لازم دې دخاوند حق نه دې. [دا احنافو مذهب دې][1].

**څلورم حکم** :: ﴿إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ﴾ یعنی دعدت تیروونکو ښځو له د خپل کور نه ویستل حرام دی. خو په هغه صورت کښې نه دی حرام چې هغه په څه ښکاره بې حیایئ کښې اخته شی، ددې ښکاره بې حیایئ نه څه مراد دې، په دې کښې د تفسیر د امامانو درې اقوال منقول دی.

① اول قول دا چې د بې حیایئ نه مراد پخپله د کور نه وتل دی نو په دې صورت کښې صرف شکل د استثناء دی چې د کور نه د وتلو اجازت ورکول تري مقصود نه دی بلکه ددې ممانعت له نور زیات مؤکد کول دی، ددې مثال داسې دې لکه چې داسې اووئیلې شی چې فلانې کار چا له نه دی کول پکار سوا ددې نه چې هغه د سړي توب نه بهر ته اوځي. یا خپلې مورته کنځل مه کوئی سوا ددې نه چې تاسو بیخی د مور نافرمانه شئ. نو دا ښکاره ده چې په رومبی مثال کښې د استثناء ددې صورت نه ددې جائز پریخودل منظور نه دی، او په دویم مثال کښې د مور نافرمانئ جواز ثابتول نه دی بلکه په بلیغ انداز کښې ددې نوره هم زیاته منع او بدی بیانول دی، په دې صورت کښې د آیت مبارک د مضمون خلاصه دا شوه چې طلاقې شوې ښځې دې د خپلو خاوندانو د کورونو نه اونه وځي. مګر دا چې په بې حیایئ کولو باندې په ضد شی. او په تښتید وسره بهر ته اوځی نو ددې مطلب د تښتیدو جائز کیدل نه دی بلکه نوره زیاته بدی بیانول او د منع ثابتول دی. د ﴿فَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ﴾ دا تفسیر د عبدالله بن عمر رضي الله عنه، سدی رحمه الله، ابن السائب رحمه الله، نخعی رحمه الله وغیره نه منقول دې او امام اعظم رحمه الله

---

[1] الهداية كتاب الطلاق باب العدة [ج: ۲ص: ۴۲۲ و ۴۲۳]

دې لره اختیاري کړی دی [ روح المعاني ] [1]

② دویم قول دا دې چې ﴿فَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ نه مراد زنا او بدکاری ده په دې صورت کښې استثناء په خپله معنی کښې ده چې که طلاقې شوې ښځې زنا اوکړه او جرم ثابت شو نو په هغې باندې به دشرعی حد جاری کولو دپاره خامخا بهر ته بوتلې شی دا تفسیر قتاده رحمه الله، حسن بصری رحمه الله، شعبی رحمه الله، زید بن اسلم رحمه الله، ضحاک رحمه الله او عکرمه و غیره نه منقول دې، امام ابویوسف رحمه الله دا قول غوره کړې دې

③ دریم قول دادې چې ﴿فَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ نه مراد ژبه اوږده لرل [زبان درازی] او جنګ جګړه کول دی، نو د آیت مبارک معنی به داوی چې طلاقو شوو ښځو لره د کورونو نه اوښکل جائز نه دی، سوا ددې نه چې ښځه بدزبانه اوجګړه کوونکې وی خپل خاوند او ده هغه تعلقدارانو سره بد زباني کوی نو په دې صورت کښې دې لره د عدت د مکان نه اوویستلې شی.

﴿فَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ دا تفسیر د ابن عباس رضی الله عنه نه په ګڼرو روایتونو سره منقول دې، او په دې آیت مبارک کښې د ابی بن کعب رضی الله عنه او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قرآت داسې دې چې [ الا ان تفحش ] ددې لفظ ظاهري معنی فحش کلامی او بد زبانی ده، دې قرآت نه هم د آخری تفسیر تائید کیږی. [ روح ] [2]

دې صورت کښې هم استثناء پخپل حقیقت باندې پاتې کیږی چې د بد زبانۍ او جګړې کولو په صورت کښې طلاقه ښځه دعدت د مکان نه ویستلې کیدیشی.

تر دې پورې چې دطلاق په باره کښې د خلورو حکمونو بیان راغلې دې او وریسې به نور احکام هم بیانولې شی مګر د دوئ تر مینځه د بیان شوو حکمونو د پابندئ تاکید او د هغې د مخالفت نه ځان ساتلو دپاره دوعظ و نصیحت څو جملې بیانولې شی دا دقرآن کریم خاص طرز[وزن] دې چې دهر حکم نه پس د الله ﷻ د ویرې او د آخرت د فکر په وریادلو سره دهغې خلاف کول بند کړې شوی دی ځکه چې د ښځې خاوند د حقونو ادا کول او خپل مینځ کښې د حقونو د پوره کولو انتظام د څه قانون په ذریعه نشی کیدې، دې دپاره دالله ﷻ ویره او آخرت ایساروونکې څیز دې.

﴿وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ ۚ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ ۚ لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا﴾ د حدود الله نه مراد د شریعت مقرر کړی قوانین دی، ﴿وَمَن يَتَعَدَّ﴾ یعنی څوک چې دالله ﷻ د حدونو نه تجاوز کوی یعنی ددې حدونو او حکمونو خلاف ورزی کوی ﴿فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ﴾ یعنی هغه په خپل ځان باندې ظلم اوکړو یعنی دالله ﷻ یاد شریعت اسلام ئې څه وران نه کړل هم خپل نقصان ئې اوکړو دانقصان دینی دنیوی دواړه کیدیشی دینی نقصان خو ئې د شریعت نه خلاف ورزی کول دی چې دآخرت وبال به ئې وی او دنیوی نقصان ئې دادې چې څوک دشرعی هدایاتو نه بغیر طلاق ورکوی هغه اکثر دریو طلاقو ته رسیږی چې رجوع او بل دنوی سره نکاح هم په کښې نشی کیدې، او خاوند د طلاق ورکولو نه پس پښیمانه کیږی او مصیبت تیر وی خصوصا چې اولاد ئې هم وی ځکه دا دنیوی مصیبت هم ده ته شو او دیر خلق چې ښځې ته

---

[1] روح المعاني [ج: ۲۱ ص: ۶۴]

[2] روح المعاني [ج: ۲۱ ص: ۶۵]

دنقصان رسولو دپاره طلاق ورکوي چې نیت ئې د ظلم طلاق ورکولو وي ، اګر چې ددې تکلیف څه خو ښځې ته هم رسي خو ده دپاره به ظلم په ظلم او غبرګ وبال جوړ شي. یو د الله ﷻ د مقرر کړو حدونو د ماتولو او بل په ښځه باندې د ظلم کولو چې د هغې حقیقت دادې چې:

پنداشت ستمګر جفا برما کرد　　برګردن وے بماند وبرما بګذشت

یعنې دظالم خیال دادې چې په ماڼې ظلم اوکړو او زړه ئې یخ کړو خو دهغې ګناه دهغه په غاړه پاتې شوه او په ما باندې سختئي تیره شوه.

﴿لَاتَدْرِیْ لَعَلَّ اللّٰهَ یُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِکَ اَمْرًا﴾ یعنې تاسو نه پوهیږئ کیدیشي چې الله ﷻ ددې قهر، غصې نه پس څه بل حالت پیدا کړي چې د بی بی نه کوم آرام او فائدې ورته حاصلې وې داولاد پالنه ئې کیده او دکور انتظام ئې صحیح چلیدو د هغې خیال چې اوکړئ نو تاسو به هم پخپل طلاق باندې پیښیمانه شئ. کله چې تاسو د طلاق په وخت د شرعي حدونو رعایت اوکړئ چې بې وجې بائن طلاق ورنکړئ بلکه رجعي ئې پریږدئ چې په کښې خاوند ته رجوع کولې شي. او پدې شان ړومبې نکاح هم هغسې باقي پاتې کیږي. او دا چې درې طلاقو ته خبره مه رسوئ چې دهغې نه پس د رجوع کولو حق نه پاتې کیږي. او دوباره نکاح کول ئې هم نه روا کیږي. اګر چې پخپل مینځ کښې هم پدې باندې دواړه رضا وي.

﴿فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِکُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْفَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ﴾ دلته په اَجَلَهُنَّ کښې اَجَل د عدت په معنی دې او اجل ته رسیدل دادي چې هغه ختمیدو ته نزدې شي.

**پنځم حکم**:: د طلاق باره کښې پنځم حکم په دې آیت مبارک کښې دا ارشاد دې چې کله دطلاقې شوې ښځې عدت ختمیدو ته نزدې شي نو اوس د نکاح نه ئې د وتلو وخت راغلو دغه وخت وختې اثر قبلول اودغم غصې جذبه هم سړهدل پکار دي. دغه وخت بیا ښه په سړه سینه غور کول پکار دي چې نکاح قائم لرل پکار دي. یا د هغې بیخې ختمول پکار دي. که په نکاح کښې د ساتلو رائې وي نو اودې ساتي چې مسنون صورت د راتلونکې آیت د اشارې او دحدیث پاک د ارشاد مطابق دادې چې په ژبه اووایئ چې ما دخپل طلاق نه رجوع اوکړه او په دې باندې دوه ګواهان جوړ کړئ.

اوکه بیا ئې هم بیخي پریخودل غواړئ نو بیا ئې په ښه شان سره آزاده کړئ. یعنې عدت ئې ختمیدو ته پریږدئ دعدت په پوره کیدو به هغه آزاده اوخپل اختیاره پاتې شي.

**شپږم حکم**:: که د عدت د ختمیدو په وخت ښځه ایسارول او په نکاح کښې په مخه ساتل مو اراده وي یا د بیخي آزادولو خیال مو وي. په دواړو کښې قرآن پاک د معروف قید لګولې دې. د معروف لفظي معنی پیژندلې طریقه او مراد ترې دا دې چې کومه طریقه د شریعت اوسنت نه ثابته او په اسلام او مسلمانانو کښې په عام ډول مشهوره ده هغه اختیار کړئ هغه داسې چې که نکاح کښې د هغې د ساتلو اراده وي نو بیا ورته په ژبه او لاس پښو سره تکلیف مه رسوئ. او احسان پرې هم خیژوئ او دهغې کومه عملي یا اخلاقي کمزوري چې د طلاق سبب جوړیده نو بیا تاسو هم په هغې باندې د صبر کولو قصد او کړئ دپاره ددې چې بیا هغه تریخوالي راپورته نشي. اوکه آزادول دهغې مو اراده وي نو دهغې مسنونه او معروفه طریقه داده چې دهغې په ذلیله کولو او خوارولو یا ورته په بدو ردو ویلو سره ئې دکوره مه اوباسئ بلکه په ښه اخلاقو سره ئې رخصت کړئ. او څنګه چې د قرآن پاک د بل

آیت مبارک نه ثابت دی د تلو په وخت کښې ورته یو جوړه جامې ورکول او رخصتول ئې کم نا کم مستحب ضرور دی، په ځینې صورتونو کښې واجب هم دی چې تفصیل ئې د فقهې په کتابونو کښې شته دې.

**اووم حکم** :: دې آیت مبارک کښې چې د ایسارولو یا د آزادولو د ښځې اختیار ورکړې شوې دې یا په رومبی آیت مبارک کښې: ﴿لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ أَمْرًا﴾ نه په ضمنی ډول سره دا معلومه شوه چې دالله ﷻ منشا داده چې د طلاق ورکولو مجبوری چا ته راپیښه شی نو داسې طلاق دې ورکولې شی چې درجوع کولو حق په کښې وی. د هغې مسنون صورت دادې چې په صفا الفاظو کښې یو طلاق ورکړی او ښځې سره دقهر غصې ښکاره کولو په خاطر داسې څه لفظ دې نه وائی چې د نکاح د ختمولو دپاره دلیل جوړیدې شی. لکه داسې دې نه وائی چې زما د کوره نه اوځه او داسې دې نه وائی چې ډیر سخت طلاق درکوم. یا داسې دې هم نه وائی چې اوس مې درسره دنکاح هیڅ تعلق پاتې نه دې. داسې الفاظ که ښکاره طلاق سره هم اووئیلې شی یا داسې الفاظ په نیت دطلاق سره اووئیلې شی نو ورسره د رجوع حق باطلیږی. چې دشریعت په اصطلاح کښې طلاق بائن شی. چې ورسره نکاح سمدستی ماتیږی. او د رجوع کولو حق نه پاتې کیږی. او ددې نه زیات سخت دادی چې د طلاقو شمیر دریو ته اورسوی ولې چې په نتیجه کښې به بیا رجوع هم نشی کولې او دهغې د عدت تیرولو نه پس هم ورسره نوې نکاح نشی کولې سره ددې چه ښځه خاوند په خپل مینځ کښې په نکاح کولو باندې راضی هم وی. لکه چې سورة بقره کښې فرمائی ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾(۱).

**درې طلاق په یو وخت کښې ورکول حرام دی خو که چا داسې اوکړل نو درې واړه طلاق به واقع شی په دې باندې د امت اجماع ده** :: نن صبا ددین نه بې پروائی، ددې احکامو نه غفلت په خراب شان سره عام کیږی. دجاهلانو به څه وائې لیک لوست والا عرضی نویسان هم د دریو نه کم طلاق هډو څه نه ګڼړی؟ چې شپه ورځ لیدلې کتلې شی چې درې طلاق ورکوونکی روستو پښیمانه کیږی. او په دې فکر سره اوسیږی چې په څه شان سره مې ښځه دلاسه اونه خی. خو په یو خل درې طلاقه ورکولو سره رسول الله ﷺ سخت غصه شوې وو دا صحیح حدیث امام نسائی په روایت د محمود بن لبید نقل کړې دې(۲) ځکه په یو وخت باندې درې طلاق د امت په اجماع سره حرام اوناجائز دی که په دریو طهرونو کښې درې طلاق په درې واړه بیل بیل ورکړی نو دا هم په اجماع د امت سره ناخوښه ګڼړلې شوی دی او دقرآن پاک د آیتونو په اشارې سره ئې ناخوښ ګڼړل ثابت دی، صرف په دې خبره کښې اختلاف دی چې دا صورت هم حرام ناجائز دې او په طلاق بدعی کښې داخل دې او که نه؟ د امام مالک رحمه الله په نزد حرام دی، امام اعظم رحمه الله او امام شافعی رحمه الله ورته اګر چې حرام نه دی وئیلی او په طلاق بدعی کښې ئې نه دی شمیر کړی بلکه په سنت طلاق کښې ئې داخل شمیری خو بیا هم ورته ناخوښه وائی ځکه چې

(۱) بیا که څوک ښځې ته طلاق ورکړی نو بیا به هغه ددهٔ دپاره حلاله پاتې نشی تر دې چې هغه دده نه سوا بل خاوند سره نکاح اوکړي.

(۲) سنن النسائی کتاب الطلاق، باب الثلاث المجموعة وما فيه من التغليظ [ج:۲ ص:۹۹]

تفسیر ئې په سورة بقره کښې بیان شوی دی.

په یو خل د دریو طلاقو ورکولو په حراموالی کښې اگر چې دا مت اجماع ده خو سره ددې ئې په واقع کیدلو هم اجماع ده

صرف ځینې اهل حدیث او شیعه ئې واقع کیدل نه منی ، د واقع کیدو یو مثال ئې داسې او گڼرئې چې لکه څوک یو بیگناه انسان قتل کړی نو اگر چې دا هم حرام دی خو هغه به مړ کړی ضرور ، په واقع کیدو باندې ئې یواځې د څلورو مذهبونو اجماع نه ده بلکه په دې باندې د ټولو صحابه کرامو ﷺ اجماع هم د فاروق اعظم ﷺ په زمانه کښې منقول اومعروف دی ، ددې هم مکمل بیان په معارف القرآن سورت بقره کښې په تفصیل سره راغلې دې هلته دې اوکتلې شی.

﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ﴾ یعنی د خپلو مسلمانانو نه پرې دوه معتبر گواهان جوړ کړئې او گواهی پرې صحیح قائمه کړئې.

**الم حکم:** ددې آیت مبارک نه معلومه شوه چې د عدت په ختمیدو خواه په رجوع کولو سره ښځه په خپل نکاح کښې لرل وی یا ئې بیخی پریخودل وی نو په دواړو صورتونو کښې په دغه خپل فعل باندې دوه معتبر گواهان جوړ کړئې. دا حکم د اکثرو امامانو په نزد استحبابی دې رجوع کول په دې باندې څه اړه لری ، د رجوع په صورت کښې د گواهانو جوړولو حکمت دادې چې هسې نه چرته دغه ښځه درجوع نه انکار اوکړی او د دغه سړی دنکاح نه د وتو دعوی اونه کړی او د ترک رجعت او د نکاح د ختمولو په صورت کښې خو خکه گواهان جوړول پکار دی چې هسې نه سړې پخپله د شرارت نه یا د ښځې د محبت نه په مجبوره کیدو دا دعوی اوکړی چې دعدت تیریدو نه وړاندې مې ورته رجوع کړې وه. ددغې دوؤ گواهانو په باره کښې ئې ﴿ذَوَيْ عَدْلٍ﴾ اوفرمائیل چې په شرعی او اصطلاحی معنی کښې عدل ثقه اومعتبر کیدل د گواهانو ضروری دی ، گنی د دوئ په گواهئ د قاضی څه فیصله نه ورکوی. ﴿وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ﴾ کښې عامو مسلمانانو ته خطاب دې چې که تاسو چرته د رجوع یا د نکاح وخت د ختمیدلو گواهان یئ او دقاضی په عدالت کښې د گواهئ ورکولو موقعه مو راشی نو دچا د پاره د رعایت یا د مخالفت او دشمنئ په وجه په رښتیا گواهئ ورکولو کښې لږ هم فرق مه کوئې.

﴿ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ مَن كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ یعنی په دې مذکوره مضمون سره هغه سړی ته نصیحت کولې شی چه ایمان لری په الله تعالی باندې او په آخری ورځ یعنی د قیامت په ورځ. په دې کښې د آخرت په خصوصیت سره ذکر ځکه اوکړې شو چه د زوجین په خپل مینځ حقوق اداکول د تقوی اود آخرت د فکرنه بغیر په چا باندې نشی کولې

**د جرم اوسزا په قوانین کښې د قرآن حکیم عجیبه اوحرانونکی حکیمانه اومربیانه اصول** د دنیا په حکومتونو کښې د قواعدو او قوانینوتدوین اود جرمونوسزا او تعزیر پخوانې دستوردې. په هرقوم اوملك کښې د تعزیر کتابونه لیکلې شوی دی. اودا هم ښکاره ده چه قرآن کریم هم د الله تعالی د قانون کتاب دې خودې طرز د ټولې دنیاد کتابونو د قوانینو نه جدا او عجیبه دې چه د هرقانون وړاندې روستو د الله تعالی ویره او د آخرت فکر مخې ته کوی. دې دپاره چه هریو انسان د قانون پابندی د څه پولیس یا نگران د ویرې څخه نه بلکه د الله تعالی د ویرې نه

کوي. که څوك ګوري او که نه ګوري، خلوت وي که جلوت په هرصورت کښې د قانون پابندي ضروري اوګڼي. صرف هم دغه سبب چه په قرآن پاك باندې صحيح ايمان لرونکو باندې د سخت نه سخت قانون نافذ کول هم زيات مشکل نه وي. ددې د پاره اسلامي حکومت ته د پوليس او په هغوي د اسپيشل پوليس او په هغوي د خفيه پوليس جال خورولو ضرورت نه وي.

د قرآن کريم دا مربيانه اصول په ټولو قوانينوکښې عام دي. په خصوصيت سره د ښځې خاوند تعلقات او د خپل مينځ د حقوقو قوانينو کښې ددې د ټولو نه زيات اهتمام کړې شوي دي. ځکه چه دا تعلقات داسې دي چه په دې کښې نه په هريو کارباندې ګواهي اوشهادت ورکولې شي اونه عدالتي تحقيق. د زوجين د خپل مينځ حقوقو کښې د کمي او کوتاهئ صحيح اندازه لګولې شي ددې ټول دارومدار هم پخپله د زوجين زړونه او د هغوي په اعمالو او افعالو باندې دې. هم دغه وجه ده چه د نکاح په مسنون خطبه کښې کوم آياتونه لوستل چه د سنت نه ثابت دي دا دريواړه آياتونه د تقوي د حکم نه شروع کيږي او هم په دې باندې ختميږي. په کوم کښې چه دا اشاره ده چه نکاح کونکوله د دغه وخت نه دا ګنړل پکاردي چه که څوك ګوري او که نه ګوري مګر الله تعالى زمونږ د پټو او ښکاره اعمالو نه بلکه د زړونو د پټو رازونو اوخيالاتونه خبردې. که مونږ د يوبل په حقوقوکښې څه کوتاهي اوکړه يوبل ته موتکليف اورسولو نو د هغه ذات په وړاندې به جواب ورکول وي. چې په پټوباندې عالم دې. دغه شان په سورت طلاق کښې چه د طلاق متعلق يوڅو احکام بيان کړې شو نو هم د ړومبی حکم نه پس ئې ﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ﴾ فرمائيلو سره ئې د تقوي هدايت اوفرمائيلو. بيا د څلورو احکامو د ذکر کولو نه پس دا وعظ اونصيحت اوکړې شو چه کوم سړې ددې خلاف ورزی کوی هغه په بل چاباندې نه بلکه هم په خپل ځان باندې ظلم کوی. ددې وبال به هم دې تباه کوی. ﴿وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ﴾ بيا د نورو څلورو ضمني احکامو اوقوانينو ذکر کولو نه پس دوباره دا هدايت بيان کړې شو. ﴿ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ وړاندې په يو آيت کښې د تقوي فضائل او د هغې د ديني اودنياوي برکتونو بيان اوکړو. بيا هم ددې آيت په آخر کښې په الله تعالى باندې توکل او د يقين ساتلو برکتونه ارشاد کړې شو. دې نه پس ئې بيا يوڅو احکام د عدت بيان کړل او د هغې نه پس بيا دوه آياتونو کښې د تقوي نور برکتونه او ثمراتو بيان راغلو. او دې نه پس بيا د نکاح او طلاق متعلقات، د ښځې د نفقې او د اولاد د پيئو ورکولو وغيره احکام او خودلې شو. د طلاق عدت او ښځو د نفقې او پيئو وغيره احکامو کښې بار بار چرته د آخرت ذکر چرته د تقوي د فضيلت او برکت او چرته د توکل د برکتونو اوڅه نور احکام بيانولو سره بيا د تقوي بار باربيان ،د فضائلو بيان په ظاهره دا بې جوړه غوندې معلوميږي مګر د قرآن کريم ددې مربيانه اصولو په حکمت باندې پوهيدلو نه پس ددې جوړ او ژور ربط هم واضح شو. اوس د مذکوره آياتونو تفسير او تشريح اوګورئ:

﴿وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۝ وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ يعنى کوم سړې چه د الله تعالى نه ويريږي نو الله تعالى به د هغه د پاره د هر مشکل او مصيبت نه د خلاصى لار راوباسي او هغه ته به بې ګمانه رزق ورکوی. د لفظ تقوى اصلي اولغوي معنى د بچ کيدلو ده. د شريعت په اصطلاح کښې د ګناهونونه د بچ کيدلو د پاره دا لفظ وئيلې شي. اوکله چه د الله تعالى طرف ته اضافت او نسبت

کیږی نو ترجمه دَالله تعالی نه دَ ویریدلو کولې شی او مطلب دا وی چه دَالله تعالی دَ نافرمانئ او مصیبت نه بچ شئ او اوویریږئ ؟

په دې آیت کښې دَ تقوی دوه برکتونه بیان کړې شوی دی. اول دا چه تقوی اختیارونکی دَپاره الله تعالی دبچ کیدلو لار راوباسی. دَ یوځیزنه بچ کیدل، په دې کښې صحیح خبره داده چه دا عام دی. دَ دنیادَ ټولو مشکلاتو او مصیبتونو دَپاره هم او دَ آخرت دَ ټولو مشکلاتو او مصیبتونو دَپاره هم. او دَ آیت مطلب دادې چه الله تعالی دَمتقی یعنی دَ ګناهونونه دَ بچ کیدونکی سړی دَپاره دَ دنیا او آخرت دَهر مشکل نه دَخلاصی لار راوباسی. او دویم برکت دادې چه هغه ته دداسې ځائی نه رزق ورکوی دکوم ځائی نه چه دَ هغه خیال او ګمان هم نه وی. صحیح خبره داده چه دلته دَ رزق نه مراد هرد ضرورت څیز دې که هغه دَ دنیا وی او که دَ آخرت وی. دَمؤمن متقی دَپار دَالله تعالی وعده په دې آیت کښې ده چه دَهغه هر مشکل هم آسانوی او دَ هغه ضرورتونه هم پوره کوی. او دَ داسې لارونه دهغه ضرورتونه راپیدا کوی دکوم چه دَ هغه وهم او ګمان هم نه وی. [کذا فی الروح][1]

دَمقام دَ مناسبت دَ وجې نه بعضې مفسرین حضراتو دَدې آیت په تفسیر کښې دا فرمائیلی دی چه طلاق ورکونکې خاوند او طلاقه شوې ښځه دواړه یا په دوی کښې چه کوم یو هم تقوی اختیارونکې وی الله تعالی هغه ته دَ طلاق او انقطاع نکاح نه پس پیښیدونکی هر مشکل او تکلیف نه خلاصې ورکوی. او سړی ته دَهغه مناسب ښځه او ښځې ته دَهغې مناسب خاوند ورکوی. او ښکاره خبره ده چه دَ آیت اصل مفهوم کوم چه په ټولو مشکلاتو کښې او دَهر قسم رزق دَپاره عام او شامل دې په دې کښې دَ زوجین دا مشکلات او ضروریات هم شامل دی. [کذا فی روح المعانی][2]

**دَ مذکوره آیت شان نزول:** دَحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه عوف بن مالك اشجعی رضی الله عنه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه زما ځوئی سالم دښمنانو ګرفتار کړو بوتلی تللو. دَهغه مور سخته پریشانه ده ماله څه کول پکار دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه زه تاته او دَ هلك مور ته دا حکم درکوم چه تاسو په کثرت سره لاحول ولا قوة الا بالله لولئی. دې دواړو دَحکم تعمیل اوکړو په کثرت سره ئې دغه کلمه لوستله. دَدې دا اثر اوشو چه کوم دښمنانو هغه هلك قید کړې وو هغوی یوه ورځ لږ شان غافل شو او هلك دَهغوی دَ قید نه په څه طریقه راووتلو او دَهغوی څه چیلئی ئې ځان سره راوشړلې رائی وستلې او خپل پلار له راغلو. بعض روایاتو کښې دی چه دَهغوی یواوښ هغه ته ملاؤشو په هغې سور شو او نور اوښان ئې ځان سره کړل تول ئې پلار له راورسول. دَهغه پلار دَدې خبر سره دَ حضور پاك په خدمت کښې حاضر شو. او بعض روایاتو کښې دی چه دا سوال ئې هم اوکړو چه دا اوښان او چیلئی کوم چه زما ځوئی ځان سره راوستلې دی دا زمونږ دَپاره جائز او حلال دی که نه. په دې باندې دا آیت نازل شو ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ﴾ الایه.[3]

او بعض روایاتو کښې دی چه عوف بن مالك اشجعی رضی الله عنه او دَ هغه بی بی چه کله دَ هلك جدائئ ډیر پریشانه کړل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته دَ تقوی اختیارولو حکم ورکړو. او په دې کښې څه

---

[1] ) روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۶۸]
[2] ) تفسیر روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۶۸]
[3] ) جامع العلوم والحکم لإمام ابن رجب الحدیث التاسع عشر: [ج: ۲۱ ص:٤١]

بعد نشته دي چه د تقوي حکم ئې هم ورکړې وې او په کثرت سره د لاحول ولاقوة الا بالله لوستلو هم.
[دا ټول روايات روح المعاني کښې د ابن مردويه نه من طريق الكلبي عن ابي صالح عن ابن عباس رضي الله عنه نقل کړې شوي دي.] (١)
د دې شان نزول نه دا خبره هم معلومه شوه سره د دې چه په دې مقام باندې دا آيت طلاق سره تعلق لرونکې سرې او ښځې سره متعلق راغلې دې مګر د دې مفهوم عام دې ټولو ته شامل دې.
**مسئله:** د دې حديث نه دا هم ثابت شو چه که يو مسلمان د کافرانو قيد کښې راشي او هغه د هغوی نه څه مال راوړي راشي نو دا مال په حکم د مال غنيمت کښې دې او حلال دې او مال غنيمت د عام قاعدې مطابق د هغې پنځمه حصه بيت المال کښې ورکول هم د هغه په ذمه نه دي لکه چه د حديث په واقعه کښې د هغه مال نه خمس وانخستې شو. او د هغه ځائی نه د کافرانو څه مال په زور واخستلو يا په څه طريقه ئې راوړلو راغلو او دار الاسلام ته راورسي نو د هغې هم دغه حکم دې.
ليکن کوم سړې چه د کافرانو نه امان او اجازت واخلي د هغوی ملك ته لاړشي لکه نن صبا چه د ويزې اخستو رواج دې نو د هغه د پاره جائز نه دي چه د هغوی څه مال بغير د اجازت نه او د هغوی د رضامندئي نه راوړي. دغه شان کوم سړې چه قيد شي د هغوی ملك ته لاړشي بيا د کافرانو نه يو سړې د هغه سره څه امانت کيږدي نو د دغه امانت راوړل هم حلال نه دي. په ړومبی صورت کښې خو د هغه د پاره امان اخستلو سره تللو کښې د هغوی په مينځ کښې معاهده او شوه اوس بغير د هغوی د رضامندئي د هغوی په خان او مال کښې د څه قسم تصرف کول د وعدې په ماتولو کښې داخل دي. او په دويم صورت کښې هم د امانت ساتونکی سره عملي معاهده کيږي چه کله ئې هغه غواړي امانت به هغه ته ورکولې شي. اوس امانت نه واپس کول بدعهدي او عهدشکنی ده کوم چه شرعاً حرام دي. [مظهري] (٢)
رسول الله ﷺ سره به د هجرت نه وړاندې ډيرو کافرانو خپل امانتونه کيخودل. د هجرت په وخت د حضور پاك په قبضه کښې څه داسې امانتونه وو هغه حضور پاك خپل خان سره رانوړل بلکه حضرت علي رضي الله عنه ئې د دغه کار د پاره خپل شاته پريخودلو چه د چا چا امانتونه دي هغوی ته واپس کړه.
**د مقصود حصول يو مجرب نسخه:** په مذکوره حديث کښې رسول الله ﷺ عوف بن مالك رضي الله عنه ته د مصيبت نه د خلاصي او د حصول مقصد د پاره دا تلقين اوکړو چه په کثرت سره لاحول ولاقوة الا بالله لوله. حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله فرمائيلي دي چه د ديني او دنياوي هر قسم مصيبت او تکليف نه د بچ کيدو د پاره او د منافع او مقاصد د حاصلولو د پاره د دې کلمې په کثرت سره وئيل ډير مجرب عمل دې او د دغه کثرت مقدار حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله دا خودلي دې چه روزانه پنځه سوه ځل دا کلمه لاحول ولاقوة الا بالله لولئی او سل سل ځل درود شريف اول او آخر کښې لوستلو سره دې د خپل مقصد د پاره دعا کوي. [تفسير مظهري] (٣) او امام احمد، حاکم، بيهقي، ابونعيم رحمهم الله وغيره د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت کړې دې او حاکم د دې اسناد ته صحيح وئيلي دي چه رسول الله ﷺ يوه ورځ دا آيت ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا﴾ تلاوت بار بار کولو تردې

(١) تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص: ٦٧]
(٢) تفسير المظهري [ج: ٩ ص: ٣٢١]
(٣) تفسير المظهري [ج: ٩ ص: ٣٢١]

چه ماته خوب راغلو بیانی اوفرمائیل اې ابوذر که ټول کسان صرف دا آیت اختیارکړي نو دټولو دپاره کافي دي. [روح المعاني] (۱) د کافي کیدو مراد ښکاره دي چه د ټولو دیني او دنیاوي امورو او مقاصدو کښې د کامیابئ دپاره کافي دي.

﴿وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ ۚ قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا﴾ یعنی کوم سړي چه په الله تعالی باندې توکل او یقین کوي الله تعالی د هغه د مهماتو دپاره کافي دي. خکه چه الله تعالی خپل کار خنګه چه غواړي پوره کوي. هغه د هر یو څیز یوه اندازه مقرر کړې ده هم د هغې مطابق ټول کارونه کیږي. ترمذي او ابن ماجه د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه نه روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي [لو انکم توکلتم علی الله حق توکله لرزقکم کما یرزق الطیر تغدو اخماصا وتروح بطانا] (۲) یعنی که تاسو په الله تعالی باندې توکل کوئی لکه څنګه چه د هغه حق دې نو بیشکه الله تعالی به تاسو له داسې رزق درکولو لکه چه مرغو او ښناورو ته نې ورکوي چه سحر د خپلو ځالونه نهر اوځي او ماښام د ګې خیټې واپس راځي.

او صحیح بخاري او مسلم کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چه زما په امت کښې به او یا زره کسان بې حسابه په جنت کښې داخلیږي. د هغوي په صفتونو کښې یو دا هم دې چه هغوي به په الله تعالی باندې توکل کونکي وي. [مظهري] (۳)

د توکل معنی دا نه ده چه د الله تعالی پیدا کړې شوي اسباب او آلات پریږدي بلکه مراد دادې چه اسباب اختیاریه دي خامخا اختیار کړي مګر یقین په اسبابو باندې د کولو په ځائې په الله تعالی باندې او کړي چه تر کومې پورې د هغه رضا او اراده نه وي هیڅ یو کار نه شي کیدې. په مذکوره آیت کښې د تقوی او توکل برکتونه بیانولو نه پس نور یو څو احکام د طلاق او عدت یې بیان کړي دي.

﴿وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِن نِّسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ ۚ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ﴾ په دې آیت کښې د طلاق شوې ښځو د عدت نور تفصیل دي په کوم کښې چه د دریو قسم ښځو د عدت د عام قاعده د عدت نه یو خان له حکم ذکر دې.

**د طلاق د عدت متعلق نهم حکم:** په عامو حالاتو کښې د طلاق عدت درې حیضه پوره کیدل دي د کوم بیان چه په سورت بقره کښې شوې دې. لیکن هغه ښځې چاته چه د عمر د زیاتوالي یا د څه بیمارتیا وغیره د وجې نه حیض راتلل بند شوې وي. د غه شان هغه ښځې چاته چه د کم عمرئی د وجې نه تر د غه وخته پورې حیض راتلل شروع شوي نه وي د دوي عدت په مذکوره آیت کښې د دریو حیضو په ځائې درې میاشتې مقرر شوي دي او د حامله ښځو عدت وضع حمل [د اولاد پیدا کیدل] ګرځولې شوې دې که هغه په هرڅو مره ورځو کښې وي. ﴿إِنِ ارْتَبْتُمْ﴾ یعنی که چرې ستاسو شک وي. مراد د شک نه دادې چه اصل عدت د حیض نه شمیرلې شي او د دغه ښځو حیض خو بند وي نو بیا به د عدت شمیر څنګه کیږي دا تردد مراد دې.

---

(۱) تفسیر روح المعاني [ج: ۲۱ ص: ۶۷]

(۲) جامع الترمذي ، ابواب الزهد باب التوکل علی الله (باب فی الزهادة عن الدنیا)[ج:۲ ص:۶۰]

(۳) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۳۲۲] و صحیح البخاري کتاب الرقاق ،باب یدخل الجنة سبعون الفا بغیر حساب و صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب الدلیل علی دخول طوائف من المسلمین الجنة بغیر حساب.

وړاندې بيا د تقوی د فضيلت اوبرکت بيان دې. ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا﴾ يعنې کوم سړې چه د الله تعالی نه ويريږي الله تعالی د هغه په کار کښې آسانې راولی يعنې د دنيا او آخرت کار د هغه د پاره آسانيږي. دې نه پس بيا د طلاق او عدت په احکام مذکوره کښې د پابندئ تاکيد دې ﴿ذَٰلِكَ أَمْرُ اللَّهِ أَنزَلَهُ إِلَيْكُمْ﴾ [دا حکم دې د الله تعالی کوم چه ستاسو طرف ته نازل کړې شوې دې]. دې نه پس بيا د تقوی د يو بل فضيلت بيان دې. ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا﴾ يعنې کوم سړې چه د الله تعالی نه ويريږي نو الله تعالی به د هغه ګناهونه معاف کوی او د هغه اجر به زياتوی.

**د تقوی پنځه برکتونه:** په مذکوره آيت کښې کوم د تقوی د فضائلو او برکتونو بيان راغلې دې د هغې خلاصه پنځه څيزونه دی. ① يو دا چه الله تعالی د متقی د پاره د دنيا او آخرت د مصيبتونو او تکليفونو نه د خلاصی لار راوباسی. ② بل دا چه د هغوی د پاره د رزق داسې دروازې کولاووی د کوم طرف ته چه د هغه خيال هم نه خی. ③ دريم دا چه د هغه په ټولو کارونو کښې آسانی پيدا کوی ④ څلورم دا چه د هغه د ګناهونو کفاره کوی ⑤ پنځم دا چه د هغه اجر زياتوی. او په يو بل ځائې کښې د تقوی دا برکت هم خودلې شوې دې چه د دې په وجه سره هغه ته د حق او باطل په پيژندګلو کښې آسانی کيږي. د آيت ﴿إِن تَتَّقُوا اللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ فُرْقَانًا﴾[1] هم دغه مطلب دې.

وړاندې بيا د طلاق شوې ښځو د عدت او د هغوی د خرچې بيان او د عامو ښځو د حقوقو د اداکولو تاکيد دې. ﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ﴾ د دې آيت تعلق د هغه رومبی حکم سره دې کوم چه پورته راغلې دې چه طلاق شوې ښځې د هغوی د کورونو نه مه اوباسئ. په دې آيت کښې د هغې ايجابی اړخ ذکر کړې شوې دې چه هغوی د عدت پوره کيدو پورې د خپل وس طاقت مطابق د اوسيدو د پاره کور ورکړئ چرته چه تاسو پخپله اوسيږئ هم د دغه کور په يوه حصه کښې اوساتئ. که چرې طلاقه شوې په طلاق رجعی وی نو بيا خو د څه پردې هم ضرورت نشته دې او که چرې طلاق بائن ئې ورکړې وی يا درې طلاقه ئې ورکړې وی نو دغه وخت د نکاح رشته ماته شوې ده هغې له د دغه خاوند نه پرده کول پکار دی په دې وجه د پردې سره هم په دغه کور کښې د اوسيدو انتظام دې اوکړې شی.

**اسم حکم طلاق شوې ښځې د عدت دوران کښې پريشانه کول منع:** ﴿وَلَا تُضَارُّوهُنَّ﴾ د دې مطلب دا دې چه د عدت دوران کښې کله طلاقه شوې ښځه تاسو سره اوسيږي نو پيغورونه او رټنه کولو سره يا د هغې په ضروریاتو کښې کمې کولو سره هغه مه پريشانه کوئ چه هغه په وتلو باندې مجبوره شی.

﴿وَإِن كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ يعنې که طلاقې شوې ښځې د حمل والاوی نو په هغوی باندې تر هغه وخته پورې خرچه کوئ تر کومې چه د هغوی حمل پيدا شوې نه وی.

**يولسم حکم د طلاق شوې ښځو نفقه مسئله:** په دې آيت کښې خودلې شوی دی که چرې طلاق شوې ښځې حامله وی نو د هغوی خرچه تر هغه وخته پورې په خاوند باندې لازم ده تر کومې پورې چه حمل پيدا شوې نه وی. هم دغه شان د طلاق شوې حامله متعلق د پوره امت اجماع ده چه د هغې نفقه د هغې عدت کوم چه وضع حمل دې. د پوره کيدو پورې په خاوند باندې واجب ده. باقی چه کومې مطلقه حامله نه وی که چرې هغې ته طلاق رجعی ورکړې شوې وی يا لکه د خلع وغيره په

---

[1] ترجمه:- که تاسو د الله تعالی نه ويريږئ نو الله تعالی به تاسو د يو فيصلې تميز درکړی.

ذریعه نې خپله نکاح فسخ کړې وي. د دې متعلق امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله او بعض نورو ائمه حضراتو قول دې چه دهغې نفقه په خاوند باندې واجب نه ده او د امام اعظم رحمه الله په نیز دهغې نفقه هم په خاوند باندې لازم ده. دهغوی په نیز لکه څنګه چه حق سکنٰی د ټولو طلاق شوو د پاره واجب دی دغه شان نفقه هم د هر قسم طلاق شوې د پاره واجب ده اودلیل هم دغه آیت دې په کوم کښې چه د عام مطلقاتو د پاره حق سکنٰی ورکول لازم کړې شوی دی. یعنی ﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ﴾ څکه چه هم په دې آیت کښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قراءت دا دې ﴿أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم وَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ مِن وُجْدِكُمْ﴾ اویو قراءت د بل قراءت د پاره مفسر وي.

د دې نه معلومه شوه چه د آیت مذکوره مشهور قراءت په کوم کښې چه لفظ ﴿وَأَنفِقُوا﴾ ذکر نه دې په دې کښې هم دا لفظ محذوف دې. او هغه چه څنګه د ټولو مطلقاتو حق سکنٰی په خاوندانو باندې لازم کړې دې هم دغه شان حق د نفقې هم د عدت د ورځو پورې واجب کړې دې. او د دې تائید د حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه او د نورو ډیرو صحابه کرامو د دې قول سره کیږي چه هغوی د فاطمه بنت قیس رضي الله عنها چاته چه د هغې خاوند درې طلاقونه ورکړي وو د هغوی دا روایت چه رسول الله ﷺ د هغې نفقه د هغې په خاوند باندې لازم کړې نه وه دې ویناکولو سره رد کړو چه مونږ د هغه د دې روایت په وجه باندې کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ نه شو پریخودې په کوم کښې چه د ټولو مطلقاتو نفقه عدت د هغوی په خاوندانو باندې واجب کړې شوې ده. [رواه مسلم][1]

د دې کتاب الله په حواله سره په ظاهره هم دغه آیت مراد دې او د فاروق اعظم رضي الله عنه په نیز د آیت په مفهوم کښې نفقه هم داخل ده او د سنت نه مراد هغه حدیث دې چه پخپله د عمر بن خطاب رضي الله عنه نه طحاوي، دارقطني او طبراني روایت کړې دې. عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمائیلي دي چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چه حضور پاك په دریو طلاقو سره طلاق شوې د پاره هم نفقه او سکنٰی واجب کړې ده([2]).

خلاصه داده چه د حمل والا ښځو د عدت نفقه خو صراحتًا د دې آیت واجب او ګرخوله په دې وجه په دې باندې د امت اجماع ده. دغه شان مطلقه رجعیه چونکه تر دغه وخته پورې لا نکاح ماته نه ده د هغې نفقه هم په اجماع سره واجب ده. د مطلقه بائنه یا ثلثه وغیره معامله باره کښې د امت په فقهاؤ کښې اختلاف دې. د امام اعظم رحمه الله په نیز د دې نفقه هم واجب ده. د دې پوره تفصیل هم د دې آیت لاندې تفسیر مظهری کښې کتلې شي([3]).

﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ یعنی طلاق شوې ښځې که حامله وي او بیا په حمل سره بچې پیدا شو نو د هغې عدت خو وضع حمل سره پوره شو. په دې وجه د هغې نفقه په خاوند باندې لازم پاتې نه شوه مګر چه کوم بچې پیدا شوې دې که چرې دغه طلاقه شوې مور هغه ته پیښې ورکوي نو د پیښو څکولو معاوضه اخستل او ورکول جائز دي.

**دولسم حکم:** د رضاعت یعنی ماشوم ته د پیښوورکولو اجرت، ترکومې چه ښځه د خاوند په نکاح کښې ده هغه وخت ماشومانو ته پیې ورکول پخپله د مور په ذمه ورکول د قرآن په حکم واجب دي.

---

[1] ) صحیح مسلم کتاب الطلاق باب المطلقة البائن لا نفقة لها [ج:۱ص:۴۸۵]
[2] ) سنن الدار قطني رقم الحديث:[۳۹۶۴] و المعجم الكبير للطبراني (باختلاف الالفاظ) رقم الحديث:[۹۵۸۵]
[3] ) تفسیر المظهري [ج:۹ص:۳۲۷]

﴿وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ﴾ (۱) اوكوم كار چه دَهغه په ذمه پخپله واجب وي په هغې باندې معاوضه اخستل دَ رشوت په حكم كښې دى دَ كوم اخستل چه هم ناجائزدى او وركول هم. او ايام عدت هم په دې معامله كښې په حكم دَ نكاح كښې دى ځكه چه دَ ښځې نفقه چه څنګه په حالت دَ نكاح كښې په خاوند باندې لازم ده په عدت كښې هم واجب ده. البته چه كله دَ وضع حمل په ذريعه سره عدت ختم شو او ښځه آزاده شوه نودَهغې نفقه هم په خاوندباندې لازم پاتې نه شوه. اوس كه چرې دا دغه بچى ته پيئى وركوى نو مذكوره آيت دَهغې معاوضه اخستل او وركول جائز اوګرځول.

څلورم حكم: ﴿وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ﴾ دَ اتمار لفظى معنى خپل مينځ كښې مشوره اودَ يوبل خبره قبلولو ده. مطلب دا چه دَ پيئوو ركولو په اجرت كښې زوجينو ته ددې هدايت وركړې شوې دې چه په خپل مينځ كښې جګړه مه راولئ. طلاقه شوې ښځه دې دَعام اجرت نه زيات نه غواړى اوخاوند دې دعام اجرت مطابق وركولونه انكارنه كوى. يوبل سره دې دَ رواداري معامله اوكړى

پنځم حكم: ﴿وَإِن تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ﴾ يعنى كه دَ پيئو وركولو معامله په خپل مينځ كښې مشورې سره فيصله نه شى اويا طلاق شوې ښځه دَ معاوضه اخستلوسره هم خپل بچى ته دَ پيئې وركولو نه انكاراوكړى نو هغه به په زور سره نه شى مجبوره كولې بلكه داسې به ګڼړلې شى چه دَ مور شفقت په بچى باندې دَ تولونه زيات كيدو نه باوجود هغه انكار كوى نو څه واقعى عذر به وى خو كه چرې في الواقع هغې ته څه عذر نه وى صرف دَ غصې او خفګان دَ وجې نه انكار كوى نو دَالله تعالى په نيز به هغه ګناهګاره وى. مګر دَ قاضى عدالت به هغه په پيئې وركولو باندې نه مجبوره كوى. دغه شان كه چرې خاوند ته دَ پيئو څكولو دَ غريبئ په وجه دَ اجرت وركولو طاقت نه وى او يوه بله ښځه بغيردَ معاوضه يا دَ دغه معاوضې نه په كم باندې پيئى وركولوته تياره وى كومه معاوضه چه مطلقه مور غواړى نو خاوند به مجبوره كولې نه شى چه هغه دې دَ دغه مور مطالبه منظور كړى او هم دَهغې نه دې پيئى وركړى بلكه په دواړو صورتونو كښې دَ بلې ښځې نه هغه ته پيئى وركولې شى. اوكه بله ښځه هم دَدغه ښځې هومره معاوضه غواړى څومره چه ئې مور غواړى نودَ خاوند دَپاره دَ فقهاؤ په نيز جائزنه دى چه مور ئې پريږدى او په بله ښځه باندې هم په دغه معاوضه پيئى وركړى.

مسئله: كه دَ بلې ښځې سره دَ پيئو وركولو معامله اوشى نودا ضرورى دى چه دَ پيئو وركونكې ښځه دې دَ هغه مور سره كيخودو سره پيئى وركوى. دَ مور نه جدا ورته پيئى وركول جائزنه دى ځكه چه حضانت يعنى تربيت او په خپله نګرانئ كښې ساتل دَ صحيح احاديثو په رڼا كښې دَ مور حق دې (۲) دَ هغې نه دا حق ختمول جائزنه دى. [تفسير مظهرى] (۳)

شپږم حكم: دَ ښځې دَ نفقې په مقداركښې به دَ خاوند دَ حالت اعتبار كيږى. ﴿لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ ۖ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ﴾ يعنى خرڅ دې كوى دَ وسعت والا سړې دَخپل وسعت مطابق او دَ كوم سړى چه رزق تنګ وى هغه دې دَ خپلې ګنجې مطابق خرڅه كوى. ددې نه معلومه شوه چه دَ ښځې په نفقه كښې به دَ ښځې دَ حالت اعتبار نه شى كولې بلكه دَ خاوند دَ حالت مطابق به

---

(۱) ترجمه:- او ميندې دې خپلو بچو ته دوه كاله مكمل پئ وركړى.
(۲) سنن ابى داود كتاب الطلاق باب الولد للفراش ومن احق بالولد [ج: ۱ ص:۳۱۰]
(۳) تفسير المظهرى [ج:۹ ص:۳۳۰]

نفقه ورکول واجب وی. که چرې خاوند مالدار وی نو دَ مالدارئی والا نفقه ورکول به واجب وی سره دَدې چه ښځه ئی مالداره نه وی بلکه تنګدست اوفقیره وی اوکه چرې خاوند ئی غریب وی نو غریبانه نفقه ورکول دَهغه دَ طاقت مطابق به واجب وی سره دَدې چه ښځه ئی مالداره وی. دَ امام اعظم رحمه الله هم دغه مذهب دې. دبعضې نورو فقهاؤاقوال دَدې خلاف هم دی. [تفسیر مظهری] (۱)

﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا ۚ سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا﴾ دا هم دَهغه تیرې شوې جملې نوره تشریح ده چه الله تعالی چاته دَهغه دَ قدرت اوطاقت نه زیات تکلیف نه ورکوی په دې وجه په نادارہ اوغریب خاوند باندې به هم دَهغه دَحیثیت مطابق نفقه واجب وی کوم حیثیت چه دَهغه دغه وخت دې وراندې ښځې ته په غریبانه نفقه باندې دَ قناعت او دَ صبر دَ تلقین دپاره فرمائی ﴿سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا﴾ یعنی چاله داسې خیال نه دی کول پکار چه په موجوده حالت کښې تنګی ده نودا تنګی به همیشه وی او فراخی خودَ الله تعالی په لاس دَ قدرت کښې ده هغه د تنګنی نه پس فراخی هم ورکولې شی.

**فائده**: په دې آیت کښې دَداسې خاوندانودپاره دَالله تعالی دَ طرف نه دَ فراخئې ملاویدلو طرف ته اشاره ده چه دَ وس مطابق دَ نفقات واجبه دَ پوره کولو کوشش کښې وی. دَ ښځې دَ تنګ ساتلو عادت ئی نه وی. [روح المعانی] (۲) والله سبحانه وتعالی.

وَكَأَيِّنْ | مِّن قَرْيَةٍ | عَتَتْ | عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا | وَرُسُلِهِ
او ډیر وز | دکلونه | اچې مخ ئې واړوز | دحکم درب خپل نه | او درسولانو دهغه نه

او خومره کلی دی چې دخپل رب اود هغه دپیغمبر انو دحکم نه ئې مخ اړولې وو

فَحَاسَبْنَاهَا | حِسَابًا شَدِيدًا | وَعَذَّبْنَاهَا | عَذَابًا نُّكْرًا
پس حساب اوکړومونږه دهغوئ سره | حساب سخت | او عذاب ورکړو مونږ هغوئ له | عذاب ناکاره

نومونږ ورسره سخت حساب اوکړوا او مونږ هغوئ ته ډیره درنه سزا ورکړه

فَذَاقَتْ | وَبَالَ أَمْرِهَا | وَكَانَ عَاقِبَةُ | أَمْرِهَا | خُسْرًا | أَعَدَّ اللَّهُ
پس وې څکلو | عذاب دعمل خپل | او وو انجام | دعمل دهغوئ | نقصان | تیار کړې دې الله

غرض دا چې هغوئ دخپلو کارونوپه سزا کښې راګیر شول اوانجام ئې تاوان وو | الله ﷻ

لَهُمْ | عَذَابًا | شَدِيدًا | فَاتَّقُوا اللَّهَ | يَا أُولِي الْأَلْبَابِ | الَّذِينَ
دپاره دهغوئ | عذاب | سخت | پس اوویریږئ دالله نه | اے خاوندانو دعقلونو | هغه کسانو

د هغوئ دپاره سخت عذاب مقرر کړې دې | نودالله ﷻ نه اوویریږئ اے ئې هوښیارانو | چې

آمَنُوا | قَدْ أَنزَلَ اللَّهُ | إِلَيْكُمْ | ذِكْرًا | رَّسُولًا | يَتْلُو
چې ایمان مو راوړې دې | نازل کړې دې الله | تاسو ته | نصیحت | یعنی رسول | چې وایئ

ایماندارئې الله ﷻ تاسو ته یو نصیحت [قرآن] رالیږلې دې | ............ او رسول ئې رالیږلې دې

---

(۱) تفسیر المظهري [ج:۹ ص:۳۳۰ و ۳۳۱]
(۲) تفسیر روح المعاني [ج:۲۱ ص:۷۶]

عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ مُبَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
په تاسو باندې | آيتونه دالله | واضحه | دپاره ددې چې راوباسي | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړې دې
تاسو ته دالله ﷻ ښکاره حکمونه بيانوي | د دې دپاره چې کومو کسانو ايمان راوړې دې

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ؕ وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ
او عملونه ئې کړي دي نيک | دتيرونه | رڼا ته | او هغه څوک | چې ايمان راوړي |
او نيک عملونه کوي | هغوی د تيارونه رڼا ته راوباسي | ..............او څوک چې په الله

بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ
په الله باندې | او عمل کوي نيک | داخل به کړي هغه لره | داسې باغونو ته | چې بهيږي به
باندې ايمان راوړي | او دنيکئ کارونه کوي | هغوئ به داسې باغونو ته داخل کړي

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ
لاندې دهغې نه | نهرونه | چې هميشه به وي | په هغې کښې | هميشه | ښه کړي دي الله | هغه لره
چې دهغې لاندې به ولې بهيږي | هميشه به په هغې کښې اوسيږي | بيشکه الله ﷻ به ورته

رِزْقًا ۞ اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ
په لحاظ درزق سره | الله هغه ذات دې | چې جوړ ئې کړل | اوه آسمانونه | او دزمکې دقسم نه
ډير ښه رزق ورکړي | الله ﷻ هغه ذات دې چې اووهٔ آسمانونه ئې پيدا کړي دي | او د

مِثْلَهُنَّ ؕ يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْۤا
په مثل دهغې | نازليږي حکم | په منځ دهغوئ کښې | دپاره ددې چې معلومه شي تاسو ته |
هغې په شان زمکه هم | په دې ټولو کښې دالله ﷻ حکمونه جارئ کيږي | د دې دپاره چې تاسو ته معلومه شي

اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ
چې بيشکه الله | په هر څيز باندې | قادر دې | او بيشکه الله | چاپيره دې | په هر څيز باندې |
چې الله ﷻ په هر څه قادر دې | ..............او د الله ﷻ علم دهر څيز نه

شَيْءٍ عِلْمًا ۞
په لحاظ دعلم سره |
راچاپيره شوې دې

## آسان ترجمه قرآن

او ډير کلي داسې دي، چه هغوی د خپل پروردگار او دهغه د رسول د حکم نه سرکشي اوکړه، نو مونږ د هغوی نه سخت حساب واخستلو، او هغوی ته مو سزا ورکړه، داسې بده سزا چه هغوی مخکښې چرې هم ليدلې نه وه. پس هغوی د خپل عملونو وبال اوڅکه، او د هغوی د عملونو آخري انجام صرف نقصان هو. (او په آخرت کښې) مونږ دهغوی دپاره يو سخت عذاب تيار کړې دې، لهٰذا اے عقل والو چه ايمان مو

راوړي دي. د الله تعالی له وېرې کوئ الله تعالی تاسو ته یو نصیحت رالیږلی دی. یعنی هغه رسول چه تاسو باندې د الله تعالی روښانه آیتونه لولي. دې دپاره چه کومو خلقو ایمان راوړي دي، او نیک عملونه ئې کړي دي، هغوی د تیارو نه اوباسي او رڼا ته ئې راولي. او کوم سړي چه په الله تعالی باندې ایمان راوړي، او نیک عمل اوکړي، الله تعالی به هغه لره داسې باغونو ته داخل کړي چه د هغې لاندې به نهرونه بهیږي، چه هلته به جنتیان خلق همیشه دپاره اوسیږي. الله تعالی د داسې سړي دپاره د بهترین رزق بندوبست کړي دي. الله تعالی هغه ذات دي، چه اووه آسمانونه ئې پیدا کړي دي، او زمکې هم د هغې پشان د الله تعالی حکم ددوی په مینځ کښې نازلیږي، دې دپاره چه تاسو ته معلومه شي، چه الله تعالی په هر څیز باندې پوره قدرت لري، او دا چه د الله تعالی علم په هر څیز باندې احاطه کړي ده.

## خلاصه تفسیر

﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِ﴾ [او ډیرنې کلي وو کوموچه دخپل رب دحکم] منلو [نه او دهغه درسولانو نه مخ واړولو ﴿فَحَاسَبْنَاهَا حِسَابًا شَدِيدًا﴾ پس مونږه دهغوی] دعملونو [سخت حساب وکړو] مطلب داچه ددوی دکفریه عملونو کښې څه عمل ئې معاف نه کړو بلکه په ټولو باندې سزا تجویز کړه دلته دحساب نه تپوس په طور دحساب مرادنه دي ﴿وَعَذَّبْنَاهَا عَذَابًا نُكْرًا﴾ [اومونږ دوی لره ډیره لویه سزا ورکړه] چه دعذاب په ذریعه هلاك كړې شول ﴿فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا﴾ [غرض هغوی دخپلوعملونو وبال وڅکلو ﴿وَكَانَ عَاقِبَةُ أَمْرِهَا خُسْرًا﴾ او ددوی انجام د کارخساره شو] داخو په دنیا کښې وشو او په اخرت کښې ﴿أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا﴾ [الله تعالی ددوی دپاره یوسخت عذاب تیارکړې دې] او هرکله چه انجام دنافرمانۍ دادې ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ [نو اے هوښیارانو کوموچه ایمان راوړې دې دالله تعالی نه اوویرېئ] چه ایمان هم ددې مقتضی دې او ویره داچه اطاعت کوئ او ددې اطاعت دطریقې ښودلو دپاره ﴿قَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا﴾ [الله تعالی تاسو ته یوه نصیحت نامه ولیږله] اوهغه نصیحت نامه ئې درکړه ﴿رَسُولًا﴾ [یوداسې رسول] ئې درولیږلو ﴿يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللَّهِ مُبَيِّنَاتٍ﴾ [کوم چه تاسوته دالله تعالی صفاصفا احکام بیانوی ﴿لِيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ﴾ چه داسې خلقو ته کوم چه ایمان راوړی اوښه عمل وکړی] دکفر اوجهل [دتیارونه] دایمان علم اوعمل [نورطرف ته راولی] مطلب داچه کوم نصیحت ددې رسول په ذریعه راغې په دې عمل کول هم اطاعت دې [او] وړاند په اطاعت یعنی ایمان اوعمل صالح باندوعده ده چه ﴿وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا﴾ [کوم سړې په الله تعالی باند ایمان راوړی اونیك عمل وکړی ﴿يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ الله تعالی به ده لره] دجنت [داسې باغونوته داخل کړی دکومولاندچه به نهرونه بهیږی په هغې کښې به همیشه همیشه وسیږی ﴿قَدْ أَحْسَنَ اللَّهُ لَهُ رِزْقًا﴾ بیشکه الله تعالی] دوی ته ډیر [ښه رزق ورکړو] وړاند دالله تعالی واجب الاطاعت کیدل بیانولې شی یعنی ﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾ [الله تعالی داسې دې کوم چه اووه اسمانونه پیدا کړل اوددې په شان مزکې هم] اووه پیدا کړې لکه چه دترمذی وغیره په حدیث کښې دی چه ډیوې مزکې نه لاندبله دویمه مزکه ده اودغه شان ددویمې نه لاندد دریمه

دغه شان اووه مزكې دي(١) او ﴿يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ﴾ [په دې تولو] اسمانونو اومزكو [كښې] دالله تعالى [احكام] تشريعي يا تكويني يا دواړه [نازليږي] اوداخكه وښودلې شوه ﴿لِتَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [چه تاسوته معلومه شي چه الله تعالى په هرشي قادردي ﴿وَأَنَّ اللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا﴾ او الله تعالى هرشي لره د] خپل [علم په احاطه كښې راګير كړې دي] په دې وجه ظاهرده چه الله تعالى واجب الاطاعت دي

## معارف او مسائل

﴿فَحَاسَبْنَاهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَاهَا عَذَابًا نُّكْرًا﴾ په آيت مبارك كښې ددې قومونو د حساب او عذاب كومه وعده چې بيان شوې ده هغه په آخرت كښې پوره كيدونكې ده ، دلته د ماضي په صيغو د حاسبنا او عذبنا ذكر كولو مطلب داكيديشي چې دا به يقينا كيږي . [ روح ](٢).

او دا هم كيديشي چې د حساب نه مراد دلته سوالونه او تپوسونه وي لكه چې د تفسير په خلاصه كښې اووئيلې شو او دا هم احتمال دې چې حساب به اګر چې په آخرت كښې وي مګر دعملونو په صحيفو كښې ددې ليكل خو شوی دی اوس هم مسلسل دی كيږي . دې نه ئې په حساب كولو سره تعبير اوكړو او د عذاب نه مراد ددنيا عذاب وي چې په ډيرو قومونو باندې نازل شوې دې ، په دې صورت كښې روستو راتلونكې جمله :﴿أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا﴾ به صرف د آخرت د عذاب باره كښې وي .

﴿قَدْ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا﴾ ددې آيت مبارك آسانه توجيه داده چې دلته د ارسل لفظ محذوف اومنلې شي نو معنى به ئې دا وي چې نازل ئې كړو ذكر يعنى قرآن پاک . او وې ليږلو رسول ﷺ . دتفسير په خلاصه كښې دې لره اختيارولو سره تفسير اوكړې شو ، مفسرينو حضراتو نور توجيهات هم ليكلي دی لكه دا چې د ذكر نه مراد پخپله رسول ﷺ دې چې د الله ﷻ د ذكر د ډيروالې په وجه ګويا د نبى كريم ﷺ وجود پخپله ذكر الله جوړ شوې وی وغير ذالک [ روح ](٣).

﴿اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾ ددې آيت مبارک نه خو دومره خبره ښكاره شوه چې د آسمانونو پشان زمكې هم اووه دی ، بيا داووه زمكې چرته او په څه شكل او په څه شان دی ، يو دبل دپاسه قط په قط دی يا د هرې زمكې مقام بيل بيل دې . بيا د قط په قط په صورت كښې د يوې بلې ترمينځه څه خالى ځائې د آسمانونو پشان شته چې په كښې بل څه مخلوق اوسی لكه د آسمانونو ترمينځه چې فرښتې اوسيږي . او كه نه يو بل سره پيوستې لګيدلی دی چې په مينځ كښې ئې خالى ځائې نشته ؟ قرآن پاک ددې هيڅ بيان نه دې كړې د حديث پاک په روايتونو كښې چې كوم بيان راغلې دې دهغې په اكثرو احاديثو كښې د حديث پاک د امامانو اختلاف دې ، څينو ورته صحيح او ثابت وئيلی دی . او څينو ورته موضوعى او د خانه جوړ كړى وئيلی دی . او د عقل تر مخه داټول صورتونه كيديشی . او زمونږ هيڅ دينى يا دنيوى

---

١) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة الحديد[ج:٢ ص:١٦٥]
٢) تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص:٧٧]
٣) تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص:٨٠]

ضرورت په دې تحقیق باندې اړه نه لري نه به زمونږ نه په قبر یا حشر کښې ددې سوال کیږي
چې مونږ نه په دې باره کښې ګنې تحقیقات اوکړو. څکه زیات سالم صورت دادې چې بس په
دې ایمان راؤړو ، یقین اوکړو چې زمکې هم د آسمانونو پشان اوهٔ دی او تولو لره الله ﷻ
پخپل کامل قدرت سره پیدا کړی دی. هم دومره خبره قرآن پاک بیان کړې ده. کومه خبره چې
قرآن کریم ضروری نه ده ګرځولې مونږ دې ولې دهغې په فکر او تحقیق کښې پریوځو. نود
پخوانو بزرګانو په داسې صورتونو کښې هم دا طرز عمل پاتې شوې دې هغوئ ﷺ
اوفرمائیل [ ابهموا ما ابهمه الله ] . یعنی کوم څیز چې الله ﷻ نامعلومه پریخودې دی تاسو هم هغه
نامعلومه پریږدئی. کله چې په هغې کښې تاسو دپاره څه عملی حکم نه وی او تاسو دپاره په
دې کښې څه دینی دنیوی ضرورت نه وی خصوصا دا تفسیر عوامو دپاره لیکلې شوې دې ،
داسې خالص علمی اختلافی بحثونه پدې کښې نه دی راخستې شوی چې دهغې عوامو ته
ضرورت نه وی. ﴿يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ﴾ یعنی دالله ﷻ حکم ددې اووؤ آسمانونو او د اووؤ زمکو
ترمینځه نازلیږي. او دالله ﷻ دحکم دوه قسمونه دی ، یوتشریعی چې دالله ﷻ د مکلف
بندګانو دپاره دوحی په ذریعه د پیغمبرانو ﷺ په واسطه لیږلې شی. لکه په زمکه کښې
انسانانو او پیریانو دپاره دآسمانونو نه فرښتې دا تشریعی حکمونه پیغمبرانو ﷺ ته
راوړی چې په کښې عقیدې ، عبادتونه ، اخلاق ، معاملات او د معاشرت قوانین وی ،
دهغې په پابندئی کولو سره ثواب او په خلاف کولو سره ئې عذاب وی ، دویم قسم تکوینی
حکم دې یعنی د الله ﷻ د تقدیر جاری کولو احکام چې په کښې دمخلوقاتو پیداکول ، د
هغوئ درجه په درجه ترقی په دې کښې کمې ، زیاتې او مرګ او ژوند داخل دی. داحکمونه
دالله ﷻ د تولو مخلوقاتو نه راچاپیره دی څکه که د هرو دوارو زمکو ترمینځه فضاء او فاصله
او په دې کښې د چا مخلوق آبادول ثابت شی اګر چې مخلوق دشرعی حکمونو مکلف نه وی
نو په دې هم ﴿يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ﴾ صادق دې چې ترې د الله ﷻ تکوینی حکم راچاپیره دې ، والله
سبحانه وتعالی اعلم.

تمت سورة الطلاق بعون الله وبحمده فی اخریوم من
جمادی الثانیة ۱۳۹۱هجری یوم الاحد والله الموفق والمعین

آیاتونه ۱۲ — سورة التحريم مكية وهي اثنتاعشرة اية وركوعان — رکوع گانې ۲

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

شروع کوم په نوم د الله چه ډېر مهربان زيات رحم کونکې دې

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ۚ تَبۡتَغِيۡ

اے نبی ﷺ | ته ولې حراموې | هغه څيز | چې حلال کړې دې الله | دپاره ستا | ته غواړې |

ائې نبی! کوم څيز چې الله تعالی ستا دپاره حلال کړې دې | هغه ولې حراموې | ته خپلې بيبيانې

مَرۡضَاتَ اَزۡوَاجِكَ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۝۱ قَدۡ فَرَضَ اللّٰهُ

خوښې [خوشحالی] | دبيبيانو خپلو | او الله | بښونکې | مهربانه دې | بيشکه چې مقرر کړې دې الله

خوشحالول غواړې | او الله تعالی بخښونکې مهربان دې | ............ الله تعالی ستاسو دپاره

لَكُمۡ تَحِلَّةَ اَيۡمَانِكُمۡ ۚ وَاللّٰهُ مَوۡلٰىكُمۡ ۚ وَهُوَ الۡعَلِيۡمُ

دپاره ستاسو | حلالوالې | دقسمونو ستاسو | او الله | مولی [دوست] دې ستاسو | او هغه ښه پوهه دې

قسمونه ماتول مقرر کړې دی | ............ او الله تعالی ستاسو کارساز دې | او هغه [الله] پوهه دې

الۡحَكِيۡمُ ۝۲ وَاِذۡ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعۡضِ اَزۡوَاجِهٖ حَدِيۡثًا ۚ

دحکمت خاوند دې | او کله چې | پټه اووئيله نبی ﷺ | يوې بيبی خپلې ته | يوه خبره |

اوصاحب د حکمت دې | او څه وخت چې پيغمبر د خپلو بعضو بيبيانو سره پټه خبره اوکړه

فَلَمَّا نَبَّاَتۡ بِهٖ وَاَظۡهَرَهُ اللّٰهُ

پس هر کله چې | خبر ورکړو هغې بی بی | په هغه خبرې سره | او ښکاره کړه هغه خبره الله

بياهرکله چې هغې دغه خبره [بلې بی بی ته] ښکاره کړه | ............ او الله تعالی په هغې

عَلَيۡهِ عَرَّفَ بَعۡضَهٗ وَاَعۡرَضَ

په نبی ﷺ خپل باندې | نو نبی ﷺ خبر کړه هغه بی بی | دڅه حصې دهغه خبرې نه | او څنډه ئې اوکړه

باندې پيغمبر خبرو کړو | ...نو پيغمبر دهغې څه حصه ښکاره کړه | او څه حصه ئې ښکاره نکړه

عَنۡۢ بَعۡضٍ ۚ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ قَالَتۡ

دڅه حصې نه | پس هر کله چې انبی ﷺ خبرورکړو هغې ته په دغه راز ښکاره کولو سره انو اووئيل هغې

[بلکه پټه ئې کړه] | بيا چې پيغمبر هم هغې بی بی ته د خبرې خبر ورکړو | نو هغې ورته اووئيل

مَنۡ اَنۡۢبَاَكَ هٰذَا ؕ قَالَ نَبَّاَنِيَ الۡعَلِيۡمُ الۡخَبِيۡرُ ۝۳

چا خبر درکړو تا له | ددې خبرې | اووئيل نبی ﷺ | خبر راکړو ما له | په هر څه پوهه | او دهر څيز نه خبر الله

چې دا حال درته چا اووئيلو ، | پيغمبر اووئيل چې د علم خاوند خبردار [الله تعالی] راته اووئيلو

اِنۡ تَتُوۡبَاۤ اِلَى اللّٰهِ فَقَدۡ صَغَتۡ قُلُوۡبُكُمَا ۚ

که توبه اوباسئ تاسو دواړه | الله ته | نو مائل شوې دی | زړونه ستاسو ددواړو

ائې دواړو بيبيانو که تاسو الله ﷻ ته توبه اوويستله | ...نو ستاسو زړونه هسې هم مائل شوی دی

وَإِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ

اوکه تاسو دواړه امداد اوکړئ ديوې بلې سره | خلاف دهغه | پس بيشکه الله | هم هغه مددګار دهغه دی

اوکه چرې تاسو دواړو د رسول ﷺ خلاف ديو بل مدد اوکړو | نو [ياد ساتئ چې] الله تعالی پخپله

وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ

او جبريل عليه السلام | او صالحه دمومنانو ئې هم مددګاران دی | او فرښتې | روستو ددغه مددګارې نه

او جبريل اونيکان مومنان د هغه مددګاران دی | او ددې نه پس فرښتې هم ددهٔ مددګارې دی

ظَهِيْرٌ عَسٰى رَبُّهٗٓ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُّبْدِلَهٗٓ

مددګارنې دی [دهغه] | الرې نه ده | چې رب دهغه | که نبی طلاق درکړی تاسو له | په بدل کښې ورکړی هغه له

د ا کيديشی چې که پيغمبر تاسو ته طلاق درکړی | نو الله ﷻ به ورته ستاسو په عوض کښې غوره

أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ

ښځې [بيبيانې] | بهتره | ستاسو نه | مسلمانانې | مومنانې | حکم منونکې | توبه ايستونکې

بيبيانې ورکړی | ......................مسلمانانې | مومنانې | فرمان منونکې | توبه ويستونکې

عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّأَبْكَارًا

عبادت کونکې | روژې نيونکې | کونډې | او جينکۍ پيغلې |

عبادت کونکې | روژه دارې | د خاوندانو نه پاتې | او پيغلې |

## آسان ترجمه قرآن

اے نبی علیه السلام اکوم څيز چه الله تعالی ستا دپاره حلال کړې دې، ته د خپلو بيبيانو رضامندی حاصلولو دپاره هغه ولې حراموې؟ او الله تعالی ډير ښخونکې دې، ډير مهربان دې. الله تعالی تاسو لره د قسمونو نه وتلو دپاره طريقه مقرر کړې ده او الله تعالی ستاسو کار ساز دې، او هم هغه دې، چه علم ئې هم کامل دې، او حکمت ئې هم کامل دې. او ياد کړئ، چه کله نبی علیه السلام خپلې يوې بی بی ته د راز په طور سره څه خبره اوکړه بيا چه کله هغه بی بی هغه خبره بل چاته اوونيله او الله تعالی دا خبره په نبی علیه السلام باندې ظاهره کړه، نو هغه دهغې خبرې څه حصه ښکاره کړه، او څه حصه ئې پريخوده پس هرکله چه هغه خپلې بی بی باندې هغه خبره ښکاره کړه نو هغې اوونيل: چه تاته دا خبره چا اوونيله؟ نبی علیه السلام اوونيل چه: ماته هغه ذات اوونيله، چه لوئې علم والا او ډير خبردار دې. (اے د نبی علیه السلام بيبيانو) که تاسو الله تعالی ته توبه اوباسئ، (نو هم دا مناسب ده) ځکه چه ستاسو د دواړو زړونه مائله شوې دی او که د نبی علیه السلام په مقابله کښې تاسو د يو بل مدد اوکړو، نو (ياد اوساتئ چه) د هغه ملګرې الله تعالی دې، او جبرئيل علیه السلام دې، او نيکان مسلمانان دی، ددوی نه علاوه فرښتې د هغه مددګارې دی. که هغه تاسو ته طلاق درکړی، نو نزدې ده چه د هغه پروردګار هغه ته (ستاسو) په بدله کښې داسې بيبيانې درکړی، چه ستاسو ټولو نه به بهترې وی، مسلمانانې، ايمان دارې، تابعدارې، توبه کونکې، عبادت ګذارې او روژه دارې به وی، که مخکښې د هغوی خاوندان وو، او که پيغلې وی.

## خلاصه تفسير

﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ﴾ [اے نبي] ﷺ ﴿لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ﴾ [کوم شی لره چه الله تعالی تا ﷺ دپاره حلال کړي دي ته] په قسم کولوسره [هغې لره] په خان باند [ولې حراموې] بیاهغه هم ﴿تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ﴾ [دخپلو بیبیانو دخوشحالولو دپاره] یعنی اگرچه دڅه مباح شي پریښودل خو جائزدی او دې پریښودو لره په قسم سره مؤکدکول هم په څه مصلحت سره جائزدی لیکن بیا هم خلاف اولی ده خصوصا هرکله چه دهغې داعی هم ضعیف وی یعنی دبیبیانو رضاحاصلول په داسې کارکښې په کوم کښې چه ددوی راضي کول ضروری نه وو ﴿وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ [او الله تعالی بخښنې والا مهربان دې] چه ګناه هم معاف کوی اوتاخو څه ګناه نه ده شوې په دې وجه داعتاب نه دی بلکه په شفقت اورافت سره ورته ونیلې شی چه تایوه جائزه نفع پریخودې ولې دې خان په تکلیف کړو اوچونکه دوی قسم کړې وو په دې وجه په عام خطاب سره دکفارې د قسم ورکولو په نسبت ارشاد فرمائی چه ﴿قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ﴾ [الله تعالی تاسولره ستاسو دقسمونوماتولو] یعنی دقسم ماتولو نه پس د هغې کفارې طریقه [مقرر فرمائیلې ده ﴿وَاللَّهُ مَوْلَاكُمْ﴾ او الله تعالی ستاسوکارساز دې ﴿وَهُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ﴾ اوهغه لوئ پوهه لوئ حکمت والا دې] په دې وجه هغه په خپل علم اوحکمت سره ستاسو مصلحتونه اوضرورتونه پیژنی په تاسودیروګرانواسانولو طریقې مقرروی چنانچه دکفارې په ذریعه ئې دقسم د پابندئ دتکلیف علاج وکړو [او] وراند بیبیانو ﷺ ته اوروی چه هغه وخت دیادولوقابل دې ﴿وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا﴾ [کله چه پیغمبر] ﷺ [خپلې یوې بی بی ته په پټه یوه خبره وفرمائیله] هغه خبره داوه چه زۀ به بیاشات نه څښنم مګرچه ته څه وایه مه ﴿فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ﴾ [بیاهرکله چه هغې بی بی هغه خبره] بلې بی بی ته [وښودله ﴿وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ﴾ اوپیغمبر ته الله تعالی] په ذریعه دوحی [ددې خبرورکړو ﴿عَرَّفَ بَعْضَهُ﴾ نو پیغمبر] ﷺ دغې ظاهرونکی بی بی ته [لږه شان خبره خوروښوده] چه تازماداخبره بلې ته کړې ده ﴿وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ﴾ [اولږه خبره ئې پریښوده] یعنی ددوی دکرم انتهادومره ده چه ددوی ﷺ دحکم نه چه کومې بی بی خلاف کړې وو هغې ته ئې چه شکایت کولو نو دشکایت په وخت کښې ئې هم دهغې کړې خبرې ټول اجزاء دوباره بیان نه کړل چه تازماداخبره کړې ده او دادهم ونیلی دی بلکه دځنواجزاؤ ذکرئ وکړو او دځنونه چه کومه بی بی مخاطبه ده ددې ګمان وشی چه دوی ﷺ ته ددومره خبرې خبرشوې دې دزیاتې نه دې شوې نو شرمندګی به ئې کمه وی اوداپه تفسیر ددې دواړو تکړو کښې دټولونه اسان تفسیردې ﴿فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ﴾ [پس هر کله چه پیغمبر] ﷺ [هغې بی بی ته هغه خبره وښوده ﴿قَالَتْ مَنْ أَنْبَأَكَ هَٰذَا﴾ نو هغې ووئیل چه تاسوچا ددې نه خبر کړئ ﴿قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ﴾ دوی ﷺ وفرمائیل چه مالره لوئ پوهه لوئ خبرلرونکی] یعنی الله تعالی [خبردارکړو] دائ بیبیانو ته شایدڅکه واوروله چه دنبی کریم ﷺ په ټول راز خبریدل واوری ددوی ﷺ په کریمانه معامله سره په خپلې کارروائی زیاتې شرمنده شی او توبه وکړی چنانچه وراند په خپله بیبیانو ته دتوبې وغیره خطاب دې چه ﴿إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ﴾ [اے] دپیغمبر ﷺ [دواړو بیبیانو که تاسودالله تعالی په وړاند توبه وکړئ نو] غوره ده څکه چه مقتضی دتوبې موجود ده هغه داچه ﴿فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا﴾ [ستاسو زړونه] دې طرف ته [مائل کیږی] چه دنورو بیبیانو نه واوری تاسوخپلې

کړي اوګویاداکار په اعتبارددې چه اصل مقتضي ددې حب رسول ﷺ دې قبیح نه دې لیکن چونکه په دې کښې دنورو دحقونو تلف کیدل او زړه ماتیدل لازمیږي اومستلزم د قبیح قبیح دې په دې اعتبار سره قبیح اوموجب دتوبې دې ﴿وَإِن تَظَٰهَرَا عَلَيْهِ﴾ [اوکه چرې] دغه شان [دپیغمبر] ﷺ په مقابله کښې تاسو دواړه کارویئ کوئ نو] یادساتئ چه ﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ مَوْلَىٰهُ﴾ [دپیغمبر] ﷺ ملګرې الله تعالی دې ﴿وَجِبْرِيلُ﴾ اوجبرئیل] ﷺ [دې ﴿وَصَٰلِحُ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ اونیك مسلمانان دی ﴿وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ﴾ اوددې نه علاوه فرښتې] ددوی ﷺ [مددګاري دی] مطلب داچه ستاسو په دې سازشونو سره دوی ﷺ ته هیڅ ضررنه رسي بلکه ستاسوخپل ضرردې ځکه چه دچاحامي داسې وي دهغه دمزاج خلاف کار روایانو کولو انجام خوظاهره ده چه دبدونه بد وي اوچونکه په ځنواسبابودنزول کښې دحضرت عائشې ؓ اوحفصې ؓ نه علاوه نورې بیبیانې هم شریکې دې لکه حضرت سوده ؓ اوصفیه ؓ په دې وجه وړاند په صیغه دجمع سره خطاب فرمائی چه تاسو داوسوسه په زړه کښې مه راولئ چه سړی ته خو اخر بیا هم دبیبیانوضرورت وي اوزمونږنه غوره بیبیانې به چرته وي په دې وجه به زمونږه تولې خبرې خامخابرداشت کوی پس په دې پوره پوهه شئ چه ﴿عَسَىٰ رَبُّهُۥٓ إِن طَلَّقَكُنَّ﴾ [که پیغمبر] ﷺ [تاسوټنځولره طلاق درکړي نو دده پروردګاربه ډیر زرستاسو په بدله کښې دوی ﷺ ته تاسو نه ښې بیبیانې ورکړی ﴿مُسْلِمَٰتٍ﴾ کومې چه مسلمانانې ﴿مُّؤْمِنَٰتٍ﴾ ایمانداري ﴿قَٰنِتَٰتٍ﴾ فرمانبرداری کوونکې ﴿تَٰٓئِبَٰتٍ﴾ توبه کوونکې ﴿عَٰبِدَٰتٍ﴾ عبادت کوونکې ﴿سَٰٓئِحَٰتٍ﴾ روژه لرونکې ﴿ثَيِّبَٰتٍ وَأَبْكَارًا﴾ څه کونډې اوڅه جینکئ وي] په ځنومصلحتونو سره کونډه هم ښه وي لکه تجربه سلیقه هم عمری وغیره شو په دې وجه دائ هم په اوصافودرغبت کښې شمیر کړل.

## معارف او مسائل

**د آجونو دتحریم د نازلیدو واقعه** :: صحیح بخاری وغیره کښې د عائشه صدیقه ؓ نه منقول دی چې د نبی کریم ﷺ معمول شریف دا وو چې د مازیګر نه پس به په ولاړې ولاړې د تولو بیبیانو د خبر اخستو دپاره تشریف راوړلو ، یو ځل ددغې معمول نه زینب ؓ سره زیات ایسار شو او شات ئې اوڅکل نو زمارشک راغلو او ما حفصې ؓ سره مشوره اوکړه چې په مونږ کښې د چا خواته هم چې نبی کریم ﷺ تشریف راوړی هغه دې داسې اووائی چې ائې نبی کریم ﷺ تاسو مغافر څکلی دی مغافر یو خاص قسم جاؤله ده چې بدبوئی لری نو هم دغسې اوشو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ما خو شات څکلی دی ، دغې بی بی اووئیل چې کیدیشی چې مچئ دمغافرو په ونه باندې ناستې وی اود هغې اوبه ئې رابنکلې وی ، ځکه چې شاتو کښې هم بدبوئی راغله نبی کریم ﷺ بۀ د بدبوئی نه ډیرزیات ځان ساتلو ځکه نبی کریم ﷺ قسم اوکړو چې زۀ به بیا شات نه څکم او په دې خیال سره چې دَ زینب ؓ زړۀ خفه نشی ددې خبرې د پټولو تاکید ئې اوفرمائیل خو دغې بی بی بلې ته اووئیل او د ځینې روایتونو ترمخه حفصه ؓ شات څکوونکې وه . او عائشه ؓ ، سوده ؓ او صفیه ؓ صلاح مشوې کوونکې وې او په ځینې روایتونو کښې دا قیصه بل شان هم راغلې ده کیدیشی چې دا ګترې

واقعې وی او دهغې تولونه پس دا آيتونه مبارک نازل شوی وی [د بيان القرآن نه] (۱).

ددې آيتونو خلاصه داده چې په دې واقعه کښې چې نبی کريم ﷺ دَ قسم په ذريعه حلال څيز يعنی شات خوړل څکل په ځان باندې حرام کړی وو داکار کله چه دَ ضرورت او مصلحت په وجه وی نو جائزدې ګناه نه ده مګر په دې واقعه کښې ضرورت داسې نه وو چه دَهغې په وجه دوی ﷺ خپله يو تکليف اوچت کړو صرف د بيبيانو د زړه ساتلو دپاره ئې داسې کړی وو چې په دغه معامله کښې ئې زړه ساتل ضروری نه وو، ځکه الله ﷻ ورته دَ شفقت او مهربانئ له مخې داسې اوفرمائيل چې

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَ ۖ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَٰجِكَ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ دې آيت مبارک کښې د قرآن پاک دعام انداز مطابق نبی کريم ﷺ په خپل نوم مبارک سره مخاطب نه کړې شو بلکه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ﴾ په لقب سره ئې مخاطب کړو چې ورته خصوصی عزت ورکول دی. او بيا ئې اوفرمائيل چې دخپلو بيبيانو د رضا لټولو په خاطر تاسو ﷺ پخپل ځان باندې حلال څيز ولې حراموئی، دا کلام اګر چې د شفقت په وجه اوشو خو صورت د جواب طلبئ وو، دهغې نه دا خيال پيدا کيدې شو چې نبی کريم ﷺ نه به څه غټه غلطی شوی وی، ځکه ئې ورسره دا هم اوفرمائيل چې: ﴿وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ که دا ګناه هم وې نو الله ﷻ بخښونکې معافی کوونکې دې.

**مسئله** :: يو حلال څيز په ځان باندې د حراماولو درې صورتونه دی چې تفصيل ئې د سورة مائده د آيت مبارک :: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ طَيِّبَٰتِ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟﴾ (۲) لاندې هم په دې معارف القرآن کښې تير شو بدې. دهغې خلاصه داده چې که څوک يو قطعی حلال څيز لره د عقيدې تر مخه حرام اوګرځوی، نو دا کفر او لويه ګناه ده، او که د عقيدې تر مخه اونه ګنړی مګر بې ضرورته او بې مصلحته ئې په قسم خوړلو سره په ځان حرام کړی نو دا ګناه ده داسې قسم ماتول اوکفاره ئې ادا کول واجب دی. بيان ئې دې نه پس راروان دې، او که د څه ضرورت او مصلحت په بنا ئې داسې اوکړل نو جائز به وی، غوره به نه وی او دريم صورت ئې دادې چې نه ئې عقيده د حرام ګنړلو وی او نه ئې په قسم کولو سره په ځان حرام کړی وی خو په زړه کښې ئې هميشه دپاره د نه کولو قصد په دې نيت اوکړی چې داسې کول د ثواب کار دې نو دا بدعت او رهبانيت دې چې په شريعت کښې ورته ګناه وئيلې شوې ده، او ګناه ئې بيان شوې ده، البته که څوک ترک دائمی د ثواب په خيال نه بلکه د څه بدنی او روحانی ضرر نه د بچ کيدلو په خيال داسې کوی نو بلاکراهته جائز دی. د ځينو صوفياء کرامو نه چې د خوندناکو څيزونو پريخودو قيصې منقول دي هغه په دې باندې بنا دی.

نبی کريم ﷺ دغه کړې قسم ددې آيت مبارک د نازليدو نه پس مات کړو اودهغې کفاره ئې ادا کړه. اوددرمنثور درو ايت مطابق ئې يو غلام دقسم په دغې کفاره کښې آزاد کړو [بيان القرآن] (۳).

---

۱) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۱۲ ص:۱۸] و صحيح البخاري كتاب الطلاق ،باب لم تحرم ما احل الله لك [ج:۱ص:۷۲۹] و صحيح مسلم كتاب الطلاق، باب وجوه الكفارة ..... إلخ [ج:۱ص:۴۷۸]

۲) ترجمه:- اې ايمان والوا الله تعالی چې کوم څيزونه ستاسو دپاره حلال کړی دی هغې کښې لذت والا څيزونه مه حراموئی.

۳) الدرالمنثور [ج:۱۴ ص:۵۷۰] و تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۱۲ ص:۲۰]

﴿قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ﴾ يعنى چرته چې قسم ماتول ضروري يا ښه کار وي نو په داسې صورت کښې د قسم ماتولو د پاره کفاره ادا کول دي، دا بيان په نورو آيتونو کښې په تفصيل سره بيان شوې دې.

﴿وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا﴾ يعنى کله چې نبى کريم ﷺ خپلې يو بى بى ته د راز خبره اوکړه هغه د راز خبره صحيح او د اکثرو روايتونو ترمخه دا وه چې نبى کريم ﷺ زينب رضي الله عنها سره کوم شات چې اوڅکل او نورو بيبيانو ته دا ناخوښه وه. نو نبى کريم ﷺ د شاتو خوړلو څکلو نه قسم اوکړو خو دا ئې اوفرمائيل چې په دې څوک خبر نه شي هسې نه چې زينب رضي الله عنها خفه شي. مګر دغې بى بى رضي الله عنها دغه راز بلې ته ښکاره کړو چې ذکر ئې په راتلونکي آيت مبارک کښې دې، ددې راز د خبرې باره کښې په نورو روايتونو کښې نور هم څيزونه منقول دي. خو په اکثرو او صحيح روايتونو کښې هم دا دى کوم چې اوليکلې شو.

﴿فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ وَأَظْهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ﴾ يعنى کله چې دغې بى بى رضي الله عنها د راز دغه خبره بلې بى بى ته اووئيله. او الله ﷻ په دې باندې نبى کريم ﷺ خبر کړو چې دغې بى بى رضي الله عنها ستاسو ﷺ راز ښکاره کړو نو نبى کريم ﷺ دغې بى بى رضي الله عنها ته د راز ښکاره کولو شکايت اوکړو خو پوره ئې خبره ښکاره نه کړه. دا د نبى کريم ﷺ خوش اخلاقي او مهرباني وه چې هسې نه په پوره خبرې ښکاره کولو سره دغه بى بى شرمنده شي، قرآن پاک دا بيان اونکړو چې کومې بى بى رضي الله عنها کومې ته د راز دغه خبره ښکاره کړه خود حديث پاک د اکثرو روايتونو نه معلومېږي چې د راز خبره حفصه رضي الله عنها ته فرمائيلې شوې وه نو هغې عائشه رضي الله عنها ته اوکړه. [په حواله د صحيح بخاري په روايت د ابن عباس رضي الله عنهما چې بيان ئې دې پسې راروان دې].

دحديث پاک په څينو روايتونو کښې راغلي دي چې په دې راز ښکاره کولو باندې نبى کريم ﷺ حفصه رضي الله عنها ته د طلاق ورکولو اراده اوفرمائيله. خو الله ﷻ د جبرائيل عليه السلام په رالېږلو سره هغوئ ددغې طلاق ورکولو نه منع کړل او وې فرمائيل چې ډېره مونځ ګزاره ده او ډېره روژه داره ده او په جنت کښې ددې نوم ستاسو په بيبيانو کښې ليکلې دې. [مظهري][1].

﴿إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا﴾ کله چې د نبى کريم ﷺ دوؤ بيبيانو د نبى کريم ﷺ د شاتو څکلو په صورت کښې په مشورې سره داسې رويه اختيار کړه چې نبى کريم ﷺ دشاتو خوړلو څکلو نه قسم اوکړو بيا نبى کريم ﷺ ددې راز پټ ساتلو دپاره اوفرمائيل چې هغسې اونه کړې شو بلکه يو بلې ته راز ښکاره کړو، ددې دوؤ بيبيانو متعلق په صحيح بخاري وغيره کښې د ابن عباس رضي الله عنهما يو اوږد روايت منقول دې. هغوئ رضي الله عنه فرمائي چې د ډېرې زمانې پورې زما زړه دا غوښتل چې ددغې دوؤ بيبيانو باره کښې د عمر بن خطاب رضي الله عنه نه معلومات حاصل کړم دکومو باره کښې چې قرآن پاک فرمائي چې: ﴿إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللّٰهِ﴾ تر دې چې يو موقعه داسې راغله چې عمر فاروق رضي الله عنه حج دپاره روان شو، زه ورسره هم په سفر کښې شريک شوم. په دغې سفر کښې يو ورځ عمر فاروق رضي الله عنه صحرا ته د حاجت پوره کولو دپاره

---

[1]) تفسير المظهري: ج: ۹ ص: ۳٤۰] تفسير سورة الطلاق، و مسند البزار (بإختلاف) رقم الحديث: [۸٤۰۱] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: [۱۵۳۲۲]

اووتو چې صحرا ته راغلو نو ما هغوئ ﷺ د پاره د اوبو انتظام کړې وو. ما د هغوئ ﷺ په لاسونو باندې اوبه اچولې او په دغې حالت کښې مې ترې سوال اوکړو چې دغه دوه بيبيانې کومې دې د کومو باره کښې چې قرآن کريم کښې نازل شوی دی چې: ﴿إِن تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ﴾، عمر فاروق رضی الله عنه اوفرمائيل چې تعجب دې چې تاسو په دې خبر نه يئ چې دغه دوه بيبيانې حفصه رضی الله عنها او عائشه رضی الله عنها وې، دې نه پس عمر فاروق رضی الله عنه خپله پوره اوږده قصه ددې واقعې باره کښې بيان کړه. چې په دې کښې ئې ددې واقعې د راپيښيدو نه وړاندې ئې څه حالات بيان کړل، ددې پوره تفصيل په تفسير مظهری کښې شته دې[1]. دې آيت مبارک کښې دغې دوؤ بيبيانو ته په مستقل خطاب کولو سره فرمائی چې که تاسو توبه کوی څنګه چې ددې واقعې تقاضا ده چې ستاسو زړونه د حق نه مات شو، ولې چې د نبی کريم ﷺ مينه او د نبی کريم ﷺ رضا لټول دهر مؤمن فرض دی، مګر تاسو دواړو په مشورې سره داسې صورت اختيار کړو چې ورسره دؤی ﷺ ته تکليف اورسيدو، دا داسې ګناه ده چې ترې توبه کول ضروری دی. وريسې فرمائی چې: ﴿وَإِن تَظَاهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلَاهُ وَجِبْرِيلُ﴾ دې کښې ئې دا اوخودل چې که تاسو توبه کولو سره رسول الله ﷺ راضی نه کړو نو دا مه ګڼرئی چې ګنی نبی کريم ﷺ ته به څه نقصان اورسی ولې چې د نبی کريم ﷺ خو الله جل جلاله مولی او کفيل دې، دغسې جبرئيل عليه السلام او ټول نيکان مسلمانان او وريسې ټولې فرشتې د چا په ملګرتيا او امداد کولو کښې چې دا ټول لګيا وی هغه ته څوک څۀ نقصان رسولی شی؟ نقصان او ضرر به ټول هم ستاسو وی، وريسې هم دهغوئ باره کښې فرمائی چې:

﴿عَسَىٰ رَبُّهُ إِن طَلَّقَكُنَّ أَن يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنكُنَّ﴾ دې کښې ددغې بيبيانو ددې خيال جواب دې چې که مونږ ته طلاق راکړې شو نو داسې نورې ښې بيبيانې به کوم ځائې پيدا شی؟ نو ددې ارشاد حاصل دادې چې د الله جل جلاله د قدرت نه څه بهر دی؟ که نبی کريم ﷺ تاسو ته طلاق درکړی نو ستاسو پښان نه بلکه تاسو نه به ښې بيبيانې ورته الله جل جلاله ورکړی. دې نه دا نه لازميږی چې ګنې دغه وخت د دوئ نه زياتې غوره بيبيانې موجودې وې کيديشی چې دغه وخت نه وی خو د ضرورت په وخت کښې نورې ښځې د دوئ نه زياتې غوره جوړې کړې. دې آيتونو کښې څنګه چې خاص د ازواجو مطهراتو دعملونو او اخلاقو د اصلاح او هغوئ ته د ادب او تربيت درکولو بيان وو، وريسې عامو مؤمنانو ته ددې حکم ورکړې شوې دې.

| | |
|---|---|
| آمَنُوا | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ |
| چې ايمان مو راوړې دې | اے هغه کسانو |
| | ائې مومنانو ! |

| النَّاسُ | وَقُودُهَا | نَارًا | وَأَهْلِيكُمْ | أَنفُسَكُمْ | قُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| خلق دی | چې خشاك دهغې | دوور نه | او بال بچ خپل | خانونه خپل | اوساتئ |

خپل ځانونه اوخپل کور والا د هغې اور نه اوساتئ ......... چې دهغې خشاک خلق

[1] تفسير المظهري[ج:۹ص:۳۴۱۰]وصحيح البخاري كتاب النكاح ،باب موعظة الرجل ابنته لحال زوجها [ج:۲ص:۷۸۰، ۷۸۱]

وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ

او کاڼري دي | مقرر دي په هغې باندې | فرښتې | سخت زړه والا | قوت ناكې | چې نافرماني نه كوي

او کاڼري دي | په هغې باندې سخت خويه مضبوطې فرښتې مقرر دي | چې په هيڅ كار كښې د الله ﷻ

اللّٰهَ مَآ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ۝

د الله | په هغې كښې | چې حكم ئې كړې دې هغوئ ته | او كوي هغوئ | هغه كار | چې حكم كولې شي هغوئ ته

نافرماني نه كوي | او هم هغه كار كوي | د كوم چې هغوئ ته حكم كولې شي |

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ ؕ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ

اے هغه كسانو | چې كفر مو كړې دې | عذر مه كوئ | نن ورځ | بيشكه بدله دركړې كيږي تاسو له

اې كافرانو نن ورځ عذر معذرت مه پيش كوئ | تاسو ته خو بس هم دخپلو كارونو

مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

دهغې عمل | چې وئ تاسو | چې كوځ به مو |

سزا دركولې شي |

**آسان ترجمه قرآن**

اے ايمان والو! خپل ځان لره او خپل كور والو لره د هغې اور نه بچ كړئ چه د هغې خشاک به انسانان او كاڼري وي په هغوي باندې ډېر سخت طبعيت والا فرښتې مقررې دي، چه د الله تعالیٰ په هيڅ حكم كښې د هغه نافرماني نه كوي، او هم هغه كوي، د كومې چه ورته حكم كولې شي. اے كفر اختيارونكوا نن معذرتونه مه پيش كوئ تاسو ته به د هغې عملونو بدله دركولې شي، كوم چه تاسو كول.

**خلاصه تفسير**

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ [اے ايماندارو] هركله چه د رسول الله ﷺ بيبيانو لره هم د عمل صالح او اطاعت نه خلاصې نشته لكه چه پورته معلومه شوه او نبي كريم ﷺ هم په دې مامور دې چه خپلو بيبيانو ته نصيحت وكړي او عمل صالح ته ئې اماده كړي نو په باقي ټول امت باندې هم دا فريضه زياته مؤكده شوه چه د خپل اهل وعيال په اصلاح او عملونو او اخلاقو كښې غفلت نه كوي په دې وجه حكم دركړې شو چه ﴿قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا﴾ [تاسو خپل ځانونه او خپل كور والو لره د] دوزخ د [اور نه بچ كړئ] ﴿وَّقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ د كوم خشاك چه بنيادم او كاڼري دي] ځان بچ كول په خپله د احكامو اطاعت كول او كور والو لره بچ كول دوي ته د الله تعالیٰ احكام ښودل او عمل پرې كول په ژبه سره او په لاسونو سره په قدر د امكان كوشش كول دي وړاندې د دغې اور د بل حالت بيان دې چه ﴿عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ﴾ [په كوم چه تندخويه] او [مضبوطې قوي فرښتې] متعين [دي] چه نه هغه په چا رحم كوي او نه څوك د هغو سره مقابله كولې شي چه ځان ترې نه خلاص كړي ﴿لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ﴾ [كومې چه د الله تعالیٰ] نه يوه ذره [نافرماني نه كوي ﴿مَآ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ۝﴾ په څه خبره كښې كوم چه دوي ته حكم كولې شي او څه چه دوي ته حكم وركړې شي هغه] فورا [په ځاى كوي] غرض په دغه دوزخ د اسې فرښتې مقررې دي كومې چه به كافرانو لره په دوزخ كښې داخلې كړي او پريږدي به ئې او دغه وخت به

کافرانو ته وونیلې شي چه ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ﴾ [اے کافرانو تاسونن عذر] اومعذرت [مه کوئ] چه بې فائدې ده ﴿إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ [بس تاسو ته خو دهغې سزا ملاویږي څه چه تاسو] په دنیا کښې [کولو]

## معارف او مسائل

﴿قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ﴾ دې آیت مبارک کښې عامو مسلمانانو ته حکم دې چې د جهنم د اور نه خپل خانونه هم اوساتئ . او خپل بال بچ هم ، بیا دجهنم د اور د هیبتناک سختوالی بیان فرمائی او په آخر کښې دا فرمائی چې څوک ددې جهنم حقدار شی هغه به په څه زور ، طاقت ، جته ، خوشامند و یا رشوت سره د هغې فرشتو د قبضې نه نشی بچ کیدې . کومې چې په جهنم باندې مقرر دی ، او نوم ئې زبانیه دې .

لفظ ﴿أَهْلِيكُمْ﴾ کښې ټول خاندان داخل دې چې په کښې خپله ښځه ، اولاد ، غلامان او وینځې ټولې داخلې دی او لرې نه ده چې ټول وختی نوکران ، چاکران هم د غلامانو او وینځو په حکم کښې وی . په یو روایت کښې دی چې کله دا آیت مبارک نازل شو نو عمر بن خطاب ﷺ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ! د خپلو ځانونو د جهنم نه ساتلو فکر کول خو مې په ذهن کښې راځی خو خاندان د جهنم نه څنګه اوساتو ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د هغې طریقه داده چې الله ﷻ تاسو دکومو کارونو نه منع کړی یئ د هغې کارونو نه دغه ټول منع کړئی . او د کومو کارونو چې ئې حکم کړې دې تاسو دهغې دکولو خپل ټول ټبر ته حکم کوئی نو دا عمل به ئې دجهنم د اور نه خلاص کړې شی . [روح المعانی] [1].

**د خپلې ښځې او اولاد تعلیم او تربیت په هر مسلمان باندې فرض دې** :: فقهاء کرامو اوفرمائیل چې دې آیت نه ثابت شو چې هر سړی باندې لازم دی چې خپلې بی بی او اولاد ته دشرعی فرضو او د حلالو او حرامو د احکامو تعلیم ورکړی . او دا کوشش کوی چې هغوئ پرې عمل هم اوکړی ، یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې الله ﷻ دې په هغه چا باندې رحم اوکړی چې وائی

اې زما ښځې او اولاده ! ستاسو مونځ ، ستاسو روژه ، ستاسو زکوة ، ستاسو مسکین ، ستاسو یتیم ، ستاسو ګاونډی ، امید دې چې الله ﷻ به دا ټول ده سره په جنت کښې یو ځائې کړی ، د ستاسو مونځ ، ستاسو روژه وغیره . فرمائیلو مطلب دادې چې ددې څیزونو خیال لرئ چې دې کښې تاسو نه غفلت رانشی . او د مسکینکم یتیمکم وغیره فرمائیلو مطلب دادې چې ستاسو په ذمه د هغوئ حقونه په خوشئ او پابندئ سره ادا کوئی ، او څینو بزرګانو فرمائیلی دې چې د قیامت په ورځ به د ټولو نه زیات په عذاب کښې هغه څوک وی چې د هغه بال بچ ددین نه جاهل او غافل وی . [روح] [2].

دعامو مؤمنانو د نصیحت نه پس کافر انو ته خطاب دې چې اوس ستاسو کړه وړه ستاسو په مخکښې راځی چې هیڅ عذر مو نه شی قبلولې ، د : ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ﴾ هم دا مطلب ئې دې .

---

[1]) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۱ ص:۱۰۱]
[2]) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۱ ص:۱۰۱]

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا

اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړی دی | توبه اوباسئ |

| ائې مومنانو الله ﷻ ته توبه ریښتینې

إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَصُوحًا عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَنْ يُكَفِّرَ عَنْكُمْ

الله ته | توبه خالصه | نزدې ده | چې رب ستاسو | چې لرې به کړی | ستاسو نه

توبه اوباسئ | ............ امید دې چې ستاسو رب ستاسو گناهونه ستاسو نه لرې کړی

سَيِّئَاتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا

گناهونه ستاسو | او داخل به کړی تاسو | داسې باغونو ته | چې بهیږی به | لاتد دهغې نه |

اوتاسو به داسې باغونوته داخل کړی | ............ چې دهغې لاندې به ولې بهیږی

الْأَنْهَارُ يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا

نهرونه | په هغه ورځ | چې نهٔ به رسوا کوی الله | نبی لره | او هغه کسانو لره | چې ایمان ئې راوړی دی

په هغه ورځ به الله ﷻ نبی ﷺ او د هغه مومنانو ملگری نه شرموی |

مَعَهُ نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ

دهغه سره | نور دهغوئ به | منډې وهی | مخکښې دهغوئ نه | او په ښی طرف دهغوئ | وائی به هغوئ

دهغوی نه به د هغوی رڼرا وړاندې اوښی طرفته روانه وی | ............ اودا به وائی چې

رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا وَاغْفِرْ لَنَا إِنَّكَ

اے ربه زموږه | پوره کړې | دپاره زموږه | نور زموږه | او اوبخښه موږ لره | بیشکه چې تهٔ |

ائې زموږه ربه ؛ دا رڼرا راته تراخره پورې قائمه اوساته | او بخښنه راته اوکړه | بیشکه ته په

عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ

په هر څیز باندې | قادر ئې | اے نبی ﷺ | جهاد اوکړه کافرانو سره | او دمنافقانو سره

هر څه پوره پوره قدرت لرې | ائې پیغمبره ؛ دکافرانو او منافقانو سره جهاد اوکړه

وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۝

او سختی کوه | په هغوئ باندې | او ځائې دهغوئ | دوزخ دې | او ډیر بد ځائې دې دورتلو |

اوپه هغوئ سختی کوه | اودهغوئ تیکانړه دوزخ دی | ............ او هغه ډیر خراب ځائې دې

ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ كَفَرُوا امْرَأَتَ نُوحٍ

بیانوی الله | یو مثال | دپاره دهغه کسانو | چې کفر ئې کړې دی | دښځې دنوح ﷺ |

الله ﷻ کافرانو د پاره د نوح ﷺ دښځې اود لوط ﷺ د ښځې مثال بیانوی

وَامْرَأَتَ لُوطٍ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ

او دښځې دلوط ﷺ | چې وې دواړه | لاتد دنکاح | د دوو بندگانو | دبندگانو زموږ نه | چې نیکان وو

............ هغه دواړه زموږ د بندگانو نه د دوو نیکانو بندگانو په نکاح کښې وې

فَخَانَتٰهُمَا | فَلَمْ يُغْنِيَا | عَنْهُمَا

پس خيانت ئې اوكړو دهغوئ سره | پس دفع نه كړل دغه دواړو خاوندانو | د دغه دواړو ښځو نه |

مګر هغه دواړو ښځو د هغوى [پيغمبرانو] حق ضائع كړو | نو هغه دواړه بندګان د الله په مقابله كښې

مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ

دعذابه دالله نه | هيڅ څيز | او اووئيلې شو دواړو ته | چې ننوزئ | وور ته | دننوتونكو سره |

د هغوئ هيڅ په كار رانغلل او ورته اوونيلې شو چې دنورو داخليدونكو سره تاسو هم دوزخ ته داخل شئ

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ

او بيانوى الله | يو مثال | دپاره دهغه كسانو | چې ايمان ئې راوړې دې | د ښځې | دفرعون |

............او الله ﷻ د مومنانو دپاره د فرعون دښځې مثال بيانوى | ............

اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَنَجِّنِيْ

كله چې اووئيل هغې | اے ربه زما | جوړ كړې | ما لره | دخان سره | يو كور | په جنت كښې | او بچ كړه ما

څه وخت چې هغې دعا اوكړه اچې اے زما ربه ؛ ما ته په جنت كښې خپل خوا كښې يو كور جوړ كړه | او

مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهٖ وَنَجِّنِيْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ

دفرعون نه | او دعمل دهغه نه | او خلاصه كړه ما | دقوم ظالمانو نه |

ما د فرعون او د هغه د عمل نه محفوظ اوساته | او ما دظالمانو نه هم بچ اوساته

وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا

او بيانوى مثال دمريم | دلور دعمران | هغه | چې په حفاظت كښى ئې ساتلې وو | دشرم ځائې خپل

اوبل د مريم مثال بيانوى | چې د عمران لور وه | چې خپله شرمګاه ئې [د زنا نه] بچ ساتلې وه

فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا

پس پوك وهو مونږ | په هغې كښې | دروح خپل نه | او تصديق اوكړو هغې | دحكمونو درب خپل |

نو مونږ [دهغې] په ګريوان كښې خپل روح پوك وهلو | او هغې د خپل رب خبرې

وَكُتُبِهٖ وَكَانَتْ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ

او دكتابونو دهغه | او وه هغه | دحكم منونكو نه |

اوكتابونه اومنل | او هغه د تابعدارو په جماعت كښې وه

## آسان ترجمه قرآن

اے ايمان والو! توبه اوباسئ الله تعالى ته رښتونې توبه لرې دې چه ستاسو پروردګار ستاسو ګناهونه ستاسو نه اورګوى. او تاسو په داسې باغونو كښې داخل كړى، چه د هغې لاندې په نهرونه بهيږى، په هغه ورځ چه كله به الله تعالى نبى عليه السلام لره او هغې خلقو لره چه دهغه سره ئې ايمان راوړې دې، هغوى لره رسوا نه كړى، د هغوى نور به دهغوى نه مخكښې او دهغوى ښې طرف ته منډې وهى هغوى به

وائي چه: اے زمونږ پروردګاره! زمونږ دپاره دا نور مکمل کړه او زمونږ مغفرت اوکړه. یقیناً ته په هر څیز باندې پوره قدرت لرونکې ئې. اے نبی علیه السلام! د کافرانو او منافقانو سره جهاد اوکړه او ددوی په مقابله کښې سخت شه. او ددوی ځائې جهنم دې. او هغه ډیر نکاره ځائې دې. کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، الله تعالٰی دهغوی دپاره د نوح علیه السلام ښځه او د لوط علیه السلام ښځه په مثال کښې پیش کوی. دا دواړه زمونږ د داسې بندګانو په نکاح کښې وې، چه ډیر نیکان وو. بیا دوی د هغوی سره بے وفائی اوکړه نو هغوی دواړه د الله تعالٰی په مقابله کښې ددوی هیڅ بکار رانغلل. او هغې (ښځو ته) اوو ئیلې شو چه نورو داخلیدونکو سره تاسو هم په جهنم کښې داخلې شئ. او کومو خلقو چه ایمان اختیار کړې دې، دهغوی دپاره الله تعالٰی د فرعون د ښځې مثال پیش کوی چه کله هغې وئیلې وو چه: اے زما پروردګاره! زما دپاره خپل ځان سره په جنت کښې یو کور جوړ کړه. او ماته د فرعون او دهغه د عمل نه نجات را کړه. او ماته د ظالمانو خلقو نه هم نجات را کړه. او د عمران لور مریم (لره په مثال کښې پیش کوی) چه هغې د خپل عزت حفاظت اوکړو. نو مونږ په هغې کښې خپل روح پوک وهلو او هغې د خپل پروردګار د خبرو او دهغه د کتابونو تصدیق اوکړو. او هغه په طاعت ګذار خلقو کښې شامله وه.

## خلاصه تفسیر

په دې ایتونوکښې دوزخ نه دبچ کیدو طریقه ښودلې شوې ده اوهغه اهل وعیال ته ښودل دجهنم داور نه دبچ کیدوطریقه ده هغه داده ﴿يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا﴾[اے ایماندارو تاسودالله تعالی په وړاندړښتونې توبه وکړئ] یعنی چه په زړه کښې په ګناه کامله پیښمانی وی او ائنده دهغې نه د ځان بچ کولوپوخ قصدوی په دې کښې ټول احکام ددین فرائض واجبات هم داخل شول چه دهغې پریښودل ګناه ده اوټول محرمات اومکروهات په کښې هم راغلل چه دهغې کول ګناه ده ﴿عَسَىٰ﴾[امید] یعنی وعده ده. ﴿رَبُّكُمْ أَن يُكَفِّرَ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ﴾چه ستاسورب به] ددې توبې په وجه [ستاسوګناه معاف کړی ﴿وَيُدْخِلَكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ اوتاسولره به] دجنت [په داسې باغونوکښې داخل کړی دکومولاندچه به نهرونه بهیږی] او دابه په هغه ورځ وی ﴿يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ﴾[په کومه ورځ چه الله تعالی نبی کریم ﷺ [لره اوکوم مسلمانان چه] دایمان اودین په روسره [ددۀ سره دی هغوی لره به رسوانۀ کړی ﴿نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ﴾ دهغوی نوربه دهغوی په وړاند او دهغوی په ښی طرف منډې وهونکې وی] لکه چه په سوره حدید کښې تیرشوی دی ﴿يَقُولُونَ رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا﴾ اوهغوی به [داسې دعاکوی چه اے زمونږ ربه زمونږ دې نورلره تراخره پورې وساتې] یعنی چې په لاره کښې مړنۀ شی ﴿وَاغْفِرْ لَنَا﴾[اومونږ وبخښې ﴿إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ تۀ په هرشی باندقادریې] او ددې دعا وجه به دا وی چه په قیامت کښې به هرمؤمن ته څۀ ناڅۀ نور ورکړې شی څۀ وخت چه پُل صراط ته ورسیږی دمنافقانو نور به مړشی لکه چه ذکرئ په سوره حدید کښې تیرشوې دې دغه وخت به مؤمنان دادعاکوی چه دمنافقانو په شان چرته زمونږ دانور هم ختم نۀ شی لکه چه داسې په درمنثور[1] کښې دابن عباس رضی الله عنه نۀ دی ﴿يَآأَيُّهَا النَّبِيُّ﴾[اے نبی!] ﷺ ﴿جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ﴾[دکفارو سره] په توره [جهاد کوه اودمنافقانو سره] په ذریعه د ژبې او بیان

---

[1]) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:٤١٦]

جهاد كوه ﴿وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ [او په هغوى سختى كوه ] په دنياكښې خودوى دسزا مستحق شول [او] په اخرت كښې ﴿وَمَأْوٰهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴾ [ددوى ځاى دوزخ دې اوهغه ډيربدځاى دې] وراندې بيان دې چه په اخرت كښې به هرسړى ته خپل ايمان په كار راځى كافر لره دده خپلوانو ايمان دعذاب نه نه شى بچ كولې دغه شان دمؤمن خپلوان او عزيزان كۀ كافران وى نو مؤمن ته به دهغوى نه هيڅ نقصان نۀ رسى

﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ﴾ [الله تعالى دكافرانو] دعبرت [دپاره دنوح] ﷺ [دبى بى اودلوط] ﷺ [دبى بى حال بيانوى ﴿كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ﴾ اوهغه دواړه زمونږ دخاصوبندګانونه ددوه نيكوبندګانو په نكاح كښې وى ﴿فَخَانَتٰهُمَا﴾ پس هغوى ښځو دهغو دواړوبندګانو حق ضائع كړو] يعنى په وجه ددوى دنبى كيدو ددوى داحق هم ووچه ايمان ئې پرې راوړې وې او په دينى احكاموكښې ئې ددوى اطاعت كولې كوم چه هغوى ونۀ كړو ﴿فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا﴾ [نو هغه دواړه نيك بندګان دالله تعالى په مقابله كښې دهغوى هيڅ په كار رانغلل ﴿وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ﴾ اوهغه دواړه ښځوته] په وجه دكافركيدو [حكم وشو چه تاسودواړه] هم [دنورو دوزخ ته دداخليدونكو سره جهنم ته داخلې شئ] تردې پورې دكافرانود عبرت دپاره واقعه بيان شوې وه وراندې د مسلمانانو دعبرت دپاره فرمائى ﴿وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ﴾ [الله تعالى دمسلمانانود] تسلئ د[پاره دفرعون دبى بى] حضرت اسيه [حال بيانوى ﴿اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ﴾ هركله چه دهغۀ بى بى دعا وكړه چه اے زما پروردګاره زما دپاره په جنت كښې په خپل خواكښې مكان جوړكړې ﴿وَنَجِّنِيْ مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهٖ﴾ اوماد فرعون] دشر [نه او دده دعمل] دكفردضرر اواثر [نه محفوظ وساتې ﴿وَنَجِّنِيْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ﴾ اومالره دټولو ظالمانو] يعنى دكافرو خلقو د ظاهرى اوباطنى ضرر نه محفوظ اوساتى او دارنګه مسلمانانو دتسلئ دپاره الله تعالى ﴿وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا﴾ [دعمران دلور حضرت مريم حال بيانوى كومې چه خپل ناموس لره] دحراموا وحلالو دواړو نه [محفوظ وساتلو ﴿فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا﴾ پس مونږ ددې په ګريبان كښې] په واسطه دجبرائيل ﷺ [خپل روح لره پوك وهلو ﴿وَصَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهٖ﴾ او دې دپروردګاردپيغامونو] كوم چه دملائكوپه ذريعه رسيدلى وو [اودهغه دكتابونو] په كوموكښې چه تورات اوانجيل هم دى تصديق وكړو] دابيان دې دهغې دعقيدو ﴿وَكَانَتْ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ﴾ [اوهغه اطاعت كوونكونه وه] دابيان دې ددې دعملونو

## معارف او مسائل

﴿تُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا﴾ د توبې لفظى معنى بيرته راګرځيدل او رجوع كول دى ، مراد د ګناه نه بيرته ګرځيدل دى ، او دقرآن پاك او سنت په اصطلاح كښې توبه ددې نوم دې چې بنده په خپلو كړو ګناهونو باندې پښيمانه شى او په آئنده كښې ئې دنه كولو پوخ قصد اوكړى . او د نصوح معنى خالص كول دى چې د نصح او نصيحت مصدر نه د اخستې شى او كه د نصاحت مصدر نه واخستې شى نو معنى ئې جامه ګنډل او پيوند ورته لګول دى ، نو د رومبئ معنى په اعتبار سره دنصوح معنى به داوى چې هغه د ريا ا ونمائش نه پاك خالص وى ، خالص د الله ﷻ د رضا او دهغه د عذاب نه د ويريدو په خاطر په ګناه باندې پښيمانه كيدو سره دهغې پريخودل اوكړى . او د بلې معنى په اعتبار سره نصوح به دې مطلب دپاره وى چې دنيكو

عملونو جامه چې د ګناه په وجه شليدلې ده نو دا به ئې پيوند شي چې د شليدلو علاج ئې پرې اوشي. حسن بصرى رحمه الله اوفرمائيل چې توبه نصوح داده چې انسان په خپلې تيرې ګناه باندې پښيمانه شي او بيا دهغې نه د آوريدو پوخ قصد اوکړى. او امام کلبى رحمه الله فرمائى چې توبه نصوح داده چې په ژبه بخښنه غواړى ، په زړه کښې پښيمانه وى او خپل بدن او اندامونه په آئنده کښې ددې ګناه نه ساتى.

اوعلى رضي الله عنه نه سوال اوکړې شو چې توبه څه څيز دې ؟ هغوئ رضي الله عنه اوفرمائيل چې په کښې شپږ څيزونه جمع وى. ① پخپل تير شوى خراب عمل باندې پښيمانى.

② د الله ﷻ کوم فرض او واجب چې چانه پاتې وى دهغې قضا راوړل.

③ چې چا نه په ظلم مال اخستې وى هغه واپس کول.

④ په ژبه يا لاس پښو باندې چې چاته ضرر رسولې او تکليف ئې ورسولى وى دهغه نه معافى غوښتل. ⑤ په آئنده کښې ددغې ګناه خواته د نه تلو پوخ قصد او اراده.

⑥ اودا چې څنګه ئې خپل ځان د الله ﷻ په نافرمانئ کولو ليدلې دې اوس خپل ځان د الله ﷻ په فرمانبردارئ کولو اووينى. [مظهرى] ([1]).

﴿عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ﴾ د عسى لفظ ترجمه اميد ده خو دلته ترې مراد وعده ده ، هر کله چې دا وعده په لفظ د اميد سره بيان کړه نو دې طرفته ئې اشاره اوکړه چې توبه وى اوکه د انسان نور نيک عملونه وى دهغې څخه هيڅ يو هم د جنت او بخښنې قيمت نشى جوړيدې. او نه د انصاف تر مخه په الله ﷻ باندې دا لازميږى چې په نيک عمل سره به څوک ضرور جنت کښې داخلوى. ولې چې د نيکو عملونو يوه بدله خو دانسان په دنيوى ژوند کښې د نعمتونو په ورکولو پوره کړې شوې ده. نو د قانون تر مخه د هغې په بدله کښې ورته جنت ورکول ضرورى نه دى هغه خالص دالله ﷻ په فضل او کرم باندې اړه لرى. لکه په يو حديث پاک کښې نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چې په تاسو کښې صرف د چا نيک عمل ورته خلاصې نشې ورکولې ، صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! تاسو ﷺ ته هم ، نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چې آو. ماته هم. تر څو چې الله ﷻ د خپل فضل او رحمت معامله اونه کړى. [بخارى ومسلم په حواله د مظهرى] ([2]).

﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ﴾ په آخر د سورت کښې الله ﷻ د څلورو زنانو بيان کړې دې. روميښ دوه زنانه د دوؤ پيغمبرانو ﷺ بيبيانې دى چا چې ددين په معامله کښې د خپلو خاوندانو مخالفت کړې وو ، په پټه به ئې د کافرانو او مشرکانو سره مدد کولو. دهغې په نتيجه کښې جهنم ته لاړې. د الله ﷻ د مقبول او غوره پيغمبرانو ﷺ بى بى کيدلو هم هغوئ لره دعذاب نه خلاص نه کړې شو په هغوئ کښې يو د نوح ﷺ بى بى وه چې نوم ئې واغله بيان کړې شوې دې او بله د لوط ﷺ بى بى وه چې نوم ئې والهه بيان کړې شوې دې [قرطبى] ([3])

---

[1]) تفسير المظهري [ج:٩ص: ٣٤٥]

[2]) تفسير المظهري [ج:٩ص: ٣٤٦] و صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب القصد والمداومة على العمل [ج:٢ص:٩٥٧] و صحيح مسلم كتاب صفة المنافقين ، باب صفة القيامة .... إلخ باب لن يد خل احد الجنة.... إلخ [ج:٢ص:٣٧٦]

[3]) تفسير القرطبي [ج:١٨ص:٢٠١]

په دې نومونو کښې نور هم مختلف قولونه دی. دریمه هغه زنانه ده چې د ټولو نه د لوئې کافر د خدائۍ دعویدار فرعون بی بی وه خو په موسی علیه السلام باندې ئې ایمان راوړې وو. هغې ته الله تعالی دا درجه ورکړه چې په جنت کښې ئې خپل مقام ورته په د نیا کښې اوخودلو. د خاوند فرعونیت ئې په دغې لار کښې ورته خنډ جوړ نشو. څلورمه مریم بی بی وه چې څوک خاوند ئې نه وو او د ایمان او نیک عملونو په وجه ورته الله ﷻ دا درجه ورکړه چې ورته ئې د پیغمبرئې کمالونه ورکړل اګر چې د جمهور امت په نزد پیغمبره نه وه.

دې ټولو مثالونو دا واضح کړل چې د یو مؤمن ایمان دهغه د یو عزیز کافر په کار نه راځی او د یو کافر کفر دهغه یو مؤمن عزیز ته نقصان نشی رسولې، څکه د پیغمبرانو او د اولیاء کرامو بیبیانې دې نه مغروره کیږی چې د خاوندانو په برکت به هغوئ خلاصې پیداکړی او د چا کافر او فاجر بی بی دې دا فکر نه کوی چې د خاوندانو کفر او بدکاری به ددې د ضرر سبب جوړشی بلکه هر بنده لره د خپل خپل عمل بدله پیدا کول دی.

﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ إِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِي عِندَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ﴾ دا مثال د فرعون د بی بی آسیه بنت مزاحم دې کله چې موسی علیه السلام د جادوګرانو په مقابله کښې کامیاب شو او جادوګران مسلمانان شو نو دغې بی بی خپل ایمان ښکاره کړو. فرعون دې دپاره سخته سزا ورکول تجویز کړه. په څینې روایتونو کښې دی چې هغه لاسونه پښې غزیدلې او څملولې شوه په سینه ئې ورته غټ غټ کاڼړی کیخودل او په څلورو واړ لاسونو او پښو ئې په غټو غټو میخونو باندې زمکې سره اوګندله، په دغې حالت کښې دغې بی بی د الله ﷻ نه دعا اوکړه چې په دې آیت مبارک کښې بیان کړې شوېده. او په څینې روایتونو کښې راغلی دی چې ددې بی بی سزا دا تجویز کړې شوه چې غټ غټ کاڼړی پرې دپاسه راګزار کړې شو نو د هغې د راګزارولو نه وړاندې دغې بی بی دعا اوکړه چې روح ئې پخپله قبض شو، او هغه غټ ګټ ئې په بې ساه بدن راګزار کړې شو. په دعا کښې دغې بی بی دا اوفرمائیل چې ائې زما ربه! پخپل نزدې جنت کښې راله کور جوړ کړې، الله ﷻ ورته په دنیا کښې د جنت دغه کور اوخودلو. [مظهری] (۱)

﴿وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ﴾ د رب د کلماتو نه مراد د الله ﷻ نازلې کړې صحیفې دی چې په پیغمبرانو علیهم السلام باندې نازلیږی او د کتابونو نه مراد مشهور آسمانی کتابونه تورات، انجیل او زبور دی. ﴿وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ﴾ ﴿قَانِتِينَ﴾ د قانت جمع ده. معنی ئې عابد ده چې خپل عبادت اوفرمانبردای همیشه دپاره لری. دا د بی بی مریم صفت دې. د ابی موسی رضی الله عنه په روایت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د نارینوو څینې ډیر کامل او مکمل شوی دی مګر د زنانوو نه صرف آسیه د فرعون بی بی او مریم بنت عمران کاملې شوې وې. [بخاری ومسلم په حواله د مظهری] (۲). ښکاره دادی چې دې نه مراد د پیغمبرئې کمالونه دی چې سره د زنانه والی نه ورته حاصل شو. [مظهری] (۳) والله اعلم.

تمت سورة التحريم بعون الله وحمده في غره رجب ۱۳۹۱هجرى يوم الثلثآء [الحمدلله پاره نمبر ۲۸ ختمه شوه]

---

۱) تفسير المظهري [ج:۹ص:۳۷۴]
۲) تفسير المظهري [ج:۹ص:۳۸٤] و صحيح البخاري كتاب المناقب ،باب فضل عائشة رضى الله عنها [ج:۱ص:۵۳۲] او صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب فضل خديجة رضي الله عنها [ج:۲ص:۲۸۳]
۳) تفسير المظهري [ج:۹ص:۳۸٤]

| اياتونه | سورة الملك مكية وهي ثلثون اية وفيها ركوعان | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳۰ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ۲ |

تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

ډير بركت والا دي | هغه ذات | چي په لاس دهغه كښي | بادشاهي ده | او هغه | په هر څيز باندي |

دلوئي بركت خاوند دي | هغه [الله ﷻ] چي په لاس كښي ئي ټوله بادشاهي ده | او هغه په هر څه

قَدِيْرُ ۨ ۝١ الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ

قادر دي | هغه [الله] | چي پيدا ئي كړو | مرګ | او ژوند | دپاره ددي چي وازمائي تاسو |

قادر دي | [الله ﷻ] هغه ذات دي چي مرګ او ژوند ئي پيدا كړي دي | چي په تاسو امتحان اوكړي

اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ۝٢

چي كوم يو له تاسو نه | زيات ښه دي | په لحاظ دعمل سره | او هغه غالب دي | بخښونكي دي |

چي په عمل كښي څوک ښه دي | ...................... او هغه ډير غالب ډير بخښونكي دي

الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ۭ مَا تَرٰى فِيْ خَلْقِ

هغه [الله] | چي پيدا ئي كړل | اوه آسمانونه | لاندي باندي | او به نهويني ته | په جوړښت |

هغه ذات دي چي اوه آسمانونه ئي لاندي باندي پيدا كړل | ته به د رحمان [الله ﷻ] په جوړښت كښي

الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ ۭ فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ هَلْ تَرٰى

درحمن كښي | څه خلل [بې ربطي] | واپس اوګرزوه | نظر [خپل] | ايا وينې ته |

هيڅ فرق اونه ويني | ...................... نو ته [آسمان طرف ته] بيا اوګوره | چي څه خلل درته ښكاري ؟

مِنْ فُطُوْرٍ ۝٣ ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ اِلَيْكَ الْبَصَرُ

څه چاؤد دي [خرابتيا] | بيا اوګرزوه | نظر | دوه دوه ځلي | واپس به راشي | تاته | نظر |

...... بيا په بار بار اوګوره | سترګي به دي ذليلي او ستومانه واپس شي اخو په آسمان كښي به

خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِيْرٌ ۝٤ وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاۗءَ الدُّنْيَا

نامراده | او هغه به ستړي ستومانه وي | او بيشكه ښائيسته كړي دي مونږه | آسمان | نژدي |

نقص پيدانه كړي | ...................... او بيشكه مونږ ددنيا آسمان [د ستورو] په چراغونو سره

بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ وَاَعْتَدْنَا

په ډيوو سره | او جوړي كړي دي مونږ دا چراغونه | ويشتونكي | دپاره دشيطانانو | او تيار كړي دي مونږه

ښائسته كړي دي | او هغه مو د شيطانانو د ويشتلو ذريعه ګرځولي ده | او هغوئ دپاره مو

لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ ۝٥ وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ

دپاره ددوئ | عذاب سوزونكي | او دي دپاره دهغه كسانو | چي كفر ئي كړي دي | درب خپل سره

ددوزخ عذاب تيار كړي دي | ...................... او چا چي د خپل رب نه انكار كړي دي هغوئ دپاره

عَذَابُ جَهَنَّمَ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۝ إِذَا أُلْقُوا فِيهَا

عذاب ددوزخ | او ډیر خراب ځائي دي دورتلو | کله چي اوغورزولي شي | په هغې کښي |

ددوزخ عذاب تیار دي | اوهغه ډیره خرابه تیکانړه ده | څه وخت چي دوئ دوزخ ته غوزار کړي شي

سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا وَهِيَ تَفُورُ ۝ تَكَادُ تَمَيَّزُ

نو وابه وري هغوئ | هغه دوزخ لره | هیبتناك آواز | او هغه به خوټکیږي | نزدي ده | چي شلیږي به

نو ګرزار به ئې اوري | او هغه دوزخ به داسي ویشیږي | چي د ډیره قهره به شلیدو ته نزدي وي

مِنَ الْغَيْظِ ۖ كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ

دغصي نه | هر کله چي اوراوغورزولي شي | په هغې کښي | یوه ډله | نو تپوس به اوکړي دهغوئ نه

............ څه وخت چي یوه ډله ورغورزولي شي | نو محافظي فرښتي به تري

خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ ۝ قَالُوا بَلَىٰ قَدْ جَاءَنَا

خزانچیان ددوزخ | آیا نه وو درغلي تاسو ته | یو یرونکي | نو اوبه وائي هغوئ | هو | راغلي وو مونږ ته

تپوس اوکړي | چي آیا تاسو ته څوک ویرونکي درغلي نه وو؟ | هغوئ به اووائي چي ولي نه ! ویرونکي خو

نَذِيرٌ ۙ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ ۚ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا

یرونکي | خو دروغ اوګڼړو مونږه | اواووئیل مونږه | نه دي نازل کړي الله | هیڅ شئ | نه یئ تاسو | مګر

راغلي وو | خو مونږ دروغژن ګڼړلي وو | اوورته موونیلي وو اچي الله خو هیڅ شئ نازل کړي نه دي | اوتاسو پخپله

فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ ۝ وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ

په ګمراهئ لویه کښي | اواوبه وائي هغوئ | که چري وي مونږه اچي اوریدلي مو | یامو دعقل نه کار اغستلي

لویه ګمراهئ کښي ئي | اودابه هم اووائي چي که چري مونږ اوریدلي وي یا مو دعقل نه کار اخستي وي

مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ ۝ فَاعْتَرَفُوا بِذَنْبِهِمْ ۚ

نو نه به وي مونږه | په ملګرو د وور کښي | پس هغوئ به اومنئ | ګناهونو خپلو لره

نو نن به په دوزخیانو کښي نه وو شامل شوي | ............ نو د خپلو ګناهونو اقرار به اوکړي

فَسُحْقًا لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ ۝ إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ

پس لري والي دي درحمت نه | دپاره دملګرو ددوزخ | بیشکه هغه کسان | چي یریږي

نو د دوزخیانو دپاره دي هلاکت وي | ............ کوم کسان چي د خپل رب نه بې لیدو

رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ۝ وَأَسِرُّوا

درب خپل نه | په غیبو سره | دپاره دهغوئ | بخښنه ده | او اجر | لوئ دي | او که پټوئ تاسو

ویریږي | نو هغوی دپاره بخښنه ده | او لوئي اجر دي | ............ اوکه تاسو خپله خبره پټوئ

قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ ۖ إِنَّهُ عَلِيمٌ

خبره خپله | یا که ښکاره والي کوئ | په هغې سره | بیشکه هغه | خبردار دي |

اوکه ښکاره کوئ یې | ............ هغه [الله] دزړونو په حال ښه عالم دي

بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿۱۳﴾ أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ ۚ وَهُوَ

په خبرو دسينو باندې | آيا نه پوهيږي هغه | چې پيدا كړي ئې دي زړونه | او هغه

آيا هغه به ترې نه خبر نه وي | ........................ چا چې پيدا كړي دي | او هغه

اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿۱۴﴾ هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ

باريك ليدونكې دي | خبردار دي | هغه خو هغه ذات دي | چې جوړه ئې كړه | ستاسو دپاره

دير باريك بين په هرڅه خبر دي | ........................ الله ﷻ هغه ذات دي چا چې تاسو دپاره زمكه

الْأَرْضَ ذَلُولًا فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ ۖ

زمكه | تابع | پس ګرځئ | په اطرافو [سينه] ددې كښې | او خورئ | درزق دهغه نه

داستعمال قابله جوړه كړه | ددې دپاره چې تاسو ددې په لارو كښې تګ راتګ كوئ | او دالله د رزق نه خورئ

وَإِلَيْهِ النُّشُورُ ﴿۱۵﴾ ءَأَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ

اوخاص هغه ته | دوباره ژوندي راپاسيدل دي | آيا په امن كښې يئ تاسو | دهغه ذات نه | چې په آسمان كښې دي

او هغه [الله] ته بيا پيش كيدل دي | آيا تاسو ددې نه بې غمه يئ | چې څوك په آسمان كښې دي

أَنْ يَخْسِفَ بِكُمُ الْأَرْضَ فَإِذَا هِيَ تَمُورُ ﴿۱۶﴾

ددې خبرې نه چې ډوب به كړي | تاسو | په زمكه | بيا به ناساپه | دا زمكه | ګرځي يعنې ټالې به وهي

هغه مو په زمكه كښې ورخښ كړي | ........................ نو هغه [زمكه] به ناګهانه اولړزيږي

أَمْ أَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ أَنْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ

يا په امن كښې يئ تاسو دهغه ذات نه چې په آسمان كښې دي | ددې خبرې نه چې رااوريه ليږي | په تاسو باندې

آيا تاسو ددې نه بې غمه شوئ | چې څوك په آسمان كښې دي هغه درباندې دكانړو

حَاصِبًا ۖ فَسَتَعْلَمُونَ كَيْفَ نَذِيرِ ﴿۱۷﴾ وَلَقَدْ كَذَّبَ

| باران دكانړو | پس زر به معلوم شي تاسو ته | چې څرنګې وه | يرونه زما | او دروغ ګڼرلي دي

باران رااوروي ر نو تاسو ته به زر معلومه شي چې زما ويرول څنګه دي؟ | او ددوئ نه پخوا

الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿۱۸﴾

هغه كسانو | چې مخكښې ددوئ نه وو [پيغمبران خپل] | پس څرنګې وو | عذاب زما

خلقو هم [خپل پيغمبران] دروغژن ګڼرلي وو | بيا [اوګوره چې په دوئ] زما عذاب څنګه راغلو ؟

أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ ۘ

آيا نه ګوري دوئ | مرغانو ته | دپاسه دخان خپل | چې وزرې خوروونكي دي | او راغوندونكي دي

آيا دوئ پورته مارغانو ته نه ګوري | چې وزرې ئې خورې كړې وي | او غونډې كړې ئې وي

مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمَٰنُ ۚ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ ﴿۱۹﴾

نه ټينګوي دوئ لره [په هوا كښې] | مګر رحمن | بيشكه هغه | په هر شئ باندې | ليدونكې دي |

دوئ صرف رحمان [په هوا كښې] راټينګ كړي دي | ........................ هغه هرشئ وينې ګوري

أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي | هُوَ جُندٌ لَّكُمْ | يَنصُرُكُم

آیا څوک دي هغه کس | چي هغه لښکر دي ستاسو دپاره | چي هغه امداد کوي ستاسو

آیا د رحمان نه سوا بل څوک دي | ......... چي ستاسو لښکر جوړ شي | او ستاسو مدد او کړي

مِّن دُونِ الرَّحْمَٰنِ | إِنِ الْكَافِرُونَ | إِلَّا | فِي غُرُورٍ | أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي

په مقابله د رحمن کښي | نه دي دا کافران | مګر | په دوکه کښي پراته دي | آیا څوک دي هغه

د رحمن په مقابله کښي دا کافران خو په لويه دهوکه کښي پراته دي | ..آیا داسي څوک شته چي تاسو ته

يَرْزُقُكُمْ | إِنْ أَمْسَكَ | رِزْقَهُ | بَل لَّجُّوا

چي رزق در کولي شي تاسو ته | که بند کړي هغه | رزق خپل | بلکه ننوتلي [محکم شوي] دي دوي |

روزي در کړي | که هغه [الله ﷻ] د رباندي خپله روزي بنده کړي | بلکه دوي په

فِي عُتُوٍّ | وَنُفُورٍ | أَفَمَن | يَمْشِي | مُكِبًّا

په سرکشي کښي | او په نفرت کولو کښي دحق نه | آیا پس هغه څوک | چي ګرځي | نسکور |

سرکشي او په نفرت کښي پراته دي | ........... آیا هغه کس چي

عَلَىٰ وَجْهِهِ | أَهْدَىٰ | أَمَّن يَمْشِي | سَوِيًّا

په مخ خپل باندي | زياته صحيح لار موندونکي دي | يا هغه څوک چي ګرځي | برابر نيغ |

پر مخي تګ کوي | هغه په سمه لار دي؟ | ........................ او که هغه چي په هواره

عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ | قُلْ | هُوَ الَّذِي | أَنشَأَكُمْ | وَجَعَلَ لَكُمُ

په نيغه لار باندي | او وايه | الله هغه ذات دي | چي پيدا ئي کړي تاسو | او درئي کړو تاسو له

لاره سم روان وي | ........... ته ورته او وايه چي الله ﷻ هغه ذات دي | چي تاسو ئي پيدا کړي يئ

السَّمْعَ | وَالْأَبْصَارَ | وَالْأَفْئِدَةَ | قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ | قُلْ

طاقت داوريدو | او طاقت دليدو | او زړونه [دپاره د سوچ] | ډير لږ تاسو شکر اوباسئ | او وايه |

او غوږونه او سترګي او زړونه ئي درکړي دي | ........... خو تاسو ډير کم شکر کوئ | ورته او وايه

هُوَ الَّذِي | ذَرَأَكُمْ | فِي الْأَرْضِ | وَإِلَيْهِ | تُحْشَرُونَ

الله هغه ذات دي | چي خواره ئي کړئ تاسو | په زمکه کښي | او خاص هغه ته به | تاسو ورجمع کيږئ

الله ﷻ هغه ذات دي | چي تاسو ئي په زمکه کښي خواره کړي يئ | او بيا به هغه ته جمع کولي شئ

وَيَقُولُونَ | مَتَىٰ | هَٰذَا الْوَعْدُ | إِن كُنتُمْ | صَادِقِينَ | قُلْ | إِنَّمَا الْعِلْمُ

او وائي دوئ | کله به وي | دا وعده | که يئ تاسو | رښتينى | ورته او وايه | چي بيشکه دغه علم

او دوئ وائي چي دا وعده به کله پوره کيږي | که تاسو رښتوني يئ؟ | ورته او وايه چي [ددي] علم

عِندَ اللَّهِ | وَإِنَّمَا | أَنَا نَذِيرٌ | مُّبِينٌ | فَلَمَّا | رَأَوْهُ

| د الله سره دي | او بيشکه زه | يرونکي يم | ښکاره | پس هر کله چي | او وينى دوئ هغه

د الله ﷻ سره دي | او زه خو بس يو ښکاره ويرونکي يم | ........ بيا چي دوئ قيامت نژدي او ويني

زُلْفَةً سِيْٓـَٔتْ وُجُوْهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقِيْلَ

نژدې | نو وران به شي | مخونه | دهغه کسانو | چې انکار ئې کړې دې | او اویه وئیلې شي

نو د کافرانو مخونه به وران شي | ..................او ورته به اووئیلې شي

هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تَدَّعُوْنَ ۝ قُلْ اَرَءَيْتُمْ

چې دا هغه څیز دې | چې وې تاسو | په دغه شئ سره | چې غوښتو به مو | ورته اووایه | آیا وینئ تاسو

چې داهغه عذاب دې | چې تاسو به (په دنیا کښې) غوښتلو |........ته ورته اووایه چې ښه دا اوښایئ

اِنْ اَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ وَمَنْ مَّعِيَ اَوْ رَحِمَنَا ۙ فَمَنْ

که هلاك کړي ما الله | او هغه څوك چې زما سره دي | یا رحم اوکړي په مونږ باندې | پس څوك

که الله ﷻ ما او زما ملګري هلاک کړي | ................... یا رابانديې رحم اوکړي |......نو

يُّجِيْرُ الْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝ قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ

به بچ کوی | کافران | دعذاب دردناك نه | ورته اووایه | چې هغه خدائې رحم کونکې دې

کافران به د دردناک عذاب نه څوک بچ کړي | ته ورته اووایه چې هغه الله ﷻ رحمان دې

اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا ۚ فَسَتَعْلَمُوْنَ

ایمان راوړې دې مونږه په هغه | او په هغه باندې | بروسه کړې ده مونږه | پس زر به معلوم شي تاسو ته

مونږ په هغه ایمان راوړې دې | او په هغه مو بهروسه کړې ده | .........تاسو ته به زر معلومه شي

مَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ

چې څوك دې هغه | چې په ګمراهئ ښکاره کښې دې | ورته اووایه | آیا وینئ تاسو | که چرې شي

چې څوک په ښکاره ګمراهئ کښې دې | ..................ورته اووایه چې ښه دا راته اوښائې که

مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَّاْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ۝

اوبه ستاسو | ښکته | پس څوك به راولي تاسو له | او به جاری |

ستاسو اوبه ښکته غائبې شي | نو څوک به ستاسو دپاره دچینې اوبهٔ راولي

## آسان ترجمه قرآن

لوئې شان دې د هغه ذات، چې د هغه په لاس کښې ټوله بادشاهي ده، او هغه په هر څیز باندې پوره قادر دې چې هغه مرګ او ژوندن دې دپاره پیدا کړې دی، چې په تاسو باندې آزمائش اوکړي، چې په تاسو کښې څوک په عمل کښې بهتر دې، او هم هغه دې، چې د مکمل اقتدار مالک، ډیر بخښونکې دې. چې هغه اووه آسمانونه لاندې باندې پیدا کړل. ته به د رحمٰن خدائې په پیداوښت کښې هیڅ فرق اونه مومې، بیا نظر اوګرځوه، آیا وینې ته څه خرابي؟ بیا بار بار نظر اوګرځوه، نتیجه به دا وي، چې نظر به وستړې شي او تا ته به نامراده واپس راشي. او مونږ نژدې آسمان په روښانه چراغونو سره ښائسته کړې دې، او دې لره مو په شیطانانو باندې د کانړو ورولو دپاره ذریعه هم جوړه کړې ده او د هغوی دپاره مو د سوزونکې اور عذاب تیار کړې دې اوکومو خلقو چې د خپل پروردګار سره د کفر معامله کړې ده، د هغوی

دپاره د جهنم عذاب دي، او هغه ډیر بد ځائې دي او کله چه دوی په هغې کښ واچولې شی، نو د هغې د چغو شورو آوازونه به اوري، او هغه به جوش وهی، داسې به معلومیږی، چه د غصې نه چوی، چه کله هم په هغې کښ (د کافرانو) یوه ډله واچولې شی، نو د هغې څوکیداران به د هغوی نه تپوس اوکړی، چه آیا تاسو ته څوک خبردارونکې نه وو راغلې؟ هغوی به اووائی چه: ولې نه، مونږ ته بے شکه خبردارونکې راغلې وو، لیکن مونږ هغه دروغژن اوګڼړو، او اومو وئیل چه: الله تعالی هیڅ نه دی نازل کړی، ستاسو حقیقت ددې نه سوا هیڅ نه دې، چه تاسو په لویه ګمراهئ کښ پراته یئ. او هغوی به اووائی چه: که مونږ اوریدلې، او د پوهې نه مو کار اخستلې، نو (نن به) دوزخ والو کښ شامل نه وو. دغه شان به هغوی د خپلو ګناهونو اقرار په خپله اوکړی، پس تباهی ده دوزخ والو دپاره. (ددې برخلاف) کوم کسان چه بغیر د لیدلو نه د خپل پروردګار نه ویریږی د هغوی دپاره بے شکه مغفرت او لوئې اجر دې. او تاسو که خپله خبره پټه کوئ، او که په زوره ئې کوئ، (ټول د هغه په علم کښ دی، ځکه چه) هغه د زړونو په خبرو باندې هم عالم دې. آیا هغه څوک چه پیدائش ئې کړې دې، هغه نه پوهیږی؟ حالانکه هغه ډیر باریک بین او خبردار دې. هم هغه دې چه ستاسو دپاره ئې زمکه تابع کړې ده، نو ګرځئ تاسو په لارو د هغې کښ، او د هغه رزق خورئ، او هغه طرف ته د دوباره ژوندون نه پس ورتلل دی. آیا تاسو د آسمان والا ذات ددې خبرې نه بے ویرې یئ، چه تاسو په زمکه کښ ننخ کړی، نو هغه به ناګاهه خوځیږی یا تاسو د آسمان والا ذات ددې خبرې نه بے ویرې یئ، چه هغه په تاسو باندې د کانړو باران نازل کړی؟ بیا به تاسو ته پته اولګی، چه زما ویرول څنګه وو؟ او ددوی نه مخکښ چه کوم خلق وو، هغوی هم پیغمبرانو ته دروغژن وئیلې وو، بیا اوګورئ، چه زما عذاب څنګه وو؟ او آیا دوی مرغانو ته نه ګوری، چه ددوی دپاسه دی، چه هغوی خپلې وزرې خورې کړې وی، او راغونډوی هم، هغوی لره د الله تعالی نه سوا هیڅا نه دی راتینګ کړې، یقیناً الله تعالی د هر څیز ساتونکې دې. آیا د الله تعالی نه سوا هغه څوک دی، چه ستاسو لښکر جوړ شی او ستاسو مدد اوکړی؟ کافران خلق خو سراسر په دهوکه کښ پراته دی که چرې هغه خپل رزق بند کړی، نو څوک دی، چه تاسو ته رزق درکړی؟ ددې باوجود هم دوی په سرکشئ او بیزارئ باندې مضبوط ولاړ دی. او کوم سړې چه پرمخې روان وی، هغه منزل ته به رسیدونکې دې، یا هغه سړې، چه په نیغه لار باندې نیغ روان وی؟ اووایه چه: هم هغه دې، چه تاسو ئې پیدا کړئ، او ستاسو دپاره ئې غوږونه سترګې او زړونه جوړ کړل، (لیکن) تاسو خلق ډیر کم شکر کوئ. اووایه چه: هم هغه دې، چه تاسو ئې په زمکه کښ خواره کړئ، او هغه طرف ته به تاسو ټول راجمع کولې شئ او دا خلق وائی چه: که ته رښتونې ئې، نو اووایه، چه دا وعده به کله پوره کیږی؟ اووایه چه: ددې علم خو صرف الله تعالی سره دې، او زه خو صرف صفا صفا طریقې سره خبردارونکې یم. پس هرکله چه دوی (د قیامت هغه عذاب) اوویني چه دوی ته نژدې شوې دې، نو د کافرانو مخونه به وران شی، او اوبه وئیلې شی، چه: دا دې هغه څیز چه تاسو به غوښتلو (اے پیغمبره) دوی ته اووایه چه: خبر راکړئ ماته، چه که الله تعالی ما لره او زما ملګرو لره هلاک کړی، یا په مونږ باندې رحم اوکړی، (په دواړو صورتونو کښ به) کافرانو لره د دردناک عذاب نه څوک بچ کړی؟ اووایه چه: هغه رحمٰن دې، مونږ په هغه باندې ایمان راوړې دې، او هم په هغه باندې مونږ بهروسه کړې ده، نو زر ده چه تاسو ته

په پېغه اولګي، چه څوک دي، چه په ښکاره ګمراهۍ کښې پراته دي. او وايه چه: خبر راکړئ ماته که چرته د صبا په وخت کښې ستاسو اوبه لاندې لاړې شي، نو څوک دي، چه تاسو ته اوبه چينه دارې درکړي؟

**خلاصه تفسير**

﴿تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾[هغه] الله تعالى [لوئ عالى شان دې دکوم په قبضه کښې چه ټول حکومت دې ﴿وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ اوهغه په هرڅه قادر دې ﴿الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ﴾ چاچه مرګ او ژوندپيداکړو ﴿لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا﴾ چه ستاسو ازمانښ وکړي چه په تاسوکښې کوم سړې په عمل کښې زيات ښه دې] په حسن عمل کښې دمرګ دخل خو دادې چه دمرګ په فکر سره انسان دنيالره فانى اودقيامت په عقيده سره اخرت لره باقى وګڼړي دهغه ځاې دثواب حاصلولواو دهغه ځاې دعذاب نه دبچ کيدو دپاره تياريدې شي او دژوندخل دا دې چه که ژوند نه وي نو عمل به څه وخت وکړي پس دنيك عمل دپاره مرګ په منزله دشرط اوژوند په منزله دظرف دې اوچونکه مرګ عدم محض نه دې په دې وجه په دهٔ دمخلوقيت حکم صحيح دې ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ﴾[اوهغه زبردست] او [بخښنې والا دې] چه په بدوعملونو عتاب اوپه نيکوعملونومغفرت او ثواب مرتب فرمائى ﴿الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا﴾[هغه اووهٔ اسمانونه لاندې باندې پيداکړل ] لکه چه په صحيح حديث کښې دی چه ديواسمان دپاسه په اوږده فاصله بل اسمان دې او بيادغه شان ددهٔ دپاسه دريم او دغه شان بل او بل وړاندې داسمان د استحکام بيان فرمائى چه اے ليدونکيه ﴿مَا تَرٰى فِيْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ﴾[ته به د الله تعالى په دې صنعت کښې خلل نهٔ شې ليدې] پس اوس ﴿فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ﴾[بياورته وګوره چه چرته تاته څه خلل په نظر راځي] يعنى بغيردسوچ نه خو به ورته تادير کتلى وي اوس داپيره ورته په سوچ سره وګوره ﴿ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ اِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِيْرٌ﴾[بيابارباربار ورته نظر وکړنه وګوره] اخر [نظر به دې ذليل اوستړې ستومانه ستاطرف ته واپس شي] او هيڅ سورې به په کښې درته په نظر رانه شي يعنى هغه چه څه شى لره ځنګه غوارې جوړولې شى چنانچه داسمان ئې مضبوط جوړول وغوښتل چه سره د اوږدې زمانې تيريدونه تراوسه پورې په کښې څه خلل رانهٔ غې او دالکه داقول دالله تعالى دې ﴿وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ﴾(١) اودغه شان ئې خنې څيزونه ضعيف او زرېرې اثرکيدونکى جوړکړل غرض هغه ته هرشان قدرت دې [او] زمونږ دقدرت دليل دادې چه ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ﴾[مونږه نزدې اسمان لره په چراغونو] يعنى ستورو[سره ښائسته کړى دی ﴿وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ﴾اومونږدي] ستورو [لره د شيطانانو د ويشتلوذريعه هم جوړه کړې ده] دکوم حقيقت چه په سوره حجر کښې تيرشوې دې ﴿وَاَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ﴾[اومونږ ددوی] شيطانانو [دپاره] دشهاب دويشتلونه علاوه کوم چه به دنياکښې کيږى په اخرت کښې هم په وجه ددوی دکفر[ددوزخ عذاب] هم [تيارکړې دې ﴿وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ﴾ اوکوم خلق چه دخپل رب] دتوحيد [نه انکارکوی دهغوی دپاره ددوزخ عذاب دې ﴿وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴾ اوهغه بدځاې دې ﴿اِذَآ اُلْقُوْا فِيْهَا سَمِعُوْا لَهَا شَهِيْقًا وَّهِيَ تَفُوْرُ﴾هرکله چه داخلق هغې ته وغورځولې شى نو ددهٔ يولوئ زور دار آوازبه واوري اوهغه به داسې جوش

(١) ترجمه:- [اوپه هغې کښې هيڅ چاودې نشته

وهي چه معلوميږي به ﴿تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ﴾ چه] اوس [دغصې نه څيريږي] ياخو به الله تعالى په هغه کښې ادراك دغصې پيداکړي چه دحق په مبغوضينو به دهٔ له هم غصه راځي اويا مقصود تمثيل دې لکه چه څوك دغصې نه په جوش کښې راځي دغه شان به هغه دسخت اشتعال نه په جوش کښې راځي او ﴿كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا﴾[کله چه په هغې کښې يوه ډله] دکافرانو [واچولې شي نو دهغې محافظين به دهغوخلقو نه تپوس وکړي ﴿أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ﴾چه اياتاسوته يو ويرونکې] [پيغمبر] نهٔ وو راغلې کوم چه تاسولره يې ددې عذاب نه ويرولې وې چه مقتضاې داوه چه ددې نه دبچ کيدو سامان موکړې وې او اوس ددې نه بچ شوې وې داسوال به په طور دزورنې وي يعنې پيغمبر خوراغلې وو اوداتپوس به دهرې نورې راتلونکې ډلې نه کولې شي خکه چه دوزخ ته به دتفاوت اومرتبومطابق تولې فرقې دکفارو په يوبل پسې ورځي ﴿قَالُوا بَلَىٰ قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ﴾[هغه کافران به] په طور داعتراف] ووائي چه واقعي مونږ ته ويرونکې] پيغمبر [راغلې وو پس] زمونږ بدبختي وه چه ﴿فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ﴾[مونږه هغهٔ دروغژن کړې وو او ومو وئيل چه الله تعالى[ دقبيلې داحکامو اوکتابونو] هيڅ نه دی نازل کړي او﴿إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ﴾[تاسوپه لويه غلطئ کښې پريوتلې يئ او﴿وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ﴾ دغه کافران به فرښتو ته داهم ووائي چه کهٔ مونږ اوريدې اوپوهيدې] يعنې دپيغمبرانو خبره مو قبلولې اومنلې ﴿مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾ [نو مونږ به په دې دوزخ کښې] شامل [نهٔ وو﴿فَاعْتَرَفُوا بِذَنْبِهِمْ﴾ غرض دخپل جرم اقراربه وکړي ﴿فَسُحْقًا لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾ پس په دوزخيانو باندې لعنت دې ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ﴾بيشکه کوم خلق چه دخپل پروردګار نه بې کتلو ويريږي] او ايمان اواطاعت اختياروي ﴿لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾[دهغوی دپاره مغفرت اولوئ اجر] مقرر[دې ﴿وَأَسِرُّوا قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ﴾اوتاسوخلق خواه پټه خبره کوئ يابښکاره] هغه دټولونه خبردې خکه چه ﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾[هغه د زړونوپه خبروښه پوهه دې] او﴿أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ﴾[هغه] به څنګه [نه پوهيږي چاچه پيداکړي دی ﴿وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ﴾ اوهغه باريك بين دې] او[پوره باخبره دې] حاصلِ داستدلال دادې چه هغه د هرشي مختارخالق دې پس ستاسودعملونو اواقوالو هم خالق دې اودپوشي تخليق بغير دعلم نه نهٔ شي کيدې په دې وجه الله تعالى ته دهرشي علم ضروري شو اوتخصيص داقوالو مقصود نهٔ دې بلکه حکم عام دې افعال هم په دې کښې داخل دی تخصيص ذکري شايدپه دې بناوي چه اقوال ډير واقع کيږي غرض هغه ته د هرڅه علم دې هغه به هريوته مناسب جزا ورکړي ﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا﴾[هغه داسې] منعم [دې کوم چه تاسو دپاره مزکې لره مسخره کړه] چه تاسوپه دې کښې هرقسم تصرفات کولې شئ ﴿فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا﴾ [پس تاسو ددې په لارو باندګرځئ ﴿وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ﴾ او دالله تعالى د رزق نه] کوم چه يې په مزکه کښې پيداکړې دې [خورئ] څښئ [او] هغه لره يادوئ چه ﴿وَإِلَيْهِ النُّشُورُ﴾[هغه ته دوباره ژوندی کيدل ورتلل دی] پس داددې مقتضی ده چه دهغه دنعمتونو شکرادا کړئ کوم چه ايمان او اطاعت دې ﴿أَأَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمُ الْأَرْضَ﴾[اياتاسوخلق ددې نه بې ويرې شوی يئ کوم چه په اسمان کښې] هم خپل حکم او تصرف لري [چه هغهٔ تاسولره] [په مثل دقارون] په مزکه کښې دننه کړي﴿فَإِذَا هِيَ تَمُورُ﴾ بياهغه مزکه په رپيدو] لاندباند [کيږي] چه تاسو په کښې نورهم دننه ننوځئ اودپاسه درباندې دزمکې اجزاء يوځاې کيږي﴿ أَمْ أَمِنْتُمْ مَنْ

فِي السَّمَاءِ أَنْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ﴾ [ایاتاسوخلق ددې نه بې ویرې شوی یئ کوم چه په اسمان کښې] هم خپل حکم اوتصرف لری [دې چه هغه په تاسوباندې] دعادیانو په شان [یوه تنده هوا راولیږی] په کومې سره چه تاسوهلاك شئ یعنی مقتضاستاسو دکفردادہ [پس] كه په څه مصلحت سره سمدستی عذاب تاسونه واپس کیږی نو څه وشو ﴿فَسَتَعْلَمُونَ كَيْفَ نَذِيرِ﴾ [ادیر زر به] دمرکیدو سره [تاسوته معلومه شی چه زماویرول دعذاب نه [څنګه] واقع اوصحیح [وو او] که بغیردفوری عذاب نه دکفرپه مبغوض والی دوی نه پوهیږی نو ددې نمونه هم موجود ده چنانچه ﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ [ددوی نه وړاند چه کوم خلق تیرشوی دی هغوی] حق دین لره [دروغژن کړې وو پس] وګوره چه په هغوی ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ [زماعذاب څنګه] واقع [شو] دکوم نه چه صفامعلومه شوه چه کفر مبغوض دې پس كه په څه مصلحت سره دلته عذاب واپس شو نو په بل عالم کښې به حسب وعیدواقع شی اوپورته په ﴿خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ﴾ الخ کښې دتوحیدهغه دلیلونه بیان شول کوم چه داسمان په حقله دی بیاپه ﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ﴾ الخ کښې دمزکې په حقله څیزونه بیان شول وړاند داسمانی فضاپه حقله ددلیلونو بیان دې ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صٰفّٰتٍ وَّيَقْبِضْنَ﴾ [ایادې خلقو په خپلوسرونو دپاسه مارغانو طرف ته نه دی کتلی چه څانګونه بنور وی] الوزی [او] کله په دې حالت کښې [څانکونه راټولوی] او سره دثقل او وزنی کیدونه په دواړو حالتونو کښې دمزکې اواسمان په درمیانی فضاکښې ګرځی مزکې ته نه راغورزیږی او ﴿مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمٰنُ﴾ [بغیرد] الله تعالی [رحمن نه دوی لره څوك تینګوونکې نشته ﴿إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ﴾ بیشکه هغه هرشی لره وینی] اوڅنګه چه غواړی تصرف په کښې کوی [او] دالله تعالی تصرفات خومووازریدل اوس وښایئ چه ﴿أَمَّنْ هٰذَا الَّذِي هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْ دُونِ الرَّحْمٰنِ﴾ [درحمن نه سوا څوك دې چه هغه ستاسولښکرشی] دافاتونه [ستاسوحفاظت وکړې شی] او ﴿إِنِ الْكٰفِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ﴾ [کافران کوم چه دخپلومعبودانو په نسبت داسې خیال کوی [نو] هغه [په خالصه دوکه کښې دی] او داهم وښایئ چه ﴿أَمَّنْ هٰذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُ﴾ [هغه څوك دې کوم چه تاسوله رزق درکړی که الله تعالی خپل رزق بندکړی] مګردا په دې سره هم متاثره نه شول ﴿بَلْ لَّجُّوا فِي عُتُوٍّ وَّنُفُورٍ﴾ [بلکه داخلق] دحق نه [په سرکشئ اونفرت باندتینګګ دی] لنده داچه ستاسوباطل معبودان بتان وغیره نه دڅه ضرر په دفع کولو قادردی اودا مراددې په دې قول دالله تعالی سره ینصرکم او بیا ددوی عبادت محض بې وقوفی ده یعنی دکومو کافرانوحال چه بره واوریدې شو ان الکفرون الا فی غرور ° بل لجوافی عتوونفور ° ﴿أَفَمَنْ يَمْشِي مُكِبًّا عَلٰى وَجْهِهٖ أَهْدٰى﴾ [پس دامو واوریدل] سوچ وکړئ چه [ایاکوم سړې چه] په وجه دناهموارئ دلارې توکرې خوری او[پرمخې غورځیدونکې روان وی هغه به منزل مقصود ته زیات رسیدونکې وی ﴿أَمَّنْ يَمْشِي سَوِيًّا عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ یا هغه سړې] به زیات منزل مقصود ته رسیدونکې وی [کوم چه نیغ په هوارسړك روان وی] داحال دې دمؤمن اوکافرچه دمؤمن دتللو لار هم دین مستقیم دې او دې څې هم نیغ دافراط اوتفریط نه ځان ساتی او دکافر دتللولار هم کږه اوګمراهی ده او په تللو کښې ورته هم هروخت هلاکتونه او ویرې رامخې ته کیږی روان وی پس په داسې حالت کښې به څه منزل ته ورسیږی او بره دتوحید دلیلونه دافاق په حقله وو وړاندې د نفس په حقله ارشاد دې ﴿قُلْ هُوَ الَّذِي أَنْشَأَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ﴾

وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ﴾[ته] دوی ته [ووايه چه هغه] داسې قادراومنعم [دی کوم چه تاسولره پيداکړل او تاسو له يې غوږونه اوسترګې او زړونه درکړل] مګر ﴿قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ۝﴾[تاسوخلق ډيرکم شکرکوئ] او﴿قُلْ هُوَ الَّذِيْ ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ۝﴾[ته] داهم [ووايه چه هغه دی کوم چه تاسولره په مزکه خوارۀ کړل اوتاسويه هغه ته] دقيامت په ورځ [ورجمع کولې شی ﴿وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ﴾ اوداخلق] چه هرکله دقيامت ذکراوري لکه چه په دې سورة کښې داقول دالله تعالى دی ﴿وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ۝﴾ او داقول ﴿اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ۝﴾ نو [وائی چه داوعده به کله وی ﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝﴾ کۀ تاسو] يعنی پيغمبر ﷺ او ددوی ﷺ متبعين مؤمنان [رښتونی يئ] نوونښايئ ﴿قُلْ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۪﴾ [تۀ] په جواب کښې [ووايه چه دا] دتعين [علم خوهم الله تعالى ته دی ﴿وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ۝﴾ اوزۀ خومحض] په اجمال سره مګر [صفاصفاويرونکې يم ﴿فَلَمَّا رَاَوْهُ زُلْفَةً﴾ بياهر کله چې دوی] دقيامت عذاب [لره په نيزدې راغلې ووينی] نيزدې راغلې ليدل داچه دعملونو محاسبه وشی دوزخ ته دتللوحکم وشی چه په دې سره به دوی ته يقين وشی چه اوس عذاب په سرياندراغې غرض هرکله چه يې دوی خواته راغلې ووينی [نو] دغم په وجه به ﴿سِيْٓـَٔتْ وُجُوْهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾[دکافرانو مخونه وران شی] لکه داقول دالله تعالى دی ﴿وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ۝﴾(١) ﴿وَقِيْلَ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تَدَّعُوْنَ۝﴾[او] دوی ته به [ووئيلې شی دادې هغه کوم چه تاسوغوښتلو] چه عذاب راوله او داکفارچه دامضامين حقه دتوحيداو بعث وغيره اوري کوم چه داسې خبرې کوی ﴿شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيْبَ الْمَنُوْنِ۝﴾(٢)، اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا لَوْلَآ اَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا ؕ﴾(٣) چه مطلب يې انتظارستا دهلاکت اوتالره نعوذبالله ګمراهئ طرف ته منسوب کول دی وړاند ددې جواب تعليم دې په کوم کښې چه دکفارو دعذاب تقرير او په نورومضامينو سره ددې تتيم دې ارشاد دې چه ﴿قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ وَمَنْ مَّعِيَ﴾[تۀ] دوی ته [ووايه چه تاسو دا وښايئ چه کۀ الله تعالى مالره اوزماملګرولره] ستاسود ارزو موافق هلاك کړی﴿اَوْ رَحِمَنَا ۙ﴾ يا] زمونږ داميد اود خپلې وعدې مطابق [په مونږ رحمت وفرمائی نو] په دواړو حالتونوکښې خپل خبر واخلئ او داوښايئ چه﴿فَمَنْ يُّجِيْرُ الْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ۝﴾ [کافرانو لره به ددردناك عذاب نه څوك بچ کړی] يعنی زمونږ خوچه څۀ حالت وی په دنياکښې به وی او ددې انجام په هرحال کښې ښه دې لکه داقول دالله تعالى ﴿هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ؕ﴾ الخ(٤) مګردخان وايئ چه په تاسوکوم عظيم مصيبت راتلونکې دې هغه به څوك منع کړی؟ اوزمونږ په دنيوی حادثو سره به ستاسو دغه مصيبت څنګه منع شی نو دخان فکر پرېښودل اوزمونږ د حادثوانتظاريو فضول حرکت دې داجواب دې د﴿ نَتَرَبَّصُ ﴾الخ او﴿قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ﴾ [تۀ] دوی ته داهم [ووايه چه هغه لوئ مهربان دې مونږ په هغۀ] [دهغۀ دحکم موافق] [ايمان راوړې دې ﴿وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا ۚ﴾اومونږ په هغۀ توکل کوو] پس دايمان په برکت سره به هغه مونږ داخرت دعذاب نه محفوظ وساتی اودتوکل په برکت سره به مو ددنيوی حادثونه په

---

(١) ترجمه:- اوډيرې مخونه به په دغه ورځ خړپړ وی چې د غم تياره به پرې راخوره شوی وی

(٢) ترجمه:- دا شاعران دی او ددوئ باره کښې د مرګ دحادثې انتظار کوی.

(٣) ترجمه:- دې کس خو مونږ د خپلو معبودانو نه لرې کړی وو که په دې قائم نه وې.

(٤) ترجمه:- ته (ورته) اووايه چه تاسو زمونږ دپاره په دوو ښيګړو کښې د يوې دښيګړې منتظر اوسېږئ

امن کړی] یا به یې راباندې اسانې کړي داهم د﴿ نَتَرَبَّصُ ﴾ دجواب تتمه ده [پس] هرکله چه په تاسو دردناك عذاب راتلونكې دي اومونږ انشاء الله تعالى دايمان په بركت سره به ددې عذاب نه محفوظ یونو ﴿ فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ [ډیر زر به تاسوته معلومه شي] هرکله چه خپل خانونه په عذاب كښې مبتلا او مونږلره دهغې نه محفوظ وويني [چه په ښکاره گمراهۍ كښې څوك دی] یعنی تاسو یې لکه چه مونږ وایو یامونږ لکه چه تاسو وایئ داجواب دی د ﴿ إِن كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ آلِهَتِنَا لَوْلَا أَن صَبَرْنَا عَلَيْهَا ﴾ الخ وراندتقریر دې دپورتنی مضمون د﴿ فَمَن يُجِيرُ الْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ یعنی پورته چه وئیلې شوی وو چه تاسولره دعذاب دردناك نه څوك نه شی بچ کولې ددوی كه چرته په خپلوخدایانو ناز وی چی هغوی به ئې عذاب نه بچ کړي د دوی خیال د باطلولو اولرې كولو دپاره دوی ته ﴿ قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَاؤُكُمْ غَوْرًا ﴾ [ته] دا [ووایه چه ښه دا وښایئ چه كه ستاسو اوبه] کومې چه په کوهیانو کښې دی [لاندې لاړې شي ورکې شي ﴿ فَمَن يَأْتِيكُم بِمَاءٍ مَّعِينٍ ﴾ نو هغه څوك دي چه تاسوته په دغه کوهو کښې اوبه راولي؟] یعنی دکوهی رګونه جاری کړی اودمزکې دوبیخ نه اوبه پورته راولی اوكه څوك په دې نازیږي چه وبه یې کتم نو الله تعالى په دې هم قادردې چه هغه یې ښې ښکته بوځي او دغه شان یې په مخه ښکته کوی پس هرکله چه دالله تعالى په مقابله كښې چاته دومره اختیارهم نشته چه په معمولی طبعی واقعاتو كښې تصرف وكړی نو داخرت دعذاب نه دبچ کولو به یې څه قدرت وی

## معارف او مسائل

**سورة ملك فضیلتونه** :: دې سورت ته په حدیث شریف کښې واقیه او منجیه هم فرمائیلې شوې دې ، د واقیه معنی بچ كوونكې او د مُنْجِیَه معنی خلاصوونكې دې . حدیث پاك كښې دی چې [ هی المانعة المنجیة تنجیه من عذاب القبر ] یعنی دا سورت د عذاب ایساروونكې او عذاب نه خلاصې وركوونكې دې ، دا به خپل لوستونكې د قبر د عذاب نه خلاصوی . [ ترمذی روایت کړو ، حسن غریب حدیث ئې ورته اووئیل ، په حواله د قرطبی ](١).

او د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زړه مې غواړی چې سورة ملك د هر مؤمن په زړه کښې وی . [ ثعلبی دابیان کړو ](٢) او د ابو هریره ﷺ په روایت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په کتاب الله كښې یو داسې سورت دې چې آیتونه خو ئې صرف دیرش دی ، دقیامت په ورځ بهٔ دا دیوكس سفارش کوی ، تر دې چې جهنم نه ئې راوباسی او جنت كښې داخل کړی اودا سورة تبارك دې . [ قرطبی و ترمذی ](٣).

[ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ] لفظ د [تَبَارَكَ] د بركة نه مشتق دې چې لفظی معنی ئې زیاتیدل او ترقی کول دی ، دا لفظ کله چې دالله ﷻ په شان کښې وئیلې شی نو دټولو نه زیات پورته په معنی راځی لکه الله اکبر .

---

(١) جامع الترمذی،ابواب الفضائل باب ماجاء فی سورة الملك [ج:٢ ص:١١٦] وتفسیر القرطبی [ج:١٨ص:٢٠٧]

(٢) تفسیر القرطبی [ ج:١٨ص:٢٠٥] و المستدرك للحاكم كتاب التفسیر رقم الحدیث:[٢٠٧٦] و شعب الإیمان للبیهقی ، كتاب تخصیص سور منها بالذكر فصل فی فضائل السور والآیات. رقم الحدیث:[٢٢٧٧]

(٣) تفسیر القرطبی [ ج:١٨ص:٢٠٥] او جامع الترمذی ، ابواب الفضائل القرآن باب ماجاء فی سورة الملك [ج:٢ ص:١١٦]

[بِيَدِهِ الْمُلْكُ] دالله ﷻ په لاس کښي دي ملک ، الله ﷻ دپاره په قرآن پاک کښي ځائي په ځائي د يد لفظ د لاس په معنی استعمال شوي دي. الله ﷻ د جسم او اندامونونه ډير پورته دي. ځکه دا لفظ د متشابهاتو څيني دي ، چي په حقوالی باندي ئي ايمان راوړل واجب دی. اوددي حقيقت او کيفيت چاته نشي معلوميدي دي پسي کيدل درست نه دی. اودملک نه مراد د زمکو ، آسمانونو ، ددنيا اوآخرت حکومت دي. دي آيتونو کښي دالله ﷻ دپاره د څلوروصفتونو دعوی ده.

① اول يي دا موجوديدو . ② دويم د دانتهائی درجي دصفتونو د کمال مالک او د ټولو نه پورته کيدل. ③ دريم په آسمانونو او زمکه باندي د الله ﷻ حکومت کيدل. ④ څلورم په هر څيز باندي ددهٔ قادريدل ، په راتلونکو آيتونو کښي ددي دعوي دليلونه دی چي هم د الله ﷻ په مخلوقاتو کښي په غور ، فکر کولو سره واضح کيږی. ځکه په راتلونکی آيتونو کښي د ټولو کائناتو او مختلفو قسمونو اوصفتونو نه دالله ﷻ په وجود او توحيد باندي او ددهٔ په کامل علم او قدرت باندي دليل نيولي شوي دي. دټولونه اول د اشرف المخلوقات انسان بخپل وجود کښي چي دقدرت کوم دليلونه دی ، دي ته مخه راوګرځولي شوه. [الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ] کښي ددي بيان دي. دي نه پس په ګڼو آيتونو مبارکو کښي د آسمانونو په پيدا کولو کښي د غور ، فکر نه دليل نيول دی ، فرمائی چي :[خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ] وروسي د زمکي د پيداکولو او ددي تعلق لرونکو فائدو کښي د غور ، فکر بيان دي. فرمائی چي :[هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ذَلُوْلًا] دي دوؤ آيتونو کښي دا بيان دي ، بيا په آسمانی فضا کښي د اوسيدنکو مخلوقاتو ، مارغانو ذکر ئي فرمائيلي دي ، فرمائی چي :[اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ] ،
غرض دا چي په دي ټول سورت کښي اصل مضمون د الله ﷻ په وجود او ددهٔ په کامل علم او قدرت باندي ددنيا دکائناتو په مشاهدو سره دليلونه پيش کول دی ، ددي په حق لهٔ نور مضمونونه دکافرانو دسزا او مومنانو دجزاهم بيان شوي دی. په دوؤ لفظونو کښي د الله ﷻ د کامل علم او قدرت دليلونو ته هدايت شوي دي کوم چي د انسان په نفس او ذات کښي دی.

**د مرګ او ژوند حقيقت** :: [خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ] يعنی الله ﷻ مرګ او ژوند پيدا کړو ، دانسانی حالتونو څيني دلته صرف دوه څيزونه مرګ او ژوند بيان کړي شو ولي چي هم دا دواړه دانسان د ټولو حالاتو او کارونو نه راچاپيره دی هرکله چي ژوند يو وجودی څيز دي ځکه دي لره پيدا کول ښکاره خبره ده. خو موت يعنی مرګ يو عدمی څيز دي. دي دپاره دپيدا کولو لفظ استعمالول څنګه کيديشی ؟
ددي په جواب کښي د تفسير د امامانو ګڼ قولونه نقل دی ، د ټولو نه واضحه خبره داده چي مرګ ، دعدم محض ، نوم نه دي ، بلکه د روح د يو ځائي نه بل ځائي ته منتقل کول دی چي وجودی څيز دي. غرض دا چي څنګه حيات يو حال دي چي دانسان په جسم کښي جاری کيږی ، دغسي موت هم دي او دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما او د څيني نورو امامانو د تفسير نه چي د امنقول دی چي مرګ او ژوند دوه جسمدار مخلوق دی. مرګ ديو ګډ شکل لری او ژوند د يو آسپي شکل لری. دي نه مراد په ظاهره دهغه حديث پاک بيان دی چي په کښي دا ارشاد دي چي کله په قيامت کښي جنتيان په جنت کښي اودوزخيان په دوزخ کښي داخل شي نو مرګ به د

کله په شکل کښې راوستې شي او پل صراط سره به ذبح کولو سره به اعلان اوشي چې اوس څوک په څه حالت کښې دي دا به همیشه وي . دې نه پس مرګ به نه وي[1] . خو ددې حدیث نه دا نه لازمیږي چې د نیا کښې دې مرګ د څه جسم وي بلکه څنګه چې ددنیا ډیرحالات اوعملونه به چې دجسم اوشکل صورت اختیار کړي چې د ډیرو صحیح احادیثو نه ثابت دي . دغسې به دمرګ حالت هم د یو کله په شکل کښې دقیامت په ورځ ذبح کړې شي [قرطبي][2]

او په تفسیر مظهري[3] کښې فرمائي چې مرګ عدمي څیز دې خو خالص عدم نه دې . بلکه د یو څیز نه حیوة نیشت کیدل دی کوم به چې په څه وخت کښې موجود کیږي . نو داسې ټول نیشت څیزونه د ناشونی موجودیدو نه وړاندې په عالم مثال کښې شکلونه لري چې ورته اعیان ثابته وئیلې شي ، ددې شکلونو په وجه دموجودیدو نه وړاندې هم دغسې څیزونه یو قسم وجود حاصل دې او په دې عالم مثال کښې ئې په موجودیدو باندې دحدیث پاک د ډیرو روایتونو نه دلیل نیولې شویدې . والله اعلم .

**د مرګ او ژوند مختلفې درجې** :: تفسیر مظهري[4] کښې راغلي دي چې الله ﷻ پخپل قدرت او حکمت بالغه سره مخلوقات او ممکنات په مختلفو قسمونو کښې اوویشل ، هر یو ته ئې د ژوند یو قسم ورکړې دې . د ټولو نه زیات کامل اومکمل ژوند ئې انسان ته ورکړو په هغه کښې ئې دا صلاحیت او استعداد هم ایخودې دې چې د الله ﷻ د ذات او صفتونو پیژنګلو یو خاص حد پورې حاصل کړې شي او همدا پیژندګلو په شرعي حکمونو د هغه مکلف کولو بنا لري . او هم دا هغه د امانت بار دې چې دپورته کولو نه ئې آسمان ، زمکه او غرونه ټول اوویریدل او انسان په خپلې خوښه ددې خداداد صلاحیت په سبب پورته کړه ، ددې ژوند په مقابله کښې هغه مرګ دې چې ذکر ئې د قرآن کریم په آیت [ افمن کان میتا فاحییناه ][5] کښې داسې شوې دې چې کافر ئې مړ او مؤمن ئې ژوندې اوګرځولو ولې چې کافر هغه پیژندګلو برباده کړه کوم چې دانسان مخصوص ژوند وو ، اوپه بل قسم مخلوق کښې ددې درجې ژوند خونشته البته حس او حرکت په کښې موجود دې .

دد ې بل مقابل هغه مرګ اړخ دې چې بیان ئې دقرآن پاک په آیت مبارک : [وکنتم امواتا فاحیاکم ثم یمیتکم ثم یحییکم ][6] کښې راغلې دې . چې دلته د ژوند نه مراد حس او حرکت او دموت یعنی مرګ نه مراد ددې ختمیدل دی او د ممکناتو په څینې قسمونو کښې دغه حس اوحرکت هم نشته صرف د ترقئي کولو صلاحیت ئې شته لکه په عامو ونو او بوټو کښې چې ددې مقابل

---

[1] ) صحیح البخاري كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار [ج:۲ص:۹۶۹] وصحیح مسلم كتاب الجنة باب جهنم اعاذنا الله منها [ج:۲ص:۳۸۴]

[2] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۸ص:۳۰۶]

[3] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص۱۸ ، ۱۹]

[4] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص۱۸ ]

[5] ) ترجمه:- داسې کس چې اول مړ وو نو موږ هغه ژوندې کړو.

[6] ) ترجمه:- حالانکه تاسو بې جان وئ او تاسو کښې موساه واچوله بیا به تاسو لره مرګ راولو بیا به مو ژوندي کړو.

هغه مرګ دې چې ذکر ئې د قرآن پاک په آیت مبارک: [یحی الارض بعد موتها ]([1]) کښې راغلې دې. د حیات یعنی ژوند دا درې قسمونه صرف په انسانانو، حیوانانو، ونو او بوټو کښې شته دې، دې نه سوا په نور هیڅ قسم مخلوقات کښې دغه قسم ژوند نشته. ځکه الله ﷻ د کانړو نه جوړ کړو بتانو په باره اوفرمائیل: [اَمۡوَاتٌ غَیۡرُ اَحۡیَآءٍ]([2]) خوسره ددې نه چې په جماداتو کښې یو خاص ژوند موجود دې چې وجود سره لازم دې نو ددې ژوند اثر قرآن کریم داسې ښائی. [وَاِنۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمۡدِهٖ] یعنی څه څیز داسې نشته چې د الله ﷻ حمد او تسبیح به نه کوی او په آیت مبارک کښې د مرګ د وړاندې بیان کولو وجه هم ددې بیان نه واضحه شوه چې د اصل په اعتبار سره هم مرګ وړاندې دې، هر موجود یو ونکې څیز رومبې د مرګ په حالت کښې وو، روستو ورته ژوند ورکړې شو او دا هم کیدیشی چې دلته [لِیَبۡلُوَکُمۡ اَیُّکُمۡ اَحۡسَنُ عَمَلًا] کښې چې کوم آزمیښت بیان شوې دې هغه په مرګ کښې د ژوند په نسبت زیات کیدیشی ځکه د مرګ ذکر د حیات یعنی ژوند نه رومبې اوکړې شو. ولې چې څوک مرګ ځان ته وړاندې لری نو هغه به د ښو عملونو پابندی زیاته کوی او اګر چې دا آزمیښت په ژوند کښې هم شته چې د ژوند په قدم قدم باندې بنده ته خپله عاجزی او د الله ﷻ قادر مطلق کیدل هر وخت مخې ته وی چې نیک عمل ته راښلل کوی لیکن د مرګ فکر د عمل په سمولو اوښه کولو کښې د ټولو نه زیات اثر کوی.

د عمار بن یاسر رضی الله عنه په مرفوع حدیث کښې دی چې [ کفی بالموت واعظا وکفی بالیقین غنی] یعنی مرګ د وعظ د پاره کافی دې او یقین دغنی توب د پاره. [ طبرانی روایت کړې دې ]([3]) مطلب دا دې چې د خپلو دوستانو عزیزانو مرګ لیدل د ټولو نه لوئې وعظ دې چې دې نه څوک اثر نه قبلوی د نورو څیزونو نه ئې اثر قبلول مشکل دی او چاته چې الله ﷻ د ایمان او یقین دولت ورکړی دهغه پشان بل څوک غنی او بې نیازه نه دې. او ربیع بن انس رضی الله عنه اوفرمائیل چې مرګ انسان لره ددنیا نه د ویزاره کولو او آخرت ته د شوق پیدا کولو د پاره کافی دې.

[اَحۡسَنُ عَمَلًا] دلته دا خبره دنظر کولو جوګه ده چې د انسان په دې آزمیښت کښې چې د هغه مرګ او ژوند سره تړون لری، الله ﷻ دا اوفرمائیل چې مونږ دا کتل غواړو چې په تاسو کښې د چا عمل ښه دې؟ دا ئې او نه فرمائیل چې د چا عمل زیات دې؟ دې نه معلومه شوه چې د الله ﷻ په نزد د عمل صحیحوالې او قبولوالې معتبر دې نه چې دهغې ډیر والې او ګڼروالې، نو د قیامت په ورځ به د عملونو شمیر ته نه بلکه دهغې تول ته به کتلې شی چې د یو عمل وزن هم د زرګونو عملونو نه زیات کیدیشی.

**د عمل په والې څه دې؟** ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ دا آیت مبارک تلاوت کړو چې: [اَحۡسَنُ عَمَلًا] پورې اورسیدو نو وې فرمائیل چې: [اَحۡسَنُ عَمَلًا] هغه څوک دې چې د الله ﷻ د حرام کړی څیزونو نه ډیر زیات پرهیز کوی او د الله ﷻ په فرمانبردارئی کښې هر وخت چابک او تیار وی. [ قرطبی ]([4]).

---

[1]) ترجمه:- کله چې زمکه اوچه شی نو بیا دا ژوندئی (رازرغونوی) کوئی.
[2]) ترجمه:-مړه دی ژوندی نه دی.
[3]) شعب الإیمان للبیهقي،باب الزهد وقصرالأمل الحدیث[۱۰۰۷۲] ومجمع لابن الأعرابی رقم الحدیث:[۹۶۲]
[4]) تفسیرالقرطبي[ج:۱۸ص:۲۰۷]واتحاف الخیرة المهرة رقم الحدیث:[۵۲۵۸]ومسندالحارث رقم الحدیث:[۸۳۱]

[فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ] د دې آيت د ظاهر نه دا معلوميږي چې د دنيا خلق آسمان په سترګو ليدې شي او دا ضروري نه ده چې دا شين رنګې فضا ګنې آسمان دې بلکه کيديشي چې آسمان د دې نه زيات پورته وي او دا شين رنګې څيز فضا او هوا وي څنګه چې فلسفيان وائي ، خو د دې نه دا هم نه لازميږي چې ګنې آسمان دې انسان ته د سره نه ښکاري ، کيديشي چې دا شين رنګې فضا او هوا د آسمان په ليدو کښې دې خنډ څکه نه جوړيږي چې دا دې ډيره رنړه وي او که څه دليل سره ثابته شي چې په دنيا کښې د آسمان ليدل د سره نشي کيدې نو بيا په دې آيت مبارک کښې دليدلو نه مراد عقلي ليدل يعنې غور او فکر کول دی .[ بيان القرآن](١).

[وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ ] دلته د مصابيح نه مراد ستوري دی . دې نه مراد دا نه دې چې ګنې په لاندينې آسمان کښې ستوري انښتي دي بلکه د دې دا مطلب هم کيديشي چې ستوري د آسمان نه ډير لاندې په خلا کښې وي څنګه چې نوې تحقيق نه معلوميږي . د شيطانانو دواپس تمبولو دپاره دستورو د شغلې جوړيدلو مطلب دادې چې دغه شغله په اصل کښې ستورې يا د ستوري برخه نه وي بلکه د ستوري پشان رنړا کوونکې څيز ښکاري څکه د ستوري ماتيدو ګمان پرې کيدې شي او په عربئ کښې ورته هم [ انقضاض الكوكب ] ونيلې شي. [قرطبی ](٢).

دې نه معلومه شوه چې کوم شيطانان د خبرونو غلا کولو دپاره آسمان ته ختل غواړي هغه دستورو نه هم لاندې مخ په شا تمبولې شي ،[ قرطبی ](٣) تردې پورې په مختلفو مخلوقاتو کښې د غور ، فکر په ذريعه د الله ﷻ د کامل علم او قدرت دليلونه بيان شو ،وروسته د منکرانو او کافرانو د عذاب او بيا د مؤمنانو اوفرمانبردارو خلقو ثواب بيان شوې دې .

[هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ذَلُوْلًا ] د ذَلُوْلًا لفظي معنې تابعداري او فرمانبرداري ده ، داسې خاروی ته ذلول وائي چې په سورلئ او بارولو کښې اړې او شوخي نه کوی . مناکب د منکب جمع ده اوږې ته ونيلې شي . ديو خاروی هم اوږه د سوريدو او بارولو ځائې نه وی . خو د دې مطلب دادې چې کوم خاروې د سوريدو او بارولو دپاره خپلې اوږې هم پيش کړی ، هغه ډير تابعدار او اصيل کيديشی څکه ئې اوفرمائيل چې زمکه مو تاسو دپاره داسې تابعداره جوړه کړه چې تاسو د دې په اوږو باندې ګرځئ ، زمکه الله ﷻ په دې شان جوړه کريده چې د اوبو پشان نرمه او بهيدونکې هم نه ده. نه د مالوچو او ختې په شان ده چې په کښې خوک ورډوب شي، که داسې وې نو خوک به پرې دپاسه تينګ شوی نه وې ، دغسې ئې زمکه لکه د ګټې او اوسپنې په شان هم جوړه نه کړه که داسې وی نو په کښې به فصل نه شو کرلې . او په کښې به نهرونه او کوهی نشو کنستې . د لوړو لوړو عمارتونو د بنياد دپاره د دې کنستل به نه شو کيدې . په دې موجوده شان کښې ئې زمکه داسې په سکون جوړه کړه چې په هغې عمارتونه ايساريدې شي او ګرځيدونکی راګرځيدونکی پرې نه خوځيږي .

---

(١) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٣ ص:٨١٣] (طبع دار الإشاعت كراچی)

(٢) تفسير القرطبي تفسير سورة الجن[ ج:١٩ص:١٤]

(٣) تفسير القرطبي [ ج:١٨ص:٢١١]

[وَكُلُوا مِنْ رِّزْقِهٖ ۖ وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ] اول ئې دزمکې په ارخونو کښې د گرځيدو هدايت اوکړو او بيا ئې اوفرمايېل چې د الله ﷻ روزی خورئې په دې کښې اشاره کيدېشي چې تجارت دپاره سفر اودمال لګولو او حاصلولو دالله ﷻ د روزئې دروازه ده په : وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ] کښې ئې اوخودل چې دخوراک څښاک او استوګنې وغيره فائدې د زمکې نه دحاصلولو اجازت دې خود مرګ او آخرت نه مه بې فکره کيږئې . چې آخر هم دې ته واپس راګرځيدل دی ، په زمکه کښې اوسيدو سره د آخرت په تيارئې کښې لګيا اوسئ . په دې کښې ددې خبرې نه ويرولې شوی وو چې آخر په قيامت کښې الله ﷻ ته بيرته راګرځيدل دی ، وروسې پدې خبرداري ورکړې شوې دې چې په زمکه باندې داستوګنې کولو په وخت هم دالله ﷻ عذاب راتلې شی نو فرمائی چې : [ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِى السَّمَآءِ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ فَاِذَا هِىَ تَمُوْرُ ۙ]

يعنی آيا تاسو ددې نه بې ويرې يئ چې د آسمان خاوند تاسو په زمکه ورننه باسی او زمکه تاسو په يوغرب تير کړی ، يعنی اګر چې زمکې ته الله ﷻ داسې برابر شان ورکړې دې چې ددې د کنستو نه بغير څوک دننه نشی ورکوزيدې . خو هغه په دې هم قدرت لری چې دې لره داسې جوړ کړی چې هم دا زمکه هغه خلق په يوغرب تير کړی کوم چې پرې دپاسه اوسيږی . دې نه پس ئې په دنيا کښې اوسيدونکی په يو بل شان عذاب سره او ويرول چې که الله ﷻ غواړی نو ستاسو دپاسه د آسمان نه په کاڼو ورولو سره هم تاسو هلاکولې شی دالله ﷻ نه منکر اونافرمانه دې په دې دنيا کښې نه بې فکره کينی .

[اَمْ اَمِنْتُمْ مَّنْ فِى السَّمَآءِ اَنْ يُّرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ۖ فَسَتَعْلَمُوْنَ كَيْفَ نَذِيْرِ] يعنی آيا تاسو ددې نه بې ويرې يئ چې د آسمان خاوند درباندې د آسمان نه کاڼی راؤروی دغه وخت به تاسو ته ددې ويرولو انجام معلوم شی نو دغه وخت به معلوميدل بې فائدې وی ، نن چې تاسو صحيح سالم ، په حفاظت او امن کښې يئ نو ددې فکر اوکړئې ، دې نه پس دهغې پخوانو قومونو واقعاتو ارخ ته اشاره اوکړه په کومو چې د الله ﷻ عذاب نازل شوې دې . مطلب دا دې چې دهغوئ دحال نه عبرت حاصل کړئې . د [وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ] مطلب هم دا دې ، دې نه پس بيا د سورة اصل مضمون طرف ته رجوع ده چې د ممکناتو او مخلوقاتو د حالاتو نه د الله ﷻ په توحيد او علم او قدرت باندې دليل نيول دی . پخپله د انسان په ځانونو ،آسمان او ستورو زمکې وغيره د حالتونو بيان روميې راغلې دې وروسې دهغې مارغانو بيان دې چې په آسمانی فضا کښې الوځی راالوځی .

[اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ] آيا دوئ پخپلو سرونو دپاسه پورته الوتونکی مارغان نه وينی چې کله خپل وزرونه خواره کړی او کله ئې راغونډ کړی .

په دې کښې چې غور اوکړئې چې دا وزنی جسمونه دی چې دعامې قاعدې مطابق په هوا کښې نشی ايسارېدې بلکه په زمکه راغورزيږی . دې لره هوا هم نشی راايسارولې خو الله ﷻ پخپل کامل قدرت سره د اساداره ځيزونه په داسې شان سره جوړ کړی دی چې په هوا باندې ايساريدېشی . په هوا باندې دخپلو جسمونو پيتې اچوی او په دې کښې لامبوی وهونکی ګرځی راګرځی . دې بې عقله او بې شعوره مخلوق ته الله ﷻ داسليقه خودلې ده چې د خپلو وزرونو خورولو او راغوندولو په ذريعه هوا لره تابع کوی او ښکاره خبره ده چې په هوا کښې دا صلاحيت پيدا کول د مارغانو وزرونه په دې شان جوړول ، بيا مارغانو ته دخپلو وزرونو

په ذريعه د هوا د ايسارولو سليقه خودل دا ټول د الله ﷻ كامل قدرت دي.
تردي پورې د ممكناتو او موجوداتو د مختلفو قسمونو په حالاتو كښې د غور، فكر كولو په ذريعه د الله ﷻ د موجود والي توحيد او بې مثله علم او قدرت دليلونه جمع كړې شو چې څوک هم لږ شان غور، فكر كوى نو په الله ﷻ باندې د ايمان راوړلو نه بغير نې بل څه علاج نه وى. وروستو د سورت تر ختميدو پورې كافران، فاجران منكران او بد عمله خلق د الله ﷻ د عذاب نه ويرولې شوى دى او په دې خبرداري وركړې شو چې كه الله ﷻ په يو قوم باندې عذاب نازلول غواړي نو د دنيا هيڅ طاقت ئې نشى ايسارولې، ستاسو سپاهيان او ستاسو لښكرې د الله ﷻ نه تاسو نشى بچ كولې نو فرمائى چې:
[أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي هُوَ جُندٌ لَّكُمْ يَنصُرُكُم مِّن دُونِ الرَّحْمَٰنِ ۚ إِنِ الْكَافِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ] دې نه پس دې نه او ويرولې شو چې د الله ﷻ كوم رزق تاسو ته د آسمان نه د اوبو راورولو او زمكې نه د زرغنې راټوكولو په ذريعه چې حاصليږى هغه ستاسو څه ذاتى جاگير نه دې بلكه د الله ﷻ وركړه او بخشش دې، الله ﷻ دې لره حصارولې هم شى. دَ [أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُ] هم دا مطلب دې، وروستو د كافرانو په حال باندې افسوس دې چې د قدرت په نښو نښانو كښې نه خپله غور كوى او نه د نورو خودونكو خبرې لره آورى. [بَل لَّجُّوا فِي عُتُوٍّ وَنُفُورٍ] يعنى دا خلق په مخه خپلې سركشئ او حق نه په لرې كيدو كښې وده كوى. وروستو په ميدان د قيامت كښې به چې د كافر او مؤمن كوم حال وى د هغې بيان دې چې د قيامت په ميدان كښې به كافران په دې شان حاضرولې شى چې د پښو په ځائې به په سر كرځى. صحيح بخارى او مسلم شريف كښې د حضرت انس ؓ روايت دې چه صحابه كرامو سوال اوكړو چه كفار به په سرونو څنګه اوګرځى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ فرمائيلى دى چې كوم ذات دوئ په پښو باندې روان كړى دى، آيا هغه په دې باندې قادر نه دې چې دوئ لره په خپلو سرونو او مخونو باندې روان كړى(١)، په دې آيت كښې بيان كړى دى چې:
[أَفَمَن يَمْشِي مُكِبًّا عَلَىٰ وَجْهِهِ أَهْدَىٰ أَمَّن يَمْشِي سَوِيًّا عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ] يعنى آيا هغه څوک چې پر مخې روان وى زيات هدايت موندونكې دى يا هغه چې نيغ روان وى؟ د نيغ تلونكې نه مطلب مؤمن دې، چې هدايت موندونكې هم هغه كيديشى، وروستو په انسانى جوړښت كښې د الله ﷻ د قدرت او حكمت څو ننداري بيان كړې شوى دى.
[قُلْ هُوَ الَّذِي أَنشَأَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ ۖ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ] يعنى تاسو اووايئ چې هم الله ﷻ هغه ذات دې چې چا تاسو پيدا كړئ او ستاسو غوږونه، سترګې او زړونه ئې جوړ كړل مګر تاسو خلق شكر نه اوباسئ.

**د آوريدو، ليدو او زړه خاص ذكر:** دې كښې د انسانى اندامونو څينې د هغې درېو اندامونو بيان دې چې پرې باندې علم ادراک او شعور اړه لرى. نو فلسفيانو د علم او ادراک پنځه ذريعې بيان كړى دى چې ورته پنځه حواس وئيلې شى يعنى آوريدل، ليدل، بوييول، څكل، او لاس وغيره سره معلومول خو د بوييولو د پاره پوزه، څكلو د پاره ژبه اود لګولو قوت په

---

(١) صحيح البخاري كتاب الرقاق باب كيف الحشر [ج:٢ص:٩٦٥] و صحيح مسلم كتاب صفة القيامة باب فى الكفار [ج:٢ص:٣٧٤]

بدن کښې الله ﷻ ایخودې دې آوریدلو دپاره غوږونه اولیدو دپاره ئې سترګې جوړې کړې دي. دلته الله ﷻ په دې پنځو څیزونو کښې صرف د دوؤ بیان کړې دې چې هغه غوږونه او سترګې دي، وجه داده چې په بویولو، څکلو اولاس وغیره وراوړلو سره د ډیرو کمو څیزونو علم انسان ته حاصلیږی ددې د معلوماتو لویه اډانړه په آوریدو او اولیدو ده او په دې کښې ئې هم آوریدل وړاندې کړل. په غور کولو سره معلومیږی چې انسان ته په خپل عمر کښې څومره معلومات چې حاصل شوی دی په هغې کښې آوریدلی څیزونه د لیدلو څیزونو په نسبت ډیر زیات وی څکه دلته د پنځو حواسو څینې صرف په دوؤ بس والې شوې دې څکه چې زیات انسانی معلومات په دې دوؤ لارو سره حاصلیږی. او دریم څیز ئې زړه خودلې دې چې هغه اصل بنیاد اود علم مرکز دې په غوږونو سره آوریدلی په سترګو سره د لیدلو، څیزونو علم هم په زړه باندې اړه لری. د قرآن پاک ډیر آیتونه په دې ګواه دی چې زړه د علم مرکز ګرځولې شوې دې په خلاف د فلسفیانو نه چې هغوئ د ماغ لره ددې مرکز منی.

دې نه پس بیا کافرانو او منکرانو ته خبرداري دې اود عذاب د وعید بیان دې. په آخر د سورت کښې ئې بیا یو جمله دا ارشاد اوفرمائیله چې په زمکه اوسیدونکو اوپه کښتو سره کوهی جوړونکی، ددې داوبو نه د خپلو څکلو، څکولو او د فصل د راټوکولو کار اخستونکو دا خبره مه هیروئی څکه چې دا ټول څیزونه ستاسو څه ذاتی جاګیر نه دې خالص د الله ﷻ ورکړه ده چې هغه اوبه راؤرولې اودغه اوبه ئې د واؤرې په شکل کښې بحر منجمد جوړ کړو او د غرونو په سرونو ئې بار کړې چې دسخا کیدو او خرابیدو نه په حفاظت کښې پاتې شی، بیا ئې دغه واؤره رو رو ویلې کړه، د غرونو د رګونو په ذریعه ئې په زمکه کښې دننه ورښکته کړې، اوبغیر د څه نلکې او پائپ نه ئې په ټوله زمکه کښې د دې داسې جال خور کړو چې هر چرته په زمکه کښتو سره تر دغه اوبه حاصلولې شی خو کومې اوبه چې دزمکې په سطح دپاسه الله ﷻ ایخودی دی څو فوټه یا څو ګزه زمکې کښتو سره راویستلې شی. دا د مالک اوخالق ورکړه ده که هغه اوغواړی نو دغه اوبه به زمکه کښې ژورې ورښکته کړی چې تاسو به ورته نشئ ور رسیدې.

[قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَأْتِيكُم بِمَآءٍ مَّعِينٍ ۝] یعنی تاسو خلقو ته اوښایئ چې په دې خبره باندې غور اوکړی چې کومې اوبه دکوهیانو په ذریعه په آسانئ سره راؤباسی اوڅکئ که دغه اوبه دزمکې په زور والی کښې ښکته لاړې شی نو ستاسو کوم یو طاقت دې چې دغه جاری اوبه حاصلې کړې شی، په حدیث شریف کښې راغلی دی چې کله انسان دا آیت مبارک تلاوت کړی نو داسې دې اولولی چې [اَللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ] یعنی الله رب العالمین چې دې، بیا دې لره راؤړې شی زمونږ دهیچا دغه طاقت نشته.

تمت سورة الملک بحمدالله فی ثالث رجب ۱۳۹۱هجری یوم الخمیس

| رکوع گاني | سورة القلم مكية وهي اثنتان وخمسون اٰية وفيها ركوعان | اٰياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکي دي | ۵۲ |

نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ۝ مَآ اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ

ن قسم دي په قلم | او په هغه څيز | چي ليکونکي ئې ليکي | نه ئې ته | په فضل د رب خپل سره |

نون | په قلم باندې قسم دې | او په هغې چې (فرښتې) ئې ليکي | ستا د رب مهرباني ده چې ته

بِمَجْنُوْنٍ ۝ وَاِنَّ لَكَ لَاَجْرًا غَيْرَ مَمْنُوْنٍ ۝ وَاِنَّكَ

ليوني | او بيشکه تالره دي | خامخا اجر | چې نه دي ختميدونکي | او بيشکه ته |

ليوني نه يئ | اوستا د پاره داسې اجر دې | چې ختميدونکي نه دې | او ته د اوچتو اخلاقو په

لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ۝ فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ۝ بِاَيِّكُمُ

داوچتو اخلاقو مالک يئ | نو ډير زر به ته هم اووينې | او هغوئ به هم اووينې | چې په کوم يو له تاسو نه

اوچته مرتبه يئ | نو ته به هم اووينې او دوئ به هم اووينې | ..................چې په تاسو کښې

الْمَفْتُوْنُ ۝ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ

ليونتوب دي | بيشکه رب ستاسو چې دې | هغه ښه پيژني | هغه څوک | چې بې لارې شوې دي

څوک ليوني دې | بيشکه ستا رب په هغه چا ښه پوهه دې څوک چې ئې د لارې نه بې لارې

عَنْ سَبِيْلِهٖ ص وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝ فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِيْنَ ۝

دلارې دهغه نه | او هغه ښه پيژني | برابره لار موندونکي | پس مه منه خبره | د دروغ گڼرونکو خلقو

شوې وي | او هغه ته هغه خلق ښه معلوم دي په نيغه لار روان دي | نو ته د دروغ گڼرونکو تابعداري مکوه

وَدُّوْا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُوْنَ ۝ وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ

غواړي دوئ | که ته نرمي اوکړې | نو دوئ به هم نرمي اوکړي | او خبره مه منه | د هر قسم خور

دوئ خو دا غواړي چې ته نرم شې | نو دوئ به هم نرم شي | او د هر قسم خور تابعداري هم کوه

مَّهِيْنٍ ۝ هَمَّازٍ مَّشَّآءٍۭ بِنَمِيْمٍ ۝ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ

سپک سړي | عيب ويونکي | وړونکي د چغلۍ | منع کونکي خير لره | ادحد نه اوړيدونکي |

چې سپک دې | عيب لگونکي دې | گرزنده چغل خور دې | د نيکئ د کارونو منع کونکي دې | احد نه

اَثِيْمٍ ۝ عُتُلٍّۭ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ ۝ اَنْ كَانَ ذَا مَالٍ

سخت گنهگار | بدخويه | پس د دې تولو عيبونو نه | بداصله دې | په دې وجه چې وو هغه | خاوند دمال

تيريدنکي دې غټ گناهگار دې | بدخويه دې | د دې هر څه نه علاوه بد ذاته دې | دا څکه چې دې دمال

وَّبَنِيْنَ ۝ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝

او داولاد | کله چې | اولوستې شي | په هغه باندې | آيتونه زمونږه | نو وائي قيصې دي دمخکينو خلقو

او اولاد خاوند دې | اکله چې ورته زمونږ اياتونه اولوستې شي | نو وائي چې دا خو د پخوانو خلقو د دروغو قصې دي

سَنَسِمُهٗ عَلَى الْخُرْطُوْمِ ۝ اِنَّا بَلَوْنٰهُمْ

زر دی چی داغ به ولګوو هغه لره | په خرټم [پوزه] باندې | بیشکه مونږ په آزمیښت کښې واچولی دی دوی

مونږ به ورله زر په پوزه داغ اولګوو | ............ مونږ ددوئ داسې

كَمَا بَلَوْنَآ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ اِذْ

لکه څنګه چی مونږ په آزمیښت کښې اچولی وو | خاوندان [مالکان] دباغ | کله چی |

امتحان اخلو | لکه څنګه چې مو د باغ دخاوندانو امتحان اخستې وو | څه وخت چې هغوئ

اَقْسَمُوْا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِيْنَ ۝

هغوئ قسمونه اوخوړل | چی خامخا به پریکوی میوه دهغې | په وخت دصبا کښې |

قسم خوړلې وو | ............ چې میوه بۀ ترې سحر وختی کټ کوو |

وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ ۝ فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّنْ رَّبِّكَ

او استثنائي نۀ کوله | پس اوګرزیدو | په هغې باندې | یو ګرزیدونکې [آفت] | د طرفه درب ستا نه

او ان شاء الله ئې هم ونۀ ویلې نه وه | نو په دغه باغ ستادرب د طرف نه یو تاویدونکې عذاب راتاؤ شو

وَهُمْ نَآئِمُوْنَ ۝ فَاَصْبَحَتْ كَالصَّرِيْمِ ۝ فَتَنَادَوْا

او هغوئ | اوده وو | پس شو هغه باغ | پشان دریبلی شوی فصل | نو هغوئ آواز اوکړو یو بل ته

هغوی لا اوده پراته وو | او هغه باغ لکه د ریبلې شوې فصل پشان پاتې شو | نو هغوئ

مُصْبِحِيْنَ ۝ اَنِ اغْدُوْا عَلٰى حَرْثِكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰرِمِيْنَ ۝

په وخت دصبا کښې | چی سحر وختی ورشئ فصل خپل ته | که یئ تاسو | رشتونکی [لوکونکی] |

صبا یوبل ته نعرې کړې | چې خپل فصل ته وختی اورسیږئ | که میوه تولول غواړئ

فَانْطَلَقُوْا وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ ۝ اَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا

پس روان شو هغوئ | او هغوئ دیو بل سره پټې پټې خبری کولې | چی هرګز داخل نۀ شی دې باغ ته |

غرض دا چې تول روان شول | او پټې پټې خبرې ئې کولې | چې [اګوریۀ] نن تاسو ته

الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِّسْكِيْنٌ ۝ وَّغَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ

نن ورځ | په تاسو باندې | یو مسکین | او سحر وختې لاړل | په فیصله دنۀ ورکولو فقیرانو ته |

یو مسکین هم رانشي | ............ او پخپل قدرت [اوتدبیر] مغروره په تیزئ سره سحر وختی

قٰدِرِيْنَ ۝ فَلَمَّا رَاَوْهَا قَالُوْٓا

[لکه چی] هغوئ قادر دی [په شوکولو دمیوو] | پس هر کله چی | وې لیدو هغه باغ | نو وې وئیل |

اورسیدل | ............ نوچې دا [تباه شوې باغ] ئې اولیدو نو وې وئیل

اِنَّا لَضَآلُّوْنَ ۝ بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ۝ قَالَ اَوْسَطُهُمْ

بیشکه مونږه لاره ورکه کړې ده | بلکه مونږه | محرومه پاتې شو | اووئیل [دتولونه بهترسړی دهغوئ

چې [غالبا] مونږلاره خطا کړې ده | بلکه رښتیا دا ده چې قسمت موبند دې | په هغوئ کښې لږ ښه سړی دا ووئیل

اَلَمۡ اَقُلۡ لَّكُمۡ لَوۡلَا تُسَبِّحُوۡنَ ۝ قَالُوۡا سُبۡحٰنَ

آیا ما نه ووٌ وئیلی | تاسو ته | چې ولې نه وایئ تاسو تسبیح | اووئیل هغوئ | پاکي ده

ماتاسو ته نه وو وئیلی چې دالله ﷻ پاکي ولې نه بیانوئ | ............ بیانئ اووئیل چې پاک دی

رَبِّنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِیۡنَ ۝ فَاَقۡبَلَ بَعۡضُهُمۡ عَلٰی بَعۡضٍ

رب زمونږ لره | چې بیشکه ووٌ مونږه | ظالمان | بیا مخ کړو | خینو دهغوئ | خینو نورو ته

زمونږ رب | بیشکه هم مونږ خطاکار وو | بیا ئې یوبل ته کتل او الزامونه لګول ئې شروع کړل

یَّتَلَاوَمُوۡنَ ۝ قَالُوۡا یٰوَیۡلَنَآ اِنَّا كُنَّا طٰغِیۡنَ ۝

چې یو بل ئې ملامته کولو | اووئیل هغوئ | اے افسوسه زمونږه | بیشکه ووٌ مونږه | سرکشه

بیانئ اووئیل | ............ چې هائې افسوس دی په مونږ | هم مونږ د حد نه تیرید ونکی یو

عَسٰی رَبُّنَآ اَنۡ یُّبۡدِلَنَا خَیۡرًا مِّنۡهَآ اِنَّآ

امید دی چې رب زمونږه | په بدله کښې راکړی مونږ له | بهتره | ددې نه | بیشکه مونږه

امید دی چې مونږ ته خپل رب ددې نه غوره [باغ] په بدله کښې راکړی | بیشکه مونږ

اِلٰی رَبِّنَا رٰغِبُوۡنَ ۝ كَذٰلِكَ الۡعَذَابُ ؕ وَلَعَذَابُ الۡاٰخِرَةِ اَكۡبَرُ

رب زمونږ ته | رجوع کونکی یو | همدارنګې وی عذاب | او خامخا عذاب دآخرت | ډیر لوئ دی

خپل رب ته رجوع کونکی یو | عذاب [چې راځی نو] داسې راځي او د آخرت عذاب ډیر لوئې دی

لَوۡ كَانُوۡا یَعۡلَمُوۡنَ ۝ اِنَّ لِلۡمُتَّقِیۡنَ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ جَنّٰتِ

افسوس که وې دوئ | چې پوهیدلې | بیشکه دپاره دمتقیانو | په نز درب دهغوئ | جنتونه دی

کاش ! دوئ پرې پوهیدلې | ............ دپرهیزګارانو دپاره خپل د رب سره د

النَّعِیۡمِ ۝ اَفَنَجۡعَلُ الۡمُسۡلِمِیۡنَ كَالۡمُجۡرِمِیۡنَ ۝

دنعمتونو نه ډك | آیا پس اوګرخوؤ مونږه حال | دمسلمانانو | پشان دمجرمانو

آرام باغونه دی | نوآیا مونږ به منونکی دمجرمانو سره برابروو

مَا لَكُمۡ ۟ كَیۡفَ تَحۡكُمُوۡنَ ۝ اَمۡ لَكُمۡ كِتٰبٌ

څه شوی دی تاسو لره | څرنګې | حکم کوئ تاسو | آیا ستاسو سره | کتاب شته

دا په تاسو څه شوی دی | دا تاسو څنګه فیصلې کوئ | آیا تاسو سره [آسمانی] کتاب شته

فِیۡهِ تَدۡرُسُوۡنَ ۝ اِنَّ لَكُمۡ فِیۡهِ لَمَا

چې په هغې کښې | تاسو لولئ [دا] | چې بیشکه تاسو لره دی | په هغې کښې | خامخا هغه څیز

چې تاسو په کښې [حکمونه الولئ] | چې په هغې کښې ستاسو د خوښې څیزونه لیکلی

تَخَیَّرُوۡنَ ۝ اَمۡ لَكُمۡ اَیۡمَانٌ عَلَیۡنَا بَالِغَةٌ

چې تاسو ئې خوښوئ | یا دی تاسو لره | قسمونه | په مونږ باندې | چې رسیدلی دی |

[پراته] دی | یا زمونږ په ذمه ستاسو باره کښې قسمونه [خوړلی] پراته دی

إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ۙ إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ ﴿٣٩﴾

دورخې دقیامته پورې | چې بیشکه وی به تاسو لره | خامخا هغه | چې تاسو پرې حکم کوئ

چې تر قیامته به باقی پاتې وی | اوتاسوته به دخپلو فیصلو مطابق [نعمتونه] درکولې شی

سَلْهُمْ أَيُّهُم بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ ﴿٤٠﴾ أَمْ لَهُمْ

تپوس اوکړه ددوئ نه | چې کوم یو ددوئ | په دې باندې | ذمه وار [ضامن] دې | یا دوئ لره دی

د دوی نه تپوس اوکړه| ...... چې په دوئ کښې څوک ددې ذمه وار دې؟ | یادوئ [دالله ﷻ] شریکان جوړ

شُرَكَاءُ ۚ فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَائِهِمْ إِن كَانُوا صَادِقِينَ ﴿٤١﴾ يَوْمَ

شریکان | پس رادولی | شریکان خپل | که وی دوئ | ربنتینی | په کومه ورځ

کړې دی | که داسې وی نو پکار دی چې دوئ خپل شریکان راولی| که چرې دوئ ربنتونی وی | په کومه ورځ

يُكْشَفُ عَن سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ

چې به ښکاره کړې شی | پنډۍ | او دوی رااوبللې شی | سجدې کولو ته |

چې پنډۍ به بربنده کړې شی | ...........او دوئ به سجدې ته راغوښتې شی | خو سجده به

فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿٤٢﴾ خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ

پس هغوئ به طاقت نه لری دسجدې کولو | ښکته [ذلیله] به وی | سترګې ددوئ | راګیر کړی به وی دوئ لره

نشی کولې| ............ سترګې به ئې ټیټې وی | ذلت به پرې راخور وی | حال دا دې چې

ذِلَّةٌ ۖ وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ وَهُمْ سَالِمُونَ ﴿٤٣﴾

| ذلت | او بیشکه وو دوئ | چې رابللې کیدل به | سجدې کولو ته | او دوئ | صحیح سالم وو

[په دنیا کښې] دوئ به سجدې ته رابللې شول| ............ اوښه روغ رمټ وو

فَذَرْنِي وَمَن يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ ۖ سَنَسْتَدْرِجُهُم

پس پریږده ما | او هغه څوک چې دروغ ګڼړی | دا کلام [قرآن] | ادیر زر به مزه مزه بوخو دوئ لره تباهئ ته

نو ته پریږده ما اودا کلام دروغ ګڼړونکی | ...........مونږ دوئ مزه مزه داسې ځائې ته ورانډې کوؤ

مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٤٤﴾ وَأُمْلِي لَهُمْ ۚ إِنَّ كَيْدِي

په داسې طریقه | چې دوئ به پرې نه پوهیږی | او زه مهلت ورکوم | دوئ له | بیشکه تدبیر زما

چې دوئ ته خبر هم نشته | .........اوزه دوئ ته مهلت ورکوم | بیشکه زما تدبیر

مَتِينٌ ﴿٤٥﴾ أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ

سخت محکم دی | آیا ته غواړې ددوئ نه | څه اجر | چې دوئ ګڼی | دتاوان دوجې نه

ډیر پوخ دی | آیا ته د دوئ نه څه اجر غواړې | چې دوئ دهغې د تاوان [ادا کولو] نه

مُّثْقَلُونَ ﴿٤٦﴾ أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴿٤٧﴾ فَاصْبِرْ

درانه کړې شوی دی | آیا ددوئ سره | علم غیب دی | چې دوئ ئې | لیکی | پس صبر کوه

عاجزه دی؟ | اوکه دوئ سره د غیبو څه خبر دې | .........چې دوئ هغه لیکی | نو ته دخپل

لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادٰى

حکم درب خپل ته | او مه کیږه ته | پشان دملګری دماهی | کله چې | هغه آواز اوکړو |

رب حکم راتلو ته صبر کوه| اود مهی دخاوند (حضرت یونس) په شان مه کیږه|چې خپل رب ته ئې آواز اوکړو

وَهُوَ مَكْظُومٌ ۝ لَوْلَآ أَنْ تَدٰرَكَهُ نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهِ

او هغه وو | ډك دغم نه | كه نه وې دا خبره | چې اورسیږي هغه ته | نعمت | دطرفه درب خپل نه

او په غم کښې ډوب وو | ..........كه دخپل رب نعمت راتینګ کړې نه وې |

لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ مَذْمُومٌ ۝ فَاجْتَبٰهُ

نوخامخا به غورزولې شوې وې |په سپیره میدان|اوپه هغه به ملامتی ونیلې کیده|پس غوره کړوهغه لره

نو په داګه میدان به غورزیدلې پروت وو | او په بدحال به اخته وو | نوبیا خپل رب هغه نور

رَبُّهُ فَجَعَلَهُ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ وَإِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ

رب دهغه | پس وې ګرزوو هغه | دصالحانو نه | او بیشکه نزدې دی | هغه کسان

غوره کړو | او په صالحانو کښې ئې شامل کړو | ............اوداسې ښکاری چې داکافران

كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِأَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ

چې کفر ئې کړې دی| چې اوبه خویه وی تالره | په سترګو خپلو سره| هر کله چې هغوئ واوریدو قرآن

به تا د سترګو په نظر اوخویه وی | څه وخت چې دوئ قران پاک واوری

وَيَقُوْلُوْنَ إِنَّهُ لَمَجْنُوْنٌ ۝ وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ

او وایی هغوئ | چې بیشکه دی | خامخا لیونې دی | او نه دی دا قرآن | مګر | نصیحت دی

او دوئ وائی چې داخو لیونې دی | ...............حال دادی چې داقرآن پاک خو د ټولو

لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝

دپاره دمخلوقاتو دټول جهان |

جهانونو دپاره نصیحت دي

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره) قسم دی په قلم باندې، او په هغه څیز باندې چه هغوی ئې لیکی دخپل پروردګار په فضل سره ته لیونې نه ئې. او یقین اوکړه، ستا دپاره داسې اجر دی، چه چرې هم ختمیدونکې نه دی. او یقیناً ته د اخلاقو په اعلیٰ درجه باندې ئې. نو ته به هم اووینې، اودا خلق به هم اووینی. چه په تاسو کښې څوک په لیونتوب کښې مبتلا دی یقیناً ستا پروردګار هغه باندې هم ښه پوهه دی، کوم چه د خپلې لارې نه بې لارې شوی دی، او هغې خلقو باندې هم ښه پوهه دی، کومو چه نیغه لار موندلې ده. پس ته دهغه خلقو په خبرو کښې مه راځه، کوم چه (حق) دروغژن ګڼړی دوی غواړی که ته نرم شې نو دوی به هم نرم شی او چرته هم د داسې سړی په خبرو کښې مه راځه، چه ډیر قسمونه خوړونکې او بې عزته سړی دی د پیغورونو ورکونکې او ډیر ګرځیدونکې دی په چغلۍ سره. د خیر نه منع کونکې، زیاتې

کونکې او بدعمله دې. بد اخلاقه دې. او ددې نه علاوه بشکته نسب والا هم دې. صرف ددې وجې نه چه دې ډېر مال او اولاد والا دې چه کله ده ته مخکښې زمونږ آیتونه لوستلې کیږي. نو وائي چه دا د پخوانو خلقو قصې دي. زر ده چه مونږ به ده په خرتم باندې داغ اولګوو یقیناً مونږ دوی (یعنی مکې والا) په داسې آزمائش کښې اچولې دي. لکه چه (یو) باغ والا مو هغه وخت په آزمائش کښې اچولي وو. چه کله هغوي قسمونه خوړلي وو. چه ضرور د صبا کیدلو سره به مونږ د باغ میوې لره پریکوو او (دې وینا سره) هغوي څه استثناء نه کوله بیا دا اوشو. چه کوم وخت هغوي اوده وو. هغه وخت ستا د پروردګار د طرف نه یوه بلا په هغې باغ باندې راغله. چه هغې سره هغه باغ د سحر په وخت کښې د لوکرې شوې فصل پشان شو بیا سحر وخت هغوي یو بل ته آواز ورکړو. چه که میوې شوکوئ. نو خپل پټي طرف ته وخت اوځئ نو هغوي روان شول. او یو بل سره ئې دا پټې پټې خبرې کولې. چه نن به یو مسکین هم په تاسو باندې دې باغ ته نه داخلیږي اوهغوي ډیر په طاقت کښې تیز تیز تګ سره اووتل بیا ئې چه کله هغه باغ اولیدو. نو وې وئیل چه: مونږ خامخا لاره ورکه کړې ده (بیا ئې څه لږ وخت پس اووئیل چه) نه! بلکه مونږ لوټ کړي شوي یو. په هغوي کښې چه کوم سړې د ټولو نه ښه وو هغه اووئیل: آیا ما تاسو ته وئیلي نه وو. چه تاسو تسبیح ولې نه کوئ؟ وې وئیل: مونږ د خپل پروردګار تسبیح کوو. یقیناً مونږ ظالمان وو. بیا یو بل طرف ته متوجه شول. یو بل ئې ملامته کول. (بیا) ټولو (په اتفاق سره) اووئیل چه: افسوس دې په مونږ ټولو باندې. یقیناً مونږ ټولو سرکشي اختیار کړې وه. نزدې ده. چه زمونږ پروردګار مونږ ته ددې باغ په بدله کښې ددې نه ښه را کړي. بے شکه مونږ خپل پروردګار طرف ته رجوع کوو عذاب هم دغه شان وي. او د آخرت عذاب یقیناً د ټولو نه لوئې دې کاش چه دا خلق پوهیدلې. البته د متقیانو دپاره د هغوي پروردګار سره د نعمتونو نه ډک باغونه دي. آیا مونږ به فرمان بردار خلق د مجرمانو سره برابر کړو. تاسو ته څه شوې دي؟ تاسو څرنګه فیصلې کوئ؟ آیا تاسو سره څه کتاب دې. چه تاسو په هغې کښې لولئ؟ چه تاسو ته به هلته هغه څه ملاویږي. چه تاسو ئې خوښوئ؟ یا تاسو زمونږ نه د قیامت د ورځې پورې باقي پاتې کیدونکې قسمونه اخستلې دي. چه تاسو ته به هغه څه ملاویږي. چه تاسو ئې فیصله کوئ. (اے پیغمبره) دوی نه تپوس اوکړه. چه: په دوی کښې څوک دې. چه هغه ددې خبرې ضمانت اخستلې دې. آیا په خدائي کښې ددوی مثلې شوې څه شریکان دي. (چه دا ضمانت ئې اخستلې دې) نو بیا دې راولي خپل هغه شریکان. که دوی رښتونې دي. په کومه ورځ چه لرې به کړې پرده د پنډۍ نه او دوی به سجدې ته راوبللې شي. نو دوی به سجده نشي کولې ددوی سترګې به ټیټې وي. او دوی لره به ذلت پټ کړې وي. او یقیناً دوی به هغه وخت هم بللې کیدل سجدې ته. چه کله دا خلق روغ رمټ وو (هغه وخت سره د قدرت نه به دوی انکار کولو). لهٰذا (اے پیغمبره) کوم خلق چه دا کلام دروغ ګڼري. هغوي ماته پریږده. مونږ دوی په دمه دمه (ئیاهل طرف ته) بوځو. چه دوی ته پته هم نه لګي. او زه دوی ته مهلت ورکوم یقیناً زما تدبیر ډیر مضبوط دې. آیا ته ددوی نه څه اجرت غواړې. چه د تاوان د بوجه نه دوی درانه شوې دي؟ یا دوی سره د غیبو علم دې. چه دوی ئې لیکي؟ غرض دا چه ته د خپل پروردګار حکم راتللو پورې صبر کوه. او د مچې والا پشان مه کیږه. چه کله ئې آواز اوکړو مونږ ته. او هغه د غم نه ډک وو. او که نه وې رسیدلې ده ته فضل د رب ده. نو دې به په بد

حالت کښې دغه شان په داګه میدان کښې څرګنده شوې وه بیا دغه په پروردګار هغه لره څوره کړو، او هغه ئې په صالحینو کښې شمار کړو. کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، چه کله د نصیحت دا خبره واورې، نو داسې ښکارې، چه دوی به په خپلو (تیز تیز) نظرونو سره تا وښوئوي. او وائي، چه دا سړې لیونې دې، حالانکه دا خو د ټولې دنیا د خلقو دپاره یو نصیحت دې.

## خلاصه تفسیر

﴿نٓ﴾ [ن] ددې معنی الله تعالی ته معلومه ده ﴿وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ﴾ [قسم دې په [قلم] په کوم چه دخلقو تقدیرونه په لوح محفوظ کښې ولیکلې شول [او] قسم دې [دهغو] فرښتو [په لیکلو کومې چه کاتبانې دعملونودی] حضرت ابن عباس رضي الله عنه دقلم اودما یسطرون داتفسیر کړې دې [درمنثور][1] وراندجواب دقسم دې ﴿مَا أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ﴾ [چه ته دخپل رب په فضل سره مجنون نه یې] لکه چه منکرین درسالت وائی [الکه چه په درکښې دابن جریج نه نقل شوی دی په سبب دنزول کښې][2] مطلب دادې چه ته نبی برحق یې او داقسمونه ددې مدعاسره نهایت مناسب دی ځکه چه منجمله دمقادیرونه نزول دقرآن هم دې پس په دې ایت کښې اشاره ده چه ستانبوت په علم الهی کښې داول نه محقق اوموکد دی پس ثبوت ددې یقینی شو اوعملونه لیکونکې فرښتې دتصدیق کوونکو اومنکرینو عملونو لره لیکی پس په انکاردنبوت به سزا وی ددې نه ویریدل ایمان راوړل واجب دی ﴿وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ﴾ [اوبیشکه ستاد پاره] په دې تبلیغ داحکامو [داسې اجر] ملاویدونکې [دې کوم چه] چرې [ختمیدونکې نه دی] په دې کښې هم تقریر دې دنبوت کوم چه مستلزم دې نفی دطعن کوونکو لره اودنبوت دتقریر سره متضمن دې تسلئ لره هم چه ته ځو ورځې برداشت وکړه چه انجام ددې اجر عظیم دې ﴿وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ﴾ [اوبیشکه ستا] ښکلی [اخلاق په اعلی پیمانه باندې دی] چه هرکار ستا موصوف په اعتدال اوقرین په رضادالله تعالی پورې دې اوپه مجنون کښې داخلاقو کمال کوم ځائ وی؟ داهم جواب دې دذکرشوی طعن وراندې تسلی ده یعنی دادوی چه کوم داسې مهمل بکواس کوې پس د دې غم مه کوه ځکه چه ﴿فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُونَ﴾ [دیر زربه ته هم وینې اوداخلق به هم وینې ﴿بِأَييِّكُمُ الْمَفْتُونُ﴾ چه په تاسو کښې ] حقیقې [لیونتوب په چا وو] یعنې حقیقت دجنون دې زوال دعقل او د عقل انتهاده ادراک دنفع اوضرر معتد به هغه دې چه ابدي وې پس په قیامت کښې به دوې ته معلومه شې چه عاقل اهل حق وو کوموچه دا نفع حاصله کړه او مجنونان دوې په خپله ووکوم چه ددې نفع نه محروم پاتې شول اوپه ابدې ضرر کښې اخته شول اوچونکه ﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ﴾ [ستارب هغه سړې لره هم ښه پیژنی کوم چه د دهٔ دلارې نه بې لارې شوې دې ﴿وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ﴾ اوهغه په] نیغه [لاره چلیدونکولره هم ښه پیژنی] په دې وجه به هریولره مناسبه جزا اوسزا ورکړی او ددې جزا اوسزا مناسب والې به هم دې منکرانو ته هغه وخت معلوم شی کله چه حقیقت ښکاره شی چه عاقل څوك وو اومجنون څوك وو وراندې دمنکرانو دذم بیان دې چه هرکله ته په حقه یې اودغه خلق په باطله دی ﴿فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِينَ﴾ [نوته ددې دروغژن کوونکو خبره مه منه] لکه چه تراوسه دې نهٔ ده

[1] ) تفسیرالدرالمنثور تحت هذه الآیة [ج:۱۴ ص:۶۱۹]
[2] ) تفسیرالدرالمنثور تحت هذه الآیة [ج:۱۴ ص:۶۲۰]

منلې اوداخبره هغه ده کومه چه ورانديې راخي ﴿وَدُّوْا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُوْنَ﴾ [داخلق داغواړي چه ته] نعوذبالله په خپل منصبی کارکښې چه تبليغ دې لږ شان [سست شې نودوی به هم سست شي] ستا سستيدل داچه دبت پرستی مذمت نه کوې او ددوی سستيدل داچه ستامخالفت نه کوی د سورة کافرون په تفسيرکښې حضرت ابن عباس رضی الله عنه دسستيدو داتفسيربيان کړې دې درمنثور ﴿وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِيْنٍ﴾ [اوته دچاداسې سړی خبره مه منه کوم چه ډيرقسمونه خوړونکې وی] مرادترې نه په دروغه قسم کوونکې دې عادتااکثردروغژن سړی قسمونه ډيرخوری اوکوم چه دخپلو بدوحرکتونو په وجه عندالله اوعندالخلق ﴿هَمَّازٍ مَّشَّآءٍۢ بِنَمِيْمٍ﴾ [ابې وقعته وی] دزړه خفه کولودپاره [طعنې کوونکې وی چغلی کوی ګرځي ﴿مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ﴾ دنيك كارنه منع كونكې وی دحد] اعتدال [نه تيريدونكې وی ﴿عُتُلٍّۭ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ﴾ دګناه کوونکې وی سخت مزاجه وی] او[ددې] تولو [نه علاوه بدنام] هم [وی] مرادولدزنا دې اومطلب دادې چه نورکارونه اواخلاق هم دده خبيث وی چونکه غالبا دولدزنا اخلاق اوافعال بنه نه وی په دې وجه مجازا ددې نه دامرادواخستې شو لنده داچه اول خومطلقادروغژن کوونکوبياپه خصوصي توګه چه هرکله دغه دروغژن کوونکی په دې ذمائموسره هم متصف وې لکه چه ستاپه دروغژن کونکوکښې ختی لوې لوې داسې وواو په دې درخواست کښې صرف شريك نه بلکه ددې بانې ووغرض ته دداسې سړي خبره مه منه اوهغه هم محض ﴿اَنْ كَانَ ذَا مَالٍ وَّبَنِيْنَ﴾ [په دې سبب چه هغه مال او اولاد والا وې] يعنې ددنيا وجاهت لرې اوداسې سړې داطاعت نه خکه منع کولې شي چه ددې سړي داحالت دې چه ﴿اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا﴾ [کله چې زما ايتونه دده په وړاندې اورولې شي ﴿قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ﴾ نو هغه وائي چه دابې سنده خبرې دی کومې چه د مخکينونه نقول راروانې دي] مطلب داچه دايتونو تکذيب کوی لنده دا چه ددوی دخبرې د منلونه دمنع کولواصل علت د دوی تکذيب دې اوپه دې بنائې اول ﴿لَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِيْنَ﴾ وفرمائيل بياپه طور دتخصيص پس دتعميم نه په دې مکذبينوکښې د داسې خلقو دا طاعت نه ممانعت وشوکوم چه علاوه دتکذيب نه نوربدعادتونه هم لرې د داسې خلقو دا طاعت نه ممانعت دمطلق مکذبين داطاعت دممانعت نه زيات سخت وی ليکن اصل علت به نې دغه تکذيب وې وراندې دداسې سړې دسزا بيان دې چه ﴿سَنَسِمُهٗ عَلَى الْخُرْطُوْمِ﴾ [مونږ به ډيرزر دده په پوزه داغ کيږدو] يعنی په قيامت کښې به دده په مخ او پوزه دده دکفر په وجه سره څه نښه د ذلت اود پيژندو ولګوو په کومې سره چه به هغه ښه رسواشی په مرفوع حديث کښې داسې راغلی دی لکه داسې په درکښې دی وړاندې دمکې خلقوته يوه قصه اوروی اوهغوی لره دوبال نه ويرولې شی ﴿اِنَّا بَلَوْنٰهُمْ﴾ [مونږه] چه کوم مکې والوته دعيش سامان ورکړې دې اوپه کوم چه دوې مغروره دی نومونږه [ددوی ازمائش کړې دې ] چه وګورو چه دوی ددې نعمتونو په شکر کښې ايمان راوړی اوکه ناشکری اوبې قدری کوی اوکفرکوی ﴿كَمَا بَلَوْنَآ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ﴾ [لکه چه] ددوې نه وړاندمو نعمتونه ورکړل [مونږ دباغ والو ازمائش کړې وو] داباغ په قول دحضرت ابن عباس رضی الله عنه په ملك دحبشه کښې وواوپه قول دسعيدبن جبير رحمه الله په يمن کښې لکه چه په درمنثورکښې دی اوداقصه په مکه کښې مشهوره اومعروفه وه او دکوم باغوالوچه داقصه ده ددوې دپلار په خپل وخت کښې دامعمول وو چه يوه لويه حصه ددې باغ دميوې به نې په مسکينانو باندې خرڅ کوله هر کله چه هغه مړ شو نو دغوخلقو ووئيل چه زمونږ پلار

احمق وو چه دومره آمدنی ئې مسکینانو له ورکوله که داتوله يوسونوڅومره فراغت به وي
چنانچه په دې اياتونوکښې ددوی باقی قصه ذکر ده يعنی داراتلونکې واقعه هغه وخت وشوه
﴿إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ﴾ [هر کله چه هغوخلقو] يعنی اکثرو ياخنو لکه داقول دالله تعالی دې
﴿قَالَ أَوْسَطُهُمْ﴾ [ په خپل مينځ کښې قسم وکړو چه ددې باغ ميوه به سحر خامخاخوشوکووبه
او] داسې وثوق ئې وشوچه ﴿وَلَا يَسْتَثْنُونَ﴾ [هغوی ان شاءالله هم ونه وئيلو ﴿فَطَافَ عَلَيْهَا طَائِفٌ
مِّن رَّبِّكَ﴾ پس په دې باغ ستاد رب دطرف نه يوګرځيدونکې] عذاب [وګرځيدو] اوهغه يواور
وولکه چه په درکښې دابن جريج نه دی خواه خالص اور وو يا په هواکښې ملاوشوې لکه ګرم
تپش ﴿وَهُمْ نَائِمُونَ﴾ [اوهغوی اوده وو ﴿فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ﴾ سحر هغه باغ داسې شولکه پريکړې
فصل] چه خالی مزکه پاتې شی اوځنې ځائ ريبلې شی اوسوزولې شی مګرهغوی ته ددې هيڅ
خبرنه وو [پس دسحرپه وخت] چه دخوبه پورته شو نو ﴿فَتَنَادَوْا مُصْبِحِينَ﴾ [يوبل ته ئ اوازونه
وکړل ﴿أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ إِن كُنتُمْ صَارِمِينَ﴾ چه خپل فصل ته وختی لاړشئ که تاسوميوه
شوکوئ] فصل ئ ورته مجازا ووئيل يا په دې کښې څه داسې څيزونه هم وو کوم چه تنه دار نه
وی لکه انګور وغيره يادې باغ متعلق فصل هم وی ﴿فَانطَلَقُوا وَهُمْ يَتَخَافَتُونَ﴾ [بياهغوخلقوپه
خپل مينځ کښې پټې پټې خبرې کولې روان شول ﴿أَن لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُم مِّسْكِينٌ﴾ چه نن
تاسوته څوك محتاج رانه شی او] په خپل خيال ﴿وَغَدَوْا عَلَىٰ حَرْدٍ قَادِرِينَ﴾ [ځان ئ ددې په نه
ورکولو قادروګڼلوروان شول] چه ټوله ميوه به کورته راوړو اوچاله به ترې نه څه ورنه کړو لکه
په درکښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دی ﴿فَلَمَّا رَأَوْهَا﴾ [بياچه هر کله] هلته ورسيدل او [هغه باغ
لره ئ] په دغه حالت کښې [اوليدلو ﴿قَالُوا إِنَّا لَضَالُّونَ﴾ نو وئ وئيل چه بيشکه مونږه لارهيره
کړه] او بل طرف ته راغلو ځکه چه دلته خوباغ ماغ هيڅ نشته بياچه هر کله موقع او حدودئ
وليدل نو يقين ئ وکړو چه داهغه ځائ دې نو دغه وخت ئ ووئيل چه لار مونږ نه ده هيره کړې
﴿بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ﴾ [بلکه] ځائ خو هغه دې ليکن [زمونږ قسمت تباه شو] چه باغ په دې
حال شو ﴿قَالَ أَوْسَطُهُمْ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُونَ﴾ [په دوی کښې چه کوم] څه قدرې [ښه سړې وو
هغه ووئيل چه ولې ماتاسوته نه وو وئيلی] چه داسې نيت مه کوی مسکينانوته په ورکولوسره
برکت وی په دې وجه دې سړی ته الله تعالی ښه ووئيل مګرعملا داسړې هم سره دکراهت د زړه
دتولو سره شريك شوې وو په دې وجه په ترجمه کښې احقرلفظ د څه قدرې زيات کړولان الاوسط
امر اضافي. بيا اولنئ خبره وريادوی دې سړی ووئيل چه خپل شامت اعمال خومو وځکلو مګر
[اوس] توبه او [تسبيح] اوباکی [ولې نه کوئ] چه دغه ګناه معاف شی او ددې نه زيات وبال
رانه شی ﴿قَالُوا سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ﴾ [ټولو] په طوردتوبې [ووئيل چه زمونږ پروردګارپاك
دې] داتنزيه ده کومه چه داستغفار تمهيد دې [بيشکه مونږ قصور واريو] دا استغفاردې
﴿فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَلَاوَمُونَ﴾ [بيا يو بل ته مخاطب شول په يو بل ئ الزامونه لګول] لکه
چه دکار ورانيدو په وخت کښې داکثرو خلقو عادت وی چې هريو سړې بل لره دفاسدې رائ
ذمه وارګرځوی بيا ټول متفق شول ﴿قَالُوا يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا طَاغِينَ﴾ [اوئ وئيل چه اې افسوس بيشکه
مونږه] ټول [دحدنه وتونکې وو] دچايوتن خطائی نه وه يوبل باندالزام لګول بې کاره دی ټول په
جمع توبه وباسئ ﴿عَسَىٰ رَبُّنَا أَن يُبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَا﴾ [شايد] دتوبې په برکت سره [زمونږ پروردګار

مونږ ته ددې نه ښه باغ په بدله کښې راکړي] اوس ﴿إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا رَٰغِبُونَ﴾ [مونږ دخپل رب طرف ته رجوع کیږو] یعنې توبه کوو اوبدلې ورکول عام دې خواه په دنیاکښې نعم البدل ملاؤشي خواه په اخرت کښې اوظاهرا دامعلومیږي چه داخلق مؤمنان وو او په معصیت کښې اخته شوي وو اوداخبره چرته په سندسره دنظرنه نه ده تیره شوې چه ایاددې باغ په عوض کښې دوی ته په دنیاکښې څه باغ ملاؤ شواوکه نه البته بغیرسندنه په روح المعاني کښې دحضرت ابن مسعود ﷺ قول لیکلې دې چه ددې نه ښه باغ دوی ته ورکړې شو والله اعلم وراندې دقصې غرض یعنې د ویرولو وضاحت دې چه دحکم نه په خلاف کولو ﴿كَذَٰلِكَ ٱلْعَذَابُ﴾ [دغسې عذاب راخې هرکله چه داسې عذاب راخي نو اې دمکې خلقو تاسو هم دداسې عذاب مستحق یئ بلکه ددې نه هم دزیات خکه چه مذکوره عذاب خومحض په معصیت باندې وو اوتاسوخو کفر کوئ ﴿وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ أَكْبَرُ﴾ [او داخرت عذاب ددې] دنیوي عذاب [نه هم زیات دې ﴿لَوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ﴾ څه ښه به وه که داخلق] په دې خبره پوهیدې] چه ایمان ئې راوړې وې وراندې ددې سزاګانو دتحقیق دپاره دکفارو دباطل خیال ابطال فرمائي چه هغوي به وئیل ﴿وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّيٓ إِنَّ لِى عِندَهُۥ لَلْحُسْنَىٰ﴾ (۱) یعنې ﴿إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ﴾ [بیشکه دپرهیزګارو دپاره ددوی د رب په نزد دارام جنتونه دي] یعنې سبب ددخول دجنت تقوی ده اوپه کافروکښې دسره تقوی نشته نو دوی ته به جنت څنګه ملاؤشي ﴿أَفَنَجْعَلُ ٱلْمُسْلِمِينَ كَٱلْمُجْرِمِينَ﴾ [ایامونږ به فرمانبردارو لره نافرمانوسره برابرکړو] یعنې که کافرو ته نجات وی نو په فرمانبردارو اونافرمانوکښې به څه فرق اوامتیاز پاتې شي چه دفرمانبردارو فضیلت پرې ثابت وی لکه داقول دالله تعالی دې په سورة ص کښې ﴿أَمْ نَجْعَلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ كَٱلْمُفْسِدِينَ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ الخ(۲) ﴿مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ﴾ [تاسولره څه وشول تاسو څنګه فیصله کوئ ﴿أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ فِيهِ تَدْرُسُونَ﴾ ایاتاسوسره څه] اسماني [کتاب دې په کوم کښې چه لولئ ﴿إِنَّ لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ﴾ چه په دې کښې تاسو دپاره هغه شي وی] لیکلې [کوم چه تاسوخوښوئ] یعنې په دې کښې ئې لیکلي دی چه تاسوته به په اخرت کښې حسنی یعنې نعمت ملاویږي ﴿أَمْ لَكُمْ أَيْمَٰنٌ عَلَيْنَا بَٰلِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ﴾ [ایازمونږ په ذمه څه قسمونه ختلی دی کوم چه تاسودپاره خوړلی شوي وی اوهغه قسمونه ترقیامته پورې باقي پاتې کیدونکی وی] دکوموچه دامضمون وی ﴿إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ﴾ [چه تاسوته به هغه شي ملاویږي کومه چه تاسو فیصله کوئ یعنې ثواب اوجنت ﴿سَلْهُمْ أَيُّهُم بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ﴾ [ددوی نه تپوس وکړه چه په دې کښې ددوی څوک ذمه وار شته ﴿أَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ﴾ ایاددوی مقرر کړی څه شریکان] په خدايئ کښې [دی] چه هغوی دوی لره دثواب ورکولو ذمه اخستې ده ﴿فَلْيَأْتُوا۟ بِشُرَكَآئِهِمْ إِن كَانُوا۟ صَٰدِقِينَ﴾ [پس دوی له پکاردی چه خپلوهغو شریکانو لره پیش کړی که دوی رښتوني وی] غرض هرکله چه دامضمون په څه اسماني کتاب کښې نشته دغسې بغیر دکتاب نه دنوروطریقودوحي زمونږ وعده نشته کومه چه په مثل دقسم وی بیاپه داسې حالت کښې څوک ددوی نه یا ددوی دشریکانو نه ذمه واري اخستې شي؟ هرګزنه بیا دعوی په کومه بناده

---

(۱) ترجمه:- اوکه زه خپل رب ته لاړم نو زما دپاره دا هم بهتر دی.

(۲) ترجمه:- او آیا مونږ هغه خلق چې هغوئ ایمان راوړو او نیک کارونه کوی دهغه خلقو برابر یئ کړو کوم چې په دنیا کښې فساد کولو.

وراندې ددې خلقو دقیامت درسوایئ ذکردې هغه ورځ دیادولو قابله ده ﴿یَوْمَ یُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّیُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُوْدِ فَلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ﴾ [په کومه ورځ چه دپنډئ تجلی وفرمائیلې شی اوخلق سجدې طرف ته راوبللې شی] ددې قصه په حدیث دشیخینو کښې مرفوعاداسې راغلې [ده چه الله تعالی به دقیامت په میدان کښې خپل ساق ظاهر کړی]([1]) ساق پنډئ ته وائی [او داخه خاص صفت دې کوم ته چه په څه مناسبت سره ساق وفرمائیلولکه په قرآن کښې چه لاس راغلې دې اودې ته متشابهات وائی او په دې حدیث کښې دی چه داتجلی ووینی نو ټول مؤمنان به په سجده پریوځی اوکوم سړی چه به په ریاسره سجده کوله د هغه ملا به دتختې په شان شی سجده به ونه کړې شی([2]) اوسجدې ته په بللوسره داشبهه نه شی کولې چه داخودارالتکلیف نه دې څکه دبللونه مرادامر بالسجودنه دې بلکه په هغې تجلی کښې به دا اثر وی چه داټول به په اضطراری طورسره سجده کول غواړی چه مؤمنان به په کښې دې باندې قادرشی او ریاکارمنافقان به قادرنه شی اودکفارو نه قادریدل خو په درجه اولی معلومیږی دکوم چه وراندې ذکردې یعنی کفاربه هم سجده کول وغواړی [پس دوی] کافران [به سجده ونه کړې شی] او ﴿خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ﴾ [ددوی سترګې به] د شرمندګئ نه [ښکته وی] او [په دوی به ذلت غوړیدلې وی او] وجه ددې داده چه ﴿وَقَدْ كَانُوْا یُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُوْدِ﴾ [داخلق] په دنیاکښې [سجدې طرف ته بللې کیدل] داسې چه ایمان راوړئ اوعبادت وکړئ ﴿وَهُمْ سَالِمُوْنَ﴾ [اوهغوی صحیح سالم وو] یعنی په سجده باندقادر هم وو چنانچه ظاهره ده چه ایمان اوعبادت فعل اختیاری دې پس په دنیاکښې دحکم په نه منلوسره نن دوی ته دارسوائی اوذلت وشو او په بل ایت کښې چه کوم دسترګوپورته پاتې کیدل راغلې دی هغه ددې معارض نه دې څکه چه کله به دحیرت دغلبې نه داسې وی اوکله به دندامت دغلبې نه داسې وی وراندې دکفارو ددې خیال رد دې چه زر عذاب نه راتلل ئې دخپل مقبول کیدو دلیل ګنړلو اوددې په ضمن کښې دوی ﷺ ته تسلي هم ده یعنی هرکله چه ددوی دعذاب مستحق کیدل دپورته ایتونونه معلوم شو ﴿فَذَرْنِیْ وَمَنْ یُّكَذِّبُ بِهٰذَا الْحَدِیْثِ﴾ [نومالره اوکوم چه دې کلام لره دروغژن ګوی هغوی لره] په دې موجوده حال [پریږده] یعنی په زر عذاب نه راتللو خفګان مه کوه ﴿سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَیْثُ لَا یَعْلَمُوْنَ﴾ [مونږ دوی لره درجه په درجه] جهنم طرف ته [بوځو په دې طورچه دوی به خبرهم نه وی او] په دنیاکښې په دوی دعذاب دنه غورزولو سره ﴿وَأُمْلِیْ لَهُمْ إِنَّ كَیْدِیْ مَتِیْنٌ﴾ [هغوی ته مهلت ورکوو بیشکه زماتدبیره پرمضبوط دې] وراندې ددوی په انکار دنبوت باندتعجب دې ﴿أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ﴾ [آیاته ددوی نه څه معاوضه غواړې چه تاوان ئې په دوی بوج دې] په دې وجه ئې ستاداطاعت نه نفرت دې لکه داقول دالله تعالی دې ﴿أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا﴾([3]) ﴿أَمْ عِنْدَهُمُ الْغَیْبُ فَهُمْ یَكْتُبُوْنَ﴾ [یاد دوی سره] دغیب] علم [دې چه دوی] دغې لره دمحفوظ ساتلودپاره [لیکی] یعنی ایادوی ته دالله تعالی احکام په خپله په څه طریقه سره معلومیږی دکوم په وجه چه هغوی دصاحب وحی داتباع نه بې پرواه دی اوظاهره ده چه دواړه خبرې نشته بیادنبوت نه انکارعجیبه دې وراندې دوی ﷺ ته تسلی ده هرکله چه ددوی مستحقوالې

---

[1]) صحیح البخاري كتاب التفسير، تفسير سورة ن القلم باب وقوله يوم يكشف عن ساق [ج:۲ص:۷۳۸]
[2]) صحیح البخاري كتاب التفسير، تفسير سورة ن القلم باب وقوله يوم يكشف عن ساق [ج:۲ص:۷۳۸]
[3]) ترجمه:- یا ته ددوئ نه څه کته غواړې.

دعذاب اوکفرچه موجب د استحقاق دې معلوم شو اوداچه دوی ته مهلت ورکول استدراج یعنی یو قسم مهلت دې او په وعده کړې شوې وخت به عذاب وی ﴿فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ﴾ [نو ته دخپل رب په] دې تجویزصبرکوه] په تنګدلۍ کښې [دماهی] دګیډې [والا] پیغمبریونس ﷺ [په شان مه کیږه] چه هغه دعذاب په نه نازلیدو تنګ دله شو اوچرته لاړو چه قصه یې ځوځایه لږه لږه راغلې ده دقصې دتشبیه مضمون ختم شو وراندې په طوردتتمیم دقصې ارشاددې چه هغه وخت هم یادکړه ﴿إِذْ نَادَىٰ وَهُوَ مَكْظُومٌ﴾ [هرکله چه یونس] ﷺ خپل رب ته [دعاوکړه اودې دغم نه ویلې کیدو] داغم مجموعه وه دځوغمونو یودقوم دایمان نه راوړو یو دعذاب واپس کیدو یوبغیردواضح اجازت دالله تعالی نه دهغه ځای نه دوتلو یو دماهی په ګیډه کښې دقید کیدو او هغه دعاداده ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ﴾ (۱) چه په دې سره مقصود معافی اوطلب دنجات دې دقیدنه چنانچه په ده دالله تعالی فضل وشواودماهی دګیډې نه یې نجات بیاموندو ددې په نسبت ارشاددې چه ﴿لَّوْلَا أَن تَدَارَكَهُ نِعْمَةٌ مِّن رَّبِّهِ﴾ [که دالله تعالی احسان دده دستګیری نه وې کړې ﴿لَنُبِذَ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ مَذْمُومٌ﴾ نوهغه به په] کوم میدان چه دماهی دګیډې نه غورځولې شوې وو په هغه [میدان کښې به په بدحالۍ سره غورځولې شوې وو] ددستګیری نه مراد دتوبې قبلیدل دی او دبدحالۍ نه مراد دادې چه دده په اجتهادی غلطۍ به دالله تعالی دطرف نه دده ملامتیاشوې وه مطلب ددې او دسورة صافات دایت دادې چه که توبه اواستغفارې نه کولې نو دګیډې دماهی نه به یې نجات نه ووشوې لکه چه فرمائی ﴿لَوْلَا أَنَّهُ كَانَ﴾ الخ(۱) اوکه توبه اواستغفارې کولې خوالله تعالی نه قبلولې نو ددې توبې اواستغفاردومره قدرې دنیوی برکت خو به وو چه دماهی د ګیډې نه خویه یې نجات شوې وو او په میدان باندې به لکه ځنګه چه اوس غور خولې شوې وو دغه شان به غورځولې شوې وو لیکن دغه وخت به دغه غورځول مذموم وو اوداً اوسنی غورځول یې دمذموم والی په حالت کښې نه شوځکه چه دتوبې دقبلیدلو نه پس په خطامذمت نه وی ﴿فَاجْتَبَاهُ رَبُّهُ فَجَعَلَهُ مِنَ الصَّالِحِينَ﴾ [بیادده رب دده لره] نورزیات [برګزیده کړو او ده لره یې په] زیاته [مرتبه دصالحینوکښې کړو] شاید ددې قصې په دې تتمیم سره داهم مقصودوی چه په خپل اجتهاد عمل کول ده لره ځومره مضرشول اوتوکل ځومره نافع شو دغه شان دعذاب په باره کښې ته ﷺ هم په خپله رایې سره تلوارمه کوه بلکه په الله تعالی توکل کوه چه انجام بهترشی [او] وراندې ددوی په شان کښې دکفارو دمجنون ونیلو په یو بل اندازسره ابطال دې دسورة په شروع کښې یې په بل انداز سره ددې ابطال کړې وو یعنی ﴿وَإِن يَكَادُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [داکافرن چه هرکله قرآن اوری نو] دشدت عداوت نه ﴿لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ﴾ [داسې معلومیږی چه ګویاتالره په خپلونظرونوسره خویه وی اوغورزه وی] دایوه محاوره ده لکه چه داسې وائی چه فلانې سرې داسې ګوری لکه چه سرې خوری لکه په روح المعانی(۲) کښې دی نظرالی نظرایکاد یصرعنی اویکادیاکلنی مطلب دادې چه دسختې دښمنۍ په وجه تاته په بدو بدونظرونو سره ګوری

---

۱) ترجمه:- ستانه سوا بل معبود نشته دې ، ته پاك يې ، زه بيشكه قصوروار يم.
۲) ترجمه:-كه هغه دتسبيح كوونكو نه نه وو نو تر قيامته پورې به هم ددې په خيټه كښې وې.
۳) تفسير روح المعاني [ج: ۲۱ ص: ۲۰۳]

[او] په دې عداوت سره ستا په نسبت ﴿وَيَقُولُونَ إِنَّهُ لَمَجْنُونٌ﴾ [وائي چه] نعوذبالله [دامجنون دې ﴿وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ﴾ حالانکه داقرآن] په کوم سره چه ته خبرې کوې [د ټول جهان دپاره نصيحت دې] اومجنون سړې داسې عامه اصلاح نه شي کولی په دې کښې خوجواب دجنون دطعن ظاهردې او د بيان د عداوت نه هم دهغې طعن ضعيف کيدل ثابت شو ولې دکوم قول منشاء چې شدت عداوت وی هغه قابل التفات نه وی.

## معارف او مسائل

سورت ملک کښې د الله ﷻ موجود والې توحيد ، اود علم او قدرت دليلونه د کائناتو په ليدلو سره بيان شوی دی. اوکافرانو اومنکرانو باندې دسخت عذاب بيان دې. سورت نون کښې د کافرانو د هغې پيغورونو جواب دې چې په نبی کريم ﷺ به ئې کول ، د ټولو نه رومبی دکافرانو پيغور دا وو چې د الله ﷻ ليږلی رسول ﷺ ته ئې معاذ الله ليونې اوونيل. حالانکه نبی کريم ﷺ دکامل عقل ، کامل علم ، خاوندوو او د ګڼرو فضيلتونو لرونکې وو ، په دې وجه چې کله به په رسول الله ﷺ باندې د فرښتې په ذريعه وحی نازليده ، دوحی په وخت به دهغې نښې د نبی کريم ﷺ په بدن مبارک باندې ليدلې شوې او بيا به نبی کريم ﷺ د دغې وحی نه حاصل شوی آيتونه لوستل ، دامعامله د کافرانو د پوهې او عقل نه بهر وه ځکه ئې ورته ليونتوب اووئيلو. او يا په دې وجه چې نبی کريم ﷺ دخپل قوم او د ټولې دنيا دموجوده عقيدو په خلاف دا دعوی اوکړه چې د عبادت جوګه د الله ﷻ نه سوا بل څوک نه دی چې پخپله جوړ کړی بتان به ئې خدايان بلل ، دهغې بې عمله ، بې شعوره کيدل او دا بيان کول چې دا بتان دنفع نقصان ورکولو لائق نه دی ، په د ې عقيده کښې د نبی کريم ﷺ هيڅوک ملګرې نه وو په يواځې ځان ئې دا دعوی اوکړه چې هيڅ ساز و سامان ورسره هم نه وو او د ټولې دنيا مقابلې ته اودريدو ، په ظاهره د نبی کريم ﷺ د کاميابئ څه امکان نه شو کيدې ، داسې دعوې سره د نبی کريم ﷺ راپورته کيدل ليونتوب اوګڼلې شو ، او بغير د څه سبب نه هم بعض وخت بې هيسه دليونتوب پيغور ورکول کيدېشي. د سورة نون په اولنی آيتونو کښې د دوئ د دې باطل خيال ترديد په قسم سره مضبوط کړې شوې بيان کړې شوې دې. [نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ۝ مَا أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ ۝] ن د حروف مقطعاتو نه دې ، کوم چې دقرآن پاک د ډيرو سورتونو په اول کښې راوړې شوی دی ددې معنی هم الله ﷻ ته معلومې دی يا د هغه رسول ﷺ ته ، ددې تحقيق پسې کيدو نه امت منع کړې شوې دې.

**د قلم نه څه مراد دې . او د قلم فضيلت** : [وَالْقَلَمِ] کښې واؤ حرف قسم دې او د قلم نه مراد عام قلم هم کيديشي چې ټول قلمونه کيديشي خواه هغه د تقدير قلم وی اوکه د انسانانو او فرشتو قلمونه وی په کومو سره چې څه ليکلی شی. [څنګه چې ابی حاتم البستی اوفرمائيل]([1]) او دتقدير ليکلو خاص قلم تړې هم مراد اخستې شی [څنګه چې ابن عباس ﷺ اوفرمائيل] او د تقدير ددې قلم باره کښې دعباده ابن صامت ﷺ روايت کښې دی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل د ټولو نه اول الله ﷻ قلم پيدا کړو او هغې ته ئې حکم اوکړو چې ليکه قلم عرض اوکړو چې څه اوليکم ؟ نو حکم ئې ورکړو چې تقدير الهی ، قلم ، ترابده پورې کيدونکی واقعات اوحالات

---

[1]) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[۱۸۹۳۶]

اوليکل [ ترمذي روايت کړو او ورته ئې غريب حديث اووئيل ] ( ۱ ). او صحيح مسلم کښې د عبدالله بن عمر ﷺ حديث دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ دټول مخلوق تقديرونه د آسمانونو او زمکې د پيدا کولو نه پنځوس زره کاله مخکښې ليکلي وو ( ۲ ).

او قتاده فرمائي چې قلم د الله ﷻ يو لوئې نعمت دې چې هغه خپلو بندګانو ته ورکړې دې.

اوځينې حضراتو اوفرمائيل چې الله ﷻ د ټولو نه اول يواځې دتقدير قلم پيدا کړو کوم چې د ټول مخلوقاتو او کائناتو تقديرونه اوليکل. بيا ئې بل قلم پيدا کړو چې په زمکه او سيدونکي خلق پرې ليکل کوي او ليکي به ، څنګه ئې چې په سورة اقراء کښې داسې بيان دې چې [عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ] ( ۳ ) والله اعلم.

آيت مبارک کښې که د قلم نه مراد د تقدير قلم مراد واخستې شي کوم چې د ټولو نه اولنې پيدا کړې شوې وو نو په نورو ټولو څيزونو باندې دهغې لوئي او پورته والې ښکاره دې څکه په کښې دقسم خوړل مناسب شو ، اوکه د قلم نه عام قلم مراد واخستې شي چې په کښې د تقدير او د فرښتو د قلم نه علاوه د انسانانو قلمونه هم داخل دی نو ددې قسم څکه اوخوړې شو چې په دنيا کښې لوئې لوئې کارونه ټول په قلم سره کولې شي. د ملکونو فتح کيدل د تورو په مقابله کښې په قلم سره زيات مشهور دی ابو حاتم بستی دامضمون په دوؤ شعرونو کښې بيان کړې دې.

اذا اقسم الابطال يوما بسيفهم :::: وعَدُّوه مِمَّا يكسب المجد والكرم

يعنی کله چې قسم خوری بهادران خلق يوه ورځ په خپلې توره باندې او دې لره شمير کړی په هغې څيزونو کښې چې ايمان ته عزت اوشرف اوبخښی.

كفى قلم الكتاب عزا ورفعة :::: مدى الدهر ان الله اقسم بالقلم ( ۴ )

کافی دې د ليکونکو قلم دهغوئ د عزت او پورته والی دپاره هميشه دپاره څکه چې الله ﷻ هم دقلم قسم خوړلې دې.

بهر حال دې آيت مبارک کښې د تقدير قلم مراد دې يا دَعام مخلوق قلم اوبيا په لفظ د [مَا يَسْطُرُوْنَ] کښې کوم چې په دې قلمونو او ليکلې شو يا ليکلې شی دهغې په قسمونو خوړلو سره ددغه باطل پيغور رد اوفرمائيلو چې معاذالله تاسو ﷺ ليونی يئ ، فرمائی چې [مَآ اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ ] يعنی تاسو دخپل رب د نعمت او فضل په وجه هيچرې ليونی نه يئ ، په دې کښې [بِنِعْمَةِ رَبِّكَ ] زياتولو سره ددعوې دليل ئې هم ورکړو چې په چا باندې دالله ﷻ نعمت او رحمت مکمل وی هغه څنګه ليونې کيدېشی ، هغه ته ليونې ويونکې پخپله ليونې دې.

فائده :: عالمانو فرمائيلی دی چې په قرآن پاک کښې الله ﷻ چې د کوم څيز قسم خوری هغه د قسم په مضمون باندې يو ګواهي وی ، دلته په [مَا يَسْطُرُوْنَ] لفظ سره د دنيا په تاريخ کښې چې څه اوليکلې شو او لکيا دې ليکلې شی هغې لره د ګواهئ په دول پيش کوی چې ددنيا

---

( ۱ ) جامع الترمذي ، ابواب القدر باب [ج:۲ ص:۳۸]
( ۲ ) صحيح مسلم كتاب القدر، باب حجاج آدم وموسى عليه السلام [ج:۲ص:۳۳۵]
( ۳ ) ترجمه:- قلم سره مو تعليم درکړو.
( ۴ ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۸ص:۲۲۵]

تاریخ او گوري. د داسې اعلی اخلاقو او عملونو خلق لیوني بللې شي ؟ هغوئ خو د نورو عقلونه سموي. وروسته ددې مضمون د زیات تائید دپاره فرمائي چې:
[وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ] او بیشکه تاسو لره لوئي اجر دې چې ختمیدونکې نه دې ، مطلب دا دې چې ستاسو ﷺ کوم کار ته دا لیوني ،لیونتوب وائي هغه خو د الله ﷻ په نزد د ټولو نه زیات مقبول عمل دې ، په دې باندې تاسو ته لوئې اجر درکیدونکې دې او اجر هم داسې چې همیشه به وي هیڅرې به نه ختمیږي ، آیا چا لیوني ته په لیونتوب باندې لوئې اجر ملاویږي ؟
وروسته هم ددې مضمون زیات تائید او تاکید په دې جملې سره فرمائي چې: [وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ] دې سره د نبی کریم ﷺ په غوره او کاملو اخلاقو باندې د غور کولو هدایت کړې شوې دې ، چې لیونو لره خو اوګوري د لیونو هم چرې داسې اخلاق او عملونه کیدیشي ؟
**د رسول الله ﷺ لوئي اخلاق**: ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې د [خُلُقٍ عَظِيمٍ] نه مراد عظیم دین دې چې د الله ﷻ په نزد ددې دین اسلام نه زیات بل محبوب دین نشته، عائشه رضي الله عنها فرمائي چې: د نبی کریم ﷺ اخلاق مبارک پخپله قرآن دې[1]. یعنې قرآن کریم چې د کومو اعلی عملونو او اخلاقو تعلیم ورکوي نبی کریم ﷺ ددې ټول عملي نمونه دی ، علی رضي الله عنه فرمائي چې دخلق عظیم نه مراد دقرآن کریم آداب دی،یعنې هغه آداب او طریقې دی چې قرآن پاک خودلې دی. په دې بنا حاصل د ټولو هم تقریبا یو دې نو په رسول کریم ﷺ کښې الله ﷻ دا ټول اعلی اخلاق په کاملې درجې سره جمع کړې دی.پخپله نبی کریم ﷺ فرمائي چې: [بعثت لاتمم مكارم الاخلاق] یعنې زه د ددې کار دپاره لیږلې شوې یم چې د اعلی اخلاقو تکمیل اوکړم .[ ابو حیان][2].
انس رضي الله عنه فرمائي چې زه لس کاله د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پاتې شوې یم په دغې ټوله زمانه کښې ما کوم یو کار چې کړې وو حضور پاك راته داسې نه وو فرمائیلې چې دا دې ولې کړې دې؟ او کوم مې چې نه وو کړې داسې نه دی فرمائیلې چې دا دې ولې نه دې کړې؟ حالانکه په دومره ډیره موده کښې به انس رضي الله عنه ډیر کارونه د نبی کریم ﷺ د طبیعت خلاف کړې وي. [ بخاري و مسلم][3].
او انس رضي الله عنه فرمائي چې د نبی کریم ﷺ داعلی اخلاقو د احال وؤ چې که دمدینې منورې یو وینځې به هم ددوی لاس نیولې چرته به ئې چې بوتلو هلته به ورسره تللو . [بخاري ][4].
عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائي چې نبی کریم ﷺ چرې هم په خپل لاس مبارک سره څوک نه دی وهلې ، سوا د جهاد في سبیل الله نه چې په هغې کښې د کافرانو وژل او وهل ثابت دی. ګنی نبی کریم ﷺ خو نه څوک خپل خادم وهلې وو او نه ئې چرته خپله بی بی وهلې وه . که په دوئ کښې به چا نه غلطي اوشوه نو دهغې بدل ئې نه دې اخستې. ددې نه سوا چا به چې دالله ﷻ دحکم خلاف ورزی کړې وه نو په هغې ئې حد جاري کړې دې . [ مسلم ][5].

---

[1] ) مسند احمد ، مسند عائشة الصديقة رضى الله عنها رقم الحديث:[۲۴۶۰۱]
[2] ) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص:۲۳۷]
[3] ) صحيح البخاري كتاب الوصايا ،باب استخدام اليتيم فى السفر والحضر..... إلخ [ج:۱ص:۳۸۸] و صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب حسن خلقه ﷺ[ج:۲ص:۲۵۳]
[4] ) صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب الكبر [ج:۲ص:۸۹۶ ]
[5] ) صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب مباعدته للآثام واختيار من المباح اسهله[ج:۲ص:۲۵۶]

جابر رضي الله عنه فرمائي چې رسول الله ﷺ نه څه داسې څۀ سوال نه دې شوې چې دهغې په جواب کښې به ئې [نه] فرمائيلي وی [بخاری ومسلم](١).

او عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چې نبي كريم ﷺ به نه فحش خبره كوله او نه به د فحش خوا ته تلو، نه به ئې په بازارونو كښې شور كولو، د بدئی بدله به ئې چرې هم په بدئی سره نه اخسته. بلكه دهغې معافی به ئې كوله او مخ به ئې ورپسې نه اوړلو(٢).

ابو الدرداء فرمائي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې دعمل په ميزان كښې به دنيک خويئ پشان بل څه عمل وزنی نه وی. او الله ﷻ هغه كس سره بغض ساتي چې كنځل كوی او بد رد وائي، [ترمذی روايت كړو او ورته ئې حسن صحيح وئيلی دی](٣).

او عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې مسلمان د خپلو خو اخلاقو په بركت د هغه چا درجه حاصلوی چې هميشه دشپې عبادت دپاره ويښ او د ورځې روژه دار وی. [ابوداود](٤).

او معاذ رضي الله عنه اوفرمائيل چې كله زه نبي كريم ﷺ د يمن عامل مقرر كړم نو زما د ليږلو په وخت ئې آخری وصيت راته دا اوكړو چې كله مې ركاب كښې پښه كيخوده:

[يامعاذ! احسن خلقك للناس] يعني ائې معاذ خلقو سره ښۀ خوئی كوه [مالک](٥).

[فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُونَ ۝ بِأَييِّكُمُ الْمَفْتُونُ ۝] يعني زر به تاسو ﷺ هم اووينئ او دا كافران به هم اووينی چې په تاسو كښې څوک ليوني دې؟ د لته [مَفْتُونُ] د مجنون په معنی كښې دې، په تيرو شوؤ آيتونو كښې چې چا نبي كريم ﷺ ته مجنون وئيل دغه پيغور په دليلونو سره رد كړې شو. دې آيت مبارک د پيشنګوئی په ډول دا اوخودل چې دا خبره هسې پته پاتې كيدونكې نه ده، نزدې راتلونكی وخت كښې به ئې تول په خپلو سترګو اووينی چې معاذ الله نبي كريم ﷺ ليونی وو او كه پخپله هغه خلق ليونی وو چې چا ورته د انسبت كولو؟ نو په لږ زمانې تيريدو سره داخبره د خلقو مخې ته ښه په ښكاره راغله او دغه نسبت كوونكو خلقو كښې د زړګونو په شمير مسلمانان شو چې د نبي كريم ﷺ تابعداری اومحبت به ئې نيک بختی ګڼله او ډيرداسې بدبخته په دنيا كښې هم ذليل او خوار شو چې چا ته دغه توفيق نصيب نشو.

[فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِينَ ۝ وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ۝] يعني تاسو ددې دروغژن بلونكو خبره مه منئ دوئ خو دا غواړی چې تاسو ﷺ د تبليغ په احكامو كښې نرمی پيدا كړئی اود شرک اوبت پرستئ نه ددوئ منع كول پريږدئ چې دوئ هم نرم شی او تاسوته بدرد وئيل او ضرر دررسول پريږدئی [ابن عباس رضي الله عنه په حواله د قرطبی](٦).

---

١) صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب فی سخائه ﷺ [ج:٢ص:٢٥٣] و صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب حسن الخلق والسخاء ..... إلخ[ج:٢ص:٨٩٢]

٢) جامع الترمذي ، ابواب البر والصلة ، كتاب خلق النبي ﷺ [ج:٢ ص:٢٠]

٣) جامع الترمذي ، ابواب البر والصلة ، كتاب خلق النبي ﷺ [ج:٢ ص:٢١]

٤) سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب فی حسن الخلق [ج:٢ ص:٦٦١]

٥) موطا مالك كتاب حسن الخلق رقم الحديث [١٦٠٢]

٦) تفسير القرطبي [ ج:١٨ص:٢٣٠]

مسئله :: ددې آيت مبارک نه معلومه شوه چې کافرانو او فاجرانو سره دا سودا کول چې مونږ به تاسو ته څه نه وايو او تاسو مونږ ته څه مه وائې نو دا په دين کښې مداهنت کول دی [مظهري ][۱] . يعنی د بې د څه مجبورتيا نه داسې څه لوظ قول کول جائز نه دی.

[وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ۝ هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ بِنَمِيمٍ ۝ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ۝ عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ۝] يعنی تاسو خبره مه منئ دداسې کس چې ډير قسم خور ، ذليل په خلقو عيب لګوونکې ، غيبت کوونکې ، چغلی خور د نيکو کارونو نه خلق منع کوونکی ، په زور ظلم کښې د حد نه تيريدونکې وی ، ډير ګناه کوونکې ، ډير قسم خور ، بدخويه بخيل وی ، او سره ددې تولو رزيلو صفتونو زَنِيمٍ هم وی . زَنِيمٍ هغه چاته وئيلې شی چې نسب ئې ديو پلار نه ثابت نه وی ، نو دا صفتونه چې بيان شوی دی هغه داسې سړې وو چې نسب ئې د يو پلار نه ثابت نه وو.

رومبی آيت مبارک کښې د عامو کافرانو دخبرې نه منلو اوددين په معامله کښې د دوئ په وجه د څه مداهنت نه کولو حکم وو ، اوس په دې آيت مبارک کښې د يو خاص شرير کافر وليدو بن مغيره رذيل صفتونه بيانولو سره هغه نه د مخ اړولو او دهغه د خبرې نه منلو خصوصی حکم ورکړې شوې دې . [لکه چې ابن جرير رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه نه دا روايت کړو][۲] . ورپسې هم په ګنړو آيتونو مبارکو کښې ددغې کس د بداخلاقئ اوسرکشئ ذکر کولو نه پس ئې اوفرمائيل چې : [سَنَسِمُهُ عَلَى الْخُرْطُومِ ۝] يعنی مونږ بهٔ د قيامت په ورځ ددهٔ په پوزه باندې داغ اولګوؤ . چې دې سره به په اولينو او آخرينو کښې ددهٔ رسوائی ښکاره شی . ددهٔ د خرابوالی بيانولو په خاطر ئې د ده پوزې ته خرټم اوفرمائيل کوم چې يا خو دهاتی [فيل] سره خاص وی يا د خنزير پوزه وی .

[إِنَّا بَلَوْنَاهُمْ كَمَا بَلَوْنَا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ] يعنی مونږ په آزميښت کښې دوئی يعنی اهل مکه واچول ، څنګه چې مو په آزميښت کښې اچولی وو د باغ خاوندان په تيرو شوؤ آيتونو کښې دمکې د کافرانو د بدو ردو او د پيغوررونو جواب وو کوم بهٔ ئې چې د رسول الله ﷺ په باره کښې کول ، په دې آيتونو کښې الله ﷻ دپخوانئ زمانې يوه قيصه بيان کړه ، د مکې خلق ئې خبردار کړل او دعذاب نه ئې اوويرول ، دوئ ته د باغ د خاوندانو قيصه څکه بيانولی شی چې څنګه هغوئ د الله ﷻ د نعمتونو ناشکری اوکړه او ددې په وجه پرې عذاب راغلو . او نعمت ترې واخستې شو . دغسې په اهل مکه باندې الله ﷻ د تولو نه لوئې انعام دا اوکړو چې نبی کريم ﷺ ئې په دوئ کښې پيدا کړو ، دغسې ددوئ په تجارت کښې ئې برکت کيخودو اودوئ ئې خوشحاله کړل ، دا ددوئ آزميښت دې چې دا الله ﷻ د هغې نعمتونو شکر ګزار کيږی او په الله ﷻ او رسول ﷺ باندې ايمان راوړی يا په خپل کفر او ضد باندې کلک پاتې کيږی . په دويم صورت کښې دوئ لره دباغ د خاوندانو د قيصې نه عبرت حاصلول پکار دی چې هسې نه دناشکرئی په وجه په دوئ هم عذاب راشی ، دا تفسير پدې صورت کښې هم صادقيږی چې دا آيتونه هم د اکثر سورت پشان مکی اوګرځولې شی ، ليکن ډيرو مفسرينو حضراتو دې آيتونو ته مدنی وئيلی دی او د کوم امتحانونو چې دلته بيان دې هغې نه مراد دقحط شوې

---

[۱] ) تفسير المظهري [ج:۱۰ ص:۳٤]

[۲] ) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۱۹۳]

هغه عذاب دي چې د نبی کریم ﷺ په بددعا سره په دوئ راغلې وو. اودوئ په کښې د لوږې نه مړهٔ کیدل، مردار څناور بهٔ ئې خوړل اود ونو په پاڼرو خوړلو مجبوره شوی وو، دا واقعه د هجرت نه پس ده.

**د باغ د خاوندانو قیصه**: دا باغ د ځینې بزرگانو لکه د ابن عباس رضی الله عنه د قول مطابق په یمن کښې وو. اود سعید بن جبیر رضی الله عنه یو روایت دادې چې دصنعاء نه دشپږ میله فاصله کښې وو کوم چې د یمن مشهورښاراودارالحکومت دې، اوځینوحضراتوپه حبیشه کښې خودلې دې. [ابن کثیر]([1]) داخلق داهل کتاب نه وو. او واقعه د عیسی علیه السلام دپورته کولو نه څه موده پس ده. [قرطبی]([2]).

آیت مبارک کښې ورته اصحاب الجنة یعنی دباغ خاوندان اوفرمائیلې شو خو د آیتونو دمضمون نه معلومیږی چې دوئ سره یواځې باغ نه وو بلکه د نور فصل زمکې هم وې. کیدیشی چې باغ سره د نور فصل زمکه هم وی. خو هرکله چې دغه باغ ئې ډیر مشهور وو ځکه د باغ په خاوندانو مشهور شو. ددې واقعه د محمد بن مروان په روایت د ابن عباس رضی الله عنه نه داسې منقوله ده چې د یمن دصنعاء نه دوؤ فرسخو په فاصله باندې یو باغ وو چې صروان به ئې ورته وئیلو، دا باغ یو نیک سړی لګولې وو. دهغه عمل دا وو چې د فصل دریبلو په وخت به څه چې دلور دخلې نه پاتې شو هغه به ئې فقیرانو او مسکینانو دپاره پریخودل. دغه خلقو به دخپلې ګزارې دپار دهغې نه غله حاصلوله. داشان چې غوبل کړې غله به ئې چې بادوله نو هغه دانې بهٔ ئې فقیرانو، مسکینانو دپاره پریخودلې کومې چې به بوسو سره الوتې وې. دغسې دباغ د شوکولو په وخت بهٔ ئې په زمکه باندې پریوتې میوه هم مسکینانو دپاره پریخوده. دغه نیک بنده چې مړ شو نو دهغه درې ځامن ددې وارثان جوړ شو هغوئ خپل مینځ کښې خبرې اوکړې چې اوس مو بال بچ ګنړ شو او پیداوار مو دضرورت مطابق نه کیږی ځکه فقیرانو او مسکینانو دپاره دومره غله دانه نه شو پریخودې. او په ځینې روایتونو کښې راځی چې دغې ځامنو لکه د آزاد ځلمو پشان دا اووئیل چې زمونږ پلار خو بې وقوفه وو خلقو ته به ئې هسې دومره غله پریخودله. مونږ له دغه طریقه بندول پکار دی، وریسې ددوئ قیصه پخپله دقرآن پاک په الفاظو کښې داسې ده چې:

[اِذْ اَقْسَمُوْا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِيْنَ ۝ وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ ۝] یعنی هغوئ خپل مینځ کښې قسمونه اوکړل او دا لوظ ئې اوکړو چې دا ځل بهٔ مونږ سحروختی فصل ریبلو دپاره خو چې فقیران مسکینان راباندې خبر نه شی او پخپلې منصوبې دومره کلک وو چې د ان شاء الله وئیلو توفیق ئې هم اونه شو ځنګه چې دسنت مطابق ئې وئیل پکار دی.

دَ [وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ ۝] معنی استثناء نه کول دی چې مراد ترې انشاء الله وئیل دی. او ځینو مفسرینو حضراتو داستثناء نه دا مراد اخستی دی چې مونږ به پوره پوره میوه ار غله راؤړو، فقیرانو، مسکینانو ته به هیڅ نه پریږدو. [مظهری]([3]).

[فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّنْ رَّبِّكَ] بیا اوګرځیدو په دغې فصل اوباغ باندې یو ګرځیدونکې ستاسو

---

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۸ ص:۱۹۷]
[2]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۸ص:۲۳۹]
[3]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۷]

درب د طرف نه. دکرخیدونکی نه مراد څه بلا آفت دې چې ورسره فصل اوباغ تباه کړی په خینو روایتونو کښې راغلی دی چې دایو اور وو چې ولاړ فصل ئې تول اوسوځولو او توري ایرې ئې کړو.

[وَهُمْ نَآئِمُوْنَ] یعنی ددې عذاب نازلیدل په داسې وخت کښې اوشو چې دا خلق تول اوده وو.

[فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيْمِ] د صرم معنی میوه شوکول دی. صریم په معنی د مصروم اود مقطوع دی یعنی ریبلې شوې اوشوکولې شوې، معنی دا شوه چې الله ﷻ دغه فصل اوباغ داسې اوکرخولو لکه چې د فصل د ریبلو نه پس زمکه صفا میدان پاتې شی. د صریم بله معنی شپه هم ده، په دې لحاظ سره به ئې معنی دا شی لکه دشپې پشان دغه فصل وغیره هم دغسې توري ایرې شو. [ مظهری ][1].

[فَتَنَادَوْا مُصْبِحِيْنَ] یعنی د صباد تیاره کښې ئې یو بل ته آواز د ویخولو دپاره اوکړو چې د فصل ریبلو دپاره وختی لاړ شی.

[وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ] دغه وخت ئې خپل مینځ کښې پټې پټې خبرې کولې چې هسې نه څوک فقیر مسکین راباندې خبر شی او راپسې راشی.

[وَغَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ قٰدِرِيْنَ] د حرد معنی منع کول دی او تهر، غصه بنکاره کول دی. مطلب دادې چې دا خلق پخپل خیال کښې په دې قصد روان شو چې زمونږ په دې قدرت دې چې فقیر، مسکین به رانه یوه ذره هم یو نسی اګر چې څوک را شی نو بیا هم.

[فَلَمَّا رَاَوْهَا قَالُوْٓا اِنَّا لَضَآلُّوْنَ] کله ئې چې دغلته څه پتې او باغ بیا پیدانه کړو نو اول ئې دا اووئیل چې مونږ خائې هیر کړو او چرته بل خوا راغلو، دلته خو نه باغ شته اونه فصل، خوچې نزدې حدود ته ئې اوکتل نو ورته معلومه شوه چې خائې هم دا دې او فصل وغیره بالکل سوزیدلې او ختم شوی دی نو وې وئیل چې [بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ] مونږ ددغې نعمت نه محرومه کړې شو.

[قَالَ اَوْسَطُهُمْ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ] کوم چې په دوئ کښې منځو میانه دپلار پشان نیک او صالح وو او د الله ﷻ په لار کښې په خرچ کولو باندې خوشحالیدو او د نورو رونړو پشان بخیل نه وو او زړه ئې سخت نه وو هغه اووئیل چې آیا ما تاسو ته نه وو ویلی چې تاسو د الله ﷻ تسبیح ولې نه کوئی. د تسبیح لفظی معنی پاکی بیانول دی. مطلب دا دی چې فقیرانو او مسکینانو نه دخپل مال د بچ کولو د تدبیر منشا داده چې تاسو دا ګنړئی چې الله ﷻ به تاسو ته ددې په خائې بل نه درکوی. حالانکه الله ﷻ ددې نه پاک دې، هغه مال لګوونکو ته دخپل طرف نه نور هم زیات ورکوی. [ مظهری ][2].

[قَالُوْا سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ] د دغه رور خبره په دغه وخت کښې چا هم واؤنریدله. خو اوس تولو اقرار اوکړو چې الله ﷻ پاک دې د هر نقص او هر کمی نه. او مونږ ظالمان په دې وجه اوکرخیدو چې مونږ د فقیرانو حصه خوړل غوښتل.

**فېوداکه** :: دغې درمیانه سړی چې صحیح خبره کړې وه اګر چې دنورو نه ښهٔ وو خو بیا هم د نورو ملګرتیا ئې اوکړه اودهغوئ په غلطه رائې باندې د عمل کولو دپاره تیار شوې وو. څکه

---

[1] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳٦]

[2] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۷]

دهغه حشر هم دهغوئ په شان شو. دې نه معلومه شوه چې څوک بل لره د ګناه نه ايسار وي او هغه ايسار نه شي او دې هم په ګناه کولو کښې ورسره شريک شي نو هغه هم د دوئ په حکم کښې وي، هغه له پکار دي چې که هغه بل د ګناه نه منع کولې نه شي نو پخپله دې خپل ځان د ګناه نه بچ کوي.

[فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَلَاوَمُونَ] يعنې دغې خلقو د خپل جرم اقرار خو اوکړو ليکن اوس ئې الزام په يو بل باندې اچول غوښتل چې هم تا داسې غلطه رائې راکړې وه چې دهغې په سبب عذاب راغلو. حالانکه دا جرم په هغوئ کښې د چا کس نه وو بلکه ټول يا اکثر په دې کښې شريک وو.

**فيده او** :: نن سبا عموما خلق په دې کښې ګرفتار دي چې کله ديوې ډلې په بد عملئ سره دغې ډلې ته څه مصيبت اورسی نو بل عذاب پرې دا وی چې ددې الزام په يو بل باندې اچولو سره وخت ضائع کوي.

[قَالُوا يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا طَاغِينَ] په اول کښې په يو بل باندې د الزام لګولو نه پس ئې چې غور اوکړ و نو بيا ټولو دا اقرار اوکړو چې مونږ سرکشه ګناهګار يو. د پښيمانتيا دا اقرار کول داسې وو لکه چې ټول توبه ګار شو. نو په دې بنا دوئ د الله ﷻ نه دا اميد لرل شروع کړو چې مونږ ته به الله ﷻ ددې باغ نه زيات بهتر باغ راکړي.

امام بغوی رحمه الله د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل کړی دی چې ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چې ما ته دا خبر رارسيدلې دې چې دغې ټولو خلقو دزړه نه توبه اوويسته نو الله ﷻ ورته دهغې نه زيات غوره باغ ورکړو چې دهغې دانګورو غونچې دومره لوئې وې چې يو غونچه به په قچره بارولې شوه. [مظهری] (۱).

[كَذَٰلِكَ الْعَذَابُ] د اهل مکه د قحط سالئ عذاب په اجمال سره او دباغ دخاوندانو دفصل د سوزيدو قصه په تفصيل سره د ذکر فرمائيلو سره ئې عامه ضابطه ارشاد اوفرمائيله چې کله د الله ﷻ عذاب راځي نو هم داسې راځي اوپه دنيا کښې د عذاب دراتلو نه هم دهغوئ دآخرت دعذاب کفاره نه کيږي بلکه دآخرت عذاب ددې نه به علاوه اوسخت وي.

وروستو آيت مبارک کښې دنيک متقيانو بندګانو دجزاء بيان دې. او دې نه پس د مکې دمشرکانو ديوې بلې باطلې دعوې رد کول دی هغه دا چې د مکې کافرانو به وئيل چې اول خو قيامت راتلونکې نه دې او په دوباره ژوندی کيدو سره د حساب کتاب قيصه ټوله افسانه ده اوکه بالفرض دغسې اوشو نو بيا به هم مونږ هلته هم په مال، دولت اونعمتونو سره مکمل يو ځنګه چې په دنيا کښې يو، ددې جواب په ګڼو آيتونو کښې ورکړې شوې دې چې آيا د الله ﷻ په نيز به نيک بندګان او دا مجرمان برابره وي؟ دا ځنګه عجيبه اونا آشنا فيصله ده چې نه پرې څه سند، نه دليل او نه د يو آسمانی کتاب نه ددې ثبوت، نه دالله ﷻ د طرفه څه وعده وعيد چې هلته به هم تاسو ته نعمت درکوي.

**د قيامت يو عقلی دليل** :: ددې بيان شوؤ آيتونو نه ثابت شو چې قيامت راتلل او د حساب کتاب کيدل او دنيک او بد جزاء اوسزاء دا ټول د عقل له مخې ضروری دی ولې چې دې لره خو په

(۱) تفسير المظهری [ج:۱۰ ص:۳۸] و تفسير البغوی [ج: ۸ ص:۱۹۷]

دنيا كښي هر څوک ګوري او څوک تري انکار نشي کولي چي په دې دنيا کښي عموما فاسقان ، فاجران غله او ډاکوان په فائده کښي دي او مزې کوي يو غل او ډاکو په يو شپه کښي کله خو دومره ګټي چي شريف بنده ئې په ټول عمر کښي هم نشي ګټلي بيا هغه خو نه د الله ﷻ ويره او نه قيامت پيژني ، او نيک شريف بنده اول خو د الله ﷻ نه ويريږي. که دا هم نه وي نو روږولئ او برادرئ شرم وحيا پري غالب شي . خلاصه دا شوه چي ددنيا په کارخانه کښي خو بدکار بدمعاش کامياب ، او نيک ،شريف ناکامه ليدې شي که بيا هم په راتلونکي وخت کښي د انصاف او حق کولو څه وخت رانشي چي نيک ته ښه بدله ورکړې شي او بد ته سزا نو اول به بدو ته بد او ګناه ته ګناه وئيل بۀ عبث شي چي هغه انسان لره بې وجې دخپلو خواهشاتو نه ايسارول دي او بله خبره داده چي عدل او انصاف به بې معنى شي چي څوک د الله ﷻ دَوجود قائل دى هغوئ به ددې څه جواب ورکوي چي د الله ﷻ انصاف چرته لاړو؟

پاتې شوه دا شبه چي په دنيا کښي ډير خل مجرم نيولي شي دهغه رسوائي کيږي. سزا بيا مومي ، دشريف بنده بيلتون ددې نه دلته واضح کيږي . او عدل وانصاف دحکومتونو په قوانينو سره قائميږي . دا څکه غلط دي چي اول خو هر چرته او په هر حال کښي د حکومتونو نګراني کيدې نشي چرته چي اوشي هلته عدالتي ثبوت هر چرته رسول آسان نه دي ، چي دهغې په ذريعه مجرم سزا بيا موندې شي.

او که ثبوت پيدا هم شي نو دزور زر ، رشوت او سفارش دباؤ وغيره څومره پټي دروازې دي چي مجرم په هغې کښي وتې شي اوکه ددې زماني د حکومتي او عدالتي جرم او سزا خبر واخستې شي نو دغه وخت سزا صرف هغه بې وقوفه ، بې عقله يا بې آسرې انسان بيا مومي کوم چي په هوښيارتيا سره څه پټه دروازه ځان له پيدا نه کړې شي نه ورسره رشوت دپاره پيسې وي نه ورسره څوک لوئي سري مددګار وي نه دومره پوهه وي چي دغه ذريعې استعمالولې شي ، پاتې ټول مجرمان آزاد ګرځي

دقرآن پاک دې لفظ [أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ] دا حقيقت واضح کړو چي د عقل له مخې داکيدل ضروري وي چي څه داسې وخت راشي چي چرته دټولو حساب وي او چرته چي مجرمانو دپاره پټه دروازه نه وي او هلته سراسري انصاف وي او د نيک او بد ښه ښکاره بيلتون وي اوکه داسې نه وي نو په دنيا کښي هيڅ بد کار بد نه دې او نه څه جرم جرم دې او بيا د خدائي عدل او انصاف هيڅ معنى نه پاتې کيږي .

اوکله چي د قيامت راتلل اود عملونو جزا او سزا يقيني شوه نو ورپسې د قيامت د هيبتونو او د مجرمانو دسزا ذکر کړې شوې دې چي په کښي د ساق بربنديدو اعجاز بيان کړې شوې دې. ددې حقيقت د تفسير په خلاصه کښي بيان کړې شوې دې .

[فَذَرْنِي وَمَنْ يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ] يعني تاسو ما اوهغه څوک پريږدئ چي څوک هم دقيامت خبره په دروغه بولي ، بيا ګورئ چي مونږ څه کوو ؟ د لته پريخودل دهغې محاورې په ډول فرمائيلې شوي دي، مراد ددې نه په الله ﷻ باندې تکيه او توکل کول دي او حاصل دادې چي د کافرانو د طرفه دا مطالبه هم بيا بيا وراندې کولې شوه چي که مونږ واقعي د الله ﷻ په نزد مجرمان بو او الله ﷻ مونږ لره په عذاب ورکولو قادر دې نو بيا مونږ ته عذاب اوس ولې نه رازي ؟

ددوئ دداسې زړه آزارونکو مطالبو په وجه به کله کله پخپله د رسول الله ﷺ په زړه مبارک کښې داخیال پیدا شوې وی او کیدیشی چې دعا ئې هم کړې وی چې که دې خلقو باندې دا وخت عذاب راشی نو د پاتې خلقو د اصلاح امید شته دې په دې باندې اوفرمائیلې شو چې خپل حکمت مونږ ښه پیژنو ، تر یوحده پورې دوئ ته ډیل ورکوو ، سمدستی پرې عذاب نه لیږو په دې کښې د دوئ آزمیښت هم وی او د ایمان راوړلو ډیل هم وی ، په آخر کښې د یونس ﷺ د واقعې ذکر فرمائیلو سره نبی کریم ﷺ ته دا نصیحت اوفرمائیلې شو چې څنګه یونس ﷺ د خلقو دمطالبې نه تنګ شو او د عذاب دعائې اوکړه او د عذاب نخښې هم مخې ته راغلې او یونس ﷺ د عذاب ددغې ځائې نه بل ځائې ته لاړو مګر بیاټول قوم په منت او زارئی اخلاص سره توبه ګار شو ، الله ﷻ هغوئ ته معافی ورکړه او عذاب ئې ترې ایسار کړو نو اوس یونس ﷺ داشرمندګی محسوسه کړه چې زه به اوس دغې خلقو ته دروغژن ثابت شم ، نو ددې بدنامئ دویرې دالله ﷻ د ښکاره اجازت نه بغیر پخپل اجتهاد سره دا لار اختیار کړه چې اوس بیا دغې خلقو ته واپس لاړ نشی . په دې وجه د خبردارئی په خاطر الله ﷻ هغوی ته د دریاب سفر او دماهی خیټې ته ورتلل راپیښ کړل بیا چې ورته خبرداری حاصله شوه نو هغوئ بخښنه او معافی اوغوښته او دوباره ئې پرې د مخکینو انعاماتو دروازې خلاصې کړې ، دا واقعه په سورة یونس او نور سورتونو کښې تیره شویده . نبی کریم ﷺ ته ئې ددې واقعې په وریادولو سره ددې نصیحت اوکړو چې تاسو ﷺ ددې خلقو په داسې مطالبو سره مه غمژن کیږئی او په دوئ باندې د زر عذاب نازلولو خواهش مه لرئی په خپلو حکمتونو او د جهان په مصلحتونو مونږ ښه پوهیږو په ماباندې توکل اوکړئی .

[وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ] دلته یونس ﷺ ته صاحب الحوت ځکه اوفرمائیلو شو چې یونس ﷺ څه زمانه دماهی په خیټه کښې پاتې شوې وو .

[وَإِن يَكَادُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَارِهِمْ] ، [لَيُزْلِقُونَكَ] دا ازلاق نه مشتق دې چې معنی ئې لغزش ورکول او غورځول دی [راغب ][1] مطلب دادې چې دمکې کافر خلق تاسو ﷺ ته د غضب او په کوږ نظر سره ګوری او غواړی چې تاسو ﷺ ته خپل ځائې او مقام نه لغزش درکړی کله چې دوئ د الله ﷻ کلام آوری او وائی چې دا خو لیونې دې :

[وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ] حالانکه دا کلام خو د ټول جهان دخلقو د پاره ذکر ، نصیحت او د دوئ دپاره دصلاح اوکامیابئ ضامن دې ، داسې کلام کوؤنکې څرته لیونې بللې شی ؟

دکافرانو دکوم پیغور چې ددې سورت په شروع کښې جواب ورکړې شوې وو ، د سورت په ختمیدو باندې هم ددې په بل انداز سره جواب ورکړې شو .

او امام بغوی[2] وغیره مفسرینو ددې آیتونو باره کښې یو خاص واقعه نقل کړې ده چې د انسان بد نظر لګیدل او دهغه نه یوانسان ته نقصان او بیماری رسیدل بلکه د هلاکت پورې رسیدل څنګه چې یو حقیقت دې او په صحیح احادیثو کښې د دې حقوالې ثابت دې ، داسې دا په عربو کښې هم معروف او مشهور وو هرکله د مکې د کافرانو رسول الله ﷺ سره دښمنی وه

---

[1]) غريب القرآن للإصفهاني [ج: ۱ ص: ۲۱۵]

[2]) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ۸ ص: ۲۰۲]

بلکه د دغې دښمنۍ له کبله ئې د نبی کريم ﷺ شهيد کول غوښتل خکه ئې د مکې د يو نظر باز خدمات دې د پاره حاصل کړل چې هغه ئې د نظره کړی او وفات شی لکه وائی چې په گړه مرۍ نو په زهرو سره مړ کول نه دی پکار خو په نبی کريم ﷺ باندې د دغې مشهور نظر باز هيڅ اثر او نه شو کوم به چې اوښان يا څاروی د نظره کړل نو بې مرګه به نه پاتې کيدل . او حقيقت هم دادې چې نظر لګی څنګه چې صحيح احاديثو نه ددې حق کيدل ثابت دی ، مطلب دا چې دبد نظر لګيدو نه الله ﷻ د نبی کريم ﷺ حفاظت اوکړو او دا آيت هم دې باره کښې نازل شو [لَيُزْلِقُوْنَكَ بِأَبْصَارِهِمْ] نه هم دغه بد نظر لګول مراد دي.

**فائده** :: حسن بصری رحمه الله نه منقول دی چې نظر وهلی بنده باندې چې دا آيتونه دم کړې شی نو دهغې اثر لرې کيږی ، دا آيتونه د سورت تر آخره پورې دی . [ مظهری ] [1].

تمت سورة القلم بحمدالله يوم الاحد لست مضين من رجب ۱۳۹۱هجری

## سورة الحاقة مكية وهي اثنتان وخمسون آية وفيها ركوعان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې ①

اَلْحَاۤقَّةُ ۝١ مَا الْحَاۤقَّةُ ۝٢ وَمَاۤ اَدْرٰىكَ مَا الْحَاۤقَّةُ ۝٣

حق ثابتونکې [قيامت] | څه دې حق ثابتونکې | او څه معلوم دې تاته | چې څه دې حق ثابتونکې |

هغه ضرور واقع کيدونکې | هغه واقع کيدونکې څيز څه دې ؟اوتاته څه معلومه ده چې هغه واقع کيدونکې

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ وَعَادٌۢ بِالْقَارِعَةِ ۝٤ فَاَمَّا ثَمُوْدُ

دروغ اوګڼړو | ثموديانو | او عاديانو | څيزونه يو بل ته راڅوونکی آفت لره | پس هر چې ثموديان وو

څيز څه دې | ثموديانو او عاديانو [دواړو] هغه ګرزيدنکې واقعه دروغ ګڼړله | نو ثموديان خو په

فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ ۝٥ وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا

پس هلاك کړې شو هغوئ | په سخته حادثې سره | او هر چې عاديان وو | پس هلاك کړې شو هغوئ

يوه چغه هلاک کړې شول | ..........پاتې شول عاديان نو هغوئ موپه يوه

بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ۝٦ سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ

په هوا سره | چې سخته يخه وه | دحدنه اوړيدونکی وه | مقرر کړی وه الله دغه هوا | په هغوئ باندې

يخه سخته تيزه سيلۍ هلاک کړل | ..... ..... .......... الله ﷻ په هغوی باندې

سَبْعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ اَيَّامٍ حُسُوْمًا فَتَرَى الْقَوْمَ فِيْهَا

اوه شپې | او اته ورځې | پرله پسې | پس تابه ليدل هغه خلق | په هغې کښې

دغه تيزه سيلۍ اووه شپې او اته ورځې پرله پسې والوزوله | نو تا به په کښې هغه خلق داسې

---

[1] ) تفسير المظهري [ج:۱۰ص:۴۷]

صَرْعٰى ۙ كَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴿۷﴾ فَهَلْ تَرٰى لَهُمْ

راپریوتی | لکه چې هغوئ | تنې د کجورو دی | راپریوتلی | پس آیا وینې ته | هغوئ لره

راغورزیدلی لیدل | لکه چې د غورزیدلو کهجوروتنې دی | ..........نو آیا ته په هغوی کښې

مِّنْۢ بَاقِيَةٍ ﴿۸﴾ وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهٗ

څوك باقي پاتې شوی | او راغې فرعون | او هغه څوك | چې مخکښې ووه دهغه نه

څوک پاتې وینې | ..........اوفرعون اودهغه نه وړاندې د اوړیدلې شوې کلو

وَالْمُؤْتَفِكٰتُ بِالْخَاطِئَةِ ﴿۹﴾ فَعَصَوْا رَسُوْلَ رَبِّهِمْ

اولاند باندې کړې شوی کلی | په لوئ خطا سره | پس هغوئ نافرمانی اوکړه | درسول | درب خپل

خلقو [غټ غټ]جرمونه کړی وو| ..........نو ټولو دخپل رب د پیغمبر نافرمانی اوکړه

فَاَخَذَهُمْ اَخْذَةً رَّابِيَةً ﴿۱۰﴾ اِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ

نو راوې نیول هغوئ | په نیولو سختو سره | بیشکه مونږه | هر کله چې | سرکشی اوکړه اوبو

الله ﷻ هغوی لره ډیر مضبوط راونیول| ..........هرکله چې اوبه زیاتې شوې | نو تاسو مو په

حَمَلْنٰكُمْ فِي الْجَارِيَةِ ﴿۱۱﴾ لِنَجْعَلَهَا

سواره کړئ مونږه تاسو | په کشتئ کښې | دپاره ددې چې جوړ کړو مونږ دې واقعې لره

کشتئ کښې سواره کړئ | ..........چې دا واقعه ستاسو دپاره یو یادگار کړو

لَكُمْ تَذْكِرَةً وَّتَعِيَهَآ اُذُنٌ وَّاعِيَةٌ ﴿۱۲﴾ فَاِذَا

دپاره ستاسو | یو عبرتناك یادگار | او یاد اولری هغې لره | غوږونه یادساتونکی| پس هر کله چې

او یاد ساتونکی غوږونه ئې یاد اوساتی | ..........کله چې یو خل

نُفِخَ فِي الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿۱۳﴾ وَّحُمِلَتِ الْاَرْضُ

پوکې اووهلې شی | په صور [شپیلئ] کښې | پوکې یو خل | اواوچت کړې شی زمکه |

شپیلئ پوک وهلې شی | او زمکه او غرونه اوچت کړې شی |

وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ﴿۱۴﴾ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ

او غرونه | انو ریزه ریزه به کړې شی دواړه | په یو وار سره | پس په دغه ورځ به | واقع شی |

نودواړه په یو واري ذره ذره کړې شی | ..........او په هغې ورځ کښې به واقع کیدونکې

الْوَاقِعَةُ ﴿۱۵﴾ وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ﴿۱۶﴾

هغه واقع کیدونکې [قیامت] | اوابه شلیږی | آسمان | پس هغه به | په دغه ورځ | سست وی |

حادثه واقع شی| ..........اوآسمان به اوشلیږی | ..........او هغه به په دغه ورځ ډیر کمزوری وی

وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى اَرْجَآئِهَا ۚ وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ

او فرښتې به | په غاړه دآسمان وی | اواوچت کړې به وی | عرش درب ستا | دپاسه دخان |

اوفرښتې به ددې په غاړه ولاړې وی | ..........اوستا د رب عرش به په دغه ورځ اتو [۸] [فرښتو]

يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ ﴿١٧﴾ يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُوْنَ لَا تَخْفٰى

په دغه ورځ | اتو فرښتو | دغه ورځ به وي | چې تاسو به پیش کړې شئ | پټ به پاتې نه شي |
دخان دپاسه اوچت کړي وي | په کومه ورځ چې تاسو پیش کړې شئ | نو ستاسو هیڅ خبره

مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿١٨﴾ فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ

د [عملونو] ستاسو نه | یو پټ راز | نو هر هغه څوک | چې ورکړې شوه | عملنامه خپله |
به پټه پاتې نشي | ..............نوچاته چې عملنامه په ښي لاس کښې ورکړې شي

بِيَمِيْنِهٖ فَيَقُوْلُ هَآؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِيَهْ ﴿١٩﴾ اِنِّيْ ظَنَنْتُ

په ښي لاس دهغه کښې | پس وائي به | راشئ | اولولئ | عملنامه زما | بیشکه ما یقین کوو |
نو هغه به وائي | [خلقو] راشئ زما عمل نامه اولولئ | زه په دې پوهه ووم | ..............چې

اَنِّيْ مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ ﴿٢٠﴾ فَهُوَ فِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴿٢١﴾

چې بیشکه زه | ملاویدونکې یم | دحساب خپل سره | نو هغه به | په عیش [ژوند] | ښه کښې وي
زه به خپل حساب ته مخامخ کیږم | ..............نوهغه به ښه دمزو ژوند تیروي

فِيْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿٢٢﴾ قُطُوْفُهَا دَانِيَةٌ ﴿٢٣﴾

په جنت کښې به وي | داوچتې مرتبې | چې غونچې دمیوو دهغې به | لاندې زنګیدونکې وي |
په اوچت جنت کښې به وي | ..............چې میوې به ئې راښکته وي

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓــًٔا بِمَآ اَسْلَفْتُمْ

خورئ | اوڅکئ | ښه په مزه سره | په بدل دهغه عملونو کښې | چې مخکښې لیږلي وو تاسو
[او زمونږ د طرفه به ورته وئیلی شي] ښه په مزه خورئ څکئ | د هغې عملونو په بدله کښې چې په تیرو

فِي الْاَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴿٢٤﴾ وَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ

په ورځو | تیروشوو کښې | او هر هغه څوک | چې ورکړې شوه | عملنامه خپله | په ګس لاس دهغه کښې
ورځو کښې مو کړي وو | اوچاته چې عملنامه په ګس لاس کښې ورکړې شي

فَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُوْتَ كِتٰبِيَهْ ﴿٢٥﴾ وَلَمْ اَدْرِ

پس وائي به | اے کاش چې نه وی راکړې شوې ماته | عملنامه زما | او معلوم نه وې ماته
نو هغه به اووائي | ښه به وه چې دا عملنامه هډو ورکړې شوې نه وې | ..............او زه هډو

مَا حِسَابِيَهْ ﴿٢٦﴾ يٰلَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿٢٧﴾ مَآ اَغْنٰى

چې څه دې حساب زما | اے کاش چې دا مرګ | وې فیصله کونکې [یعنی آخرې] | هیڅ دفع اونه کړه
خبر نه وې چې زما حساب څه دې ؟ | اټې افسوس! چې په مرګ مې قصه ختمه شوې وې | زما مال خو

عَنِّيْ مَالِيَهْ ﴿٢٨﴾ هَلَكَ عَنِّيْ سُلْطٰنِيَهْ ﴿٢٩﴾ خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ ﴿٣٠﴾

مال زما | ابربادشو [ختم شو] | زمانه | اقتدار زما | اونیسئ دې | او پتئ واچوئ دا ته
ماته هیڅ فائده رانکړه | زما اختیار هم لاړو | [حکم به اوشي] دې اونیسئ اوطوق ورته واچوئ

ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ ۝ ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ

بيا دوزخ ته | اوغورزوئ دي | بيا په يو زنځير کښې | چې گزونه دهغې | او ياگزونه وي

بيا ئې دوزخ ته ورداخل کړئ | بيا ئې په داسې زنځيرونو کښې اوتړئ | چې دهغې اوږدوالي

ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ ۝ إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ ۝

پس ننباسئ دهٔ لره [په دوزخ کښې] | بيشکه دې وو | چې ايمان ئې نهٔ راوړو | په الله | لوئ باندې

اوياگزه دي | ..................دهٔ به په لوئې الله ﷻ ايمان نه راوړو

وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ۝ فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا

او تيزول ئې نهٔ کول | په طعام ورکولو | مسکين ته | پس نشته | دهٔ لره | نن ورځ | دلته |

اومسکين ته به ئې د روټئ ورکولو ترغيب نه ورکولو | نو نن ئې دلته څوک

حَمِيمٌ ۝ وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ ۝ لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ ۝

څوک دوست | اونهٔ طعام شته | ماسوا | دټو دزخمونونه | چې نهٔ به خوری هغه | ماسوا دخطا کارونه

دوست نشته | اود وينونه سوا ئې بل څه خوراک نشته | هغه خوراک چه د گناهگارانو بغير ئې بل څوک نه خوری

فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ ۝ وَمَا

پس نهٔ | زهٔ قسم خورم | په هغه څيزونو باندې | چې تاسو ئې وينئ | او په هغه څيزونو باندې

نوزهٔ په هغه څه قسم خورم چې تاسوئې وينئ | ..............او په هغه څه چې تاسو ئې

لَا تُبْصِرُونَ ۝ إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ۝

چې تاسو ئې نهٔ وينئ | بيشکه [دا قرآن] | خامخا قول دې | درسول کريم [محمد ﷺ]

نه وينئ | ............ بيشکه دا قران ديوې عزت مندې فرښتې راوړې کلام دې

وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ۚ قَلِيلًا مَا تُؤْمِنُونَ ۝ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ۚ

او نهٔ دې دا قول [کلام] دشاعر | دير لږ دې | هغه | چې تاسو ايمان راوړئ | اونهٔ دې قول [کلام] دکاهن

اود چا شاعر کلام نه دې | تاسو دير کم ايمان راوړئ | ..............اونه دچا کاهن کلام دې

قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ ۝ تَنْزِيلٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝

دير لږ دې هغه | چې تاسو نصيحت اخلئ | نازل شوې دې | دطرفه درب العالمين نه

تاسو دير کم پوهيږئ | ..............دا د رب العالمين د طرفه نازل شوې دې

وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ ۝ لَأَخَذْنَا

او که دخانه ونيلې [جوړه کړې وې محمد ﷺ] په مونږ باندې | يوه خبره | خامخا به نيولې وو مونږه

اوکه دې پيغمبر په مونږ باندې [د خان نه] څه خبره تړلې وې | .......نو مونږ به تړې نه

مِنْهُ بِالْيَمِينِ ۝ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ ۝ فَمَا مِنْكُمْ

دهغه نه | ښئ لاس | بيا به پريکړې وو مونږه | دهغه نه | رگ دزړهٔ | پس نهٔ به وو له تاسو نه |

ښئ لاس نيولې وو | بيا به مو ورله د زړه رگ کټ کړې وو | ..............نو بيا به

مِّنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ ۝ وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ ۝

هیڅوک | ددې نه | منع کونکي | او بیشکه دا قرآن | یو نصیحت دی | دپاره دمتقیانو |

په تاسو کښې هیڅوک ددې سزا نه بچ کوونکي نه وو | او دا قرآن د پرهیزګارانو دپاره نصیحت دی

وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنكُم مُّكَذِّبِينَ ۝

او بیشکه مونږه | خامخا پوهیږو | چې بیشکه څه خلق له تاسو نه | دروغ ګڼرونکي دي |

او مونږ په تاسو کښې [پیغمبرانو لره] دروغژن ګڼرونکي ښه پیژنو

وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ ۝ وَإِنَّهُ

او بیشکه دا دروغ ګڼرل دقرآن | خامخا به افسوس وي | په کافرانو باندې | او بیشکه دا قرآن

او دا قران دکافرانو دپاره د پښیمانتیا سبب دی | او دا قران بیخي

لَحَقُّ الْيَقِينِ ۝ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ۝

یقیني حق دی | پس پاکي وایه | په نوم درب خپل | چې لوئ دی |

یقیني خبره ده [نو [ائې پیغمبره] ته دخپل رب دنوم تسبیح وایه | چې لوئې دی

## آسان ترجمه قرآن

هغه حقیقت چه یقیني راتلونکې دې. څه دې هغه حقیقت چه یقیني راتلونکې دې. او تاته څه پته ده، چه هغه حقیقت څه دې، چه یقیني راتلونکې دې؟ ثمودیانو او عادیانو هغه زړونولړه ټکوونکې حقیقت دروغ ګڼرلې وو نتیجه دا شوه، چه کوم ثمودیان وو، نوهغوی هلاک کړې شوې (په چغې) د داسې آفت باندې، چه د حد نه زیاته (هیبت ناکه) وه او کوم چه عادیان وو، نو هغوی هلاک کړې شو په داسې تیزې سیلۍ باندې، چه د حد نه بې قابو (طوفاني)؟؟ وه. چه هغه الله تعالی اوچلوله په دوی باندې، اووه شپې او اته ورځې نو که ته (هلته موجود وې) نو لیدلې به وو تا هغه قوم چه هلته د کهجورو د ټنو پشان پرمخې پراته وو نو آیا وینې ته دوی لره چه څوک ترې پاتې شوې دي. او فرعون او دهغه نه مخکښنو خلقو او (د لوط علیه السلام) ألټه اړولې شوو کلو هم دغه لوئې جرم کړې وو. چه هغوی د خپل پروردګار د پیغمبر نافرماني کړې وه. نو الله تعالی اونیول په نیولو سختو سره. چه کله اوبه د حد نه تیرې شوې، نو مونږ تاسو په کشتۍ کښې سواره کړې دې دپاره چه مونږ دغه واقعه ستاسو دپاره نصیحت والا اوګرځوو، او یاد اوساتې دې لره غوږونه یادونکی. نو کله چه پوکې اوکړې شي په شپیلۍ کښې یو پوکې. او زمکه او غرونه پورته کړې شي، او په یو ګوذار سره به چورې چورې کړې شي. نو په هغه ورځ به هغه واقعه پېښه شي کومه چه پېښیدونکې ده. او آسمان به اوچوي، نو هغه به په دغه ورځ بالکل کمزورې وي. او فرشتې به د هغې په غاړه وي، او ستا د پروردګار عرش به په دغه ورځ اتو فرشتو پره اوچت کړې وي. په هغه ورځ به ستاسو پېشي داسې وي، چه ستاسو هیڅ پټ څیز به پټ پاتې نه شي. بیا چه چاته د هغه اعمال نامه په ښې لاس کښې ورکړې شي نو هغه به وائي چه: اے خلقوا دا زما اعمال نامه اولولئ. زما د مخکښې نه دا یقین وو چه زه به حساب سره مخامخ کیږم. نو هغه به په خوشحاله ژوند کښې وي. په هغې

اوچت جنت کښې. چه د هغې میوې به ښکته شوې وی. (او به وئیلې شی چه) د خپلو هغو عملونو په بدله کښې خورئ او څکئ، چه تاسو په تیرو شوو ورځو کښې کړې وو او هغه څوک چه هغه ته اعمال نامه په ګس لاس کښې ورکړې شی، نو هغه به وائی چه: اے کاش! ماته زما اعمال نامه را کړې شوې نه وه. او زه نه پوهیدلې چه څه دې حساب زما؟ اے کاش! چه زما په مرګ باندې زما کار ختم شوې وې؟ زما مال ماته هیڅ فائده رانکړه، زما ټول زور زما نه لاړو. (د داسې سړی باره کښې به حکم اوشی) اونیسئ دے لره، او دے په مړئ کښې طوق واچوئ. بیا ئې په جهنم کښې ورداخل کړئ. بیا ئې په هغه زنځیر کښې اوبزان کړئ چه د هغې اوږد والې اویا ګزه دې. یقینًا دے نهٔ خو په الله تعالی باندې چه لوئې او برتر دې، ایمان راوړو. او نه ئې غریبانانو ته د خوراک ورکولو ترغیب ورکولو. پس نشته لن ورځې دلته دده څوک یار او مددګار. او نه به دے ته څه خوراک ملاویږی، سوا د غسلین نه چه هغې لره به د ګناهګارانو نه سوا هیڅوک نه خوری اوس زه قسم خورم. په هغه څه باندې هم چه تاسو ئې وینئ. او په هغه څه باندې هم چه تاسو ئې نه وینئ چه دا (قرآن) دیو عزت مند پیغام راوړونکی کلام دې او دا د شاعر کلام نه دې (مګر) تاسو لږ کسان ایمان راوړئ او نه دا د کاهن کلام دې، (مګر) تاسو نصیحت ډیر کم قبلوئ. دا کلام دټولو جهانونو د پروردګار د طرف نه نازلیږی. اوکه (بالفرض) دې پیغمبر څه (دروغ) خبرې مونږته منسوب کولې نو مونږ به دده ښې لاس نیولې وو. بیا به مونږ دده د سټ رګ پریکړې وې. بیا به تاسو کښې هیڅوک دے لره بچ کونکې نه وو او یقین اوکړئ، چه دا د پرهیزګارانو دپاره یو نصیحت دې، او مونږ ته ښه معلومه ده، چه په تاسو کښې څه خلق دروغ ګنړونکې دی. او دا (قرآن) ددا سې کافرانو دپاره د افسوس سبب دې او هم دا هغه یقینی خبره ده، چه سراسر حقه ده. لهٰذا تاسو د خپل پروردګار د عظمت والا نوم تسبیح کوئ.

## خلاصه تفسیر

﴿اَلْحَآقَّةُ ۝ مَا الْحَآقَّةُ ۝﴾ [هغه کیدونکې شی څهٔ شې دې هغه کیدونکې شې؟ ﴿وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْحَآقَّةُ ۝﴾ اوتاته څه خبر دې چه څه دې هغه کیدونکې شې؟] مقصود ددې نه دقیامت عظمت اودهولناک کیدو بیان دې دا استفهامات دتهویل دپاره دی ﴿كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ وَعَادٌۢ بِالْقَارِعَةِ ۝﴾ [ثمودیانو اوعادیانو هغې درزیدونکی شی لره] یعنی قیامت لره ئې [دروغژن کړو ﴿فَاَمَّا ثَمُوْدُ فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ ۝﴾ پس ثمودیادن خو په زور دار اوازسره هلاك کړې شول ﴿وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ۝﴾ او عادیان چه وو پس هغوی په یوه تیزه تنده هوا سره هلاك کړې شول ﴿سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ اَيَّامٍ حُسُوْمًا﴾ کومه چه الله تعالی په دوی اووهٔ شپې او اتهٔ ورځې متواتر مسلطه کړې وه ﴿فَتَرَى الْقَوْمَ فِيْهَا صَرْعٰى كَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ۝﴾ پس] اے مخاطبه کهٔ تهٔ] هغه وخت هلته موجود وې نو [دغې قوم لره به دې داسې پریوتلی لیدل چه ګویاهغوی دغورزیدلو کجوروتنې] برتې [دی] خکه چه هغوی ډیر درازقدوالا وو ﴿فَهَلْ تَرٰى لَهُمْ مِّنْۢ بَاقِيَةٍ ۝﴾ [پس ایاتاته په دوی کښې څوك بچ شوې په نظر راځی؟] یعنی هیڅوك تری نه نه دی بچ شوی لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ۝﴾ [1] ﴿وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهٗ وَالْمُؤْتَفِكٰتُ

---

[1] ترجمه:- آیا ته په هغوئ څوك وینې یا دهغوئ څه رو شان آواز آوری۔

بِالْخَاطِئَةِ﴾ [او] دغه شان [فرعون او دده نه وړاندې خلقو] په کومو کښې چه قوم دنوح ﷺ عاد او ثمود تول راغلل [او] قوم دلوط ﷺ [ملاؤ شوو کلولوې گناهونه وکړل] یعنی کفر او شرك او په دې دوی ته رسولان ولیږل شول ﴿فَعَصَوْا رَسُولَ رَبِّهِمْ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً﴾ [پس هغوی دخپل رب د رسولانو] کوم چه دوی ته لیږلې شوی وو [خبره ونه منله] او د کفر او شرك نه واپس نه شول په کوم کښې چه دقیامت تکذیب هم داخل دې [او الله تعالی هغوی لره ډیر سخت ونیول] په کومو کښې چه دعاد او ثمود قصه خو اوس تیره شوه او دقوم دلوط ﷺ او قوم فرعون عذابونه په ډیر و ایتونو کښې وړاندې تیر شوی دې او دقوم دنوح ﷺ عذاب په ضمن داحسان کښې مذکور دې یعنی ﴿إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَاءُ حَمَلْنَاكُمْ فِي الْجَارِيَةِ﴾ [مونږ هر کله چه] دنوح ﷺ په وخت کښې [اوبو جوش او کړو تاسو لره] یعنی ستاسو مشرانو لره کوم چه مؤمنان وو او دهغوی نجات ستاسو دوجود سبب شو [په کشتۍ کښې سواره کړل [او باقي لره مو غرق کړل ﴿لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَتَعِيَهَا أُذُنٌ وَاعِيَةٌ﴾ [چه مونږ دې معاملې لره ستاسو دپاره یو یادګار] او عبرت [جوړ کړو او دیاد ساتلو والا غوږونه دې لره یاده کړي] غوږونو ته نې یادساتلو والا مجاز او ونیل مطلب دادې چه دې لره یاده کړئ دسزا داسبابونه خان بچ کړې داقصې خو دقیامت ددروغژن کوونکو شوې وړاندې دقیامت دهیبت او ویرې بیان دې یعنی ﴿فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ﴾ [بیا چه کله په شپیلۍ کښې یو ځل پوکې وکړې شی ] مراد اوله شپیلۍ ده [او] دغه وخت ﴿وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَاحِدَةً﴾ [مزکه او غرونه] دخپل ځائې نه پورته [کړې شی ] یعنی دخپلو ځایونو نه لرې کړې شی [بیادواړه په یو ځل ذره ذره کړې شی ﴿فَيَوْمَئِذٍ وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ﴾ نو په دغه ورځ به هغه کیدونکې خیز وشی ﴿وَانشَقَّتِ السَّمَاءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَاهِيَةٌ﴾ او اسمان به څیرې شی او دا اسمان [به په دغه ورځ بالکل سست وې] چنانچه څیریدل دلیل دضعف دې یعنی څنګه چه دا وخت دامضبوط دې او په دې کښې چرته نقصان او چاودې نشته په دغه ورځ به په دې کښې داخبره پاتې نه شی بلکه ضعف او څیرې والې به په کښې راشی ﴿وَالْمَلَكُ عَلَىٰ أَرْجَائِهَا﴾ [او فرښتې ] کومې چه په اسمان کښې خورې دې څه وخت چه دغه څیریدل شروع شی [دده غاړوته به راشی ] ددې نه ظاهر امعلومیږي چه اسمان به دمینځ نه څیرې شی څلور طرف ته به غونډیدل شروع شی په دې وجه به فرښتې هم دمینځ نه غاړوته راځی بیادا یت ﴿فَصَعِقَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ﴾ الخ(۱) په مطابق به په دې فرښتو هم مرګه مسلط شی کذافی الکبیر احد الوجهین(۲) ﴿وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَانِيَةٌ﴾ [او دا] ټول واقعات خو داولې شپیلۍ دوخت دې [او] وړاندې ددویمې شپیلۍ دوخت واقعات دې چه [ستاد پروردګار عرش لره به په دغه ورځ اتو فرښتو پورته کړې وې ] په حدیث کښې دې چه اوس عرش لره څلورو فرښتو پورته کړې دې په قیامت کښې به نې اته فرښتې پورته کوی لکه په درمنثور(۳) کښې داسې دې مرفوعا غرض اته فرښتې به عرش پورته کړې میدان دقیامت ته به نې راوړی او حساب به شروع شی چه وړاندې ئې بیان دې یعنی ﴿يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ لَا تَخْفَىٰ مِنكُمْ خَافِيَةٌ﴾ [په کومه ورځ چه تاسو] الله تعالی ته مخامخ دحساب

---

(۱) ترجمه:- پس د ټولو آسمانونو والو اود زمکې والو هوش به اوتښتی.
(۲) التفسیر الکبیر للرازی تحت هذه الآیة [ج: ۳۰ ص: ۹۶]
(۳) الدرالمنثور [ج: ۱۴ ص: ۶۷۰]

دپاره [پیش کړې شي] او [ستاسو څه خبره به] دالله تعالی نه [پټه نه وي بیا] عملنامې به والوزولې شي په لاس کښې به ورکړې شي نو ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ﴾ [دکوم سړی عملنامه چه دهغهٔ په ښي لاس کښې ورکړې شي ﴿فَيَقُولُ هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ﴾ هغه خوبه] دخوشحالۍ نه خپل خوا وشا خلقوته [وائي چه زما عملنامه ولولئ ﴿إِنِّي ظَنَنْتُ أَنِّي مُلَاقٍ حِسَابِيَهْ﴾ زما] خو دوراندې نه [اعتقاد ووچه ماته به زماحساب راپیښیږی] یعنی زما په قیامت اوحساب باندې عقیده وه مطلب دا چه ماایمان اوتصدیق لرلو نو الله تعالی ددې په برکت سره زماپالنه وکړه ﴿فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ﴾ [غرض هغه سړې به په خوښ ژوند کښې وی ﴿فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ﴾ یعنی اوچت جنت کښې وی ﴿قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ﴾ دکوم میوې چه به] دومره قدر [ښکته وی] چه په څه حالت ئې غواړی اخستې به ئې شی اوحکم به وشی ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ﴾ [چه خورئ اوڅښئ په مزه سره دهغو عملونو په بدله کښې کوم چه تاسو په امید دصلې په تیرو ورځو] یعنی په زمانه دقیام ددنیا [کښې کړی دی ﴿وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ﴾ اودکوم عملنامه چه دهغه په ګس لاس کښې ورکړې شي ﴿فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيَهْ﴾ پس هغه به] په نهایت افسوس سره [وائی چه] څهٔ به ښهٔ وې چه ماته زمانه عملنامه نهٔ وې ملاوشوې ﴿وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ﴾ اوماته داخبرهم [نه وې چه زماحساب څهٔ دې ﴿يَا لَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ﴾ څهٔ به ښهٔ وې چه] اولنی [مرګ مې خاتمه کړې وې] او دوباره ژوندې شوې نهٔ وې په کوم چه دا حساب کتاب مرتب شو افسوس ﴿مَا أَغْنَىٰ عَنِّي مَالِيَهْ﴾ [زمامال زماهیڅ په کار رانغې ﴿هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيَهْ﴾ زما اقتدار] هم [زمانه لاړو] یعنی مال اومرتبه ټول بې فائدې شول ددې سړی دپاره به فرښتوته حکم وشی چه ﴿خُذُوهُ فَغُلُّوهُ﴾ [دې سړی لره ونیسئ اودهٔ ته په غاړه کښې طوق واچوئ ﴿ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ﴾ بیا په دوزخ کښې دې داخل کړئ ﴿ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ﴾ بیا په یو زنځیر کښې چه پیمانش ئې اویاګزه دې دهٔ لره وتړئ] ددې ګزمقدارالله تعالی ته معلوم دې څکه چه دابه دهغه ځائې ګزوی وراندې دهغه عذاب وجه ښائی چهٔ ﴿إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ﴾ [دې سړی په لوئ الله تعالی ایمان نهٔ لرلو] یعنی لکه څنګه چه دانبیاؤ ﷺ دتعلیم مطابق ایمان راوړل ضروری وو هغه ایمان ئې نهٔ لرلو [او] په خپله خوبه ئې څهٔ ورکول پریږده چه ﴿وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ﴾ نوروله ئې هم [غریب سړی ته دخوراك ورکولو ترغیب نهٔ ورکولو] مطلب دادې چه دالله تعالی عظمت اودمخلوق شفقت کوم چه اصل عبادتونه په حقله دحقوق الله او حقوق العباد دی ددې دواړوتارك اومنکروو په دې وجه مستحق د عذاب شول ﴿فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ ۝ وَلَا طَعَامٌ﴾ [پس نن ددې سړی نه څوك دوست رشته اونهٔ به دهٔ ته څهٔ دخوراك شې نصیب شی ﴿إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ﴾ بغیر دزخمونو دنوونونه] یعنی بغیردیو داسې شی نه کوم چه به په کراهت اوصورت کښې په مثل دغسلین وی په کوم سره چه زخم وینځلې شوې وی اوداحصراضافی دې اومقصود ددې نه نفی ده دخوندورو خوراکونو ورنه دزقوم خوراك خو په خپله په ایت سره ثابت دې غرض ددوی طعام به غسلین وی ﴿لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ﴾ [کوم لره چه بغیردلویوګناهګارونه به بل څوك نهٔ خوری] وراندې دقرآن دحقانیت ارشادفرمائی په کوم کښې چه په قیامت کښې دجزاء اوسزا کیدوبیان دې ددې تکذیب موجب تعذیب مذکوردې ﴿فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ﴾ [بیا] پس دبیان دمضمون دمجازات نه [زهٔ قسم خورم په هغو څیزونو

هم کومولره چه تاسو وینئ: ﴿وَمَا لَا تُبْصِرُونَ﴾ او په هغو څیزونو هم کومولره چه تاسو نهٔ وینئ] ځکه چه څنې مخلوقات بالفعل یا بالقوة داصلاحیت نهٔ لری دې قسم لره دمقصود سره یو خاص مناسبت دې چه قرآن راوړونکې په نظرنه راتلواو په چاچه قرآن راتلوهغه په نظرراتللو، مراد دادې چه په ټول مخلوق قسم دې ﴿إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ﴾ [چه داقرآن] دالله تعالی دَ [کلام دې دیوې معززې فرښتې راوړې شوې] پس په چاچه داکلام نازل شو هغه ضرور رسول دې ﴿وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ﴾ [اوداد چاشاعر کلام نهٔ دې] لکه چه کفارو به دوی ﷺ ته شاعرونیلو ﴿قَلِيلًا مَا تُؤْمِنُونَ﴾ [مکرتاسو ډیرکم ایمان راوړئ] دلته دقلت نه مراد عدم دې ﴿وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ﴾ [اونهٔ دا د چاکاهن کلام دې] لکه چه څنو کفارو به دوی ﷺ ته ونیلو ﴿قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ﴾ مکر [تاسو ډیر کم پوهیږئ] دلته هم دقلت نه مراد عدم دې غرض دانهٔ شعردې نهٔ کهانت دې بلکهٔ ﴿تَنْزِيلٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [درب العلمین دطرف نه لیږلې شوې] کلام [دې او] وراندې ددې دحقانیت یو عقلی دلیل ارشاددې چه ﴿وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ﴾ [که دې] پیغمبر [زمونږ په ذمه څهٔ] دروغ [خبرې لګولې] یعنی کوم کلام چه زمانهٔ وې او دهٔ ورته زما کلام ونیلې او د دروغو دعوی یې دنبوت کولې ﴿لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِينِ﴾ [نو مونږ به ددهٔ ښې لاس نیولې وې ﴿ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ﴾ بیا به مونږ ددهٔ دزړهٔ رګ کټ کړې وو ﴿فَمَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ﴾ بیا به څوك په تاسوکښې دهٔ لره دسزا نه بچ کوونکې نه وو] دزړهٔ درګ په کټ کیدو سره سړې مری مراد ددې نه قتل دې ﴿وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ لِلْمُتَّقِينَ﴾ [اوبیشکه داقرآن دمتقیانو دپاره نصیحت دې] یعنی فی نفسه حق والې ددې صفت کمالی ذاتی دې او موجب دنصیحت کیدل ددې صفت کمالی اضافیه دې [او] وراندې دمکذبین وعیددې چه ﴿وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنْكُمْ مُكَذِّبِينَ﴾ [مونږ ته معلومه ده چه په تاسوکښې څنې تکذیب کوونکې هم دی] پس مونږ به دوی ته سزا ورکړو [او] په دې اعتبارسره ﴿وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ [داقرآن د کافرانو په حق کښې موجب دحسرت دې] ځکه چه ددوی دپاره په وجه دتکذیب سبب دعذاب شو ﴿وَإِنَّهُ لَحَقُّ الْيَقِينِ﴾ [اوداقرآن تحقیقی یقینی خبره ده پس] دچاچه داکلام دې ﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ [دخپل] دې [عظیم الشانه پروردګاردنوم پاکی] اوثنا [بیانوئ]

## معارف او مسائل

دې سورت کښې د قیامت د هیبتناکو واقعاتو او بیا هلته دکافرانو فاجرانو دسزا او د مؤمنانو متقیانو د جزاء بیان دې. د قیامت نومونه په قرآن پاک کښې ډیر راغلی دی، دې سورت کښې قیامت په دریو نومونو سره یاد شوې دې، ① حاقه، ② قارعه، ③ واقعه.

د حاقه لفظی معنی حق اوثابت هم ده او چې نورو څیزونو لره په حقه ثابتوی هغه څیز ته هم حاقه ونیلې شی. قیامت باندې دا لفظ د دواړو معنوپه اعتبار سره صادقیږی، ولې چې قیامت پخپله هم حق دې او دهغې واقع کیدل ثابت او یقینی دی او قیامت د مؤمنانو دپاره جنت او کافرانو دپاره جهنم ثابتوونکې او مقرر کوونکې هم دې. دلته ئې قیامت په دې نوم سره دوه ځل یاد کړوچې دا اشاره شی چې قیامت د قیاس نه پورته حیراونکې هیبتناک دې.

د قارعه لفظی معنی ګرزیدونکې څیز ده. قیامت دپاره دا لفظ ځکه اوونیلې شو چې دا ټولو خلقو لره پریشانه کوونکې او بې آرامه کوونکې او دغسې ټولو آسمانونو اوزمکې جسمونو

لره خورونكې اوتس نس كوؤنكې دې.

طاغيه د طغيان نه مشتق دې چې معنى ئې د حد نه وتل دى. مراد داسې سخت آواز دې چې د ټولې دنيا د آوازونو دحدنه بهراوزيات دې كوم لره چې دانسان زړه اودماغ نشي برداشت كولې.

دقوم ثمود نافرمانى چې دحدنه زياته شوه نو په هغوئ باندې د الله ﷻ عذاب ددې سخت آواز په صورت كښې راغلې وو چې په كښې د ټولې د نيا د بريښنا ګرزار او د ټولې دنيا د سختو آوازونو مجموعه وه چې ورسره د هغوئ زړونه اوچاؤدل.

[بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ] داسې سختې هواته وئيلې شى چې د حد نه زياته يخه هم وى.

[سَبْعَ لَيَالٍ وَثَمَانِيَةَ أَيَّامٍ] ځينو روايتونو كښې دى چې دچارشنبې د صبا نه دا طوفانى هوا شروع شوه او د بلې چارشنبې تر مابنامه پورې وه، په دې شان ورځې اته شوې او شپې اوۀ راغلې.

[حُسُومًا] د حاسم جمع ده چې معنى ئې پريكوؤنكې او د بيخه ختموؤنكې ده.

د [وَالْمُؤْتَفِكَاتُ] معنى يو بل سره ګډ شوې او يو ځائې شوې ده، د لوط ﷺ آباديانو ته مؤتفكات يا خو په دې وجه وئيلې شى چې هغه ټولې په خپل مينځ كښې پيوست شوې آباديانې وې، يا ځكه چې كله پرې عذاب راغلو او تخته ئې واؤړيده نو ټول خپل مينځ كښې سره ګډوله شو.

[فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ] د ترمذى شريف په روايت دعبدالله بن عمر ﷺ په مرفوع حديث كښې راغلى دى چې صور د ښكر پشان يو څيز دې چې د قيامت په ورځ به پوک وهلې شى[1].

د [نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ] نه مراد دادې چې يو ځل به ناګهانه دا دصور يعنى شپيلئ آواز وى او يو آواز به په مخه جارى وى تر هغې پورې چې دې آواز سره به ټول مړۀ شى. د قرآن پاک او سنت د نصونو نه په قيامت كښې دوه ځل پوک وهل ثابت دى، اول پوک وهلو ته نفخة صعق وئيلې شى چې د هغې باره كښې قران پاک داسې فرمائى چې:

[فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ] يعنى ددې پوک وهلو نه به د آسمان ټولې فرښتې او دزمكې مخلوق پيريان، بنيادم او ساوالا به بې هوشه شى. دويم ځل پوک وهلو ته نفخه بعث وئيلې شى، د بعث معنى پورته كيدل دى په دغې پوک وهلو سره به ټول مړى ژوندى شى او راپورته به شى لكه قرآن پاک كښې فرمائى چې:

[ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ] يعنى كله چې دويم ځلې پوک وهل اوكړې شى نو ورسره به ټول مړى راژوندى شوى راولاړ شى اوګورى به.

ځينو روايتونو كښې چې دَ دې دواړو پوک وهلونه مخكښې دَ يو دريمې نفخې ذكر دې چې نفخه فزع يعنى دويرې پوک وهل ورته وئيلې شى، په ټولو روايتونو كښې او نصونو كښې د غور كولونه معلوميږى چې دا هم رومبى پوک وهل دى هم هغې ته په اول كښې نخفة فزع وئيلې شوى دى او په آخر كښې به نفخة صعق شى. [مظهرى][2].

[وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَانِيَةٌ] يعنى د قيامت په ورځ به اتو فرشتو د رحمان عرش پورته كړې وى، دحديث پاک په ځينې روايتونو كښې راغلى دى چې د قيامت نه وراندې دا كار څلور فرښتو ته سپارلې شوې دې، په قيامت كښې به دې سره نورې څلور فرښتې شاملې كړې شى.

---

[1] جامع الترمذي، ابواب صفة القيامة باب شان الصور [ج:۲ ص:۶۹]

[2] تفسير المظهري [ج:۱۰ ص:۵۱]

د عرش رحمان شکل . شان ، وضع ، قطع او دې لره د فرښتو پورته کول داسې څيزونه دي چې د انسان په عقل کښې نشی راتلې خکه دې باره کښې د تپوس او غور وفکر کولو اجازت نشته ، د پخوانو بزرگانو صحابه کرامو ﷺ او د تابعينو مسلک ددغسې ټولو معاملو باره کښې دادې چې ايمان پرې راوړې شی او هم هغه مراد ئې حق اوګنړلې شی کوم ئې چې الله ﷻ اخلی ، او ددې شان او حقيقت هم بل چاته معلوم نه دی

[يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ لَا تَخْفَىٰ مِنكُمْ خَافِيَةٌ] يعنی په دغه ورځ به ټول دخپل رب په وړاندې پيش کيږی هيڅوک پټيدونکې به تری پټ پاتې نشی . د الله ﷻ د علم اوليدلو نه خونن هم څوک پټيدونکی نشی پاتې کيدې ، دلته د قيامت د ورځې خصوصيت شايد خکه وی چې د حشر په ميدان کښې به ټوله زمکه هواره شی ، غار ، غر ، غونډئی کوږوالی ، کنده . مکانونه او ونه وغيره به نه وی ، دنيا کښې به خلق ددې په پناه کښې پټيدې شو خو په قيامت کښې به د چا د پټيدو هيڅ شان پاتې نشی .

[هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ] [هَاؤُمُ] دخذوا واخلئ جمع معنی ورکوی . مطلب دادې چې چاته عملنامه په ښی لاس ورکړې شی هغوئ به د خوشحالئ نه دخواؤ شا خلقو ته وائی چې واخلئ دازماعملنامه اولولئ .

[هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيَهْ] د سلطان لفظی معنی غلبه او تسلط ده ، خکه حکومت ته سلطنت او حاکم ته سلطان وئيلې شی . مطلب ئې دادې چې په دنيا کښې زه چې په نورو خلقو باندې پورته او بروم نن مې هغه هيڅ پکار رانغله د سلطان بله معنی حجت اودليل هم راخی . په دې بنا به ئې معنی دا وی : چې افسوس نن زما په لاس کښې هيڅ حجت او دليل وغيره نشته چې ورسره خلاصې پيدا کيدې شی

[خُذُوهُ فَغُلُّوهُ] فرښتو ته به حکم ورکړې شی چې دغه مجرم اونيسئ او په غاړه کښې ورته ګړدنئ واچوئ . ليکن د آيت مبارک په الفاظو کښې دانشته چې څوک دې اونيسی او ورته دې غاړه کښې ګړدنئ واچوی ؟ په دې بنا په څينې روايتونو کښې راغلی دی چې کله دا حکم اوشی نو هر درو ديوال او هر څيز به تابعداری او نوکر جوړيدو سره دهغه د رانيولو دپاره رامنډه کړی .

[ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ] يعنی بيا ئې په يو زنځير کښې اوپيلئ چې اندازه ئې اويا ګزه ده په زنځير کښې د پيئلو مفهوم هم هغه مجازاً اخستلې کيدې شی کوم چې د تفسير په خلاصه کښې بيان کړې شوې دې خو حقيقی معنی ئې داده چې په زنځير کښې ئې اوپيئلئ څنګه چې د تسبيح وغيره دانې په تار کښې پيئللې شی او پورې راپورې تری زنځير ايستلې شی . دحديث پاک د څينې روايتونو نه ددې حقيقی معنی تائيد کيږی [ مظهری نه ] [1]

[فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ] حميم مخلص او ژور دوست ته وئيلې شی او غسلين هغه اوبه دی چې په کښې دجهنميانو د زخمونو وينې ، زوې وغيره به وينځلې شی ، د آيتونو مطلب دادې چې ددۀ هيڅ دوست او عزيز به ددۀ مرسته نه شی کولې او د عذاب نه به ئې نشی خلاصولې او خوراک دپاره به ددغه کرکجنو او سخا بدبوداره اوبو نه به ورته بل هيڅ

---

[1]) تفسير المظهري[ج:١٠ص ٥٥]

نشی ورکولې . مطلب دا چې د خوښې خوراک به نشی ورکولې ځنګه چې په خلاصې د تفسیر کښې خودلې شوی دی بلکه د غسلین پشان کرکجن او بد خونده سخا څیزونه به خوراک د پاره ورکولې شی ، په دې بنا جهنمیانو ته زقوم خوراک د پاه ورکول دې سره بې سمونه نه دی

[فَلَآ أُقۡسِمُ بِمَا تُبۡصِرُونَ ۝ وَمَا لَا تُبۡصِرُونَ ۝] یعنی قسم دې د ټولو هغه څیزونو چې تاسو ئې وینئ یا لیدې شئ یا ئې تاسو نه وینئ او لیدې نشئ په دې کښې ټول مخلوقات راغلل ، ځینې حضراتو اوفرمائیل چې د نا لیدونکو څیزونو نه مراد د الله ﷻ ذات او صفات مبارک دی ځینې فرمائی چې د لیدونکو څیزونه نه مراد د دنیا څیزونه دی او د نالیدونکی نه مراد د آخرت څیزونه دی [مظهری][1] والله اعلم

[وَلَوۡ تَقَوَّلَ عَلَيۡنَا بَعۡضَ ٱلۡأَقَاوِيلِ ۝] د تَقَوّل معنی خبره د خانه جوړول دی . او وتین د زړه نه راوتونکې هغه رګ دې په کوم سره چې انسانی روح د هغه په جسم کښې خوریږی د دې په پریکولو سره سمدستی مرګ راځی

په تیروشوؤ آیتونو کښې دمکې د کافرانو د دغې بې هوده خیال رد کړې شوې وو ، چا به نبی کریم ﷺ ته شاعر وئیلو او چا به د نبی کریم ﷺ کلام ته شعر وئیلو چا به ورته کاهن او کلام ته به ئې کهانت وئیلو . کاهن هغه چاته وئیلې شی چې څۀ د شیطانانو خبرونه پیدا کړی او څه د ستورو د حالاتو نه معلوم کړی . او د راتلونکو واقعاتو په باره کښې اټکلی خبرې کوی نبی کریم ﷺ ته د شاعر یا کاهن وئیلو حاصل دا وو چې د نبی کریم ﷺ کلام معاذ الله د الله ﷻ د طرفه نه دی بلکه نبی کریم ﷺ پخپله د خپلو خیالاتو نه یا د کاهنانو پشان د شیطانانو نه څه کلمات جمع کړی دی چې الله ﷻ ته ئې نسبت کوی ، پدغې آیتونو کښې د دوئی یعنی کافرانو د دغې باطل خیالاتو په یو بل صورت سره په ډیر سختئ د اشان رد کړې دې چې لیونو که دې رسول ﷺ معاذ الله مونږ ته دروغ خبرې منسوب کړې او په مونږ ئې دروغ پورې کړی وی نو آیا مونږ به ورته هم داسې کتل او ډیل به مو ورکولو چې د الله ﷻ مخلوق دې ګمراه کوی . دې خبره باندې څوک د عقل خاوند باور نشی کولې ځکه دې آیت مبارک کښې د فرض محال په ډول اشاره فرمائی . که دا رسول ﷺ څه خبره هم د ځانه جوړه کړې مونږ ته ئې منسوب کړی وی نو مونږ به د ښی لاس نه نیولې د نبی کریم ﷺ د ساه رګ پریکړې وې او بیا به زمونږ د سزا نه نبی کریم ﷺ لره چا نه وې خلاص کړې دلته دا د سختئ الفاظ دغې جاهلانو ته د آورولو په غرض د فرض محال په ډول استعمال شو ، د ښی لاس د نیولو تخصیص غالبا ځکه دې چې کله یوم مجرم وژلې شی نو وژونکې ورته مخامخ ولاړ د هغه ښې لاس په خپل ګس لاس باندې نیسی او په خپل ښی لاس باندې پرې حمله کوی

**تنبیه:** دې آیت مبارک کښې د یوې خاص واقعې باره کښې دا فرمائی چې الله ﷻ مه کړه معاذ الله که نبی کریم ﷺ د خپله ځانه څه خبره جوړه کړی او الله ﷻ ته ئې منسوب کړې وی نو ورسره به دا معامله کولې شوه په دې کښې څه عامه ضابطه نه ده بیان کړې شوې چې څوک هم د پیغمبرئی په دروغه دعوی کوی هغه به همیشه هلاکولې شی ، هم دغه وجه ده چې په دنیا کښې ډیرو خلقو د پیغمبرئی دعوی په دروغه اوکړه خو داسې څه عذاب پرې رانغلو

[1] تفسیر المظهری[ج:۱۰ص:۵۶ و ۵۷]

[فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ] ددې نه وړاندې آيتونو کښې داخودلې شوي وو چې نبي کريم ﷺ دخپل طرفنه هيڅ نه فرمائي بلکه داټول دالله ﷻ کلام دې چې دتقوی اختيارونکو دپاره ياد ګيرنه او نصيحت دې ، خو مونږ په دې هم پوهيږو چې دديې يقيني ځيزونو پيژندلو باوجود به تاسو ډير خلق دې لره په دروغه بولئ چې نتيجه به ئې په آخرت کښې افسوس نااميدي اوهميشه عذاب وي او په آخر کښې فرمائي چې : [فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ] ، دې کښې اشاره ده چې تاسو د دې ضديانو کافرانو خبروپسې مخه مه اوړئ او په دې باندې مه غمژن کيږئ بلکه د خپل عظيم رب تسبيح اوتقديس خپل شغل جوړ کړئ چې هم دا ددې ټولو غمونو نه دخلاصي ذريعه ده او دا داسې ده لکه بل ځائې په قرآن پاک کښې فرمائي چې : [وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ ۝ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِنَ السَّاجِدِينَ] يعني مونږ پوهيږو چې تاسو دکافرانو د بې هوده خبرو اترو نه زړه تنګي کيږئ ، ددې علاج دادې چې تاسو ﷺ دخپل رب په ثناء کښې مشغول اوسئ او سجده کوؤنکي پاتې کيږئ دهغوئ خبرو پسې مخه مه اوړئ .

په ابي داؤد کښې د عقبه ابن عامر جهني روايت دې چې کله داآيت : [فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ] نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې دا په خپله رکوع کښې وايئ . او کله چې دا آيت [سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى] [1] نازل شو نوونئ فرمائيل چې دا په خپله سجده کښې وايئ [2] ځکه په اجماع د امت سرپه رکوع اوسجده کښې دا دواړه تسبيحات وئيلې شي. دجهمورو په نزد ددې لوستل او درې ځل ئې مکرر کول سنت دی ځينې حضراتو ورته واجب هم وئيلی دی .

تمت سورة الحاقة بحمدالله تعالى

---

[1] ) سنن ابوداود، کتاب الصلوة، باب ما يقول الرجل في رکوعه وسجوده، رقم الحديث:[۷۳۶] [ج:۱ص:۱۲۶ ]

[2] ) ترجمه:- د خپل پروردګار عاليشان تسبيح وايه.

| اياتونه | سورة المعارج مكية وهي اربع واربعون اية وركوعان | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۴۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دې | ۲ |

سَاَلَ سَآئِلٌ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ ﴿۱﴾ لِّلْكٰفِرِيْنَ لَيْسَ لَهٗ

اوغوښتو | يو غوښتونكي | هغه عذاب | چې واقع كيدونكي دې | اديارهٔ دكافرانو دې | نشته هغې لره

يوسوال كونكي دهغه عذاب د راتلو په باره كښې تپوس اوكړو | چې په كافرانو به واقع كيږي | اودهغې

دَافِعٌ ﴿۲﴾ مِّنَ اللّٰهِ ذِي الْمَعَارِجِ ﴿۳﴾ تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ

دفع كونكې | دطرفه دالله نه دې اچې مالك داندريايو دې | خيژي | فرښتې | او روح [جبريل عليه السلام]

څوك دفع كونكې نشته | دالله تعالى دطرفنه به وي اچې داوچتو درجو مالك دې | فرښتې اوروح به ورته په

اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ﴿۴﴾ فَاصْبِرْ

هغه ته | په داسې ورځ كښې | چې دې مقدار دهغې | پنځوس زره كاله | پس صبر كوه

داسې ورځ كښې ورخيژي | چې دهغې اندازه به پنځوس زره كاله وي | نو ته صبر كوه

صَبْرًا جَمِيْلًا ﴿۵﴾ اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا ﴿۶﴾ وَّنَرٰىهُ قَرِيْبًا ﴿۷﴾

صبر ښائيسته | بيشكه دوئ |ويني هغه عذاب | لرې | او مونږه وينو هغه | نژدې |

اوبې فرياده صبر كوه | دوئ ته [د] دغه ورځې [راتلل] لرې ښكاري |..........اومونږ ته نژدې ښكاري

يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ ﴿۸﴾ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ

دغه عذاب به په هغه ورځ وي اچې شي به آسمان اپشان دويلې كړې شوې تانبې | او شي به | غرونه

په دغه ورځ به آسمان دويلې شوې تانبې په شان وي |..........او غرونه به درنگينې

كَالْعِهْنِ ﴿۹﴾ وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيْمٌ حَمِيْمًا ﴿۱۰﴾ يُّبَصَّرُوْنَهُمْ

پشان دوهلې شوې وړئ | او تپوس به نه كوي | يو دوست | ادبل دوست نه | حالانكه يو بل به وينې هغوئ

وړئ په شان وي | اودوست به د دوست پوښتنه نه كوي | ددې باوجود چې مخامخ به ئې وينې

يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِيْ مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍۭ بِبَنِيْهِ ﴿۱۱﴾

غواړي به مجرم سړې | چې په فديه كښې وركړي | دعذابه ددغې ورځې نه | اولاد خپل

مجرم به په دغه ورځ ارزو كوي | چې ددغې ورځې د عذاب نه دبچ كيدو دپاره اپه بدله كښې | خپل ځامن

وَصَاحِبَتِهٖ وَاَخِيْهِ ﴿۱۲﴾ وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ تُـْٔوِيْهِ ﴿۱۳﴾ وَمَنْ

او ښځه خپله | او رور خپل | اوخاوندان دقبيلې خپل | هغه | چې پناه ئې وركوله دۀ ته | او هغه څوك

اوخپله ښځه | اوخپل رونړه | اوخپل هغه خاندان تول وركړي | په كوم كښې چې به دې اوسيدو

فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ثُمَّ يُنْجِيْهِ ﴿۱۴﴾ كَلَّا اِنَّهَا لَظٰى ﴿۱۵﴾

چې په زمكه كښې دي | ټول | بيا | نجات وركړي دۀ ته | هرگز نۀ | بيشكه هغه وورلمبې وهونكې دې

اود ټولې زمكې استوگن خلق | او د دې په بدله كښې خپل ځان بچ كړي | خو هيڅكله نه هغه داسې شغله ده

نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰى ﴿١٦﴾ تَدْعُوْا مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى ﴿١٧﴾

ایستونکې دې اغوښې پوستکي لره | رابلې به | هغه څوك | چې شاتې کړه | او مخ ئې واړوو دحق نه

چې ازوغه| څرمن غورزوي | اوهغه کس به خانته راغواړي چې شاکړې به ئې وه | اومخ به ئې اړولو

وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ﴿١٨﴾ اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ﴿١٩﴾

او جمع ئې کړو مال | پس سنبال ئې کړو | بیشکه انسان | پیدا کړې شوې دې | بې صبره

اومال ئې جمع کړلو |اوهغه ئې سنبالولو| .. يقينا انسان بې صبره پيدا شوې دې

اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا ﴿٢٠﴾ وَّاِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ

کله چې اورسیږی هغه ته | مصیبت | نو یریدونکې وی | او کله چې اورسیږی هغه ته | خیر

هرکله چې ورته تکلیف اورسیږي | نوفریادونه کوی |او چې دولت ورته ملاؤ شی | نو بخل کوی

مَنُوْعًا ﴿٢١﴾ اِلَّا الْمُصَلِّيْنَ ﴿٢٢﴾ الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ

نو منع کونکې وی | ماسوا دمونځ کونکو نه | هغه مونځ کونکی | چې هغوئ | په خپل مونځ باندې

...... | د هغه مونځ ګزارو نه سوا چې خپل مونځونه همیشه په پابندئ سره کوی

دَآئِمُوْنَ ﴿٢٣﴾ وَالَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ﴿٢٤﴾

همیشوالې کونکی وی | او هغه کسان | چې په مالونو دهغوئ کښې | حق وی | معلوم [مقرر]

او د کوم په مالونو کښې چې د سوال کونکو او محتاجو دپاره حق مقرر دې

لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ﴿٢٥﴾ وَالَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿٢٦﴾

دپاره دسوال کونکی | او دمحرومو خلقو |او هغه کسان |چې حقه منی | ورځ دجزا

او هغه خلق چې دبدلې په ورځ یقین ساتی

وَالَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿٢٧﴾ اِنَّ

او هغه کسان | چې هغوئ | دعذاب د رب خپل نه | یریدونکی وی | خکه چې بیشکه

اوهغه خلق چې د خپل رب دعذاب نه ویریږی | ... حقیقت دادې چې

عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ ﴿٢٨﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ

عذاب درب دهغوئ | داسې نه دې اچې څوك ترې په امن کړې شی | او هغه کسان | چې هغوئ

ددوئ د رب عذاب ډیر خطرناك دې | ...... اوڅوک چې دخپل

لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ﴿٢٩﴾ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا

شرم خایونو خپلو لره |حفاظت کونکی وی |بغیر | دښځو خپلو نه | یا دهغه وینځو نه

شرمګاه خیال ساتی | خوکه د ښځو او وینځو نه ئې حفاظت

مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ﴿٣٠﴾

چې مالکان شی دهغوئ ابنی لاسونه دهغوئ | پس بیشکه هغوئ | نه دی ملامته کړې شوی

نه کوی | ...نو دوی [په خپل دې تعلق ] ملامته نه دی

فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ

پس هغه چاچې طلب اوکړو | علاوه ددې نه دبل څه | پس هم دغه خلق | دحدنه اوړېدونکې دي

نو څوک چې ددې نه سوا خواهش اوکړي | نو هم دا سې خلق د حد نه تېرېدونکي دي

وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ وَالَّذِيْنَ

او هغه کسان | چې هغوئ | امانتونه خپلو لره | او وعده خپلو لره | ساتونکې وي | او هغه کسان |

او څوک چې د خپلو امانتونو او وعدو خيال ساتي | ........ او په خپلو ګواهيانو باندې

هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ

چې هغوئ | په ګواهيانو خپلو باندې | قائم اوسيدونکې وي | او هغه کسان چې هغوئ په مونځ باندې

ټينګ ولاړ وي | او هغه څوک چې دخپلو مونځونو

يُحَافِظُوْنَ اُولٰٓئِكَ فِيْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ

حفاظت کوي | دا کسان چې دي | په باغونو دجنت کښې به وي | عزتمند کړې شوي |

حفاظت کوي | هغوئ به جنتونو ته په عزت سره ورداخليږي |

فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ

پس څه شوي دي هغه کسانو لره | چې کفر ئې کړې دې | چې طرف ستا ته | منډې وهونکې دي |

په دې کافرانو څه چل شوې دې | چې ستا طرفته رامنډې وهي

عَنِ الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِيْنَ اَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ

دښي طرفنه | او دګس طرفنه | ډلې ډلې | آيا طمع لرې | هر سړې | ددوئ نه |

چې دښي طرف او دګس طرف غاړې نه ډلې جوړيږي | آيا په دوئ کښې هر کس

اَنْ يُّدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيْمٍ كَلَّا اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ

چې داخل به کړې شي | جنت دنعمتونو ته | هرګز نه | بيشکه مونږه پيدا کړي دي دوئ |

دا اميد لرې | چې دې به د نعمت په باغ کښې ورداخل شي | نه هېڅرې نه | مونږ دوئ دهغې څيزنه پيدا کړي دي

مِّمَّا يَعْلَمُوْنَ فَلَآ اُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشٰرِقِ وَالْمَغٰرِبِ

دهغې څيزنه | چې دوئ ئې پيژني | پس نه | زۀ قسم خورم | په رب دمشرقونو | او دمغربونو |

چې تول ترې نه واقف دي | ........ نوزما دې قسم وي دمشرقونو | او دمغربونو په رب | چې

اِنَّا لَقٰدِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْ نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَمَا نَحْنُ

چې بيشکه مونږه قادر يو | په دې باندې | چې بدل راولو | بهتره | ددوي نه | او نۀ يو مونږه |

مونږ په دې قادر يو | چې ددوئ په ځاې ددوئ نه ښه خلق راولو | اومونږ

بِمَسْبُوْقِيْنَ فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا وَيَلْعَبُوْا حَتّٰى

عاجزه کړې شوي | پس پرېږده دوئ | چې مشغوليږي | او لوبې کوي | تر دې پورې |

څه بې وسه خو نه يو | نو ته دوئ دغسې پرېږده | چې په خپلو کښې مشغول وي

يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِىْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۴۲﴾

چي ملاقات اوكړي [اوورسي] | ورځې خپلې ته | هغه ورځ | چي ددوئ سره ئې وعده كيږي |

تر دې چي هغه ورځ ورته راشي | ...دكومې چې ورسره وعده شوې ده

يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ سِرَاعًا كَاَنَّهُمْ

هغه ورځ | چي رااوځي به دوئ | دقبرونو نه | منډې وهونكي به وى | لكه چي دوئ |

په كومه ورځ چې به دقبرونو نه په منډه منډه راوځي | داسې لكه چې

اِلٰى نُصُبٍ يُّوْفِضُوْنَ ﴿۴۳﴾ خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ

درباړونو دبتانو ته | منډې وهي | ټيټې پريدونكې به وى | سترګې ددوئ | پټ كړى به وى دوئ لره

دوئ يو نښې طرفته منډې وهي | ........[په دغه ورځ به] ددوئ سترګې ټيټې وى

ذِلَّةٌ ذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِىْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿۴۴﴾

ذلت [خوارئ] | دغه ورځ ده هغه | چي دي دوئ | چي وعده ئې ورسره كيږي |

او ذلت به په دوئ راخور وى | هم دغه خوهغه ورځ ده چې دكومې به دوى سره وعده كولې شوه

## آسان ترجمه قرآن

يو غوختونكې هغه عذاب غوختلې دې، كوم چه په كافرانو باندې راتلونكې دې هيڅوك نشته، چه هغې لره منع كړى. هغه به د الله تعالىٰ د طرف نه راځي، چه د بره ختلو د ټولو لارو مالک دې فرشتې او روح القدس هغه طرف ته يو داسې ورځ كښې ورخيژي، چه دهغې مقدار پنځوس زره كاله دې لهٰذا صبر كوه صبر خائسته. دا خلق هغې لره لرې ګڼړى. او موږ هغې لره نزدې وينو (هغه عذاب به) په هغه ورځ وى چه كله آسمان د ويلې كړې شوې تانبې پشان شي، او غرونه پشان د رنګينې وړئ شي. او تپوس به نه شى كولې يو ګران دوست د بل ګران دوست نه. حالانكه هغوى به يو بل ته اوښودلې شي هم، مجرم به دا غواړى، چه د هغې ورځ د عذاب نه خلاصيدو دپاره خپل ځوى په فديه كښې وركړ او خپله ښځه او خپل ورور. او خپل هغه خاندان چه دا ته ئې پناه وركوله. او د زمكې ټول خلق، (هغې ټولو لره په فديه كښې وركړى) او خپل ځان بچ كړى. (ليكن) داسې چرې هم نه كيږى، هغه خو لمبو والا اور دې، چه څرمن به اوباسى. هر هغه سړې به رابلى، چه شا كړې ئې وى، اومخ ئې ګرځولې وى او (مال) ئې راجمع كړې وى، لوبيا لوبو كښې ئې ايخودلې وى حقيقت دادې، چه انسان ډير كم حوصله پيدا كړې شوې دې. چه كله دا ته څه مصيبت اورسى، نو ډير ويريږى او كله چه دا ته مالدارى راشي، نو ډير كنجوس جوړ شي. ليكن هغه مونځګزار داسې نه دى، چه دخپل مونځ هميشه پابندى كوى. او د كومو په مالونو كښې چه مقرر حق دې د سوالګر او دَ محروم او څوک چه ورځ د جزاء حقه منى. او څوک چه د خپل پروردګار د عذاب نه ويريږى. يقيناً د دوى د پروردګار عذاب داسې څيز نه دې، چه دهغې څوک بے ويرې شي. او څوک چه د خپلو شرمګاهونو (د ټولو خلقو) نه حفاظت كوى. سوا د خپلو بيبيانو نه او د هغې وينځو نه چه ددوى په ملكيت كښې راغلې وى، ځكه په داسې خلقو باندې هيڅ ملامتيانشته،

البته کوم خلق چه ددې نه سوا بله طريقه اختيار کړي، هغه د حق نه تيرېدونکي دي او څوک چه د خپلو امانتونو او لوظونو لحاظ ساتونکي دي. او څوک چه د خپلې ګواهۍ صحيح صحيح ورکونکي دي. او څوک چه د خپلو مونځونو پوره پوره حفاظت کونکي دي دا هغه خلق دي، چه په جنتونو کښې به عزت سره اوسيږي. نو (اے پيغمبره) څه وجه ده دغې کافرانو لره، چه دوی ستا طرف ته راز غلي. د ښي طرف نه هم، او د ګس طرف نه هم ډلې ډلې آيا په دوی کښې هر سړی ته دا لالچ دې، چه دې به د نعمتونو والا جنت کښې داخلولې شي؟ هيچرې داسې نه شي کيدې، مونږ دوی د داسې څيز نه پيدا کړي دي، چه دوی ئې خپله پيژنی اوس زه قسم خورم د هغې ټولو مقاماتو په مالک پالدې، د کوم ځائې نه چه ستوري راخيژي، او کوم ځائې کښې چه ډوبيږي، چه مونږ يقيناً په دې خبره پالدې قادر يُو. چه ددوی په ځائې ددوی نه بهتر خلق راولو او هيڅوک مونږ کمزوری کولې نشي لهٰذا ته پريږده دوی، چه په عبثو خبرو کښې مشغول دي او په لوبو ټوقو کښې اخته وي، تر دې پورې چه مخامخ به شي د هغې ورځې سره، د کومې چه دوی سره وعده کولې شي. په هغه ورځ چه دوی به راوځي د قبرونو نه په داسې تادئ سره ګويا که دوی خپلو بتانو ته منډې وهي، ددوی نظرونه به ښکته وي، ذلت به په دوی پالدې خور وي. دا به هغه ورځ وي، چه دوی سره ئې وعده کولې شي.

## خلاصه تفسير

[سَاَلَ سَآئِلٌۢ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ ۝ لِّلْكٰفِرِيْنَ] [يو غوښتونکې] په وجه دانکار [هغه عذاب غواړي کوم چه په کافرانو واقع کيدونکي دې] او [لَيْسَ لَهٗ دَافِعٌ ۝] [د کوم چه څوك دفع کونکې نشته] او [مِّنَ اللّٰهِ ذِي الْمَعَارِجِ ۝] [کوم چه د الله تعالى د طرف نه به واقع کيږي چه د پاوړو] يعنى اسمانونو [مالك دې] [تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ] په کومو پاوړو سره [چه فرښتې او] دا يماندارو [روحونه هغه ته خيژي خي] د هغه ته نه مراد دادې چه په عالم بالا کښې کومه موقع د ددوی د عروج منتهاچه مقررشوې ده هلته خي اوچونکه ددې عروج لاراسمان دې په دې وجه ئې ورته معارج يعنى پاوړۍ وفرمائيلو او دغه عذاب [په داسې ورځ کښې] به واقع [شى [كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ۝] د کومې مقدارچه] د دنياد [پنځوس زرو کالو] برابر [دې] مرادورځ دقيامت ده څه دحقيقى مقدارپه وجه اوڅه د دې دسختوالى په وجه کفاروته دومره اوږدوالې محسوسيږي او چونکه دکفراوسرکشئ دمرتبوپه اعتبارسره به ددې سختوالې او اوږدوالې مختلف وي دچا دپاره ډيرزيات دچادپاره څه کم په دې وجه په يوايت کښې كالف سنة(۱) راغلې دې اود کافرانوتخصيص ئې ځکه وکړو چه په حديث کښې دی چه مؤمن ته به دغه ورځ دومره سپکه معلوميږي لکه يوفرض د اداکولووخت لکه په درمنثور(۲) کښې داسې دی دابی سعيدنه مرفوعاپه روايت داحمداو بيهقى وغيره کښې [پس] هرکله چه دعذاب راتلل ثابت دی نو [فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيْلًا ۝] [تهٔ] ددوی په مخالفت [صبرکوه هم داسې چه دشکايت نوم په کښې نهٔ وي] يعنى ددوی دکفراو خلاف نه دومره مهٔ تنګيږه چه څه شکايت دې په ژبه باندې راشى بلکه

(۱) ترجمه:-د زرو کالو برابر ده.
(۲) الدرالمنثور [ج:۱۰ ص:٦٨٩] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۳۷۸] و مسند احمد ،مسند ابي سعيد رقم الحديث:[۱۱۷۳٥]

داسې ګنړه تحمل کوه چه دوی لره سزاور کیدونکې دهٔ اوددغې ورځې دسزا نه چه کوم دوی انکار کوی پس [اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا ۝] [داخلق دغې ورځې لره] په قيامت دايمان نهٔ كيدو په سبب ددې وقوع لره [بعيد وينی [وَنَرٰىهُ قَرِيْبًا ۝] اومونږ] ته ددغې وقوع يقينی معلوم دی په دې وجه [دې لره] په وقوع سره [قريب وينو] او دغه عذاب به په هغه ورځ واقع كيږی [يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ ۝]په كومه ورځ چه اسمان [په رنګ كښې] [دتيلو د خيری په شان شی] او په يوايت كښې كالدهان([1]) دې چه تفسيرئ په سرې څرمنې سره شوې دې نو جمع په دواړو كښې داده چه دزيات سوروالی په وجه دتور مشابه رنګ پيداكيږی پس سور او تور دواړه ونيل ورته صحيح دی يااول يورنګ وی بيابه بل بدل شی لكه چه نقل ئې كړې دې ابن كثيرپه سورۀ رحمان كښې دحسن نه چه رنګونه به بدلوی([2]) اوكهٔ ددې تفسيرهم په مثل دخنودزيتون دتيلو دخيری په شان وشی نو ددواړو مفهوم به يوشی غرض اسمان به تورشی اوخيرې به هم شی[وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ ۝] [اوغرونه به درنګدارې وړئ په شان شی] كومه چه وهلې شوې وی لكه داقول د الله تعالی دې [كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ ۝]([3]) [شی] يعنی الوتلی به ګرځی اودرنګينو سره ئې تشبيه څكه وركړه چه غرونه هم دمختلفو رنګونو وی لكه چه دا ذكردی په دې قول دالله تعالی كښې [وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيْضٌ وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ ۝]([4]) [او] په دغه ورځ [وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيْمٌ حَمِيْمًا ۝] [څوك دوست به دچادوست تپوس ونهٔ كړی] لكه داقول دالله تعالی لايتساءلون([5])[يُّبَصَّرُوْنَهُمْ ؕ] [سره ددې چه يوبل لره به وينی هم] يعنی يو بل به وينی مګر څوك به دچاهمدردی نهٔ كوی او په سوره صافات كښې چه كوم په خپل مينځ كښې دتپوس كولو ذكر دې هغه په طور داختلاف دې په طور دهمدردئ نه دې په دې وجه هغه ددې ايت منافی نهٔ دې په دغه ورځ به [يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِيْ مِنْ عَذَابِ يَوْمِىٕذٍۭ بِبَنِيْهِ ۝ وَصَاحِبَتِهٖ وَاَخِيْهِ ۝ وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ تُـْٔوِيْهِ ۝] [مجرمان] يعنی كافران [به ددې خبرې تمناكوی چه ددغې ورځې دعذاب نه دخلاصيدو دپاره خامنولره اوښځې لره او ورورلره اوكورنئ لره په كومه كښې چه دې وسيدو [وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ ثُمَّ يُنْجِيْهِ ۝]او دټولې زمكې خلقو لره په خپله فديه كښې وركړی بيا دا] په فديه كښې وركول [دهٔ لره] د عذاب نه [بچ كړی] يعنی په دغه ورځ به داسې نفسانفسی وی چه هرسړې به په خپل فكركښې پريوځی اوتر پرونه پورې چه ئې په چاخان قربانولونن به هغه لره دخپلې فاندې دپاره عذاب ته دسپار لو دپاره تيار كړی كهٔ ددهٔ دقابوخبره وی ليكن [كَلَّا ؕ اِنَّهَا لَظٰى ۝] [داسې به هرګزنهٔ شی كيدې] يعنی دعذاب نه به ئې نجات مطلقا نهٔ وی بلكه [نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰى ۝ۚ تَدْعُوْا مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى ۝] [هغه اور داسې شغلې كوونكې دې كوم چه به څرمنې لره اوباسی] او[دغه به هغه سړی لره] په خپله [رابلی كوم چه] په دنياكښې دحق نه [مخ اړولې وی او] داطاعت نه ئې بې مخی [كړی وی [وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ۝] او] دنوروحق وهی ياپه حرص سره ئې مال [جمع

[1]) ترجمه:- لكه سره څرمن.

[2]) تفسيرابن كثير تفسيرسورة الرحمن[ج ۷ ص:٤٩٨] وتفسير المظهري تفسير سورة الرحمن [ج:۹ص:۱۵۳]

[3]) ترجمه:-د وهلې شوې رنګينې وړئ په شان.

[4]) ترجمه:-اود غرونو مختلفې حصې دی ، سپين او سرهٔ او د هغې هم رنګونه مختلف دی او ډير تك تور دی.

[5]) ترجمه:- خپلو كښې يو بل نه تپوسونه هم نشی كولې.

کړې وی بیایْ هغه خزانه کړې وي] مطلب داچه حقوق الله اوحقوق العبادئ ضائع کړی وی یا اشاره ده فساددعقائدو او فساد د اخلاقو طرف ته او بلل په حقیقی معنی محمول کیدې شی لنډه داچه داسې صفتونه موجب دمستحق کیدو داور دی او په دې مجرم کښې داسې صفتونه موندې شی نو بیاد عذاب نه دنجات هډوتصور نۀ شی کیدې اوجمع فَاَوْعٰى سره ، دکفارو په فروعاتوسره مکلف کیدل نۀ لازمیږی ځکه چه ددې رذائلو په وجه کفاروته به اصل عذاب نه وی بلکه سخت عذاب به وی اونفس عذاب به په کفروی په خلاف دمؤمنانو ګناهګارونه چه دوی ته په ګناهو نو نفس عذاب هم کیدې شی والله اعلم

وړاندې دنورو رذائلو ذکردې کوم چه دعذاب سبب وی ددوی نه داهل ایمانو استثناء اوبیاد استثناء دنتیجې بیان دې یعنی [اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًاۙ] [انسان کم همته پیداشوی دې] مراد دانسان نه په استثناء کښې دشاملولونه پس انسان کافردې او دپیداکیدونه دامطلب نۀ دې چه د اول پیدائش دوخت نه هغه داسې دې بلکه مطلب دادې چه دده په جبلت کښې داسې ماده ایښودې شوې ده چه هغه خپل وخت ته ورسی یعنی دبلوغ نه پس ددې رذیلو صفتونو عادی شی پس دکم همتیٔ نه مراددطبعی کم همتی نۀ ده بلکه دکم همیتیٔ بدآثاراختیارول مراد دی کومولره چه وړاندې بیان فرمائی یعنی [اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًاۙ] [هرکله چه دهٔ ته تکلیف رسی نو] دحدجواز نه زیاتی [جزع شروع کړی [وَّاِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوْعًاۙ] اوکله چه دهٔ ته خوشحالی ورکړې شی نو] دضروری حقونونه [بخل شروع کړی] داتتمه شوه دموجباتو دعذاب کوم چه دمن ادبرنه شروع دی [اِلَّا الْمُصَلِّيْنَۙ] [مګرهغه مونځ کوونکي] یعنی مؤمن ددې موجباتو دعذاب نه مستثنی دي [الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ دَآئِمُوْنَۙ] [کوم چه په خپل مونځ باندې برابرتوجه ساتی] یعنی په مونځ کښې ظاهرا یا باطنابل طرف ته توجه نۀ کوی کوم چه یْ په [قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ] کښې په خاشعون سره تعبیرکړې دي لکه چه دارنګ نقل کړې دي ابن کثیردعقبه بن عامر نه بقوله الدائم الساکن(¹) وعنه فی الدر المنثور اذا صلوالم یلتفتوا عن یمین ولاشمال(²) [وَالَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌۙ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِۙ] [اودکومو په مالونوکښې چه دسوال کوونکي اونه سوال کوونکی ټولوحق دې] ددې په حقله مضمون په سورة ذاریات کښې تیرشوې دې [وَالَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِۙ وَالَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَۚ] [اوکوم چه دقیامت په ورځ عقیده لری اودخپل پروردګار دعذاب نه ویره کوی] او [اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ] [واقعی ددوی درب عذاب دبې ویرې کیدوشې نۀ دې] دادجملې معترضې په طور ده [وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَۙ] [اوکوم چه خپلو شرمګاهونو لره] دحرامونه [محفوظ ساتی [اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَۚ] لیکن دخپلوبیبیانونه اوخپل] شرعی [وینځونه] حفاظت نۀ کوی [ځکه چه په دوی] په دې کښې [څه الزام نشته [فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ] البته کوم چه ددې نه علاوه] بل ځایْ دشهوت پوره کولو [طلب ګاروی [فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَۚ] داسې خلق د] شرعی [حدنه وتونکی دی [وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَۙ] اوکوم چه دخپل] سپردګیٔ کښې اخستې شوی د [امانتونو اودخپل عهد خیال ساتونکی دی [وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَۙ] اوکوم چه خپلوګواهیانولره ټیک ټیک

---

¹) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص: ۲۲۶]
²) الدرالمنثور تحت هذه الآیة [ج: ۱۴ ص ۶۹۶.]

اداکوی] په دې کښې کمې زیاتې نۀ کوی[وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ] [اوکوم چه دخپلو فرضو [مونځونو پابندی کوی] پس [أُولَٰئِكَ فِي جَنَّاتٍ مُّكْرَمُونَ] [داسې خلق به په عزت سره په جنتونو کښې داخليږی] ددې ایتونو تفسیرپه سورة مؤمنون کتلې شی وړاندې دکفاروعجیبه حالات کیدل اودقیامت وقوع مستبعد نۀ کیدل بیان فرمائی یعنی موجب دسعادت او شفاعت خو پورته په واضحودلیلونو سره معلوم شول [نو] په دلیل سره دمعلومیدونه پس بیا [فَمَالِ الَّذِينَ كَفَرُوا قِبَلَكَ مُهْطِعِينَ ۝ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِينَ] [کافرانولره څه وشو چه] ددې مضامینو دتکذیب دپاره [ستاطرف ته دښی اوګس طرف نه ډلې ډلې رامنډې وهی] یعنی پکار ووچه ددې مضامینوتصدیق یې کړې وې لیکن داخلق ډلې ډلې کیږی تاته په دې غرض سره راځی عریو کفارو به دنبوت خبرونه اوریدل او په دې غرض سره به راتلل او اسلام لره دباطل ګڼړلوسره به یې خپل ځانونه په حق ګڼړل اوحق کیدو ثمره جنت ته تلل دی په دې بنابه هغوی خپل ځانونه دجنت مستحق هم ګڼړل لکه داقول دالله تعالى دی [وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِندَهُ لَلْحُسْنَىٰ] (۱) په دې وجه ددې په حقله په طوردانکارفرمائی چه [أَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٍ] [ایاپه دوی کښې هرسړی ددې هوس لری چه هغه به دارام په جنت کښې داخل کړې شی [كَلَّا] داسې به هرګزنۀ وی] ځکه چه سره دموجباتودجهنم نه به جنت ځنګه ملاوشی او داخلق ددې مضامینو په تکذیب کښې دنفس قیامت هم تکذیب کوی اودې لره به ئې محال ګڼړلو وړاندې ددې په حقله ارشاددې چه ددوی استبعاد محض بې وقوفی ده ځکه چه [إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّمَّا يَعْلَمُونَ] [مونږ دوی لره دداسې شی نه پیداکړی دی دکوم چه دوی ته هم خبردې] پس هرکله چه دوی ته معلومه ده چې دنطفې نه یې بنیادم جوړکړې دې او ظاهره ده چه دنطفې نه په کومه کښې چه چرته حیات نۀ دې راغلې دسړی جوړیدو پورې چه څومره بعددې دومره بعددمړی د اجزاء نه ددویم ځل سړی جوړیدو پورې نشته ځکه چه په دې اجزاؤ کښې یوځل ژوند دوړاندې نه راغلې دې لره محال ګڼړل ددوی بې وقوفی ده [بیا] په بل طورسره ددفع داستبعاددقیامت دوقوع دپاره [فَلَا أُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ إِنَّا لَقَادِرُونَ] [زۀ قسم خورم دمشرقونواومغریونو په مالك] ددې معنی دسورة صافات په شروع کښې تیره شوې ده وړاندې دقسم جواب دې [چه مونږ په دې قادریو چه] په دنیاکښې [عَلَىٰ أَن نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ] [ددوی په ځاې ددوی نه غوره خلق راولو] یعنی پیداکړو [وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ] [اومونږ] ددې نه [عاجزه نۀ یو] پس هرکله چه نوې مخلوق او هغه هم داسې په کوم کښې چه صفتونه دکمال زیات وی په کوموکښې چه زیات اشیاء پیداکول دی مونږ ته یې پیداکول اسان دی نوتاسولره پیداکول کوم ګران کار دی اولنې استدلال په خپله ددې منکرینو دحالت په اعتبارسره دې اودویم استدلال ددوی دامثالواو نظائرو دمخلوقیت دامکان په اعتبار سره اوهرکله چه سره ددې چه حق په دلیلونو سره واضح شو دخپل انکاراو عنادنه نۀ واپس کیږی [فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ] [نوتۀ دوی لره په دغه شغل اوتفریح کښې پریږده تردې چه دوی ته دخپلې دغې ورځې سره واسطه شی دکومې چه ددوی سره وعده کولې شی [يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ إِلَىٰ نُصُبٍ يُوفِضُونَ] په کومه ورځ چه دوی دقبرونو نه راوځی داسې منډې به وهی لکه

---

(۱) ترجمه:- اوکه زۀ خپل رب ته لاړم نو زما دپاره دا هم بهتر دی.

چه ديو عبادت ځاى ته منډې وهلې شي] او [خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ] [ددوى سترګې به دشرم د وجهې نه [ښکته شوې وى] او [ذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ] [په دوى ذلت خور شوې وى داده هغه ورځ ددوى دکومې چه ددوى سره وعده کولې شوه] کومه چه اوس واقع شوه

## معارف او مسائل

[سَأَلَ سَائِلٌ ] کله چې د يو څيز د تحقيق دپاره سوال کولې شي،هغې سره په عربى ژبه کښې د عن صله استعماليږى. اوکله سوال دَخواست په معنى وى چې يو څيز غوښتل ئې مطلب وى خکه چې دلته ئې ددې صله د عن په ځائې باء راغله ،د [بِعَذَابٍ] معنى داده چې يو غوښتونکى عذاب اوغوښتلو. نسائى کښې دابن عباس ﷺ نه روايت دې چې دا غوښتونکې نضر بن حارث وو[1] چې هغه دقرآن کريم او د نبى کريم ﷺ په دروغژن بللو کښې دداسې جرات نه کار واخستو چې وې وئيل چې: [اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ] يعنى ائې الله که د اقرآن پاک حق اوهم ستا دطرفنه وى نو په مونږ باندې د آسمان نه کانړى او ورو‌ې يا بل څه دردناک عذاب راباندې راولې. [ مظهرى][2].

الله ﷻ دبدر په غزا کښې د مسلمانانو دلاسه دۀ ته عذاب ورکړو [ مظهرى د ابن ابى حاتم نه روايت کړو][3]. دغې کس چې پخپله خله د الله ﷻ کوم عذاب چې غوښتې وو ، ورپسې ددې د حقيقت څه بيان دې چې دا عذاب به په کافرانو باندې ضرور واقع کيږى ، ددې عذاب په شا کول د چا په وس کښې نه دى. دا عذاب د الله ﷻ د طرفنه دې چې دلويو درجو خاوند دې. دا آخرى جمله د رومبنۍ جملې دليل هم دې چې کوم عذاب د الله ﷻ بالا او برتره دارخه وى دهغې تمبول او ايسارول د چا په وس کښې څنګه کيديشى ؟

[الْمَعَارِجِ] دمعرج جمع ده ، د عروج نه مشتق دې چې معنى ئې پورته ختل دى. او معرج او معراج هغې پاوړئى او اندرپائې ته وئيلې شى چې په کښې د لاندې نه پورته ختو دپاره ډيرې درجې وى ، دالله ﷻ صفت په دې آيت مبارک کښې [ذِي الْمَعَارِجِ] په دې معنى سره دې چې الله ﷻ د لويو درجو خاوند دې. [دا د سعيد بن جبير ﷺ قول دې][4]. اودا لوړې درجې ښکته پورته اوۀ آسمانونه دى. ابن مسعود ﷺ اوفرمائيل چې د [ذِي الْمَعَارِجِ] معنى ذى السماوات يعنى د آسمانونو خاوند ده.

[تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوحُ] يعنى پدې قط په قط ښکته پورته درجو کښې فرښتې او روح الامين يعنى جبريل ﷺ اګر چې جبريل ﷺ په فرښتو کښې داخل دې خو په خصوصيت سره دۀ بيانول ده ته زيات عزت ورکول دى.

[فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ]دا جمله يو فعل محذوف سره متعلق ده چې يقع دې ، مطلب ئې دادې چې دا عذاب به ضرور په داسې ورځ باندې واقع کيږى چې اندازه به ئې پنځوس زره

[1]) السنن الكبرى للنسائى ، رقم الحديث:[١١٥٥٦] و مسند البزار رقم الحديث:[٥٠٩٨]
[2]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٦٠]
[3]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٦٠]
[4]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٦٠]

کاله وی ، ابی سعید خدری ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ نه صحابه کرامو ﷺ ددغې ورځې باره کښې تپوس اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چې زما دې قسم په هغه ذات وی دچا په قبضه کښې چې زما ځان دې چې دا ورځ به یو مؤمن باندې دومره آسانه وی چې د یو فرض مونځ د ادا کولو نه به ئې هم کم وخت وی .

[ احمد ، ابن حبان او بيهقي په حسن سند سره روایت کړو ، مظهری ][1].

او د ابی هریره ﷺ نه داحدیث پاک روایت کړې شوې دې چې ::

[ يكون على المؤمنين كمقدار مابين الظهر والعصر [اخرجه الحاكم والبيهقي مرفوعاً موقوفاً مظهري ] ][2]

یعنی دا ورځ به مؤمنانو دپاره دومره وی لکه کوم وخت ماسپښین او مازیګر ترمینځه چې وی ، دا روایت د ابی هریره ﷺ نه مرفوعا هم منقول دې او موقوفا هم .

دحدیث پاک ددې روایتونو نه معلومیږی چې ددې ورځې دا اوږد والې د پنځوس زرو کالو وی.دا یوه اضافی خبره ده چې کافرانو دپاره به دومره اوږد او مؤمنانو دپاره به دومره لنډه وی

**ددې خبرې تحقیق چې د قیامت ورځ به یو زر کاله وی اوکه پنځوس زره کاله** :: الٓمٓ دې آیت مبارک کښې د قیامت د ورځې اندازه پنځوس زره کاله خودلې شوې ده اود سورة تنزیل ، السجده په آیت مبارک کښې یو زر کاله لکه فرمائی چې :[يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ] یعنی دالله ﷻ د کارونو انتظام کوی د آسمانو نه تر زمکې پورې بیا خیژی الله ﷻ ته په یو داسې ورځ کښې چې اندازه ئې یو زر کاله ده د عام شمیر په اعتبار سره ، په ظاهره ددې دواړو آیتونو په مضمون کښې بې سمونی او مقابله ده . چې جواب ئې دبیان شو احادیثو په روایتونو سره اوکړې شو چې اوږدوالې به ئې د مختلفو ډلو په اعتبار سره مختلف وی د ټولو کافرانو دپاره دپنځوسو زرو کالو په انداز سره او د مؤمنانو صالحانو دپاره به د یومونځ د وخت په اندازه وی، اود ددوی په مینځ کښې د کافرانو ډلې دی کیدیشی چې ځینې کافرانو دپاره به پنځوس زره کاله وی او ځینو دپاره به زر کاله وی. او د وخت اوږدوالې او لنډوالې دسختئ او بې آرامئ او آرام او مزو په اعتبار سره کیدل مشهور معلوم دی. لکه دتکلیف او مصیبت یوه ګړئی هم کله کله د یو انسان دپاره د هفتې لس ورځونه هم زیات ګنړلې شی او دآرام او عیش لوئې نه لوئې وخت هم لنډ معلومیږی.

او د تنزیل السجده په آیت مبارک کښې د ورځې مقدار زر کاله خودلې شوې ده

د هغه یوتوجیه په تفسیر مظهری کښې دابیان شوې دې چې دې آیت کښې د کومې ورځې چې ذکر دې هغه ددنیا یوه ورځ ده چې په کښې جبریل ﷺ او فرښتې آسمان نه راځی او بیا واپس آسمان ته ځی. که دا مزل انسان کول غوښتل نو زر کاله کښې به ئې کړې وی. ولې چې د صحیح احادیثو په جوړ د آسمان او زمکې ترمینځه پنځه سوه کاله مزل دې[3] چې تلو راتلو مزل ترې زرکاله جوړ یږی . خو په سورة معارج کښې د قیامت دورځې بیان دې چې ددنیا د

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۶۲] و مسند احمد ،مسند ابي سعيد الخدری ﷺ رقم الحديث:[۱۱۷۳۵]
[2] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۶۲] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۲۸۳](بألفاظ مختلفة)
[3] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۶۲]

ورځې نه به ډېره زياته لويه وی چې اوږدوالې او لنډوالې به ئې د مختلفو خلقو د حالت په اعتبار سره وی. والله اعلم.

[إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيدًا ۝ وَنَرَاهُ قَرِيبًا ۝] د لته دلرې والی او نزدې والی مطلب د مزل يا زمانې په اعتبار سره نه بلکه د امکان يا وقوع په اعتبار سره دې ، په دې بنا د آيت معنی به داشی چې داخلق خو د قيامت امکان او واقع کيدل هم لرې ګڼړی اومونږ وينو چې ددې واقع کيدل يقينی دی.

[وَلَا يَسْأَلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا ۝ يُبَصَّرُونَهُمْ] د حميم معنی زيات او مخلص دوست ده. د قيامت دسختوالی بيان دې چې په دغه ورځ به يو دوست دبل دوست تپوس نه کوی. مدد کول خو ئې پرېږده. وربسې ئې دا هم اوخودل چې تپوس نه کول په دې وجه نه دی چې هغه دوست به ئې مخې ته نه وی بلکه د الله ﷻ قدرت به دا ټول مخې ته راولی خو هر څوک به د نفسی ، نفسی په حالت کښې وی هيڅوک به د يو بل تکليف او آرام پسې مخ نه شی اوړې.

[كَلَّا ۖ إِنَّهَا لَظَىٰ ۝ نَزَّاعَةً لِّلشَّوَىٰ ۝] د [إِنَّهَا] ضمير نار يعنی اور ته راجع دې او د [لَظَىٰ] معنی خالص لمبه چې بل څه ګډون ورسره نه وی. او [شَوَىٰ] دشواة جمع ده چې معنی ئې د سر څرمن هم ده او د لاسونو او خپو څرمن هم ، مطلب دا چې د جهنم اور به لمبې وهی چې د سر او لاسونو پښو څرمن به ښکته کوی يعنی سوځوی به.

[تَدْعُو مَنْ أَدْبَرَ وَتَوَلَّىٰ ۝ وَجَمَعَ فَأَوْعَىٰ ۝] پخپله به رابلی دغه اور هغه بنده لره چې د حق نه ئې شا واړوله او مخ ئې ترې اوګرځولو او مال ئې جمع کړو بيا ئې ايسار کړو ، دلته د جمع کولو نه مراد دشريعت نه خلاف په ناجائزه طريقو سره جمع کول او ايسارول دی. په دې شان سره چې دغې مال باندې لازم فرض او واجبات نه ادا کوی. څنګه چې د صحيح احاديثو نه ثابت دی.

[إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا ۝] د [هَلُوعًا] لفظی معنی حرصناک ، بې صبره او کم همته بنده ده ، دابن عباس رضی الله عنه د فرمانيلو مطابق د هلوع نه مراد هغه بنده دې چې د حرام مال په حرص کښې اخته وی او سعيد بن جبير رضی الله عنه اوفرمائيل چې دې نه مراد بخيل بنده دې او مقاتل رحمه الله اوفرمائيل چې زړه تنګې اوبې صبره بنده ترې مراد دې[1]. اودا ټولې معنی سره نزدې دی. دهلوع په مفهوم کښې دا ټول داخل دی. دد ې هلوع تشريح پخپله قرآن کريم اوس دادې کوی.

دلته دا شبه نه دی کول پکار چې کله ئې انسان پيدا کړو پدغه حال باندې دې او دا عيب ئې په خمبير کښې اغه ږلې شوې دې. نو بيا دهغه څۀ قصور شو؟ مجرم ولې شو؟ ددې جواب دادې چې الله ﷻ د هر انسان په طبيعت کښې د خير او شر دواړو استعداد او صلاحيت ايخودې دې او بيائې ورته د خپلو کتابونو او رسولانو په ذريعه د هر کار انجام خودلې دې. نو ددې جزا او سزا د انسان په اختيار باندې بنا ده چې خپل اختيار او ارادې سره ئې کوم عمل چې اوکړو هغسې بدله ورکولې شی. څنګه چې قرآن پاک پخپله دهغې تشريح داسې فرمائی چې:

[إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوعًا ۝ وَإِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوعًا ۝] يعنی د انسان دکم همتۍ او بې صبرئی داحال دې چې کله ورته څه مصيبت اوتکليف اورسی نو صبر نه کار نه اخلی ، اوکله چې ورته راحت او آرام ،

[1]) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج: ۸ ص: ۲۲۳]

مال او دولت ملاويږي نو هغې كښې بخل كوي. دلته د بې صبرئي اوفرياد نه مراد هغه دي چې د شريعت دحدونو نه بهر وي. دغسې د بخل نه مراد د فرضو او واجبو په اداكولو كښې كوتاهي كول دي. وړپسې دعامو انسانانو ددې بيان شوي خصلت نه مؤمنان، صالحان مستثنى كړې شوي دي. او دهغوئ دعملونو او نيكو اخلاقو بيان كړې شوې دې چې د: [الَّا الْمُصَلِّيْنَ] نه شروع شوې دې او تر د: [عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ] پورې بيان شوېدې. دلته ذكر د [مُصَلِّيْنَ] دې او مراد ترې نه مؤمنان دي. دې كښې اشاره دې خبرې ته ده چې مونځ دمؤمن رومبې او د ټولو نه لويه نخښه ده. مطلب دا چې د مؤمن وئيلو هغه څوك حقدار كيديشي چې مونځګذار وي، وړپسې ددې مونځ ګذار دا صفت خودلې شوېدې چې: [الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ دَآئِمُوْنَ] يعنې چې دټول مونځ په دوران كښې ئې بل خواته مخه نه وي. اخوا ديخوا نه ګوري. امام بغوي [1] رحمه الله په خپل سند سره د ابى الخير نه روايت كړې دې چې مونږ د عقبه بن عامر رضي الله عنه نه د آيت: [عَلٰى صَلَاتِهِمْ دَآئِمُوْنَ] مطلب تپوس اوكړو چې آيا ددې نه هغه څوك مراد دي چې هميشه دپاره مونځونه كوي. هغوئ اوفرمائيل چې دغه مطلب ئې نه دې بلكه دا چې اول نه تر اخره پورې ئې هم خپل مونځ ته مخه وي. ښى او ګس طرفته، وړاندې روستومخ ته شاته دسترګو په ګوټونو كښې نه ګوري. ددې حاصل هم هغه شو چې كوم سورة المؤمنون كښې د: [الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ] دې يعنې په دې جمله كښې د مونځ د خشوع بيان اوشو. خو وړپسې جملې: [وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ] كښې د مونځ او د مونځ په آدابو باندې د هميشوالى بيان دې. څكه په مضمون كښې تكرار نه شو. وړپسې د مؤمنانو صالحانو چې كوم صفات بيان شوي دي دا ټول تقريبا هم هغه دي چې په سورة مومنون كښې بيان شوي دي. او هم پدغه سورت كښې ئې د معنو پوره مكمل تفسير ليكلې شوې دې، هلته ئې اوګورئې.

**د زكوة اندازې د الله ﷻ د طرفنه ټاكلې شوې دې هيڅوك په كښې كموالې او زياتوالئ نشي كولې:** [وَالَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ] دې آيت مبارك نه معلومه شوه چې د زكوة اندازې د الله ﷻ د طرفنه ټاكلې شوې او معلومې دي. څنګه چې ددې تفصيل د نبى كريم ﷺ دصحيح احاديثو مباركو نه منقول دي. څكه د زكوة اندازې چې د زكوة سره تعلق لري يا دهغې واجب اندازې سره دا دواړه د الله ﷻ د طرفنه ټاكلې شوې او فيصله كړې شوې دي چې د زمانې او حالاتو په بدليدو سره نشي بدليدې.

[فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ] دې نه وړاندې په تير شوي آيت مبارك كښې د نفساني خواهش اوشهوت پوره كولو جائز ځائې خپله نكاح كړې بى بى يا وينځه خودلې شوې ده. دې آيت مبارك كښې ددې دواړو صورتونو نه سوا د شهوت پوره كولو هر صورت منع اوناجائز ګرځولې شوې دې. په دې كښې دنكاح هغه صورتونه هم داخل دي چې په شريعت كښې حلال نه دي لكه هغه ښځوسره نكاح كول چې دشريعت تر مخه ورسره نكاح كول حرام دي، داسې متعه شوه چې دشريعت تر مخه نكاح نه ده.

[1] تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ۸ ص: ۲۳٤]

**پخپل لاس سره شهوت پوره کول حرام دی** :: اکثرو فقهاؤ کرامو په موټک وهلو سره شهوت پوره کولو ته حرام وئیلی دی. ابن جریج فرمائیلی دی چې ما د عطاء رحمه الله نه دې باره کښې تپوس اوکړو نو هغوئ رحمه الله اوفرمائیل چې دا مکروه دی او وې فرمائیل چې ما آوریدلی دی چې په محشر به کښې څه خلق داسې راځی چې لاسونه به ئې بلارب وی ، زما په خیال به دا موټک وهونکی خلق وی ، سعید بن جبیر رضي الله عنه اوفرمائیل چې الله ﷻ په داسې قوم باندې عذاب نازل کړو چا چې په خپلو لاسونو خپلو شرمګاهونو سره لوبې کولې ، یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې [ معلون من نکح یده ] چا چې خپل لاس سره نکاح اوکړه هغه ملعون دې. ددې سند ضعیف دې [ مظهری ] ([1]).

**د الله تعالی او د بندګانو حقوق په امانت کښې داخل دی** :: [وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ] دې ایت مبارک کښې امانات دجمع صیغه راوړې شوې ده لکه بل ځائې کښې چې هم قرآن پاک کښې فرمائی چې :

[اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰۤى اَهْلِهَا] ([2])دجمع د صیغې راوړلونه معلومیږی چې امانت یواځې هغه مال نه دې چې چا درسره محفوظ کړې وی بلکه دې نه مراد ټول هغه حقونه دی چې ادا کول ئې په ذمه فرض او واجب دی ، په هغې کښې کوتاهی کول خیانت دې. په دې کښې د الله ﷻ ټول حقونه مونځ ، روژه ، حج ، زکوة هم داخل دی. او د بندګانو هغه حقونه هم شامل دی چې دا الله ﷻ دطرفه په بنده واجب دی یا بنده پخپله د څه لوظ ، قول او معاملې تر مخه په خپلوځانونو لازم کړی دی هغه ټول د امانت په لړی کښې داخل دی. دهغې ادا کول فرض او په کښې کوتاهی کول خیانت دې. [ مظهری په لنډو] ([3]).

[وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ] دلته هم [شَهٰدٰتِ] دجمع په صیغې سره راوړلو کښې دې ته اشاره پیدا کیدې شی چې ډیر قسمونه دی چې دهر قسم قائم لرل واجب دی ، په دې کښې د ایمان شهادت توحید او درسالت شهادت هم داخل دی. د رمضان دمیاشتې اود شرعی حدونو ګواهی هم او دخلقو ترمینځه دمعاملو هم چې د چا په وړاندې شوی وی. ځکه چې ددې ټول او په کښې کمې زیاتې راوستل حرام دی. دهغې صحیح صحیح قائمول ددې آیت تر مخه فرض دی. [ مظهری ] ([4]) والله اعلم.

تمت بحمدالله یوم الثلثاء رجب ۱۳۹۱هجری

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۶۸] و الحبیر للحافظ العسقلانی رقم الحدیث:[۱۵٤۵]

[2]) ترجمه:- بیشکه الله تعالی تاته ددې خبرې حکم درکوی چې حق والو ته دهغوئ حقوق اورسوه.

[3]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۶۸]

[4]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۶۸ ، ۶۹]

| آیاتونه | «سورة النوح مكية وهي ثمان وعشرون اية وفيها ركوعان» | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | «بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ» | |
| ۲۸ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۲ |

إِنَّآ أَرۡسَلۡنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوۡمِهِۦٓ أَنۡ أَنذِرۡ قَوۡمَكَ مِن قَبۡلِ

بیشکه اولیږو مونږه | نوح علیه السلام | قوم دهغه ته | چې اویروه | قوم خپل | مخکښې ددې نه |

یقینًا مونږ حضرت نوح علیه السلام خپل قوم ته اولیږلو | چې ته خپل قوم ویروه | د دې نه وړاندې چې

أَن يَأۡتِيَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ۝١ قَالَ يَٰقَوۡمِ إِنِّي لَكُمۡ

چې راشي هغوئ ته | عذاب دردناك | اووئیل هغه | اے قومه زما | بیشکه زهٔ | ستاسو دپاره

دردناک عذاب پرې راشي |..........هغه ورته اووئیل | ائې زما قومه زه ستاسو دپاره ښکاره

نَذِيرٞ مُّبِينٌ ۝٢ أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱتَّقُوهُ وَأَطِيعُونِ ۝٣

ویرونکې ښکاره یم | چې عبادت اوکړئ دالله | اواویریږئ دهغه نه | اواومنئ خبره زما |

ویرونکې یم |...........چې د الله ﷻ عبادت کوئ | او د هغه نه ویریږئ | او زما تابعداري اوکړئ

يَغۡفِرۡ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمۡ وَيُؤَخِّرۡكُمۡ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمًّىۚ

معاف به کړئ تاسو ته | گناهونه ستاسو | اوروستو به کړی تاسو لره | دنیتې مقررې پورې |

هغه به ستاسو گناهونه معاف کړی | او تریو مقرر وخته پورې به مهلت درکړی

إِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ إِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُۚ لَوۡ كُنتُمۡ

بیشکه | نیتهٔ دالله | کله چې راشي | نو بیا نې څوك روستو کولې نهٔ شي | کاش چې تاسو |

یقینا دالله ﷻ مقرر وخت چې یوځل راشي |...............نو [په هیڅ] صورت نه روستو کیږی | کاش!

تَعۡلَمُونَ ۝٤ قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوۡتُ قَوۡمِي لَيۡلٗا وَنَهَارٗا ۝٥

پوهیدلې | اووئیل نوح | اے ربه زما | بیشکه رااوبلو ما | قوم زما | دشپې او دورځې |

چې تاسو پوهیدلې | [نوح علیه السلام] اووئیل ائې زما ربه اما خپل قوم شپه ورځ [ستا دین ته] رااوبللو

فَلَمۡ يَزِدۡهُمۡ دُعَآءِيٓ إِلَّا فِرَارٗا ۝٦ وَإِنِّي

پس زیات نهٔ کړو هغوئ لره | بلنې زما | مگر | تیښته [زمانه] | او بیشکه زهٔ چې یم |

خوزما بلنې [دین نه] د هغوئ تیښته نوره هم زیاته کړه |...............او ماچې کله هم دوی

كُلَّمَا دَعَوۡتُهُمۡ لِتَغۡفِرَ لَهُمۡ جَعَلُوٓاْ

هر کله چې ما رااوبلل هغوئ | دپاره ددې چې ته اوبخښې هغوئ لره | نو هغوئ به ننباسلې |

رابللی دی |............د دې دپاره چې ته ورته بخښنه اوکړې |..........نو هغوئ خپلې

أَصَابِعَهُمْ فِيٓ ءَاذَانِهِمْ وَٱسْتَغْشَوْا۟ ثِيَابَهُمْ

گوتې خپلې | په غوږونو خپلو کښې | او پټ به کړل هغوئ خانونه | په جامو خپلو کښې |

گوتې په غوږونو کښې ورکړې | او دخپلو خانونو او مخونونه جامې راتاؤ کړې |

وَأَصَرُّوا۟ وَٱسْتَكْبَرُوا۟ ٱسْتِكْبَارًا ۝ ثُمَّ إِنِّى دَعَوْتُهُمْ

او ټینګ به شو [په طریقه خپله] | اولوئي به ئې اوکړه | په لوئي سره | بیا ما رااوبلل هغوئ |

او [په خپله خبره] ټینګ ولاړ دی | او خان ئې ډیرغټ ګڼړاوګڼړل | ......... بیا ما هغوئ په اوچت آواز

جِهَارًا ۝ ثُمَّ إِنِّىٓ أَعْلَنتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ

په اوچت آواز سره | بیا | ما په ښکاره وینا اوکړه | هغوئ ته | او پټ پوهه کړل ما | هغوئ لره |

سره راوبلل | بیا مې په ښکاره هم پوهه کړل | او په پټه مې هم پوهه کړل

إِسْرَارًا ۝ فَقُلْتُ ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ إِنَّهُۥ كَانَ

په پټ پوهه کولو سره | پس ما اووئیل | معافي اوغواړئ | درب خپل نه | بیشکه هغه دی |

نو هغوی ته مې اووئیل | تاسو د الله ﷻ نه ښننه اوغواړئ | هغه ډیر

غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ ٱلسَّمَآءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ۝ وَيُمْدِدْكُم

ډیرمعاف کونکي | رااوبه وروی آسمان | په تاسو باندې | ډیر وریدونکي | اوامداد به اوکړی ستاسو

زیات ښښونکي دي | هغه به دربانديِ د آسمان نه زیات بارانونه اوروی | ................ اود

بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّـٰتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ

په مالونو سره | او په خامنو سره | او جوړ به کړی تاسو لره | باغونه | او جوړ به کړی تاسو لره

مالونو او خامنو په صورت کښې به ستاسو مدد اوکړی | او تاسو دپاره به باغونه رازرغون کړی | او

أَنْهَـٰرًا ۝ مَّا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا ۝

نهرونه | څه شوی دی تاسو لره | چې تاسو آرزو نه لری | دالله دپاره | دعزت |

ستاسو دپاره به نهرونه روان کړی | دا په تاسو څه شوی دی | چې د الله ﷻ په لوئي یقین نه ساتئ

وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ۝ أَلَمْ تَرَوْا۟ كَيْفَ

او حال دا چې هغه پیدا کړی یئ تاسو | په قسم قسم طریقو سره | ایا نه وینئ تاسو | چې څرنګې

او حال دا چې هغه تاسو په قسم قسم طریقو سره پیدا کړی یئ | ....... ایا تاسو نه ګورئ

خَلَقَ ٱللَّهُ سَبْعَ سَمَـٰوَٰتٍ طِبَاقًا ۝ وَجَعَلَ ٱلْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا

پیدا کړل الله | اوه آسمانونه | لاند باندې | او جوړه ئې کړه سپوږمئ | په هغې کښې | نور والا

چې الله ﷻ څنګه اوه آسمانونه لاندې باندې پیدا کړی دی | او سپوږمئ ئې په کښې روښانه

وَجَعَلَ ٱلشَّمْسَ سِرَاجًا ۝ وَٱللَّهُ أَنۢبَتَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ نَبَاتًا ۝

او جوړ ئې کړو نمر | چراغ | او الله | زرغون کړئ تاسو | دزمکې نه | په زرغونولو سره

او نمر ئې په کښې ډیوه ګرځولې ده | او الله ﷻ تاسو د زمکې نه په خاص طریقه را زرغون کړی [پیدا کړی] یئ

ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ۝١٨ وَاللَّهُ

بيا | به واپس ننباسي تاسو | په هغې كښې | او را اوبه باسي تاسو | په رايستلو سره | او الله

بيا به مو دې (زمكې) ته واپس ورولي |............او بيا به مو ددې (زمكې) نه بهر اوباسي | او الله ﷻ

جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا ۝١٩ لِّتَسْلُكُوا مِنْهَا

جوړه كړه | ستاسو دپاره | زمكه | فرش | دپاره ددې چې گرځئ تاسو | په دې كښې |

ستاسو دپاره زمكه فرش جوړه كړې ده | ..........چې تاسو دهغې په كولاؤ لارو

سُبُلًا فِجَاجًا ۝٢٠ قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا

په لارو فراخو باندې | او وئيل نوح عليه السلام | اے ربه زما | بيشكه دوئ | نافرماني اوكړه زما | او پيروي ئې اوكړه

كښې روان يئ | حضرت نوح عليه السلام او وئيل ائې زما ربه ! دوئ زما نافرماني اوكړه او دهغه چا

مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ۝٢١ وَمَكَرُوا

دهغه چا | چې زيات نه كړو هغه لره | مال دهغه | او اولاد دهغه | سوا دنقصان نه | او مكر او كړو هغوئ

په لاره روان شول | چې مال او اولاد ورته د تاوان نه سوا بل څه نه دي وركړي | او دوئ غټ غټ

مَكْرًا كُبَّارًا ۝٢٢ وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا

مكر لوئ | او اوئيل هغوئ | چې مه پريږدئ | معبودان خپل | او مه پريږدئ | ود |

سازشونه اوكړل او دوئ (يو بل ته) او وئيل اچې خپل معبودان بالكل مه پريږدئ او مه پريږدئ ود بت

وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ۝٢٣ وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا

او نه سواع بت او نه يغوث | او يعوق | او نسر | او گمراهه كړي دي دوئ | ډير خلق

او سواع بت او نه يغوث بت او يعوق بت او نه نسر بت | او دوئ [(خان سره)] ډير خلق گمراه كړل

وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا ۝٢٤ مِّمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا

او مه زياتوه ظالمانو لره | سوا دگمراهئ نه | په سبب دگناهونو دهغوئ | غرق كړې شو هغوئ

او ته ددې ظالمانو گمراهي نوره هم سوا كړه | نو دخپلو گناهونو په سبب هغوئ ډوب كړې شول

فَأُدْخِلُوا نَارًا فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ

| پس داخل كړې شو | وور ته | پس پيدا نه كړو هغوئ | دپاره دخان خپل | بې د الله نه

او اور ته اورسيدل | نو هغوی د الله ﷻ په مقابله كښې خان دپاره هيڅوك مددگار پيدا نكړو

أَنصَارًا ۝٢٥ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ

| مددگاران | او او وئيل نوح عليه السلام | اے ربه زما | مه پريږده | په زمكه باندې |

............. | او حضرت نوح عليه السلام داهم او وئيل چې ائې زما ربه ! | ته دزمكې په مخ

مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ۝٢٦ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ

دكافرانو نه | يو كور والا | بيشكه كه ته پريښودل دوئ | نو گمراهه كوي به دوئ | بندگان ستا

دكافرانو يو استوگن هم باقي پاتې نكړې | كه ته دوئ پريږدې | نو ستا بندگان به هم گمراه كړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا يَلِدُوْٓا | اِلَّا | فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿٢٧﴾ | رَبِّ اغْفِرْ لِيْ | وَلِوَالِدَيَّ |
| اونۀ به زیږوی دوئ \| مگر \| بدکاره ناشکره \| اے ربه زما معاف کړې مالره \| او مور اوپلار زما لره | | | | |
| اوچې کوم اولاد زیږوی\| هغه هم بدعمله کافر [اولاد] وی\|اني زما ربه ما اوبخښه اوزما پلار اومور اوبښه | | | | |
| وَلِمَنْ | دَخَلَ بَيْتِيَ | مُؤْمِنًا | وَّلِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ ؕ |
| او هغه چالره \| چی داخل شو کور زماته \| په حیثیت دمومن \| او مومنانوسړو لره \| او مومنانو ښځو لره | | | | |
| اوځوک چې زما کورته دمومن په حیثیت رانوتولو\| او ټول مومنان اوټولې مومنانې اوبښه | | | | |
| وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ | اِلَّا تَبَارًا ﴿٢٨﴾ | | | |
| او مۀ زیاتوه ظالمانو لره \| سوا دهلاکت نه \| | | | | |
| اودا ظالمان په تباهئ کښې نور هم زیات کړه\| | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

مونږ نوح علیه السلام د هغه قوم ته اولیږلو، چه خپل قوم خبردار کړه، مخکښې ددې نه چه په دوی باندې څه دردناک عذاب راشی (لو) هغه (خپل قوم ته) اوویل چه: اے زما قومه! زۀ ستاسو دپاره یو صفا صفا خبردارونکې یم. چه د الله تعالیٰ عبادت اوکړئ، او دهغه نه اویریږئ، او زما خبره اومنئ. الله تعالیٰ به ستاسو د گناهونو مغفرت اوکړی، او تاسو به یو وخت مقرر پورې باقی اوساتی بے شکه چه کله د الله تعالیٰ مقرر کړې شوې وخت راشی، نو بیا هغه روستو کیږی نه، کاش چه تاسو پوهیدلئ.(بیا) نوح علیه السلام (الله تعالیٰ ته) اوویل چه: اے زما پروردگاره! ما خپل قوم ته د شپې او د ورځې (د حق) دعوت ورکړو. لیکن زما د دعوت ددې نه سوا هیڅ نتیجه اونشوه، چه هغوی نور هم زیاته تیخته اوکړه. او ما چه کله هم دوی ته دعوت ورکړو، دې دپاره چه ته دوی ته مغفرت اوکړې، نو دوی خپلې گوتې په خپلو غوږونو کښې ورکړې.او خپلو جامو کښې ئې ځانونه پټ کړل او په خپلې خبرې باندې ټینګ شو.او لوئی ئې وکړه، ډیره لوئی. بیا ما دوی ته په زوره (په اوچت آواز) سره دعوت ورکړو بیا ما دوی ته ښکاره وینا اوکړه، او پټ پټ مې هم پوهه کړل. نو ما اوویل چه: د خپل پروردگار نه مغفرت اوغواړئ. یقین اوکړئ، هغه ډیر بخښونکې دې. هغه به په تاسو باندې د آسمان نه ډیر بارانونه راولیږی .او تاسو ته به په مال او اولاد کښې ترقی درکړی، او ستاسو دپاره به باغونه پیدا کړی.او تاسو ته به نهرونه تیار کړی. تاسو ته څه شوې دی، چه تاسو د الله تعالیٰ د لوئی نه بالکل نه ویریږئ حالانکه هغه تاسو د تخلیق په مختلفو مرحلو باندې تیریدو نه پس پیدا کړی یئ آیا تاسو نه گورئ، چه الله تعالیٰ څرنګه اووه آسمانونه لاندې باندې پیدا کړې دی؟ او پیدا کړې ئې دۀ په هغې کښې سپوږمئ نور. او پیدا کړې ئې دې لمر ډیوه بلیدونکې. او الله تعالیٰ تاسو د زمکې نه په بهترینه طریقې سره زرغون کړی یئ بیا به هغه تاسو واپس اولیږی په هغې کښې، (او د هلته نه به مو) واپس راوباسی. او الله تعالیٰ ستاسو دپاره زمکه یو فرش جوړ کړې دې. دې دپاره چه تاسو د هغې په ارتو لارو کښې اوگرځئ. نوح علیه السلام اوویل: اے زما پروردگاره! حقیقت دادې، چه دغې خلقو زما خبره اونه منله. او هغې (سردارانو) پسې روان شول، چه هغوی ته د هغوی مال او اولاد د نقصان نه سوا هیڅ ورنه کړل. او هغوی د ډیرې لوئې مکارئ

نه کار اخستلي دي او (خپلو سړو ته ئې) اووئیل چه: خپل معبودان چرې هم مه پرېږدئ. نه ود لره، او نهٔ سواع لره چرې هم مه پرېږدئ او نه یغوث، یعوق او نسر لره پرېږدئ دغه شان هغوی ډېرو خلقو لره بې لارې کړې دی. لهٰذا (اے ربه) ته هم دوی ته د ګمراهئ نه سوا په هیڅ څیز کښې ترقی مه ورکوه. او د دغې خلقو د ګناهونو په وجه دوی غرق کړې شو بیا اور ته داخل کړې شو، او دوی ته د الله تعالیٰ نه سوا هیڅوک حمایتی ملاؤ نه شو. او نوح علیه السلام دا هم اووئیل چه: اے زما پروردګاره! په دې کافرانو کښې یو اوسیدونکې هم په مخ د زمکې باندې مه پرېږده. که ته دوی پرېږدې نو دوی به ستا بندګان ګمراه کوی، او د دوی نه چه کوم اولاد پیدا کیږی، هغه به هم بدکار او پاخه کافران پیدا کیږی اے زما پروردګاره! ما ته هم بخښنه اوکړه، زما مور او پلار ته هم، او هر هغه سړی ته هم، چه زما کور ته د ایمان په حالت کښې داخل شوې دې، او ټولو مومنانو سړو او ښځو ته هم، او کوم خلق چه ظالمان دی، هغوی ته د تباهئ نه سوا بل هیڅ څیز مه ورکوئ.

## خلاصه تفسیر

[اِنَّآ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖٓ] [مونږ نوح] ﷺ [لره دهٔ قوم طرف ته] پیغمبر جوړ کړو [ولیږلو [اَنْ اَنْذِرْ قَوْمَكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ] چه ته خپل قوم لره] د کفر دوبال نه [وویره وړاندې دهغې نه چه په دوی دردناك عذاب راشی] یعنی دوی ته ووایه چه کهٔ ایمان مورانه وړونو په تاسو به دردناك عذاب راشی خواه دنیوی یعنی طوفان یا اخروی یعنی دوزخ غرض [قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ] [هغوی] خپل قوم ته ووئیل چه اے زما [قومه زهٔ ستاسو د پاره صفا صفا ویرونکې یم] او وایم [اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ وَاَطِيْعُوْنِ] [چه تاسو د الله تعالی عبادت] یعنی توحید اختیار [کوئ او دهغه نه ویره کوئ او زما خبره اومنئ [يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ] نو هغه به ستاسو ګناهونه معاف کړی] د ذُنُوْبِكُمْ تحقیق په سورة احقاف کښې نیرشوې دې [وَيُؤَخِّرْكُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى] [او تاسو ته به د مقرر وخت] یعنی د مرګ دوخت [پورې] بې د عذاب نه [مهلت درکړی] یعنی په ایمان نهٔ راوړو چه د مرګ نه وړاندې د کوم عذاب وعده کولې شی کهٔ ایمان راوړئ نو دغه عذاب به رانهٔ شی او باقی د مرګ د پاره چه کوم [اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ] [د الله تعالی مقرر کړې وخت دې] هغه [چه هر کله راشی نو واپس کیږی به نه] یعنی د مرګ راتلل خو په هر حال کښې ضروری دی په ایمان کښې هم او په کفر کښې هم لیکن په دواړو حالتونو کښې دومره فرق دې چه په یو حالت کښې به داخرت د عذاب نه علاوه په دنیا کښې هم عذاب وی او په یو حالت کښې به د دنیا او اخرت دواړو د عذابونو نه محفوظ وسیږئ [لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ] [څهٔ ښه به وه کهٔ تاسو] په دې خبرو [پوهیدئ] هر کله چه تراوږدې مودې پورې د دې نصیحتونو څهٔ اثر په قوم ونهٔ شونو [قَالَ رَبِّ اِنِّيْ دَعَوْتُ قَوْمِيْ لَيْلًا وَّنَهَارًا] [نوح] ﷺ الله تعالی ته [دعا] او التجا [وکړه چه اے زما پروردګاره ما خپل قوم لره د شپې هم او ورځې هم] حق دین طرف ته [راوبلل [فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَآءِيْٓ اِلَّا فِرَارًا] پس زما په بللو باند] د دین نه [نوره زیاته تیښته کوی او] دغه تښتیدل داسې شو چه [وَاِنِّيْ كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ] [ما هر کله چرې هم دوی لره] حق دین طرف ته [راوبلل چه] د دوی د ایمان په سبب [ته دوی لره وبخښې [جَعَلُوْٓا اَصَابِعَهُمْ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ] نو دغو خلقو خپلې ګوتې په غوږونو کښې ورکړې] چه حق خبره هډو وانهٔ وری او دا د نفرت انتها ده [وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ] [او]

دارنګ دانتهائی بغض نه دوی [خپلې کپړې] خان دپاره [راتولې کړې] چه حق خبره کوونکې هم ونه وینو اوویونکې دوی لره هم ونه وینی [وَأَصَرُّوا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا] [او] دوی په خپل کفراوانکارباندې [اصراروکړواو] زما داطاعت نه یې [حد درجه تکبروکړو] مګرسره ددې نفرت اوتکبرنه [بیا] هم مادوی ته په مختلفوطریقوسره نصیحت وکړو چنانچه [ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا] [مادوی لره] حق دین طرف ته [په اوچت اواز سره وبللل] مراد ددې نه خطاب اوعام وعظ دې په کوم کښې چه عادتا اواز اوچت وی [ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا] [بیامادوی لره] دخاص خطاب په طور [په ډاګه هم پوهه کړل اوددوی لره مې بالکل په پټه هم پوهه کړل] یعنی څومره طریقې چه دنفع کیدې شوې په ټولوباندې مې پوهه کړل غرض په اوقاتوکښې هم عموم وشو لکه چه فرمائی لیلاونهارا او په کیفیاتوکښې هم لکه چه فرمائی دعوتهم جهارا الخ [او] په دې پوهولوکښې [فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ] [ما] دوی ته دا[ووئیل چه دخپل پروردګارنه بخښنه وغواړئ] یعنی ایمان راوړئ چه ګناه مووبخښلې شی [إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا] [بیشکه هغه بخښنې والادې اوکه تاسوایمان راوړئ نوعلاوه د آخرت دنعمتونونه [چه] مغفرت دې دنیوی نعمتونه به هم تاسوته درکړی چنانچه [يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا] په کثرت سره به په تاسوباران راولیږی [وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا] اوستاسوپه مال اواولادکښې به تاسوته ترقی درکړی اوتاسو دپاره به باغونه ولګوی اوتاسودپاره به نهرونه جاری کړی] ددې نعمتونوپه ذکرسره به شایددا فائده وی چه په اکثروطبیعتونوکښې دنقداوزرحاصلیدونکوڅیزونوطلب زیات دې په درمنثورکښې دقتاده قول دې چه دغه خلق ددنیازیات حریصان وو په دې وجه یې دا اوفرمائیل او په دې داشبهه نه شی کیدې چه ډیرکرته دادنیوی کارونه په ایمان اواستغفارنه مرتب کیږی خبره داده چه یاخوداخاص وعده به ددغوخلقودپاره وی اوکه عامه وی نوقاعده ده چه دموعود نه افضل څه شې ملاویدل هم دوعدې پوره کول وی بلکه دوعدې نه زیات پس په کامل ایمان باندې روحانی خوشحالی اوقناعت اورضابالقضاضرور ورکیدې شی کومه چه ددې اشیاؤ نه هم افضله اواکمله ده بلکه دټولې دنیادمال اسباب اوټولو دې ذکرشوو څیزونو اصلی مقصدخوهم د زړه سکون اوارام دې وړاندې دحضرت نوح ﷺ دکلام تتمه ده یعنی مادوی ته داهم ووئیل چه [مَّا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا] [تاسولره څه وشوچه تاسودالله تعالی دعظمت معتقدنه یئ [وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا] حال دادې چه] مقتضیات داعتقاددعظمت موجرد دی چه [هغه تاسولره په قسم قسم سره جوړکړل] چه دعناصراربعؤ نه یې ستاسوغذا بیادغذانه نطفه دنطفې نه پس علقمه اومضغه وغیره دمختلفوصورتونو نه دتیریدونه پس یې درنه مکمل انسان جوړکړو دادلیل خویه خپله د انسان د ذات سره متعلق وو وړاندې افاقی دلیل فرمائی چه [أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا] [ایاتاسوته معلومه نه ده چه الله تعالی څه رنګې اووه اسمانونه لاند باندپیداکړل [وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا] اوپه دې کښې یې سپوږمئ] د[رڼا] شې [جوړکړو اونمرلره یې] په مثل د[چراغ] روښانه [جوړکړو] اوسپوږمئ اګرچه په ټولواسمانونو کښې نه ده مګر فِيهِنَّ یې په اعتباردمجموعې وفرمائیل او ددې په حقله څه بحث په سورة فرقان کښې تیرشوې دې [وَاللَّهُ أَنبَتَكُم مِّنَ الْأَرْضِ نَبَاتًا] [اوالله تعالی تاسولره دمزکې نه په یوخاص طورسره پیداکړل] یاخو په دې طورسره چه حضرت ادم ﷺ دخاورې نه جوړکړې شو اویاپه دې طور چه انسان دنطفې نه جوړشو اونطفه دغذانه غذادعناصرونه جوړه

شوه او عناصرو کښې غالب اجزاء دخاورې دی [ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ۝] [بيا به تاسو لره]
پس دمرګ نه [دغې مزکې ته بوځي او] په قيامت کښې به بيادې مزکې نه [تاسو لره
بهر راوباسي [وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا ۝] او الله تعالى تاسو دپاره مزکې لره] په مثل د [فرش
جوړه کړه [لِتَسْلُكُوا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا ۝] چه تاسو په دې کولاؤ لارو باندې ځئ داټول هغه کلام دې
دکوم حکايت چه حضرت نوح ﷺ الله تعالى ته په طوردفريادوکړو اوټول حکايت، ئې عرض
کړو [قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ۝] [نوح] ﷺ دا [ووئيل چه اے
زما پروردګاره دې خلقو زما داخبره ونه منله او دداسې خلقو پيروي ئې وکړه دکومو مال او اولاد
چه دوی ته زيات نقصان ورسولو] مراد ددغو خلقونه سرداران دی دکومو چه عوام اتباع کوی
اودمال او اولاد دې سردارانو ته نقصان رسول په دې معنی دی چه مال او اولادئ دسرکشئ
سبب جوړشو [او] هغوی چه د چااتباع کړې ده هغه داسې دی [وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا ۝] [کوموچه] دحق
په ختمولو کښې [لوئ لوئ تدبيرو نه وکړل [وَقَالُوا] اوکوموچه] خپلو تابعينو ته دا [ووئيل [لَا
تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ۝] چه تاسو خپل معبودان هرګزمه پريږدئ
اومه] په خاص طور سره [ودلره اوسواع لره اويغوث اويعوق اونسرلره پريږدئ] خصوصيت
ددوی دذکر خکه دې چه دابتان زيات مشهوررو [وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا ۝] [اودې] سردارانو
[خلقو ډيرولره] ولمسول [ګمراه] ئې [کړل] دغه لوئ مکر داګمراه کول دی [او] چونکه ماته
ستاپه ارشاد [لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ آمَنَ] نه معلومه شوه چه دوی اوس ايمان نه راوړي
په دې وجه داهم دعاکوم چه [وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا ۝] [ددې ظالمانو ګمراهي نوره زياته کړې] چه
داخلق مستحق دهلاکت شي ددې نه معلومه شوه چه مقصود ددعاکولوزيات ګمراه کيدل نه
دی بلکه مستحق کيدل دهلاکت دی اوتحقيق ددې دعاپه سورة يونس کښې دموسى ﷺ په
قصه کښې تير شوې دې غرض انجام دهغه کسانوداشوچه [مِمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا] [دخپلو دغو
ګناهونوپه سبب هغوی غرق شول [فَأُدْخِلُوا نَارًا] بيا] پس دغرقيدو نه په برزخي يا اخروی [دوزخ
کښې داخل کړې شول [فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ أَنصَارًا ۝] او دالله تعالى نه سوا ددوی هيڅوك
حمايتي ونه شو [وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ۝] اونوح] ﷺ داهم [ووئيل چه
اے زما پروردګاره د کافرانونه په زمکه باندې يو وسيدونکي هم مه پريږدې] بلکه ټول هلاك
کړې او دعموم هلاکت اوعموم بعثت بحث په سورة صافات کښې تيرشوې دې وړاند ددې
دعاعلت دې خکه چه [إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ] [که ته دوی لره په مخ دمزکې باندې پريږدې
نو] موافق د ارشادد [لَن يُؤْمِنَ] الخ [داخلق به ستابندګانو لره ګمراه کړی او] وړاندې هم [وَلَا
يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ۝] [ددوی به فاجران او کافران اولادپيداکيږي] اوکافرانوته د بددعاکولونه ئې د
مؤمنانو دپاره دعا وفرمائيله چه [رَّبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ
وَالْمُؤْمِنَاتِ] [اے زماربه مالره اوزما مور اوپلارلره اوکوم چه دمؤمن کيدو په حالت کښې زما
کورته داخل شي دوی لره] يعنی اهل وعيال په استثنا دبی بی اوکنعان [اوټول مسلمانانوسړو
او مسلمانانو ښځولره وبخښې او] چونکه مقصودپه مقام کښې خيرې دی دکافرانودپاره او
دمؤمنانودپاره دعامحض دمقابلې په مناسبت سره شوې وه په دې وجه بيامضمون دخيرو طرف
ته واپسی ده په کومه کښې چه د لاتزدالظلمين الاضللا دمقصود تفسيردې يعنی [وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا

تَبَارًاؕ] [ددې ظالمانو هلاکت نور زيات کړې] يعنې چه ددوی دنجات هيڅ صورت پاتې نۀ شی هلاک شي اوداقصود وو ددې دعانه چه ددوی گمراهی زياته شي او په ظاهره معلوميږي چه دنوح ﷺ والدين مؤمنان وو اوکۀ ددې خلاف ثابته شي نو دوالدينو نه به مرادلري مور او پلار وی اول ئې دعادځان دپاره وکړه بيا داصولو دپاره بيا داهل وعيال دپاره بيا دعاموتابعينو دپاره.

## معارف او مسائل

[يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ] د من حرف اکثر دې خودلو دپاره راوړې شي چې دې نه مراد څه حصه ده په دې بنا به ئې دلته مطلب داشي چې ستاسو په ايمان راوړو به هغه گناهونه معاف شي چې تعلق ئې د الله ﷻ دَ حقونو سره دې ځکه چې د بندگانو حقونه ، هله معاف کيديشي چې د ايمان د راوړو نه پس د ادا کولو قابل حقونه ورته ادا کړې شي. گنې بيا معافی ترې اوغوښتې شي لکه په زېه يا لاس وغيره سره ئې چاته ضرر رسولې وی.

حديث پاک کښې راغلی دی چې په ايمان راوړلو سره ټول کړې گناهونه معاف کولې شی[1] په هغې کښې هم د حقوق العباد اداکول يا معافئی شرط دې. البته څينې مفسرينو دلته د من حرف زياتی گرځولې دې ، مطلب ئې دا راخيژی چې په ايمان راوړلو سره به ورته ټول گناهونه اوبخښلې شی،خود نورونصونوپه بنابانډې دغه بيان شوې شرط په هر شان لگول ضروری دی.

[وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلٰى أَجَلٍ مُّسَمًّى] د اجل معنی موده او دمسمی معنی متعين کړې شوې ، مطلب دادې چې که تاسو ايمان راوړو نو الله ﷻ به تاسو ته تر هغې وخت پورې په دنيا کښې مهلت درکوی کوم وخت چې ستاسو دپاره متعين اومقرردې. يعنې د مقرر شوی عمر وراندې به تاسو په عذاب کښې نه راگيروی چې هلاک کړې شئ ، ددې حاصل دا شوچې که چرې ايمان موړانوړو نودا هم ممکن دی چې ددغې ميعادنه وراندې په تاسو په دنيا عذاب راولی اوهلاک موکړی. معلومه شوه چه د مقرر عمر په موده کښې بعض وخت څه شرط وی ، مثلاً که هغه فلانکې کار اوکړو نو د هغه عمر بۀ مثلاً اتيا کاله وی اوکه وئی نه کړو نو په شپيته کاله به ورته مرگ راځی. يا په منفی کارونو کښې دَ الله تعالی په ناشکرئی سره دعمرکميدل او په شکر کولوسره دعمر زياتيدل، دغه شان بعض اعمال مثلاً د مور پلار تابعدارئی خدمت سره په عمر کښې ترقی کيدل کوم چه دَ احاديث صحيحه نه ثابت دی ددې هم دغه مطلب دې.

**د انسان په عمر کښې دکمئ زياتئ بحث:** ددې تشريح تفسير مظهری کښې داده چې د تقدير او د الله ﷻ د حکم دوه قسمونه دی. ① يو مبرم ② اوبل معلق. دمبرم معنی داده چې په ټاکلی وخت بۀ خامخا مړ کيږی او هغسې به کيږی څنگه چې دۀ دپاره مقرر وی اود معلق معنی داده چې کيخودلې شوی شرط که موجود شو نو عمر به ئې اويا کاله وی گنی پنځوس کاله به وی ، دا ټول هر څۀ په لوح محفوظ کښې ليکلې شوی وی ، يعنی په اول قسم کښې په هيڅ شان بانډې بدلون نشی راتلې مگر په دويم قسم کښې د شرط په بنياد بدلون راتلې شی ، نو دا دواړه قسمه تقديرونه قرآن کريم داسې بيان کړی دی:

[يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ۖ وَعِنْدَهٗٓ أُمُّ الْكِتٰبِ] الله ﷻ په لوح محفوظ کښې محوواثبات يعنی ترميم او بدلون کوی او الله ﷻ سره دې اصل کتاب. د اصل کتاب نه مراد هغه کتاب دې چې په کښې

[1] صحيح مسلم کتاب الإيمان ، باب کون الإسلام يهدم ما قبله ...... إلخ [ج:۱ص:۷۶]

تقدیر مبرم لیکلې شوې وی ولې چې تقدیر معلق کښې الله ﷻ ته د رومبې نه دا علم وی چې دغه کس به دغه شرط پوره کوی او که نه. ځکه په تقدیر مبرم کښې قطعي فیصله لیکلې شی([1]).

د سلمان فارسی رضی الله عنه په حدیث پاک کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې: [لایرد القضاء الاالدعاء ولایزید فی العمر الاالبر ترمذی بحواله تفسیر مظهری]([2]) یعنی د الله ﷻ قضا لره هیڅ څیز بې ددعا نه نه شی ایسارولې او د چا په عمر کښې زیاتوالې سوا ددې نه نشی کیدې چې والدینو سره نیکی کوی، ددې حدیث مطلب دا راوځی چې په تقدیر معلق کښې بدلون راتلې شی.

خلاصه دا شوه چې په دې آیت مبارک کښې [اجل مسمی] پورې روستو کول په ایمان راوړو باندې معلق کړې شو نو داد تقدیر معلق بیان دې. چې الله ﷻ به د هغې علم نوح علیه السلام ته ورکړې وی. ځکه هغوئ علیه السلام خپل قوم ته اوفرمائیل چې که ایمان مو راوړو نو اصلي تاکلی عمر ته به مو الله ﷻ اورسوی. او په څه دنیوی عذاب به هلاک نکړې شی. او ستاسو د ایمان نه راوړو په صورت کښې به د اصلی عمر نه وړاندې د الله ﷻ عذاب تاسو لره هلاک کړی او د آخرت عذاب بهٔ په دغې صورت کښې هغې نه علاوه وی. وړیسې ئې دا هم اوخودل چې په ایمان راوړلو باندې هم همیشه دپاره د مرګ نه خلاصې نشی کیدې بلکه تقدیر مبرم کښې چې ستاسو عمر لیکلې شوې دې په هغې مرګ راتلل ضروری دی. ولې چې هیڅ څیز سوا د الله ﷻ نه دائمی نشی کیدې. هر څه به فنا کیږی په دې کښې ایمان اطاعت کفر او نافرمانئی سره څه فرق نه پریوځی چې په: [اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَآءَ لَا یُؤَخَّرُ] کښې ددې بیان دې. وړیسې دا بیان دې چې نوح علیه السلام د خپل قوم د اصلاح او ایمان دپاره په یو مخ کوشش کولو کښې اخته وو خو قوم ئې په مخه مخالفت کولو. ځکه ئې الله ﷻ نه ددوئ باره کښې خبرې اوکړې چې دغه ټول قوم دې د غرقیدو په عذاب کښې ګرفتارشی.

ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چې نوح علیه السلام ته د څلوېښتو کالو په عمر کښې پیغمبری ورکړې شوه. او د قرآنی تصریح په مطابق د هغوئ عمر پنځوس کم زر کاله وو. دې ټول عمر کښې هغوئ علیه السلام نه خپل دغه کوشش پریخودو او نه چرته ناامیده شو بلکه د قوم د طرفنه په ورکړو زیانونو ئې په مخه صبر کولو.

د ضحاک رحمه الله په روایت کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی چې خپل دغې قوم به هغوئ علیه السلام لره دومره اووهلو چې راؤبه غورځیدل نو په یو کمبل کښې به ئې اونغښتو او په دې خیال بهٔ ئې په مکان کښې ور واچولو چې ګنې وفات شو. چې په هوش کښې به راغلو نو بیا بهٔ هم خپل تبلیغ کښې اخته شو. محمد بن اسحاق رحمه الله، د عبید بن عمرو لیثی رحمه الله نه روایت کړې دې چې دوئ ته دا خبر رسیدلې دې چې قوم بهٔ ئې د نوح علیه السلام مرئی خفه کړه هغه به بې هوشه شو چې په هوش کښې بهٔ راغلو نو دا دعا به ئې کوله چې: [رب اغفر لقومی انهم لایعلمون] ائې زما ربه! زما قوم معاف کړې ځکه چې دوئ نه پوهیږی. هر کله چې د یو نسل د ایمان راوړلو نه ناامیده شو نو امید به ئې لرلو چې ددوئ اولاد کښې به څوک ایمان راوړی. دغسې به د دریم،

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۷۲]

[2]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۷۲] وجامع الترمذي، ابواب القدر، باب لا یرد القدر إلا الدعاء [ج:۲ ص:۳۵]

څلورم، نسل په طمع به ئې خپل تبليغ جاری لرلو. کله چې ډير دغسې نسلونه تير شو او ايمان ئې راؤنړو. تول شرارتيان ثابت شو نو نوح ﷺ د الله ﷻ په دربار کښې خپل شکايت داسې پيش کړو چې شپه ورځ خان له او په جمع په ښکاره او په پټه مې خپل قوم ته تبليغ اوکړو ، کله مې د الله ﷻ دعذاب نه ويرولو او کله مې د جنتيانو نعمتونه دشوق پيدا کولو دپاره وريادول او دامې هم ورته اووئيل چې د ايمان او نيک عمل په برکت به تاسو ته په دنيا کښې هم فراخي او خوشحالي نصيب شي ، کله مې ورته د الله ﷻ د کامل قدرت نښې نښانې رامخې ته کړې خو هغوئ يوه هم وانۀ ريده . بل اړخ ته الله ﷻ هغوئ ﷺ ته دا هم اوخودل چې ستاسو تول قوم کښې چې چا ايمان راوړلو هغه خو راوړلو. پاتې نورو کښې هيڅوک هم ايمان راؤړونکې نشته لکه فرمائي چې [أَنَّهُ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ آمَنَ] څکه نوح ﷺ خيرې اوکړې[1] ، نو د هغې په نتيجه کښې ئې پوره قوم غرق او هلاک شو ، سوا دمؤمنانو نه چې په يو کشتئ کښې سوارۀ کړې شو . نوح ﷺ د خپل قوم پوهولو دپاره دا بلنه ورکړه چې استغفار کوئی يعنی د ايمان راؤړلو نه پس دخپل کړو ګناهونو معافی د الله ﷻ نه غواړئی چې دنيوی دا نفع به ئې هم وی .

[يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ۝ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ] په دې بنا اکثرو عالمانو په دې سره دا دليل نيولې دې چې په توبه او استغفار سره الله ﷻ په خپله موقعه باران وروی . قحط راتلو ته نه پريږدی ، او په مال اولاد کښې ورسره برکت راځي کله کله د الله ﷻ د څه حکمت په جوړ ددې نه خلاف هم کيږی مګر د الله ﷻ عادت عامو خلقو سره هم دادې چې په توبې استغفار کولو او ګناه نه کولو سره ددنيا بلاګانې راتلل هم حصاريږی . د حديث پاک د روايتونو نه هم ددې تائيد کيږی.

[أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا ۝ وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا] په دې آيت مبارک کښې د توحيد او دقدرت خداوندی په سلسله کښې د اوۀ آسمانونو قط په قط کيدل اوپه کښې د سپوږمئ د نور کيدل بيان راغلې دې، د [فِيهِنَّ] نه په ظاهره دا پوهه کښې راځی چې سپوږمئ په آسمانونو کښې ښخه ده خو د اوسنو نوۀ تحقيقاتو اوليدلو کتلو نه دا معلوميږی چې سپوږمئ د آسمانونو نه ډيره لاندې په آسمانی فضا کښې ده چې ورته نن صبا خلاء وئيلې شي ددې تحقيق په تفصيل سره دسورة فرقان آيت مبارک :: [جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَجَعَلَ فِيهَا سِرَاجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا][2] په تفسير کښې تير شودې هلته دې اوکتلې شی ، دخپل قوم نه د ګيلې په سلسله کښې ئې اوفرمائيل چې [وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا] ، کبار د اکبر نه مبالغه ده ، معنی ئې داده ، ډير زيات لوئې ، مطلب دادې چې هغوئ ډير زيات مکر اوکړو ، هغه دا وو چې پخپله خوبه ئې هم په دروغه بلل کول او زيانونو نه به ئې رسول ، دعلاقې بد معاشان اوشريران به ئې هم ورپسې کول ، هم په دغې شکايت کښې ئې دکافرانو داقول نقل کړو چې هغوئ خپل مينځ کښې دا الوظ اوکړو چې : [لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا] يعنی د خپلو بتانو خصوصا ددې پنځو بتانو عبادت مه پريږدئی .

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۷۲ ، ۷۳]

[2] ) ترجمه:- هغه ذات ډير عاليشان دې کوم چې په آسمان کښې غټ غټ ستوری جوړ کړل او په دې کښې يو روښانه سپوږمئ جوړه کړه.

امام بغوی رحمه الله نقل کړی دی چې دا پنځه واړه په اصل کښې د الله ﷻ نیک او صالح بندګان وو چې د آدم علیه السلام او نوح علیه السلام ترمینځه زمانه کښې تیر شوی وو ، ډیر خلق د دوئ تابعدار او عقیدتمند وو ، کله چې دوئ وفات شو نو ډیره زمانه ئې خلق په نقش قدم باندې روان وو ، دالله ﷻ د احکامو پابندی به ئې کوله ، څه زمانه پس شیطان پوهه کړل چې د دغې بزرګانو تصویرونه دعبادت کولو په وخت کښې خان سره ایږدئی نو عبادت به مو مکمل وی. خشوع او خضوع به درته حاصله وی ، داخلق اوغولیدل د هغوئ بتان ئې د عبادت په وخت کښې خان سره ایخودل اوپه دې به ئې پوره تسلی کیده. کله چې دغه نسل ختم شو او نوې نسل دهغوئ په ځائې راغلو نو شیطان ورته دا اوخودل چې ستاسو مشرانو به ددې بتانو عبادت کولو او دهغوئ خدایان وو. دغه ځائې نه بت پرستی شروع شوه . اوددې پنځو بتانو لوئی د نورو بتانو نه ددوئ زړونو کښې زیاته ناسته وه . ځکه په خپل مینځ کښې ئې دا لوظ داسې اوکړو چې په خاص ډول ئې ددغې بتانو نومونه واخستل[1] .

[وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا ضَلٰلًا] یعنی ددغې ظالمانو ګمراهی نوره هم زیاته کړې. د لته داشبه کول نه دی پکار چې هرکله الله ﷻ پیغمبران دخلقو د هدایت دپاره رالیږلی وو نو نوح علیه السلام دخپل قوم دګمراه کولو خیرې ځنګه اوکړې ؟

جواب ئې دادې چې هرکله الله ﷻ نوح علیه السلام هرکله پدې خبر کړو چې ستاسو علیه السلام په قوم کښې دې نه پس هیڅوک ایمان راوړونکی نشته ، ځکه ئې خیره اوکړه چې زر دا ګند د زمکې دمخ نه لرې کړې شی او هلاک کړې شی.

[مِمَّا خَطِيْٓـٰٔتِهِمْ اُغْرِقُوْا فَاُدْخِلُوْا نَارًا] یعنی دغه خلق دخپلو خطاګانو ، کفر او شرک په وجه په اوبو کښې غرق کړې شو نو په اور کښې داخل شو ، داخبره د الله ﷻ دقدرت نه څه لرې نه ده چې په اوبو کښې ډوب شو او په اور کښې ورننوتل ثابت شو . دلته د اور نه مراد برزخی اور ځکه دې چې د قیامت په ورځ اور د جهنم ته داخلیدل خو به د حساب کتاب نه پس هلته وی ، په دې شان اوبه او اوریوځائې کیدل دالله ﷻ دقدرت یوه ننداره ده چې قرآن پاک ئې خبر ورکړې دې.

**د قبر عذاب د قرآن پاک نه ثابت دې** :: دَ دې آیت مبارک نه معلومه شوه چې عالم برزخ یعنی په قبر کښې دَ اوسیدو په زمانه کښې هم به په مړو باندې عذاب وی. دَ دې نه دا هم ښکاره ده چې کله په قبرکښې په بد عمل باندې عذاب وی نو نیک عمل والو ته به ثواب او نعمتوملاویږی. په احادیث صحیحه متواتره کښې په قبرکښې دَ عذاب او ثواب کیدو بیان په دومره کثرت او وضاحت سره راغلې دې چې انکار ترې نشی کیدې. په دې وجه په دې باندې دَ امت اجماع او دَدې اقراردَ اهل سنت والجماعت علامت دې.

تمت سورة نوح بحمدالله لیلة الاربعآء ۸ رجب ۱۳۹۱هجری

[1]) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۲۳۲]

| ایاتونه | سورة الجن مكية وهي ثمان وعشرون اٰية وفيها ركوعان | رکوع گاني |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۸ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکي دي | ۲ |

قُلْ أُوْحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوْا

اووایه | وحی شوی ده | ماته | چی بیشکه غوږ ایښې وو | یوې ډلې | دپیریانو نه | پس اووئیل هغوئ

[اې رسوله] اووایه چې ماته وحی راغلې ده | چې دپیریانو یوې ډلې قرآن پاک واوریدلو | نو وې وئیل

إِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ۝١ يَّهْدِيْ إِلَى الرُّشْدِ

چی بیشکه مونږه | واوریدو | یو قرآن عجیبه | چی لاربنودنه کوی | نیکۍ ته |

چې مونږ عجیبه قرآن واوریدو | ............چې د هدایت لارې ته بلنه کوی

فَاٰمَنَّا بِهٖ ۖ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا ۝٢

پس ایمان راوړو مونږه په هغه باندې | او مونږ به هرگز نه شریکوو | درب خپل سره | هیڅوک |

نو مونږ پرې ایمان راوړو | او مونږ به خپل رب سره [اوس] هیڅوک نه شریکوو

وَأَنَّهُ تَعٰلٰى جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ۝٣

او بیشکه چی لوئ دې | شان درب زمونږه | نه ده نیولی [جوړه کړی] هغه | ښځه | او نه خوني |

اودا چې زمونږ د رب شان ډیر لوئې دې | هغه نه ښځه کړې ده | ............اونه ئې اولاد شته

وَأَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ۝٤ وَّأَنَّا

او بیشکه وو | چی وئیل به | ناپوهانو زمونږه | په الله باندې | خبرې دحق نه خلاف | او بیشکه مونږه |

او دا چې زمونږ کم عقلو به د الله ﷻ په باره کښې د حدنه زیاتې خبرې کولې | او زمونږ خو دا خیال وو

ظَنَنَّا أَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْإِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۝٥ وَّأَنَّهُ كَانَ

گمان کولو | چی هرگز به نه وائی | انسان | او پیرې | په الله باندې | دروغ | او بیشکه چی وو |

............ چې انسانان او پیریان به د الله ﷻ په باره کښې دروغ نه وائی | ............او دا چې

رِجَالٌ مِّنَ الْإِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ

ډیر سړی | دانسانانونه | چی پناه به ئې غوښتله | په سړو پورې | دپیریانونه |

بنیادمو کښې ډیر کسان داسې هم تیر شوی دی | ............چې هغوئ به د بعضو سړونه دپیریانو

فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ۝٦ وَّأَنَّهُمْ

پس زیات کړو انسانانو هغوئ پیریانو لره | په لحاظ دغرور سره | او بیشکه چی انسانانو هم |

په ذریعه پناه غوښتله | نو د هغوئ [پیرانو] تکبر ئې نور هم زیات کړو | او د هغوئ

ظَنُّوْا كَمَا ظَنَنْتُمْ أَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ أَحَدًا ۝٧

گمان اوکړو | الکه څنگه چی گمان کړې وو تاسو | چی هرگز به نه رالیږی الله | یو [رسول] |

داگمان وو | الکه چې تاسو گمانونه کوئ | چې الله ﷻ به هیڅوک بیا نه راژوندي کوی

وَّاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ فَوَجَدْنٰهَا مُلِئَتْ

او بیشکه چې مونږه | اورسیدو آسمان ته | پس پیدا کړو مونږه هغه | چې ډک کړې شوې دې |

اودا چې مونږ آسمان ته اورسیدو | ..............نو هغه مو د سختو څوکیدارانو فرشتو

حَرَسًا شَدِيْدًا وَّشُهُبًا ﴿۸﴾ وَّاَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ

دڅوکیدارانو سختونه | او دشغلو دوور نه | او بیشکه چې وو مونږه [پخوا] | چې کیناستو به |

او دشغلو نه ډک پیدا کړو | ............ اودا چې مونږ به دآسمان په بعضې خابونو کنبې

مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ط فَمَنْ يَّسْتَمِعِ الْاٰنَ

په دې آسمان کنبې | په خانې دناستې کنبې | دپاره داوریدو | پس څوك چې غوږ ږدی اوس |

د خبرونو آوریدو دپاره کیناستلو | نو اوس چې څوک د اوریدو دپاره غوږ تکیا کړی |

يَجِدْ لَهٗ شِهَابًا رَّصَدًا ﴿۹﴾ وَّاَنَّا لَا نَدْرِيْٓ اَشَرٌّ

نو پیدا کوی | دپاره دخان خپل | شغله انتظار کونکی | او بیشکه چې مونږه نه پوهیدو | چې آیا دشر |

نو یوه تیاره شغله به بیدا کوی | ..............او مونږ په دې نه پوهیږو | چې ددې نه

اُرِيْدَ بِمَنْ فِي الْاَرْضِ اَمْ اَرَادَ بِهِمْ

اراده کړې شوې ده | په هغه چا باندې | چې په زمکه کنبې دې | یا اراده کړې ده | په هغوئ باندې |

زمکې خلقو ته تکلیف ورکول مراد دی | ............اوکه د دوی په باره کنبې د دوی رب

رَبُّهُمْ رَشَدًا ﴿۱۰﴾ وَّاَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَمِنَّا

رب دهغوئ | دنیغې لارې دښودلو | او بیشکه خینې زمونږ نه | صالحان دی | او خینې زمونږ نه |

د هدایت کولو اراده کړې ده | اودا چې بعضې په مونږ کنبې نیکان دی | او بعضې

دُوْنَ ذٰلِكَ ط كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا ﴿۱۱﴾ وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ نُّعْجِزَ اللّٰهَ

بې ددې نه دی | یو مونږه | په لارو | مختلفو | او بیشکه پوهیدو مونږه | چې هرگز به مونږه عاجزه نه کړو الله

بل قسم خلق هم | [غرض دا چې] مونږ په مختلفو لارو چارو روان وو | اومونږ په دې پوهه شوی

فِي الْاَرْضِ وَلَنْ نُّعْجِزَهٗ هَرَبًا ﴿۱۲﴾ وَّاَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا

په زمکه کنبې | او هرگز به مونږه عاجزه نه کړو هغه | په تیښتې سره | او بیشکه | هر کله چې واوریدو مونږه

یو | چې مونږ د زمکې په مخ | هیڅ ځائې کنبې | الله عاجزه کولې نشو | او نه تری په تیښته خلاصیدې شو | اودا

الْهُدٰٓى اٰمَنَّا بِهٖ ط فَمَنْ يُّؤْمِنْ بِرَبِّهٖ

هدایت | انو مونږه ایمان راوړو په هغې | پس هغه څوك چې ایمان راوړی | په رب خپل

چې مونږ دهدایت خبره واوریده | نو ایمان مو پرې راوړو انو څوک چې په خپل رب

فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا ﴿۱۳﴾ وَّاَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ

پس نه به یریږئ | دکمی دنیکئ نه | اونه دزیاتو دبدئ نه | او بیشکه خینې زمونږ نه | مسلمانان دی

ایمان راوړی | نو هغه سره نه خو دنقصان ویره وی | او نه د زیاتی | او په مونږ کنبې بعضې مسلمانان دی

وَمِنَّا الْقٰسِطُوْنَ ۭ فَمَنْ اَسْلَمَ فَاُولٰۗىِٕكَ تَحَرَّوْا

اوځيني زمونږ نه | دحق نه بې طرفه دي | پس هغه چاچې اسلام قبول کړو | پس هغوئ | فکر اوکړو

او بعضې د حق نه بې لارې دي | ..........نو چا چې اسلام قبول کړو | نو هغوئ دنيکئ د لارې سوچ

رَشَدًا ۝ وَاَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ۝

| دنيغې لارې | او څوک چې دحق نه بې طرفه دي | پس دي هغوئ | دپاره ددوزخ | خشاك |

کړې دي | .......... اوڅوک چې [د اسلام نه] بې لارې شو | نو هغوئ ددوزخ خشاک شو

وَّاَنْ لَّوِ اسْتَقَامُوْا عَلَى الطَّرِيْقَةِ

او دا [وحي هم راغلې ده] که چرې دا خلق په مضبوطيا سره تللې | په نيغه لار باندې |

اوکه دا خلق په سمه لاره ولاړ پاتې وې | ..........نومونږ به په ډيرو اوبو سره

لَاَسْقَيْنٰهُمْ مَّاۗءً غَدَقًا ۝ لِّنَفْتِنَهُمْ

نو خامخا به څکولې مونږ په هغوئ | اوبه ډيرې | دپاره ددې چې مونږ آزمينت اوکړو دهغوئ |

خړوب کړې وو | ..........چې ددوئ امتحان پرې اوکړو

فِيْهِ ۭ وَمَنْ يُّعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ

په دې نعمت کښې | او هغه څوک | چې مخ اړوی | دذکر درب خپل نه | نو ننباسی به هغه لره |

..........او څوک چې د خپل رب د ذکر نه مخ واړوی | نو الله ﷻ به ئې سخت

عَذَابًا صَعَدًا ۝ وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ۝

عذاب سخت ته | او دا چې جوماتونه | الله لره دي | پس مه رابلئ تاسو | دالله سره | هيڅوک |

عذاب ته داخل کړی | او دا چې جماتونه خو هم دالله ﷻ [دعبادت] دپاره دي | نو الله ﷻ سره بل هيڅوک مه بلئ

وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ

او دا چې بيشکه | هر کله | ودريدو بنده دالله | چې رابلې هغه لره | نزدې وو خلق | چې شوی وی |

او دا چې دالله ﷻ خاص بنده دهغه عبادت ته اودريږي | نودا پيريان پرې

عَلَيْهِ لِبَدًا ۝ قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ

په هغه باندې | حمله کونکي په جمع سره | اووايه اے نبي | چې بيشکه رابلم زه | رب زما |

راټول شي | .......... ته اووايه چې زه خو بس دخپل رب عبادت کوم | او هغه سره

وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ اَحَدًا ۝ قُلْ اِنِّىْ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا

او نه شريکوم دهغه سره | هيڅوک | ورته اووايه | چې بيشکه زه اختيار نه لرم | ستاسو دپاره | دضرر

هيڅوک نه شريکوم | .......... ته اووايه چې زه تاسو ته نه د نقصان درکولو اختيار لرم

وَّلَا رَشَدًا ۝ قُلْ اِنِّىْ لَنْ يُّجِيْرَنِيْ مِنَ اللّٰهِ اَحَدٌ ۙ

اونه دخير | ورته اووايه | بيشکه زه چې يم | هرگز به بچ نه کړي شي مالره | دالله نه | هيڅوک |

اونه دهدايت | ته اووايه چې ماته دالله ﷻ نه سوا بل هيڅوک پناه نشي راکولې |

وَّلَنْ اَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا ﴿۲۲﴾ اِلَّا بَلٰغًا

او هرگز به پیدانه کړم زه | بې دهغه نه | خاني دپناه | مگر [کار زما] | رسونه ده دخبرې |

اونه دهغه نه سوا بل څوک پناه موندې شی | ..........البته زما کار دالله ﷻ حکمونه او دهغه

مِّنَ اللّٰهِ وَرِسٰلٰتِهٖ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

دطرفه دالله نه | او [رسونه ده] دپیغامونو دهغه | او څوک چې نافرمانی کوی دالله | او درسول دهغه |

پیغامونه رسول دی | او څوک چې د الله او دهغه د رسول ﷺ نافرمانی کوی

فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ﴿۲۳﴾ حَتّٰٓى

پس بیشکه | دې هغه لره | وور ددوزخ | همیشه به وی | په هغې کښې | همیشه | تر دې پورې |

نو ده دپاره د دوزخ اور تیار دې | چې همیشه به په کښې اوسیږی| ..........تردې چې

اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ فَسَيَعْلَمُوْنَ

چې کله اووینی دوئ | هغه | چې وعده ئې کیدې شی ددوئ سره | نو زر به معلوم شی دوئ ته |

کله هغوئ هغه [عذاب] اووینی | دکوم چې ورسره وعده کیږی| ..........نو هغه وخت به پوه شی

مَنْ اَضْعَفُ نَاصِرًا وَّاَقَلُّ عَدَدًا ﴿۲۴﴾

چې څوک ډیر کمزورې دې | په حیثیت دمددګار سره | او ډیر کم دې | په لحاظ دشمار سره |

چې د چا مددګاران کمزوری دی | ..........او د چا شمیره کمه ده

قُلْ اِنْ اَدْرِیْٓ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ

ورته اووایه | نۀ ده معلوم ماته | چې آیا نزدې دې هغه [عذاب] | چې ستاسو سره ئې وعده کیږی |

ته ورته اووایه | چې ماته معلومه نه ده | چې تاسو سره د کوم څیز وعده کولې شی | هغه

اَمْ يَجْعَلُ لَهٗ رَبِّیْٓ اَمَدًا ﴿۲۵﴾ عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ

یا مقرر وی | هغې لره | رب زما | موده لرې | هغه عالم دې په غیبو | پس نۀ خبروی هغه |

نزدې راغلې دې | او که زما رب هغې ته اوږده نیټه مقرر کړه ده | ..........هغه په غیبو خبر دې

عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ﴿۲۶﴾ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ

په غیبو خپلو باندې | هیڅوک | سوا دهغه چانه | چې خوښ کړې وی هغه | یعنی سوا درسول نه |

نو هغه په خپلو غیبو هیڅوک نه خبر وی | البته دا که یو غوره پیغمبر ته دغیبو

فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ﴿۲۷﴾

پس بې شکه هغه | روانوی | مخکښې دهغه نه | او روستو دهغه نه | محافظان |

خبرور کول غواړی| نو د هغه وړاندې روستو محافظان رالیږی

لِّيَعْلَمَ اَنْ قَدْ اَبْلَغُوْا رِسٰلٰتِ رَبِّهِمْ وَاَحَاطَ

دپاره ددې چې پوهه شی هغه | چې اورسول هغوئ | پیغامونه درب خپل | او چاپیره دې هغه |

چې هغه ته ښکاره شی | چې هغوئ د خپل رب پیغامونه اورسول | ..........او الله ﷻ

| بِمَا لَدَيْهِمْ | وَأَحْصَىٰ | كُلَّ شَيْءٍ | عَدَدًا ﴿٢٨﴾ |
|---|---|---|---|
| دهغې نه چې دهغوئ سره دی | او شمارلې دې هغه | هر څيز | په شماره سره |
| د دوی په ټولو معاملو په علم سره احاطه کړې ده | او هغه هر څيز شميرلې دې | | |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پيغمبره عليه السلام) اووايه: چه ماته وحی راغلې ده، چه د پيريانو يوې ډلې (قرآن مجيد) په غورسره واورېدو او(خپل قوم ته لاړل، اوهغوی ته ئې) اووئيل چه: مونږ يو عجيبه قرآن اورېدلې دې، چه نيغې لارې طرف ته هدايت کوی ددې وجې نه مونږ په هغې باندې ايمان راوړې دې، او اوس به خپل پروردګار سره هيڅوک (په عبادت کښې) شريک نه ګنړو او دا چه: زمونږ د پروردګار ډير اوچت شان دې، هغه نه ښځه نيولې ده، او نه څوې. او دا چه: په مونږ کښې به بيوقوفانو خلقو داسې خبرې د الله تعالی باره کښې کولې، چه د حقيقت نه ډيرې لرې دی، او دا چه: مونږ دا ګنړلې وو چه انسانان او جنات به د الله تعالی باره کښې دروغ خبرې نه وائی او دا چه: د انسانانو څه خلقو به د جناتو د خلقو نه پناه اخستله، دغه شان هغې خلقو جناتو له نور هم په سر اوخيژول او دا چه: څرنګه ګمان وو ستاسو انسانانو هم هغسې ګمان کړې وو، چه الله تعالی به چاته هم د مرګ نه پس دوباره ژوندی ورنکړی او دا چه: مونږ آسمان لټول اوغوختل، نو مونږ اوموندلو هغه چه د ډيرو سختو څوکيدارانو او شعلو نه ډک کړې شوې دې او دا چه: مونږ به مخکښې د غوږ سارلې دپاره د آسمان په څه ځايونو کښې کيناستلو، ليکن چاچه غوږ سارنه اوکړه اوس، نو هغه به اوموی د ځان دپاره يوه شغله تياره. او دا چه: مونږ ته دا پته نه وه، چه آيا زمکې والو سره د څه بدې معاملې کولو اراده کړې شوې ده، يا اراده کړې ده ددوی دپاره رب دوی په حق باندې د راوستلو او دا چه: په مونږ کښې څه خلق نيک دی، او څه داسې نه دی. او مونږ په مختلفو طريقو باندې روان يُو او دا چه: مونږ دا يقين کړې وو، چه نه مونږ په زمکه کښې الله تعالی له عاجزه کولې شو، او نه چرته په تيختې سره عاجزه کولې شو. او دا چه: کله مونږ د هدايت خبره واورېده، نومونږ په هغې باندې ايمان راوړو، او چاچه ايمان په خپل پروردګار باندې ايمان راوړو، نو نه به ويريږی د نقصان نه او نه د زياتې نه. او دا چه: په مونږ کښې څه خلق مسلمانان شوې دی، او په مونږ کښې څه خلق (اوس هم) ظالمان دی نو کومو چه اسلام راوړې دې، هغوی د هدايت لار موندلې ده. او پاتې شو هغه خلق چه ظالمان دی، نو هغوی د جهنم خشاک دی. او (اے پيغمبره عليه السلام ! اهل مکه ته اووايه چه ماته) دا (وحی هم کيږی) چه: که دا خلق په نيغه لار باندې روان شی، نو خامخا به اوڅکوو مونږ په دوی باندې اوبه ډيرې. دې دپاره چه په دې کښې ددوی آزمائش اوکړو او څوک چه د خپل پروردګار د ذکر نه مخ واړوی، الله تعالی به هغه په سخت عذاب کښې داخل کړی. او دا چه: سجدې ځو ټول په ټوله د الله تعالی حق دې ددې وجې نه د الله تعالی سره بل څوک مه رابلئ. او دا چه: کله د الله تعالی بنده د هغه د عبادت دپاره اودريږی، نو داسې معلوميږی، چه دا خلق په هغه باندې حمله اوکړی اووايه چه: زه خو صرف د خپل پروردګار عبادت کوم او د هغه سره هيڅ شريک نه منم. اووايه چه: نه ستاسو څه نقصان زما په اختيار کښې دې، او نه څه ښيګړه. اووايه چه: ما د الله تعالی نه نه څوک بچ

کولې شي، او نه زه د هغه نه سوا بل د پناه ځائې موندلې شم. البته (په کوم څيز چه ماته اختيار راکړې شوې دې هغه) د الله تعالى دطرف نه خبره رسول دى،او دهغه پيغامات دى او څوک چه د الله تعالى او د هغه د رسول نافرمانى اوکړى، نو د هغه دپاره د جهنم اور دې، چه په هغې کښې به داسې خلق هميشه دپاره اوسيږى. (او دا خلق به نافرمانى کوى) تردې پورې چه هغه څيز دوى اووينى، د کوم نه چه دوى ويرولې شى، نو په هغه وخت کښې به دوى ته پته اولګى، چه د چا مددګاران کمزورې دى، او څوک په تعداد کښې کم دى اووايه چه: ماته معلومه نه ده، چه د کوم څيز نه تاسو ويرولې شئ، آيا هغه لزدې دې، يا زما پروردګار د هغې دپاره څه اوږده موده مقرر فرمائيلې ده هغه عالم دې په غيبو باندې، نو هغه دخپلو غيبو خبر هيچا ته نه ورکوى. سوا د يو پيغمبر نه چه هغه لره الله تعالى (ددې کار دپاره) غوره کړې وى په داسې صورت کښې هغه ددې پيغمبر مخښې ته او روستو دده نه محافظان روان کړې وى. ددې دپاره چه پوهه شى الله تعالى چه يقيناً دوى رسولې دى پيغامونه د رب خپل، او راګير کړې ئې دى هغه چه ددوى سره دى، او شمارلې ئې دې هر څيز په پوره شمارلو سره.

## خلاصه تفسير

**شان نزول:** دايتونو دتفسير نه اول په يو څو واقعاتو پوهيدل پکار دى دکوموضرورت چه په تفسير کښې راپيښيږى اوله واقعه دنبى کريم ﷺ دبعثت نه وړاند به شيطانان اسمان ته رسيدل او دفرښتو خبرې به يې اوريدې ددوى ﷺ دبعثت نه پس دغولره دشهاب ثاقب په ذريعه ددې اوريدونه منع کړې شول اوددې حادثې دتحقيق په ضمن کښې داپيريان دوى ﷺ ته ورسيدل لکه چه په سورة احقاف کښې تيرشوى دى دويمه واقعه دجاهليت په زمانه کښې عادت وو چه هرکله به په يو خنګل يا صحراء کښې دسفرپه دوران دقيام کولو نوبت راتلونو په دې عقيده سره چه دپيريانو سرداربه زمونږ حفاظت کوى دا الفاظ وئيل اعوذ بعزيز هذا الوادى من شر سفهاء قومه يعنى زه ددې خنګل دسردار پناه اخلم دده دقوم دبې وقوفانو شريرانو نه دريمه واقعه په مکه مکرمه کښې ددوى ﷺ په خيرو سره قحط راغلې وو او ترڅو کاله پورې وو څلورمه واقعه هرکله چه دوى ﷺ داسلام دعوت شروع کړو نو مخالفو کفارو ددوى ﷺ خلاف ګڼره جوړه کړه دوى ﷺ يې په ګيره کښې واخستل اولنئ دوه واقعې د تفسير درمنثور[1] نه او اخرى دوه دتفسير ابن کثير[2] نه راخستې شوى دى

﴿قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ﴾ [ته] دې خلقوته [ووايه چه ماته ددې خبرې وحى راغلې ده چه دپيريانو يوې ډلې قرآن واوريدو بيا] خپل قوم ته واپس لاړل ﴿فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا﴾ [هغوى ووئيل چه مونږ يو عجيبه قرآن اوريدلې دې ﴿يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ﴾ کوم چه نيغه لاربښائى پس مونږ پرې ايمان راوړو] قرآن والې خوئ دمضمون نه معلوم شو او عجيب والې ئې ددې نه چه ددې مشابه کلام دبشرنشته ﴿وَلَن نُّشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا﴾ [اومونږ به] اوس [دخپل رب سره چالره هرګز شريك نۀ جوړ وو] دابيان دې د فَآمَنَّا بِهِ [او] دوى ددې مضامينو هم په خپل مينځ کښې ذکروکړوکوم چه لاندې راغلى دى اوهغه مضامين دادى چه ﴿وَأَنَّهُ تَعَالَىٰ جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَلَا

---

[1] ) تفسير الدرالمنثور [ج:۱۵ ص:۵، ۶]
[2] ) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۲۳۹]

وَلَدًا﴾ [زمونږ دپروردګارلوئ شان دې هغه نۀ ښځه لري اونۀ اولاد] ځکه چه داسې کیدل عقلامحال دی دابیان دې دولَنْ نُّشْرِكَ الخ ﴿وَاَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا﴾ [او په مونږ کښې چه کوم احمقان شوی دی هغوی دالله تعالی په شان کښې دحدنه زیاتې شوی خبرې کولې] مراددې نه دشرك کلمات ښځه اود اولاد اثبات وغیره دی ﴿وَاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ [اوزمونږ] مخکښې [داخیال وو چه بنیادم اوپیریان چرې هم دالله تعالی په شان کښې دروغ خبره نۀ کوی] ځکه چه دلوئ بې باکئ خبره ده په دې کښې ئې وجه دخپل مشرك کیدوبیان کړه چه چونکه اکثرو پیریانواوبنیادمو په شرك کولو مونږګنړله چه دالله تعالی په شان کښې به دومره خلقوپه دروغواتفاق نۀ وی کړې بس مونږ هم دغۀ طریقه اختیارکړه حال دادې چه نۀ مطلق دی داخلقواتفاق څۀ دلیل دحقانیت دې اونۀ دهراتفاق اتباع عذردې اوداذکرشوې شرك خومشترك وو[او] یو شرك خاص وو دخنوسروسره په کوم سره چه به دپیریانوکفرنور زیاتیدو هغه داچه ﴿وَاَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ﴾ [ډیرخلق دبنیادمونه داسې ووچه هغوی په جناتوکښې دخنونه پناه اخسته ﴿فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا﴾ پس هغو بنیادمو ددغو پیریانو بد دماغی نوره زیاته کړه] چه هغوی په دې وهم کښې اخته شول چه مونږ دپیریانو سردارن خود ورانددې نه وو اوس بنیادم هم مونږ لره دومره لوئ ګنړی پس په دې سره ئې بددماغی زیاته شوه اوپه کفراوعناد نورزیات اصرار کوونکی شول تردې پورې دتوحیدپه حقله مضمون وو[او] وراندې دبعثت یعنی دقیامت په حقله دې یعنی دې پیریانو په خپل مینځ کښې دا تذکره هم وکړه چه ﴿وَاَنَّهُمْ ظَنُّوْا كَمَا ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ اَحَدًا﴾ [څنګه چه تاسوداخیال کړې ووداسې بنیادمو هم خیال کړې وو چه الله تعالی به څوك دوباره ژوندې نۀ کړی] مګردامضمون هم غلط ثابت شو اودبعثت حق کیدل معلوم شول [او] وراندې درسالت په حقله مضمون دې یعنی دې پیریانو په خپل مینځ کښې دا ذکرهم وکړو چه ﴿وَاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ﴾ [مونږ داسمان] خبرونه دتیرعادت موافق [تلاش کول وغوښتل ﴿فَوَجَدْنٰهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيْدًا وَّشُهُبًا﴾ پس مونږ دۀ لره دسختې پهرې] یعنی محافظوفرښتو [اوشغلونه] دکوموپه ذریعه چه حفاظت کولې شی [ډك پیداکړو] یعنی اوس پرې پهره ودریده چه څوك پیرې اسمانی خبرې ونۀ وړی شی اوکوم چه ځی په شهاب ثاقب سره ویشتلې شی ﴿وَاَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ﴾ [او] ددې نه وراندې به [مونږ داسمان] دخبراوریدو [په موقعوکښې د] خبر[اوریدوډپاره کښیناستلو] او دموقعې خواه داسمان اجزاء وی یا دهوایا دڅۀ خلاء د اجزاؤ وی کومې چه اسمان ته نزدې وی اوپیریان دخپل لطافت اوعدم ثقل په وجه په هغې مستقر کیدې شو لکه چه ځنې مارغان په هواکښې په روانه روانه کښې ودریږی ﴿فَمَنْ يَّسْتَمِعِ الْاٰنَ يَجِدْ لَهٗ شِهَابًا رَّصَدًا﴾ [پس څوك چه اوس اوریدل غواړی نودخان دپاره به یوه تیاره شغله مومی] اودشهاب دبحث تحقیق دسورة حجر په دویمه رکوع کښې تیرشوې دې دا مضمون درسالت په حقله دې مطلب دادې چه نبی کریم ﷺ ته الله تعالی رسالت ورکړې دې اوددفع دالتباس دپاره ئې دکهانت دروازه بنده کړې ده او ددې خبرونو پټول بندیدل سبب شو ددې پیریانو درسیدو تاتۀ لکه چه په اوله واقعه کښې ذکردی [او] وراندې دذکرشوو مضامینو متممات دی چه ﴿وَاَنَّا لَا نَدْرِيْٓ اَشَرٌّ اُرِيْدَ بِمَنْ فِي الْاَرْضِ﴾ او [مونږ نۀ پوهیږوچه] ددې نوی پیغمبر په مبعوث کولو سره نو [مزکې والو ته څۀ تکلیف رسول مقصود دی ﴿اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ یاکه ددوی رب

دوی ته دهدایت کولو قصد فرمائیلې دې] یعنی تکوینی مقصود درسول لیږلو معلوم نۀ دې
خکه چه درسول په اتباع سره رشد و هدایت کیږی او په مخالفت سره ئې مضرت او عذاب او
دراتلونکی اتباع او مخالفت مونږ ته علم نشته په دې وجه مونږ په دې نۀ پوهیږو چه ددۀ په
لیږلو سره قوم لره سزا ورکول مقصود دی یا ورته هدایت کوی شایددائې خکه وونیل چه دوی ته
دخپل قوم اندازه وه چه ایمان راوړونکی بِه کم وی او هغوی به دسز امستحق شی او دارنګ په
نفی دعلم غیب سره تقویت دې دتوحیدد مضمون چه وګورئ څنې خلق جناتو ته دَ علم غیب
نسبت کوی مګردوی ته دومره هم خبره نشته ﴿وَأَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُونَ وَمِنَّا دُونَ ذٰلِكَ﴾ [او په
مونږ کښې] دوړاندنه هم [څنې نیکان بندګان] راغلی [دی او څنې بل شان] وی راغلی [دی]
غرض ﴿كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا﴾ [مونږ په مختلفو طریقو باند وو] دغه شان ددې نبی په خبراوریدو سره
اوس هم په مونږ کښې ددواړو طریقو خلق موجود دی [او] زمونږ طریقه خو داده چه ﴿وَأَنَّا ظَنَنَّا
أَنْ لَنْ نُعْجِزَ اللّٰهَ فِي الْأَرْضِ وَلَنْ نُعْجِزَهُ هَرَبًا﴾ [مونږ پوهه شو چه مونږ دزمکې] په یوه حصه [کښې]
په تللو سره [الله تعالی لره نۀ شو عاجزه کولې اونۀ] بل خائې ته [تنبیدلې شو چه هغه عاجزه
کړو] دتښتیدو نه مراد دزمکې نه علاوه اسمان وغیره ته تښتیدل دی کوم چه دفی الارض د
مقابلې نه معلومیږی پس دا پشان دَ دې قول دالله تعالی دې چې ﴿وَمَآ أَنْتُمْ بِمُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ
وَلَا فِي السَّمَآءِ﴾(١) شاید ددې نه هم مقصود ویرول وی چه کۀ کفر وکړو دالله تعالی دعذاب نه نۀ
شو بچ کیدې او دخپلو مخکینو مختلفو طریقو بیانولو سره شاید دامقصود وی چه سره دحق
واضح کیدو دخنوایمان نۀ راوړل دحق په حق کیدو کښې څه شبهه نۀ شی کیدلې خکه چه داسې
خو دهمیشه نه راروانه ده ﴿وَأَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدٰى آمَنَّا بِهِ﴾ [او مونږ چه هر کله دهدایت خبره واوریده
نو مونږ خو په هغې یقین وکړو پس] زمونږ په شان ﴿فَمَنْ يُؤْمِنْ بِرَبِّهِ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا﴾ [چه
کوم سړې په خپل رب ایمان راوړی نو دهغۀ سره به نۀ د څۀ کمی ویره وی اونۀ د زیاتی] کمی
داچه دهغه څه نیکی به دلیکلو نه پاتې نۀ شی او زیاتې داچه څه ګناه ئې زیاته ولیکلې شی
شاید مقصود په دې سره ترغیب وی ﴿وَأَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُونَ﴾ [او په مونږ کښې څنې خو] په دې
مضامینو ویرې او ترغیب پوهه شول [مسلمانان] شوئ [دی ﴿وَمِنَّا الْقٰسِطُونَ﴾ او څنې په
مونږ کښې] په تیره طریقه [بې لارې دی ﴿فَمَنْ أَسْلَمَ فَأُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا﴾ پس کوم سړې چه
مسلمان شو هغۀ دخیرلار ولتوله] په کومه چه به ثواب مرتب شی ﴿وَأَمَّا الْقٰسِطُونَ فَكَانُوا لِجَهَنَّمَ
حَطَبًا﴾ [او څوك چه بې لارې دی هغه ددوزخ خشاك دې] تر دې پورې خبره دجناتو ختمه شوه
کومه چه معمول دې دقالوا [او] وړاند داُوْحِيَ اِلَيَّ نور معمولات دی یعنی ماته ددې مضامینو هم
وحی راغلې ده یو داچه ﴿وَأَنْ لَوِ اسْتَقَامُوا عَلَى الطَّرِيقَةِ لَأَسْقَيْنٰهُمْ مَآءً غَدَقًا﴾ [کۀ دا] دمکې [خلق په
نیغه [لارې قائمیدې نو مونږ به دفراخنی په اوبو سره سیراب کړی وی ﴿لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ﴾ چه په هغې
کښې ددوی امتحان وکړو] چه دنعمت شکر اداکوی یا ناشکری او نافرمانی کوی مطلب داچه
کۀ دمکې خلقو شکر نۀ کولې دکوم مذمت چه بره په ضمن دکلام دجناتو کښې راغلې دې نو په
دوی به قحط نۀ وو مسلط شوې لکه چه په دریمه واقعه کښې ئې ذکردې مګر دوی په خائې
دایمان راوړو مخ واړولو په دې وجه په قحط کښې اخته شول [او] دکفر په عذاب کښې دمکې

---

(١) ترجمه:-اونه تاسو په زمکه کښې شکست ورکولې شئ اونه په آسمان کښې.

والوځۀ تخصیص نشته بلکه ﴿وَمَنْ يُعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ﴾ [کوم سړي چه دخپل پروردګار د یادو] یعنی ایمان او اطاعت [نه اعراض کوی ﴿يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا﴾ الله تعالی به هغه لره په سخت عذاب کښې داخل کړی او] په دغه وحی شوی مضامینو کښې یو دادې چه ﴿وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ﴾ [ځومره سجدې دی هغه ټولې دالله تعالی ته حق دې] یعنی داجائزنۀ دی چه خنې سجدې الله تعالی ته وشی او خنې غیرالله تعالی وشی لکه چه مشرکینو به کولې ﴿فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا﴾ [پس دالله تعالی سره دبل چا عبادت مۀ کوئ] په دې مضمون کښې هم دتوحید تقریر دې دکوم چه پورته ذکر وو [او] ددغو وحی شوو مضامینونه یو دادې چه ﴿وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ﴾ [هر کله دالله تعالی خاص بنده] مراد نبی کریم ﷺ دې [دالله تعالی عبادت کولوته ودریږی ﴿كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا﴾ [نودا] کافران [خلق په دې بنده راټول شی] یعنی په تعجب او دښمنئ سره ورته هرسړې داسې ګوری لکه چه اوس دحملې کولودپاره پرې ورپنډیږی داهم تتمه ده د توحید دمضمون ځکه چه په دې کښې مذمت دې دمشرکانوچه دتوحیدسره ددوی دښمنی اونفرت وو وراندې ددې تعجب اوعداوت په حقله دجواب ورکولودپاره دوی ته ارشاد دې یعنی ﴿قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ اَحَدًا﴾ [ته] دوی ته [داووایه چه زۀ خوصرف دخپل پروردګار عبادت کوم او دهغه سره چالره نۀ شریك کوم] پس داځۀ دتعجب اوعداوت خبره نۀ ده داټول مضمون دتوحید په حقله وو وراندې درسالت په حقله مضمون دې چه ﴿قُلْ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا﴾ [تۀ داهم [ووایه چه زۀ تاسودپاره نۀ دځۀ ضرر اختیارلرم اونۀ دښیګړې] یعنی تاسوچه کوم داسې فرمائشونه کوئ چه کۀ تۀ رسول یې نو په مونږ عذاب نازل کړه نوددې جواب دادې چه دا زما په اختیارکښې نۀ ده اودغه شان کوم خلق چه دا وائی چه په یوشان به مونږ تالره رسول ومنوچه کۀ تۀ په مضامینودتوحیداوقرآن کښې ځه تغیراو بدلون وکړې نو ددې په جواب کښې ﴿قُلْ اِنِّيْ لَنْ يُّجِيْرَنِيْ مِنَ اللّٰهِ اَحَدٌ﴾ [تۀ ووایه چه] کۀ خدائی مۀ کړه زۀ داسې وکړم نو [مالره به دخدائی دغضب [نه ځوك بچ نۀ کړې شی ﴿وَّلَنْ اَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا﴾ اونۀ زۀ دهغۀ نه سواځه] ځانې د [پناه پیداکوې شم] مطلب داچه نۀ به په خپله ځوك زمابچ کونکې وی اونۀ به زماپه تلاش سره ملاؤ شی اودکفاروداسې خبرې دعذاب زرغوښتو اود بدلولو دقرآن اودین په قرآن کښې ځائې په ځائې مذکوردې اوبره په ﴿لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا﴾ کښې نې نفی داختیار دنفع اوضرر اوفرمائیله وراندې اثبات دمنصب درسالت فرمائی چه دضرر اونفع مالك کیدل خولازمه د نبوت نه ده دغه خومنفی ده ﴿اِلَّا بَلٰغًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِسٰلٰتِهٖ﴾ [لیکن دخدائی دطرف نه درسول اودهغۀ پیغامونه اداکول دازماکاردې او] وراندې دتوحیداورسالت داوړو په حقله مضمون دې ﴿وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [چه کوم خلق دالله تعالی اودهغۀ درسول خبره نۀ منی ﴿فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا﴾ نو یقینا دهغوخلقو دپاره ددوزخ اور دې په کوم کښې چه به هغوې همیشه همیشه وسیږی] مګرکفار دغه وخت په دې مضامینو نۀ متاثره کیدل بلکه التبه به ئې مسلمانانو لره حقیر اوذلیل ګڼړل اووئیل به ئې ﴿اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا﴾[1] اودوی به ددې جهالت نه واپس نۀ شی ﴿حَتّٰٓى اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ﴾ [تردې چه کله هغه شی لره ووینی دکوم چه ددوی سره وعده کولی شی ﴿فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ اَضْعَفُ نَاصِرًا وَّاَقَلُّ عَدَدًا﴾ هغه وخت به پوهه شی چه دچامددګار

[1] ترجمه:- دواړه فریقو کښې مکان د چا ډیر ښائسته دې او محفل د چا ښکلې دې.

کمزوری دی او دچا جماعت کم دې ] يعنى كافريـه داسې وى د كوموچه بـه څۀ پـه كـار رانـه شى پس مراد د جماعت نه جماعت مطيعه دي په ناصر اُکنبې دنافع اعلى نفى وشوه اويـه عدداً كنبې دنافع ادني وړاندې دقيامت په حقله كلام دې چه داخلق دقيامت دوخت پـه طـور دانكـار تپوس كوى نو ﴿قُلْ إِنْ أَدْرِيٓ أَقَرِيبٌ مَّا تُوعَدُونَ﴾ [تۀ] دوى تـه [وو ايـه چـه مـاتـه معلومـه نـۀ ده چه دكوم شي تاسو سره وعده کيږي ايا هغه نزدې ] راتلونكې دې] ﴿أَمْ يَجْعَلُ لَهُۥ رَبِّيٓ أَمَدًا﴾ يا زمـاپروردګار دهغې دپاره اوږده زمانه مقرر كړې ده] ليكن په هرحال كښې بـه هغـه خـامخـا راخې پـاتې شـو علم تعين پس هغه محض غيب دي او ﴿عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ﴾ [په غيبوپوهيدونكې هغه دې پس] په كومو غيبو چه چالره خبرول مصلحت نۀ وي ﴿فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا﴾ [هغـه پـه خپلـو داسې غيبـو چـالـره نـۀ خبروى] اوعلم تعين دقيامت داسې دې چه په دې باندې چـالره پـه خبرولـو كښې څـۀ مصلحت نشته څکه چه دغه علوم دنبوت سره متعلقه نۀ دي د كومـو حـصـول چـه پـه قـرب الـهى كـښې داخل وي پس په داسې غيبو چالره نۀ خبرداروى ﴿إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ﴾ [او مګرچا برګزيده پيغمبر لره] كۀ پـه څـۀ داسې علم باندې خبردار كول غـوارى كـوم چـه دعلـم نبـوت نـه وى خـواه دنبوت ثابتونكې وې لكه پيشيګويې خواه دنبوت دفروعـاتو نـه وى لكـه علـم احكـام [نـو] دغـه شان اطلاع وركوى چه ﴿فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا﴾ [د دغـې پيغمبـر وړانـدو روستو] يعنى هر طرف تـه دوحى پـه وخـت كـښـې [محـافظې فـريښتې رالېږى ] چـه هلتـه دشيطانانو تيريدل شى كوم چه دفريښتې نه وحى واوري اولاړشى اوبل چاتـه ئې ووائى يـاڅه وسـوسـه وغيـره په كښې واچوى چنانچه دنبى كريم ﷺ دپاره داسې محافظې فريښتې څلوروې لكه په روح المعانى[۱] كښې دى او دا انتظام څكه كولې شى ﴿لِّيَعْلَمَ أَن قَدْ أَبْلَغُوا۟ رِسَٰلَٰتِ رَبِّهِمْ﴾ [چه] پـه ظـاهرى طور [الله تعالى معلومـه كړى چـه دده فريښتو دخپـل پروردګار [پيغـام] رسـول تـه پـه حفاظت [اورسولو] اويـه دې كښې دچادخل اوتصرف ونـه شو اورسوونكې خوصرف دوحى فريښته ده ليكن دمعيت په وجه دمحافظو فرښتوطرف ته هم اسناد دفعل وكړې شو ﴿وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ وَأَحْصَىٰ كُلَّ شَىْءٍ عَدَدًۢا﴾ [او الله تعالى د دوې ] پهره دارانو [ټول حالات احاطه كړى دى ] پـه دې وجه پهره دارداسې مقرر كړې شوى دى كوم چه ددې كارپوره پوره اهل دى [او دۀ تـه دهرشى شمير معلوم دې ] پس دوحى ټول اجزاء يويودۀ ته معلوم دى اوهغـه دټولـو حفاظت كـوى مطلـب دمقـام دادې چه دقيامت دتعين علم دعلومو دنبوت نه نۀ دې په دې وجه ددې علم نۀ كيدل دنبوت منافى نۀ دى البته دنبوت علوم وركولې شى اويه دې كښې احتمال دخطا نۀ وى نو پـه داسې علومو سرۀ تاسو فائده اخلئې اوډزياتى تحقيق پرېږدئ]

## معارف او مسائل

[نَفَرٌ مِّنَ ٱلْجِنِّ] د نفر لفظ د دريو نه تر لسو شمير دپاره وئيلې شى ، د كومـو پيريـانو چې دلتـه ذكر دې ، روايت دادې چې دا نهه كسان وو ، د نصيبين مقام اوسيدونكي وو.

**د پيريانو حقيقت** :: پيريان د الله ﷻ داسې يو مخلوق دې چې جسم ، روح او د انسان پشان عقل او شعور هم لرى. دخلقو د نظره پټ دى څكه ئې جن نوم كيخودې شو . ددې لفظى معنى پټ ده ، ددې د پيدائش غالبه ماده اور دې. څنګه چې د انسان د پيدائش غالبه ماده خاوره ده. په دې

[۱]) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۱ ص: ۳۶۷]

قسم کښې هم د انسان پشان نر او ماده شته اود انسان پشان د زیږولو سلسله هم په کښې جلیږي. ظاهره داده چې په قرآن پاک کښې چې کوموتـه شیطانان هغـه هم په جناتو کښې ورانکارو پیریانوته وئیلې شوي دي. دپیریانو او فرښتو شته والي د قرآن پاک او سنت په یقیني دلیلونو سره ثابت دي چې انکار کول ئې کفر دې . [ تفسیر مظهری] [1].

[قُلْ أُوحِيَ] نه معلومه شو چې دغه راغلي پیریانولرد نبی کریم ﷺ په خپلو سترګو مبارکو نه وو لیدلي بلکه ددغې قرآن پاک آوریدونکو پیریانو خبرورته الله ﷻ دوحی په ذریعه ورکړې دې.

**دسورة جن د نازلیدو تفصیل** :: صحیح بخاری ، مسلم او ترمذی وغیره کښې دابن عباس ﷠ نه روایت دې چې په دې واقعه کښې نبی کریم ﷺ په قصد سره دغې پیریانو تـه قرآن پاک نه وو آورولي بلکه هغوئ ﷺلیدلي هم نه وو. او واقعـه داسې وه چې نبی کریم ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷡ سره د عکاظ بازار ته تللو او دا واقعه د هغه وخت ده چې د آسمان د خبرو آوریدو نه شیطانان دشهاب ثاقب په ذریعـه ایسار کړې شوي وو. او پیرانو خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چې دا حادثـه چې په مونږ باندې دآسماني خبرو د اوریدلونه په منع کیدلو راپیښه شوې ده دا څه اتفاقی راپیښه نه ده بلکه دنیا کښې څه نوې څیز راپیښ شوې دې چې هغې په وجه دا کار کیږي . اودا خبره ئې فیصله کړه چې دزمکې په هر طرف کښې دې پیریان خواره شي . او ددې تحقیق دې اوکړي چې دا نوې څیز څه راپیښ شوې دې. د پیرانو کومه ډله چې تهامـه حجاز تـه لیږلې شوې وه هغـه د نخله مقام تـه اورسیده چرتـه چې نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷡ ته دصبا په وخت کښې جمع ورکوله.

دپیرانو ډلې دقرآن پاک په آوریدو سره قسمونه اوخوړل اوخپل مینځ کښې ئې اووئیل چې والله هم دا کلام دې چې د مونږ او د آسماني خبرونو تر مینځه اړ جوړ شوې دې ، دوئ په واپس تلو خپل قوم ته دا قیصه بیان کړه چې ذکر ئې په دې آیتونو کښې دې.[إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا] الله ﷻ ددې آیتونو په ذریعه نبی کریم ﷺ ددې ټولې واقعې نه خبر کړو [2].

**د ابی طالب وفات اود نبی کریم ﷺ دطائف سفر** :: اکثرو مفسرینو فرمائیلي دي چې د ابی طالب ﷠ دوفات نه پس نبی کریم ﷺ په مکه مکرمـه کښې بې سرپرسته پاتې شو نو نبی کریم ﷺ په یواځې د طائف سفر اوکړو چې هلتـه د خپل قوم د ظلمونو په خلاف د بنی ثقیف څخه مددحاصل کړې شي، دمحمد بن اسحاق روایت دې چې کله نبی کریم ﷺ طائف ته اورسیدو نو د ثقیف قبیلې د درې رونړو خواته ورغلو چې دعمیر خامن وو. ددوی نومونه عبد یا لیل ، سعود او حبیب وو. ددوئي په کور کښې یوه قریشې ښځه وه . نبی کریم ﷺ دغې تولو تـه د اسلام بلنه ورکړه . او دخپل قوم دظلمونو په ذکر کولو سره ئې ترې امداد اوغوښتو . هغه درې واړه رونړو ورتـه ډیر سخت جواب ورکړو او ورسره ئې بله هیڅ خبر اونه کړه .

نبی کریم ﷺ چې ددوئ نه هم نا امیده شو حالانکه دوئ په قوم کښې شریفان ګڼړلې شو نو ورتـه ئې اوفرمائیل چې مدد مې نه کوئی نو کم ناکم زما دلتـه په راتلو باندې زما قوم مه

[1] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۷۹]
[2] ) صحیح البخاري کتاب الأذان ،باب الجهر بقراءة صلاة الفجر [ج:۱ص:۱۰۶] و صحیح مسلم کتاب الصلاة ، باب الجهر بالقراءة فی الصبح و القراءة علی الجن [ج:۱ص:۱۸٤]

خبروئی. مطلب ئې دا وو چې زما قوم به ما نور هم تنګوی. خو دغې خلقو دا خبره او نه منله او دخپلې قبیلې بې وقوف خلق او غلامان ئې ورپسې کړل چې کنځل ورته کوی. او ورپسې شور جوړ کړی. په دې طریقه ورسره نور خلق هم ملګری شو. او نبی کریم ﷺ ئې په مخه واخستلو. ددغې ورانکارو نه دځان خلاصولو په غرض ئې دانګورو یو باغ کښې پناه واخسته. اودا باغ د عتبه، شیبه دوؤ رونړو وو. په هغه باغ کښې ئې پناه واخسته. دغه وخت په دې باغ کښې هغه دواړه رونړه موجود وو. هغه وخت دغه شریرانو خلقو حضورپاک پریخودو او لاړل. او نبی کریم ﷺ د انګورو دباغ په سورې کښې کیناستو. دې دواړو رونړو نبی پاک ﷺ ته کتل اودائی هم کتلې وو چې دهغوی ﷺ د قوم بې وقوفانو په لاس حضورپاک ته کوم تکلیف او سختې اورسیدلې. هم په دې منیځ کښې هغه قریشی ښځه هم رسول الله ﷺ سره ملاؤ شوه چه د دغه ظالمانو په کور کښې وه. حضورپاک هغې ته شکایت اوکړو چې ستا دسخرګنتی خلقو مونږ سره څه معامله اوکړه.
کله چې دغلته د نبی کریم ﷺ ساه په ځائې شوه نو الله ﷻ نه ئې دعا غوښتل شروع کړل. چې ډیر عجیبه الفاظ ئې دی او په بل هیڅ موقعه ترې داسې دعا کول نه دی منقول، هغه دعا دا ده: [اَللّٰهُمَّ اِلَيْكَ اَشْكُوْا ضُعْفَ قُوَّتِيْ وَقِلَّةَ حِيْلَتِيْ وَهَوَانِيْ عَلَى النَّاسِ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ وَاَنْتَ رَبُّ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ فَاَنْتَ رَبِّيْ اِلٰى مَنْ تَكِلُنِيْ اِلٰى بَعِيْدٍ يَّتَجَهَّمُنِيْ اَوْاِلٰى عَدُوٍّ مَّلَّكْتَهٗ اَمْرِيْ اِنْ لَّمْ تَكُنْ سَاخِطًا عَلَيَّ فَلَا اُبَالِيْ وَلٰكِنَّ عَافِيَتَكَ هِيَ اَوْسَعُ لِيْ. اَعُوْذُ بِنُوْرِ وَجْهِكَ الَّذِيْ اَشْرَقَتْ لَهُ الظُّلُمَاتُ وَصَلُحَ عَلَيْهِ اَمْرُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ مِنْ اَنْ تُنْزِلَ بِيْ غَضَبَكَ لَكَ الْعُتْبٰى حَتّٰى تَرْضٰى وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِكَ [مظهري باختصار] ([1]).
ائې الله ﷻ! زه تاته شکایت کوم د خپل طاقت او کمزورتیا اوکموالی او دخپل تدبیر د ناکام کیدو او د خلقو په نظر کښې د خپل سپکاوی او بې عزتئ او ته خو په ټولو رحم کوونکو کښې زیات رحم کوونکې ئې او ته دکمزورو پالوونکې ئې هم ته زما رب ئې، ته مې چاته سپارې آیا یو پردی کس ته چې راباندې حمله اوکړی اویاداسې دښمن ته چې هغه لره تا زما دمعاملې مالك جوړکړې دې [چې څه غواړی کوی] که ته خما نه خفه نه ئې نو زما ددې ټولوڅیزونو هم پرواه نشته دې. خو ستا عافیت ماله زیات غوره دې. زه ستا د ذات مبارك د نور پناه غواړم چې ورسره ټولې تیرې روښانه کیږی. او د هغې په بنا ددنیا اوآخرت ټول کارونه ورسره سمیږی ددې خبرې نه چه په ما باندې خپل غضب نازل کړې، زمونږ کارهم دا دې چې ستا په راضی کولو او پخلا کولو کښې اخته یو تر څو چې ته راضی نه شې او مونږ خو د څه خرابئ نه بچ کیدې نشو. نه څه ښیګړې حاصلولې شو ستا د مدد نه بغیر.
کله چې د ربیعه دواړو ځامنو عتبه او شیبه دا حال اولیدو نو دهغوئ په زړونو کښې رحم راغلو، خپل غلام عداس نومې نصرانی ته ئې اووئیل چې د انګورو یوه غنچه په پلیټ کښې ددغې سړی مخې ته کیږده چې وې خوری. هغوئ ددې خوراک شروع کولو نو اول ئې بسم الله اووئیله. عداس اووئیل چې والله بسم الله الرحمن الرحیم خو ددې ځایونو خلق نه وائی. بیا رسول الله ﷺ هغه نه تپوس اوکړو چې عداس! ته دکوم ځائې اوسیدونکې یئ؟ هغه اووئیل چې نصرانی یم او د نینوا اوسیدونکې یم، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ښه ده، نو ته دالله

[1] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۸۰] و مجمع الزوائد باب خروج النبي ﷺ إلى طائف وعرضه نفسه على القبائل رقم الحدیث:[۹۸۵۱] و کنز العمال رقم الحدیث:[۵۱۲۰]

ﷺ دنیک بنده یونس بن متی عليه السلام د علاقې اوسیدونکې یې ؟ هغه اووئیل چې تاسو یونس بن متی عليه السلام څنګه پیژنئی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې هغه زما رور دې . ځکه چې هغوئ عليه السلام هم د الله ﷻ پیغمبر وو او زه هم د الله ﷻ پیغمبر یم .
ددې په آوریدو عداس دهغوئ رضي الله عنه په پښو پریوتو د نبی کریم ﷺ سر مبارک او لاس او پښې مبارکې ئې ښکل کړې ، عتبه اوشیبه دا ټول هر څۀ کتل ، یو رور بل ته اووئیل چې دۀ خو زمونږ غلام خراب کړو . عداس چې خپلو مالکانو ته واپس راغلو نو عداس ته ئې اووئیل چې په تاڅه اوشو چې ددغې سړی لاسونه پښې مبارکې دې ښکل کړې ؟ هغه ورته اووئیل چې زما سردارانو ! دې وخت کښې په مخ د زمکې باندې د نبی کریم ﷺ نه زیات غوره بل څوک نشته ، نبی کریم ﷺ ماته یوداسې خبره اوخودله چې د پیغمبر نه سوائې بل څوک نشی خودلې . هغوئ ورته اووئیل چې کم بخته ! هسې نه چې داسړې دې خپل مذهب نه واړوی . ولې چې ستا دین هر حال کښې د نبی کریم ﷺ ددین نه زیات غوره دې .
دې نه پس نبی کریم ﷺ طائف نه مکې مکرمې ته واپس راغلو . ځکه چې د ثقیف د هر خیر نه ناامیده شو په واپسئ باندې نبی کریم ﷺ په نخله مقام باندې پړاؤ اوکړو . په آخری حصه دَ شپه کښې ئې چې تهجد کول د نصیبین ملک دغه پیریان هم دغلته وررسیدلی وو . هغوئ د قرآن پاک په آوریدو پرې ایمان راوړو او خپل قوم ته په واپس تلو ئې واقعه ورته اوخودله چې بیان ئې الله ﷻ په دې آیتونو کښې نازل کړو [ مظهری ] [1] .

**د یو صحابي پیري واقعه** :: ابن جوزی په کتاب الصفوه کښې په خپل سندسره د سهل بن عبدالله نه نقل کړل چې هغه په یو مقام باندې یو بوډا پیرې اولیدو چې بیت الله شریف ته ئې مونځ کولو او د ورئی جبه ئې اغوستې وه چې ورسره ئې ډیر خوند کولو سهل رحمه الله فرمائی چې د سلام ګرځولو نه پس هغه ته مې سلام اوکړو ،
او هغه دسلام جواب راکولوسره اوخودل چې دا جبه تاته ډیر خوند درکوی . دا د اوؤ سوؤ کالونه اغوندم . په دې جبه کښې مې عیسی عليه السلام سره ملاقات کړې دې ، دغسې مې محمد ﷺ سره هم ملاقات کړې دې . او زۀ دهغې پیریانو څخنې یم چې د کومو باره کښې چې سورۀ جن نازل شوې دې . [ مظهری ] [2] .
او دحدیث پاک په روایتونو کښې چې لیلة الجن واقعه بیان شوې ده په کومه کښې چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هم نبی کریم ﷺ سره وو . په هغې کښې نبی کریم ﷺ قصداً دپیریانو تبلیغ دپاره دمکې مکرمې نزدې ځنګل ته تشریف اوړې وو او قرآن آوړول ئې ورته منقول دی . هغه په ظاهره ددې نه پس قیصه ده یعنی د سورة جن ددې قیصې نه پس ددې نه علاوه ده .
او علامه خفاجی رحمه الله اوفرمائیل چې معتبرو احادیثو نه ثابتیږی چې د پیریانو وفدونه شپږ ځله د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوی دی ، ځکه دې دواړو خبرو کښې څۀ تعارض نشته ، چې د سورة جن په واقعه کښې نبی کریم ﷺ ته دپیریانو دراتلو او د هغوئ دقرآن پاک د آوریدو خبر هم نه وو ، صرف د وحی په ذریعه نبی کریم ﷺ ته دا معلومه شوه او دا

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٨١] و تفسير القرطبي [ ج:١٦ص:٢١١ ، ٢١٢]
[2] ) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٨١]

چې ده هغه واقعه ده چې د طائف نه په واپسئ نخله مقام کښې راپیښه شوه. او نورو روایتونو نه چې معلومیږي چې نبی کریم ﷺ پیریانو ته د تبلیغ کولو د پاره دمکې مکرمې یو نزدې ځنګل ته تلی وو چې پیریانو ته د اسلام بلنه ورکړې او ورته قرآن پاک واورووی نو دا دهغې نه روستو راپیښه شویده . [ مظهری ] (۱).

[اَنَّهٗ تَعٰلٰی جَدُّ رَبِّنَا] دجد معنی شان ده چې الله ﷻ دپاره استعمالولې شی دلته جد سره د ضمیر په ځائې ربنا راوړو چې دالله ﷻ دشان په لوړ والی دلیل جوړ شی ، ولې کوم ذات د ټول مخلوق پروردګار دې ، نو ښکاره خبره ده چې دهغه شان دټول هر څه نه زیات پورته دې.

دلته د [وَاَنَّهٗ] په عطف اوترکیب نحوی کښې د مفسرینو کلام ډیر اوږد دې عوامو ته ددې ضرورت نشته .

[وَاَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ۙ وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۙ] د شطط معنی د عقل نه لرې خبره ده.او زورظلم ده،مراد دادې چې ایمان راوړونکو پیریانو تراوسه پورې په کفر او شرک کښې د اخته پاتې کیدو دا عذر بیان کړو چې زمونږ دقوم بې وقوفه خلقو دالله ﷻ په شان کښې دا بې بنیاده خبرې کولې او زمونږ داخیال هم نه وه چه انسان یا پیرې به الله ﷻ ته د دروغو خبرو نسبت اوکړی .خو تر ننه پورې مونږ ددغې بې وقوفه خلقو په خبرو کښې راغللو اوترننه پورې په کفراوشرک کښې اخته پاتې شو اوس دقرآن په آؤریدو راته حقیقت ښکاره شو.

[وَاَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ۙ] دې آیت مبارک کښې پیریانو مؤمنانو دا بیان کړې دې چې دجاهلیت دخلقو به کله په یو ځنګل کښې پړاؤ شو نو ددغې ځنګل دپیریانو پناه به ئې غوښتله . په دې سره پیریانو دا اوګڼړله چې ګنی دوئ د انسانانو نه هم زیات غوره دی چې هغوئ زمونږ پناه اخستل غواړی ، په دې وجه د هغوئ یعنی دپیریانو په ګمراهئ کښې زیاتوالې اوشو.

**د رافع بن عمیر ﷺ اسلام د پیریانو په سبب** :: تفسیر مظهری کښې راغلی دی چې هواتف الجن کښې په سند سره د سعید بن جبیر ﷺ نه دا واقعه نقل شوې ده چې رافع بن عمیر ﷺ یو صحابی ﷺ دخپل اسلام راوړلو دا واقعه خودلې ده . هغوئ ﷺ وائی چې یو شپه مې شګلنه علاقه کښې سفر کولو ناګاهانه راباندې دخوب غلبه اوشوه چې دخپلې اوښې نه راښکته شوم ، دَ اودهٔ کیدو نه وړاندې مې د خپل قوم دعادت په جوړ دا الفاظ اووئیل چې [انی اعوذ بعظیم هذا الوادي من الجن ] یعنی زه ددې ځنګل دسردار پیری پناه اخلم. په خوب کښې مې اولیدل چې یو سړې خپله وسله زما د اوښې په سینه ایخودل غواړی په ویره راپاسیدم اخوا دیخوا مې اوکتل ، څوک مې اونه لیدل .زړه کښې مې اووئیل چې دا شیطانی خیال دې ، اصلی خوب نه دې چې بیا کلک اودهٔ شوم نو هم هغسې خوب مې اولیدو ، بیا زه راپاسیدم دخپلې اوښې خواؤ شا مې هیڅوک اونه لیدل .خوا وښه مې تو له رپیږی . اومې لیدل چې د یو ځوان په لاس کښې نیزه یا بل څه وسله ده . دا هم هغه سړې وو چې په خپلې اوښې مې په حملې کولو لیدلې وو خو بل بود دا سړې مې ورسره اولیدو چې ددغه سړی لاس ئې نیولې دې اوپه اوښه باندې د ګذار کولونه ئې ایساروی . پدې دوران کښې درې ځنګلی خرونه رامخکښې شو. نو بود دا

---

(۱) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۸۲]

داغي څوان ته اووئيل چې په دې درې واړو کښې کوم يو ته خوښوې هغه واخله اوددې سرې اوښه پريږده. هغه يو ځنګلي خرئي ځان سره کړو او لاړو. بيا دغې بوډا ماته اوکتل او وې وئيل چې أئې بيوقوفه په يو ځنګل کښې د پړاؤ په وخت کله چې ته د دغه ځائې پيريانو اوشيطانانونه ويره کوې نو داسې وايه [ اعوذ بالله رب محمد من هول هذا الوادي] زه د محمد ﷺ د رب پناه غواړم ددې ځنګل د ويرې اوشر نه. اود چا پيرې پناه مه غواړه ولې چې هغه زمانه لاړه چې انسانانو به د پيريانو پناه غوښته، ما تپوس اوکړو چې هغه څوک دې؟ هغه اووئيل چې هغه نبي عربي دې، نه مشرقي دې، نه مغربي دې، د پير په ورځ پيغمبر شوې دې. ما تپوس اوکړو چې چرته اوسيږي .؟ هغه راته اووئيل چې يثرب کښې اوسيږي چې د کهجورو علاقه ده. ما په صبا کيدو سره د مدينې منورې لار اونيوله او سورلئ مې ډيره تيزه کړه تر دې چې مدينې منورې ته اورسيدم کله چې نبي کريم ﷺ اوليدم نو زما ټوله
قيصه ئې راته واؤروله حالانکه ما ورته هيڅ نه وو وئيلي اوبيا ئې راته د اسلام دعوت راکړو زه مسلمان شوم، سعيد بن جبير رضي الله عنه به ددې واقعې په نقل کولو سره فرمائيل چې زمونږ په نزد ددې معاملې باره کښې د قرآن پاک داآيت مبارک نازل شوې دې:
[وَأَنَّهُ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ] (١)
[وَأَنَّا لَمَسْنَا السَّمَاءَ فَوَجَدْنَاهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيدًا وَشُهُبًا] په عربي کښې څنګه چې سماء آسمان ته وئيلې شي دغسې وريځې ته هم وئيلې شي، نو دلته په ظاهره دسماء نه مراد هم دغه وريځ ده.

**پيريان به د اسمان خبرونو آؤريدو دپاره صرف وريځو پورې تلل آسمان پورې نه ::** آسماني خبرونو آؤريدو دپاره به پيريان او شيطانان صرف وريځ پورې تلل نو په دې باره کښې دعائشه صديقه رضي الله عنها نه يو روايت بخاري داسې نقل کړې دې چې:
[ قالت سمعت رسول الله ﷺ يقول ان الملائكة تنزل في العنان وهو السحاب فتذكر الامر الذي قضى في السماء فتسترق الشياطين السمع فتسمعه فتوحيه الى الكهان فيكذبون معها مائة كذبة من عند انفسهم [مظهري] (٢)
عائشه صديقه رضي الله عنها اوفرمائيل چې ما رسول الله ﷺ نه آؤريدلى دى چې فرښتې په عنان سماء کښې ورښکته کيږي چې معنى ئې وريځ ده هلته دهغې فيصلو يادګيرنه کوي چې الله ﷻ په آسمان کښې جاري کړې دي. دغه ځائې نه شيطان دغه خبرونه غلا کوي او جوګيانو ته ئې راوړي. او پدې کښې د خپل طرفنه سل دروغ يو ځائې کولو سره ئې ورته ښائي.
او هم صحيح بخاري کښې د ابي هريره رضي الله عنه د روايت او مسلم کښې د ابن عباس رضي الله عنه د روايت نه دا معلوميږي چې دا واقعه په اصل آسمانونو کښې راپيښيږي کله چې الله ﷻ څه حکم په آسمان کښې جاري کړي نو ټولې فرښتې د فرمانبردارئ په غرض خپل وزرونه خوزوي او کله چې کلام ختم شي نو خپل مينځ کښې يادګيرنه کوي چې ستاسو رب څه اوفرمائيل؟ دغه يادګيرنه غلا کړ شيطانان آؤري او د ځانه ورسره نور دروغ هم يوځائې کړي او جوګيانو کاهنانو ته ور رسوي (٣).

(١) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٨٥]
(٢) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٨٢] وصحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب ذكر الملائكة [ج:١ص:٤٥٦]
(٣) صحيح البخاري كتاب التفسير،تفسيرسورة الحجر باب قول : الا من استرق السمع.....الخ [ج:٢ص:٦٨٢]

دا مضمون د عائشه صدیقه رضی الله عنها بیان کړی حدیث سره بې سمونه نه دی ځکه چې ددې نه دانه ثابتیږی چې شیطانان د آسمانونو نه داخبرونه غلا کوی. بلکه دا کیدیشی چې رومبی داخبرونه درجه په درجه په آسمانونو کښې د فرښتو تر مینځه خوریږی ، بیا فرښتې ، عنان سماء یعنی وریځې پورې راځي او ددې یادګیرنه کوی او دغه ځائي نه ئې شیطانان غلا کوی ځنګه چې د عائشه صدیقه رضی الله عنها په حدیث پاک کښې دی. [ مظهری ][1].

بهر حال د نبی کریم ﷺ دپیغمبر کیدو نه وړاندې دا سلسله جاری وه چې شیطانانو به آسمانی خبرونه غلا کول او جوګیانو کاهنانو ته به ئې رارسول. شیطانان به وریځو ته اورسیدل فرښتو نه به ئې آوریدل. خوکله چې رسول الله پیغمبر شو نو د هغوی ﷺ د آسمانی وحی دحفاظت دپاره دغه سلسله بنده شوه چې کله یو شیطان د خبرونو آوریدو دپاره پورته ځی نو شهاب ثاقب د یوې انګارې په ویشتو سره هغه ددې نه ایسارولې شی. نو ددې نوې راپیښې په وجه شیطانانو اوپیریانو سره فکر شو او د حال دتحقیق دپاره ئې ددنیا مشرق اومغرب ته وفدونه اولیږل ،بیا په مقام نخله کښې د پیریانو یوې ډلې د رسوالله ﷺ نه قرآن کریم واوریدو او ایمان ئې راوړو ځنګه چې په سورة جن کښې بیان شوې دې.

**شهاب ثاقب دهغوی ﷺ دپیغمبر کیدو نه وړاندې هم وو مګر د شیطانانو ایسارولوکار د هغوی د زمانې نه شروع شو** :: دلته دا شبه کیږی چې شهاب ثاقب ستوری کوم ته چې په عرف کښې ستوری ماتیدل وئیلی شي اوعربی کښې انقضاض الکوکب وائی دا خو پخوا راسې په آسمان کښې جاری وو او دې آیت نه معلومیږی چې دا د نبوت د زمانې نه تخصیص دې؟ جواب دادې چې د شهاب ثاقب وجود خود مخکښې نه وو خواه ددې حقیقت هغه وی چې فلسفیان ئې بیانوی چې دزمکې د اور څه مادې فضا کښې پورته شی اوهلته لمبه شی ، یا دا وی چې د یو ستوری یا سیارې په ماتیدو ترې دا د اور ماده راوځی .بهر حال ددې موجودیدل اګر چې د پخوا راسې دی خو دا کار اخستل ترې د نبی کریم ﷺ دپیغمبر کیدو راسې شروع شو اودا هم ضروری نه ده چې هر یو ښکاره کیدونکی شهاب ثاقب نه دا کار اخستې شی، ددې پوره تفصیل دسورة حجر په تفسیر کښې تیر شوې دې:

[وَاَنَّا لَا نَدْرِیْٓ اَشَرٌّ اُرِیْدَ بِمَنْ فِی الْاَرْضِ اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا] یعنی د پیریانو اوشیطانانو دا ایسارول دسزا په ډول هم کیدشی اودا هم کیدیشی چې الله ﷻ دخلقو د هدایت سامان په دې شان کړې وی چې ددوی په حصارولو سره آسمانی وحی دخلل نه محفوظ کړې شی.

[فَمَنْ یُّؤْمِنْۢ بِرَبِّهٖ فَلَا یَخَافُ بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا] د بخس معنی دحق نه کم ورکولو اوکمولو معنی ورکوی. اود رهق معنی ذلت او رسوائی پرې راتلل دی ، مراد دادې چې څوک په الله ﷻ ایمان راوړی نه دهغه په جزا کښې څه کمې کولې شی او نه به آخرت کښې ذلیل او رسوا کولې شی.

[وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا] مساجد دمسجد جمع ده ، دلته ددې مشهور ه معنی جومات هم اخستې شوې ده. په دغې صورت کښې به ئې مطلب دا راوځی چې هر کله جوماتونه خالص دالله ﷻ دعبادت دپاره جوړ کړې شوی دی نو تاسو هلته بل څوک مدد دپاره مه بلئ. ځنګه چې یهود او نصاری په خپلو عبادت خانو کښې داسې شرکونه کوی ، حاصل ئې داشو چې

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۸۶]

جوماتونه د خرابو عقیدو او باطلو عملونو نه پاک لرئی.
او دا هم کیدیشی چې مساجد دمَسجَد بفتح الجیم جمع وی او مصدر میمی په معنی دَ سجده راځی. نو دَ آیت معنی به داشی چې ټولې سجدې صرف الله ﷻ دپاره خاص دی او څوک چې غیر الله نه مدد غواړی نو دا داسې ده لکه چې هغه ته سجده کوی. نو د غیرالله د سجدې نه ځان اوساتئ.
**مسئله**: په اجماع د امت سره غیر الله ته سجده کول حرام دی او د څینې عالمانو په نزد کفر دې.
[قُلْ اِنْ اَدْرِیْٓ اَقَرِیْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ اَمْ یَجْعَلُ لَهٗ رَبِّیْٓ اَمَدًا۞ عٰلِمُ الْغَیْبِ] د دې آیتونو مبارکو څینې په رومبی آیت کښې خو الله ﷻ خپل رسول الله ﷺ ته دا حکم اوفرمائیلو چې تاسو هغې منکرانو ته جواب ورکړئی کوم چې تاسو نه دقیامت تاکلې نیټې باره کښې تپوس کوی. اوپه دې کلک ولاړ وی دا اوفرمائې چې دقیامت راتلل او هلته سزا او جزا کیدل خو یقینی دی لیکن ددې واقع کیدو صحیح نیټه الله ﷻ هیچاته نه ده خودلې. څکه ما ته پته نشته چې دقیامت ورځ نزدې شوېده یا زما رب دې دپاره څه لرې نیټه به مقرره وی. په دویم آیت مبارک کښې ئی ددې دلیل ئې ارشاد اوفرمائیلو چې:
[عٰلِمُ الْغَیْبِ فَلَا یُظْهِرُ عَلٰی غَیْبِهٖٓ اَحَدًا۞] یعنی د قیامت دخاص نیټې نه زه څکه ناخبره یم چې علم غیب نه لرم. بلکه داخصوصی صفت خالص د الله رب العالمین دې، څکه هغه په خپل غیب باندې چا لره هم غالب او قادر نه جوړوی. دلته په عالم الغیب کښې د الغیب الف لام دجنس د استغراق دپاره دې. [روح کښې درضی نه ](۱) یعنی عالم دهر فرد دَ غیب او دَجنس غیب اوپه علی غیبه کښې دغیب اضافت الله ﷻ په کولو سره هم ددغې استغراق او جامعیت ظاهرول مقصود دی. یعنی د هر هر فرد او جنس غیب علم چې د الله ﷻ رب العالمین مخصوص صفت دې، په هغې باندې الله ﷻ چالره قادر او غالب نه جوړوی. پدې شان سره چې کوم غیب غواړی هغه معلوم کړی.
مقصود ددې کلام نه علم غیب کلی دې، مطلب دادې چې داسې علم سوا د الله ﷻ نه بل هیچا ته نشته چې دهغې یو ذره هم ترې پټه نه وی، لیکن ددې نه چا بې وقوفه ته دا شبه کیدې شوه چې نبی کریم ﷺ ته د هیڅ غیب دَ څیز خبرنشته.نو بیا نبی کریم ﷺ څنګه شو څکه چې الله ﷻ خو خپل رسول ﷺ ته په زرګونو دغیب خبرونه دوحی په ذریعه رالیږی. او چاته چې وحی نه راځی هغه رسول یا نبی نشی کیدې څکه وریسې آیت مبارک کښې ئی یو استثناء بیان کړه.
**علم غیب او غیبی خبرونو کښې فرق**: [اِلَّا مَنِ ارْتَضٰی مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ یَسْلُكُ مِنْۢ بَیْنِ یَدَیْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا۞] حاصل دَاستثناء هغې کم عقلئ دشبهې دا جواب دې چې دَعلم غیب کلی په نفی سره دَ هرغیب مطلقاً نفی مراد نه ده، بلکه دَ رسالت دَ منصب دَپاره په څومره اندازه باندې دَعلم غیب دَ خبرو اودَ غیب دَ څیزونو دَعلم یورسول ته ورکول ضروری دی هغه هغوی ته دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ وحی په ذریعه ورکولې شي او هغه په داسې محفوظ طریقه سره ورکولې شی کوم وخت چې په هغوی باندې دَ الله تعالی دَ طرف نه څه وحی نازلیږی نو دَهغې نه چاپیره دَ فرښتو څوکئی وی دې دَپاره چې شیطانان په هغې کښې څه مداخلت اونه کړې شی. په هغې کښې خو په لفظ

(۱) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ۲۱ ص:۳۶۱]

رسول سره دَ هغه غیب نوعیت متعین کړې شو دَ کوم علم چه رسول او نبی ته ورکولې شی. او هغه ښکاره خبره ده چې دَ شریعت علوم او ټول احکام اود غیب خبرونه په انداز ه دَ ضرورت دَ وخت. دي نه پس چه کوم علم غیب رسول او نبی ته ورکولې شی دَهغې نوعیت دَ وړاندې جملې سره داسې هم متعین کړو چه هغه دَ فرښتو په ذریعه سره لیګلې شی. اود وحی راوړونکې فرښتې نه چاپیره دَ نورو فرښتو څوکئی وی. په دې سره دا خبره واضحه شوه چه ددې استثناء نه دَ کوم علم غیب دَ نبی او رسول دَپاره اثبات دې هغه بعض او خاص علم غیب دې کوم ته چې د پیغمبرئی د منصب ضرورت وی.

دې نه معلومه شوه چې په اصطلاحی الفاظو کښې دا استثناء منقطع ده یعنی کوم کلی علم غیب چې اصل کلام کښې غیر الله نه نفی شوې وو په مستثنی کښې دهغې ثابتول نشته، بلکه دیو مخصوص علم غیب ثابتول دی چې په قرآن پاک کښې ځائې په ځائې د انباء الغیب په الفاظو سره تر تعبیرر کړې شوې دې ، لکه فرمائی چې : [تِلْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ ۚ](۱) یعنی ځینی ناواقف خلق د غیب او انباء الغیب ترمینځه فرق نه پیژنی، ځکه هغوئ پیغمبرانو ﷺ اوخصوصا خاتم الانبیاء ﷺ لره علم غیب کلی ثابتوی او هغوئ لره بیخی دالله ﷻ پشان داسې عالم الغیب بولی چې ګنی نبی کریم ﷺ دکائناتو د ذرې ذرې علم لری. خو دا ښکاره شرک دې او نبی کریم ﷺ ته د خدایئ درجه ورکول دی که چرته یو سړی خپل پټ راز خپل دوست ته اوښائی چې دنورو په علم کښې نه وی نو په دې سره په دنیا کښې هیڅوک دغې دوست ته ئې عالم الغیب نشې وئیلې. داشان پیغمرانو ﷺ ته په زرګونو دغیب څیزونه دوحی په ذریعه خودل هغوئ لره عالم الغیب نه جوړوی. ښه پرې ځان پوه کړئی.

کوم جاهل عوام چې په دې دواړو خبرو کښې فرق نه کوې دهغوئ په وړاندې کله چې دا اووئیلې شی چې نبی کریم ﷺ لره علم الغیب نیشته نو هغوئ ترې دا مطلب اخلی چې ګویا معاذالله هغوئ ﷺ د هیڅ غیب نه خبر نه دی. چې په دنیا کښې هیڅوک ددې قائل نه دی ولې چې په دې منلو سره درسالت نفی کیږی چې هیڅوک مسلمان ئې نشی کولې.

په آخرت دسورت کښې فرمائی چې : [وَأَحْصَىٰ كُلَّ شَيْءٍ عَدَدًا ۝] یعنی هم خاص د الله تعالی ذات دې چې دهغه په علم کښې د هر څیز شمیر دې. د ټولو غرونود هرې هرې ذرې ذرې شمیر هغه ته معلوم دې د ټولې دنیا دریابونو د څاڅکو شمیر هم هغه پاک ذات ته معلوم دې. په دې کښې بیا علم غیب کلی مخصوص کیدل ئې د الله ﷻ سره واضح کړل چې هسې نه دبیان شوې استثناء څه غلط فهمی راولاړه شی.

**مسئله** :: دعلم غیب معنی او ددې احکام د سورة نمل دآیت [قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ ۚ](۲) دلاندې په پوره تحقیق سره او تفصیل سره تیر شوی دی ، هلته دې اوکتلې شی ، والله اعلم.

تمت بحمدالله تعالی سورة الجن لیلة الجمعة ۱۰ رجب ۱۳۹۱هجری

---

(۱) ترجمه:- دا قصه د غیبو د خبرونو نه ده کومه چې مونږ د وحی په ذریعه تاته دررسوؤ.

(۲) ترجمه:- ته اووایه څومره مخلوقات چې په آسمانونو کښې او په زمکه کښې موجود دې چا ته هم د غیب د خبرې پته نشته سوا دالله تعالی نه.

| ركوع گاني | سورة المزمل مكية وهي عشرون اية وفيها ركوعان | اياتونه |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| (۲) | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | (۲۰) |

يٰۤاَيُّهَا الۡمُزَّمِّلُ ۙ﴿۱﴾ قُمِ الَّيۡلَ اِلَّا قَلِيۡلًا ۙ﴿۲﴾ نِّصۡفَهٗۤ اَوِ انۡقُصۡ مِنۡهُ قَلِيۡلًا ۙ﴿۳﴾

اي ځان نغښتونكيه [په ځادر كښي] | اودريږه دشپې | مگر لږ | نيمه شپه | ياكم كړه | ددې نه لږ |

اې ځان په ځادر كښې انغښتونكيه | اودريږه سوا د لږې شپې يعنې نيمه شپه يا ددې نه كم يا څه لږ زيات

اَوۡ زِدۡ عَلَيۡهِ وَرَتِّلِ الۡقُرۡاٰنَ تَرۡتِيۡلًا ؕ﴿۴﴾ اِنَّا سَنُلۡقِيۡ

يا زيات كړه | په دې باندې | او په قلاره وايه قرآن | په قلاره | بيشكه زر دې چې نازلوو به مونږ

اوقرآن ښه ښكاره وايه | ..................مونږ په تاباندې يو درووند كلام اچوو | يعنې تاته

عَلَيۡكَ قَوۡلًا ثَقِيۡلًا ﴿۵﴾ اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيۡلِ هِيَ اَشَدُّ

په تاباندې | كلام درون | بيشكه راپورته كيدل دشپې چې دى | دا ډير دفانيدې كار دې

يوه لويه ذمه وارې حواله كوو | ستا خو دورځې هم ډيره مشغولتيا ده | بيشكه دشپې راپاځيدل [نفس] په سختئ

وَّطۡاً وَّاَقۡوَمُ قِيۡلًا ؕ﴿۶﴾ اِنَّ لَكَ

دپاره دتابع كولو دنفس | او زيات قوى [مناسب وخت] دې | دپاره د لوستلو دقرآن | بيشكه تالره

سره پامال كوى | اوكومه خبره چې دې د خولې نه اوځي هغه درسته وځي | بيشكه چې ستا

فِي النَّهَارِ سَبۡحًا طَوِيۡلًا ؕ﴿۷﴾ وَاذۡكُرِ اسۡمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلۡ

په وختونو دورځ كښې | ناوزگارتيا ده | ډيره | او يادوه نوم | درب خپل | او را جدا شه دهر څه نه

خو د ورځې هم ډيره مشغولتيا ده | ............. اوته دخپل رب د نوم ذكر كوه | او هغه ته په

اِلَيۡهِ تَبۡتِيۡلًا ؕ﴿۸﴾ رَبُّ الۡمَشۡرِقِ وَالۡمَغۡرِبِ لَاۤ اِلٰهَ

| هغه ته | په پوره جدا كيدو سره | هغه رب دمشرق او مغرب دې | نشته لائق دعبادت

كامله توجه سره متوجه شه | چې د مشرق او مغرب رب دې | ............. د هغه نه سوا بل څوك

اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذۡهُ وَكِيۡلًا ﴿۹﴾ وَاصۡبِرۡ عَلٰى مَا

| مگر هم هغه دې | بس اونيسه هغه لره | وكيل [كارساز] | او صبر كوه | په هغه خبرو باندې

دعبادت لائق نشته | نو هم دې خپل كارساز اوگڼره | .........اوددوئ په ويناگانو

يَقُوۡلُوۡنَ وَاهۡجُرۡهُمۡ هَجۡرًا جَمِيۡلًا ﴿۱۰﴾ وَذَرۡنِيۡ

| چې وائي نې دا خلق | او جدا شه ددوئ نه | په جدا كيدو ښكلو سره | [او كار دفيصلې ته] پريږده ما

صبر كوه | اوپه ښه مناسبه طريقه ترې نه جدا | شه | او ما پريږده

وَالۡمُكَذِّبِيۡنَ اُولِي النَّعۡمَةِ وَمَهِّلۡهُمۡ قَلِيۡلًا ﴿۱۱﴾

| او دروغ گڼرونكي خلق | چې خاوندان دنعمت دي | او مهلت وركړه دوئ له | څه لږ وخت

اودا دروغ گڼرونكي د نعمتونو خاوندان پريږده | او دوئ ته لږ مهلت وركړه

إِنَّ لَدَيْنَآ أَنكَالًا وَجَحِيمًا ﴿١٢﴾ وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ

| بیشکه زمونږ سره | زنځیرونه دی | او دوزخ دي | او خوراك دي | انښتونکي [په مرئ کښې]

بیشکه مونږ سره خو بس زولنې او دوزخ دي |..........او په مرئ کښې انښتونکې خوراک دي

وَعَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣﴾ يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ

| او عذاب دردناك دي | په هغه ورځ | چې او خوزیږي به زمکه | او غرونه | او شي به غرونه

اودردناک عذاب دي | دا په هغه ورځ چې زمکه او غرونه به اوجړقیږي | او غرونه به

كَثِيبًا مَّهِيلًا ﴿١٤﴾ إِنَّآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَاهِدًا

| غونډئ دشګو | خواره واره | بیشکه رااولیږو مونږه | تاسو ته | یو رسول | چې ګواهي کونکې دي

د دوړې په شان الوزی | مونږ تاسو ته یورسول درلیږلي دي | ............. په تاسو

عَلَيْكُمْ كَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴿١٥﴾ فَعَصَىٰ

| په تاسو باندې | لکه څنګه چې لیږلي وو مونږه | فرعون ته | یو رسول | پس خبره اونه منله

موګواه کړې دي | لکه څنګه چې مو فرعون ته یو رسول لیږلي وو | ..........نو فرعون

فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ فَأَخَذْنَٰهُ أَخْذًا وَبِيلًا ﴿١٦﴾ فَكَيْفَ تَتَّقُونَ

| فرعون | درسول | نو رااونیوو مونږه هغه | په رانیولو سختو سره | پس څه رنګ به | بچ شئ تاسو

دهغه رسول ﷺ نافرمانی اوکړه | نو مونږ ډیرمضبوط راونیول | ..........تاسوبه دهغې ورځې

إِن كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَجْعَلُ الْوِلْدَٰنَ شِيبًا ﴿١٧﴾ السَّمَآءُ

| که خبره اونه منله تاسو | دهغه ورځې نه | چې جوړ به کړي | بچو لره | بوډاګان | آسمان به

[دمصیبت] نه څنګه خان بچ کړئ | چې بچې به [دویرې نه] بوډاګان کړي | ..........اوآسمان به پرې

مُنفَطِرٌ بِهِ ۚ كَانَ وَعْدُهُ مَفْعُولًا ﴿١٨﴾ إِنَّ هَٰذِهِ

| چودونکې وی | په سختئ دهغې سره | ده وعده دهغه | خامخا کیدونکې | بیشکه دا |

راوشلیږی | ..........دالله ﷻ وعده پوره کیدونکې ده | دا [قران پاک] یو

تَذْكِرَةٌ ۖ فَمَن شَآءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا ﴿١٩﴾ إِنَّ رَبَّكَ

یو نصیحت دي | پس څوك | چې غواړي | او دي نیسي | رب خپل ته | لاره | بیشکه چې رب ستا |

نصیحت دي | نو چې د چا زړه غواړي | نو دخپل رب په لار دي روان شي | ستارب ته ښه

يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن ثُلُثَيِ اللَّيْلِ وَنِصْفَهُ

پوهیږي | چې بیشکه ته | ودریږې | نزدې | په دریو کښې دوو حصو ته دشپې | او نیمه شپه |

معلومه ده | چې ته او ستا بعضې ملګرې د شپې په دریو کښې تر دوو برخو او کله ترنیمې شپې

وَثُلُثَهُ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ الَّذِينَ مَعَكَ ۚ وَاللَّهُ يُقَدِّرُ اللَّيْلَ

او دریمه دشپې | او یوه ډله | دهغه کسانو نه | چې ستاسو سره دی | او الله اندازه کوی | شپه |

اوکله تر دریمې حصې ولاړ یئ | ..........اود شپې ورځې اندازه یوازې

وَالنَّهَارَ ؕ عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ فَتَابَ

او ورځ | هغه ته معلومه ده | چې هرګز تاسو ټيك شمارلې نشئ هغه | پس توجه درحمت ني اوکړه |

الله کوی|هغه ته معلومه ده |چې تاسو دا قيام الليل ترسره کولې نشئ|نو دخپل رحمت توجه ئي درته

عَلَيْكُمْ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ؕ عَلِمَ اَنْ سَيَكُوْنُ

په تاسو باندې | پس اولولئ | هغه چې آسان وی | دقرآن نه | هغه ته معلومه ده | چې وی به |

اوکړه| نو څومره قرآن چې په آسانتيا سره لوستې شئ| نو هومره لولئ | هغه ته داهم معلومه ده | چې

مِنْكُمْ مَّرْضٰى ۙ وَاٰخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ فِى الْاَرْضِ يَبْتَغُوْنَ

خيني له تاسو نه | مريضان | او خيني نور خلق به | سفر کوی | په زمکه کښې | چې تلاش کوی به |

په تاسو کښې به څوک ناجوړه وی | او څوک به په زمکه کښې په سفر وتلی وی |

مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ ۙ وَاٰخَرُوْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ فَاقْرَءُوْا

دفضل [رزق] دالله نه | او خيني نور خلق به | جنګ کوی | په لاره دالله کښې | پس لولئ |

چې دالله ﷻ فضل به تلاش کوی| اوبعضې خلق به دالله ﷻ په لاره کښې جهاد کوی|نو تاسو چې څومره

مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۙ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ

هغه چې آسان وی | دهغه قرآن نه | او قائيموئ مونځ | او ورکوئ زکات | او قرض ورکوئ الله ته |

په آسانئ لوستلې شئ |هومره لولئ |او دمونځ پابندی کوئ |اوزکوة ورکوئ | اودالله ﷻ په لاره کښې

قَرْضًا حَسَنًا ؕ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ

قرض حسن |اوهغه چې وړاند ليږئ تاسو|دپاره دنفسونو خپلو | دنيکئ نه | تاسو به بيا مومئ هغه

په خوشحالئ خرڅ کوئ |اوکومه نيکی چې تاسو دځان نه وړاندې اوليږله |نو الله ﷻ ته درسيدلو سره به د

عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرًا وَّاَعْظَمَ اَجْرًا ؕ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

| دالله سره | دا بهتره ده | او زياته لويه ده | په لحاظ داجر سره|او ببښنه غواړئ دالله نه | بيشکه الله

هغې نه ښه پيدا کړئ | چه ښه به وی او زياته به وی | اودالله ﷻ نه بخښنه غواړئ | بيشکه الله تعالی

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۲۰

| بخښونکې | رحم کونکې دې |

ډير بښونکې رحم کوونکې دې

## آسان ترجمه قرآن

اے څادر اغوستونکيه د شپې د لږې حصې نه سوا باقی ټوله شپه کښې (د عبادت دپاره) اودريږه د شپې نيمه حصه. يا د نيمې نه لږ کم کړه. يا د هغې نه څه زياتې کړه. او د قرآن مجيد تلاوت په اطمينان سره صفا صفا کوه. مونږ په تا باندې يو درونډ کلام نازلولکې يو ـــ بے شکه د شپې په وخت کښې پاڅيدل داسې عمل دې، چه په دې سره نفس ښه قابو کيږی، او خبره هم په ښه طريقې سره وئيلې کيږی. د

ورځې په وخت کښې ستا دپاره اوږدهٔ اوږدهٔ مصروفيات دي او دخپل پروردګار د نوم ذکر کوه، او ځان جدا کړه هغه طرف ته، د هرڅه نه ځان جدا کول. هغه د مشرق او مغرب مالک دې، د هغه نه سوا هيڅوک معبود نشته، نو هغه لره کار جوړونکې جوړ کړه. او کومې خبرې چه دا (کافران) خلق وائي، په هغې باندې صبر کوه، او ددوی نه په خائسته طريقې سره جدا شه او تا دروغژن ګنړونکي چه د عيش او عشرت مالکان جوړ شوې دی، د هغوی معامله په ماپاندې پريږده، او دوی ته لږې ورځې نور هم مهلت ورکړه. يقين اوکړه، چه مونږ سره ډيرې سختې بيړئ دی، او لمبو والا اور دې، او په مرئ کښې انختونکې خوراک دې، او درد ورکونکې عذاب دې. په هغه ورځ چه کله زمکه او غرونه اولړزيږي، او هغې به غرونه ډيرئ د شيندلو شوؤ شګو. (اے دروغ ګنړونکو) يقين اوکړئ، چه مونږ تاسو ته په تاسو باندې ګواه جوړيدونکې يو رسول داسې راليږلې دې، څرنګه چه مونږ فرعون ته يو رسول ليږلې وو. بيا فرعون د رسول خبره اونه منله، نو مونږهغه راؤنيولوپه داسې نيولوسره چه د هغه دپاره وبال وو که تاسو هم نه منئ، نو بيا به د داسې ورځې نه څرنګه بچ کيږئ، چه ماشومان به بوډاګان کړي. (او) چه دهغې د وجې نه به آسمان اوچوی، يقيناً د الله تعالیٰ وعده پوره کيدونکې ده. دا د نصيحت خبره ده، اوس چه څوک غواړي، نو خپل پروردګار طرف ته دې لار اختيار کړي. (اے پيغمبره!) ستا پروردګار پوهيږي، چه ته اودريږې (د تهجد د مانځه دپاره) ګمر د دوؤ حصو د شپې نه، او کله نيمه حصه او کله دريمه حصه، او ستا د ملګرو نه هم يوه ډله (هم داسې کوی) او د شپې او د ورځې پوره پوره اندازه الله تعالیٰ مقرر فرمائي، هغه ته معلومه ده، چه تاسو هيچرې نشئ پوره کولې دا اندازه، نو په تاسو باندې ئې آسانتيا راوستله اوس تاسو هغومره قرآن لولئ څومره چه درته آسان وی الله تعالیٰ پوهه دې، چه په تاسو کښې به څه خلق ناجوړه وی او نور کسان به داسې وی، چه د الله تعالیٰ فضل تلاش کولو دپاره به په زمکه کښې سفر کوی او څه کسان به داسې وی چه د الله تعالیٰ په لاره کښې به جنګ کوی، لهٰذا تاسو په دې (قرآن) کښې هغومره لولئ، څومره چه درته آسان وی، او مونځ قائم کړئ او زکوٰة ادا کړئ، او الله تعالیٰ ته قرض ورکړئ، ښه قرض، او هغه چه تاسو د خپلو ځانونو دپاره کوم نيک عملونه مخکښې ليږلې دی، نو هغې لره به د الله تعالیٰ سره داسې اوموم‌ئ چه هغه به په بهتر حالت کښې اوډلوئې زبردست ثواب په شکل کښې موجود وی، او د الله تعالیٰ نه بخنه غواړئ، يقين اوکړئ، چه الله تعالیٰ ډير بخونکې، ډير مهربان دې.

## خلاصه تفسير

﴿يٰاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ﴾ اے په کپړو کښې نغښتې شوييه وجه په دې عنوان سره دخطاب کولو داده چه په ابتداء دنبوت کښې قريش په دارالنده کښې جمع شول ددوې ﷺ په باره کښې ئې مشوره وکړه چه ددوې دحالت مناسب څهٔ لقب تجويز کول پکاردې چه په دې ټول متفق شي چاووئيل چه کاهن دې نو دې لره نور وردکړو چاووئيل چه مجنون دې نو داهم تولوردکړو بيائي ساحر ووئيل نوخنودې لره هم ردکړو ليکن بيائې داووئيل چه ساحر خکه دی چه دوست د دوست نه جدا کوی دوی ﷺ ته داخبر ورسيدو غمژن شو اوپه دغه غم کښې ئې ځان په کپړوکښې ونغښتو اکثربه سوچ اورنج کښې بنده داسې کوی په دې وجه ددوی ﷺ دخوشحالولو اودلطف داظهار کولو دپاره ئې په دې عنوان سره خطاب وفرمائيلو لکه چه په حديث کښې دی چه

دوی ﷺ حضرت علی ﷜ ته ابوتراب فرمائیلی وو(۱)غرض دوی ﷺ ته خطاب دې چه ددې خبروغم مۀ کوه بلکه دالله تعالی طرف ته په مداومت سره نوره زیاته توجه ساته په دې شان سره چه ﴿قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا﴾ [دشپې ] په مونځ کښې [اودریږه مګرلږ شان ﴿نِّصْفَهٗٓ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا﴾ یعنی نیمه شپه ] چه په دې کښې ارام کوه [یاددغې نیمې نه څۀ قدرې کموه ] یعنی دنیمې شپې نه څۀ کم قیام کوه اودنیمې نه زیات ارام کوه اوددې نیمې نه دکمې مصداق دریمه حصه ده په قرینه ددې قول دَ الله تعالی چه وړیسې راځی یعنی وَثُلُثَهٗ ﴿اَوْ زِدْ عَلَيْهِ﴾ [یادنیمی نه څه زیاتوه] یعنی دنیمی نه زیات قیام کوه اودنیمی نه کم ارام کوه اوددې نیمی نه زیات مصداق دوه ثلثه ته نزدې دې په قرینه ددې قول دالله تعالی چه وړیسې راځی یعنی ﴿اَدْنٰى مِنْ ثُلُثَيِ الَّيْلِ﴾ غرض دشپې قیام خو په امرو جوبی سره فرض شو مګر دقیام دوخت په مقدار کښې ددرې صورتونواختیار دې نیمه شپه په درې حصوکښې دوه حصې شپه دریمه حصه شپه [او] په دې قیام لیل کښې ﴿وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا﴾ [قرآن ښۀ صفاصفا لوله] چه یویو حرف جداجداوې اوداحکم په غیر دمونځ کښې هم دې اوتخصیص دمقام په وجه دې وړاندې دقیام اللیل دحکم دعلت اومصلحت بیان دې چه ﴿اِنَّا سَنُلْقِيْ عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا﴾ [مونږ په تایودروند کلام غورځوونکی یو] مراد قرآن مجید دې کوم چه به دنزول په وخت کښې هم ددوی حالت متغیرکولو لکه چه په احادیثو کښې دی چه یوځل دوی ﷺ خپل ورون دزیدبن ثابت﷜ په ورون باندایښودې وو دغه وخت وحی نازله شوه نودزیدبن ثابت﷜ ورون شلیدو ته قریب شواوکله چه به دوی ﷺ دوحی دنزول په وخت په اوښه سوارۀ وونواوښې به ئی په څټ وغورزوله اوحرکت به ئی نۀ شو کولې اوپه سخته یخنۍ کښې به دوی ﷺ تول خوله شو بیاعلاوه ددې نه ددې محفوظ ساتل بیانوروته په رسولوکښې تکلیف برداشت کول په دې اعتباراتوسره ئی ورته دروند ووئیل اومقصدادې چه دشپې ودریدل ګران مه ګڼړه مونږ خو ددې نه هم درانۀ کارونه ستانه اخستونکی یو دشپې دودریدوحکم تاته ځکه درکړې شوې دې چه تۀ عادت شې دریاضت چه دنفس استعدادپرې قوی اواکمل شی ځکه چه مونږ په تادرنه خبره نازلوونکی یو نو دهغې دپاره دځپل استعداد قوی کول ضروری دې وړاندې دقیام اللیل نور مصلحت دې چه ﴿اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ هِيَ اَشَدُّ وَطْاً وَّاَقْوَمُ قِيْلًا﴾ [بیشکه دشپې پورته کیدل ښۀ اثر کوی ] دنفس [په پائمال کولوکښې [او قرات وی یادعاظاهراو باطنا] خبره ښۀ وځی [ظاهراخو داسې چه دفرصت وخت وې الفاظ ددعااوقرات ښۀ په اطمینان سره اداکیږی اوباطناداسې چه زړۀ په کښې ښۀ لګی اودموافقت دزړۀ اوژبې دامطلب دې اوددې علت کیدل ظاهر دې وړاندې یودریم علت دې په کوم کښې چه دشپې دتخصیص دحکمت بیان دې هغه داچه ﴿اِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيْلًا﴾ [بیشکه ستادورځې ډیرکارونه دې ] دنیوی هم لکه دکور دکارونو تدبیر کول او دینی هم لکه تبلیغ په دې وجه ددې کارونودپاره شپه تجویزکړې شوه [او] علاوه دشپې دودریدونه دکوم چه پورته ذکر وشو په نورو وختونوکښې هم ﴿وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ اِلَيْهِ تَبْتِيْلًا﴾ [دخپل رب نوم یادوه او[تولو نه تعلق قطع کړه] هغه طرف ته متوجه شه] یعنی ذکراوتبتل داهر وخت فرض دې او دتعلق قطع کولومطلب دادې چه دخالق سره تعلق دمخلوق په تولوتعلقاتوغالب وې وړاندې

(۱) صحیح البخاري کتاب المناقب ،باب مناقب علی ابن ابی طالب القرشی الهاشمی ﷜ [ج:۱ص:۵۲۵]

دتوحيدسره ددې تاكيداوتصريح ده يعنى ﴿رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ﴾ [هغه دمشرق اومغرب مالك دى ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا﴾ دهغه نه سواخوك دعبادت لائق نشته نوهغه ته خپل كارونه سپارل مقرركړه ﴿وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ اوداخلق چه كومې كومې خبرې كوى په هغې صبركوه ﴿وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا﴾ اوپه ښۀ شان سره ددوى نه جداشه جداكيدل داچه هيڅ تعلق مۀ ساته اوپه ښۀ شان سره داچه د دوې نه دشكايت اوانتقام په فكر كښې مۀ پريوځه[او] وړاندې دهغوئ دعذاب خبروركولوسره نبى كريم ﷺ ته تسلى وركړې شوې ده ﴿وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ أُولِي النَّعْمَةِ﴾ [مالره اودې دروغژن كوونكولره په نازو نعمت كښې وسيدونكولره] په موجوده حالت [پريږده] اوددې تفسيريه ايت ﴿فَذَرْنِي وَمَنْ يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ﴾ ([1]) كښې تير شوې دې ﴿وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا﴾ [اودې خلقو لره لږې ورځې نور مهلت وركړه] داكنايه ده دصبر او انتظار نه يعنى څۀ ورځې نورصبروكړه ډيرزردوې ته سزا وركيدونكې ده ځكه چه ﴿إِنَّ لَدَيْنَا أَنْكَالًا وَجَحِيمًا﴾ [مونږ سره دلته زولنې اودوزخ دې ﴿وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ﴾ اوپه مرئ كښې انښتونكې خوراك دې ] اولكه داقول دالله تعالى دې ﴿يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ﴾ ([2]) ﴿وَعَذَابًا أَلِيمًا﴾ [اودردناك عذاب دې] پس دې خلقو لره به په دغوځيزونو سزا وركړې شى اوداسزابه په هغه ورځ وى ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ﴾ [په كومه ورځ چه مزكه اوغرونه وخوزيږى ﴿وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا مَهِيلًا﴾ اوغرونه ] ذره ذره شى[ الوتونكې شګه شى ] بياپه هواالوزى وړاندې دې ذكر شوودروغژن كوونكو ته په طور دالتفات خطاب دې په كوم كښې چه اثبات درسالت اوتحقيق دوعيدهم دې يعنى ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا﴾ [بيشكه مونږ تاسوته يوداسې رسول راليږلې دې ﴿شَاهِدًا عَلَيْكُمْ﴾ كوم چه به په تاسو ] دقيامت په ورځ [ګواهى وركوى ] چه دې خلقو دتبليغ نه پس څه سلوك وكړو ﴿كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا﴾ [لكه چه مونږ فرعون ته يورسول ليږلې وو ﴿فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ﴾ بيا فرعون ددغې رسول خبره ونۀ منله ﴿فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا﴾ نو مونږ دۀ لره په سختو نيولو سره ونيولو پس كۀ تاسو ] هم دبعثت درسول نه پس نافرمانى او[ كفر وكړو] نودغه شان به په تاسو هم مصيبت راپريوځى يو ورځ چنانچه دادمصيبت ورځ راتلونكې ده ﴿فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِنْ كَفَرْتُمْ﴾ پس تاسو به ﴿يَوْمًا يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا﴾ [ددغې ورځې ] دمصيبت [نه څنګه بچ شئ كومه چه به ] دخپل شدت اواوږدوالې په وجه [بچولره بوډاګان كړى ﴿السَّمَاءُ مُنْفَطِرٌ بِهِ﴾ په كومه كښې چه به اسمان څيرې شى ﴿كَانَ وَعْدُهُ مَفْعُولًا﴾ بيشكه دهغۀ وعده به خامخاپوره كيږى ] داهم احتمال نشته چه دغه وخت واپس راشى ﴿إِنَّ هَٰذِهِ تَذْكِرَةٌ﴾ بيشكه[ دا] ټول مضمون [ يو] بليغ [نصيحت دې ﴿فَمَنْ شَاءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا﴾ پس دچاززړه چه غواړى دخپل پروردګار طرف ته دې لار اختيار كړى ]يعنى هغۀ ته درسيدو دپاره دې ددين لارقبول كړى وړاندې ددې قيام ليل دفرضيت نسخ دې كوم چه دسورة په شروع كښې مذكور وويعنى ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِنْ ثُلُثَيِ اللَّيْلِ﴾ [ستارب ته معلومه ده چه تۀ اوستاپه ملګرو كښې څنى سړى ] كله [په دريو كښې دوه حصې شپې ته نزدې او] كله ﴿وَنِصْفَهُ وَثُلُثَهُ وَطَائِفَةٌ مِنَ الَّذِينَ مَعَكَ﴾ [نيمه شپه او] كله [په دريمه حصه شپه ] په مونځ كښې

---

[1]) ترجمه:- څوك ماته او دې كلام ته د دروغو نسبت كوى هغه پريږده.

[2]) ترجمه:- دا به په كوټ كوټ ځكى او د مرئ نه لاندې د تللو به هيڅ صورت نه وى.

[ودربړی اودشپې] ﴿وَاللّٰهُ يُقَدِّرُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ او دَ شپې او ورځې پوره اندازه الله تعالى كولې شي ﴿عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ﴾هغهٔ ته معلومه ده چه تاسو [دې] مقدار دوخت [لره قابو كولې نه شئ] او په دې وجه تاسو ته سخت مشقت لاحق كيږی ځکه چه په اندازه سره په تخمينه كولو كښې خوشبهه راځي دكمی او په اندازه سره په زياتولو كښې ټولې شپې ته نزدې صرف كيږی چه مقرر وخت يقينا پوره شی اوپه دې دوارو كارونو كښې سخت مشقت دې روحانی ياجسمانی [نو] په دې وجهوسره ﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ﴾[هغهٔ ستاسو په حال عنايت وكړو] اوددې نه وړاندې حكم ئې منسوخ وفرمائيلو[پس] اوس ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ [تاسو خلق چه څومره قرآن په اسانئ سره لوستلې شئ لولئ] مراد دَ قرآن لوستلو نه تهجد لوستل كول دی چه په دې كښې قرآن لوستل دی او دا امرد استحباب دې مطلب داچه دتهجدفرضيت منسوخ كيدواصل علت مشقت دې په كوم چه ﴿عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ﴾ قرينه ده اوددې نه وړاندې مضمون ددې تمهيددې وړاندې ددې نسخ دبل علت بيان دې چه ﴿عَلِمَ اَنْ سَيَكُوْنُ مِنْكُمْ مَّرْضٰى﴾[هغهٔ ته ] داهم [معلومه ده چه ځنې خلق به په تاسو كښې بيمار وی ﴿وَاٰخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ فِي الْاَرْضِ يَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ﴾ اوځنې به دمعاش په تلاش كښې سفر كوی ﴿وَاٰخَرُوْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ اوځنې به دالله تعالى په لاره كښې جهاد كوی ] په دې وجه ئې هم دې حكم لره منسوخ كړو ځكه چه په دې حالتونو كښې پابندی دتهجداو ددې دَ وختونو مشكل وو [پس ] په دې وجه هم تاسو ته اجازت دې چه اوس ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ﴾[تاسو خلق څومره قرآن په اسانئ سره لوستلې شئ لولئ او] اګرچه تهجد منسوخ شو مګر دااحكام اوس هم باقي دی يعنی داچه﴿وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾ [مونځ ] [فرض] په پابندئ سره كوئ اوزكوة وركوئ او ددې تفسير په اول دسورة المؤمنون كښې تير شوې دې ﴿وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ او الله تعالى لره په ښهٔ شان سره [يعنی په اخلاص سره] قرض وركړئ ﴿وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ﴾ اوكوم نيك عمل چه دځپل ځان دپاره وړاندې] داخرت ذخيره جوړوئ [ليږئ هغه به الله تعالى ته په رسيدو ددغې نه غوره ﴿وَّاَعْظَمَ اَجْرًا﴾ او په ثواب كښې لوئ بيامومئ ] يعنی په دنيوی غرضونو كښې چه په خرچ كولو سره كوم عوض او نفع مرتب كيږی دهغې نه غوره او لوئ نفقې دخير به پرې ملاؤ شی﴿وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ﴾ [اودالله تعالى نه بخښنه غواړئ ﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ بيشكه الله تعالى غفوررحيم دې ] استغفارهم په دې باقی احكاموكښې دې ]

## معارف او مسائل

[يٰاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ] د [مُزَّمِّل] لفظی معنی داده چې چاځان پورې جامې رانغښتې وی ،دغسې معنی تقريبا د [مُدَّثِّر] هم ده چې په راتلونكې سورت كښې به راشی . په دې دوارو سورتونو كښې نبی كريم ﷺ ته په پوره يو وختی حالت او مخصوص صفت سره خطاب كړې شوې دې ولې چې دغه وخت نبی كريم ﷺ د سخت غم او خفګان په وجه يخنی محسوسوله او ځان باندې د جامې اچولو دپاره ئې كوروالو ته فرمائيلی وو ، هغوئ دا كپړې پرې واچولې، ددې واقعه په صحيح بخاری او مسلم كښې د جابر ﷺ په روايت سره داده چې نبی كريم ﷺ د وحی د فترت د زمانې بيان فرمائيلو. د فترت لفظی معنی سستيدل يا بنديدل دی ، واقعه داسې وه چې د ټولو نه اول په غار حراء كښې نبی كريم ﷺ باندې جبرائيل امين نازل شو اود سورة اقرأ

د شروع آیتونه ئې نبی کریم ﷺ ته واؤرول. د فرښتې دا نازلیدل او د وحی سختوالي رومبی
خل وو چې اثر ئې په طبعی ډول اوشو او نبی کریم ﷺ چې ام المومنین خدیجه ﷞ له
تشریف یوړو نو سختې یخنئ نیولې وو څکه ئې اوفرمائیل چې [زملونی زملونی] یعنی کپړا
راباندې واچوئی، کپړا راباندې واچوئی. ددې تفصیلی او اوږده قیصه دصحیح بخاری په
رومبی باب کښې بیان شوېده. ددې نه پس تر څو ورځو پورې د وحی داسلسله بنده وه، دغې
زمانې ته فترت الوحی وئیلې شی. نبی کریم ﷺ ددغې زمانې ذکر داسې کولو چې زه یو ځل
روان اوم، ما ناګاهانه یو آواز واؤرېدو چې آسمان ته مې اوکتل نو هم هغه فرښته د آسمان او
زمکې تر مینځ په زورېنده کرسئ باندې ناسته وه کومه چې په غار حراء کښې ماته راغلې وه.
دهغې په لیدو سره زه بیا په رېیدو شوم چې کور ته راغلم نو کور والوته مې اووئیل چې ما
باندې کپړا واچوئی نو په دې باندې آیت [يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ] نازل شو. په دې حدیث پاک کښې د [يٰٓاَيُّهَا
الْمُدَّثِّرُ] د نازلیدو ذکر شوې دې[1]، کیدیشی چې په دې موقعه [يٰٓاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ] هم نازل شوې وی،
یا ددې دواړو دنازلیدو موقعې بیلې بیلې وی، چې دتفسیر په خلاصه کښې بیان شوی دی، په
دې عنوان سره خطاب کولو کښې خاص مهربانئ ته اشاره ده لکه چې چا ته د خاص حالت په بنا
خالص د مهربانئی په غرض خطاب کولې شی [روح المعانی][2] په دې خاص عنوان خطاب
فرمائیلو سره نبی کریم ﷺ ته د تهجدو د مونځ حکم او ددې څۀ تفصیل خودلې دې.

**د تهجدو دمونځ احکام او په دې کښې بدلون راوستل** :: د [مُزَّمِّلُ] او [مُدَّثِّرُ] لفظ پخپله ددې پته
ورکوی چې دا آیتونه مبارک بیخی د اسلام دشروع او د قرآن پاک د نازلیدو په اولنئ زمانه
کښې نازل شوی دی. کله چې په دغه وخت په امت باندې پنځه مونځونه نه وو فرض شوی،
څکه چې پنځه مونځونه خو د معراج په شپه فرض شوی دی.

امام بغوی ﷫ دعائشه صدیقه ﷞ وغیره د احادیثو په بنا باندې دا فرمائیلی دی چې ددې
آیت تر مخه قیام اللیل یعنی د شپې مونځ په رسول الله ﷺ او په ټول امت فرض وو او دا
دهغې وخت واقعه ده چې پنځه مونځونه فرض نه وو.

په دې آیت مبارک کښې قیام اللیل یعنی تهجد صرف فرض نه کړې شو بلکه کم نا کم څلورمه
برخه دشپې په دې کښې مشغول کیدل هم فرض ګرځولې شوی دی. ولې چې په دې آیتونو
کښې اصل حکم دا وو چې ټوله شپه بغیر د لږې برخې نه دې په مونځ کښې مشغول اوسیدل
وی او د قلیل استثناء بیان او تفصیل دې پسې راروان دې.

امام بغوی ﷫ د حدیث د روایتونو په بنا فرمائی چې ددې حکم په تعمیل کښې به نبی کریم
ﷺ او صحابه کرام ﷡ د شپې زیاته برخه د تهجد په مونځ کښې لګیا وو. تر دې چې قدمونه
مبارک به ئې اوپړسیدل او داحکم خاص درونډ معلوم شو، د پوره کال نه پس ددې سورت
آخری حصه [فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ] نازل شو په کوم سره چې ددغې اوږد قیام پابندی منسوخ
اوګرځیده[3] او دا اختیار ورکړې شو چې څومره چا ته آسانه وی هومره وخت د تهجد په مونځ

---

[1] صحیح البخاري ،باب کیف کان بدء الوحی...... إلخ [ج:۱ص:۳]
[2] تفسیر روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۳۶۹]
[3] تفسیر البغوی تحت هذه الآیة [ج: ۸ ص:۲۵۰]

کښې لګول کافي دی. د امضمون په ابي داؤد او نسائي دعائشه صديقه ﷺ نه منقول دی[1]
او ابن عباس ﷺ اوفرمائيل چې کله د پنځه مونځونو فرض کيدل دمعراج په شپه نازل شو
نود تهجد د مونځ فرض کيدل منسوخ شو البته بيا هم سنت پاتې شو او رسول الله ﷺ به
هميشه کول دغسې نورو صحابه کرامو ﷺ به هم تهجد په پوره پابندئی سره ادا کول.
[مظهری][2] اوس د آيت مبارک د الفاظو تفسير اوګورئی ، فرمائی چې:
[قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا] په اليل چې الف لام داخل شو نو پوره شپه ئې معنی ورکړه . مطلب ئې دا
راؤختو چې تاسو ټوله شپه په تهجدو کښې مشغول پاتې کيږئی . سوا د لږې حصې د شپې نه
خو هر کله چې د قليل لفظ مبهم وو ځکه وروستو ددې تشريح داسې فرمائی چې:
[نِّصْفَهٗٓ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا اَوْ زِدْ عَلَيْهِ] يعنی نيمه شپه تهجد کوئی يا دنيمې شپې نه څه کم کړه يا د
نيمې شپې نه څه زيات کړه دابيان د [اِلَّا قَلِيْلًا] د استثناء دې ، ځکه په دې باندې دا سوال
کيدېشی ، چې نصف ته خو قليل نشی وئيلی ، جواب دادې چې د شپې رومبئ حصه خوپه
ماښام اوماسختن مونځ کښې تيره شو اوس پاتې شو نيمه شپه د ټولې شپې په نسبت سره کمه
معلوميږی . او په دې آيت مبارک کښې هر کله چې دنيمې نه دکمولو هم اجازت شته اودنيمې نه
د زياتولو هم ، ځکه په مجموعی ډول ددې دا حاصل شو چې کم ناکم د ځلورمې حصې دشپې
نه زياته حصه په تهجدو کښې مشغوليدل فرض دی.
**دقرآن پاک د ترتيل مطلب** :: [وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا] د ترتيل لفظی معنی داده چې کلمه په آسانئ
اواستقامت سره دخلې نه اوويستلې شی[3] ، د آيت مبارک مطلب دادې چې دقرآن پاک په
تلاوت کښې تادې مه کوئی بلکه په ترتيل اوتسهيل سره ئې ادا کوئی او ورسره په معنو کښې
غور و فکر کوئی . [قرطبی][4].
[وَرَتِّلِ] په [قُمِ الَّيْلَ] باندې عطف دې . او په دې کښې ددې بيان دې چې د شپې په قيام يعنی
تهجدو کښې څه کول دی . دې نه معلومه شوه چې د تهجدو مونځ اګر چې قرآت او تسبيح
رکوع او سجدې دمونځ ټولو حصو لره شامل دی مګر په دې کښې اصل مقصود دقرآن پاک
تلاوت کول دی ، ځکه صحيح احاديث په دې ګواه دی چې نبی کريم ﷺ دتهجدو مونځ ډير
اوږد ادا کولو وهم دا عادت په صحابه کرامو ﷺ او تابعينو کښې مشهور شوې دې.
**مسئله** :: ددې دا نه هم معلومه شوه چې صرف قرآن پاک لوستل مطلب نه دی بلکه ترتيل
مطلوب دې ، چې په کښې هره کلمه صفا صفا اوصحيح ادا شی . نبی کريم ﷺ به دغسې
ترتيل فرمائيلو ، ام سلمه ﷺ نه خينو خلقو د شپې په مونځ کښې د نبی کريم ﷺ دتلاوت د
شان باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی ﷺ په نقل کولو سره او خودل چې په کښې يويو حرف

---

[1]) سنن ابوداود، کتاب الصلاة ، باب فی نسخ قيام الليل والتيسير فيه [ج:۱ص: ۱۸۵] و سنن النسائی کتاب قيام الليل وتطوع النهار باب قيام الليل [ج:۱ص: ۲۴۸]

[2]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۰۳ ، ۱۰۴]

[3]) مفردات القرآن للراغب الإصفهانی [ج: ۱ ص:۱۸۷]

[4]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۹ص:۳۷]

واضح وو. [ ترمذی ، ابوداؤد ، نسائی ، مظهری ](۱).

مسئله: ترتیل کښې د خپل اختیار په انداز خوش آوازی کول هم شامل دی ، د ابی هریره رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ د چا قرآت او تلاوت په دې شان نه آوری څنګه چې دهغې نبی تلاوت آوری چې په خوش آوازئی سره په زوره تلاوت کوی. [ مظهری ](۲).

علقمه رحمه الله یو سړې اولیدو چې په خوش آوازئي ې تلاوت کولو نو وې فرمائیل چې [القدرتل القرآن فداه ابی وامی ] دې سړی دقرآن پاک ترتیل اوکړو زما مور پلار دې ترې قربان وی [قرطبی](۳).

او اصل ترتیل هم هغه دې چې د حرفونو او الفاظونو ادا کول هم صحیح او صفا وی او لوستونکې دهغې په معنو باندې هم غور کولو سره دهغې نه اثر قبلوی. لکه چې د حسن بصری رحمه الله نه منقول دی چې نبی کریم ﷺ په داسې یو سړی باندې تیرشو چې دقرآن پاک تلاوت ئې کولو او ژړل ئې. نبی کریم ﷺ خلقو ته اوفرمائیل چې تاسو دالله ﷻ داحکم آوریدلې دې چې: [وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا] بس هم دا ترتیل دې .چې دا سړې ئې کوی [ قرطبی ](۴).

[اِنَّا سَنُلْقِيْ عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا] د ثقیل معنی درونډ او د قول ثقیل نه مراد قرآن کریم دې ولې چې ددې د حلالو ، حرامو جائز او ناجائزو دحدونو همیشه پابندی په طبیعت باندې درنه وی ، سوا ددې نه چې الله ﷻ ئې آسانه کړی او قرآن کریم ته قول ثقیل په دې وجه هم وئیلې شی چې ددې دنازلیدو په وخت به نبی کریم ﷺ یو خاص وزن او سختی محسوسوله. نو د سختې یخنۍ په زمانه کښې به هم د نبی کریم ﷺ تندې مبارک خوله خوله شو. او که دغه وخت به په اوښه سور وو نو هغې به د دغې درونډ والی په وجه خپل سټ راغورځولو .څنګه چې صحیح حادیث مبارک په دې ګواه دی .[صحیح بخاری وغیره](۵).

په دې آیت مبارک کښې دې ته اشاره کیدې شی چې د تهجدو دمونځ حکم څکه ورکړې شو چې انسان د مشقت پورته کولو عادت شی ، دا د شپې په وخت د خوب دغلبې او د آرام خلاف یو جهاد دې ، ددې په ذریعه د درونډ پیتې احکام برداشت کول آسان شی چې په قرآن پاک کښې نازلیدونکی دی.

[اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ] دعَافِيَةٌ په وزن د ناشئة لفظ مصدر دې معنی ئې د شپې په وخت مونځ دپاره اودریدل دی. عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چې د اوده کیدو نه پس د شپې مونځ دپاره پورته کیدل [نَاشِئَةَ الَّيْلِ] دی، ددې معنې په لحاظ سره د [نَاشِئَةَ الَّيْلِ] مطلب تهجد شو، څکه چې تهجد هم دشپې د اوده کیدو نه پس ادکولې شی. ابن کیسان رحمه الله اوفرمائیل چې د شپې د

---

(۱) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص: ۱۰۴] و جامع الترمذي ، ابواب فضائل القرآن باب کیف کان قرأة النبی ﷺ [ج:۲ ص:۱۲۰] و سنن ابوداود، کتاب الصلاة ، باب کیف یستحب الترتیل فی القراءة [ج:۱ص: ۲۰۷] و سنن النسائی کتاب الإفتتاح باب تزیین القرآن بالصوت [ ج:۱: ص:۱۵۷]

(۲) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص: ۱۰۴، ۱۰۵]

(۳) صحیح البخاري کتاب فضائل القرآن ،باب من لم یتغن بالقرآن [ج:۲ص:۷۵۱]

(۴) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۹ص:۳۸]

(۵) صحیح البخاري ،باب کیف کان بدءالوحی...... إلخ [ج:۱ص:۲]

آخر قیام ته [نَاشِئَةَ الَّیْلِ] ونیلې شی. ابن زید رحمه الله فرمائی چې د شپې په کومه حصه کښې هم چې څه مونځ اوکړې شی هغه په [نَاشِئَةَ الَّیْلِ] کښې داخل دی. او حسن بصری رحمه الله فرمائی چې د ماسختن د مونځ نه پس هر مونځ په [نَاشِئَةَ الَّیْلِ] کښې داخل دې. ابن ابی ملیکه رحمه الله فرمائی چې ما د ابن عباس رضی الله عنه او ابن زبیر رضی الله عنه نه د [نَاشِئَةَ الَّیْلِ] باره کښې تپوس اوکړو نو هغوئ رضی الله عنه اوفرمائیل چې [ اللیل کلها ناشئة ] یعنی د شپې د هرې حصې مونځ کول په [اِنَّ نَاشِئَةَ الَّیْلِ] کښې داخل دی. [ مظهری ][1].

په دې ټولو قولونو کښې هیڅ بې سمونی نشته دې، حقیقت دادې چې د قیام الیل او [نَاشِئَةَ الَّیْلِ] مفهوم په اصل کښې عام دې، د شپې په هره حصه کښې چې مونځ کولې شی هغې د پاره دواړه لفظونه استعمالولې شی خصوصا کوم مونځ چې د ماسختن نه پس وی څنګه چې د حسن بصری رحمه الله قول دې خو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ، جمهورو صحابه کرامو رضی الله عنهم تابعینو او دامت د نیکانو همیشه دا عمل پاتې شوې دې چې دا مونځ به ئې هغه وخت ادا کولو چې د شپې څه حصه کښې به اوده شو. او بیا به راپاسیدل او په آخری حصه دشپې کښې به ئې ادا کول، څکه دا ډیر زیات غوره دی، او زیات برکتونه لری، البته سنت قیام الیل او [نَاشِئَةَ الَّیْلِ] هم هغه نقل دی چې د ماسختن دمونځ نه پس ادا کولې شی.

[هِیَ اَشَدُّ وَطْاً] کښې دوه قرآتونه دی، مشهور قرآت ئې وَطْاً دضرب په وزن دې چې معنی ئې چقنړی کول دی، په دې اعتبار سره به مطلب دا وی چې دشپې مونځ د نفس په چقنړی کولو کښې ډیر مدد کوونکې دې چې نفس ورسره په قابو کښې ساتلې شی او ناجائزو خواهشاتو کښې اخته کیدو نه دایسارول په تهجد ادکولو سره ښه کیدیشی. د تفسیر په بیان شوې خلاصه کښې دا اختیار کړې شوېدې، دوئم قرآت د وِطَاءً بکسر الواؤ وبالالف الممدودة د کتاب په وزن دې، په دې صورت کښې دا مواطات په معنی د موافقت مصدر دې. په قرآن پاک کښې [لِیُوَاطِئُوْا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ][2] هم د موافقت په معنی راغلې دې، د تفسیر په امامانو کښې دابن عباس رضی الله عنه او ابن زید رحمه الله نه هم دا معنی منقول ده. ابن زید رحمه الله اوفرمائیل چې مراد دادی چې دشپې په وخت کښې مونځ دپاره پورته کیدل، د زړهٔ نظر، غوږونو او ژبې ترمینځه جوړښت راوستو کښې زیات سخت دی، یعنی زیات اثر لرونکی دی.

ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چې [اَشَدُّ وِطَاءً] معنی داده چې د غوږونو او زړهٔ ترمینځه په دغه وخت کښې زیات موافقت اوسمون وی، څکه چې دشپې وخت عموما د کارونو نه د فراغت او شور نه دخلاصی او آرام وخت وی. په دې وخت کښې چې کوم الفاظ د ژبې نه اوځی خپل غوږونه به ئې هم آوری او زړهٔ به ئې هم حاضر وی.

[وَّاَقْوَمُ قِیْلًا] د [وَّاَقْوَمُ] معنی زیات نیغ سم او زیات مضبوط ده، مراد دادې چې د شپې په وخت کښې تلاوت د قرآن پاک زیات درست او په مضبوطیا سره وی ولې چې د مختلفو قسمونو آوازونو شور نه زړه او ذهن پریشانه نه وی.

---

[1]) تفسیر المظهري [ج:۱۰ص:۱۰۷، ۱۰۸]

[2]) ترجمه:- څکه چې الله تعالی کومې میاشتې حرامې کړې دی دهغې شمیر پورا کړی.

ددې آيت مبارک خلاصه هم دَ قيام الليل دحکم بيانول دی ، ددې نه په مخکينی آيت مبارک کښې چې ددې حکمت ارشاد شوې وو چې [اِنَّا سَنُلْقِیْ عَلَیْكَ قَوْلًا ثَقِیْلًا] دا خو د رسول کريم ﷺ ذات پاک سره خاص وو ، ولې چې د قرآن پاک نازليدل خو د نبی کريم ﷺ دَ ذات مبارک سره خصوصيت لرلو. په دې دويم آيت مبارک کښې تول امت دپاره په کښې عام حکمت بيان کړې شو . هغه داسې چې دشپې دمونځ دوه صفتونه دی يو دا چې د زړۀ او ژبې ترمينځه جوړښت راځی . دويم دا چې دسکون او آرام په وجه دقرآن پاک په تلاوت کښې آسانی وی .

[اِنَّ لَكَ فِی النَّهَارِ سَبْحًا طَوِیْلًا] د سبح لفظی معنی جاری کيدل او ګرځيدل دی ، دغسې په اوبو کښې لامبو وهلو ته هم سبح وئيلې شی . ولې چې دلامبو وهلو په ذريعه په اوبو کښې ګرځيدل آسان وی . دلته د سبح نه مراد د تولې ورځې مصروفيات دی چې په کښې تعليم ،تبليغ او د خلقو د اصلاح او د خپلو معاشی مصلحتونو دپاره ګرځيدل تول هرڅه په کښې داخل دی.

دې آيت مبارک کښې دقيام الليل دحکم دريم حکمت او مصلحت بيان شوې دې دا هم د نبی کريم ﷺ او تول امت دپاره عام دې هغه داسې چې په ورځ کښې خو نبی کريم ﷺ او داشان تول حضرات د شغلونو دپاره ګرځيدل کوی ، په جمع زړۀ سره د ورځې په عبادت کښې توجه کول مشکل دی . دشپې وخت هم دې کار دپاره پکار دې چې د ضرورت په جوړ خوب او آرام اوشی او قيام اليل عبادت هم .

**فائده:** فقهاؤ حضراتو فرمائيلی دی چې ددې آيت مبارک نه ثابتيږی چې علماء او مشائخ چې په تعليم ، تربيت او دخلقو د اصلاح په خدمتونو کښې لګيا وی هغوئ لره هم پکار دی چې دغه خدمتونه دې دَ ورځې کوی دشپې وخت دالله ﷻ په حضور کښې د حاضرئ او عبادت دپاره فارغ لرل زيات غوره دی . څنګه چې پخوانو عالمانو دا معمول لرلې دې ، څه وختی دينی ، تعليمی او تبليغی ضرورت که ناځاپه د شپې راپيښ شی نو هغه د ضرورت په اندازه دې نه مستثنی دې او داسې کول هم د ډيرو حضراتو فقهاء کرامو او علماء کرامو د عمل نه ثابت دی.

[وَاذْکُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ اِلَیْهِ تَبْتِیْلًا] دتبتل لفظی معنی داده چې د مخلوق نه په کناره کيدو سره دخالق په عبادت کښې لګيا شئ . د [وَاذْکُرِ اسْمَ رَبِّكَ] عطف په :[قُمِ الَّیْلَ] باندې دې چې په کښې نبی کريم ﷺ ته د قيام اليل يعنی تهجدو حکم شوې دې او ددې په ترڅ کښې خاص عبادتونو طرفته ته هم اشاره ده لکه فرمائی چې :[اِنَّ لَكَ فِی النَّهَارِ سَبْحًا طَوِیْلًا] په دې آيت مبارک کښې دداسې عبادت بيان دې چې دَ شپې يا ورځې سره خاص نه دې ، بلکه هر وخت او په هر حال کښې جاری پاتې کيږی هغه دې دالله ﷻ ذکر ، دالله ﷻ د ذکر دحکم نه مطلب په هغې باندې هميشوالې کول دی . څکه چې د نبی کريم ﷺ باره کښې خو دا تصور کيدې نشی چې نبی کريم ﷺ به کنی بيخی ذکر نه کوی . [ مظهری ][۱].

او د آيت مراد دادې چې د الله ﷻ ذکر د شپې او ورځې په تولو ساعتونو کښې کوئی دا چرې تاسو ﷺ نه پاتې نشی او نه تاسو ﷺ نه په کښې سستی اوشی . نو ددې صورت دا کيديشی چې د ذکر نه مراد عام واخستې شی خواه په ژبې سره وی يا په اندامونو اوزړۀ سره

---

[۱] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۰۹]

وی څنګه چې عائشه صدیقه رضي الله عنها روایت کړې دې چې [کَانَ یذکر اللهَ علی کل حین ][1] نبی کریم ﷺ به د الله ﷻ ذکر هر وخت کولو ، دا ثابته ده چې نبی کریم ﷺ به د اودس ماتی په وخت د الله ﷻ ذکر هر وخت په ژبه اګر چې نه کولو خو په زړهٔ به ئې کولو خو د زړهٔ د ذکر دوه صورتونه دی. یو دا چې الفاظ ئې په خیال کښې راولی او بل دا چې د الله ﷻ په صفتونو او کمالونو کښې غور و فکر کوی . [ تهانوی رحمه الله ].

دې آیت مبارک کښې دا حکم شوې دې چې :[وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا] تاسو ﷺ مخلوق پسې هیڅ مخه مه کوئی صرف د الله ﷻ په رضا لټولو او دهغه په عبادت کښې لګیا اوسئ. نو ددې په عام مفهوم کښې د الله ﷻ په عبادت کښې غیر الله لره نه شریکول بلکه خالص د الله ﷻ عبادت کول هم داخل دی . او دا هم چې په ټولو عملونو افعالو او حرکاتو سکناتو کښې نظر او تکیه صرف په الله ﷻ لرئی . چا مخلوق لره دنفع اوضرر مالک یا حاجت روا او مشکل کشا مه ګڼرئی . ابن زید رحمه الله اوفرمائیل چې د تبتل معنی داده چې دنیا او مافیها بیخی پریږدئی او صرف د هغې څیز طرف ته متوجه شی چې د الله ﷻ سره دې . [ مظهری ][2] . لیکن د کوم تبتل اود مخلوق نه د تعلقاتو ختمولو حکم چه دې آیت کښې شوې دې هغه ددې ترک تعلقات او ترک دنیا نه بالکل مختلف دې کوم چه قرآن کریم کښې په [وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا][3] سره د هغې بدیت ته اشاره کړېده او دغسې په حدیث پاک کښې هم اوفرمائیلې شو چې [ لارهبانیة فی الاسلام][4] څکه چې د شریعت په اصطلاح کښې رهبانیت هغې دنیا پریخودلو ته وئیلې شی چې په کښې ټول خوندونه او پاکیزه څیزونه د عبادت په نیت پریخودې شی یعنی مطلب ئې دا وی چې ددې څیزونو د پریخودلو نه بغیر الله ﷻ نه خوشحالیږی . یا ئې عملاً په دې شان پریږدی چې د خلقو د واجبو حقونو لحاظ نه ساتی او په هغې کښې خلل راوځی. خود تبتل مطلب دادې چې د الله ﷻ په تعلق باندې د چا مخلوق تعلق غالب رانشی . خواه د عقیدې په لحاظ سره وی یا دعمل په لحاظ سره . او داسې ترک تعلق دنیوی جائز معاملو ، نکاح کولو خپلې ښځې او بال بچ خپلوانو سره تعلق لرلو سره بې سمونه نه دی ، څنګه چې د ټولو پیغمبرانو ﷺ وواو خصوصا د نبی کریم ﷺ طریقه پاتې شوې ده. په دې لحاظ سره تبتل د بزرګانو پخوانو په اصطلاح کښې اخلاص ته وئیلې شی ، [ مظهری ][5] .

**دوه مقصودی فائده** : دَ الله تعالی ذکر په کثرت سره اودَ دنیانه تعلق کټ کولو په معامله کښې ټول په ټوله صوفیاء کرام وړاندینی او روستونی دا وائی چې مونږ د کومې لارې په پرې کولو کښې شپه ورځ لګیا یو په حقیقت کښې د هغې دوه قدمونه دی ، ړومبې قدم مخلوق سره تعلق پریکول ، او دویم قدم الله ﷻ ته رسیدل دی . دا دواړه یو بل سره لازم او ملزوم دی . نو

[1] ) سنن ابن ماجة، کتاب الطهارة باب ذکر الله عزوجل علی الخلاء [ج:۱ ص:۲۶ ]
[2] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ ص:۱۱۰]
[3] ) ترجمه:- هغوئ رهبانیت پخپله ایجاد کړو.
[4] ) شرح السنة للبغوی کتاب الصلاة باب فضل القعود فی المسجد لإنتظار الصلاة[ج: ۲ ص:۳۷۱] وکشف الخفاء رقم الحدیث:[۳۱۵٤]
[5] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۱۱۰ ، ۱۱۱]

په دې آيت مبارک کښې دې لره د دوؤ جملو د عطف په صورت کښې بيان کړې دى. فرمائى چې: [وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا]
دلته د الله ﷻ د ذکر نه مراد ددې هميشه کول دى چې چرې هم په کښې کمې او سستى نه وى او نه ترې مخ اړوى ، دا هغه مقام دې چې د صوفياء کرامو په اصطلاح کښې ورته وصول الى الله وئيلى شى. په دې شان ئې په ړومبئ جمله کښې آخرى قدم او په دويمه جمله کښې ئې ړومبې قدم بيان کړو. دا ترتيب شايد ځکه بدل کړې شو چې اګر که په عمل کښې تبتل وړاندې دې او وصول الى الله پرې روستو مرتب کيږى مګر هر کله چې د سالک اصلى مقصد دا دويم قدم دې او هم دا حقيقت کښې د مقصودونو ځينې اصلى دې ځکه ئې دا ترتيب بدل کړو اول تبتل ئې په دويمه جمله کښې بيان کړو ، نو شيخ سعدى رحمه الله فرمائيلى دى چې:

تعلق حجاب است وبے حاصلى چو پيوند ها بگسلى واصلى

د مخلوق په تعلق کښې بوښتيدل بنديز او بې حاصلى ده ، کله چې پيوندونه اوشلوې هله به الله ﷻ ته اورسې.

**د اسم ذات ذکر يعنى يا يا الله الله کول هم داسې عبادت دې چې ددې حکم شوې دې ::** په دې آيت کښې دَ الله تعالى دَ ذکر حکم لفظ اسم سره مقيد کولو سره [وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ] فرمائيلې دې. [وَاذْكُرْ رَبَّكَ] ئې نه دې فرمائيلې. په دې کښې دې طرف ته اشاره اوځى چه اسم رب يعنى دَ الله الله تکرار هم مطلوب او مامور به دې. [ مظهرى ][1] بعض علماء چه صرف اسم ذات بدعت وئيلې دې. دَ دې نه معلومه شوه چه دې ته بدعت وئيل صحيح نه دى. والله سبحانه وتعالى اعلم.
[رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا] وکيل په لغت کښې هغه چاته وئيلې شى چې ورته څه کار اوسپارلې شى ، نو د : فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا مطلب دا راوځى چې خپل ټول کاروبار معاملې او حالات الله ﷻ ته اوسپارئى . ددې نوم په اصطلاح کښې توکل دې ، په دې سورت کښې کوم حکمونه چې رسول الله ﷺ ته ورکړې شوې دې دا په هغې کښې پنځم حکم دې. امام يعقوب کرخى رحمه الله فرمائى چې د سورت شروع نه تر دې آيت پورې د سلوک مقامات ته اشاره ده يعنى:
① په شپه کښې الله ﷻ د عبادت د پاره ځان له کيدل ، ② قرآن پاک کښې مشغول کيدل ، ③ دالله ﷻ په ذکر باندې هميشه پاتې کيدل . ④ دالله ﷻ نه سوا د هر څه نه مخ اړول او تعلق ورسره پريکول ، ⑤ په الله ﷻ باندې توکل کول ، د توکل د آخرى حکم نه وړاندې د الله ﷻ په دې صفت : [رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ] بيانولو سره دې اړخ ته اشاره اوشوه چې د توکل او اعتماد کولو د پاره جوګه يواځې هغه ذات کيديشى چې څوک د مشرق او مغرب پالونکې او دَ هغې ټولو ضرورتونو پوره کولو ذمه وار دې توکل او بهروسه کولو قابل صرف هغه ذات کيدې شى. او په داسې ذات باندې تکيه کوؤنکې کله هم محروم نشى پاتې کيدې لکه قرآن پاک کښې فرمائى چې : [وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ] ځوک چې په الله ﷻ باندې توکل او تکيه کوى نو هغه الله ﷻ به دَ هغه ټول مشکلات حل کوى او ضرورتونه به ئې پوره کوى.

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص: ۱۱۱]

**د توکل شرعي معنی:** په الله ﷻ باندې د توکل او تکیه کولو دا معنی نه ده چې د قدرت ټول ورکړی اسباب او آلې استعمالول پرېږدي او بې د څه لاس خپو خوزولو نه په الله ﷻ باندې تکیه اوکړي. البته دومره خبره ده چې د آلو او وسیلو استعمال دې داسې نه وي چې تکیه او توکل ئې هم په هغې وي، بلکه مطلب داد چې دغه استعمال دې د سبب په درجه کښې کوي خو اصلي کوونکې او په دې کښې اثر اچوونکې دې الله ﷻ بولي.

نو د توکل داتشریح پخپله نبی کریم ﷺ داسې فرمائیلې ده چې: [ان نفسا لن تموت حتی تستکمل رزقها الا فاتقوا الله واجملوا فی الطلب] (١) جبرائیل ﷺ زما په زړه کښې داخبره اچولې ده چې هیڅوک به تر هغې نه مري چې تر څو پورې چې هغه پخپل مقدر کښې لیکلې رزق د الله ﷻ پوره پوره حاصل کړې نه وي. څکه تاسو د الله ﷻ نه وېرېږئ او دخپلو مقصدونو په لټون کښې د لنډوالی نه کارا خلئ، داسې په کښې مه ورننوځئ چې هم په دغې مادي اسبابونو او آلاتومو تکیه وي، اوپه الله ﷻ باندې توکل کوئ. داحدیث پاک امام بغوی ﷫ په شرح ا لسنة کښې او بیهقی په شعب الایمان کښې روایت کړې دې. او بل روایت په ترمذی کښې د ابی ذر غفاری ﷛ نه داسې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ددنیا پرېخودل ددې نوم نه دې چې تاسو په خپلو ځانونو باندې دالله ﷻ حلال کړې څیزونه حرام کړئ. یا خپل شته مال هیس بې هیسه برباد کړئ بلکه ددنیا پرېخودل ددې نوم دې چې په هغه څیز تکیه زیاته اوکړئ چې د الله ﷻ په لاس کښې دې د هغهٔ څیز په نسبت چې ستاسو په لاس کښې وي، [مظهری] (٢). [وَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُولُونَ وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا ۝] دا مام کرخی ﷫ په قول دا شپږم حکم دې چې نبی کریم ﷺ ته ورکړې شوې دې، یعنی د خلقو په ژبانونو او کنځلو صبر جمیل کول چې دسلوک په مقاماتو کښې د ټولو نه اعلی مقام دې چې د دښمنانو په زور ظلم او ژبان باندې صبر اوکړې شي. یعنی کوم حضرات چې ټول عمر په دې کښې تیروی چې ټول قوت او زور د خلقو په خیر خواهئی او همدردئی کښې تیروی. د هغوئ د طرفنه ورته په بدل کښې کنځل ژبانونه او قساقسم زور، ظلم ور رسیږی. په هغې باندې د دوئ صبر جمیل کول چې د بدل اخستلو اراده ئې هم اونه کړی، دا هغه اعلی مقام دې چې د صوفیانو په اصطلاح کښې د کامل فنا نه بغیر نصیب کیږی نه.

[وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا ۝] هجر بفتح الهاء لفظی معنی ئې په خفګان او ویزارئی سره څه شئ لره پرېخودلو ته هجر وئیلې شی، په دې بنا معنی ئې دا شوه چې دا دروغ بلونکی کافران چې تاسو ﷺ ته ضررناکې خبرې کوی نو تاسو ﷺ دهغې بدل ترې مه اخلئ خو تعلق ورسره مه ساتئ، مګر دتعلق پرېکولو په وخت د انسان طبعی عادت دادې چې چاسره تعلق پرېخودې شی، نو خلق د هغه نه ګیلې کوی او بد رد ئې وائی څکه دلته د هجر سره د جمیلا قید اولګولې شو، مطلب دا شو چې د نبی کریم ﷺ داوچت مقام او ښکلو اخلاقو تقاضه داده چه کومو کافرانو سره تعلق کټ کړی ددغې خلقو بد دې نه وائی.

---

(١) تفسير المظهري[ج:١٠ص:١١٢] و مسند البزار رقم الحديث:[٢٩١٤] و شرح السنة رقم الحديث:[٤١١٢] و مجمع الزوائد كتاب البيوع باب الإقتصاد فى طلب الرزق والاجمال فيه رقم الحديث :[٦٢٨٧]

(٢) تفسير المظهري[ج:١٠ص:١١٢]

ځیني مفسرینو اوفرمائیل چې کله د جهاد او جنګ آیتونه نازل شو نو په هغې سره ددې آیت مبارک حکم منسوخ شو خو په غور کولو سره دا منسوخ نه معلومیږي ځکه چې په دې آیتونو کښې د کافرانو په ضررونو باندې د صبر او هجر خودنه کړې شوې ده. چې زجر، سزا او جنګ سره بې سمونه نه ده، ددې آیت مبارک حکم هر وخت په هر حال کښې دې او په جګړه او جهاد کښې چې کوم زجر او سزا ده دهغې حکم په خاصو خاصو وختونو کښې دې او اسلامي جنګ او جهاد په حقیقت کښې څه بدل اخستل یا خپله غصه سړول نه دی چې ګنې صبر او هجر جمیل سره به بې سموني وی، بلکه خالص د الله ﷻ په حکم باندې عمل کول دی، څنګه چې صبر او هجر جمیل په عامو حالتونو کښې د الله ﷻ په حکم باندې عمل کوی دی. تر دې چې نبی کریم ﷺ ته ددې خودونه وه وړاندې د تسلئ دپاره دهغې عذاب بیان دې چې په آخرت کښې په کافرانو باندې راتلونکې دې، چې د څو ورځو په دې ژوندون کښې چې دوئ کوم تکلیفونه تاسو ﷺ ته رسوی نو په هغې تاسو ﷺ مه خفه کیږئ. ولې چې الله ﷻ دوئ ته سخت عذاب ورکوونکې دې البته الله ﷻ د خپل حکمت مطابق ورته څو ورځې مهلت ورکړې دې تاسو په دې کښې د تادئ فکر مه کوئ څنګه چې په ورپسې آیت مبارک کښې فرمائي:

[وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ أُولِي النَّعْمَةِ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا] ، دې کښې [أُولِي النَّعْمَةِ] کافرانو ته وئیلې شوی دی، نعمت بفتح النون معنی تنعم یعنی د عیش و عشرت مزو چرچو په معنی کښې دې چې مال اولاد ئې هم زیات وی. په دې کښې دې ته اشاره ده چې ددنیا په مال او اولاد او مزو چرچو باندې مستیدل هغه څوک کوی چې آخرت په دروغه بولي. مؤمن ته هم اکثر دا څیزونه نصیب کیږی خو هغوئ پرې داسې نه مستیږی چې ګنې زړه ئې د آخرت دفکر نه خالي شي، خالص عیش و عشرت او بیخی بې فکره کیدل په دنیا کښې د هغه چا په حصه دې څوک چې آخرت په دروغه بولي.

ورپسې د آخرت ددې زیات سخت عذاب بیان دې چې وړاندې په کښې دَ انکال بیان اوکړو کوم چې د قیدو بند او زنځیرونو معنی ورکوی. بیا ئې د جهنم د سخت اور بیان اوکړو بیا دجهنمیانو د دردناک خوراک بیان داسې فرمائي چې:

[وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ] غصة مرئی کښې انښتلو ته وائی چې په مرئی کښې څۀ خوراکه داسې انښلي چې نه تیریږی او نه بهر راوځی، څنګه چې به ضریع او زقوم وی چې جهنمیانو ته به خوراک دپاره ورکولې شی. ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چې په دې کښې به د اور کندې وی چې په مرئی کښې به انښلی[1] [نعوذ بالله منه] په آخر کښې فرمائي چې: [وَعَذَابًا أَلِيمًا] ددغې تاکلو عذابونو دیادولو نه پس ددې مبهمو الفاظو په راوړو دې ته اشاره ده چې ددې نه علاوه به نور هم زیات سخت عذابونه دوئ دپاره وی چې انسان بۀ ئې تصور هم نشی کولې. [اللهم احفظنا منها].

**دنیکانو بزرګانو د آخرت ویره:** دامام احمد، ابن ابی داؤد او بیهقی روایت دې چې یو سړي د قرآن پاک ددې آیت مبارک آوریدو دویرې نه بې خوده شو[2] او حسن بصری رحمه الله یوه ورځ

---

[1]) المستدرك للحاكم كتاب التفسير رقم الحديث:[٣٨٦٧]

[2]) تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص:٧] و شعب الإيمان للبيهقي باب الخوف من الله رقم الحديث[٨٨٩]

روژه دار وو چې د روژه ماتي خوراک ئې مخې ته کيخودې شو نو دې ايت مبارک ته ئې فکر شو . هغه ئې اونه خوړې شو ، وې فرمائيل چې دا مې مخې نه پورته کړئې . دوه ورځې نورې ئې هم دغسې اوکړل چې هيڅ خوراک ئې اونه کړو نود حسن رحمه الله خامن ثابت بنانی رحمه الله يزيد ضبي او يحيى بکاء رحمه الله ته ورغلل او حال ئې ورته اووئيلو . دغه درې واړه حضرات ورغلل ، حسن رحمه الله باندې ډير زور راوړو هله ئې څه خوراک اوکړو . [روح المعانی]([1]).

وريسې د قيامت څۀ هيبتناك واقعات بيانوی : [يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ] وريسې د مکې مکرمې کافرانو ته د فرعون او موسى عليه السلام په قيصې آوْرولو سره ددې نه اوويرولې شو چې څنګه فرعون د خپل رسول موسى عليه السلام په دروغژن بللو سره په عذاب کښې ګرفتار شو که تاسو هم پخپل عمل کلک پاتې شوئ نو په تاسوبه هم دغسې عذاب په دنيا کښې راتلې شی . په آخر کښې فرمائی چې که په دنيا کښې درباندې عذاب نه راغلو نو دقيامت دهغه ورځې دعذاب نه به تاسو لره څوک بچ کړی چې دهغې د هيبت او اوږدوالی په وجه به ماشومان بوډاګان شی .

ښکاره داده چې دابيان د قيامت د سختوالی او هيبت بيان دې چې که ماشوم هم وی نو ددغې په وجه به بوډا شی . دې نه مراد يو تمثيل دې او څينو فرمائيلی دی چې دې نه حقيقت مراد دې او د قيامت ورځ به دومره اوږده وی چې په کښې به يو ماشوم هم د بوډا عمر ته رسيږی . [قرطبی ، روح]([2]).

**دقيام الليل فرض کيدل منسوخ شو:** دسورت په شروع کښې په قم الليل سره رسول الله صلى الله عليه وسلم او ټولو مسلمانانو باندې قيام الليل فرض ګرځولې شوی وو . او ددغې قيام اوږدول هم فرض وو ، خو په اوږدولو کښې دا اختيار ورکړې شوې وو چې دنيمې شپې نه څه کم يا څه زيات او کم نا کم د شپې دريمه برخه پکار وه . نو هغوئ صلى الله عليه وسلم او صحابه کرام رضي الله عنهم به ورسره هم په دغې عزيمت باندې عمل کولو او دشپې زيات نه زيات وخت به ئې هم په دې مونځ کښې تيرولو چې تقريبا په دريو کښې دوه حصې به ئې وخت جوړيدلو . ذاتی ضروريات به ئې پوره کول خصوصا اکثرو به په کښې محنت ، مزدوری يا تجارت کولو ، نوددغې اوږد او ګران مونځ د پابندئی په وجه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم او صحابۀ کرامو رضي الله عنهم پښې پړسيدلې .

دا مشقت اوتکليف ئې الله جل جلاله ته اول نه معلوم وو خو لره موده ئې پرې داشان پابندی څکه کيخوده چې دوئ د محنت ، مشقت عادت شی څنګه چې ورته په آيت مبارک کښې هم داشان اشاره فرمائی چې : [إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا] اشاره داسې وه چې تاسو صلى الله عليه وسلم ته دقرآن پاک خدمت سپارل دی چې ډير ګران کار دې . څکه مو د اول نه د مشقت عادت کول غوارو ، په هر حال هر کله چې دوئ دمحنت ، مشقت عادت شو نو دغه فرض يعنی قيام الليل منسوخ کړې شو او د ابن عباس رضي الله عنه د ورايت مطابق داهم کيديشی چې په دې آيتونو سره صرف د تهجدو اوږدوالې منسوخ شوې وی ، د تهجدو اصل مونځ په مخه جاری پاتې شوې وی . بيا کله چې دمعراج په شپه پنځه وخته مونځ فرض شونو هله د تهجدو فرض کيدل منسوخ شو ، والله اعلم او ښکاره داده چې په نبی کريم صلى الله عليه وسلم او ټول امت باندې دا فرض کيدل منسوخ شو البته

[1]) تفسير روح المعاني [ج: ۲ ص: ۳۸۳] و تفسير القرطبي [ ج: ۱۹ ص: ۴۷]
[2]) تفسير القرطبي [ ج: ۱۹ ص: ۴۷] و تفسير روح المعاني [ج: ۲۱ ص: ۳۸۷]

مستحب کېدل او د الله ﷻ په نزد خوښېدل ئې بیا هم باقي پاتې شو او په کښې د آسانۍ اوکړې شوه چې د وخت اوتلاوت څه حد ئې په کښې مقرر نه کړو چې څومره وخت کښې ئې ادا کولې شي او څومره تلاوت په کښې په آسانه کولې شي هغسې دې اوکړي.

**د شریعت د احکامو د منسوخ کېدو حقیقت** دَدنیا حکومتونه یا ادارې چې په خپلو قوانینو کښې ترمیم او تنسیخ کوي دَدې زیاته وجه خو هم دا وي چه دَ تجربې نه پس څه نوې صورت حال مخې ته شي چې اول نه ورته معلوم نه وو نو دَدې صورت مطابق رومبې حکم منسوخ کولوسره بل حُکم جاري کولې شي. مګر احکام الهیه په کوم کښې چه دَدې خبرې هډو څه تصور او احتمال هم نه شي کېدې ځکه چه دَ الله تعالی علم محیط ازلي او ابدي نه هیڅ څیزبهرنه دې. دَ شریعت یوحکم جاري کېدو نه پس به دَخلقو څه حالات وي کوم کوم صورتونه به راپیښېږي. الله تعالی رب العزت ته دَ اول نه معلوم دي لیکن دَ دَ څه حکمت او مصلحت دَ وجې نه یوحکم دَ څه مودې دپاره جاري کولې شي. دَ اول نه دَهغې همیشه جاري پاتې کېدل مقصودنه وي بلکه دَالله تعالی په علم کښې یوه موده متعین وي چه دَ دغه مودې پورې به دا حکم جاري وي مګر دَدې مودې اظهار دَ مخلوق په وړاندې دَ څه مصلحت دَ وجې نه کوي. دَ الفاظو په عموم سره خلق ګڼړي چه دا حکم غیرموقت او دائمي دې. دَ الله تعالی په نیزخودَهغې موده مقرره وي کله چه هغه موده ختمه شي اوهغه حکم واپس واخستې شي نو دَمخلقو په نظر کښې دَهغه حکم منسوخی کېږي او په حقیقت کښې هغه بیان مدت وي یعنې هغه وخت په مخلوق باندې ظاهرولې شي چه مونږ دغه حکم دَهمیشه دَپاره نه بلکه صرف دَ دغه مودې دَپاره جاري کړې وو. اوس هغه موده ختمه شوه اوحکم باقي پاتې نه شو.

په قرآن کریم کښې دَ ډېرو آیاتونو په منسوخ کېدو چې کومه عامیانه شبهه کېږي په دې تقریر سره هغه شبهه دفع شوه. آیا دې آیت نه پس هم تهجد خاص په رسول الله ﷺ باندې فرض پاتې شو ؟ ځینې امامانو هم دا تفسیر اختیار کړې دې د هغوئ دلیل د سورة بنی اسرائیل آیت [وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ] دې چې په کښې د نبی کریم ﷺ په ذمه د تهجدو مونځ زیاتی فرض ګرځولې شوې دې. ولې چې د نافلة لغوی معنی زیاتی ده ، خو د جمهورو علماء کرامو په نزد صحیح خبره داده چې د تهجدو فرضیت دَ نبی کریم ﷺ او دَ ټول امت نه منسوخ کړې شوې دې البته مستحب کېدل ئې باقي پاتې دی. او په آیت مذکوره کښې [نَافِلَةً لَّكَ] په خپله اصطلاحي معنی کښې دَ نفل په حکم دې بیا دَدې خصوصیت رسول الله ﷺ سره کوم چه په آیت کښې لَكَ نه مفهوم کېږي دَدې څه وجه ده. دا پوره تفصیل او دَ تهجدو دَ مونځ فرضیت منسوخ کېدو نه پس دا مونځ صرف دَ نفل اومستحب په درجه کښې پاتې دې یا دَ سنت مؤکده په درجه کښې؟

دا ټول تحقیق د سورة بنی اسرائیل دبیان شوی آیت مبارک لاندې تیر شوې دې هلته دې اوکتلې شي. هلته د تهجدوخاص فضائل اومسائل ذکرشوی دا آیت دَ کوم په ذریعه چه د تهجدو فرضیت منسوخ شوی دی [اِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ] نه تر [فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ] پورې بیان شوې دې. نو دا آیت دسورت د شروع د آیتونو نه یو کال یا اته میاشتې پس نازل شوې دې چې ورسره قیام اللیل منسوخ شو. مسند احمد ، مسلم ، ابوداؤد ، ابن ماجه او نسائي کښې د عائشه صدیقه رضی الله عنها روایت دې چې الله ﷻ ددې سورت په شروع کښې قیام اللیل فرض کړې وو ،

نبی کریم ﷺ او صحابهٔ کرامو ﷢ ئې تر یو کاله پورې پابندی اوکړه. الله تعالی د سورت آخری حصه تر یو کال پورې په آسمان کښې حصاره ساتله. دې نه پس د قیام اللیل فرض کیدل منسوخ شو او صرف نفل او مستحب پاتې شو. [ روح المعانی ] [1].

بیا په دې آیتونو کښې د حکم د منسوخ کولو علت دا خودلې شوې دې چې [عَلِمَ أَن لَّن تُحْصُوهُ] یعنی الله ﷻ پوهه دې چې تاسو به ددې احصاء اونه کړې شئ. د احصاء لفظی معنی شمیرل دی، د آیت مبارک مطلب ځینې مفسرینو دا بیان کړې دې چې په قیام اللیل کښې الله ﷻ اګر چې د وخت د اندازې تاکل نه دی کړی بلکه په دریو کښې د یو حصې نه تر دوؤ حصو پورې وخت ئې تاکلې وو، خو صحابه کرامو ﷢ به کله چې په داسې مونځ کښې لګیا وو نو د دغې مشغولتیا په وجه به ورته دا معلومیدل ګران شو چې نیمه شپه شوه اوکه دې نه کمه یا زیاته شوه. ولې چې د وخت معلومولو داسې آلې اوګهړئ وغیره نه وې، که بالفرض وې هم نو بیا په مونځ کښې د مشغولیدو په وجه هغې ته بیا بیا کتل د هغوی د خشوع و خضوع آسان نه وؤ.

دا د [أَن لَّن تُحْصُوهُ] معنی شوه. او ځینې حضراتو د احصاء نه مراد د احصاء عمل اخستې دې یعنی چې په دغې اوږد وخت کښې مونځ همیشه د پاره جاری لرل مشکل وو نه شو کیدې لفظ احصاء دې معنی د پاره هم استعمالیږی لکه څرنګه چې د اسمائې حسنٰی باره کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې [ من احصٰها دخل الجنة ] [2] نو ډیرو عالمانو ددې دا مطلب اخستې دې چې اسماء حسنٰی په متقضې باندې پوره عمل اوکړې شي او داسې تفصیل ئې په دې تفسیر معارف القرآن کښې هم د آیت [وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا] [3] لاندې کړې شوې دې.

[فَتَابَ عَلَيْكُمْ] د توبه لفظ اصلی معنی رجوع ده. د ګناهونو نه توبه کولو ته هم وائی چې د خپلې کړې ګناه نه راګرځیدل دی. خو دلته مراد صرف واپس اخستل دی چې د تهجدو د فرض کیدو حکم الله ﷻ واپس واخستو، په آخر کښې فرمائی:

[فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ] یعنی اوس هر کله چې د تهجدو مونځ د فرض په ځائې سنت یا مستحب پاتې شو، په دې کښې څومره قرآن پاک چې په آسانه څوک لوستلې شی هغه دې لولی. یو ه خاص اندازه ئې تاکلې شوې نه ده، دې آیت نه د فقهې ډیرې مسئلې راوځی. چې د فقهې په کتابونو کښې په تفصیل سره بیان کړې شوی دی. هلته ئې اوګورئی

[وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا] د جمهورو مفسرینو په نزد [وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ] کښې د صلوة نه فرض مونځ مراد دې او ښکاره خبره ده چې فرض مونځونه په شوا روز کښې پنځه دی، چې د معراج په شپه کښې فرض کړې شوی دی. دې نه معلومیږی د قیام اللیل فرضیت کوم چې د یو کال پورې جاری هم په دغه زمانه کښې د شب معراج واقعه راپیښه شوه چې په

[1] ) تفسیر روح المعاني [ج: ۲۱ ص: ۳۹۱] و صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب صلاة اللیل ..... إلخ [ج:۱ ص:۲۵۶] و مسند احمد ،حدیث عائشة الصدیقة رضی الله عنها رقم الحدیث:[۲٤۳۱٤] و و سنن ابوداود، کتاب الصلاة ، باب فی صلاة اللیل رقم الحدیث:[۱۱٤٤] و سنن الکبری للنسائی رقم الحدیث:[٤۲٤]

[2] ) جامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب [ج:۲ ص:۱۸۹]

[3] ) ترجمه:- او د الله تعالی نعمتونه که (هغه) شمیرل شروع کړل نو نه شئ شمیرلې.

كښې پنځه مونځونه فرض شوي وو. او دې نه پس د بيان شوي آيتونو په ذريعه د تهجدو فرض كيدل منسوخ شو او په آخر د سورت كښې چې د مونځ قائمولو حكم شوې دې ، ددې نه مراد پنځه فرض مونځونه دي . [ابن كثير ، قرطبي ، بحر محيط][1] .

داشان په [وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ] كښې د زكوة نه مراد فرض زكوة دې مګر مشهور دادې چې زكوة د هجرت نه پس په دويم كال كښې فرض شو او دا آيت مبارک مكي دې چې د اسلام په اول كښې نازل شوي دې . خكه ځينو مفسرينو وئيلي دي چې خاص دا آيت مبارک مدني دې . خو ابن كثير فرمائي چې زكوة خو په مكه مكرمه كښې فرض شوې وو يعني د اسلام په شروع كښې . او ددې مقدار او د واجب كيدو تفصيلات په مدينه منوره كښې فرض شوي وو او دا د هجرت دويم كال وو. داشان دا آيت مبارک د مكي كيدو په صورت كښې هم دې لره په فرض زكوة باندې حملولې شي . روح المعاني كښې هم دې لره اختيار كړې شوي دې[2] او ددې پوره تحقيق داحقر په رساله نظام زكوة كښې په تفصيل سره راغلې دې .

[وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا] د الله ﷻ په لار كښې مال لګول الله ﷻ ته ئې په دې عنوان سره تعبير كړو چې ګويا خرچ كونكې الله تعالى ته قرض وركوي ، يو خو په دې كښې د الله ﷻ لطف و كرم ته اشاره ده ، او بل دَ دې بيان دې چې الله ﷻ د غنيانو غني دې هغه ته قرض وركول چرته نه ضائع كيږي . ضرور به وصوليږي . او هركله چې د فرض زكوة حكم ددې نه ړومبې راغلې دې خكه په [اَقْرِضُوا اللّٰهَ] كښې چې د كوم خيرات او د الله ﷻ په لار كښې د كوم مال لګولو بيان دې ، هغې لره اكثرو حضراتو په نفل صدقو او په احسان كولو حمل كړې دې ، يعني هغه داسې شو لكه خپلو خپلوانو او عزيزانو باندې لګول يا چا ميلمه ته ميلمستيا وركول . يا دعالمانو ، نيكانو خلقو خدمت كول وغيره شو ، ځينو حضراتو ددې مطلب دا ګرځولې دې چې دزكوة نه علاوه هم ډير مالي واجبات په انسان باندې شته دې لكه د مور پلار ، خپلې ښځې او خپل اولاد واجبه خرچه يا نور شرعي واجبات شو ، نو په [وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ] كښې د زكوة ادا كولو د حكم وركولو نه پس د نورو واجباتو بيان په [وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ] سره او كړې شو .

[وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ] د [وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ] مطلب دادې چې پخپل ژوند كښې كوم نيك كار اوكړئي هغه زيات غوره دې د هغې نه چې د مرګ په وخت وصيت اوكړئي ، په دې كښې مالي عبادت صدقه او خيرات هم داخل دې او مونځ ، روژه وغيره هم چې د چا په ذمه قضا وي ، دا چې پخپل ژوند كښې په خپل لاس سره خپلې مخې ته د الله ﷻ په لار كښې خرچ كړي د هغې نه غاړه خلاصول زيات غوره دي ، بيا خو خبره د وارثانو په لاس كښې وي چې هغه ئې كوي كه نه كوي .

[1] ) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٢٥٩] و تفسير القرطبي [ ج:١٩ص:٥٨] و تفسير البحرالمحيط [ج: ١٠ص:٣٢١]

[2] ) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٢٥٩]و تفسير روح المعاني [ج: ٢١ ص:٣٩٤]

حدیث پاک کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو ﷺ نه سوال اوکړو چې په تاسو کښې داسې څوک دې چې دخپل وارث مال سره دخپل مال نه زیاته مینه لری ؟ صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چې په مونږ کښې داسې هیڅوک هم نشته چې د خپل وارث مال سره د خپل مال نه زیاته مینه لری . نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ښهٔ په سوچ فکر سره خبره کوئی . صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چې مونږ ته خو دې نه سوا څه بل صورت معلوم نه دې . نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کله دا خبره ده نو پوهه شی چې ستاسو مال هغه دې کوم چې تاسو په خپل لاس سره د الله ﷻ په لار کښې اولګولو ، او کوم چې پاتې شو هغه ستاسو مال نه دې ، بلکه ستاسو د وارث مال دې

دې لره ابن کثیر د ابی یعلیٰ موصلی په اسناد سره ذکر کړو بیا ئې اووئیل چې بخاری دې لره روایت کړو ، دحدیث پاک د حفص ﷺ بن غیاث نه الخ[1] .

تمت سورة المزمل بحمدالله یوم الثلثآء ۲۲ رجب ۱۳۹۱هجری

| رکوع ګاني | سورة المدثر مکیة وهي ست وخمسون اٰیة وفیها رکوعان | ایاتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ② | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکي دي | ㉔ |

يٰۤاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ۙ﴿۱﴾ قُمْ فَاَنْذِرْ ۙ﴿۲﴾ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ۙ﴿۳﴾

اې خان نغښتونکیه | پاسه او اویروه | او رب ستا چې دی | پس لوئي بیا ن کړه دهغه |

انې خان په جامه کښې انغښتونکیه | ............پاڅه اوخلق اوویروه | او دخپل رب لوئی بیان کړه

وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ۙ﴿۴﴾ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ۙ﴿۵﴾

او جامې ستا چې دی | پس پاکې ساته هغه | او ګندګی چې ده | پس لرې وسه دهغې نه |

اوخپلې جامې پاکې کړه | ............ او دګندګۍ [شرک] نه لرې اوسیږه

وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ ۙ﴿۶﴾ وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ ۗ﴿۷﴾ فَاِذَا

او داسې احسان مه کوه | چې بدل نې ډیر غواړې | او دپاره درب خپل | صبر کوه | پس هر کله چې |

اوداسې احسان مه کوه | چې زیات عوض پرې غواړې | او دخپل رب په رضا صابره اوسه

نُقِرَ فِي النَّاقُوْرِ ۙ﴿۸﴾ فَذٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَّوْمٌ عَسِيْرٌ ۙ﴿۹﴾ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ

پوکې اووهلې شی | په صور کښې | پس دغه | په دغه ورځ کښې | ورځ سخته ده | په کافرانو باندې |

نو څه وخت چې شپیلئ پوک وهلې شی نو دغه ورځ به په کافرانو باندې سخته ورځ وی

غَيْرُ يَسِيْرٍ ﴿۱۰﴾ ذَرْنِيْ وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيْدًا ۙ﴿۱۱﴾ وَّجَعَلْتُ لَهٗ مَالًا مَّمْدُوْدًا ۙ﴿۱۲﴾

نه ده آسانه | پریږده ما | اوهغه څوک چې پیدا کړو ما | یوازې | او ورکړو ما | هغه له | مال ډیر |

آسانه به نه وی | ما او هغه څوک پریږده | چې یوازې مې پیدا کړې دی | او هغه ته مې ډیر مال ورکړې دی

[1] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص: ۲۶۰] و مسند ابی یعلی ، مسند عبدالله بن مسعود ﷺ رقم الحدیث: [۵۱۶۳] و صحیح ابن حبان رقم الحدیث: [۳۳۳۰]

وَّبَنِيْنَ شُهُوْدًا ۝ وَّمَهَّدْتُّ لَهٗ تَمْهِيْدًا ۝

او خامن | حاضر وسیدونکي | او تیاره کړه ما | هغه ته [لاره دسرداری] | په تیارولو سره |

اوحاضریدونکي خامن مي وته ورکړي دي| اوپه سرداري ورکولو سره مي ورته سرداري ورکړي ده

ثُمَّ يَطْمَعُ اَنْ اَزِيْدَ ۝ كَلَّا ۭ اِنَّهٗ كَانَ لِاٰيٰتِنَا

بیا هغه طمع لري | چي زیات به نور ورکړم | هر گز نه | بیشکه هغه | دي | دآیتونو زمونږ سره |

بیا هغه طمع کوي | چي د هغه مال نور هم زیات کړم | هیڅکله نه | دي خو زمونږ د آیاتونو

عَنِيْدًا ۭ سَاُرْهِقُهٗ صَعُوْدًا ۭ اِنَّهٗ فَكَّرَ

عناد ساتونکي | ډیر زر به زه وروخیژوم هغه لره | په سختو خیژولو سره | بیشکه هغه | سوچ اوکړو |

سره عناد ساتونکي دي| اوس به ئي زه دوزخ ته داور غرته په زور اوخیژوم| هغه فکر اوکړو

وَقَدَّرَ ۝ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝

او اندازه ئي اوکړه دخبری | پس دالله غضب دي وي په هغه باندي | چی دڅنگه خبری اندازه ئي اوکړه

نو بیا ئي سوچ اوکړو| نوبرباد دي شی | چي څنگه خراب سوچ ئي ا وکړو |

ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝ ثُمَّ نَظَرَ ۝

بیادي غضب دالله وی په هغه باندي | چی دڅنگه خبری اندازه اوکړو هغه | بیا ئي اوکتل [خلقو ته] |

بیا دي هلاک شی | چي څنگه خراب سوچ ئي ا وکړو| ........ بیا ئي اوکتلو

ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ۝ ثُمَّ اَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ ۝ فَقَالَ

بیا ئي تندي تریو کړو | او خله ئي کږه کړه | بیا ئي شا کړه | او تکبر ئي اوکړو | اووي وئیل |

بیا ئي تندي تریو کړو | او خوله ئي ورانه کړه |بیا ئي مخ واړولو| اوخان ئي غټ اوگڼړلو| نو وي وئیل

اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ يُّؤْثَرُ ۝ اِنْ هٰذَآ اِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ۝

نه دي دا قران | مگر جادو دي | چي نقل کولي کیږي | نه دي دا | مگر کلام دانسان دي |

چي دا[قرآن] خو د[پخوانو] راغلي جادو دي| ........ داخو تش د انسان کلام دي

سَاُصْلِيْهِ سَقَرَ ۝ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا سَقَرُ ۭ لَا تُبْقِيْ

زر به ننباسم زه هغه لره | دوزخ ته | او ته څه خبر ئي | چی څه دي سقر | چی باقی نه پاتي کوی |

زه به ئي زر دوزخ ته ورداخل کړم|...... اوته څه خبر یې چي دوزخ څه څیزدي | نه روغ پریږدی

وَلَا تَذَرُ ۝ لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ۝ عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ۝

او نه پریږدی هیڅ څیز | سوزونکي دي څرمن لره | مقرر دی په هغي باندي | نو لس [فرښتي] |

او نه به ئي خلاصوی | د مخونو ورانونکي دي| ........ په هغي به نولس فرښتي مقرر وی

وَمَا جَعَلْنَآ اَصْحٰبَ النَّارِ اِلَّا مَلٰۗىِٕكَةً ۠ وَّمَا جَعَلْنَا

او نه دی جوړي کړی مونږه | کارکناني دوور | مگر | فرښتي | اونه دي جوړ کړي مونږه |

اومونږ خو بل څوک نه بلکه فرښتي په دوزخ مقرر کړی دی | اود هغوئ دا

عِدَّتَهُمْ إِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا لِيَسْتَيْقِنَ

شمار دهغوئ | مگر يوه فتنه | دپاره دهغو خلقو | چې كفر ني اوكړو | دپاره ددې چې يقين راشى |

شمير مو دكافرانو دپاره تش د امتحان په غرض مقرر كړې دې | ...... نتيجه به ئې دا شى | چې

الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا

دهغه كسانو | چې وركړې شوې دې ورته كتاب | او زيات شى | هغه كسان | چې ايمان ني راوړو |

اهل كتاب به پرې يقين اوكړى | ........... او دايماندارو به پرې ايمان نور زيات شى

إِيمَانًا وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْمُؤْمِنُونَ

په لحاظ دايمان سره | او چې اونۀ كړى شك | هغه كسان | چې وركړې شوې دې كتاب | او مومنان |

او اهل كتاب او مومنان به په كښې هيڅ شك شبه نه كوى |

وَلِيَقُولَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ

او دپاره ددې چې اووائى | هغه كسان | چې په زړونو دهغوئ كښې | مرض دنفاق دې |

اونتيجه به ئې داشى | چې دچا په زړونو كښې چې مرض وى | هغه كسان

وَالْكَافِرُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ

او كافران [ دا خبره ] | چې څه اراده كړې ده الله | په دې شمار سره | دارنګې | بې لارې كوى الله |

او كافران به دا وائى چې ددې په بيانولو كښې دالله ﷻ څه غرض دې | دغه شان الله ﷻ هغه څوک گمراه

مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ

هغه څوک | چې غواړى هغه | او لار ښائى | هغه چاته چې غواړى هغه | او نه پيژنى لښكرې درب ستا

كوى | چې وې غواړى | اوچاته چې اوغواړى هدايت ورته كوى | او ستادرب لښكرې صرف هغه ته معلومې دى

إِلَّا هُوَ وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ ﴿٣١﴾ كَلَّا

| مگر خاص هم هغه | او نۀ دې دا دوزخ | مگر | يو نصيحت دې | دپاره دانسان | هر گز نۀ |

اودا [ د دوزخ ] بيان دخلقو دپاره نصيحت قدرله دې | قسم دې

وَالْقَمَرِ ﴿٣٢﴾ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ﴿٣٣﴾ وَالصُّبْحِ

قسم دې په سپوږمئ باندې | او په شپه باندې | كله چې په شاشى | او په صبا باندې |

په سپوږمئ اوشپه چې په تيريدوشى | ........................او په صبا چې

إِذَا أَسْفَرَ ﴿٣٤﴾ إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ﴿٣٥﴾ نَذِيرًا لِّلْبَشَرِ ﴿٣٦﴾

كله چې روښانه شى | چې بيشكه دا دوزخ | خامخا يوه نښه ده دلويو نښونه | يرونكې دې | انسان لره

كله روښانه شى | چې دغه [ دوزخ ] يو ډير لوئې مصيبت دې | د خلقو دپاره ويرونكې دې

لِمَن شَاءَ مِنكُمْ أَن يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ﴿٣٧﴾

| دپاره دهغه انسان | چې غواړى | ستاسو نه | چې وړاند شى [دنيكئ په لار] | ياوروسته شى [كفرته]

يعنى په تاسو كښې دهغه چا چې [په نيكئ كښې] وړاندې كيدل غواړى اوكه روستو پاتې كيدل غواړى

كُلُّ نَفْسٍۢ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ ۝ إِلَّآ أَصْحَٰبَ ٱلْيَمِينِ ۝

هر انسان | په سبب دهغې عمل | چې اوکړی هغه | ګانړه دي | غير دښې لاس والو نه |

هربنده به پخپل عمل کښې ګانړه پروت وی | ......... خو دښې اړخ خاوندان نه

فِى جَنَّٰتٍۢ يَتَسَآءَلُونَ ۝ عَنِ ٱلْمُجْرِمِينَ ۝ مَا سَلَكَكُمْ

هغوئ به په باغونو کښې وی | چې تپوسونه به کوی هغوئ | دمجرمانو نه | څه څيز دننه کړئ تاسو

هغوئ به په باغونو کښې وی | د مجرمانو نه به تپوسونه کوی | چې تاسو کومې خبرې

فِى سَقَرَ ۝ قَالُوا۟ لَمْ نَكُ مِنَ ٱلْمُصَلِّينَ ۝ وَلَمْ نَكُ

په دوزخ کښې | اوبه وائی هغوئ | نه وو مونږه | دمونځ کونکونه | اونه وو مونږه |

دوزخ ته داخل کړئ | هغوئ به په جواب کښې اووائی | مونږ مونځ ګزار نه وو | او مسکينانوته

نُطْعِمُ ٱلْمِسْكِينَ ۝ وَكُنَّا نَخُوضُ

چې ډوډئ مو ورکړې وې | مسکينانوته | او وو مونږه | چې مشغوليدو به مونږه |

به مو خوراک نه ورکولو | او په عبثو خبرو او کارونو کښې مشغوليدونکو سره مونږ هم

مَعَ ٱلْخَآئِضِينَ ۝ وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ ٱلدِّينِ ۝

دحق خلاف مشغوليدونکو سره | او وو مونږه | چې دروغ به مو ګنړو مونږه | ورځې دقيامت لره |

مشغوليدو | .........اومونږ به د جزاء ورځې [قيامت] ته دروغ وئيل

حَتَّىٰٓ أَتَىٰنَا ٱلْيَقِينُ ۝ فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَٰعَةُ

تر دې پورې | چې راغې مونږ ته | هغه څيز يقيني [مرګ] | پس هيڅ فائيده به ورنهٔ کړی هغوئ له |

تردې چې مرګ راباندې راغلو | نوداسې خلقو ته بهٔ دسفارشيانو سفارش هيڅ فائده اونه رسوی

ٱلشَّٰفِعِينَ ۝ فَمَا لَهُمْ عَنِ ٱلتَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ ۝

سفارش دسفارش کونکو | پس څه شوی دی دوئ لره | چې د نصيحت نه | مخ اړونکی دی |

| ......... نو په دوئ څه شوی دی | چې د نصيحت نه مخ اړوی؟

كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ ۝ فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍۭ ۝ بَلْ يُرِيدُ كُلُّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ

دوئ داسې دی لکه | خره | تښتيدونکی | چې اوتښتی دشرمخ نه | بلکه غواړی | هر سړی | ددوئ نه |

لکه چې دوئ [ځنګلی] خرهٔ دی | چې د زمری نه تښتی | خبره داده چې په دوئ کښې هر کس دا غواړی

أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ۝ كَلَّا ۖ بَل لَّا يَخَافُونَ ٱلْءَاخِرَةَ ۝

چې ورکړې شی هغه ته | صحيفې [خط] | غوړيدلې | هر ګز نهٔ | بلکه نهٔ يريږی دوئ | د اخرت نه |

چې هغه ته دې خلاصې کړې صحيفې ورکړې شی | داسې شی کيدې | خبره دا ده | چې دوی د اخرت نه نه ويريږی

كَلَّآ إِنَّهُۥ تَذْكِرَةٌ ۝ فَمَن شَآءَ ذَكَرَهُۥ ۝

هر ګز نهٔ | بيشکه دا | يو نصيحت دې | پس هغه څوک | چې غواړی | نصيحت دې حاصل کړی ددې نه

خبردار دا [قرآن] خو نصيحت دې | نو څوک چې غواړی له دې [کتاب] نه دې نصيحت واخلی

| وَمَا يَذْكُرُونَ | إِلَّآ أَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ط | هُوَ أَهْلُ التَّقْوٰى |
|---|---|---|
| او نصیحت نشي حاصولي دوئ | مگر هغه چي اوغواړي الله | هغه لائق دې ددې چي ویره تري اوشي |
| او نصیحت خو دوی هله حاصلوی شي چي الله اوغواړي | هم هغه ذات د ویري لائق دې چي ویره تري اوشي | |
| وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿۵۶﴾ | | |
| او خاوند دې دبخښني [متقیانو لره] | | |
| او هم هغه دبخښني خاوند دې | | |

## آسان ترجمه قرآن

اے څان په جامو کښې انغختونکیه پاڅه او خلق خبردار کړه. او د خپل پروردګار تکبیر بیانوه. اوخپلي جامي پاکي ساته. او د هري ګندګئ نه ډډه اوکړه او په دې نیت سره احسان مه کوه، چه زیاته وصولي اوکړې او د خپل پروردګار دپاره د صبر نه کار اخله. بیا چه کله په شپیلئ کښې پوکي اووهلې شي. نو هغه به ډیره سخته ورځ وی د کافرانو دپاره به هغه آسانه نه وی. د هغه سړی معامله په ما باندې پریږده، کوم چه ما یواځې پیدا کړې دې او هغه ته مې مال ورکړې دې، چه لرې پورې خور اور دې. او ځامن مې ورکړې دی چه مخښې ته ئې موجود وی. او د هغه دپاره مې د هر کار دپاره لارې صفا کړې دی. بیا هم دا طمع کوی، چه زه هغه ته نور زیات ورکړم. هیڅرې نه شی کیدې، یقینا دې زمونږ د آیتونو دشمن جوړ شوې دې نو لژدې ده چه اوخیژوم ده لره په یوه سخته چړهائي باندې دده حال خو دادې، چه ده سوچ اوکړو او یوه خبره ئې جوړه کړه خدائې دې تباه کړی، چه څرنګه خبره ئې جوړه کړه. دوباره دِ خدائې دې تباه کړی چه څرنګه خبره ئې جوړه کړه بیا ده اوکتل بیائې تندې تریو کړو، اوخله ئې جوړه کړه. بیا شاته اوګرځیدو، او لوئی ئې اوښودله، بیا ئې اووئیل چه: نه دې دا، مګر یو نقل کړې شوې جادو دې. نه دې دا، مګر کلام د انسان دې. زر ده چه زه به دې دوزخ ته داخل کړم. او تاته څه پته ده چه دوزخ څه څیز دې؟ هغه به نه چالره باقي پاتې کوی، او نه به ئې پریږدی هغه څرمنې لره سوزونکې څیز دې. په هغې باندې نورلس (څوکیداران) مقرر دی. او مونږ د دوزخ دا څوکیداران بل څوک نه، فرشتې مقرر کړې دی او ددوی چه کوم تعداد مو مقرر کړې دې، هغه صرف ددې دپاره چه ددې په ذریعې سره د کافرانو ازمیښت اوکړې شی او دې دپاره چه اهل کتابو ته یقین راشی او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، د هغوی په ایمان کښې نور هم زیاتوالې اوشی، او اهل کتاب او مومنان په څه شک کښې مبتلا نه شی، اودې دپاره چه اووائی هغه خلق چه په زړونو د هغوی کښې رنځ (د نفاق) دې او کوم خلق چه کافران دی، چه په دې عجیبه خبرې سره د الله تعالی مراد څه دې؟ د څه شان الله تعالی ګمراه کوی هغه څوک چه اوغواړی، او هدایت کوی هغه چاته چه اوغواړی، او ستا د رب لښکرې د هغه نه سوا بل هیڅوک نه پیژنی او دا ټولې خبرې د انسانانو دپاره یو یادګیرنې والا نصیحت دې، او بس نور هیڅ نه دی. خبردار! قسم دې په سپوږمۍ باندې. او په شپې باندې، چه کله هغه شا اوګرځوی او تیره شی. او په سحر باندې چه کله د هغې رڼرا خوره شی. چه دا د لویو خبرو نه یوه خبره ده. چه ټولو انسانانو لره خبردارَوی په تاسو کښې هر هغه سړی لره چه مخکښې کیدل یا روستو کیدل غواړی هر سړې د خپل عمل

په وجه کافره دې سوا د ښې لاس والو نه چه هغوی به په جنتونو کښې وی، تپوس نه به کوی، د مجرمانو باره کښې. چه: څه څیز تاسو په دوزخ کښې داخل کړئ؟ هغوی به وائی چه: مونږ د مونځ گزارو نه وو. او مونږ به مسکین ته خوراک نه ورکوو. او کوم خلق چه به په عبثو کښې مشغولیدل، مونږ به هم هغوی سره مشغولیدو او مونږ به ورځ د جزا دروغ گڼړله تردې پورې چه هغه یقینی خبره مونږ ته راغله. لو د سفارش کونکو سفارش به دوی ته هیڅ نفع ورنکړی. نو اوس دې خلقو ته څه شوي دی، چه دوی د نصیحت د خبرې نه مخ اړولي دي؟ گویا چه دوی ځنګلي خره دی. چه د ازمری نه (په ویرې) سره تیخته کوی. بلکه په دوی کښې هر سړې دا غواړی، چه هغه ته خورې ورې صحیفې ورکړې شی هیڅرې نه خبره اصل کښې داده، چه دوی سره د آخرت ویره نشته هیڅرې نه، دا (قرآن بس) یو نصیحت دې. اوس چه څوک غواړی، ددې نه دې نصیحت حاصل کړی. او دا خلق نصیحت حاصلوی نه، مګر دا چه الله تعالی داسې اوغواړی، هم هغه لائق دې ددې خبرې، چه ویره ترې اوکړې شی، او هم هغه ددې لائق دې، چه د خلقو مغفرت اوکړی.

## خلاصه تفسیر

﴿يَأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ۝ قُمْ فَأَنذِرْ ۝﴾ [اے په کپړو کښې نغښتی شو یه پورته شه] یعنی دخپل ځائی نه پورته شه یاتیارشه [بیا] کافرانو لره [اوویروه] کومه چه مقتضی ده دنبوت دمنصب اودلته ئې د تبشیر یعنی دجنت دخوشخبرئ ځکه ذکر ونهٔ فرمائیلو چه دا ایت بالکل دنبوت دابتدائی وخت دې دغه وخت په استثناء دیو دوؤ نورو مسلمانان نهٔ وو نو ویرول ئې زیات مناسب وو ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ۝﴾ [او دخپل رب لوئی بیانوه] چه په تبلیغ کښې دټولونه اول شې توحید دې [او] وراند دخنو ضروری عملونو عقیدو او اخلاقو تعلیم دې په کومو چه په خپله هم عمل پکار دې چه دتبلیغ سره خپله اصلاح هم ضروری ده یعنی یو خو ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ۝﴾ [خپلو کپړو لره پاکې ساته] دا دعملونو نه دې او چونکه بالکل په ابتداء کښې مونځ نهٔ وو په دې وجه ددې حکم ونهٔ شو [او] دویم داچه ﴿وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ۝﴾ [دبتانو نه جدا اولرې اوسه] لکه چه تراوسه ترې نه جداوې دا د عقائدونه دې یعنی په تیره طریقه په توحید باندې دوام ساته اوسره ددې چه دنبی کریم ﷺ نه په شرك کښې داخته کیدو څه احتمال نهٔ وو بیا هم دا حکم ځکه ورکړې شو چه د توحید دعقیدې اهمیت معلوم شي چه معصوم ته هم سره ددې چه حاجت ئې ورته نشته ددې تعلیم ورکیدې شی ﴿وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ ۝﴾ [او چالره په دې غرض سره څهٔ مه ورکوه چه] بل وخت به [زیاته بدله غواړې] دا حکم داخلاقو په حقله دې اګر چه دنورو خلقو دپاره داکار جائز دې خو بیا هم خلاف اولی دې لکه چه دسورة روم دایت ﴿وَمَا آتَيْتُم مِّن رِّبًا﴾ (۱) دتفسیر نه معلومیږی لیکن دحضور ﷺ شان چونکه اعلی او اوچت دې په دې وجه ئې دا هم په دوی ﷺ باندې حرام کړل لکه چه په روح المعانی کښې دی او صحیح داده چه نهی دتحریم دپاره ده او دا دخواصو دعلیه

---

(۱) ترجمه:- اوتاسو خلق چې (کوم رقم) په سود ورکوئ چې دخلقو په مال کښې ملاؤ شی نو زیات شی نو داسې څیز د الله په نیز نه زیاتیږی (بلکه بې برکته وی) اوتاسو چې د الله د رضا دپاره کوم زکاة ورکوئ نو داسې خلق (خپل مالونه) دالله ﷻ سره (په څوځوچنده) زیاتوی

الصلوة والسلام نه ده(۱) ﴿وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ﴾ [اوبيا] په ويرولو اوتبليغ كښې چه كوم ازار درپېښ شی په هغې [دخپل رب د] خوشنودئ [ پاره صبر كوه] داخاص داخلاقو متعلق بالتبليغ په حقله دي پس داايتونه جامع شول داصلاح داعمالو اواخلاقو دخان دپاره هم اودنورو دپاره هم ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ﴾ [بيا] ددې ويرولو نه پس څوك چې ايمان رانه وړی دهغه دپاره داوعيد دې چه [څه وخت شپيلئ ووهلې شی ﴿فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ﴾ پس دغه وخت يعنی دغه ورځ په كافرانو باندې يوه سخته ورځ به وی په كومو كښې چه به هيڅ هم اسانی نه وی ] وراندې دخنو خاصو كفارو ذكر دې يعنی ﴿ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا﴾ [ مالره اوهغه سړی لره] په خپل خپل حال [پريږده چه] مونږ به ورسره پوهه شو[ كوم لره چه ما] دمال اولادنه خالی او[يوازې پيدا كړو] لكه چه دپيداكيدو په وخت كښې دسړی سره نه مال وی اونه اولاداومراد ددې نه وليدبن مغيره دې چه قصه به ئې دمعلوماتواومسائلو لاندې راشی ﴿وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا مَمْدُودًا﴾ [ اوده لره مې ډير مال وركړو ﴿وَبَنِينَ شُهُودًا﴾ اوپه خواكښې اوسيدونكی خامن ] مې وركړل ﴿وَمَهَّدتُّ لَهُ تَمْهِيدًا﴾ [ اودهر قسم سامان مې دده دپاره تيار كړو ﴿ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ﴾ بيا هم ] سره ددې چه ددې مال اولادشكر ئې ادانه كړو چه ايمان ئې راوړې وې بلكه داپريمانه نعمت ئې په ناشكرئ اوبې قدرئ سره كم وګڼړلو[ ددې خبرې هوس لری چه] ده ته [نور زيات وركړم ﴿كَلَّا إِنَّهُ كَانَ لِآيَاتِنَا عَنِيدًا﴾ هرګز] دغه دزيات وركولو قابل [ نه دې ] څكه چه [هغه زمونږ دايتونومخالف دې ] اودمخالفت سره عدم قابليت ظاهر دې داستدراج معامله ددې نه جداده ددې سړی دايتونو دنزول دورځې نه ظاهراهم ترقی بنده شوه چنانچه بيا ئې نه څه اولادوشو اونه ئې مال زيات شو اودا سزا خو په دنيا كښې ده اوپه اخرت كښې به ﴿سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا﴾[ ده لـره ډيـر زر] يعنـی دمـرګ نـه پـس [ ددوزخ غرونوتـه وخيـژوم ] دترمـذی پـه حـديث كښـې مرفوعادی چه صعودپه دوزخ كښې يو غر دې په اوياكاله كښې به دده سرته ورسی بيا به دهغه خائې نه رارغړی بيابه دغه شان هميشه خيژی او رادغړی به(۲) او وجه ددې سزا هغه عناد دې كوم چه بره ذكر شو اووراندې هم ددې څه تفصيل دې هغه داچه ﴿إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ﴾دې سړی [په دې باره كښې] سوچ وكړو [چه دقرآن په شان كښې څه خبره تجويز كړم ﴿فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ﴾ [بيا] ئې سوچ وكړو[ يوه خبره ئې تجويز كړه] چه بيان ئې راځی [پس په ده دې دخدائی لعنت وی څنګه خبره ئې تجويزكړه] او[بيا] مكرر [په ده دې دخدائی لعنت وی څنګه خبره ئې تجويز كړه] دامكرر تعجب دده په سخت مذمت اوقابل تعجب خبره باندې دې يعنی څنګه بې جوړه خبره ئې تجويز كړه دكومې چه احتمال نه شی كيدې ﴿ثُمَّ نَظَرَ﴾[ بيا ئې] دحاضرينو مخونوتـه [وكتل ] چه دغه تجويز شوې خبره دوی ته وكړم ﴿ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ﴾[ بيائې خله ورانه كړه] چه ليدونكی وګڼړی چه دې دقرآن نه ډيركراهت لری [اوزياته خله ئې ورانه كړه ﴿ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ﴾ بيا ئې مخ واړولو اوتكبر ئې ظاهر كړو] لكه چه عادت دې چه كوم شې قابل اعراض ګڼړی دهغې دذكركولوسره مخ اړوی او دنفرت اظهار كوی ﴿فَقَالَ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ﴾ [ بيائې وونيل چه بس داخو جادودې ] كوم چه دنورونه[ نقل دې ﴿إِنْ هَٰذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ﴾ بس دادسړی كلام

۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۱ ص:۴۰۲]
۲) جامع الترمذي ، ابواب صفة جهنم باب صفة قعر جهنم [ج:۲ ص:۸۵]

دي ] دابيان دي ددغه مذکوره تجويز مطلب داچه دالله تعالی کلام نهٔ دی بلکه دبنده کلام دي کوم لره چه دي دچاجادوګر نه نقل کړی یاپه خپله مصنف دي ليکن دامضامين دتیرو مدعيانو دنبوت نه منقول دی اواسلوب دعبارت نعوذ بالله ددوی دسحر اثر دي وړاندي ددي عنادسزا تفصيلا بيان فرمائی لکه چه بره په سأرهقه صعودا کښي ئی اجمالا فرمائيلي وه پس په عنيداکښي دجرم ذکر او په سارهقه کښي دسزا ذکر اجمالا او انه فكر دعنيداً تفصيل دي اوساصليه دسارهقه تفصيل دي يعنی ﴿سَأُصْلِيهِ سَقَرَ﴾ [زهٔ به دهٔ لره زر په دوذخ کښي داخل کړم ﴿وَمَآ أَدْرٰىكَ مَا سَقَرُ﴾ اوتهٔ څهٔ خبرينې چه دوزخ څهٔ شي دي ] هغه داسي دي چه ﴿لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ﴾ [نهٔ خو دداخليدونه پس به د داخليدنکي څهٔ شي دسوزيدونه [ باقی پاتي کړی اونهٔ به] د داخليدونه وړاندي چه کوم کفار دغه وخت بهر وی نهٔ به ددغونه چالره بغير دخپل خاتمه د داخليدونه [پریږدی] او﴿لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ﴾ [هغه] به وسوزی [دبدن حيثيت به وران کړی ] او﴿عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ﴾ [په دي به نولس فرينښتي دی ] کومي چه ددي خازناني دی اوديوي فرينښتي نوم په کښي مالك دي مقرر[ وی] کومي چه به کافرانو له قسم قسم عذابونه ورکوی مطلب داچه فرينښتي دکومو قوت چه معلوم دي سره د دي چه ددوی نه يوه هم دټولو دوزخيانو دعذاب دپاره کافی ده بيا په نولسو فرينښتو مقررولو سره ظاهره ده چه دعذاب به ډير اهتمام وی اوخاص نکته دنولس په عدد کښي الله تعالی ته حقيقتا معلومه ده ليکن نورو حضراتو چه کوم ذکر کړي دي په هغه ټولوکښي اقرب هغه دي کوم چه الله تعالی ددي حقيرپه زړهٔ کښي القاء فرمائيلي دي هغه داچه اصل عذاب دکفارو دحقو عقيدو په مخالفت باندي دي اوقطعی عقيدي کومي چه دعملياتو متعلق نهٔ دی دفروع الايمان رسالي دتفصيل مطابق نهه دی ① ايمان راوړل په الله تعالی ② عقيده لرل چه عالم حادث دي ③ ايمان راوړل په فرينښتو ④ ايمان راوړل دالله تعالی په ټولو کتابونو ⑤ ايمان راوړل په پيغمبرانو ⑥ ايمان راوړل په تقدير ⑦ ايمان راوړل دقيامت په ورځ ⑧ په جنت يقين کول ⑨ په دوزخ يقين کول ، باقی ټولي عقيدي ددي ملحقات اوفروع دی اوقطعی عقيدي کومي چه دعملياتو متعلق دی لس دی پنځه دماموراتو په حقله دی يعنی ددوی دوجوب اعتقادضروری دي هغه پنځه مامورات کوم چه شعائراسلام دی دادی ① تلفظ په شهادتينو ② اقامت صلوٰة ③ ورکړه دزکوٰة ④ روژه درمضان ⑤ حج دبيت الله شريف اوپنځه دمنهياتوپه حقله يعنی ددي دحراموالی عقيده واجب ده اودغه پنځه منهيات کوم چه په ايت دامتحان وغيره کښي ذکردی دادی ① غلا ② زنا ③ قتل خصوصاقتل داولاد ④ بهتان ⑤ عصيان فی المعروف په کوم کښي چه غيبت ظلم ديتيمانو مال په ناجائز طورخوړل وغيره ټول راغلل پس داټولي عقيدي چه ملاو کړي نولس شوي شايد ديوي يوي عقيدي په مقابله کښي يوه يوه فرينښته به مقرره وی اوچونکه په دي ټولو کښي هم يوه عقيده دټولونه لويه ده يعنی توحيد په دي وجه په دي فرينښتو کښي هم يوه فرينښته به دټولونه لويه مقرر شوي وی يعنی مالك الله تعالی په خپلو رازونوښهٔ پوهه دي [او] ددي ايتونو په اوريدوچه کفارو کومي مسخري وکړي چه بيان به ئي دمعلوماتو اودمسئولاتدي راشی په دي باندداوړاندي مضمون نازل شوچه ﴿وَمَا جَعَلْنَآ أَصْحٰبَ النَّارِ إِلَّا مَلٰٓئِكَةً﴾ [ مونږ ددوزخ کارکوونکی ] بنيادم نه بلکه [ صرف فرينښتي جوړي کړی دی ] کومي چه په يوه يوه فرينښته کښي دټولو بنيادمو او پيريانو برابر قوت دي لکه چه داسي په درمنثو کښي مرفوعادی او

الفاظ ئې دادي لهم مثل قوة الثقلين ﴿وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ﴾ [ اومونږ كوم شمير چه ددوی] په ذكر اوحكايت كښې [ صرف داسې ايښې دې ﴿إِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ كوم چه دكافرانو دګمراهۍ ذريعه وی ] مراددې نه دنولسو عدددې ﴿لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ [نو په دې وجه ] چه دانتيجې په دې مرتب شی يعنی [چه اهل كتاب ] داوريدوسره [ يقين وكړی ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا﴾ اوداايماندارو ايمان نورزيات شی ﴿وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْمُؤْمِنُونَ﴾ اواهل كتاب اومومنان شك ونه كړی ﴿وَلِيَقُولَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾ اوچه دكوموخلقو په زړونو كښې [دشك] مرض دی هغه ﴿وَالْكَافِرُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا﴾ اوكافران خلق اووائی چه په دې عجيبه مضمون سره دالله تعالى څه مقصوددی داهل كتابو ديقين دوه توجيه كيدې شی يو داچه ددوی په كتابونو كښې هم داعددليكلې شوې دې نو فورابه ئې ومنی اوكه اوس ددوی په كتابونوكښې داعددنه وی نوممكنه ده چه دكتابونو په ضائع كيدويابدليدو سره ضائع شوې وی اودويمه توجيه دا كيدې شی چه عدد د دوی په كتابونو كښې نه وی ليكن هغوې دفرښتو دقوت قائل وواودير امور توقيفيه د دوی په كتابونو كښې موجودوو نو ددوی سره څه مبنی دانكار نه وه پس په يقين سره مرادعدم انكار اوعدم استهزاء به وی ليكن اوله توجيه ظاهره ده اودايماندارو دايمان دزيادت هم دوه توجيه كيدې شی يوه داچه داهل كتابو يقين ووينی ددوی ايمان به كيفاقوی شی چه دوی ﷺ سره ددې چه داهل كتابوسره ئې اختلاط نشته دسابقې وحی مطابق خبرور كوی ضرور نبی بر حق دې دويمه توجيه داچه هر كله به نوې څه مضمون نازليدوبه هغې به ئې ايمان راوړلو پس يو فرد د تصديق بل زيات شو په دې سره په حيثيت دكميت په ايمان كښې زياتې وشو اويرتاب ئې دتاكيدپاره زيات كړو چه داثبات يقين اونفی شك دواړو وضاحت وشی اوپه مرض كښې دوه احتماله دی يو شك څكه چه دحق دظهور نه پس څنې جاحداومنكر كيږی څنې متردد كيږی نوپه مكه كښې به هم داسې خلق وو دويم په معنی دنفاق نو په دې كښې به پيشينګوئی شی چه په مدينه كښې به منافقان وی اودابه ئې قول وی اودمومنانو اواهل كتابواثبات اونفی شك ئې جداجدا څكه وفرمائيلو چه داهل كتابويقين اونفی دَ شك لغوی دی اودمومنانو شرعی وړاندې ددواړوفريقوحال په طور دتفريع فرمائی چه څنګه حق تعالى ايماندارو ته په دې باب كښې خاص هدايت وكړو اوكافرانو لره ئې په دې باب كښې خاص ګمراه كړل ﴿كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ مَن يَشَاءُ﴾ [دغه شان الله تعالى چا لره چه غواړی ګمراه كوی ﴿وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ﴾ اوچالره چه غواړی هدايت ورته كوی ] اووړاندې تتمه ده دتير مضمون چه دجهنم دخازنو فرښتو تعدادنولس ديو خاص حكمت په بنابانديې دې ورنه ﴿وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ﴾ [ستاسو درب د] دې [لښكرو] يعنی دفرښتو شمير په دومره كثرت سره دې چه دې [اله بغير درب نه بل هيڅوك نه پيژنی ] كه هغه غوښتلې نوبې انتهافرښتو لره به ئې خازنانې جوړې كړې وې او اوس هم اګر چه خازنان نولس دی مګر دوی نور اعوان اوانصار په ډير كثرت سره دی چنانچه دمسلم په حديث كښې دی چه جهنم به په داسې حال كښې حاضركړې شی چه دده به اويازره واګې وی اوهره يوه واګه به ئې اويا زره فرښتو نيولې وی[او] كوم چه اصل مقصود دې دجهنم په حال بيانولو سره هغه دعددپه قلت ياكثرت باانكشاف حكمت تخصيص ياعدم انكشاف باندې موقوف نه دې اودغه اصل مقصود دا دې ﴿وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ﴾ چه د [دوزخ] حال بيانول [ صرف دبنيادمو دنصيحت دپاره دی] چه

دهغه ځاني عذاب واوړي وويريږي او ايمان راوړي او دامقصود په څه خاصو خصوصياتو باندې موقوف نه دې پس مقتضاد عقل هم داده چه اصل مقصود محفوظ او ملحوظ وساتلې شي په دې پورته امورو پسې نه شي. وړاندې د جهنم دعذاب څه قدرې بيان دې په کوم کښې چه ذكرىٰ للبشر داجمال تفصيل دې پس ارشاد دې چه ﴿كَلَّا وَالْقَمَرِ﴾ [په تحقيق قسم دې په سپوږمۍ ﴿وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ﴾ او په شپه هر كله چه روانه شي ﴿وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ﴾ او په سحر كله چه روښانه شي ﴿إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ﴾ چه دوزخ ډير لوئې دروندشي دې ﴿نَذِيرًا لِّلْبَشَرِ﴾ كوم چه دانسان دپاره لويه ويره ده ﴿لِمَن شَاءَ مِنكُمْ أَن يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ﴾ يعنى په تاسو كښې چه كوم [دخيرطرف ته] وړاندې شي دهغه دپاره هم يا كوم چه] دخيرنه [ورستوشي دهغه دپاره هم ] مطلب داچه دټولو مكلفينو دپاره ويره ده او چونكه نتيجې ددې ويرې به قيامت كښې ظاهريږي په دې وجه قسم په داسې څيزونو وخوړې شو كوم چه دقيامت سره ډير مناسب دى چنانچه دسپوږمۍ اول زياتيدل بيا كميدل نمونه ددې عالم دنشونما او بيادمړه كيدو او فناكيدو ده تردې چې دسپوږمۍ محاق يعنى بې نوره كيدو په شان به داهم محض فانى شى دغه شان دې عالم دنيا لره ددغې عالم اخرت سره په پټيدو او ښكاره كيدو دحقائقو كښې داسې نسبت دې لكه دشپې چه دورځې سره دې پس ددې عالم ختميدل مشابه دى دشپې تيريدو سره او ددې عالم ظهور مشابه دې د صبا كيدو سره وړاندې ددنيا او داهل دنيا دخنواحوالو بيان دې يعنى ﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ﴾ [هريوسړې به دخپلو ] كفريه[عملونو په بدله كښې ] په دوزخ كښې[قيدوى ﴿إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ﴾ مگر ښۍ طرف والا] يعنى مؤمنان چه تفصيل ئې په سورة واقعه كښې تيرشوې دې او چونكه دلته داصحاب اليمين په مقابل كښې اصحاب الشمال دى په دې وجه مقربينو لره هم شامل دې مطلب داچه مؤمنان ددې قيدنه مستثنى دى ﴿فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ [چه هغوې به په جنتونو كښې وى] او ﴿عَنِ الْمُجْرِمِينَ﴾ [دمجرمانو ] يعنى كفارو[ دحال به ] په خپله ددغو كفارونه [تپوسونه كوى ] او كيفيت ددغو خپل مينځ كښې خبرو باوجود دهغې لرې والى چه ددوزخ او جنت په مينځ كښې دې په سورة اعراف كښې دايت ﴿وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابَ النَّارِ﴾ الخ[1] په تفسير كښې تير شوې دې او داتپوس به دزجر او خبردارولو دپاره وى مطلب داچه مؤمنان به دكفارو نه تپوس وكړى چه ﴿مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ﴾ [تاسو په دوزخ كښې كومې خبرې داخل كړئ ﴿قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ﴾ هغوى به ووائى چه مونږ به نه خو مونځ كولو ﴿وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ﴾ اونه به موغريب ته] كوم چه دهغه واجب حق وو[ خوراك وركولو او] كوم خلق چه دحق دين دباطلولو په مشغله كښې وو ﴿وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ﴾ ددغو [مشغله كوونكو سره به مونږ هم ] په دغه [ مشغله ] ددين دابطال [ كښې وو ﴿وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ﴾ او دقيامت ورځ به مودروغژن كوله ﴿حَتَّىٰ أَتَانَا الْيَقِينُ﴾ تردې چه ] په دې حالت كښې [ مونږ لره مرگ راغې ] او مونږ د دغو حركتونونه منع نه شو يعنى خاتمه موپه دغه نافرمانۍ وشوه په دې وجه مونږ دوزخ ته راغلو اود دې نه دانه' لازميږى چه كفار دمكلف بالفروع يعنى مونځ روژه او شرعى احكامو مامور وى خكه چه په جهنم كښې به دوه څيزونه وې يو عذاب دويم شدت دعذاب پس ممكنه ده چې د اعمال مذكوره مجموعه به سبب وى د عذاب او شدت

---

[1] ترجمه:- او جنتيان به دوزخيانو ته آوازونه كوى.

عذاب، داسې چه کفر اوشرك خو سبب وی دعذاب او پريښودل دمونځ وغيره سبب وی دزيات دعذاب اود کفارو دغیر مکلف کیدو په فروعو باندې به دامعنی کولی شی چه په دې فروعو به نفس عذاب نۀ وی اوزیات عذاب څکه کیدې شی چه داصولو په ضمن کښې فروع هم تبعا راخی په دې وجه ضمنا مکلف کیدل دعذاب دزیاتوالی سبب کیدې شی [پس ] په ذکر شوی حالت کښې ﴿فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ﴾ [دوی ته دسفارش کوونکو سفارش به نفع ورنۀ کړی ] اود دې عدم نفع تحقق به دعدم شفاعت په تحقق سره وی یعنی هیڅوك به ددغو كافرانو شفاعت هم ونۀ کړې شی لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿فَمَا لَنَا مِن شَافِعِينَ﴾(١) وړاندې د دوې په اعراض باندتفريع ده چه هرکله په کفر اواعراض باندې ددوی داحال کیدونکې دې ﴿فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ﴾ [ نو دوی لره څۀ وشو چه ددې نصیحت ] قرانی [ نه روګردانی کوی ﴿كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ﴾ چه ګویا هغه وحشی خره دی ﴿فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ﴾ کوم چه دزمری نه تښتی ] په دې تشبیه کښې دڅوکارونو رعایت دې اول خوخرپه بې وقوفۍ اوحماقت کښې مشهور دې دویم ئې دۀ لره وحشی فرض کړوکوم ته چه ځنګلی خروائی چه هغه کوم ځیزونه چه د ویرې نۀ وی دهغې نه هم بلاوجه ویریږی اوترهیدلی منډې وهی دریم ئې ددۀ ویره دزمری نه فرض کړه چه په دې صورت کښې د دۀ تیښته دانتهائی درجې وی اوددې تیښتې په اسبابو کښې یو سبب داهم دې چه داخلق په خپل خیال سره داقرآن کافی حجت نۀ ګڼړی ﴿بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً﴾ بلکه په دوی کښې هر سړې داغواړې چه دۀ ته ښکاره [ اسمانی ] لیکلی ورکړې شی لکه چه په درمنثور کښې دحضرت قتادهؓ نه روایت دې چه څنې کفارودوی ﷺ ته ووئیل چه کۀ تۀ داغوړې چه مونږ دې ستاتابعداری وکړو نوخاص زمونږ په نوم داسمان نه داسې لیکلی راوړه په کومو کښې چه ستادتابعدارئ کولو حکم لیکلی شوې وی لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهُ﴾(٢) اود مُّنَشَّرَةً زیاتول دمقصود دوضاحت دپاره دی لکه دمعمولی خط په شان چه خلاصولې شی اولوستلې شی داسې لیکلی مونږ ته راوړل پکاردی وړاندې د دې بې هوده درخواست رد دې چه ﴿كَلَّا ۖ بَل لَّا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ﴾ [ داسې هر ګزنۀ] شی کیدې څکه چه نۀ ددې ضرورت شته اونۀ په دې خلقو کښې دومره لیاقت خصوصا په دې وجه چه ددې درخواست سبب دانۀ دې چه ددوی په زړۀ کښې اراده وی چه کۀ داسې وشی نو تابعداری به وکړی [بلکه ] سبب دادې چه [داخلق داخرت ] دعذاب [نه نۀ ویریږی ] په دې وجه دحق طلب په کښې نشته اودا درخواستونه محض په ضد اوناړامۍ سره دی تردې چه کۀ دا درخواستونه بالفرض پوره هم شي بیاهم داخلق اتباع نۀ کوی لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ﴾(٣) وړاندې په طور دنتیجې ددې رداوپه دې زجر دې چه هرکله د دې درخواست بې هوده والی ثابت شو نو ﴿كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ﴾ دا [هر ګزنۀ ] شی کیدې بلکه [داقرآن ] د [نصیحت ] دپاره کافی [دې ] دنوروصحیفوضرورت نشته [پس] په دې حالت کښې ﴿فَمَن

---

١) ترجمه:- پس نه څوك زمونږ سفارشی شته دې.

٢) ترجمه:- تر کومې پورې چې تا مونږ ته یوخط نه وی راوړې چې مونږ هغه اولولو.

٣) ترجمه:- اوکه مونږ به تاباندې یولیکلې کاغذ نازل کړې وې نو هغه دې خلقو په خپلولاسونو کښې اخستې هم وی نو بیا هم دې کافرانو خلقو وئیل چې دا هیڅ نه دی مګر ښکاره جادو دې.

شَآءَ ذَكَرَهٗ﴾[دچا زړه چه غواړي ددې نه دې نصيحت حاصل کړې ] اودچا زړه چه نه غواړي جهنم ته دې لاړشي زمونږ هيڅ ضرورت نشته چه ددوی غوښتلې شوې صحيفې نازلې کړو[او] دقرآن په هدايت کيدوکښې دې دا شك اونه کړې شی کولې چه څنو خلقو ته په دې سره هدايت نه شی کيدې خبره داده چه قرآن اګرچه فی نفسه نصيحت دې ليکن ﴿وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ اللّٰهُ﴾[بغير دخدائے پاك درضانه خلق نصيحت نهٔ شی قبلولی ]اوپه دې نهٔ رضا کښې څنې حکمتونه دی ليکن قرآن فی نفسه نصيحت ضرورديې پس ددې نه نصيحت حاصل کړئ اودخدائې اطاعت کوئ څکه چه ﴿هُوَ أَهْلُ التَّقْوٰى وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ﴾[هغه دې دکوم ] دعذاب [نه چه ويريدل پکاردی او] هغه دې [کوم چه ] دبندګانو ګناه[معاف کوی ] لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ ۖ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾([1])

## معارف او مسائل

سورة مدثر د هغې سورتونو څخه دې چې دقرآن پاک د نازليدو په بالکل اولنی دور کښې نازل شوی دی په دې بنا څينې حضراتو ورته د ټولو نه اول نازليدونکې سورت هم وئيلې دې. او د صحيح مشهورو روايتونو په وجه د ټولونه ړومبې دسورة اقراء ړومبنی آيتونه شو ، بيا څه موده دقرآن پاک د نازليدو سلسله بنده شوه چې ورته د وحی د فترت زمانه وئيلې شی ، ددغې زمانې په آخر کښې دا واقعه راپيښه شوه چې نبی کريم ﷺ په مکه مکرمه کښې چرته تشريف اورو. دپورته نه ئې څه آواز واؤريدو ، نبی کريم ﷺ چې پورته آسمان اړخ ته اوکتل نو هم هغه فرښته ئې په پورته فضا کښې اوليدو چې په زوړند کرسئ باندې ناست وو. چې ورته غار حرا کښې په اول ځل وحی د اقراء راوړې وه. په نبی کريم ﷺ باندې ددې نه هيبت راغلو څنګه چې غار حرا کښې پرې راغلې وو ، يخنئ نيولی وو ، ټول رپيدلو او په داسې حالت کښې کورته راغلل او وې وئيل چې [زملون زملونی ] يعنې ما اونغاړئ ما اونغاړئ. چې اونغښتې شو او څملاستل پريوتل نو دسورة مدثر ابتدائی آيتونه مبارک پرې نازل شو لکه حديث پاک کښې راغلی دی([2]) ، څکه ورته په [يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ] سره خطاب اوکړې شو. دالفظ د دثار نه مشتق دې چې هغه زياتی جامو ته وائی چې عام لباس دپاسه د يخنئ لرې کولو دپاره استعمالولې شي. نو دا يو حبيبانه او مشفقانه خطاب دې لکه چې په: [مُزَّمِّلُ] کښې ئې بيان اوشو د [مُزَّمِّلُ] معنی هم دې ته نزدې ده. روح المعانی کښې د جابر بن زيدتابعی رحمه الله نه منقول دی فرمائی چې سورة مدثر سورة مزمل نه پس نازل شوې دې([3]). او څينې حضراتو دا روايت د ابن عباس رضي الله عنه نه هم نقل کړې دې ، مګر د صحيحينو دروايت مطابق کوم چې پورته نقل کړې شوې دې ، دهغې د ښکاره بيان مطابق دټولو نه اول سورة مدثر نازل شوې دې [اومراد دادې د فترت وحی نه پس دټولونه مخکښې دا سورت نازل شو] که مزمل ددې نه وړاندې نازل شوې وې نو جابر بن عبدالله رضي الله عنه دحديث پاک راوی به دا بيان

[1]) ترجمه:- بيشکه ستا رب زر تر زره سزا ورکوی او بيشکه هغه لوې مغفرت والا او لوې رحمت والا دې.

[2]) صحيح البخاري ،باب كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ [ج:۱ص:۳] و صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ [ج:۱ص:۹۰]

[3]) تفسير روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۳۶۹]

کړې وي. او دا ښکاره ده چې د مزمل او مدثر معنی نژدې نژدې دی. کیدیشی چې هم په یو واقعه کښې دا دواړه نازل شوي وي کومه چې وړاندې بیان شوه چې جبرائیل ﷺ ئې په آسمانی فضا کښې په یو زوړنده کرسئ ناست لیدلې وو چې کور ته راغللو نو په جامو کښې د انغښتو دپاره نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. دې نه کم ناکم دومره خو ثابتیږی چې د سورة مزمل او سورة مدثر ابتدائی آیتونه د فترت وحی نه پس د ټولو نه اول نازلیدونکې آیتونه دی خو ددې دواړو سورتونو په وړاندې والی روستووالی کښې روایتونه مختلف دی. خو دا د صحیح روایتونونه ثابت دی چې د سورة اقرأ ړومبی آیتونه ددې دواړو نه وړاندې څه چې د ټولو نه وړاندې نازل شوي دی. او دا دواړه سورتونه اګر چې په نزدې زمانه کښې هم د یوې واقعې په باره کښې نازل شوی دی خو فرق صرف دومره دې چې د سورة مزمل په شروع کښې کوم حکمونه چې ورکړې شوی دی هغه د نبی کریم ﷺ د خپل ذاتی شخصی اصلاح په باره کښې دی، او د سورة مدثر په شروع کښې ورکړی شوی حکمونه اکثر دعوت، تبلیغ او د خلقو د اصلاح سره تعلق لری.

په سورة مدثر کښې د ټولو نه ړومبې حکم دا ورکړې شوې دې چې: [قُمْ فَأَنذِرْ] ، ددې حقیقی معنی داهم کیدیشی چې په جامو کښې ځان انغښتل او څملاستل پریږدئی، اودا معنی هم کیدیشی چې خپل کاردپاره تکړه، چابک شئ، ملا اوتړئ، اودخلق خدا داصلاح خدمت کوئ.

[فَأَنذِرْ] د انذار نه مشتق دې. او ددې معنی ویرول دی خو دا سې ویرول چې په شفقت او محبت وی څنګه چې پلار خپل بچی د لړم او مار نه ویروی هم. دا شان د پیغمبرانو ﷺ وی څکه ورته دبشیر او نذیر لقب ورکولې شی. د نذیر معنی د شفقت په وجه ویرونکې او د بشیر معنی زیرې آورونکې ،دا دواړه لقبونه په قرآن کریم کښې ځائې په ځائې نبی کریم ﷺ دپاره هم راغلی دی. خو دلته یواځې دانذار یعنی ویرولو ذکر څکه اوشو چې مسلمانان خو د شمیر یو څو کسان وو، نور ټول منکران او کافران وو چې هم د ویرولو جوګه وو.

دویم حکم دا ورکړې شو چې: [وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ] یعنی صرف د خپل رب لوئی بیانه وه. په وینا او عمل دواړو سره د رب لفظ دلته څکه اختیار کړو چې د ویرې لائق یواځې هغه ذات کیدیشی چې دټول جهان پالونکی دې او هغه د هرې لویئ حقدار دې، د تکبیر لفظی معنی دالله اکبر وئیلو معنی هم ورکوی چې په کښې د مونځ د نیت تړلو اونور تکبیرونه هم داخل دی. اود اذان او اقامت هغه تکبیرونه هم په کښې داخل دی چې د مونځ نه بهر وی پدې کښې یواځې د مونځ تکبیر تحریمه خاص کولو ته هیڅ اشاره د قرآن پاک پدې الفاظو کښې نشته.

دریم حکم دا ورکړې شوې دې چې: [وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ] ، ثیاب د ثوب جمع ده حقیقی معنی ئې د ا غوستلو جامه ده، او مجازی معنی ئې عمل هم کیدیشی. زړه اونفس ته هم او اخلاقوته هم اودین ته هم وئیلی شی. انسانی جسم ته هم لباس وئیلې شی چې ثبوتونه ئې په قرآن پاک کښې او د عربو په محاورو کښې ډیر دی، دې آیت مبارک کښې د مفسرینو حضراتو ﷺ نه دا ټولې معنې منقول دی، ښکاره خبره ده چې دې کښې څه مقابله او اختلاف نشته کله چې دا په عموم مجاز باندې حمل کړې شی، او ټولې معنې ئې مراد واخستلې شی نوهیڅ لریوالې په کښې نشته، پدې بنا معنی ددې حکم بهٔ داوی چې بدن او جامې د ظاهری ناپاکو نه ساتئ او پاکوئی. زړه او نفس د باطلو خیالاتو او رذیل اخلاقو نه پاک ساتئ، د لنګ او پرتوګ او

دخپو د ګیټو نه لاندې ساتلو ممانعت هم دَدې نه هم معلومیږی ، ولې چې دغه زړونده جامې ګنده کیدیشی ، په دې شان د جامو دپاکولو حکم هم راغلو ، یعنی جامې داسې استعمالوئی چې د پلیتئ نه لرې وی ، دجامو پاکولو دامطلب هم کیدیشی چې په حرام مال دې نشی جوړولې ، په داسې شکل دې نه شی جوړولی چې شریعت نه خلاف وی ، د آیت مبارک د ظاهر نه دا معلومیږی چې د جامو پاکې لرل یواځې مونځ سره خاص نه بلکه ټولو حالاتو کښې عام دی ، نو فقهاء کرامو فرمائیلی دی چې د مونځ د حالت نه بغیر هم چې ضرورت نه وی د بدن ناپاک لرل ، یا ناپاکې جامې اغوستل لرل یا په ناپاک ځائې کښې ناسته کول جائز نه دی . د ضرورت موقعې دې نه مستثنی دی [ مظهری ]([1]) .

الله ﷻ پاکوالې خوښوی لکه فرمائی چې : [اِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ التَّوَّابِیْنَ وَیُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِیْنَ۝]([2]) ، حدیث پاک کښې پاکوالی او پاکیزګئ ته نیم ایمان وئیلې شوې دې([3]) ځکه پکار دی چې مسلمان په هر حال کښې خپل بدن ، مکان او جامه دې په ظاهره هم پاکه ساتی او د زړهٔ د باطنی پاکوالی دې هم پوره پوره خیال ساتی . والله اعلم .

څلورم حکم دا ورکړې شو چې : [وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ۝] دَ رُجز بضم الراء او بکسر الراء دواړو یوه معنی ده دتفسیر امامانو مجاهد رحمه الله ، عکرمه رحمه الله ، قتاده رحمه الله ،زهری رحمه الله او ابن زید رحمه الله وغیره دلته د رجز معنی بتان کړې ده ، او ابن عباس رضی الله عنه په یو روایت کښې ددې نه مراد هره ګناه او نافرمانی اخستې ده . په دې بنا د آیت معنی به دا شی چې بتان یا ګناه او نافرمانی پرېږدئی . نبی کریم ﷺ خو اول نه دا ټول هر څه پریخودی وو . خو بیا هم ورته ددې حکم ورکولو دا مطلب دې چې بیا هم یعنی همیشه دپاره ددې نه لرې اوسیږه . البته په حقیقت کښې دا حکم د امت دتعلیم دپاره دَانتهائی تاکید په خاطر نبی کریم ﷺ ته په خطاب کولو سره اوکړې شو چې هر کله معصوم نبی کریم ﷺ ته دا حکم دې نو امت ته په سر کښې دا حکم شو .

**پنځم حکم** :: [وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ۝] دې یعنی په چا باندې احسان په دې نیت مه کوئی چې د ورکړی نه زیات څیز پرې حاصل کړی ، دې نه معلومیږی چې چاته ډالئ په دې نیت سره ورکول چې دهغې نه زیات پرې حاصل کړی نو دا مکروه او بده خبره ده ، د قرآن پاک د یو بل آیت مبارک نه اګر چې ددې رواّ والې عامو خلقو دپاره معلومیږی خو هغه هم دمکروهوالی نه ځکه خالی نه دی چې شریفانه اخلاقو سره سمون نه خوری ، خصوصا نبی کریم ﷺ دپاره خوحرام اوګرځولې شو [ ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل ]([4]) .

**شپږم حکم** :: [وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ۝] دې د صبر لفظی معنی داده چې نفس په قابو کښې او ایسار کړې شی ، ځکه د صبر په مفهوم کښې دا هم داخل دی چې خپل نفس د الله تعالی دحکمونو په پابندئی باندې قائم اولرلې شی او دا هم داخل دی چې دالله ﷻ د حرام کړو څیزونو نه خپل نفس منع کوی ، او دا هم داخل دی چې په تکلیفونو او مصیبتونو کښې د خپل اختیار ترحده

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۱۲۵]
[2]) ترجمه:- یقینًا الله توبه کوونکوسره محبت کوی او پاکو (خلقو) سره محبت کوی.
[3]) صحیح مسلم کتاب الطهارة، باب فضل الوضوء [ج:۱ص:۱۱۸]
[4]) تفسیرالدرالمنثور تحت هذه الآیة [ج:۱۱ ص:۶۰۲] والسنن الکبري للبیهقی کتاب النکاح باب مانهاالله عزوجل رقم الحدیث:[۱۳۷۱٤]

پورې د فرياد او واويلا کولو نه خان ساتي ، په دې لحاظ دا حکم داسې تول اړخيز دې چې
تقريباً پوره دين لره شامل دې ، په دې موقعه باندې ددې حکم خصوصيت کيديشي چې دې
دپاره وی چې په وړاندې تير شوؤ آيتونو کښې نبی کريم ﷺ ته حکم ورکړې شوېدې چې
عامو خلقو ته د حق دين اړخ ته بلنه ورکړی ، دکفر شرک اوګناهونو نه ئې منع کړی ، دابښکاره
ده چې ددې په نتيجه کښې به ډير خلق مخالفت ، دښمنی ، اوزيان رسولو ته راپاره شی ځکه
صبر او زغم هغه چالره عادت جوړول پکار دی چې څوک حق ته بلنه ورکوی ددې څو
احکامو د ورکولو نه پس دقيامت او دهغې د هيبتناکه کيدو بيان دې.
د نَاقُوْر معنی شپيلۍ ده، او د نُقر معنی دهغې نه آواز پيداکول دی ، اودابيان هم دې چې د
قيامت په ورځ ټولو کافرانو دپاره سخته ده خو ورسره دا بيان هم دې چې ديو خاص شرير
کافر دپاره به نوره هم سخته وی.

**د وليد بن مغيره آمدنی د کال يو کروړ ډيناره وې** دا کافر وليد بن مغيره دې چې چاته الله ﷻ
ددنيا مال او اولاد ښه پريمانه ورکړې وو. د ابن عباس ﷠ په قول ددهٔ زمکه ،جائيداد او
باغونه دمکې نه تر طائف پورې خواره وو او د ثوری په قول دهغه د يوکال آمدنی يو کروړ
ديناره وه ، ځينو په کښې ددې نه کمه هم خودلې ده . دومره ټولو منلې ده چې ټول کال
دجائيداد او باغونو آمدنی به ئې په هر موسم ، يخنئ ، ګرمئ وغيره کښې سلسله لګه قرآن
پاک فرمائی چې:
[وَجَعَلْتُ لَهٗ مَالًا مَّمْدُوْدًا] او دې د عربو منلې شوې سردار وو. په خلقو کښې ددهٔ لقب ريحانه
قريش مشهور وو. ځان ته به ئې پخپله د تکبر او غرور نه وحيد ابن الوحيد يعنی بې مثله د
بې مثله خوئې ويلو . [ قرطبی ][1]
خودې ظالم دالله ﷻ ناشکری اوکړه ، دائې يقين وو چې قرآن پاک د الله ﷻ کلام دې خو سره
ددې ئې هم د ځانه داخبره جوړه کړه چې قرآن پاک ته ئې سحرا و نبی کريم ﷺ ته ئې ساحر
اووئيلو و ددې واقعه په تفسير قرطبی کښې داسې بيان کړې ده چې کله دقرآن پاک آيت : [حٰمٓ ۚ
تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ۙ] نه تر [اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ][2] پورې نازل شو او نبی کريم ﷺ ددې تلاوت
کولو ، وليد بن مغيره چې واؤريدو نو بې اختياره ئې دا سې وئيل شروع کړل چې:
[والله لقد سمعت منه کلاما ما هو من کلام الانس ولا من کلام الجن وان له لحلاوة وان عليه لطلاوة وان اعلاه لمثمر وان اسفله
لمغدق، وانه ليعلو ولا يعلى عليه وما يقول هذا بشر][3]
والله ! ما د نبی کريم ﷺ نه داسې کلام واؤريدو چې د يو انسان يا دپيری کلام نشی کيدې،
دې کښې ډير خوږ والې دې او ددې خاص رونق دې ،ددې پورته اړخ ميوه دار او لاندې اړخ
اوبه ورکوونکې دې ، دا به بيشکه دټولو نه بالا او لوړ پاتې کيږی ، په دې به څوک غالب
نشی راتلې ، دا د بشر کلام نه دې.

---

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۹ص:۱۷]
[2] ترجمه:- دالله تعالى د طرفه کتاب نازل کړې شو چې زبردست دې ، هريوخبز ورته معلوم دې ، هغه لره
واپس کيدل دی.
[3] تفسير القرطبي [ ج:۱۹ص:۷۴]

د عربو د ټولونه مالدار دي وینا په ټولو قریشو باندې داسې زلزله راوسته چې هغوئ ټول نه اسلام او ایمان ته رامات شو ، د قریشو سرداران فکر مند شو . مشورې کولو د پاره راجمع شو ، ابو جهل اووئیل چې فکر مه کوئې زه ورځم اوس به ئې سم کړم

**د ابي جهل او ولید بن مغیره خبرې اترې او د نبی کریم ﷺ په حقانیت باندې د دواړو اتفاق راتلل** ابو جهل د غمژن صورت جوړ کړو او ولید بن مغیره ته ورغلو ، اوقصداً داسې خبره جوړه کړه چې ولید ته پرې غصه ورشي، ولید چې اوکتل نو ورته ئې اووئیل چې ستا د غمژن والي څه وجه ده ؟ ابو جهل ورته اووئیل چې غمژن به ولې نه یم داټول تاته راغونډ شوی چنده درکوی چې ته بوډا شوې ئې ستا مدد کول غواړي . خو اوس دوئ ته دا معلومه شوه چې ته محمد ﷺ او ابن ابی قحافه یعنی ابی بکر رضي الله عنه له ځکه ورځې چې خوراک څکاک د پاره ترې څه حاصل کړې ؟ او د نبی کریم ﷺ د کلام تعریف ئې د خوشامندو په ډول کوې ظاهره خبره داده چې د قریشو چندې کول او ولید ته مال ورکول دروغ وو هغه داخبره صرف ولید غصه کولو د پاره اووئیل او د رسول الله ﷺ نه د خوراك څیزونه اخستل هم دروغ وو .

په دې باندې ولید بن مغیره ډیر زیات غصه شو چې په نتیجه کښې پرې د ځپلې لویئ اوتکبر لیونتوب سور شو وې وئیل چې زه محمد ﷺ او د هغه د ملګرو د ټکړو حاجتمند نه یم ، آیا تاته زما پریمانه مال او دولت معلوم نه دې ؟ زما دې په لات او عزی بتانو قسم وی چې ماته د دې هیڅ حاجت نشته دې . البته ستاسو داخبره غلطه ده چې تاسو محمد ﷺ ته لیونې وایئ، آیا تاسو د نبی کریم ﷺ نه د لیونتوب څه کار لیدلې دې . ابو جهل اقرار اوکړو چې والله مونږ ترې چرې هم داسې کار نه دې لیدلې ، بیا ولید اوئیل چې تاسو نبی کریم ﷺ ته شاعر وایئ آیا تاسو د نبی کریم ﷺ نه څه شعر آوریدلې دې ؟ ابو جهل په دې هم هغې شان اوئیل ، لا والله .

بیا ولید اووئیل چې تاسو نبی کریم ﷺ ته دروغژن وایئ نو آیا تاسو په ټول عمر کښې نبی کریم ﷺ په دروغو لیدلې دې ؟ بیا هم ابو جهل اقرار اوکړو چې لا والله . بیا ولید اووئیل چې تاسو خلق نبی کریم ﷺ ته کاهن وایئ نو آیا تاسو د نبی کریم ﷺ نه چرې د کاهنانو پشان خبرې آوریدلې دی یا مو د نبی کریم ﷺ د غسې حالات لیدلې دی ؟ مونږ خو د کاهنانو خبرې په ډیر ښه شان سره پیژنو . د نبی کریم ﷺ کلام د کهانت نشې کیدې ، ابو جهل په دې هم اقرار اوکړو چې لا والله . او په ټولو قریشو کښې نبی کریم ﷺ د صادق او امین په لقب سره مشهور وو . ابو جهل د خپلو ټولو دغه بهتانونو نه لاس واخستو فکر ورسره شو چې آخر نو په څه طریقه به خلق د اسلام نه منع کولې شی ؟ ځکه ئې ولید ته اووئیل چې ښه نو ته اووایه چې څه ورته اووایو ، په دې باندې اول هغه پخپل زړه کښې سوچ اوکړو ، بیا ئې ابی جهل ته اوکتل نو وربوز ئې داسې وران کړو لکه چې کرکجن بنده ئې ورانوی او په آخر کښې ئې اووئیل چې نبی کریم ﷺ ته خو لیونې ، شاعر ، کاهن ، کذاب هیڅ نشی وئیلې البته ساحر وئیل ورته مناسب دی . داکم بخت پخپله هم پوهیدو چې نبی کریم ﷺ ساحر هم نه دې او نه ئې خبرې د ساحرانو دی ، خود خپلې خبرې جوړولو صورت ئې دا تجویز کړو چې د نبی کریم ﷺ د کلام اثر هم لکه د ساحرانو ځکه وی چې ساحران هم پخپل عمل سره ښځه خاوند او رور وغیره خپل مینځ کښې جدا کوی ، نو د هغوئ د کلام اثر هم دادې چې څوک

یمان راوړی نو د خپل کافر ، مور ، پلار او خپلوانو نه جدا کیږی او کرکه ترې کوی .

. ولید بن مغیره دا حالت قرآن کریم داسې بیانوی چې

[إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ۝ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝ ثُمَّ نَظَرَ ۝ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ۝ ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ ۝ فَقَالَ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ ۝ إِنْ هَٰذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ۝] په دې کښې د قَدَّرَ لفظ د تقدیر نه مشتق دې چې لفظی معنی ئې تجویز کول دی مراد ترې دا دې چې دې کم بخت خو د رسول الله ﷺ په پیغمبرئی او رسالت باندې کامل یقین لرلو بیا هم د غصې او غیرت نه مغلوب شو او د نبی کریم ﷺ مخالفت ئې راپورته شو خو بیا ئې د دروغو وئیلو نه ډډه کوله چې شرمنده نه شم . څکه ئې د ډیر غور وفکر کولو نه پس دا تجویز راویستلو چې ساحر ورته په دې بنا اووئیلې شی چې د نبی کریم ﷺ په کلام او تلقین سره د پلار خوئې او د روړ په روړ ترمینځه بیلتون راځی . څنګه چې په جادو سره کیږی ، په دې تقدیر او تجویز باندې الله ﷻ په ده باندې په قرآن پاک کښې دوه ځل لعنت داسې اوفرمائیلو [فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝]

**د دروغونه په کفارو هم پرهیز کولو** غور اوکړئی چې دا قریشی سرداران او ټول کافران فاجران په قسما قسم ګناهونو او فحشو کښې اخته وو خو دروغ داسې یوعیب دې چې دا کفار به هم ترې تښتیدل، ابوسفیان هم د اسلام راوړلو نه رومبې د قیصر روم په دربار کښې د دروغونه ډډه اوکړه حالانکه نبی کریم ﷺ سره ئې حجت مخالفت او دښمنی کوله تر دې چې په دغې دښمنئ کښې ځان ، مال او اولاد قربانولو ته هم تیار وو ، دروغ ئې څکه نه وئیل چې بیا به ورته دروغژن وئیلې شی ، افسوس چې ددې التبه د ترقئ په دې خلاف زمانه کښې دا عیب پاتې نشو بلکه د ټولونه لوئې هنر شو او یواځې د کافرانو ، فاجرانو نه ، بلکه د دیندار ه مسلمانانو د زړونو نه هم ددې کرکه اووته شه په ډاډه زړه او فخر سره خپل دروغ وئیل اوبل ورته تیارول بیانوی . [نعوذ بالله منه]

**چا سره د اولاد موجودوالې هم یو مستقل نعمت دې** ولید بن مغیره باندې چې الله ﷻ ددنیا کوم نعمتونه کړی وو په هغې کښې د یو نعمت الله ﷻ دلته ذکر کوی چې [وَبَنِينَ شُهُودًا ۝] یعنی حاضر او موجود اولاد دې نه معلومه شوه چې څنګه د اولاد پیدا کیدل او دهغې باقی پاتې کیدل دالله ﷻ انعامات دی دغسې اولاد سره ، موجود او حاضر پاتې کیدل هم یو لوئې نعمت دې هم والدینو دپاره دسترګو یخوالې دې او دزړه د آرام د ټولونه لویه ذریعه ده د دوئ حاضریدو سره پخپل خدمت او کاروبار کښې د امداد فائده ددې نه علاوه ده . دې التبه ترقئ یواځې سره سپین ، سکې ، ډالرونه او پونډونه سکې نوټونه عیش وآرام بولی چې دهغې د حاصلولو دپاره والدین خپل اولاد په ډیر فخر سره نورو ملکونو ته لیږی . او په دې خوشحالیږی اګر چې بیا په کلونو کلونو څڅ چې ټول عمر ئې هم مخ نه وینی ، په دې ډیر زیات خوشحالیږی او شمله ئې اوچتیږی ، چې د اولاد تنخواه او آمدنی ئې غټه یادولې شی . او ددې خبر په ذریعه په خپلې رورولئ او خاندان کښې خپله خپله لوئې ثابتوی معلومیږی چې داخلق د آرام او راحت د مطلب نه هم بې خبره شو او د الله ﷻ دهیرولو هم دانتیجه راختل پکار دی چې څوک د خپل ځان اصل آرام او راحت هم هیر کړی لکه قرآن پاک کښې فرمائی چې [نَسُوا اللَّهَ فَأَنْسَاهُمْ أَنْفُسَهُمْ] (۱)

(۱) ترجمه: چا چې د الله تعالی نه بې پروائی اوکړه پس الله تعالی هغوئ لره دخپلو ځانونه بې پرواه کړل.

[وَمَا يَعۡلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ] دتفسیر په امامانو کښې مقاتل فرمائیلی دی چې
داجواب د ابی جهل دکلام دې کله چې هغه دا آیت مبارک واؤریدو چې دجهنم انتظام کوؤنکې فرشتې نولس دی نو قریشی ځوانانو ته ئې په خطاب کولو سره اووئیل چې د محمد ﷺ ملګری خو صرف نولس دی تاسو سره ددې څه فکر کیدیشی ؟او بیهقی دسدی نه نقل کړی دی چې کله دا آیت مبارک نازل شو چې
[عَلَيۡهَا تِسۡعَةَ عَشَرَ] نو د قریشو یو بیهوده کافر چې ابو الاسلین ورته وئیلې کیدل اووئیل چې ائې د قریش قومه هیڅ فکر مه کوئی دې نولس دپاره خو یواځې زه بس یم . په ښی لاس به لس او په ګس لاس به نهو لره په دیکه کولو ختم کړم په دې دا آیت مبارک نازل شو[1] چې بې وقوفانو ! اول خو یو فرشته هم ټولو دپاره بس ده ، دا نولس هغه لوئې فرښتې دی چې ترې لاندې بې شمیره نورې فرشتې دی چې کافرانو او فاجرانو ته په عذاب ورکولو کښې به لګیا وی[2].
وریسې د قیامت دهیبتونه بیان دې . دې باره کښې فرمائی چې :
[إِنَّهَا لَإِحۡدَى ٱلۡكُبَرِ] د إِنَّهَا ضمیر سقر ته راجع دې چې بیان ئې په تیرو شوؤ آیتونو کښې راغلې دې . کُبَر بضم الکاف و فتح الباء دکبری جمع ده . دا د داهیة یا مصیبة صفت دې . دآیت معنی دا شوه چې دا سقر یعنی جهنم په کوم کښې چې دوئ داخلولې شی د لویو آفتونو او مصیبتونونه دې . ددې نه علاوه نور قسماقسم عذابونه دی .
[لِمَن شَآءَ مِنكُمۡ أَن يَتَقَدَّمَ أَوۡ يَتَأَخَّرَ] دلته د تقدم نه مراد تقدم الی الایمان والطاعة دې او تاخر نه مراد د ایمان طاعت نه په شاکیدل دی ، مطلب دادې چې د جهنم د عذاب نه ویره ول چې په تیر شوی آیت کښې دی، دا د هر انسان دپاره عام دی . بیا څوک ددې په آؤریدو سره ایمان او فرمانبردارئ ته پیشقدمی کوی څوک بدبختئی سره ددې روستو پاتې کیږی .
[كُلُّ نَفۡسِۢ بِمَا كَسَبَتۡ رَهِينَةٌ إِلَّآ أَصۡحَٰبَ ٱلۡيَمِينِ] رَهِينَةٌ په معنی د مرهونة ده چې مراد ترې په قیداو بند کښې کیدل دی لکه څوک چې د څه قرض په بدله کښې څه څیز ګانړه کیږ دی نو دغه څیز د قرضخواه په قبضه کښې بند پاتې کیږی . مالک ترې هیڅ فائده نشی پورته کولې داسې به د قیامت په ورځ هر نفس د خپلو ګناهونو په بدله کښې قید او بند کیږی لیکن اصحاب الیمین به ددغې قید او بند نه مستثنی وی .
دلته د حبس نه مراد جهنم کښې بندیدل هم کیدیشی لکه د تفسیر په خلاصه کښې ئې چې دا معنی شوې ده . نو معنی به ئې دا وی چې هر څوک به دخپلو خپلو ګناهونو د سزا تیرولو دپاره جهنم کښې بند پاتې کیږی . خو اصحاب الیمین به ددې نه مستثنی وی . ددې سیاق نه دا هم معلوم شو چې اصحاب الیمین نه مراد هغه خلق دی چې چا خپل قرض ادا کړو . یعنی چې د الله ﷻ او د بندګانو ټول حقوق ئې په دنیا کښې ادا کړی وو یا الله تعالی او بندیګانو ورته معاف کړی وو هغه فرض او قرض ټول اداکړی وو نو دهغوئ د خانونو د ګانړه کیدو هیڅ وجه نشته . دا تفسیر په ظاهره صفا او بې تکلفه دې . او که دحبس نه مراد د حساب ، کتاب او

---

[1]) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۵ ص:۷۸] و تفسیر المظهري [ج.۸ص:۱۲۹]
[2]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۹ص:۸۱]

جنت ، دوزخ ته د ورتلو نه وړاندې په څه ځائې کښې بنديدل وی نو دهغې حاصل به داوی چې ټول نفسونه به خپلو خپلو حسابونو دپاره بند وی تر څو چې حساب اونشی څوک چرته هم نشی تلې. په دې صورت کښې چې اصحاب اليمين مستثنی کړې شو ددې نه مراد خو يا هغه معصومين کيديشی چې د چا په ذمه حساب کتاب نشته. لکه نابالغه ماشومان [کماهوقول علی کرم الله وجهه] يا هغه خلق دی چې حديث پاک کښې راغلی دی چې ددې امت ډير خلق به بې حسابه بې کتابه جنت ته داخليږی(۱). او په سورة واقعه کښې چې د محشر د حاضرينو درې قسمه خودلې شوی دی يو سابقين او مقربين ، بل اصحاب اليمين او دريم اصحاب الشمال. دلته ئې مقربين هم په اصحاب اليمين کښې شامل کړل ، صرف د اصحاب اليمين په ذکر کولو باندې بس والې اوکړو ، ليکن ددې معنی په اعتبار سره حساب دپاره د ټولو اصحاب اليمين د بنديدو نه مستثنی کيدل د څه نص نه ثابت نه دی ، دا معنی ړومبی تفسير سره صحيح کيديشی. والله اعلم.

[فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ] د [تَنفَعُهُمْ] ضمير هغه مجرمانو ته راجع دې چې ذکر ئې ددې نه په وړاندې آيت کښې راغلې دې ، چې هغوئ د خپلو څلوروجرمونو اقرار اوکړو ، يو ددې چې مونځ به ئې نه کولو ، دويم چې چا غريب مسکين ته به ئې خوراک نه ورکولو ، مراد دادې چې د غريب په ضرورياتو به ئې خرچ نه کولو. دريم دادې چې اهل باطل سره به دوئ هم داسلام او ايمان په خلاف خبره کولو يا ګناهونو او بدکارونو کښې په مخه اخته وو. د هغوئ نه به ئې د بيزارئی اعلان نه کولو. څلورم دادې چې د قيامت نه به ئې انکار کولو.

ددې آيت مبارک نه ثابت شو چې داسې مجرمان چې د ټولو ګناهونو کوؤنکی وی چې په کښې قيامت ته دروغ وئيل هم شامل دی. او خالص کفر دې ، داسې مجرمانو ته به د هيڅ شفاعت فائده نشی ورکولې ، ولې چې دوئ کافران دی کومو دپاره چې به د شفاعت کولو اجازت نه وی او که څوک ئې کوی نو نه به قبليږی. اګر چې ټول شفاعت کوؤنکو دپاره په جمع به زوراولګوی سفارش اوکړی ، دې خبرې ته په [شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ] سره اشاره کړې شوې ده چې دجمع صيغه ددې دپاره راوړې شوه.

**کافر دپاره به د چا شفاعت فائده مند نه وی صرف دمؤمن دپاره به فائده مند وی** :: دې آيت مبارک نه معلوميږی چې صرف مسلمانانو ګناهګارو ته به شفاعت فائده ورکوی څنګه چې د ډيرو صحيح احاديثو نه ثابت شوی دی چې اولياء ، نيکان بلکه عام مؤمنان به د نورو مؤمنانو دپاره شفاعت کولې شی او دا به قبليږی(۲).

**فائده** :: عبدالله بن مسعود ﷺ(۳) اوفرمائيل چې په آخرت کښې به دالله ﷻ فرښتې ، پيغمبران ، شهيدان او نيکان خلق د ګناهګارو شفاعت کوی چې دهغې په وجه به دغه ګناهګار دجهنم نه راويستلې شی ، سوا د دغه څلور قسمه مجرمانو نه چې بيان ئې اوشو

(۱) صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب يدخل الجنة سبعون الفا بغير حساب باب [ج:۲ص:۹٦۸]
(۲) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۳۲] و سنن ابوداود، كتاب السنة ، باب ذ كر البعث والصور والشفاعة [ج:۲ص:٦۵۲] و جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة باب ماجاء في الشفاعة [ج:۲ ص:٦۹]
(۳) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۳۳]

کوم چې مونځ ، روژې ، پريږدي ، اوکوم اهل باطل کافران چې د اسلام په خلاف خبرو کښې شريک پاتې کيږي. اوڅوک چې د قيامت نه منکر دی دې نه معلوميږي چې څوک مونځ نه کوی او زکوة نه ورکوی نو هغوئ دپاره به شفاعت نه قبليږي. خو د نورو روايتونو نه معلوميږي چې په آيت مبارک کښې دکومو خلقو دپاره چې شفاعت نه قبليدل بيان شوی دې هغه مراد دی چې ددې څلورو جرمونو مجرمان وی. چې په کښې قيامت په دروغه ګنړل هم شامل دی دقيامت دروغ ګنړلو نه علاوه ځانله ځانله ددغې جرمونو کوونکو دپاره دا سزا کيدل ضروری نه دی مګر د حديث پاک په څينې روايتونو کښې دخاص خاص ګناه کوونکو باره کښې هم دا راغلی دی چې هغه به د شفاعت نه محرومه کيږي لکه په حديث پاک کښې راغلی دی چې څوک شفاعت حق کيدل نه منی ، يا د حوض کوثر موجوديدل نه منی نو هغه لره د شفاعت او حوض کوثر هيڅ حصه نشته دې([1]).

[فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ] دلته د [تَذْكِرَةِ] نه مراد قرآن کريم دې ولې چې ددې لفظی معنی وريادونکې څيز دې. اوقرآن کريم دالله ﷻ دکاملو صفتونو ، دهغه د رحمت ، غضب ، ثواب او عذاب په وريادولو کښې بې مثله دې ، او په آخرکښې ئې اوفرمائيل چې [كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ] يعنی بيشکه قرآن کريم تذکره دې کوم چې تاسو پريخودی دی. د [قَسْوَرَةٍ] معنی زمرې ، او غشی ويشتونکې ښکاری هم ده ، دا دواړه معنی ئې د صحابه کرامو ﷺ نه منقول دی.

[هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ] الله ﷻ په دې معنی سره اهل دتقوی دې چې صرف هغه ددې حقدار دې چې ترې ويريدل اوکړې شی او د هغه د نافرمانئ نه ځان اوساتلې شی او د اهل مغفرت مطلب دادې چې هم هغه داسې ذات دې چې کله غواړی نو لوئې نه لوئې ګناهګار ته دهغه ټول ګناهونه بخښی د بل هيچا دا حوصله نه شی کيدې.

تمت سورة المدثر بحمدالله يوم الجمعة ۲۵ رجب ۱۳۹۱هجری

| اياتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | سورة القيامة مكية وهي اربعون اية وفيها ركوعان | |
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ۴۰ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم کونکې دې | ۲ |

لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ ۝ وَلَا أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ۝

نه | زۀ قسم خورم | په ورځ دقيامت | اونۀ | زۀ قسم خورم | په نفس | ملامته کونکی باندې |

زۀ دقيامت په ورځ قسم خورم | او زۀ په هغه نفس قسم خورم چې په بدئ ملامته کونکې دې

أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُ ۝ بَلَىٰ قَادِرِينَ

آيا ګمان کوی | انسان | چې مونږ به راجمع نکړو | هډوکی دهغه | ولې نۀ | قادر يو مونږه |

ايا انسان داخيال کوی | چې مونږ به دهغه هډوکی راجمع نکړو | ضرور به ئې راجمع کړو | مونږخو په دې قادريو

[1]) فتح البارى باب صفة الجنة والنار ، تحت الحديث رقم:[٦١٩٠] ددې احاديثو د نورتفصيل دپاره اوګورئ:- تفسير المظهري[ج:١٠ص:١٣٤]

عَلٰٓى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ ۝ بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ

په دې چې برابر کړو مونږه | بندونه دګوتو دهغه | بلکه اراده لري | انسان | چې ګناه کوي |

چې د هغه دګوتو بندونه هم برابر کړو | بلکه انسان دا غواړي | چې آئنده دې هم بد عملونه کوي

اَمَامَهٗ ۝ يَسْـَٔلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ ۝ فَاِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ ۝

آئينده دپاره | تپوس کوي | چې کله به وي | ورځ دقيامت | پس هر کله چې | او بريښي سترګې |

...... دقيامت د ورځې تپوس کوي چې کله به وي | په کومه ورځ چې سترګې سپينې اوتښتي

وَخَسَفَ الْقَمَرُ ۝ وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ۝ يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ

او توره شي سپوږمۍ | او يوځائي کړې شي نمر | او سپوږمۍ | اوبه وائي انسان | په دغه ورځ |

او سپوږمۍ بې نوره شي | اونمر اوسپوږمۍ په يو حال کښې شي | نو انسان به په دغه ورځ وائي چې

اَيْنَ الْمَفَرُّ ۝ كَلَّا لَا وَزَرَ ۝ اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ الْمُسْتَقَرُّ ۝

چې چرته دې ځائې دتيښتې | هر ګز نه | نشته ځائې دپناه | رب ستاته | په دغه ورځ | ځائې دقرار دې

کوم خوا اوتښتم | نه، اوس د پناه هيڅ ځائې نشته | په دغه ورځ ستا د رب نه سوا بل ځائې کښې پناه نشته |

يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍۢ بِمَا قَدَّمَ

| خبر به ورکړې شي انسان ته | په دغه ورځ | په هغې | چې مخکښې ئې ليږلې وي |

په دغه ورځ به انسان ته خپل وړاندينې او روستنې ټول عملونه پيش کړې شي

وَاَخَّرَ ۝ بَلِ الْاِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهٖ بَصِيْرَةٌ ۝ وَّلَوْ اَلْقٰى

اوروستو ئې پريښې وي | بلکه انسان به | په نفس خپل باندې | اليدونکې وي | اګر که پيش کړي هغه

بلکه انسان به پخپله هم په خپل حالت باندې ګواه وي | ...... ...... اګر که بهانې لټوي

مَعَاذِيْرَهٗ ۝ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ۝

| عذرونه خپل | مه خوزوه | په دې وحي | ژبه خپله | چې تلوار کوې | په يادولو ددې |

...... (اې رسول ﷺ) ته د قران په لوستلو کښې د زر ونيلو دپاره خپلې ژبې ته حرکت مه ورکوه |

اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ۝ فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ

بيشکه په مونږ دي | جمع کول ددې | او لوستل ددې | پس هر کله چې وايو مونږ دا | پس پيروي کوه |

ددې رايوځائې کول اوتاته لوستل زمونږ په ذمه دي | نو چې مونږ ئې [تاته] ووايو نو ته

قُرْاٰنَهٗ ۝ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ ۝ كَلَّا

دلوستلو ددې | بيا | بيشکه زمونږه په ذمه دي | بيان [يعني مطلب دربښودل] ددې | هر ګز نه |

د هغې پيروي کوه | ...... بيا [خلقو ته] د هغې بيانول هم زمونږ په ذمه دي | ...... مګر

بَلْ تُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ ۝ وَتَذَرُوْنَ الْاٰخِرَةَ ۝ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ

بلکه تاسو خوښوئ | زر حاصليدونکې دنيا | او پريږدئ | آخرت | ځيني مخونه به | په دغه ورځ |

تاسو خلق دنياسره محبت کوئ | اوآخرت موپريښې دې | ...... ډيرمخونه به په دغه ورځ

نَّاضِرَةٌ ۝٢٢ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ۝٢٣ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ۝٢٤

تازه وی | رب خپل ته به | کتونکی وی | او خینی مخونه به | په دغه ورځ | غمګین وی |

تازه وی | خپل رب ته به ګوری | ........ او ډیر مخونه به په دغه ورځ بې رونقه وی

تَظُنُّ أَنْ يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ۝٢٥

ګمان به کوی [پوهه به وی] | چی کیږی به | په دغه مخونو باندې [دهغوئ سره] | سخت سلوك |

دوئ به خيال کوی | چې دوئ سره به داسې سختی کولې شی | چې د دوئ ملا به ماته کړی

كَلَّا إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ۝٢٦ وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ۝٢٧

هرګز نه | کله چی | اورسيږی ساه | حلق [مرئ] ته | او اوونيلې شی | څوك شته | دم اچونکی |

البته څه وخت چې روح مرئ ته اورسيږی | او دا اوونيلې شی | چې څوک دم اچونکې شته؟

وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ ۝٢٨ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ۝٢٩ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ

او پوهه شی | چی بيشکه دا جدائی ده | او تاو شی پنډئ | دبلې پنډئ نه | رب ستا ته | په دغه ورځ

اودې به ګمان اوکړی چه دا جدائی ده | اويوه پنډئ به د بلې پنډئ سره يوځائې شی | په دغه ورځ ستا

الْمَسَاقُ ۝٣٠ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ۝٣١ وَلَٰكِنْ كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ۝٣٢

روانيدل دی | پس هغه نه ربنتيا اومنل | اونه ئې مونځ اوکړو | ليکن دروغ ئې اوګڼرو | او مخ ئې واړوؤ |

رب طرف ته روانيدل دی | بيا نه خو هغه تصديق اوکړو | اونه ئې مونځ اوکړو | بلکه [د الله حکمونه ئې] دروغ اوګڼړل | او مخ

ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰ أَهْلِهِ يَتَمَطَّىٰ ۝٣٣ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ۝٣٤

بيا لاړو | کوروالو خپلو ته | چی غرور ئې کوؤ | مناسب ده تالره | او هم ستا سره ښائی |

ئې واړولو | اوبيا خپل کورته په تکبر سره واپس روان شو | ستا دپاره تباهی ده |

ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ۝٣٥ أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَنْ يُتْرَكَ

بيا مناسب ده تالره | او هم ستا سره ښائی دا طريقه | آيا ګمان کوی انسان | چی پرې به ښودې شی هغه

بيا ستا د پاره تباهی پس ډيره تباهی ده | آيا انسان په دې خيال کښې پروت دی | چې دی به هسې بې کاره

سُدًى ۝٣٦ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِنْ مَنِيٍّ يُمْنَىٰ ۝٣٧ ثُمَّ كَانَ

بې مطلبه | آيا نه وؤ هغه | يوه نطفه | دمنئ نه | چی اچولې کيږی په ښځه د مور کښی | بيا شوه هغه

پريښودلې شی | آيا دې د منی يو څاڅکی نه وو | چې [په رحم کښې] توئې کړې شوه | او بيا

عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ ۝٣٨ فَجَعَلَ

| يوه ټوټه دوينې | بيا ئې جوړ کړو [بدن دهغه] | بيا ئې برابر کړه اندامونه دهغه | بيا ئې جوړ کړل

دوينې يوه ټوټه شوه | نو الله ﷻ ترې نه انسان جوړ کړو | او سم برابر ئې کړو | بيا ئې

مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ ۝٣٩ أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ

| دهغې نه | جوړې نر | او ښځه | آيا نه دی | دغه ذات | قادر | په دې

د ده نه دوه جوړې يعنی سړې او ښځه جوړ کړل | آيا هغه [ الله ﷻ ] په دې قادر نه دی

| اَنْ يُّحْيِۦَ | الْمَوْتٰى ؏ |
|---|---|
| چې ژوندي کړي | مړي |
| چې مړي بيا راژوندي کړي | |

**آسان ترجمه قرآن**

زه قسم خورم په ورځې د قيامت باندې. او قسم خورم په ملامته کونکي نفس باندې (چه مونږ به انسان دوباره ژوندې کوو) آيا انسان دا ګمان کوي، چه مونږ به دده هډوکې راجمع نه کړې شو. ولې نه، بلکه زمونږ قدرت په دې باندې هم دې، چه دده د ګوتو بندونه پوره پوره جوړ کړو اصل خبره داده، چه انسان دا غواړي، چه خپل مخکښې ژوند کښې هم په زړه ورتيا سره ګناهونه اوکړي تپوس کوي، چه: کله به راځي هغه ورځ د قيامت. نو چه کله اوبريښي سترګې. او سپوږمۍ بے نوره شي. او سپوږمۍ او نمر يو ځائې کړې شي. هغه وخت به انسان وائي چه: چرته دې ځائې د تختيدلو چه هلته اوتختم. نه نه، د پناه هيڅ ځائې به نه وي. په هغه ورځ خو به هر يو ستا د پروردګار مخښې ته اودرولې شي. په دغه ورځ به هر انسان ته خبر ورکړې شي، چه هغه څه مخکښې ليږلې دي، او څه ئې روستو پريخې دي بلکه انسان دخپل ځان نه ښه خبر دې. اګر چه جوړې کړې ډيرې بهانې (اے پيغمبره) ته دا قرآن زر زر يادولو دپاره خپله ژبه په تادئ سره مه خوزوه يقين اوکړه. چه ددې تاته يادول او په تا باندې لوستل زمونږ ذمه داري ده. بيا چه کله مونږ هغې لره (د جبرئيل عليه السلام په واسطې سره) لولو، نو ته ددې لوستلو تابعداري کوه بيا دهغې وضاحت هم زمونږ ذمه داري ده خبردار (اے کافرانو!) اصل خبره داده، چه تاسو سمدستي حاصليدونکې څيز (يعنې دنيا) سره مينه کوئ. او آخرت لره مو پريخودلې دې. په هغه ورځ به ډير مخونه تازه وي. خپل پروردګار طرف ته به ګوري او ډير مخونه به هغه ورځ وران (بدرنګه) شوې وي. خيال به کوي، چه هغوي سره به هغه معامله کولې شي، چه ملا به ورله ماته کړي. خبردار! چه کله روح مرئ [چنغړک] ته اورسي. او د (علاج کونکو د طرف نه به) اووئيلې شي چه: آيا شته څوک دم دُرهاً اچولو والا؟ او انسان به پوهه شي، چه د جدائې وخت راغلو. او د پنډئ سره به پنډئ يو ځائې شي نو په هغه ورځ به ستا پروردګار طرف ته روانيدل وي. ددې باوجود هم انسان اونه منل، او نه ئې مونځ اوکړو بلکه حق ته ئې دروغ اووئيل او مخ ئې واړولو. بيا خپل کور والو ته لاړو په ايخ نيغ تللو سره (لوئې ئې کوله). بربادي ده تالره، بربادي ده تالره. بيا واؤره چه بربادي ده تالره، بربادي ده تالره. آيا انسان دا خيال کوي، چه هغه به هم داسې پريخودلې شي؟ آيا دې د هغې منۍ يو څاڅکې نه وو، چه (د مور په رحم کښې) څڅولې شي؟ بيا هغه د وينې يوه ټکره جوړه شوه، بيا الله تعالى هغه جوړ کړو، او برابر ئې کړو. او د هغې نه ئې د ښځې او سړي دوه جوړے جوړې کړې. آيا هغه په دې خبره باندې قادر نه دې، چه مړو لره دوباره ژوندي کړي؟.

**خلاصه تفسير**

﴿لَاۤ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ﴾ [زه قسم خورم د قيامت په ورځ ﴿وَلَاۤ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ﴾ او قسم خورم په داسې نفس چه خپل ځان ملامته کړي] يعنې نيکي وکړي اودا ووائي چه ماڅه وکړل په دې

کښې اخلاص نه ووېه دې کښې فلانئ خرابي پاتې شوې وه اوچه ګناه تري نه وشي نوډير ستومانه وی لکه په درمنثور کښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما او حسن رحمه الله نه داسې دی([1]) پس ددې معنی په اعتبار سره دانفس مطمئنه لره هم شامل دې او جواب دقسم محذوف دې يعنې تاسو به ضرور پورته کړې شئ اوددې دواړو قسمونو دمقام سره مناسبت ظاهر دې دقيامت خو خکه چه هغه ظرف دې دحشرنشر اودنفس لوامه خکه چه داسې نفس دقيامت عملی تصديق کوونکې وی وړاندې په منکرينو دبعث باندې رد دې يعنی ﴿اَيَحۡسَبُ الۡاِنۡسَانُ اَلَّنۡ نَّجۡمَعَ عِظَامَهٗ﴾ [ايا انسان خيال کوی چه مونږ به دهغه هډوکی هرګز جمع نه کړو] دانسان نه مراد کافردی اوډ هډوکو تخصيص خکه دې چه اصل ستن دبدن دادی وړاندې ددې جواب دې يعنی ﴿بَلٰى قٰدِرِيۡنَ عَلٰٓى اَنۡ نُّسَوِّىَ بَنَانَهٗ﴾ [ مونږ به ضرورجمع کړو] اوجمع کول مونږ ته څه ګران دی [ خکه چه مونږ په دې قادر يو چه ددهٔ [دګوتو دبندونوپورې برابرکړو] دګوتو دبندونو د ذکر تخصيص په دوه وجهو سره دې يو داچه دا دبدن اطراف دی او تکميل دهر شي دجوړيدو ددهٔ په اطرافو باندې وی چنانچه زمونږ په محاوره کښې هم په څنوموقعو باندې وائی چه زماپه بندبند کښې درد دې يعنی په ټول بدن کښې دويم داچه دګوتو په بندونو کښې سره د وړوکوالی دصعنت رعايت زيات دی اوعادتا دا زيات ګران دی پس څوك چه په دې قادر وی هغه به په اسانه باندې په طريقه اولی قادر وی ليکن څنې انسان په قدرت کامله کښې غورنهٔ کوی اودقيامت نهٔ قائل کيږی ﴿بَلۡ يُرِيۡدُ الۡاِنۡسَانُ لِيَفۡجُرَ اَمَامَهٗ﴾ [بلکه] داسې [څنې خلق ] دقيامت نه منکر شي [ داسې غواړی چه په خپل راتلونکی ژوند کښې هم ] بې ويرې ترهې [فسق فجور کوی] په دې وجه په طور دانکار ﴿يَسۡـئَلُ اَيَّانَ يَوۡمُ الۡقِيٰمَةِ﴾ [تپوس کوی چه دقيامت ورځ به کله راځی ] يعنی خپل ټول عمرئې چونکه په ګناهونو او شهواتو کښې تيرول مقرر کړی وی په دې وجه دحق دطلب نوبت ورته نهٔ ملاويږی چه دقيامت کيدل دهٔ ته ثابت شي په دې وجه په انکار اصرار کوی اوپه انکارسره تپوس کوی چه کله به راځی ﴿فَاِذَا بَرِقَ الۡبَصَرُ﴾ [پس څهٔ وخت چه ] دحيرت په وجه [سترګې برګې شی ] اووجه ددې حيرت به داوی چه کوم کارونه ئې دروغ ګڼړل هغه به ورته ناځاپه په نظر راشی لکه په جلالين کښې داسې دی ﴿وَخَسَفَ الۡقَمَرُ﴾ [اوسپوږمۍ بې نوره شی او] دسپوږمۍ څهٔ تخصيص دې بلکه ﴿وَجُمِعَ الشَّمۡسُ وَالۡقَمَرُ﴾ [نمر اوسپوږمۍ ] دواړه [به په يوحالت باندې شی] يعنی دواړه به بې نوره شی لکه چه دبخاری په حديث کښې راغلی دی [تکوران ومعنی کورت قال ابن عباس اظلمت، رواهما فی الدرالمنثور سورة التکوير]([2]) او دسپوږمۍ جدا بيانول به شايدپه دې وجه وی عربوته په وجه دقمری حساب ساتلو دې دحال ليدلو زيات اهتمام وو ﴿يَقُوۡلُ الۡاِنۡسَانُ يَوۡمَئِذٍ اَيۡنَ الۡمَفَرُّ﴾ [ په دغه ورځ به انسان ووائی چه اوس چرته وتښتم ] ارشاد کيږی چه ﴿كَلَّا لَا وَزَرَ﴾ [هرګز] تيښته به ممکنه [نه] وی خکه چه [چرته دپناه ځائې نشته ﴿اِلٰى رَبِّكَ يَوۡمَئِذِ ۨالۡمُسۡتَقَرُّ﴾ په دغه ورځ صرف ستارب خوا ته ټکانه ] دتللو [ده] بيائې خواه جنت ته ليږی يا دوزخ ته اودرب مخې ته دتللوپه وخت ﴿يُنَبَّؤُا الۡاِنۡسَانُ يَوۡمَئِذٍ ۢ بِمَا قَدَّمَ وَاَخَّرَ﴾ [په دغه ورځ به انسان ته ددهٔ ټول وړاندې وروستوکړی وريادکړې شی ] اودانسان دخپلوعملونو نه خبريدل به څهٔ په

---

[1] ) تفسيرالدرالمنثور [ج:۱۵ ص:۹۶]

[2] ) تفسيرالدرالمنثور تفسير سورة التکوير [ج:۱۵ ص:۲۵۷]

دي خودلو باندي موقوف نۀ وي ﴿بَلِ الْإِنسَانُ عَلَىٰ نَفْسِهِ بَصِيرَةٌ﴾ [ بلکه انسان به په خپله په خپل حالت ] په وجه دضروري انکشاف [ښۀ خبروي ﴿وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُ﴾ اګرچه] په اقتضاء دطبيعت دغه وخت هم [خپلې حيلې] حوالې [پيش کوي] لکه چه کفار به وائي ﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾[1] مګر په زړۀ کښې به په خپله هم پوهه شي چه مونږ دروغژن يو غرض انسان به خپل ټول حال ښۀ پيژني په دې وجه ورښودل به دخبردارکولو دپاره نۀ وي بلکه دپوهولو اوحجت تمامولو او جواب قطع کولو دپاره به وي او[اے پيغمبر] ﷺ دينئو اوبل الانسان نه دوه مضمونه مستفادشول يو داچه الله تعالى په ټولو اشياؤ عالم اومحيط دې دويم داچه دحق تعالى عادت دې چه هرکله حکمت مقتضي وي نو علوم غائبه کثيره دمخلوق په ذهنونوکښې حاضر کړي اګر چه ددغو غائبوعلومو حاضرول خلاف دعادت طبعي نۀ وي لکه چه په قيامت کښې به د دې وقوع وي هرکله چه دا خبره ده نو تۀ دوحي دنزول په وخت لکه چه تراوسه ستاعادت دې دومره قدر مشقت چه اورې هم اولولې هم اوخيال ورته هم کوې محض په دې احتمال سره ولې برداشت کوې چه شايدڅۀ مضمون زماذهن نه ووځي ځکه چه هر کله مونږ تالره نبي جوړ کړې دې اوتانه دتبليغ کاراخستل دی نودلته به مقتضاء دحکمت داوی چه دغه مضامين به ستا په ذهن کښې حاضر ايښودې شي او زمونږ په دې قادريدل خو ظاهره ده په دې وجه تۀ دا مشقت مۀ برداشت کوه اوکله چه وحي نازليږي نو ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾[تۀ] وړاندې دوحي ختميدونه [په قرآن خپله ژبه مۀ خوزوه چه تۀ ئې زر زر واخلې ] ځکه چه ﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ﴾ [زمونږ ذمه ده] ستاپه زړۀ کښې [ددې جمع کول او] ستاپه ژبه [ددې لوستل ] هر کله چه دازمونږ ذمه ده ﴿فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ﴾[نو هرکله چه مونږ دغې لره وايو] يعنى زمونږ فرښته ئې وائي [نو تۀ] په خپل ذهن اوفکر سره همه تن[دهغې تابع کيږه ] يعنى هغې ته متوجه کيږه او په خپله ئې په لوستلو کښې مۀ مشغوليږه لکه چه داقول دالله تعالى دې ﴿وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْآنِ مِن قَبْلِ أَن يُقْضَىٰ إِلَيْكَ وَحْيُهُ﴾ الخ[2]﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾[ بيا] ستاپه ژبه سره دخلقو په وړاندې [دهغې بيانول ] هم[زمونږ په ذمه دی] يعنى تاته يادول اوستا په ژبه ئې جاري کول بيادتبليغ په وخت کښې دهغې دريادول او دخلقو په وړاندې ئې درباندې لوستل دا ټول زمونږ په ذمه دي او دامضمون استطراداً راغلې وو وړاندې بيا عود دې دمنکرينو دخطاب طرف ته يعنى ﴿كَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ﴾[اې منکرانو] دانسانانو په مخکينو ورستنو عملونو مطلع کول په قيامت کښې ضرور دي اولکه چه تاسو ګنړئ چه قيامت به نۀ وي [هر ګز داسې نۀ ده ] اونۀ تاسو سره ددې دنفى څۀ دليل شته [بلکه] صرف خبره داده چه [تاسو دنياسره محبت ساتئ او] په هغه محبت کښې ورننوتي د ﴿وَتَذَرُونَ الْآخِرَةَ﴾[آخرت] نه غافله يئ اود غفلت په سبب هغه [موپريښي دې] پس ستاسو بناء ددې نفى محض فاسده ده پس قيامت به ضرور وي او هريوته به ددۀ دعملونو اطلاع ورکړې شي مناسب جزا به ملاويږي چه تفصيل ئې دا دې چه ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ﴾[ډير مخونه به په دغه ورځ بارونقه وي﴿إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ خپل

---

[1]) ترجمه:- په الله دې قسم وی دخپل پروردګار دې وی چې مونږ مشرکان نه وو.

[2]) ترجمه:-او ددې نه وړاندې دې په قرآن پاك کښې عجلت اونه کړې شی تر څو چې تا باندې وحی نه وی نازله شوې.

پرودګار طرف ته به ګوری ﴿وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ﴾ او ډير مخونه به په دغه ورځ بې رونقه وی ] ﴿تَظُنُّ أَنْ يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ﴾ اوهغه خلق به [خيال کوی چه ددوی سره به ملاماتوونکي معامله کولې شی ] يعنی سخت عذاب به ورله وی وړاندې ددنيا په محبت زجر دې چه تاسو کومه دنيا لره محبوبه او اخرت لره دپريښودو قابل ګڼړئ ﴿كَلَّا إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ﴾ [هرګز داسې نۀ ده ] خکه چه ددنيا نه يوه ورځ جدا کيدل دی او بالاخر اخرت ته تلل دی دکوم چه دابيان دې چه [هر کله چه روح مرئ ته راورسی ﴿وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ﴾ او] په نهايت حسرت سره به دغه وخت [ ونيلې شی ] يعنی د مريض پالنه کونکې وائی [چه ] اې [څوك دم ] چف کونکې[والا شته] مراد مطلق علاج کونکې دې چونکه په عربو کښې ددم چف زياته چرچه وه په دې وجه ئې په راق سره تعبير وکړو[او] دغه وخت به﴿وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ﴾ [هغه] مرده [يقين کوی چه دادجدائی ] ددنيا نه [وخت دې او] دشدت سکرات دمرګ نه ﴿وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ﴾ [يوه پنډئ به دبلې پنډئ نه تاوېږی] مراد ددې نه ظهور دسکرات دمرګ داثارو دی څۀ تخصيص دپنډو تاويدو نشته ددې ذکر تمثيلا دې هرکله چه داسې حالتونه راپيښيږی نو اې انسانه﴿إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ﴾[په دغه ورځ به ستا درب طرف ته تلل وی] پس په داسې حالت کښې ددنيا محبت اوداخرت پريښودل څومره نادانی ده بياخدائې ته درسيدونه پس کۀ هغه کافروی نو دهغۀ به بدحال وی خکه چه ﴿فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ﴾[ دۀ خو نۀ] دخدائې اورسول [تصديق کړې وو اونۀ ئې مونځ کړې وو ﴿وَلَٰكِنْ كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ﴾ ليکن] دخدائې اورسول [ تکذيب ئې کړې وو او] داحکامونه ئې[ مخ اړولې وو بيا] په دې دپاسه داچه د داعی دحق نه ئې مخ واړولو اوپه دې فخر کوونکې او﴿ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰ أَهْلِهِ يَتَمَطَّىٰ﴾[نازکوونکې خپل کور ته به تللو ] مطلب داچه اول خو کفر اوعصيان بيا په دې پښيمانی نۀ وه بلکه البته به ئې فخر کولو چه مونږ حق داسې ردکړو اوپه باطل ټينګ پاتې شو اوبيا ددې نه پس دحق طلب نشته بلکه چه خپلو خادمانو نوکرانو ته لاړ شی نور زيات مغروره اوغافله شی وړاند ددې کافر دبدحالئ بيان دې چه داسې سړی ته به ونيلې شی چه ﴿أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ﴾[ستا کم بختی دپاسه په کم بختئ راتلونکې ده ﴿ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ﴾ بيا مکرر واوره چه ستا [ په کم بختی دپاسه کم بختی راتلونکې ده ] دتکرير دمفردنه مقدار دزياتی مستفادشو اودتکرير دمجموع نه دکيفيت زياتې اوچونکه وقوع دذکر شوې جزا موقوف ده په دوه کارونو يو دانسان په مکلف کيدو دويم ددۀ په مړ کيدو اوبياژوندی کيدو دکوم په امکان کښې چه ددوی خبرې وې په دې وجه وړاندې دواړه مضامين دی يعنی ﴿أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَنْ يُتْرَكَ سُدًى﴾[ايا انسان داخيال کوی چه هم دغسې مهمل به پريښودې شی] نۀ به په دۀ احکام عائد کړې شی اونۀ به ددۀ سره حساب وی بلکه مکلف کيدل ئې هم يقينی دی او په دې دپاسه ترې تپوس کيدل هم يقينی دی کوم پورته کيدل چه محال ګڼړی داهم ددۀ حماقت دې ﴿أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِنْ مَنِيٍّ يُمْنَىٰ﴾[ايا داسړې ] په ابتداء کښې محض [يوه قطره منئ نۀ وه کومه چه] دښځې په رحم کښې [څڅولې شوې وه ﴿ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ﴾ بياهغه دوينې ټکړه شوه ﴿فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ﴾ بيائې دهغې ] انسان دوه قسمونه کړل سړې اوښځه بياالله تعالی ] دۀ لره انسان [جوړ کړو بيائې ورله اندامونه برابر کړل اودا فاء تفسيريه ده نو ﴿أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ﴾[ايا هغه ] خدائې کوم چه په ابتداء کښې په خپل قدرت

سره داهر څه وکړل [په دې خبره قدرت نه لري چه ]په قيامت کښې[مړولره ژوندي کړي] حال دادې چه دوباره پيداکول داول پيداکولوپه نسبت اسان دی]

## معارف او مسائل

[لَآ أُقۡسِمُ بِيَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ ۝ وَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلنَّفۡسِ ٱللَّوَّامَةِ ۝] د لته دقسم نه وړاندې لا زياتې دې ددې مطلب دادې چې داقسم دمخالف د خبرې رد کولو دپاره خوړې شي. نو لا داسې شو چې د هغه ددغه باطل خيال نيشتوالي پرې ښکاره کړې شو څنګه چې د عربو په محاوره کښې دا استعمال مشهور دې، زمونږ په زبان کښې هم کله چې څوک تاکيدی مضمون بيانوی د هغې نه وړاندې وئيلې شی چې نه ، بيا ورپسې هغه مضمون بيانوی ، دې سورت کښې د قيامت او آخرت منکرانو ته خبرداري ورکول دی او دهغوئ د شکونو جواب دې ، په شروع کښې اول قسم په قيامت او ورپسې په نفس لوامه او خوړې شو. او جواب د قسم په مقام دقرينې سره محذوف دی يعنی قيامت به ضرور راځي د قيامت قسم خود هغه د عظمت د اثبات دپاره دمقام مناسبت کيدل ظاهر دې. داشان په نفس لوامه باندې قسم خوړل هم دابنکاره کول دی چې نفس لوامة لوئې څيز او د الله ﷻ په نزد قبول کړې شوې دې. د نفس معنی روح مشهوره ده. او لوامه دلوم نه مشتق دې چې معنی ئې ملامته کول او زرونه ورکول دی ، د نفس لوامه نه مراد هغه نفس دې چې د خپلو عملونو په حساب کولو سره خپل ځان ملامته کوی او ځان ته وائی چې ولې دې داسې اوکړل يعنی ګناه دې ولې اوکړه. او نيک کار دې ولې کم اوکړو؟ دا دمؤمن کار دې. دا تفسير د ابن عباس رضی الله عنه او د تفسير د نورو امامانو نه منقول دې. [ابن کثير وغيرهم(۱)] او هم د دې مفهوم د وجې حضرت حسن بصری رحمه الله د نفس لوامه تفسير په نفس مؤمنه سره کړې دې او فرمائيلې يې دی چې په الله قسم! مؤمن خو په هرحال کښې خپل نفس ملامته کوی. په ګناهونو باندې خو ښکاره خبره ده ليکن په خپلو نيکو کارونو کښې هم هغه په مقابله د شان حق سبحانه وتعالی کمې اوکوتاهی محسوس کوی ځکه چه د عبادت پوره حق اداکول خود چا په وس کښې هم نه دی. په دې وجه د حق په اداکولو کښې تقصير د هغه مخې ته وی په هغې باندې ځان ملامته کوی.

**د نفس لوامه تفسير:** د ابن عباس رضی الله عنه او حسن بصری رحمه الله وغيره په دې تفسير باندې نفس لوامه قسم خوړل د الله ﷻ دطرفه ددې مؤمنانو نفسونو عزت اوشرافت ښکاره کول دی. چې پخپله په خپلو عملونو باندې ځان سره حساب کوی ، پخپلو کوتاهيانو باندې پښيمانه کيږی او خپل ځانونه ملامته کوی.

**نفس لوامه او مطمئنه:** ددې تفسر په جوړ دا نفس لوامه نفس مطمئنه هم شامليږی. لوامه او مطمئنة دواړه دنفس متقی لقبونه دی.

**نفس اماره ، لوامه ، مطمئنه:** صوفياء کرامو په دې کښې تفصيل داسې بيان کړې دې چې نفس د خپل طبيعت او خمبير په لحاظ سره امارة بالسوء دی ، انسان بدو کارونو ته رابلی ، او په دې کښې ئې اخته کوی ، خو په ايمان نيک عمل او رياضت ، مجاهدو سره تري نفس لوامه جوړ شی چې بدئ اوکوتاهئ کولو باندې پښيمانه کيږی خود بدئی نه بيخی جدا نشی. خو چې کله

(۱) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ۸ ص ۱۷۵ ، ۲۷۶] و تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۹ص:۹۳]

په نیک عمل کولو او د الله ﷻ په نزدیکت حاصلولو کښې هغه دې حالت ته راؤرسی چې شریعت ئې طبیعت جوړ شی او خلاف شرع کار نه ئې طبعی کرکه پیدا شی نو دغه وخت ئې لقب نفس مطمئنه شی ، والله اعلم

د قیامت د منکرانو ددې عامیانه شبهې جواب دې چې د مړ کیدو نه پس کله انسان وریسې خاؤرې شی ، هډوکی ئې هم کسکر او ذره ذره شی نو دوباره به څنګه راجمع کولې او ژوندې کولې شی ؟ ددې په جواب کښې قرآن کریم فرمائی چې

[بَلٰى قٰدِرِيْنَ عَلٰٓى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ۝] ددې حاصل دادې چې تاسو ته خو دا خبره عجیبه ښکاری چې د مړی خورې ورې ذرې او وراسته هډوکی به څنګه راجمع کولې شی . او په دې کښې به دوباره څنګه ژوند اچولې شی ؟ حالانکه دا خبره ړومبې هم لیدلې شوې ده چې د انسان داجسم ددنیا د مختلفو ملکونو د حصو او ذرو نه مرکب رایوځائې کړې شوې وی نو کوم قادر ذات چې په ړومبی ځل په ټولې دنیا خورې ذرې د انسان په وجود کښې جمع کړې وې اوس دوباره جمع کول دهغه لوئې ذات دپاره څه ګران دې ؟ او څنګه چې په اول ځل ئې دده په جوسه کښې روح اچولې وو او دې ئې ژوندې کړې وو ، ددې په دوباره ژوندی کولو کښې ولې حیرانتیا کوئی ؟

**د ګوتو راپورته کولو کښې د الله ﷻ د قدرت عجیبه عمل :** دغور کولو خبره ده چې په یو شکل ، شباهت قدوقامت باندې پیدا کړې انسان کیدیشی چې دوباره هم په‌غسې شان الله ﷻ ئې پیدا کړی سره ددې چې په اربونو او کروړونو انسانان د دنیا د ابتدا نه تر اوسه پورې پیدا شوی دی او پیدا کیږی ، دچا د اوس هم نه رسی چې په دوئ کښې د هر یو انسان خان خانله شکل ، شباهت ، قدوقامت او رنګ وغیره یاد اوساتلې شی . دوباره پیدا کول خو ئې ددې نه لوئې کار دې خو الله ﷻ په دې آیت مبارک کښې فرمائی چې مونږ یواځې په دې قدرت نه لرو چې دمړی ټول لوئې لوئې اندامونه او حصې دوباره هم هغسې جوړې کړو ، بلکه د انسان د وجود د وړوکی نه وړوکې څیز به هم هغسې جوړ کړو څنګه چې ړومبې وو په دې کښې ئې د ګوتو د‌بندونو ئې خاص ذکر اوکړو ځکه چې دا دټولو نه واړه اجزاء دی . کله چې ددې وړوکو اجزاؤ په دوباره ساخت کښې فرق رانغلو نو په لویو لویو اندامونو . لاسونو ، پښو وغیره کښې به څه فرق راشی ؟

اوکه غور اوکړې شی نو شاید د ګوتو د بندونو په تخصیص کښې دې ته هم اشاره وی چې الله ﷻ یو انسان لره د بل نه بیلولو دپاره دده په ټول بدن کښې داسې خصوصیات ایخودی دی چې ورسره دې پیژندې شی او د یو بل نه بیلیدلې شی . خصوصا انسانی مخ چې د څو مربع انچونو نه زیات نه دې ، په دې کښې الله ﷻ د قدرت داسې څه بیلتونونه ایخودی دی چې په اربونو او کربونو انسانانو کښې دیو مخ او شکل بالکل بل سره داسې نه ملاویږی چې بیلتون ئې باقی پاتې نشی د انسان ژبه او مرئی بالکل یو شان وی خو بیا هم د یو بل نه داسې جدا دی چې دماشومانو ، بوډاګانو ، ښځو ، سړو ، آوازونه بیل بیل پیژندې شی او د هر انسان آواز هم بیل بیل پیژندې شی ددې نه هم زیات حیرانوونکې د انسان کتې ګوتې او د ګوتو بندونه دی چې هغه کله هم د یو انسان بل انسان سره نه ملاویږی یعنی په دې نیم انچ ځائې کښې داسې بیلتونونه شته چې په اربونو انسانانو کښې دیو کرښې بل سره نه ملاویږی او په نن او نوې زمانه کښې د کتې ګوتې نشان د بیلتون یو امتیازی څیز ګرځولې شوې دې ا.

عدالتی فیصلې په دې باندې کیږي . او د فنی تحقیق نه معلوم شو چې دا خبره صرف په کته ګوته کښې نه ده بلکه دهرې ګوتې دبندونو کرښې هم دغسې بیلې بیلې وي . په دې د پوهیدلو نه پس چې د ګوتو د بندونو د بیان تخصیص باندې به پخپله پوهه کښې راغی او مطلب دادې چې تاسو خو په دې باندې تعجب کوئ چې دا انسان دوباره څنګه ژوندې شو ، ددې نه وړاندې هم سوچ او غور اوکړئ چې یواځې ژوندې نه شو بلکه په خپل وړاندې شکل صورت او هر امتیازی صفت سره ژوندې شو تر دې پورې چې دکتې ګوتې اود ګوتو دبندونو په رومبې ځل پیدائش کښې چې څنګه وې دغسې به په دوباره پیدا کیدو کښې هم وي . [فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ] . [لِيَفْجُرَ اَمَامَهٗ] د امام معنی راتلونکې زمانه ، او مخې ته څیز ده ، په دې بنا د آیت مبارک معنی داشوه چې کافر او غافل انسان دالله ﷻ دکامل قدرت په دې لیدلو کتلو څیزونو کښې غور نه کوي . چې د تیرې شوې زمانې په انکار سره پښیمانه شی او خپل راتلونکې وخت صحیح کړی بلکه په راتلونکی وخت کښې هم دغه غواړی چې په خپل کفر ، شرک ، انکاراو په دروغژن ګنړلو باندې کلک ولاړ وي .

[فَاِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ ۙ وَخَسَفَ الْقَمَرُ ۙ وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ] دا دقیامت د حالاتو بیان دې د برق معنی سترګې داسې بریښیدل چې لیدل نشی کولې . د قیامت په ورځ به د ټولو نظرونه داسې بریښی چې په ښخ نظر به څه نشی کتلې .

[وَخَسَفَ الْقَمَرُ] د خسوف نه مشتق دې ، چې معنی ئې په رڼرا ختمید سره تیاره کیدل دی ، معنی ئې داده چې سپوږمئ به بې نوره شی وریسې :[وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ] کښې ئې دا وخودل چې صرف سپوږمئ نه بلکه نمر به هم بې نوره شی . چې دهغې باره کښې ددنیا فلسفیان دا وائی چې اصل رڼرا په نمر کښې ده ، دسپوږمئ رڼرا د نمر نه اخستې شوې ده ، الله ﷻ فرمائی چې دقیامت په ورځ به دا سپوږمئ او نمر دواړه هم په یو حال جمع کولې شی . چې دواړه به بې نوره شی او څینې حضراتو فرمائیلی دی چې د سپوږمئ او نمر دجمع کیدو مطلب دواړه د یو ځائې نه راختل دی لکه په څینې روایتونو کښې راغلی دی[1] ، والله اعلم .

[يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَاَخَّرَ] یعنی په دغه ورځ به انسان ته وریادولې شی چې هغه وړاندې څه اولیږل او روستو ئې څه پریښودل ؟ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه کوم کارئی دَ خپل مرګ نه وړاندې اوکړو هغه ئی مخکې اولیګلو او چه کوم نیك یا بد ، فائده مند یا ضررناکه طریقه یا څه رواج ئی داسې پریخودو چې روستو وربانذې خلقو عمل کولو دَهغې ثواب یا عذاب به هغه ته ملاویږي . قتاده رحمه الله فرمائی چې د [قَدَّمَ] نه مراد هغه نیک عمل دې چې په خپل ژوند کښې ئې اوکړو . اود ما تاخر نه مرادهغه نیک عمل دې چې سره د وس رسیدو ئې اونکړو او فرصت ئې ضائع کړو[2] .

[بَلِ الْاِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهٖ بَصِيْرَةٌ ۙ وَّلَوْ اَلْقٰى مَعَاذِيْرَهٗ] د بصیر او بصیرة معنی لیدونکې هم کیدیشی او د بصیرة معنی حجت هم راځی لکه قرآن پاک کښې فرمائی چې : [قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ][3] دې

[1]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۹ص:۹۷]

[2]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۹ص:۹۸]

[3]) ترجمه:- اوس بیشکه تاسو ته ستاسو د رب د طرفه د حق لیدو ذرائع رارسیدلې دی.

کښې بصائر د بصیرة جمع ده چې معنی ئې حجت ده . او [مَعَاذِيْرَ] د معذار په معنی عذر جمع ده ، په دې بنا د آیت معنی به دا وی چې اگر چې د عدالت د ضابطې له مخه د انسان ټول عملونه به په محشر کښې یو یو ورته اوخودلې شی خو په حقیقت کښې ورته ددې ضرورت نشته ولې چې دې خپل عملونه ښه پیژني . پخپله ورته هم معلوم دی چې دهٔ څه څهٔ کارونه کړی دی . دا شان په محشر کښې ټول خپل عملونه نیک او بد کارونه به مخې ته وینی لکه قرآن پاک کښې فرمائی چې :

[وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا] یعنی کوم عمل ئې چې په دنیا کښې کړې وی هغه به په محشر کښې حاضر او موجود بیا مومی . او په سترګو به ئې وینی ، دلته چې اوفرمائیل چې انسان په خپل نفس باندې بصیره دې د هغې هم دا حاصل دې .

اوکه د بصیرة معنی حجت واخستې شی نو معنی بهٔ ئې دا وی چې انسان به پخپله په خپل ځان باندې حجت اودلیل وی که هغه د څه عمل نه انکار هم کوی نو خپل اندامونه به ئې پرې ګواهی ورکوی . خو انسان به خپل جرمونه او تقصیرات پیژني او سره ددې به عذرونه جوړول نه پرېږدی . دخپلو کړو عذر به په مخه بیانوی . دا معنی ده :[وَلَوْ اَلْقٰی مَعَاذِيْرَهٗ].

تر دې پورې د قیامت حالات او مصیبتونه بیان شو او ورپسې هم دا راتلونکی دی په مینځ کښې څلور آیتونو کښې دننه نبی کریم ﷺ ته یو خاص هدایت ورکړې شوې دې چې د وحی د نازلیدو په وخت د نازل شوؤ آیتونو باره کښې دې

هغه دا چې جبرائیل علیه السلام به کله دقرآن پاک د آیتونو څه آیتونه راؤړه نو نبی کریم ﷺ سره به دا فکر وو چې هسې نه ددې په آؤریدو او بیا ددې په مطابق په لوستو کښې رانه څه فرق رانشی . بل فکر بهٔ ورسره دا وو چې چرته ددې څه حصه مې د ذهن نه اونه ځی . اورانه هیره نه شی . په دې وجه نبی کریم ﷺ ته به چې څه وخت جبرائیل علیه السلام څه آیت مبارک آؤرولو نو نبی کریم ﷺ به ورسره ورسره لوستل او ژبه به ئې زر زر خوزوله چې په بیا بیا لوستلو سره ئې یاد کړم .

دهغوئ ددې محنت او مشقت لرې کولو دپاره په دې څلورو آیتونو کښې الله ﷻ د قرآن پاک د صحیح لوستو ، بیا ورته د یادولو او بیا ئې د مسلمانانو په وړاندې هم دغسې دوړاندې کولو ذمه داری پخپله واخسته او نبی کریم ﷺ ته ئې اوفرمائیل چې تاسو په دې غرض ژبې ته زر زر د حرکت کولو تکلیف مه کوئی د :[لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ] هم دا مطلب دې بیا ئی اوفرمائیل [اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ] یعنی دا ټول آیتونه ستاسو په زړه کښې جمع کول بیا هم په دغه شان پرې ستاسو ﷺ ژبه چلول دا ټول زمونږ په ذمه دی خکه تاسو ﷺ ددې فکر مه کوئی او وئی فرمائیل چې : [فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ] ، قرآن دلته د قرآت په معنی دې ، دایت مبارک معنی دا شوه چې کله مونږ د جبرائیل علیه السلام په واسطه قرآن کریم وایو نو تاسو ورسره ورسره مه لولئ . بلکه زمونږ د لوستو نه پس لولئ او دغه وخت ئې په خاموشئ آؤرئی

**امام پسې د مقتدي دقرآت نه کولو یو دلیل** .. په صحیح حدیث کښې راغلی دی چې امام دې دپاره جوړ کړې شویدې چې مقتدیان دهغه تابعداری اوکړی کله چې رکوع کوی نو ټول مقتدیان دې

رکوع کوی ، کله چې سجدې ته لاړ شي نو ټول دې سجدې ته لاړشي[۱] ، د صحيح مسلم په روايت کښې دې سره دا هم ارشاد دې چې کله امام قرآت کوی نو تاسو ئې په خاموشئ سره آؤرئي [واذاقرافأنصتوا][۲] دا هم د هغې بيان دې چې مقصود د امام تابعداری کول دي.

په رکوع اوسجده کښې دامام تابعداری خو ورسره رکوع اوسجده کول دی، خو قرآت کښې ئې تابعداری داده چې دهغه قرآت په خاموشئ سره واؤريدلې شي ، هم دا دليل امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله اوخپلې نورو اماما نونيولې دې چې امام پسې دې مقتدی قرآت نه کوی. والله اعلم

په آخر کښې فرمائی چې : [ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ] ددې مطلب دادې چې تاسو دا فکر هم په ځان مه اړدئی چې د نازل شوؤ آيتونو صحيح مفهوم او مراد څه دې دهغې خودل او پرې پوهول هم زمونږ په ذمه دی . مونږ به دقرآن پاک هر هر لفظ اودهغې مراد په تا واضح کړو . په دې څلورو آيتونو مبارکو کښې د قرآن پاک او ددې د تلاوت وغيره باره کښې دحکمونو دبيانولو نه پس وريسې بيا د قيامت د حالاتو او هيبتونو پاتې يادګيرنه راځي . دلته سوال دا پيدا کيږی چې ددې څلورو آيتونو وړاندې روستو آيتونو سره څه تعلق او جوړ دې ؟ دتفسير په خلاصه کښې ددې ربط دابيان شوې دې چې د څلورو آيتونو نه وړاندې چې د قيامت داسې حالات بيان شويدی چې د الله ﷻ علم دومره فراخه دې چې هر يو انسان دوباره هم په هغه شکل او شان سره پيدا کوی څنګه چې ئې په اول ځل پيدا کړې وو. تر دې چې دده د ګوتو بندونه اوپه دې جوړ شوی خاص خاص کرښې او نخښې هم د رومبې پشان جوړې کړی. په دې کښې د سردوينته برابر هم فرق نه کيدل، داهله کيدې شی چې د الله تعالی علم هم بې انتهاء وی او ددې شميرل اومحفوظ ساتل هم بې مثاله دی ، په دې مناسبت سره نبی کريم ﷺ ته په دې څلورو آيتونو کښې دا تسلی ورکړې شوې ده چې تاسو ﷺ نه خو هيره هم کيدېشی په نقل کښې د غلطئی امکان هم تاسو نه کيدېشی ، خو الله ﷻ ددې هر څه نه بالا او برتر دې ، ددې څيزونو ذمه داری پخپله الله ﷻ ذمه اخستې ده . څکه تاسو ﷺ د قرآن پاک کلمات محفوظ يا ددې په معنو پوهيدو کښې د غور کولو تکليف پريږدئی . دا ټول کارونه به الله ﷻ په خپله سر ته رسوی. وريسې بيا د قيامت حالات بيانيږی: [وُجُوْهٌ يَّوْمَىِٕذٍ نَّاضِرَةٌ ۙ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ] د [نَّاضِرَةٌ] معنی تروتازه ، يعنی په دغه ورځ به څه مخونه خوشحاله او تروتازه بهٔ وی.

[اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ] دا مخونه به خپل رب ته ګوری . دې نه ثابته شوه چې آخرت کښې به جنتيان د الله ﷻ ديدار دخپل سر په سترګو کوی ، په دې باندې داهل سنت والجماعت او ټولو عالمانو او فقهاء کرامو اجماع ده ، صرف معتزله او خارجيان ترې منکر دی. ددې وجه فلسفيانه شبهې دی چې په سترګو سره دليدلو دپاره دليدونکی اوليدلې شوی ترمينځه دمسافت چې کوم شرطونه دی د خالق اومخلوق ترمينځه هغه نشی موجوديدې ، د اهل سنت والجماعت مسلک دادې چې په آخرت کښې به دالله ﷻ ليدل او ملاقات کول به ئې ددې ټولو شرطونو نه آزاد کړی څه طرف او اړخ سره به ئې تعلق نه وی . اونه بهٔ ئې څه خاص شکل او صورت سره

[۱] صحيح البخاري كتاب الصلاة ،باب الصلاة فی السطوح والمنبر والخشب [ج:۱ص:۵۴] و صحيح مسلم كتاب الصلاة، باب ائتمام الماموم بالإمام [ج:۱ص:۱۵۶]

[۲] صحيح مسلم كتاب الصلاة ،باب التشهد فی الصلاة [ج: ۱ص:۱۷۴]

تعلق وي. د حديث پاک د روايتونو نه دا مضمون نور هم زيات وضاحت سره ثابت دي. البته په دې ليدلو او ملاقات کښې به د جنتيانو مختلفې درجې وي. ځينو ته به دا خوش قسمتي هره هفته دجمعې په ورځ حاصله وي، ځينو ته به هره ورځ صبا بيګاه او ځينو ته به هر وخت او هر حال کښې وي. [مظهري] (۱).

[كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ۝ وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ۝ وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ ۝ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ۝ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ ۝] په تيرو شوؤ ايتونو کښې د قيامت دحساب وکتاب او د جنتيانو دوزخيانو څه حالات بيانولو نه پس په دې آيت مبارک کښې انسان ته توجه ورکړې شوې ده چې خپل مرګ دې نه هيروی، دمرګ نه وړاندې وړاندې دې دايمان او نيک عمل اړخ ته راځي. دپاره ددې چې په آخرت کښې ورته نجات حاصل شي. په دې آيت مبارک کښې د مرګ نقشه داسې راښکلې شوې ده چې غافله پاتې کيدونکې انسان هيره کښې پاتې کيږي تردې چې مرګ په سر راشي او روح په چنغړک کښې انخښلی انتظام کوونکی خلق ئې عاجزه شي او دم درهه کوونکی لټوی، اود پښې پنډئی بلې پورې تاؤ شي. نودا وخت دالله ﷻ خوا ته دتلو راؤرسيدو اوس توبه نه قبليږي نه څه عمل، ځکه په عقل مند باندې لازم دی چې ددې وخت نه وړاندې د اصلاح فکر کوی.

[وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ۝] کښې د ساق مشهوره معنی پنډۍ ده، د پنډئی په يوې بلې باندې د تاويدو دا مطلب هم کيدېشي چې دا وخت د پريشانۍ په وجه يو پنډئی په بله پنډئی باندې وهي او دا معنی هم کيدېشي چې که دغه وخت ئې يوه پښه په بله پښه باندې ايښودې وی اوهغه په حرکت ورکولو سره د يو بل نه لرې کول غواړي نو وس به ئې اونه رسی، [شعبي رحمه الله او حسن رحمه الله اوفرمائيل] (۲).

ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې دلته د دوؤ ساقونو نه مراد دواړه جهانه دي يعنی دنيا اوآخرت دی. اود آيت مبارک مطلب به داشي چې اوس ددنيا آخري ورځ او د آخرت ړومبئ ورځ جمع شويده. ځکه په غبرګ مصيبت کښې ګرفتاردې، دنيانه دجدايئ غم اودآخرت دمعاملې فکر (۳) والله اعلم

[أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ۝ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ۝] اولی لفظ د ويل لفظ خلاف دې، دويل معنی هلاکت او بربادی ده دلته هغه چا دپاره چا چې کفرا و دروغژن بلل خپل خاص نښه جوړه کړه. او د دنيا مال او دولت کښې مست پاتې شو بيا په دې حال باندې مړ شو. ده دپاره څلور ځله دهلاکت او بربادئی لفظ استعمال کړې شو چې دمړ کيدو په وخت بيا د مرګ نه پس په قبر کښې، بيا دحشر نشر په وخت، بيا جهنم ته د تلو په وخت دامصيبت اوبربادی ستا حصه ده.

[أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ ۝] يعنی هغه حق ذات دچا چې قبضه قدرت کښې چې مرګ اوژوند او ټول جهان دې، آيا هغه په دې قادر نه دې چې مړي دوباره ژوندی کړي، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې څوک دسورة قيامت دا آيت مبارک اولولی نو دا کلمات دې وائي چې [بلى وانا على ذالك من الشاهدين] يعنی بې شک وشبهې هغه لوئې ذات په دې قادر دې اوزه هم په دې خلقو کښې داخل يم چې ددې ګواهي ورکوی، په دې حديث پاک کښې هم ددې الفاظو دسورة

---

(۱) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱٤۲]

(۲) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱٤٥]

(۳) تفسير القرطبي [ج:۱۹ص:۱۱۲]

والتين آيت [أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ] لوستلو په وخت دوئيلو تعليم ورکړي شوي دي. او په دي حديث پاک کښې ئې دا هم اوفرمائيل چې څوک د سورة والمرسلات دې آيت ته اورسی [فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ] نو [ امنابالله ] وئيل پکار دی([1]).

تمت سورة القيامة بحمدالله ۲۷رجب ۱۳۹۱هجری

| اياتونه | سورة الدهر مكية وهي احدي وثلثون اية وفيها ركوعان | ركوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ۳۱ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | ۲ |

هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنسَانِ حِينٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْئًا

بيشکه راغلي دې | په انسان باندې | يو وخت | دزماني نه | چې نه وو هغه | يو څيز

بيشکه په انسان باندې يوه زمانه داسې هم تيره شوې ده | چې هغه هډو دَسره د ذکر قابل څيز نه وو |

مَّذْكُورًا ﴿١﴾ إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ

ياد کړې شوې [قابل ذکر] | بيشکه پيدا کړو مونږه | انسان | دنطفې شريکې نه |

........ بيشکه مونږ انسان د ګډې شوې نطفې نه پيدا کړې دې [يعنی د سړی او ښځې]

نَّبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴿٢﴾ إِنَّا

مونږه امتحان اخلو دده | پس جوړ کړو مونږه دّه لره | اوريدونکې | ليدونکې | بيشکه |

مونږ پرې امتحان کوو په ده | نو هغه مو آوريدونکې او ليدونکې انسان جوړ کړو | بيشکه مونږ

هَدَيْنَاهُ السَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ﴿٣﴾

اوښودله مونږه دّه ته | لاره | که شکر ګزاره جوړيږی | که کفر کونکې [ ناشکره] |

ورته نيغه لار اوخودله | ........نو هغه ياشکرګزار شو | اويا کافر[ناشکره] شو

إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَلَاسِلَ وَأَغْلَالًا وَسَعِيرًا ﴿٤﴾

بيشکه تيار کړی دی مونږه | دکفر کونکو دپاره | زنځيرونه | او دغاړې پټې | او دجوش وهونکو اور |

بيشکه مونږ کافرانو دپاره زنځيرونه طوقونه او جوش وهونکو اور تيار کړې دې

إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا

بيشکه نيکان خلق چې دی | څکی به هغوئ | دشرابو داسې پيالې | چی وی به خلط دهغې سره |

بيشکه نيکان خلق به د داسې شرابو جامونه څکی | چې په هغې کښې به دکافورو

[1]) مسند احمد ،مسند ابی هريرة ﷺ رقم الحديث:[۷۳۸۵] و السنن الکبري للبيقهی رقم ا لحديث:[۳۸٤٤] و مجمع الزوائد باب سورة القيامة رقم الحديث :[۱۱٤٥]

كَافُورًا ۝ عَيْنًا يَّشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللّٰهِ

کافور | دا يوه چينه ده | چې څکې به شراب | دهغې داوبو سره | بندګان دالله |

ګډون وی | هغه يوه چينه ده | .........چې دهغې اوبه به د الله ﷻ بندګان څکی |

يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا ۝ يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ

چې هغوئ به روانوی ولې دهغې نه | په روانولو [آسانو] سره | هغوئ پوره کوی | نذر لره |

هغوی به دغه ولې څنګه چې غواړي نو روانوی به ئې | ......... هغوئ خپلې نذرانې پوره کوی

وَيَخَافُوْنَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهٗ مُسْتَطِيْرًا ۝ وَيُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ

او هغوئ يريږئ | دهغه ورځې نه | چې دې شر دهغې | هر طرف ته خور شوې | او هغوئ طعام ورکوی

او دهغې ورځې نه ويريږی چې مصيبت به ئې ګيرچاپيره هر طرفته خور وی | اود الله ﷻ په مينه کښې

عَلٰى حُبِّهٖ مِسْكِيْنًا وَّيَتِيْمًا وَّاَسِيْرًا ۝ اِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ

| په مينه دالله | مسکين ته | او يتيم ته | او قيدی ته | اووائی چې بيشکه مونږ طعام درکوو تاسو له |

مسکينانو، يتيمانو او قيديانو ته طعامونه ورکوی | او[ وائی] چې مونږ خوتاسو ته صرف دالله ﷻ

لِوَجْهِ اللّٰهِ لَا نُرِيْدُ مِنْكُمْ جَزَآءً وَّلَا شُكُوْرًا ۝ اِنَّا نَخَافُ

دپاره درضا دالله | مونږ اراده نه لرو | ستاسو نه | دبدلې | اونه دشکرنې | بيشکه مونږه يريږو |

د رضا دپاره خوراکونه درکوو | نه مونږ ستاسو نه څه معاوضه غواړو | اونه شکريه | مونږ د خپل

مِنْ رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوْسًا قَمْطَرِيْرًا ۝

دطرفه درب زمونږ نه | دورځې | تر يو مخې [غمجنې] | تر يو تندی [ډيرې سختې ] نه |

رب نه د هغه ورځې [په حق کښې] ويريږو | چې ډيره سخته اوترخه به وی

فَوَقٰهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقّٰهُمْ نَضْرَةً وَّسُرُوْرًا ۝

پس بچ به کړی هغوئ لره الله | دشر ددغې ورځې نه | او وربه کړی هغوئ له | تازګی | او خوشحالی |

نو الله ﷻ به هغوئ د هغې دسختو نه بچ اوساتی | اوهغوئ ته به تازګی او خوشحالی ورکړی

وَجَزٰىهُمْ بِمَا صَبَرُوْا جَنَّةً وَّحَرِيْرًا ۝

او بدله به ورکړی هغوئ له | په سبب دهغې | چې صبر اوکړو هغوئ | جنت | او جامې ريښمينې |

اود هغوی د صبر بدله به ورته د جنت اود ريښمو جامو په صورت کښې ورکړی

مُّتَّكِئِيْنَ فِيْهَا عَلَى الْاَرَآئِكِ لَا يَرَوْنَ فِيْهَا شَمْسًا

چې تکيه وهونکی به وی | په هغې کښې | په تختونو باندې | نه به وينی هغوئ | په هغې کښې | نمر

هغوی به په تختونو باندې ددې لګونکی وی | ......هلته به هغوئ نه د نمر ګرمی محسوسوی

وَّلَا زَمْهَرِيْرًا ۝ وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلٰلُهَا وَذُلِّلَتْ

اونه يخنی | | او رانبکته به وی | په هغوئ باندې | سوری دهغې | او تابع کړې شوی به وی |

اونه يخه يخنی | اود هغې د ونو سورې به هغوئ ته نزدې وی |

قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ﴿١٤﴾ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِآنِيَةٍ

میوي دهغي | په تابعوالی سره | او ګرزولې کیږی به | په هغوئ باندې | لوښی |

او دهغي میوي به هم راټیټې وی | .........او سپینو زرو لوښی به پرې ګرځولی شی

مِّن فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا ﴿١٥﴾ قَوَارِيرَا

چی جوړ به وی دسپینو زرونه | او پیالئ | چی جوړې به وی دشیشې نه | هغه شیشې |

.................... |......... او د شیشې ګلاسونه به وی | داسې شیشې چې دسپینو

مِن فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا ﴿١٦﴾

چی وی به دسپینو زرو | چی هغوئ به په اندازه کړی وی هغه | په انداز کولو سره |

زرو نه به جوړې شوی وی | او په اندازه باندې به ئې پیمانه کړی وی |

وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا ﴿١٧﴾

او څکول کیږی به په هغوئ باندې | په هغې کښې | پیالئ دشرابو | چی وی به خلط سره | زنجبیل |

او [دشرابو داسې] جامونه به پرې څکولی شی | ............چې سونډ به په کښې اچولې شوې وی

عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلْسَبِيلًا ﴿١٨﴾ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ

دا به یوه چینه وی | په هغې کښې | ونیلې کیږی هغې ته | سلسبیل | او ګرځی به په هغوئ باندې |

[دا دجنت] یوه چینه ده | چې نوم ئې سلسبیل دې | او داسې خادمان به ترې نه تاویږی راتاویږی

وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ

هلکان | چی همیشه به وی هلکوانی دهغوئ | کله چی ته اووینې هغوئ | ګمان به کوې په هغوئ باندې

چې همیشه به هلکان وی | که ته ئې اووینې نو دا ګمان به دې راشی | چې

لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا ﴿١٩﴾ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ﴿٢٠﴾

ملغلرې خورې کړې شوی | او کله چې اوګورې ته هلته | نو اوبه وینې ته | نعمتونه | او بادشاهی لویه

خورې ورې ملغلرې دی | .....او چې اوئې وینې | نو دیر لوئې نعمت او غټه بادشاهی به اووینې

عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ ۖ وَحُلُّوا

دپاسه دهغوئ به | جامې وی | دنرو ریښمو | شنې | او دغټو ریښمو | او وابه چولې شی هغوئ ته

هغوئ به د نرو او د غټو ریښمو شنې جامې اغوستې وی | ....................او دسپینوزرو

أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ

بنګړی | چی جوړ به وی دسپینو زرونه | او اوبه څکوی په هغوئ باندې | رب دهغوئ

بنګړی به ورته اچولې شی | ....................او خپل رب به ورته پاکیزه شراب

شَرَابًا طَهُورًا ﴿٢١﴾ إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً وَكَانَ سَعْيُكُم مَّشْكُورًا ﴿٢٢﴾

شراب پاکیزه | بیشکه داده | ستاسو دپاره | بدله | اودی کوششونه ستاسو | قبول کړې شوی

دڅکلو دپاره ورکوی | [او دوئ ته به اوونیلې شی] داستاسو بدله ده | اوستاسو کوشش قبول شوې دی

إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ تَنْزِيلًا ﴿٢٣﴾ فَاصْبِرْ

بیشکه مونږه نازل کړی دی | په تاباندي | دا قرآن | په نازلولو سره | پس صبر کوه

بیشکه مونږ په تا باندي قرآن پاك لږ لږ نازلوو | ..........نو ته د الله ﷻ

لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ آثِمًا أَوْ كَفُورًا ﴿٢٤﴾ وَاذْكُرِ

په حکم درب خپل باندي | او خبره مه منه | ددوئ نه | دچاګنهګار | یا دچا ناشکره | او یادوه |

په حکم ټینګ ولاړ اوسیږه | اوپه دوئ کښي دچا فاسق یا کافر تابعداری مکوه | ..........او

اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٢٥﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهُ

نوم درب خپل | سحر | او ماښام | او دځه برخي دشپي نه | پس سجده کوه | هغه ته

سحر اوماښام دهغه د نوم ذکر کوه | ..........اود شپي په یوه حصه کښي هغه ته سجده کوه

وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيلًا ﴿٢٦﴾ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ يُحِبُّونَ

او تسبیح وایه دهغه | په شپه اوږده کښي | بیشکه دا خلق چی دی | مینه کوی |

اودهغه تسبیح د شپي په لویه حصه کښي وایه | بیشکه دي خلقو خودنیا خوښه کړي ده

الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُونَ وَرَاءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيلًا ﴿٢٧﴾

دزر حاصلیدونکی دنیا سره | او پریږدی | روستو دخانونو خپلو نه | ورځ درنه |

..........اووړاندي راتلونکي یوه درنه ورځ ئي بیخي پرېښودي ده|

نَحْنُ خَلَقْنَاهُمْ وَشَدَدْنَا أَسْرَهُمْ ۚ

خاص هم مونږه پیدا کړی دی دوئ | او مضبوط کړی دی مونږه | بندونه ددوئ |

هم مونږ دوئ پیدا کړی دی | ..........اوددوئ بندونه مو کلک کړی دی

وَإِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَا أَمْثَالَهُمْ تَبْدِيلًا ﴿٢٨﴾ إِنَّ هَٰذِهِ

او کله چی اوغواړو مونږه | بدل به کړو مونږه شکلونه ددوئ | په بدلولو سره | بیشکه دا قرآن |

او هرکله چي اوغواړو | نو ددوئ په ځائي به ددوئ غوندي نور خلق بدل کړو | دا [قران پاك]

تَذْكِرَةٌ ۖ فَمَنْ شَاءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا ﴿٢٩﴾

نصیحت دی | پس هغه څوك | چی غواړی | اودي نیسی | رب خپل ته | لار |

خو یو نصیحت دي | نو څوک چي اوغواړی نود خپل رب طرفته دي لار اونیسی

وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ

او هیڅ نه کیږی په غوښتلو ستاسو | مگر کیږی هغه | چی غواړی الله | بیشکه الله |

اوتاسو خوبس هغه څه غوښتل [کولي] شئ | چي الله ﷻ ئي اوغواړی | بیشکه الله ﷻ

كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿٣٠﴾ يُدْخِلُ مَنْ يَشَاءُ فِي رَحْمَتِهِ ۚ وَالظَّالِمِينَ

دی عالم او حکیم | داخلوی | هغه څوك | چی خوښه ئي شی | په رحمت خپل کښی | اوظالمان چی دی

دډیر علم او حکمت خاوند دي | څوک چي اوغواړی نو په خپل رحمت کښي ئي داخلوی | اوظالمانو

| أَعَدَّ | لَهُمْ | عَذَابًا أَلِيمًا ﴿٣١﴾ |
|---|---|---|
| تيار كړي دي الله | دپاره دهغوئ | عذاب دردناك |

دپاره الله ﷻ دردناک عذاب تيار کړي دي

## آسان ترجمه قرآن

په انسان باندې چرې داسې وخت هم راغلې دې، چه نه وو دې څه څيز د يادولو قابل؟ مونږ انسان د ګډې وډې شوې نطفې نه داسې پيدا کړو چه هغه باندې آزميښت اوکړو. بيا مو هغه لره داسې جوړ کړو چه اورې هم، او وينې هم. مونږ هغه ته لاره اوښودله يا به شکر ګذار وي، يا به ناشکره جوړ شي. مونږ د کافرانو دپاره زنځيرونه، د مرئ طوقونه او بل کړې شوې اور تيار کړې دې. بے شکه نيک خلق به په داسې جامونو کښې څکي، چه په هغې کښې به د کافورو ګډون وي. دا مشروبات به د يو داسې چينې نه وي، چه د الله تعالیٰ (دنيکو) بندګانو دڅکلو دپاره مخصوص ده، چلوی به هغې لره (کوم خوا ته چه غواړي) په آسانئ سره دا خلق پوره کوی منختې خپلې، اود هغې ورځ ويره ئې په زړه کښې اچولې ده، چه د هغې سختئ به هرطرف ته خورې ورې وی او دوی د الله تعالیٰ سره د محبت په وجه مسکينانو، يتيمانو او قيديانو ته خوراک ورکوی. او (هغوی ته وائي چه) مونږ تاسو ته صرف د الله تعالیٰ د رضا دپاره خوراک درکوو، نه مونږ تاسو نه څه بدله غواړو، او نه شکر کول مونږ ويريږو د خپل پروردګار د طرف نه د هغې ورځې نه، چه په هغې کښې به مخونه ډير زيات وران شوې وي. ددې نتيجه داده، چه الله تعالیٰ به داسې خلق د هغې ورځې د بدو اثراتو نه بچ کړي، او دوی ته به تازګي او خوشحالي ورکړي او دوی چه د صبر نه کار اخستلې وو، د هغې په بدله کښې به دوی ته جنت او ريښمينې جامې ورکړي. دوی به په هغې باغونو کښې په اوچتو پالنګونو کښې تکيه لګولې وي، نه به هلته کښې ګرمي وينې او نه سخته يخني. اوحالت به داوی چه دهغې باغونو سوری به په دوی باندې راټيټ شوې وي، او ميوې به دوی طرف ته راکږې شوې وي او ګرځولې به شي ددوی مخښې ته لوښي د چاندي، او هغه پيالئ چه د شيشې به وي. شيشه هم جوړه شوې وي د چاندئ نه چه ډکونکې به هغه په خاص اندازه سره ډکه کړې وي. او هلته به دوی باندې داسې جام څکولې شي چه په هغې کښې به د سونډو ګډون وي. د داسې چينې نه، چه دهغې نوم سلسبيل دې. او ددوی مخښې ته به (دخدمت دپاره) داسې هلکان ګرځي راګرځي، چه هميشه به هلکان وي چه کله ته اووينې هغوی لره، نو ګمان به اوکړې په هغوی باندې د ملغلرو خورو ورو. او (حقيقت خو دادې چه) کله ته اووينې هغه ځائې، نو او به وينې د نعمتونو يو جهان او لويه بادشاهي. بره طرف ددوی به جامې د نرو شنو ريښمو وي، اود ټغتو ريښمو جامې به وي، او اچولې کيږي به دوی ته بنګړی د چاندئ او څکوی به دوی ته پروردګار ددوی شراب پاک. (او فرمائي به) چه يقيناً دادې ستاسو انعام او په (دنيا کښې) چه کوم عمل (کوشش) موکړې وو، هغه پوره قبول کړې شو يقيناً هم مونږ نازل کړې دې په تا باندې قرآن په لږ لږ نازلولو سره. لهٰذا ته د خپل پروردګار په حکم باندې ثابت قدم اوسيږه، او په دې خلقو کښې د نافرمان او کافر خبره مه منه. او د خپل پروردګار د نوم سحر او ماښام ذکر کوه او څه حصه د شپې کښې هم د هغهٔ مخکښې سجده کوه، او د شپې په اوږده حصه کښې د هغه تسبيح کوه. دا خلق

د(دنیا) څیزونو سره مینه کوی، او د دوی مخکښ چه کومه درنه ورځ راروانه ده، هغه ئې پریخودلې دو. مونږ پیدا کړي دی دوی، او کلک کړي دی مونږ بندونه ددوی، او کله چه مونږ اوغواړو، نو ددوی په بدله کښ به ددوی پشان نور پیدا کړو. حقیقت دادې، چه دا نصیحت دې، نو څوک چه غواړی، خپل پروردګار طرف ته دې لار اختیار کړی. او تاسو نشئ غوختلې، تر څو پورې چه الله تعالی نه وی غوختې، او الله تعالی د علم مالک هم دې، د حکمت مالک هم دې. او هغه چه چالره اوغواړی، په خپل رحمت کښ ئې داخلوی، او کوم چه ظالمان خلق دی، هغوی دپاره الله تعالی دردناک عذاب تیار کړې دې.

## خلاصه تفسیر

﴿هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْـًٔا مَّذْكُوْرًا۝﴾ [بیشکه په انسان باندې یو داسې وخت هم په زمانه کښې راغلې دې په کوم کښې چه دغه څهٔ قابل ذکر شې نهٔ وو] یعنی انسان نهٔ وو بلکه نطفه وه او ددې نه وړاندې غذا اوددې نه وړاندې دعناصرو جزء وو ﴿اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ﴾ [مونږ دهٔ لره دمخلوطې نطفې نه پیدا کړو] یعنی دسړی او ښځې دواړو دنطفې نه ځکه چه دښځې منی هم دننه په رحم کښې غورزیږی بیاکله درحم دخلې نه راوخې ضائع شی اوکله دننه پاتې شی اودمخلوط معنی دا هم کیدې شی چه دادمختلفو اجزاؤ نه مرکب ده چنانچه دمنئ ترکیب دمختلف اجزاؤ نه ظاهردې غرض مونږ دهٔ لره دداسې نطفې نه پیداکړو ﴿نَّبْتَلِيْهِ﴾ [په داسې طور چه مونږ دهٔ لره مکلف جوړ کړونو] ﴿فَجَعَلْنٰهُ سَمِيْعًۢا بَصِيْرًا۝﴾ په دې واسطه سره [مونږ دهٔ لره اوریدونکې لیدونکی] پوهیدنکې [جوړ کړو] اوچونکه په محاوره کښې سمیع بصیر دعاقل دپاره استعمالا مخصوص دې په دې وجه دعقل ورکولو کوم چه مدار دې دمکلف کیدو وضاحت ونهٔ فرمانیلو مګر مراددغه هم دې مطلب داچه مونږ په داسې هیناتو اوصفاتو سره پیداکړوچه په دهٔ کښې دشرعی احکامو دمکلف جوړیدوقابلیت وی ددې نه پس هرکله چه دمکلف کیدو وخت راغلې نو ﴿اِنَّا هَدَيْنٰهُ السَّبِيْلَ﴾ [مونږ دهٔ لره ] په ښهٔ بد خبر کړو[ لار مو ورته وښوده] یعنی داحکامو مخاطب موجوړ کړو بیا ﴿اِمَّا شَاكِرًا وَّاِمَّا كَفُوْرًا۝﴾ [یاخوهغه شکر ګزار] او مؤمنان [شول یاناشکره ] او کافران [شول] یعنی په کومه لاره چه دچلیدو دوی ته ونیلې شوی وو کوم چه په هغې باندې لاړو هغه مؤمن شو کوم چه پرې بالکل لاړنهٔ شو هغه کافر شو وړاندې دفریقینودجزا ذکر دې چه ﴿اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَلٰسِلَا۟ وَاَغْلٰلًا وَّسَعِيْرًا۝﴾ [مونږ دکافرانودپاره زنځیرونه اوطوقونه او سوزوونکې اور تیار کړې دې ] او ﴿اِنَّ الْاَبْرَارَ يَشْرَبُوْنَ مِنْ كَاْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا۝﴾ بیشکه [کوم چه نیکان ] خلق [دی هغوی به داسې جامونه ] د شرابو [څښې چه په کښې به دکافوروګدوالې وی ﴿عَيْنًا﴾ یعنی دداسې چینو نه] به څښی ﴿يَّشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللّٰهِ﴾ [د کومونه چه به دخدائې خاص بندګان څښی] او ﴿يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا۝﴾ [کومو لره چه به هغه] خاص بندګان کوم ځائې ته چه غواړی [بیائی بهیوی] اودابه دجنتیانو یو کرامت وی چه نهرونه دجنت به ددوی تابع وی لکه چه په درمنثور کښې دابن شوذب نه مروی دی چه دجنتیانو په لاسونه کښې به دسرو زرو لختې وی په دغو سره چه کوم طرف ته اشاره کوی نهرونه به هغې طرف ته جاری کیږی اوداکافور ددنیاکافور نهٔ دی بلکه دجنت کافوردی کوم چه په سپینوالی اوخنکئ اوتفریح اوتقویت دزړهٔ او په دماغو کښې ددې سره شریك وی په شرابو کښې دخاص کیفیتونو حاصلولو دپاره عادت دې دخنو مناسبو څیزونو ملاوولو پس

هلته به په دې جام کښې کافور ملاوولې شي اودغه دشرابو جام به د داسې چينې نه ډکولې شي دکومونه چه به مقرب بندګان څښي نو ظاهره ده چه هغه به داعلى درجې وی پس په دې سره دابرارو دبشارت تقويت وشو اوکۀ دابرارو اوعبادالله مصداق يو وی نو دوه ځايه په بيانولو سره جداجدامقصوددې يوځاني ددې اميزش مقصود دې دويم ځاني ددې ډير والې اومسخرکيدل چه دعيش داسبابو کثرت اودطبيعت تابع کيدل دعيش لذت لره زياتوی وړانددې ابرارو د صفتونو ذکر دې چه ﴿يُوفُونَ بِالنَّذْرِ﴾ [هغه خلق واجبات پوره کوی او] اداکوی نې هم خلوص سره څکه چه ﴿وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا﴾ هغوې [دداسې ورځې نه ويريږی دکومې سختې چه به عامه وی ] يعنی کم وبيش په ټولو به ددغې سختئ اثروی مراد دقيامت ورځ ده الا من شاء الله تعالى [او] دغه خلق داسې مخلص دی چه په مالی عبادتونو کښې هم په کومو کښې چه غالباخلاص کم وی کمال درجه اخلاص لری چنانچه ﴿وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا﴾ [هغه خلق محض دخدائی په محبت سره غريب اويتيم اوقيدی ته خوراك وركوی ] قيدی کۀ مظلوم وی چه په ظلم سره قيدشوې وی نوبياخو ددۀ مدد کول غوره دی اوکۀ ظالم وی چه دظلم په سزا قيد شوې وی نو دشدت حاجت په وخت کښې هغۀ لره خوراك وركول هم مستحسن دی اودغه خلق چه خوراك وركړی نو په ژبه سره ياپه زړۀ سره داسې وائي چه ﴿إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ﴾ [مونږ خو محض دخدائی دپاره خوراك دركوو ﴿لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا﴾ نۀ مونږ تاسو نه] ددې عملی [بدله غواړو اونۀ ] قولی [شكريه] غواړو اومونږ دخدائي درضامندئ دپاره په دې واسطه تاسوته خوراك دركووچه ﴿إِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا﴾ [مونږ دخپل رب دطرف نه ديوې سختې اوترخې ورځې ويره لرو]نواميدلرو چه ددې مخلصانه عملونو په وجه دهغې ورځې دتريخوالی اوسختئ نه محفوظ شو اوددې نه معلومه شوه چه داخرت په ويره سره څۀ كاركول داخلاص اوالله تعالى درضاحاصلولو منافئ نۀ دی ﴿فَوَقَاهُمُ اللَّهُ شَرَّ ذَٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقَّاهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا﴾ [پس الله تعالى به دوی لره ] ددې اطاعت اواخلاص په بركت سره [ددغې ورځې دسختئ نه محفوظ وساتئ اودوی ته به تازګی او خوشحالی وركړی] يعنی مخونه به نې تازه شی اوزړونه به نې خوشحاله شی ﴿وَجَزَاهُم بِمَا صَبَرُوا جَنَّةً وَحَرِيرًا﴾ [اودهغودپختګئ] يعنی استقامت فی الدين په بدله كښې به هغوی لره جنت [او ريښمن لباس وركړې په دې حالت كښې چه ﴿مُّتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ﴾ هغوی به هلته ]په جنت كښې په صوفوياند] په ارام اوعزت سره [تكيه لګوونكی وی ]او ﴿لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَلَا زَمْهَرِيرًا﴾ [نه په هلته تاؤ ]اوګرمی [بيامومی اونۀ يخنی ]يعنی ساړۀ بلكه فرحت بخش معتدله موسم به وی ﴿وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَالُهَا﴾ [اوداحالت به وی چه] هلته يعنی دجنت [داونو سوری به په دې] جنتيانو [راښكته شوی وی ] يعنی نزدې به وی اوسوری داسبابودنعمتونونه دی په جنت كښې به نمرسپوږمئ نۀ وی نوبيادسوری څۀ مطلب دې كيدې شي چه دنورو نورانی اجسامو درنړا سوری مقصود وی اوفائده دسوری غالبا داده چه حالت به بدليږی يو حالت كۀ هر څومره دارام اولذت وی اخر دهغې نه طبيعت سترې كيږی ﴿وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا﴾ [اودهغې ميوې به دهغوې په اختيار كښې وی ] چه هر وخت په هرحالت كښې به بغير دمشقته حاصليږی ﴿وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِآنِيَةٍ مِّن فِضَّةٍ﴾ [اودوی ته به[دخوراك څښاك دخيزونو رسولودپاره [دسپينو زرولوښی راوړې شی ﴿وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا﴾ اوپيالې چه دشيشې به وی] او ﴿قَوَارِيرَ مِن فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا﴾ [هغه شيشې به دسپينو زرو وی كومولره چه

به ډکوونکې په مناسب انداز سره ډکې کړې وي ]یعنی دڅکلوشيءبه په کښې په داسې انداز سره ډك شوې وي چه نۀ به په کښې ددغې وخت دخواهش نه کمې وي اونۀ به ترې نه څۀ پاتې شي چه په دې دواړو کښې بې مزګې وي اودسپینو زرو نۀ دشیشې معنی داده چه سپینوالی خو به ئې دسپینو زرو په شان وي اوصفاوالې به ئې لکه دشیشې وي اودنیاپه سپینو زرو کښې پورې راپورې څۀ نۀ ښکاري اوپه شیشه کښې دلته داسې سپینوالی نۀ وي پس دابه یو عجیبه شی وي﴿وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنْجَبِيلًا﴾ [او هلته به دوی ته] علاوه دذکر شوی جام د شرابو نه چه دکافورو امیزش به په کښې وي نور هم [داسې دشرابوجامونه څکولې شي په کومو کښې چه به دسونډ ګډوالې وي [چه دحرارت غریزی دچستيءاودخلې دخوندبد لولو دپاره به ئې په شرابو کښې دې لره هم ملاوولو ﴿عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّى سَلْسَبِيلًا﴾ [یعنی دداسې چینې نه کومه چه به هلته وي [به دوی ته څښولې شی [چه نوم به ئې] هلته سلسبیل مشهور[وی] دمجموعې دمقام برنی نه اوددې مقام نه معلومیږی چه دبرنيءچینې په شرابو کښې به امیزش دکافورو وی اوددې وروستيءچینې په شرابوکښې به امیزش دزنجبیل وی په دې رازونویاندې الله تعالی ښه پوهیږی. ﴿يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ﴾ [اودوی ته به ]داخیزونه [داسې هلکان راوړی راځی کوم چه به همیشه هلکان وی] اوهغه به دومره ښائسته وی چه﴿وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَنْثُورًا﴾ [اې مخاطبه کۀ تۀ دوی لره] په ګرځیدوکښې[ووینې نو داسې به ګنړې چه ملغلرې دی خورې شوې ] دملغلرې سره تشبیه په صفايئ او رونړوالی کښې او دخوروشووصفت ددوی دګرځیدو راګرځیدوپه لحاظ سره لکه ملغلرې چه خورې شی اخوادیخوا روانې وی اوداداعلی درجې تشبیه ده [او] په دغوذکر شوو اسبابو دنعمتونو کښې انحصار نشته بلکه هلته به نور هم هر سامان په دومره افراط اورفعت سره وی چه﴿وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا﴾ [اے مخاطبه کۀ تۀ دغه ځائې ووینې نو تاته به لوئې نعمت اولوئې حکومت ښکاره شی] ﴿عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُنْدُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ﴾ او[ په هغو جنتیانو باندې به دباریکو شنو ریښمو کپړې وی او دپیړو ریښمو کپړې به وی[ځکه چه په هر لباس کښې جداخونداومزه ده ﴿وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِنْ فِضَّةٍ﴾[اودوی ته به دسپینو زرو بنګړی په لاسونو کښې اچولې شی ] په دې سورة کښې درې ځایه دسپینو دسامان ذکر راغلې دې اوپه نوروایتونو کښې دسرو زرومګر په دواړو کښې تعارض نشته ځکه چه دواړه قسمه سامان به وی اوحکمت په دې کښې هغه تفنن اوتغیر دطبائعو اونعمتونو دې اوداشبهه چه سړو ته خو کالی اچول معیوب دی په دې وجه مندفع ده چه دهر مقام مقتضا جداده ددې ځائې عیب کیدل دهغه ځائې دعیب کیدوته مستلزم نۀ دی ﴿وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا﴾[اوددوی رب] چه کوم شراب دوی ته دڅښلودپاره ورکوی دکوم چه بره ذکر راغلې دې هغه به په مثل ددنیا دشرابوناپاك اوعقل لرې کوونکی اونشه راوستونکی نۀ وی بلکه الله تعالی [به دوی ته پاکیزه شراب دڅښلودپاره ورکوی] په کومو کښې چه به نۀ نجاست وی اونۀ خړوالې لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿لَا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُونَ﴾([1] ) اودرې ځایه چه کوم په سورة کښې ذکر دشرابو راغلې دې هر ځائې ئې غرض جدا دې لکه چه دترجمې دتقریر نه واضحه ده بیاپه اول کښې يَشْرَبُونَ دې بل ځائې يُسْقَوْنَ کوم چه په زیات داکرام او اعزاز دلالت

---

[1] ) ترجمه:-او نه هغې په سر کښې درد به وی او نه به په عقل کښې فتور راځی.

کوی دریم ځاۍ په ﴿سَقٰهُمْ رَبُّهُمْ﴾ کښې نهایت تشریف او تکریم دې پس دتکرار شائبه پاتې نه شوه اوددې تولونعمتونو دورکولو نه پس به دجنتیانودروحانې مسرت زیاتولو دپاره ووئیلې شي چه ﴿اِنَّ هٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَّكَانَ سَعْيُكُمْ مَّشْكُوْرًا﴾ [ داستاسوصله ده او ستاسو کوشش] کوم چه په دنیاکښې تاسو کولو[مقبول شو] وړاندې دفریقینو دجزاذکر کولو نه پس په طوردتفریع معنوی ددوی ﷺ دتسلۍ دپاره بیان دې یعنې ددې مخالفینو سزا تاواوریده پس ته ددوی په مخالفت غم مه کوه اوپه خپل عبادت اوددعوت اواصلاح په کار کښې مشغول وسه چه علاوه دطاعت نه په دې کښې دزړه هم تقویت دې اوبیان ددې طاعت دادې چه ﴿اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ تَنْزِيْلًا﴾ [مونږه په تاقرآن لږلږ نازل کړې دې ] چه لږلږ خلقوته ورسی اوددوی ترې نه فائده واخلې او دوی ته ددې نه په فائده اخستوکښې اسانی وی لکه چه دسورة اسراءٔ په اخر کښې دی ﴿وَقُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ﴾ الخ([1]) ﴿فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ﴾ [پس ته دخپل رب په حکم] چه په دې کښې تبلیغ هم داخل دې [مستقل وسه ﴿وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا﴾ اوپه دوی کښې دچاکافر یافاسق په خبرو کښې مه راځه] یعنی داکوم چه دتبلیغ نه منع کوی لکه په درمنثور([2]) کښې په سورة کافرون کښې دی چه د دوی موافقت مه کوه مقصودددې نه اظهار داهتمام شان دې ورنه دنبی کریم ﷺ نه ددوی د موافقت کولو هیڅ احتمال نهٔ وو داخو متعدی عبادت امرشو[او] وړاندې دلازمی عبادت امر دې یعنی ﴿وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۚ وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا﴾ [دخپل پروردګار سحر ماښام نوم اخله اوڅهٔ قدرې دشپې په حصه کښې هم هغهٔ ته سجده کوه ] یعنی فرض مونځ کوه [اودشپې په لویه حصه کښې دهغهٔ تسبیح ]اوپاکی [کوه] مراد ددې نه تهجددې علاوه د فرائضونه اووړاندې دتقویت دتسلۍ دپاره یوبل مضمون دې په کوم کښې چه دکفارو مذمت هم دې یعنی ددې خلقو دمخالفت اصل وجه تاسره داده چه ﴿اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ﴾ [داخلق د دنیا سره محبت ساتی ﴿وَيَذَرُوْنَ وَرَآءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيْلًا﴾ اوخپل وړاندې ] راتلونکی [یوه درنه ورځ پرېښودې ده] پس ددنیامحبت راندهٔ کړې دی په دې وجه دحق وینا سره بغض ساتی اوددرنې ورځې ذکر ئې چه واوریدو چونکه احتمال ددوی دانکار وو په دې وجه وړاندې ددغې درنې ورځې استبعاد لره دفع فرمائی یعنی ﴿نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ﴾ [هم مونږ دوی لره پیدا کړل ﴿وَشَدَدْنَآ اَسْرَهُمْ﴾ اوهم مونږ د دوی جوړ بندونه مضبوط کړل او]دارنګ ﴿وَاِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَآ اَمْثَالَهُمْ تَبْدِيْلًا﴾ [هرکله چه مونږ وغواړو نو ددوی په شان به نورخلق د دوی په ځاۍ بدل کړو اواولنې امر خو مشاهده ده اودویم امر په ادنی تنبیه سره معلومیدلی شی پس په دواړوامرو سره قدرت الهیه ظاهردې بیامړولره په دوباره ژوندی کولو کښې کومه ګرانه خبره ده چه قدرت به ئې پرې نهٔ وی وړاندې په دغو ټولو سابقه مضامینو باندې په طور دتفریع فرمائی چه[﴿اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ﴾ دا] ټول کوم چه ذکر شول کافی] نصیحت دې ﴿فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا﴾ پس کوم سړې چه غواړی دخپل رب طرف ته دلار اختیارکړی [ اوپه مزمل کښې تیر شوی دی] [او] دقرآن په نصیحت کیدوکښې دپه دې سره شبهه نهٔ شی کولې چه څنوته خو په دې سره هدایت نه کیږی خبره داده چه قرآن فی نفسه نصیحت اوکافی هدایت دې لیکن ﴿وَمَا

---

[1]) ترجمه:- او ځاۍ په ځاۍ مونږ په قرآن پاك فصل اېښودې دې.

[2]) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۵ ص۷۱۱]

﴿تَشَاۗءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَاۗءَ اللّٰهُ﴾ [بغير دخدائی درضانه تاسو خلق هيڅ خبره نه شئ غوښتې] او دخنو خلقو دپاره دخدائی په نه غوښتو کښې ځني حکمتونه وی ځکه چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا﴾ [خدائی تعالی لوئې او حکمت والادې ﴿يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَاۗءُ فِيْ رَحْمَتِهٖ﴾ هغه چالره چه غواړی په خپل رحمت کښې داخلوی او] چالره چه غواړی په کفر اوظلم کښې ئې مبتلا ساتی بيا ﴿وَالظّٰلِمِيْنَ اَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ [دظالمانو دپاره هغه دردناك عذاب تيارکړې دې ]

## معارف او مسائل

دَ سورت دهر نوم سورت انسان او سورة الابرار هم دې. [روح][1] په دې کښې دَ انسانی تخليق ابتداء او انتهاء او په اعمالوباندې جزا او سزا، قيامت، جنت او دوزخ خاص حالات په ډير بليغ، فصيح او مؤثرانداز کښې بيان کړې شوی دی.

﴿هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْـًٔا مَّذْكُوْرًا﴾ لفظ هل په اصل کښې دَ استفهام دپاره راځي او بعضې وخت يوښکاره څيزڅخه په صورت دَ استفهام کښې دَدې دپاره تعبيرکولې شی چه دهغې واضح کيدل نور مؤکد شي چې دَ چانه تپوس کوې اوهم هغه جواب درکړي. دويم احتمال هډو شته نه لکه چه يوسړې دَ نيمې ورځ په وخت کښې دَ چانه تپوس اوکړی چه آيا دا ورځ ده؟ دَدې صورت خودَ استفهام دې مګر په حقيقت کښې دَدې دَ ډير واضح کيدو بيان دې. ددې دپاره په داسې موقعو باندې بعض حضراتو فرمائيلی چه په دې ځائی کښې حرف هل په معنی دَ قد دې چه دَ واقع دَ يقينی کيدو دپاره وئيلې شی. په هرو دواړو صورتونو کښې دَ آيت مطلب دادې چې په انسان باندې يوه اوږده زمانه داسې تيره شوې ده چه په دنيا کښې چرته دَ هغه نوم اونښه نښانه نردې چه ذکر اوتذکره ئې هم نه وه.

لفظ حِيْنٌ تنوين سره ذکرکولوسره دَهغه وخت او زمانې دَ اوږدوالی طرف ته اشاره ده . او په دې آيت کښې دَا اوږده زمانه په انسان باندې دتيريدلو بيان کړې شوې دې. په کوم کښې چه دَهغه فی الجمله په څه نه څه شان سره وجود کيدل لازم دی. دعدم محض زمانې ته په انسان باندې تيريدل نه شی وئيلې په دې وجه اکثر مفسرينو حضراتوفرمائيلی چه دَ دغه اوږدې زمانې نه کومه چه په انسان باندې تيره شوه هغه زمانه مراد ده چه دَ حمل دَ قرارنه پس ترد پيدائش وخته پورې ده کومه چه په عام توګه نهه مياشتې وی په دې کښې چه دَ انسان په پيدا اوښت باندې څومره موده تيريږی. دَ نطفې نه واخله بدن او اندامونه او بيا په هغې کښې دَ ژوند روح راتلو پورې ټول شامل دی. په دې پوره زمانه کښې سره دَدې چه دَهغه وجود يوقسم له قائم شوې دې مګر نه څوك پيژني چه هلك دې که جينئی نه دَ ده څه نوم شته، نه چاته دَهغه شکل اوصورت معلوم دې په دې وجه ددې چرته ذکر اوتذکره نشته دې. اوکه چرې دې له وسيع تر معنی ورکړې شی نودَ انسان دَ تخليق شروع ځنګه چه دَ نطفې نه ګنړلې شوې ده. هغه نطفه هم چه دکوم خوراك نه تياره شوې ده هغه خوراك اودَ دغه خوراك نه وړاندې دَ هغه خوراك ماده په يو نه يو صورت کښې په دنيا کښې وه. که چرې هغه زمانه هم شامل کړې شی نودَ زمانې دا اوږدوالې دَ زرګونو کلونو پورې کيدې شی. بهر حال الله تعالی په دې آيت کښې دَ انسان يوداسې امر طرف ته توجه راګرځولې ده چه که په هغه کښې لږ شان هم شعور وی اوڅه غورهم اوکړی نوده ته به دَ خپل حقيقت دَ ښکاره کيدوسره دَخپل پيدا کونکی او

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۹ص:۱۱۸][باختصار)

جوړونکي په وجود، علم اوقدرت باندي پوه ایمان اویقین پیدا کیدونه بغیر بل څه لاز نه وی. که چرې یو د اوباؤ کالو انسان د دې مراقبه اوکړی او په دې باندې غور اوکړی چه د اوس نه یواویا کاله وړاندې د هغه چرته نوم اونښه نښانه نه وه اونه چا په څه عنوان سره د هغې ذکر کولې شو. د مور پلار اونیا نیکه په زړه کښې هم د ده د مخصوص وجود هیڅه اشاره قدرې نه وه لکه چه د بچی مطلق تصور وی. هغه وخت څه څیز د هغه د ایجاد او تخلیق داعی شو اوکوم یو قدرت په ټوله دنیا کښې خورې شوې ذرې د هغه په وجود کښې رایوځائی کړې هغه ئی یوهوښیار عقل مند اوریدونکې اولیدونکې انسان جوړ کړو نوهغه به ناځاپی په دې وینا کولو باندې مجبور شي:

ما نبودیم و تقاضا نبود لطف تو ناگفته ما می شنود([1])

دې نه پس د انسانی تخلیق د شروع کیدو بیان ئی داسې فرمائیلې دی ﴿اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ﴾ یعنی مونږ پیدا کړو انسان د یوې ګډې وډې نطفې نه. اَمْشَاج، د مشج یا مشیج جمع ده د کوم معنی چه د مخلوط یعنی ګډې وډې راځی. اودلته ښکاره داده چه د سړی او ښځې مخلوط نطفه مراد ده لکه چه اکثر مفسرینو حضراتو فرمائیلی دی. او روح المعانی کښې د بعض مفسرینو نه نقل شوی دی چه د امشاج نه مراد اخلاط اربعه یعنی وینه بلغم سودا، صفراء دی د کوم نه چه نطفه مرکب کیږی([2]).

**د هر انسان په پیداوښت کښې د ټولې دنیا اجزاء او ذرات شمولیت:** اوکه چرې غور اوکړې شي نو دا اخلاط اربعه مذکوره هم د خوراك د مختلف قسمونو نه حاصلیږی اوکه د هر انسان په خوراك کښې غور اوکړې شي نو په هغې کښې د لرې لرې ملکونو اوعلاقو اجزاء آب وهوا وغیره په ذریعه شاملیږی. دغه شان که د یوانسان د موجوده بدن تجزیه اوتحلیل اوکړې شي نو معلومه به شي چه هغه د داسې اجزاء او ذرو مجموعه ده چه د دنیا په ګوټ ګوټ کښې به خورې وی. د قدرت عجیبه نظام په یوه حیرانونکې طریقه سره هغه د ده په وجود کښې راځائې کړې دی. که چرې د امشاج مطلب دا واخستې شي نو په دې مقام د لفظ امشاج د ذکر سره د قیامت د منکرینو د ټولو نه د لوئی شك شبهې ازاله هم اوشی څکه چه ده د الله تعالی د نه پیژندونکو خلقو په نیز د قیامت قائمیدل او د مړو بیا راژوندی کیدو کښې د ټولو نه لوئی اشکال هم دغه دې چه انسان مړ کیدوسره خاوره او بیا ذره ذره کیدو سره په دنیا کښې خور شی دا بیا راجمع کول بیا په هغه کښې روح اچول د هغوی په نیز لکه چه ناممکن دی.

د امشاج په معنی اخلاط تفسیر کښې د هغوی د دې شك یو واضح جواب دې چه د انسان د تخلیق په شروع کښې هم خود ټولې دنیا اجزاء او ذرې شامل وې د چاډپاره چه دا د شروع تخلیق ګران نه شو د هغه د پاره د ده بیا راژوندی کول به ولې مشکل شی او په دې تفسیر سره د لفظ امشاج په دې ځائی اضافه هم د یومستقل فائدې د پاره کیدې شی. والله اعلم.

**نَبْتَلِيْهِ:** د ابتلاء نه مشتق دې د کوم معنی چه امتحان او ازمیښت دې دا د انسانی تخلیق د غرض اومقصد بیان دې چه انسان ئی په دې شان سره د پیدا کولو مقصد د هغه ازمیښت دې د کوم بیان چه په وړاندې آیتونو کښې راغلې دې چه مونږ د انبیاء کرامو ﷺ او آسمانی کتابونو په ذریعه ده

[1]) ترجمه: نه مونږ وواو نه زمونږ تقاضا وه تا پخپله مهربانئ سره زمونږ هغه څه واؤریدل چې مونږ نه وو وئیلي.
[2]) تفسیر روح المعاني [ج: ۲۲ ص: ۱]

ته لار اوخودله چه دا لار د جنت اودا د دوزخ طرف ته خي اوهغه ته ئي اختيار ورکړو چه په دې کښې کومه يوه غواړي اختيار دې کړي. نوپه دوی کښې دوه ډلې شوی ﴿إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا﴾ يعني يوه ډله د هغه خلقو شوه چاچه د خپل پيدا کونکي او نعمت ورکونکي پيژندګلو سره د هغه شکر اداکړو او په هغه باندې ئې ايمان راوړو. دويمه ډله هغه شوه چاچه د الله تعالى د نعمتونو ناشکري اوکړه اوکافر پاتې شو. دې نه پس ئې د دغه دواړو ډلو د جزاء او انجام ذکر اوفرمائيلو چه د کافرانو د پاره زنځيرونه طوق او دوزخ دې اود ابرار يعنې ايمان او طاعت پابندی کونکوخلقو د پاره لوئې لوئې نعمتونه دی. د ټولو نه اول د څکلو د څيزونو ذکر دې چه هغوی ته به داسې د شرابوجام ورکولې شی په کوم کښې چه به د کافور ګډودوالې وی ﴿إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِنْ كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا﴾ بعض مفسرينوفرمائيلي دی چه کافورد جنت د يوې چينې نوم دې په دغه شرابوکښې خوند اومزه زياتولو د پاره به د هغه چينې اوبه شاملولې شي اوکه د کافور مشهور اومعروف معنى واخستې شي نودا ضروري نه دی چه د جنت کافور هم د دنيا د کافور په شان وی د خوراك څښاك قابل نه وی د هغه کافور خصوصيات جدا وی.

﴿عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ﴾ د لفظ عَيْنًا ترکيب نحوی کښې د کافوراً بدل هم کيدې شی. په دې صورت کښې دا متعين کيږی چه په مذکوره آيت کښې د کافورنه مراد د جنت چينه ده اود عباد الله نه مراد هم هغه د الله تعالى نيك بنديګان دی د چا ذکر چه وړاندې د ابرار په عنوان سره کړې شوې دې اوکه چرې عينًا په من کاس سره بدل اوګرځولې شی نودا د څه بلې چينې او اوبو بيان دې او په دې صورت کښې به د عبادالله نه مراد د اهل جنت څه نور خلق يا جماعت وی څوك چه د ابرار نه په کمه درجه کښې دی.

﴿يُوفُونَ بِالنَّذْرِ﴾ دابيان د هغې دې چه ابرار او عبادالله ته به دا انعامات د څه په وجه ملاويږی. معنى داده چه داخلق د کوم کار د پاره د الله تعالى نذر [منخته] منې هغه پوره کوی. د نذر لفظ معنى داده چه ته په خپل خان باندې يوداسې کار لازم کړې چه د شريعت د طرف نه په تاباندې لازم او واجب نه وی. د داسې نذر پوره کول شرعاً واجب وی د کوم څه تفصيل چه وړاندې راځي. دلته د جنتيانو د لوئې بدلې او انعاماتو سبب د نذر پوره کول ګرځولې شوی دی. په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه داخلق د خپل طرف نه د واجب کړې شوی څيزونو د ادا کولو اهتمام کوی نو چه کوم فرائض او واجبات د هغوی په اختيار کښې نه دی بلکه د الله تعالى د طرف نه په دوی باندې لازم کړې شوی دی د هغې اهتمام به په طريقه اولى سره کوی. دغه شان په لفظ د نذر پوره کولو کښې په حقيقت کښې د شريعت د ټولو واجباتو او فرائضو ادا کول شامل شو اود جنت د انعاماتوسبب به مکمل اطاعت او ټول فرائض اوواجبات اداکول وی. بهرحال په دې جمله سره د نذر پوره کولو اهميت او واجب کيدل ثابت شو.

**مسئله**: د نذريعنې منختې منعقد کيدو د پاره يوڅو شرائط دی. اول داچه د کوم کارنذراومنلې شی هغه جائز اوحلال وی د ګناه نه وی. که چا يو د ګناه د کار يا د ناجائز کار نذر اومنلو نو په هغه باندې لازم دی چه هغه دغه ناجائز کارنه کوی خپل قسم دې مات کړی او د قسم کفاره دې ورکړی. دويم شرط دادې چه هغه د الله تعالى د طرف نه واجب نه وی څکه چه که يوسړې د فرض مونخ يا وتر واجب نذر اومنې نودا نذر منخته به لغو وی هغه فرض يا واجب د اول نه په ده باندې ادا کول واجب دی. د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نيزدا شرط هم دې چه کوم کار د نذر په ذريعه سره په خپل خان

واجب کړي دي د هغې د جنس نه څه عبادت په شریعت کښې واجب کړې شوې وی لکه مونځ روژه صدقه قربانی وغیره او د کوم د جنس نه چه شرعاً څه عبادت مقصودنه وی د هغې نذر منلوسره نذر نه لازمیږی لکه د یو بیمار تپوس کول یا جنازې پسې شاته تلل وغیره سره د دې چه عبادت دی مګر عبادت مقصوده نه دې. د نذر او قسم احکامو تفصیل د فقه په کتابونو کښې اوګورئ.

﴿وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا﴾ یعنی د جنتیانو دا انعامات به په دې وجه سره هم دی چه هغوی په دنیا کښې یتیمانو مسکینانو او قیدیانو باندې خوراکونه کول ﴿عَلَىٰ حُبِّهِ﴾ کښې حرف علی په معنی د مع دې. مطلب دا چه دا خلق په داسې حال کښې هم غریبانانو ته خوراك ورکوی د دې باوجود چې هغه خوراك ده ته پخپله د خپل ځان د پاره هم محبوب او خوښ وی. صرف یوازې دا نه چه د خپل ځان نه زیاتی خوراك غریبانانو مسکینانو ته ورکوی. مسکینانو او یتیمانانو ته خوراك ورکول عبادت او ثواب کیدل خو ښکاره دی. د قیدی نه مراد ښکاره دې چه هغه قیدی دې څوك چه د شرعی اصولو مطابق قید کړې شوې وی که هغه کافر وی او که مسلمان مجرم. بهرحال په هغوی باندې خوراك کول د اسلامی حکومت ذمه واری ده. کوم سړې چه په هغوی باندې خوراك کوی هغه لکه د حکومت او بیت المال امداد کوی. په دې وجه که قیدې کافر هم وی په هغه باندې خوراك کول به ثواب وی. خاص کر د اسلام په شروع کښې خو د قیدیانو خوراك څښاك او د هغوی حفاظت کول په عامو مسلمانانو کښې تقسیم کولو سره به د هغوی په ذمه کولې شو لکه څنګه چه د غزوه بدر قیدیانو سره معامله اوکړې شوه.

﴿قَوَارِيرَا مِن فِضَّةٍ﴾ په دنیا کښې د سپینو زرو لوښی کثیف وی د آئینې په شان کیدې نه شی او کوم چه چینو نه تیارولې شي هغه سپین زر کیدې نه شی په دې دواړو کښې تضاد دې. مګر د جنت خصوصیت دادې چه د هغه ځائی سپین زر به د آئینې په شان صفا وی. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه په جنت کښې څومره څیزونه هم ملاویږی د هغې تولو مثال او شکل په دنیا کښې هم ملاویږی سوا د هغه ګلاسونو او لوښو څخه د کومو جوړ چه د چاندئی دې مګر د آئینې په شان صفا دی.

﴿وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا﴾ د زنجبیل معروف معنی سوند ده او د عربو خلقو به په شرابو کښې د دې ګډوډوالې خوښولو. په دې وجه دا په جنت کښې هم اختیار کړې شو او بعض حضراتو فرمائیلی چه د جنت په نعمتونو او د دنیا په څیزونو کښې د نوم د اشتراك نه سوا بل هیڅ څیز مشترك نه دې. په دې وجه د هغه ځائی زنجبیل د دنیا په زنجبیل باندې نه شی قیاس کولې.

﴿وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ﴾ اَساور، د سوار جمع ده بنګړو ته وئیلی شی چه په لاسونو کښې د اچولو کالې دې. په دې آیت کښې د سپینو زرو د بنګړو ذکر دې او په یو بل آیت کښې ﴿أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ﴾ راغلې دې یعنی د سرو زرو بنګړی. په دې دواړو کښې هیڅ تضاد نشته دې ځکه چه کیدې شی په یو وخت کښې د چاندئې او په بل وخت کښې د سرو زرو بنګړی استعمال کړې شی یا د بعض بنګړی د سرو زرو وی او د بعضو د سپینو زرو؟ بهرحال په دې ځائی کښې یو سوال پیدا کیږی چه د چاندئی بنګړی وی او که د سرو زرو بهرحال دا کالی دی کوم چه د ښځو د استعمال د پاره وی. د سړو د پاره دا قسم کالی اچول عیب ګڼړلې شی. جواب دادې چه د یو څیز د سړو یا د ښځو د پاره مخصوص کیدل او د هغوی د پاره مستحسن یا عیب کیدل دا څیز د عرف او عادت تابع وی. بعض ملکونو یا قومونو کښې یو څیز لوئی عیب او بد ګڼړلې شی په نورو

قومونو کښې هغه ډیر ښه ګڼرلې شي. په دنیا کښې دَ کسرئ بادشاهانو په لاسونو کښې او په سینه او په تاج کښې کالی او زیورات استعمالول اوداېه دَهغوی یوخاص ښنښه او اعزاز ګڼرلې شو. دَ کسرئ دَ ملك فتح کولونه پس دَ کسرئ دَ خزانو نه چه کوم مالونه دَ مسلمانانو لاس ته راغلل په هغې کښې دکسرئ بادشاه بنګړی هم وو. کله چه دَ دنیا دَ مختلفو ملکونو او قومونو په معمولي جغرافیاني او قومي لریوالی سره دامعامله دومره مختلف کیدې شي نودَ جنت په دنیا باندې قیاس کولو هیڅ معنی نه شي کیدې چه هلته دې کالي دَ سرو دَپاره هم ښکلي اوګڼرلې شي.

﴿إِنَّ هٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَّكَانَ سَعْيُكُمْ مَّشْكُوْرًا﴾ یعنی دَ جنتیانو جنت ته دَ رسیدو نه پس به دَالله تعالی دَ طرفه خطاب کیږی چه دَ جنت محیر العقول نعمتونه ټول ستاسودَ هغه اعمالو بدله ده چه تاسو په دنیا کښې کړی وو اوستاسو عملونه دَالله تعالی په نیز مقبول شو. داکلمات به هغوی ته دَ مبارکئ په توګه ونیلې شي. که دَ اهل عشق اومحبت نه پوښتنه اوکړنی نودَ جنت ټول نعمتونه یوطرف ته اودَ رب العالمین دا فرمائیل بل طرف ته دَ هرڅه یعنی ټولو نعمتونونه لوئی دې چه په هغې کښې الله تعالی هغوی ته دَخپلې کاملې رضا سند ورکوی. دَعامو جنتیانودَ نعمتونو دَ ذکر کولونه پس خاص دَهغه انعاماتو ذکراوکړې شو چه په نبی کریم ﷺ باندې مبذول شو په هغې کښې دَ ټولو نه لوئی انعام دَ قرآن پاك نازلیدل دی. دَدې لوئی انعام دَ ذکر کولونه پس اول خو حضورپاك ته دَدې هدایت اوکړې شو چه دَمخالفینو اوکافرانو دَ طرفه کوم دَ ضد اوانکار اودَ هغوی تکلیفونه چه تاسو ته رسیږی تاسو په هغې باندې صبر اوکړئ. دویم دَالله تعالی عبادت خپل دَ ورځې اوشپې مشغله جوړه کړه هم په دې سره به دکافرانودَ تکلیفونو ازاله هم کیږی.

آخره کښې د معاند کافرانو په کفرباندې دکلك پاتې کیدو وجه اوخودلې شوه چه دا جاهلان دَ دنیا سرسری او فانی خوند ونوکښې داسې مست شو چې انجام ئې هیر کړو ، حالانکه په دنیا کښې هم مونږ ددوئ په وجود کښې داسې څیزونه ایخی وو چې په هغې کښې غور کولو سره به ئې خپل خالق اومالک پیژندلې وؤلکه فرمائی چې [نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ وَشَدَدْنَآ اَسْرَهُمْ] یعنی هم مونږ دوئ پیدا کړل او ددوئ د وجود په کاریګرئ کښې مو یو خاص کمال دا کیخودو چې ددوئ جوړونه ، بندونه مو مضبوط کړل.

**په انسانی جوړونو کښې د قدرت کرشمه** :: دې کښې دې ته اشاره ده چې که انسان په خپلو جوړونو بندونو باندې نظر واچوی نو ورته به معلومه شي چې اګر که دحکمت او راحت تقاضا باندې انسانی جوړ په لیدو کتلو سره نرم او نازک معلومیږی او د نرمو نرمو پل په ذریعه یو بل سره پیوند شوی دی. ددې طبعی تقاضا دا وه چې په کال دوه کاله کښې د جوړونو دا تړون اوپلې سولیدلې وې اوشلیدلې او ماتې شوې وې خصوصا چې دا دشپې ورځې په حرکت کښې وی تاوولې او ماتولې شی په داسې قسم حرکت سره خو د اوسپنې سپرنګ هم په کال دوه کښې سوکالیږی. او ماتیږی ، دانرمې او نازکې پلې اوګورئ څنګه ئی داندامونو پیوندونه په ځائې لرلی دی نه سوکالیږی اونه ماتیږی. انسان چې دخپلو لاسونو ګوتو ته اوګوری او حساب اولګوی ، چې ددې جوړونو به په ټول عمر کښې څومره حرکتونه کړی وی ، څومره زوروته او دباؤ نه به پرې اچولې شوی وی که فولاد وې نو څولیدلې به ووخو بیا هم دا جوړونه اویا اتیا کلونه چلولو نه پس په خپل ځائې قائم ولاړ دی. [فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ]

تمت سورة الدهر بحمدالله تعالی

| آیاتونه | سورة المرسلات مكية وهي خمسون اية وفيها ركوعان | ركوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۵۰ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۲ |

وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا ﴿۱﴾ فَالْعٰصِفٰتِ

قسم دې په ليږلو شوؤ نرمو هواګانو باندې | چې ليږلې كيږي بې درپې | بيا تيزې چليدونكې وي |

په هغه بادونو قسم دې چې راليږلې شوي دي| بيا په هغه بادونو چې

عَصْفًا ﴿۲﴾ وَّالنّٰشِرٰتِ نَشْرًا ﴿۳﴾ فَالْفٰرِقٰتِ

په تيزو چليدلو سره | او اوچتونكې وي وريخې | په اوچتولو سره | بيا جدا كونكې وي [وريخو لره] |

تيز الوزي | بيا په هغې وريخو چې خوريږي| .........بيا په هغې [وريخو] چې ګډې وډې خې

فَرْقًا ﴿۴﴾ فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ﴿۵﴾ عُذْرًا اَوْ نُذْرًا ﴿۶﴾

په جدا كولو سره | بيا په زړه كښې اچونكې وي | ياد د الله لره | په طور د عذر | يا په طور ديرونې |

..........بيا په هغه فرښتو چې وحي راښكته كوي| په طور د عذر يا په طور د ويرولو

اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ ﴿۷﴾

بيشكه دكوم څيز چې وعده كيږي ستاسو سره | هغه خامخا واقع كيدونكې دې |

بيشكه تاسو سره چې كومه وعده كولې شي | هغه خامخا پوره كيدونكې ده

فَاِذَا النُّجُوْمُ طُمِسَتْ ﴿۸﴾ وَاِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتْ ﴿۹﴾ وَاِذَا الْجِبَالُ

پس هر كله چې ستوري | بې نوره شي | او كله چې آسمان | اوشلولې شي | او كله چې غرونه |

كله چې ستوري بې نوره شي | ..............او څه وخت چې آسمان اوشليږي | او كله چې غرونه

نُسِفَتْ ﴿۱۰﴾ وَاِذَا الرُّسُلُ اُقِّتَتْ ﴿۱۱﴾ لِاَيِّ يَوْمٍ

والوزولې شي | او كله چې رسولان | په مقرر وخت حاضر كړې شي | دكومې ورځې دپاره |

والوزولې شي | او كله چې ټول پيغمبران په مقرر وخت راجمع كړې شي | دا كاركومې ورځې

اُجِّلَتْ ﴿۱۲﴾ لِيَوْمِ الْفَصْلِ ﴿۱۳﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ﴿۱۴﴾

روستو كړې شوې دي دا كار | دفيصلې دورځې دپاره |او څه معلومه ده تاته | چې څه ده ورځ دفيصلې

ته روستو شوې دي | د فيصلې ورځې ته | او تاته څه معلومه ده چې د فيصلې ورځ څه ده

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۵﴾ اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۶﴾

| تباهي ده په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګنړونكو | آيا مونږه هلاك نه كړل | اولنى خلق |

په دغه ورځ دروغ ګنړونكو دپاره لوئې هلاكت دې| آيا مونږ پخوانى خلق تباه كړي نه دي

ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْاٰخِرِيْنَ ۝ كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ۝ وَيْلٌ

بیا به مونږ ورولو په هغوئ پسې | دا روستني خلق | درانګي | کوو مونږه | دمجرمانو سره | تباهي ده |

بیا به دا روستني هم ورپسې بوځو | اوهلاک به ئې کړو | مونږ نافرمانو سره هم دغه شان معامله کوو

يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ اَلَمْ نَخْلُقْكُّمْ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ۝

په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګنړونکو | آيا مونږه پيدا نهٔ کړئ تاسو | داوبو بې قدرونه |

په دغه ورځ دروغ ګنړونکو دپاره لويه تباهي ده | آيا مونږ تاسو دبې قدره اوبو نه پيدا کړي نه يئ

فَجَعَلْنٰهُ فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ۝ اِلٰى قَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ۝

بيا اوساتو مونږه هغه | په ځائي دقرار مضبوط کښې | دنيتې معلومې پورې |

بيا موهغه اوبه په يو محفوظ ځائي (رحم) کښې ايسارې کړې | تر مقرر وخته پورې

فَقَدَرْنَا ۖ فَنِعْمَ الْقٰدِرُوْنَ ۝ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ

پس مونږ اندازه اولګوله | پس ډير ښهٔ قدرت لرونکي يو | تباهي ده | په دغه ورځ |

غرض دا چې مونږ يوه اندازه مقرر کړه | نوځومره ښهٔ اندازه مقررونکي يو | په دغه دروغ ګنړو دپاره

لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ كِفَاتًا ۝ اَحْيَآءً وَّاَمْوَاتًا ۝

دپاره ددروغ ګنړونکو | آيا مونږه جوړه نهٔ کړه | زمکه | جمع ساتونکي | دژوندو دپاره | او دمړو دپاره |

هلاکت دې | ............آيامونږ زمکه رانغښتونکې جوړه کړې نه ده | د ژوندو او د مړو دپاره

وَّجَعَلْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ شٰمِخٰتٍ وَّاَسْقَيْنٰكُمْ مَّآءً فُرَاتًا ۝ وَيْلٌ

او ودرول مونږه | په هغې کښې | غرونه | اوږد لوړ | اواوڅکولې مونږ په تاسو | اوبهٔ خوږې | تباهي ده

اومونږ په زمکه باندې لوړ لوړ غرونه پيدا کړي دي | اومونږ په تاسو خوږې اوبهٔ څکولې دي

يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ اِنْطَلِقُوْٓا اِلٰى مَا كُنْتُمْ بِهٖ

| په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګنړونکو | ورشئ | هغه څيز ته | چې وئ تاسو | په هغې سره |

په دغه ورځ دروغ ګنړونکو دپاره هلاکت دې | (اواوبه وئيلې شي) چې هغه (عذاب) ته ورشئ | چې تاسوبه دروغ

تُكَذِّبُوْنَ ۝ اِنْطَلِقُوْٓا اِلٰى ظِلٍّ ذِيْ ثَلٰثِ شُعَبٍ ۝ لَّا ظَلِيْلٍ

چې دروغ به مو ګنړلو | ورشئ | سورې ته | چې درې څانګوالا دې | چې نهٔ به وي يخ |

ګنړلو | تاسو (ددوزخ دلوګي) هغه سورې ته لاړشئ | چې دهغې درې حصې دي | په کښې نه

وَّلَا يُغْنِيْ مِنَ اللَّهَبِ ۝ اِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ۝

اونهٔ به دفع کوی | دلمبې نه | بيشکه هغه وور چې دې | ولی به هغه | داسې بڅرې | لکه ماڼرئ

سورئ شته | اونه داور دتاؤ نه څوک بچ کيدې شي | هغه اور به دومره غټې غټې سکروټکې اولی لکه الوړې |

كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ ۝ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ هٰذَا يَوْمُ

لکه چې هغه | اوښان دي | زيړ | تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګنړونکو | دا هغه ورځ ده |

ماڼرئ | لکه چې هغه د زيړرنګ اوښان دي | په دغه ورځ دروغ ګنړونکو دپاره هلاکت دې | دا هغه

لَا يَنطِقُونَ ۝ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُونَ ۝

چي هغوئ به خبرې نهٔ کوي | او نهٔ به اجازت ورکړې کيږي | هغوئ لره | چي عذر اوکړي هغوئ |

ورخ ده | چې دوئ به خبرې نشي کولې | او نه بهٔ دوئ ته اجازت وي | چې عذر پيش کړي

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝ هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۖ جَمَعْنَاكُمْ

تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼړونکو | دا ورځ دفيصلې ده | راجمع کړي يئ مونږ تاسو |

په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دپاره هلاکت دې | هم دغه د فيصلې ورځ ده | مونږ به تاسو او اولنی ټول

وَالْأَوَّلِينَ ۝ فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيدُونِ ۝

او مخکېنی خلق | پس که چرې وي | تاسو لره | څه تدبير | نو زما خلاف يئ اوچلوئ |

راجمع کړو | ..........نو که تاسو څه چل ول جوړول غواړئ | نو زما په مقابله کښې جوړ کړئ

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ

تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼړونکو | او بيشکه متقيان خلق | [نن] په سورو کښې دی |

په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دپاره هلاکت دې | بيشکه [د الله ﷻ ] نه ويريدونکي [دهغه د رحمت] سيورې

وَعُيُونٍ ۝ وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ ۝ كُلُوا وَاشْرَبُوا

او په چينو کښې دی | او په ميوؤ کښې دی | هغه چې غواړي يې هغوئ | خورئ | او څکئ |

او چينو کښې وي | او [هغوئ به] په هغه ميوؤ کښې وي | چې دهغوئ به خوښې وي | [اورته به اووئيلې شي چې]

هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝ إِنَّا كَذَٰلِكَ

بنهٔ دمزې سره | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو | بيشکه مونږه همدارنګې |

بنه فراخه خورئ څښئ | دهغه عملونو په بدله کښې | چې تاسو به کول | [او] مونږ نيکانو

نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝ كُلُوا

بدله ورکوؤ نيکانو خلقو له | تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼړونکو | خورئ |

ته هم دغه شان بدله ورکوو | په دغه ورځ دروغ ګڼړونکو دپاره هلاکت دې [اې کافرانو]

وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ۝ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ

او فائده واخلئ | لږ وخت | بيشکه تاسو | مجرمان يئ | تباهي ده | په دغه ورځ |

يرڅو ورځې [په دنيا کښې] اوخورئ | او لږه فائده واخلئ | يقيناً تاسو مجرمان يئ | په دغه ورځ د دروغ

لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ ۝ وَيْلٌ

دپاره ددروغ ګڼړونکو | او کله چې اوويلې شي | دوئ ته | تيټ شئ الله ته | نو نهٔ تيټيږي | تباهي ده

ګڼړونکو دپاره هلاکت دې | او څه وخت چې دوئ ته اوونيلې شي [چې الله ته] تيټ شئ [نو دوئ نه تيټيږي

يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ۝

په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګڼړونکو | پس په کوم کلام باندې | روستو ددې قرآن نه | ايمان راوړي دوی

په دغه ورځ د دروغ ګڼړونکو دپاره هلاکت دې | آخر ددې [قران پاک] نه پس به په کومه خبره دوئ ايمان راوړي

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په هغو (هواګانو) باندې، چه د يوې نه پس بله راليږلې شي. بيا هغه چه سيلۍ جوړه شي او په تيزئ سره چليږي او چه (وريځو لره) ښه خوروي بيا قسم دې په هغه (فرشتو) باندې چه حق او باطل لره جدا جدا کوي. بيا د نصيحت خبرې نازلوي. چه يا خو د خلقو دپاره د معافۍ غوختلو سبب جوړيږي، يا د ويرولو يقيناً هغه واقعه به ضرور پيښيږي، د کومې چه تاسو سره وعده کولې شي نو (هغه واقعه به هغه وخت کښې وي) چه کله ستورې بے نوره شي او کله چه آسمان اوشلولې شي. او کله چه غرونه ريزه ريزه کړې شي. اوکله چه د پيغمبرانو دجمع کولو وخت راشي (که څوک تپوس اوکړي چه) دا معامله کومې ورځې ته روستو کړې شوې ده (نو جواب دادې) چه د فيصلې ورځې ته او تاته څه پته ده. چه د فيصلې ورځ څه څيز دې؟ لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي آيا مونږ پخوانۍ خلق هلاک نه کړل؟ بيا به مونږ هغوی پسې روستنۍ خلق هم بوځو هم دغسې کار مونږ د مجرمانو سره کوو، لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي. آيا مونږ تاسو د اوبو سپکو نه نه ئې پيدا کړي؟ نو مونږ هغې لره يو مقرر وخته پورې مضبوط ځائې د قرارې کښې کيخودلې. بيا مونږ توازن پيدا کړو. نو ښه توازن پيدا کونکې مونږ يو لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي آيا مونږ زمکه داسې نه ده جوړه کړې چه هغه راغونډونکې ده. ژوندو لره هم او مړو لره هم. او مونږ په دې کښې خخ کړې شوې اوچت اوچت غرونه پيدا کړې دی، او خوږې اوبه په تاسو باندې د څکولو انتظام مو کړې دې. لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي (دوی ته به اوو ئيلې شي چه) لاړ شئ اوس هغې څيز طرف ته کوم چه تاسو دروغ ګنړو، لاړ شئ هغې سورې طرف ته چه دريو ځانګو والا دې چه په دې کښې نه خو (يخنئ والا) سورې شته، او نه داور د شغلو نه بچ کولې شي. يقيناً دا اور خو د محلونو پشان لوئې لوئې شغلې اولی. داسې به ښکاري ګويا چه هغه د زيړ رنګ والا اوښان دی لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي دا داسې ورځ ده، چه په دې کښې به دا خلق خبرې نشی کولې. او نه به دوی ته اجازت ورکولې شي، چه څه عذر پيش کړي لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي. دا د فيصلې ورځ ده، مونږ به تاسو او مخکښنې خلق راجمع کړو. نو که تاسو سره څه چل ول وی، نو هغه چل په ما باندې اوچلوئ. لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي. کومو خلقو چه تقوی اختيار کړې ده، هغه به بې شکه د سورو او چينو په مينځ کښې وی. او دهغې ميوو په مينځ کښې چه دوی ئې غواړي (دوی ته به اوو ئيلې شی چه) په خوشحالئ سره خورئ څکئ، په سبب د هغې عملونو چه تاسو کول. مونږ نيکانو خلقو ته دغسې بدله ورکوو. لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي. (اې کافرانو) خورئ او مزې واخلئ د لږ وخت دپاره په حقيقت کښې تاسو مجرمان يئ. لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي. او کله چه اوو ئيلې شی دې خلقو ته، چه د الله تعالی مخکښې رکوع اوکړئ، نو دوی رکوع نه کوی. لويه تباهي ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړي. نو په کومه يوه خبره به دوی روستو ددې نه ايمان راوړي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا﴾ [قسم دې په هغو هواګانو کومې چه دنفع رسولو دپاره لیږلې شی ﴿فَالْعٰصِفٰتِ عَصْفًا﴾ بیا په هغو هواګانو کومې چه په سختئ سره چلیږی] دکومو نه چه دخطرو احتمال وی ﴿وَّالنّٰشِرٰتِ نَشْرًا﴾ [او په هغو هواګانو کومې چه وریځو لره] پورته کوی [خوروی ] دکومو نه پس چه باران کیږی ﴿فَالْفٰرِقٰتِ فَرْقًا﴾ [بیا په هغو هواګانو کومې چه وریځو لره جداجدا کوی ] لکه دباران نه پس چه کیږی ﴿فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ۝ عُذْرًا اَوْ نُذْرًا﴾ [بیا په هغو هواګانو کومې چه ] په زړه کښې [دالله تعالی یاد یعنی دتوبې یاد ویرې القاء کوی] یعنی داذکر شوې هواګانې دالله تعالی په کامل قدرت باندې ددلالت په وجه دخالق کائنات طرف ته دمتوجه کیدوسبب کیږی اودغه توجه په دوه طریقو سره وی یود ویرې نه هر کله چه ددې هواګانو نه دویرې نښې نښانې ښکاره وی اودویم په توبه او معذرت سره اوداخوف اورجاء په دواړوصورتونو کښې کیدې شی کۀ هواګانې نفع ورکوونکی وی نوبیا خودخدائې نعمتونه یادوی دهغۀ شکر اوپه خپلو تقصیراتو عذرکوی او کۀ دغه هواګانې خوفناك وی نو دخدائې دعذاب نه ویره کوی دخپلو ګناهونو نه توبه کوی وړاندې جواب دقسم دې ﴿اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ﴾ [چه دکوم شی تاسوسره وعده کولې شی هغه ضرور کیدونکی دې ] مراد قیامت دې اودا ټول قسمونه دقیامت سره نهایت مناسب دی ځکه چه داولې شپیلئ نه پس دټول عالم واقعه دتیزو هواګانومشابه ده او ددویمې شپیلئ نه پس واقعات دمړو ژوندی کیدل وغیره دنفع مندې هوادواقعاتوسره مشابه دی دکومو نه چه باران اوپه باران باندې ژوند نباتاتی راپیداکیږی وړاندې په دې واقع کیدو باندې تفریع فرمائی ﴿فَاِذَا النُّجُوْمُ طُمِسَتْ﴾ [پس هرکله چه ستوری بې نوره شی ﴿وَاِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتْ﴾ اوکله چه اسمان څیرې شی ﴿وَاِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ﴾ اوکله چه غرونه الوتلی ګرځی ﴿وَاِذَا الرُّسُلُ اُقِّتَتْ﴾ اوکله چه ټول پیغمبران په معین وخت جمع کړې شی ] دغه وخت به دټولوفیصله وی وړاندې ددغې ورځې دسختوالی ذکر دې چه څۀ معلومه ده ﴿لِاَیِّ یَوْمٍ اُجِّلَتْ﴾ [چه دکومې ورځې دپاره دپیغمبرانو معامله ملتوی کړې شوې ده] وړاندجواب دې چه ﴿لِیَوْمِ الْفَصْلِ﴾ [دفیصلې دورځې دپاره ] ملتوی کړې شوی ده مطلب ددې سوال اوجواب دامعلومیږی چه کفارو کوموچه درسولانو تکذیب کړې دې او اوس هم ددې امت کفار دنبی کریم ﷺ تکذیب کوی اوکله چه په دې تکذیب داخرت دعذاب نه ویرولې شی نو داخرت هم تکذیب کولې شی اوداتکذیب فی نفسه مقتضی ددې دې چه درسولانو کومه قصه دکفارو سره راپیښیږی ددې فیصله اوس وشی اوددې په تاخیر سره کفاروته زیاته موقع دانکاراو تکذیب ملاویږی او مسلمانان په طبعی طور ددې دزر کیدوخواهشمند وی پس په دې ایت کښې داستعجال جواب دې چه الله تعالی په ځنو حکمتونو سره دې لره وروستو کړې ده لیکن واقع کیږی به ضرور[او] وړاندې ددغې فیصلې دورځې دسختوالی بیان دې چه﴿وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ﴾ [تاته څه معلومه ده چه هغه دفیصلې ورځ څنګه ده] یعنی ډیره سخته ده اوکوم خلق چه داحق امریعنی واقع کیدل دقیامت دروغژن کوی پوهه دې شی چه ﴿وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ﴾ [په دغه ورځ به دحق [دروغژن کوونکو لره لویه خرابی وی ] وړاندې د تیرو واقعاتو په ذریعه موجوده خلقولره ویرول دی ﴿اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِیْنَ﴾ [ایا مونږ مخکینو کافرانو خلقو لره] په عذاب سره[نۀ دی

هلاك كړی ﴿ثُمَّ نُتۡبِعُهُمُ الۡاٰخِرِيۡنَ﴾ بيا وروستو لره به هم] په عذاب كښې [ددغو] مخكينو [ سره كړو] يعنى ستا دامت په كفارو به هم وبال دهلاكت نازل كړو لكه چه دبدر وغيره په غزاګانو كښې وشو ﴿كَذٰلِكَ نَفۡعَلُ بِالۡمُجۡرِمِيۡنَ﴾ [مونږ دمجرمانو سره هم دغسې كوو ] يعنى په كفرور لره سزا وركوو خواه په دواړو جهانه خوا په اخرت كښې اوكوم چه په دې حق امر يعنى كفر باندې مستحق دعذاب كيدو لره دروغژن كوی پوهه دې شي چه ﴿وَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ﴾ [په دغه ورځ به] حق [دروغژن كوونكو لره لويه خرابى وى] وړاندد قيامت وقوع اودمړو ژوندى كيدولره ذهنونو ته نزدې كوی فرمائى ﴿اَلَمۡ نَخۡلُقۡكُّمۡ مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِيۡنٍ﴾ [ايا مونږ تاسو لره ديوبې قدره اوبو] يعنى نطفې[نه نۀ يئ پيداكړى] يعنى په ابتداء كښې تاسو نطفه وئ ﴿فَجَعَلۡنٰهُ فِىۡ قَرَارٍ مَّكِيۡنٍ ۙ اِلٰى قَدَرٍ مَّعۡلُوۡمٍ﴾ [بيامونږ هغې لره تريووخت مقرر پورې په يو محفوظ ځائې ]يعنى [دښځې] رحم [كښې كيښودې ﴿فَقَدَرۡنَا ۖ فَنِعۡمَ الۡقٰدِرُوۡنَ﴾غرض مونږه ] ددې ټولو تصرفاتو[يوه اندازه مقرره كړه پس مونږه څنګه ښۀ اندازه مقرر كوونكى يو] ددې نه دمړو په ژوندى كيدو باندې قدرت ثابت شو بيا چه كوم خلق داحق كار يعنى په بيا پورته كولو قدرت دروغژن كوی پوهه دې شي چه ﴿وَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ﴾ [په دغه ورځ به] حق [دروغژن كوونكو لره لويه خرابى وى] وړاندې په خپلو څنو نعمتونو سره اطاعت اوايمان طرف ته ترغيب وركوى يعنى ﴿اَلَمۡ نَجۡعَلِ الۡاَرۡضَ كِفَاتًا ۙ اَحۡيَآءً وَّاَمۡوَاتًا﴾ [ايا مونږ مزكې لره دژوندو او مړو ځائې كوونكې نۀ ده جوړه كړې ]چه ژوند په دې تيريږى دمرګ نه پس ددفن كيدو اوغرقيدو او سوزيدو په صورت كښې اخرخاورې شي اودمزكې په اجزاؤ كښې شامل شي اودامرګ نه پس حالت څكه نعمت دې چه كۀ مړې نۀ خاورې كيدې نو ژوندى به پريشانه وو اودمړو نه به بدترو و چه دوی ته به دخپلو وسيدو بلكه دګرځيدو ځائې هم نۀ ملاويدو ﴿وَّجَعَلۡنَا فِيۡهَا رَوَاسِىَ شٰمِخٰتٍ﴾ [اومونږ په دې ] مزكه [كښې لوړ لوړ غرونه جوړ كړل ] دكوموسره چه ډيرې نفعې متعلق دى ﴿وَّاَسۡقَيۡنٰكُمۡ مَّآءً فُرَاتًا﴾ [اومونږ تاسوته خوږې اوبۀ څكولې ] دې نعمت ته خوا مستقل ووئيلې شى يا دمزكې متعلق ورته ووئيلې شى څكه چه مركز داوبو هم مزكه ده اوددې نعمتونو مقتضاو جوب دتوحيد دې پس كوم خلق چه دې كار يعنى دتوحيدوجوب لره دروغژن كوی پوهه دشى چه ﴿وَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ﴾ [په دغه ورځ به] حق دروغژن كوونكو لره[لويه خرابى وى] وړاندې دقيامت دځنو سزاګانو بيان دې يعنى دقيامت په ورځ به كفارو ته ووئيلې شي چه ﴿اِنۡطَلِقُوۡۤا اِلٰى مَا كُنۡتُمۡ بِهٖ تُكَذِّبُوۡنَ﴾ [تاسو هغې عذاب طرف ته ځئ كوم چه تاسو دروغژن كولو] په كوم كښې چه سزا هغه ده چه بيان ئې په دې حكم كښې دې چه ﴿اِنۡطَلِقُوۡۤا اِلٰى ظِلٍّ ذِىۡ ثَلٰثِ شُعَبٍ﴾ [يوسورى طرف ته لاړ شئ دكوم چه درې ښاخونه دى چه نۀ په كښې] يخ [سورې شته ﴿لَّا ظَلِيۡلٍ وَّلَا يُغۡنِىۡ مِنَ اللَّهَبِ﴾اونه دغه دګرمئ نه بچ كول كوى ] مراد ددې سائبان نه يولوګې دې كوم چه به دجهنم نه راوخې اوچونكه ډير به وى نو چه وچت لاړشى څيرې به شي اودرې ټكړې به شى لكه چه داسې په طبرى كښې دقتاده رحمه الله نه دې او د حساب نه دفارغ كيدو پورې به كفار ددې لوګى په احاطه كښې وى لكه چه مقبولين به دعرش دسورى لاندې وى لكه په خازن كښې چه داسې دى وړاندې ددې لوګى دنورحال ذكردې چه ﴿اِنَّهَا تَرۡمِىۡ بِشَرَرٍ كَالۡقَصۡرِ﴾ [دغه به سكروټې ورو ی ﴿كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفۡرٌ﴾ په شان دلويو محلونو داسې لكه تور تور اوښان ] قاعده ده چه هر كله بخرې

د اور نه اوچت شی نو لونې وی بیا وړې وړې ټکرې شی مزکې ته راغورزیږی پس اولنۍ تشبیه دابتدائی حالت په اعتبار سره ده اودویمه تشبیه دانتهائی حالت په اعتبار سره لکه په روح کښې داسې دی بیاکوم خلق چه دې حق کار یعنی دې واقعې لره دروغژ کوی پوهه دشی چه ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ [په دغه ورځ به ] دحق [دروغژن کوونکو لره لویه خرابی وی] وړاندې دکفارو متعلق بله واقعه ده یعنی ﴿هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ﴾ [دابه هغه ورځ وی په کومه کښې چه به دغه خلق خبرې نۀ شی کولې ﴿وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُونَ﴾ اونۀ به دوی ته ]دعذر پیش کولو [اجازت وی پس عذربه هم ونۀ کړې شی ]ځکه چه په واقعه کښې څۀ معقول عذر به وی نه اوکوم خلق چه داحقه واقعه هم دروغژن نه کوی پوهه دشی چه ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ [ په دغه ورځ به] دحق [دروغژن کوونکو لره لویه خرابې وی ] وړاندې هم دَ دغه ورځې بیان دې چه دې خلقوته به ووئیلې شی چه ﴿هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۖ جَمَعْنَاكُمْ وَالْأَوَّلِينَ﴾[داده ورځ دفیصلې]کومه چه تاسو دروغ ګنړله] [مونږ] نن[تاسو لره او مخکینو لره] دفیصلې دپاره [جمع کړل ﴿فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيدُونِ﴾ پس کۀ تاسو سره ]دنن دنتیجې اوفیصلې نه دبچ کیدو[څۀ تدبیروی نو په ماتدبیروچلوئ] اودا کفار داحقه واقعه هم دروغژنه کوی پس پوهه دشی چه ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾[په دغه ورځ ] دحق [دروغژن کوونکو لره به لویه خرابی وی ] وړاندې دکفاروپه مقابله کښې دایماندارو دثواب بیان دې یعنی ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ وَعُيُونٍ﴾ [پرهیزګاران خلق به په سوروکښې اوپه چینو کښې ﴿وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ﴾ اوپه زړۀ غوښتونکو میوو کښې وی ] او دوی ته به ووئیلې شی ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾[دخپلو] نیکو[عملونو په بدله کښې بنۀ په مزه سره خورئ څښئ ﴿إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾ مونږ نیکو خلقو ته داسې بدله ورکوو] اوداکفاردجنت نعمتونه هم دروغژن کوی پس پوهه دشی چه﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ [په دغه ورځ به ] دحق [دروغژن کوونکو لره لویه خرابی وی ] وړاندې بیا زورنه اوخبرداری دې کفاروته یعنی اې کافرانو ﴿كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ﴾ [تاسو] په دنیا کښې [لږې ورځې نور خورئ څښئ اوارام کوئ ] ډیره زر کم بختی راتلونکې ده ځکه چه[تاسو بیشکه مجرمان یئ اودمجرمانو داحال کیدونکې دې اوکوم خلق چه دجرم سزا لره دروغژن کوی نو پوهه دشی چه ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ [په دغه ورځ به ]دحق [دروغژن کوونکو لره لویه خرابی وی ] اوددې کافرانو دسرکشئ اوجرم داحالت دې چه ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ﴾[هرکله دوی ته ووئیلې شی چه ] خدائې طرف ته [ښکته شئ ] یعنی ایمان اوبندګی اختیار کړئ [نو نۀ ښکته کیږی ] ددې نه زیات جرم به څۀ وی او داخلق ددې جرم کیدولره هم دروغژن کوی پس پوهه دشی چه﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾[په دغه ورځ به] دحق [دروغژن کوونکو لره لویه خرابی وی] اوددې قرآنی تفریعاتو او تهدیداتو مقتضاداوه چه داوریدوسره ویریدلی وې او ایمان ئې راوړې وې مګرهرکله چه په دې هم په دوی اثر ونۀ شو﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ﴾ [نو بیا ددې ] قرآن چه الفاظ ئې بلیغ او ویرونکی دی[نه پس په بله کومه خبره به دوی ایمان راوړی ] په دې کښې کفاروته زورنه ده او دایمان راوړونه ئې دوی ﷺ لره مایوسه کول دی]

## معارف او مسائل

دصحیح بخاری په حواله عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چې مونږ نبی کریم ﷺ سره منی کښې په یو غار کښې موجود وو چې ناګاهانه سورة مرسلات نازل شو. نبی کریم ﷺ به داسورت په مخه لوستو او مابه ترې ورسره ورسره یادولو. دنبی کریم ﷺ دمبارکې خلې نه مونږ ته ددې لوستو ډیرخوند راکولو. ناڅاپه په مونږ باندې یو مار حمله اوکړه، نبی کریم ﷺ ثې راته د وژلو حکم راکړو چې مونږ ورپسې شو نو هغه اوتښتیدو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څنګه تاسو دهغه دشر نه خلاص شوئ، هغه هم ستاسو د شر نه خلاص شو. [ابن کثیر] [۱].

دې سورت کښې د الله ﷻ د څو څیزونو په قسم خوړلو سره دابیان کړې دې چې قیامت راتلونکې دې. قرآن کریم ددغه څیزونو نومونه بیان کړل البته دلته ئې پنځه صفتونه بیان کړی دی. ① وَالْمُرْسَلٰتِ ② عٰصِفٰتِ ③ نٰشِرٰتِ ④ فٰرِقٰتِ ⑤ مُلْقِيٰتِ الذِّكْرِ. په یو مرفوع حدیث پاک کښې ددې پوره تاکل نه دی راغلی چې ددې صفتونو موصوف کوم یو دی. څکه د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله تفسیرونه په دې معامله کښې مختلف دی.

ځینې حضراتو ددغې پنځوواړو صفتونو موصوف فرښتې ګرځولې دی. او کیدیشي چې د فرښتو مختلفې ډلې ددې مختلفو صفتونو لرونکی وی، ځینو حضراتو ددې صفتونو موصوف هواګانې ګرځولې دی چې مختلف قسمونه لری. ځینې حضراتو ددې موصوف پخپله پیغمبران ﷺ او رسولان ﷺ ګرځولې دی. خو ابن جریر رحمه الله څکه په دې معامله کښې چپ پاتې کیدل ډیر غوره او زیات سالم بللې دی چې دغې دواړو احتمالو کښې مونږ یو په ګوته کولې نشو[۲]. او په دې کښې هیڅ شک نشته چې د لته کوم پنځه صفتونه بیان شوی دی هغې کښې خو ځینې د الله ﷻ په فرښتو باندې صادقیږی او هغوئ سره مناسب هم دی. د هواګانو صفتونو جوړولو دپاره تاویلونو کولو ته حاجت راځی. او ځینې صفتونه په هواګانو باندې زیات صادق راځی. هغې لره دفرښتو صفتونه جوړول دتاویل نه بغیر نه کیږی. څکه په دې مقام کښې زیاته غوره فیصله دابن کثیر رحمه الله معلومیږی، هغوئ فرمائی چې اولنی درې صفتونه دهواګانو دی چې په هغې قسم اوشو او ورپسې دوه صفتونه د فرښتو دی چې په هغوئ قسم شو[۳].

د هواګانو صفت مقررولو کښې دوه آخری صفتونو کښې چې کوم تاویل په کښې کولې شی تاسو د تفسیر په خلاصه کښې کتلی دی ولې چې هلته ددې په غور کولو سره تفسیر کړې شوې دې. داشان کومو حضراتو چې دا ټول صفتونه د فرښتو ګرځولی دی هغوی لره هم درې رومبی صفتونه مرسلات، عاصفات، ناشرات چې د فرښتو صفت نه ګرځولې شوی دی په هغې کښې هم د تاویلونو نه کار اخستې شو، د ابن کثیر د غوره کولو مطابق د آیتونو معنی داشوه چې قسم دې دهغې هواګانو چې لیږلې شی، عرفًا دلته د عرفًا مطلب هم هغه کیدې شی چې د

[۱] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٨ ص:٢٩٦] و صحيح البخاري ،باب العمرة باب ما يقتل المحرم من الدواب[ج:١ص:٢٤٦]

[۲] ) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج:٢٣ ص:٥٨٧]

[۳] ) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٢٩٦]

تفسير په خلاصه كښي بيان كړي شو. يعني سخې توب او نفع رسول ، كومې هواګانې چې بارانونه ځان سره راوړي او يوشان او متتابع چليږي. او عاصفات د عصف نه مشتق دي ، لغوي معنى ئې تيز چليدل دى ، دې نه مراد طوفانونه او سيلئ دى چې كله كله په دنيا كښې راځي. د ناشرات نه مراد هغه هواګانې دى چې دباران دختميدو نه پس وريځ ټكړې ټكړې او خور كړي. او فارقات د فرښتو صفت دې چې دوئ د الله ﷻ د وحى په نازلولو سره په حق او باطل كښې فرق واضح كوي.

[فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ۙ] هم د فرښتو صفت دې، د ذكر نه مراد مطلق وحى يا خاص قرآن پاك دې. مطلب ئې دا شو چې قسم دې په هغې فرښتو چې د وحى په ذريعه په پيغمبرانو ﷺ باندې ذكر يعنى وحى او قرآن پاك راوړي. په داسې شان په څه صفت كښې د تاويل څه ضرورت نه راپيښيږي.

اوس سوال دا پيدا كيږي چې ددې تفسير په بنا اول د هواګانو په مختلفو قسمونو قسم اوخوړې شو ، بيا په فرښتو قسمونه اوخوړې شو په دې دواړو كښې جوړ اوتړون څه دې ؟ نو دكلام الٰهى سراسرى حكمتونه خو څوک نشى بيانولې دلته ئې د امناسبت زمونږ ذهن كښې راځى چې د هواګانو دواړه قسمونه باران راوړونكې فائده وركوونكې او سختې سيلئ راوستوونكې دى چې هر څوک ئې ليدلې كتلې شى ، اول د غور وفكر دپاره د انسان په وړاندې دا راوړې شو. وروسې فرښتې او وحى پيش كړې شو چې څوک ئې محسوس كولې نشى خو په لږ شان غور فكر كولو سره پرې يقين راتلې شى.

[عُذْرًا اَوْ نُذْرًا ۙ] دا [فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ۙ] سره تعلق لرى. دا ذكر او وحى په پيغمبرانو ﷺ باندې ځكه نازلولې شى چې دا اهل حق مؤمنانو دپاره دهغوئ كوتاهيانو د عذرخواهئ سبب جوړ شى ، او اهل باطل كافرانو دپاره نذير ثابت شى.

دهواګانو يا فرشتو يا دواړو قسمونو خوړلو نه پس الله ﷻ فرمائى چې :[اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ ۙ] يعنى تاسو سره چې د كوم قيامت ، حساب ، كتاب او جزاء ، سزا وعده د پيغمبرانو ﷺ په ذريعه كولې شى ، هغه به ضرور پوره او واقع كيږي. وروسې ددې دواقع كيدو د وخت د څو حالاتو بيان دې ، اول دا چې ټول ستورى به بې نوره شى. دهغې د اصورت هم كيدې شى چې دا به ټول بيخى فنا شى يا دا چې بې نوره به پاتې شى په دې وجه به ټوله دنيا په تياره كښې ډوبه شى ، دويم حال ئې دابيان كړو چې آسمان به څيرې شى ، دريم دا چې غرونه به دمالوچو د باغوندې پشان الوتلې ګرځى. خلورم دا چې دا اوخودلې شو چې : [وَاِذَا الرُّسُلُ اُقِّتَتْ ۙ] دا د توقيت نه مشتق دې چې اصلي معنى ئې د وخت ټاكل او په محدود كول دى. او د زمخشرى په قول كله ددې معنى په يو ټاكلې وخت باندې رسيدل هم كولې شى. [روح المعانى][(1)].

دلته هم دغه دويمه معنى مناسب ده. او د آيت مبارک معنى به داوى چې د پيغمبرانو اورسولانو ﷺ دپاره چې كوم ميعاد او وخت ټاكلې شوې وو په هغې كښې د خپلو خپلو امتونو په معامله كښې به ګواهئ دپاره حاضريږى ، دوئ هغې ميعاد ته اورسيدل او د حاضرئ وخت ئې راغلو ځكه په بيان شوې خلاصه تفسير كښې د انبياء ﷺ جمع كول ، ددې ترجمه اوكړې شوه. وروسې د قيامت د لوئيوالى او هيبتناكئ بيان دې چې هغه د فيصلې ورځ

---

(1) تفسير روح المعاني [ج:۲۲ ص:۱۴۳]

ده ، چې په کښې د دروغ بلونکي او کافرانو دپاره به د تباهئ اوبربادئی نه سوا هیڅ نه وی .
د [وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ] هم دا معنی ده د ویل معنی هلاکت او بربادی ده او دحدیث پاک په ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې وَيْلٌ دیو کندې نوم دې په کومه کښې به چې دجهنمیانو د زخمونو وینې زوې جمع کیږی . دا به د دروغ بلونکو د استوګنې ځائې ګرځولې شی . دې نه پس موجوده خلقو ته د پخوانو امتونو د حالاتو نه عبرت د حاصلولو دپاره فرمائی چې :[اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِيْنَ ۝ ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْاٰخِرِيْنَ ۝] یعنی آیا مونږ پخوانی خلق د هغوئ د کفر او عناد په وجه هلاک نه کړل ؟ عاد ، ثمود ، او قوم لوط ، قوم فرعون وغیره ته اشاره ده .
[ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْاٰخِرِيْنَ ۝] دمشهور اومعروف[1] قرأت مطابق په سکون دَ عین عطف دې په [نُهْلِكِ] باندې ځکه به د آخرین نه مراد هم د پخوانو امتونو آخرین وی ، ددې معنی به دا وی چې آیا مونږ د اولینو نه پس آخرین هم هلاک نه کړل ؟ په دې بناء د آخرینو نه به هم مراد د پخوانو امتونو آخرین وی چې څوک د قرآن پاک دنازلیدو نه وړاندې هلاک کړې شوی دی . او دلته بل قرآت د عین په پیښ سره [نُتْبِعُهُمْ] هم راغلې دې . ددې قرآت په بنا دا جمله بیله ده . او د آخرین نه مراد دامت محمدیه ﷺ کافران دی چې مقصود ترې خبر ورکول دی چې د پخوانو امتونو دهلاکت اوعذاب نه پس موجوده کافران دَ اهل مکه به په آئنده کښې هلاکولې شی ، او عذابولې به شی . څنګه چې د بدر وغیره په غزاګانو کښې هغوئ د مسلمانانو د لاسه په عذاب شوی او هلاک شوی وو .
فرق صرف دادې چې په پخوانو امتونو به آسمانی عذابونه راتلل هغې سره به پوره آبادئی تباه کیدې . خود نبی کریم ﷺ دَدعاء د برکت اوعزت له خاطره به په دوئ آسمانی عذاب نه راځی . بلکه په دوئ باندې به دمسلمانانو دلاسه د توري عذاب راځی چې عام خلق بهٔ په کښې نه هلاکیږی صرف لوئې سرکش مجرمان به وژلې شی .
[اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ كِفَاتًا ۝ اَحْيَآءً وَّاَمْوَاتًا ۝] یعنی مونږ ژوندو اومړو انسانانو دپاره کفات جوړ کړې دې . کفات د کفت نه مشتق دې چې معنی ئې یو ځائې کول او جمع کول دی . کفات هغه ځیز ته وئیلې شی چې ډیر ځیزونه په خپل ځان کښې جمع کوی . زمکې لره الله ﷻ داسې جوړه کړیده چې ژوندی انسانان پرې دپاسه اومړه انسانان ددې دننه په کښې جمع دی .
[اِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ۝ كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ ۝] د قصر معنی لوئې عالیشان محل دې . او [جِمٰلَتٌ] په معنی دَ جمل ، یعنی اوښ ته وئیلې شی ، [صُفْرٌ] د صفر جمع ده چې معنی ئې زیړ ده . د آیت مراد دادې چې دَجهنم ددغې اور نه به دومره لوئې لوئې سکروټکې راپورته کیږی چې دیو مستقل عالیشان محل هومره به وی ، بیا به بیلیدو سره وړې وړې ټکړې ترې جوړې شی هغه ټکړې به د زیړو اوښانو برابر وی او ځینې خلقو دلته دصفر ترجمه تور کړې ده ځکه چې د زیړ اوښ زیړوالې تور رنګې شان وی . [روح][2].

---

[1]) ترجمه:-په دې مقام باندې مصنف رحمة الله نه تسامح شوې ده ، ځکه مشهور او معروف قراءت د عین په سکون سره نه دې ، لکه څنګه چې د قرآءت کتابونو کتلو سره معلومیږی ، د عین د سکون قراءت په حقیقت کښې شاذ دې ، محمد عبدالله.
[2]) تفسیر روح المعاني [ج:۲۲ ص:۶۵]

[هٰذَا يَوْمُ لَا يَنْطِقُوْنَ ۙ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُوْنَ ۝] يعني په دغه ورځ به څوک خبرې نه شي کولې ، او نه به چا ته دعمل د عذر پيش کولو اجازت وي اود قرآن پاک په نورو آيتونو مبارکو کښې د کافرانو خبرې کول او عذر پيش کول بيان شوي دي . هغه دې سره بې سمونه څکه نه دي چې په ميدان محشر کښې به مختلف د اودريدو ځايونه او موقعې راځي په ځينې ځايونو کښې به خبرې کول او عذر پيش کول منع وي او په ځينې کښې به ددې اجازت وي . [ روح ][1].

[كُلُوْا وَتَمَتَّعُوْا قَلِيْلًا اِنَّكُمْ مُّجْرِمُوْنَ ۝] يعني خورئی څکئ او آرام حاصلوئی لږې ورځې څکه چې تاسو مجرمان يئ ، آخر کار سخت عذاب کښې ورتلل دی داهغه خلقو ته خطاب دې چې دالله ﷻ حکمونه او پيغمبران ﷺ به ئې په دروغه بلل نود پيغمبرانو ﷺ په ذريعه ورته اوونيلې شو چې ستاسو دامزې اوآرام د څو ورځو دې بيا بهٔ تول سراسري عذاب وي ، [داسې تفسير ابو حيان اوکړو][2].

[وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا يَرْكَعُوْنَ ۝] دلته د اکثرو مفسرينو په نزد د رکوع نه مراد ددې لغوی معنی تيټيدل او تابعداری کول دی ، مطلب دادې چې کله به ورته دالله ﷻ د حکمونو دتابعدارئی خبره کولې شوه نو هغه به دوئ نه منله او ځينې حضراتو د رکوع اصطلاحی معنی مراد اخستې ده . اود آيت مبارک مطلب دادې چې کله به دوئ مونځ ته رابللې شو نو مونځ به ئې نه کولو يعنی دلته ذکر دجزو يعنی رکوع او مراد ترې کل يعنی مونځ دې [روح][3].

[فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ۝] يعنی کله چې دې خلقو په قرآن پاک باندې ايمان راؤ نه ړو چې د عجيبه او بليغ حکمتونو نه ډک دې نو دې نه پس به بيا په څه خبره ايمان راؤړی؟ دې نه مراد د دوئ د ايمان راؤړونه دَ نااميده کيدو اظهاردې. حديث پاک کښې راغلی دی کله چې تلاوت کوونکې دې آيت مبارک ته راؤرسی نو هغه دې امنا بالله يعنی مونږ به الله ﷻ باندې ايمان راؤړو[4] ، وائی خو دا هله چې مونځ کښې نه وی يا صرف نقل مونځ کوی البته په فرضو او سنتو کښې ددې زياتولو نه دده کول د حديث د روايتونو نه ثابت دی څکه دې نه وائی . والله اعلم.

تمت سورة المرسلت بحمدالله الاخر يوم من رجب ۱۳۹۱هجری

وبه تم الجزء التاسع والعشرون من القرا والله الموفق الاتمام الباقی

الحمدلله پاره نمبر ۲۹ ختمه شوه

---

[1] ) تفسير روح المعاني [ج:۲۲ ص:۶۷]
[2] ) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ۸ص:۳۷۹]
[3] ) تفسير روح المعاني [ج:۲۲ ص:۷۷]
[4] ) مسند احمد ،مسند ابی هريرة ﷺ رقم الحديث:[۷۳۸۵] و السنن الكبري للبيقهی رقم الحديث:[۳۸۴۴] ، مجمع الزوائد باب سورة القيامة رقم الحديث :[۱۱۴۵]

| ركوع گاني | سورة النبأ مكية وهي اربعون اية وفيها ركوعان | آياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۴۰ |

عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ① عَنِ النَّبَاِ الْعَظِيْمِ ② الَّذِيْ هُمْ

دځه څيز په پاره كښې | دوئ تپوسونه كوي ديوبل نه | په باره د لوئ خبر | هغه | چې دوئ |

داخلق دكوم څيز په باره كښې ديوبل نه تپوسونه كوي | دهغه لوي خبر [قيامت] په باره كښې چې

فِيْهِ مُخْتَلِفُوْنَ ③ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ④ ثُمَّ كَلَّا

په هغې كښې | اختلاف كونكى دى | هرگز نه | ډير زر به معلومه شي دوئ ته | بيا هر گز نه |

دوئ په كښې اختلاف كونكى دى | داسې نه ده | زر به دوئ پوهه شي | ............ بيا داسې پكار نه ده

سَيَعْلَمُوْنَ ⑤ اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا ⑥ وَّالْجِبَالَ اَوْتَادًا ⑦

ډير زر به معلومه شي دوئ ته | آيا جوړه كړې نه ده مونږ | زمكه | فرش | او غرونه | ميخونه |

دوئ به زر پوهه شي | آيا مونږ زمكه فرش نه ده گرځولې او غرونه موپرې ميخونه نه دي لگولي

وَّخَلَقْنٰكُمْ اَزْوَاجًا ⑧ وَّجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ⑨ وَّجَعَلْنَا

او پيدا كړي مونږه تاسو | جوړې | او جوړ كړو مونږه | خوب ستاسو | دارام ذريعه | او جوړه كړه مونږه

اومونږ تاسو جوړې جوړې پيدا كړې ئې | او مونږ ستاسو دپاره خوب ارام گرزولې دې | او مونږ

الَّيْلَ لِبَاسًا ⑩ وَّجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا ⑪ وَّبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ

| شپه | پرده | او جوړه كړه مونږه | ورځ | وخت د روزئ گټلو | او جوړ كړل مونږه | دپاسه ستاسو |

شپه د پردې څيز جوړ كړې دې | او ورځ مو د رزق گټلو ذريعه گرزولې ده | اومونږ ستاسو نه پورته

سَبْعًا شِدَادًا ⑫ وَّجَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا ⑬ وَّاَنْزَلْنَا

اوه آسمانونه | مضبوط | او جوړ كړو مونږه | [چراغ] نمر | روښانه اوگرم | او رااوورولې مونږه |

اووه مضبوط آسمانونه جوړ كړې دى | او مونږ يوه روښانه چراغ [يعنى نمر] جوړ كړې دې | او مونږ

مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا ⑭ لِّنُخْرِجَ بِهٖ

دوريځو نه | اوبه | مسلسل راوريدونكې | دپاره ددې چې رااوباسو مونږه | په ذريعه ددې |

له ډكو وريځونه په شيبو شيبو باران رااورروو | چې مونږ په دې [باران] سره

حَبًّا وَّنَبَاتًا ⑮ وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا ⑯ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ

دانې [غلې] | او بوټي [سبزي] | او باغونه | گڼر گڼر | بيشكه ورځ دفيصلې چې ده | هغه دې |

غله اووابښه اوگڼرگڼر باغونه رازرغون كړو | ............ بيشكه دفيصلې دورځې وخت

مِيْقَاتًا ⑰ يَّوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ اَفْوَاجًا ⑱

وخت مقرر | په كومه ورځ | چې پوكې اووهلې شي | په شپيلئ كښې | پس راځئ به تاسو | ډلې ډلې |

مقرر دې | چې شپيلئ به پوك وهلې شي | نو تاسو به ډلې ډلې [ميدان حشر ته] راځئ

وَفُتِحَتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ أَبْوَابًا ﴿١٩﴾ وَسُيِّرَتِ الْجِبَالُ

او خلاص به کړې شي آسمان | نو شي به هغه | دروازې دروازې | او روان به کړې شي | غرونه |

اوآسمان به خلاص شي انو ټول به دروازې دروازې شي| ..........او غرونه به والوزولې شي

فَكَانَتْ سَرَابًا ﴿٢٠﴾ إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ﴿٢١﴾ لِّلطَّاغِينَ

نو شي به هغه | پرقنده شګې | بیشکه دوزخ چې دې | دې | خاني دګیریدو | دپاره دسرکشانو |

نو هغه به دشګو په شان شي ........| بیشکه جهنم په انتظار کښې دې | ..............د سرکشو دپاره

مَآبًا ﴿٢٢﴾ لَّابِثِينَ فِيهَا أَحْقَابًا ﴿٢٣﴾ لَّا يَذُوقُونَ

خاني داوسیدو | چې وخت تیرونکې به وي | په هغې کښې | په مودو مودو | نه به څکې هغوئ |

ټیکاوئرو ده | چې په مودو مودو به په کښې اوسیږي| نه به په کښې دیخنئ خوند څکي |

فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ﴿٢٤﴾ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾ جَزَاءً

په هغې کښې | مزه دیخوالی | اونه د څکلوشئ | مګر څکې به | ګرمې اوبه | او نو دزخمونو | بدله |

اونه دڅکلو څه شئ |...............سوا د یشیدلو اوبو اودوینو زوئنه | ..............دا

وِفَاقًا ﴿٢٦﴾ إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ﴿٢٧﴾ وَكَذَّبُوا

موافقه دعمل سره | بیشکه هغوئ | وو | چې امید نې نه لرو | دحساب کولو | او دروغ نې اوګنړل |

پوره پوره بدله ده| دا څکه چې دوئ دحساب کتاب [دورخې] امیدونه لرلو|.............. او زمونږ

بِآيَاتِنَا كِذَّابًا ﴿٢٨﴾ وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ كِتَابًا ﴿٢٩﴾

آیتونه زمونږ | په دروغ ګنړلو سره | او هر څیز چې دې | په شمار ساتلي دې مونږه هغه | په لیکلو سره

آیتونه نې دروغ ګنړل | ..............او مونږ هر څیز په یو لیک [لوح محفوظ] کښې راجمع کړې دې

فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴿٣٠﴾

نو اوڅکئ مزه | نو هر ګز به نه زیاتوو مونږه ستاسو دپاره | مګر زیاتوو به | عذاب |

نو اوس خوند اوڅکئ| ..............مونږ به تاسو ته نور څه نه خو هم دغه عذاب درزیاتوؤ

إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ﴿٣١﴾ حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا ﴿٣٢﴾ وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا ﴿٣٣﴾

بیشکه پرهیزګارانو لره دې | خائې دکامیابئ | باغونه دي |او انګور دی |او پیغلې جینکئ | همزولې |

بیشکه پرهیزګارانو لره کامیابی ده | [دوئ دپاره] باغونه اوانګور به وي |او همزولې پیغلې جینکئ

وَكَأْسًا دِهَاقًا ﴿٣٤﴾ لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّابًا ﴿٣٥﴾

او جامونه دشرابو | ډک ډک | نه به اوري هغوئ | په هغې کښې | عبث خبرې | او نه دروغ خبرې |

اوډک ترخلې خلې جامونه | .......دوئ به هلته عبث خبره نه اوري | ............اونه به دروغ اوري

جَزَاءً مِّن رَّبِّكَ عَطَاءً حِسَابًا ﴿٣٦﴾ رَّبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

دا بدله ده | د طرفه درب ستا | ورکړه ده کافي | چې رب دې داسمانونو | او دزمکې |

دا بدله ستا د رب له طرفه نه | پوره پوره انعام دې | چې داسمانونو اود زمکې اوددې

وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ

او هغه چې په منځ د دواړو کښې دی | چې مهربانه الله دې | چې طاقت نه لري هغوئ | د هغه سره |

دواړو مینځ کښې د ټولو څیزونو پالونکې دې | مهربان دې هیڅوک ترې [هیڅ قسمه] مطالبه نشي

خِطَابًا ۝ يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا ۝ لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ

دخبرو کولو | په کومه ورځ | چې ودریږی | روح | او فرشتې | په قطار کښې | نه به خبری کولې شی هیڅوک |

کولې | په هغه ورځ چې جبریل او ټولې فرښتې به صف تړلې ولاړې وی | ............ او هیڅوک

اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَقَالَ صَوَابًا ۝ ذٰلِكَ

مګر | هغه څوك | چې اجازت اوکړی | هغه ته | مهربانه خدائی | او اووائی | خبره ټیك | دغه |

به خبرې نشی کولی | خو چاته چې مهربان الله ﷻ اجازت ورکړی | او هغه خبره هم سمه کوی | دغه

الْيَوْمُ الْحَقُّ ۚ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ مَاٰبًا ۝ اِنَّآ

ورځ حقه ده | پس هغه څوك | چې غواړی | اودې نیسی | رب خپل ته | دواپسی لار | بیشکه مونږه |

ورځ حقه ده | ......نود چا چه خوښه وی نو خپل رب ته دې رجوع اوکړی |............ بیشکه مونږ

اَنْذَرْنٰكُمْ عَذَابًا قَرِيْبًا ۚۖ يَّوْمَ يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا

اوویرولی تاسو | دعذاب نزدې نه | په کومه ورځ | چې اوبه وینی هر سړې | هغه هر څه |

تاسو د نزدې راتلونکی عذاب نه ویروو | په هغه ورځ چې هر سړې به خپل عمل په

قَدَّمَتْ يَدٰهُ وَيَقُوْلُ الْكٰفِرُ يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا ۝

چې مخکښې لیږلې دی | لاسونو دهغه | او اوبه وائی | کافر | افسوس دې مالره | چې وې زه | خاورې

خپلو سترګو اووینی | او کافر به وائی چې ائې کاش که زه خاورې وې انو څومره به ښه وه |

## آسان ترجمه قرآن

دا کافران خلق د څه څیز بارہ کښې سوالونه کوی؟ د هغې زبردستې واقعې باره کښې، په کومه کښې چه دوی په خپله مختلفې خبرې کوی. خبردارا زرده چه دوی به پوهه شی، دوباره خبردارا زرده چه دوی به پوهه شی. آیا مونږ زمکه غوړیدلې نه ده جوړه کړې. او غرونه (په زمکه کښې ښخ کړې شوې) میخونه؟ او تاسو (د سړی او ښځې) د جوړې په شکل کښې مونږ پیدا کړئ. او ستاسو خوب لره مو د آرام ذریعه ګرځولې ده. او شپې لره مو د پردې سبب ګرځولې ده. او ورځې لره د روزۍ حاصلولو وخت مونږ ګرځولې دې. او مونږ ستاسو دپاره اووه مضبوط وجودونه (آسمانونه) جوړ کړې دی. او مونږ یو پر قیدونکې چراغ (لمر) پیدا کړې دې. او مونږ د درلو وریځو نه اوبه بهیدونکې راورولې دی. دې دپاره چه زرغون کړو په دې سره غلې او نورې سبزۍ. او باغونه ګڼړ (ګڼ). یقین اوکړئ. چه د فیصلې د ورځې یو وخت مقرر دې. په هغه ورځ چه پوکې اووهلې شی په شپیلۍ کښې، نو راځئ به تاسو ډلې ډلې. او آسمان به پرانستلې شی، نو شی به هغه دروازې دروازې. او روان به کړې شی غرونه، نو د شکې د سراب (شګوګل) شکل به اختیار کړی. یقین اوکړئ، چه جهنم په مورچه کښې ناست دې. هغه د سرکشو ځائې دې. او سیږی به

دوی په هغې کښې ډیرې زمانې پورې په هغې کښې به نه دوی څه د یخنئ مزه څکی، او نه د څکلو څه څیز. سوا د ګرمو اوبو نه، او وینې زوې. دا ددوی دپاره بدله پوره ده. یقیناً دوی (د خپلو عملونو) د حساب عقیده نه لرله. او دروغ ئې ګڼړل آیتونه زمونږ په دروغ ګنړلو سره. او مونږ هر هر څیز په لیکلو سره محفوظ ساتلې دې. اوس مزه اوڅکئ، ځکه چه مونږ به تاسو لره د سزا نه سوا په هیڅ څیز کښې زیاتوالې نه کوؤ. کومو خلقو چه تقوٰی اختیار کړې ده. د هغوی دپاره لویه کامیابی ده. باغونه او انګور. او ځوانې جینکۍ همزولې. او ډکې پیمانې. نه به اوری دوی په هغې کښې څه عبث خبرې او نه دروغ خبرې. دا به ستا د پروردګار د طرف نه بدله وی (د الله) داسې ورکړه به وی چه د خلقو د عملونو په حساب سره به ورکولې شی. دهغې پروردګار د طرف نه. چه د ټولو آسمانونو او زمکې او ددوی په مینځ کښې د هر څیز مالک دې، ډیر مهربان دې د هیچا مجال نشته. چه د هغه مخکښې خبره اوکړی په هغه ورځ چه ټول روحونه او فرشتې به په قطار کښې اودریږی په هغه ورځ به سوا دهغه نه هیڅوک خبرې نه شی کولې، مګر چاته چه رحمٰن ذات اجازت ورکړې وی، اوهغه خبره هم حقه وائی دغه ورځ حقه ده. اوس چه څوک غواړی نوهغه دې خپل پروردګار سره ځائې اونیسی. حقیقت دادې چه مونږ تاسو د داسې عذاب نه خبرداره کړې یئ، چه نزدې راتلونکې دې، په دغه ورځ به هر سړې هغه عملونه په خپلو سترګو سره اووینی، کوم چه دهغه لاسونو مخکښې لیږلې دی، او کافر به دا وائی، چه کاش زه خاؤرې شوې.

## خلاصه تفسير

﴿عَمَّ يَتَسَاءَلُونَ﴾ [دا] دقیامت انکار کوونکی خلق [دڅه شی دحال تپوس کوی] ﴿عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيمِ﴾ د هغې لوئې واقعې دحال تپوس کوی ﴿الَّذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ﴾ په کومه کښې چه دا خلق ] داهل حقو سره [اختلاف کوی ] مرادترې نه قیامت دې او دتپوس کولو نه مراد په طور دانکار تپوس کول دی او مقصود ددې سوال وجواب نه ذهنونه دې طرف ته متوجه کول او دتفسیر بعدالابهام نه ددې دشان اهتمام ظاهرول دی وړاند ددوی داختلاف بې وجهې والې او باطلوالې بیان شوې دې لکه څنګه چه داخلق ګنړی چه قیامت به نه راخی ﴿كَلَّا سَيَعْلَمُونَ﴾ [هر ګز داسې نۀ ده ] بلکه قیامت به راخی او[دوی ته به اوس معلومه شی ] یعنی هرکله چه ددنیا نه درخصتیدو نه پس په دوی عذاب واقع شی نودغه وخت به حقیقت اوحقیت دقیامت ښکاره شی ﴿ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ﴾ او مونږ [بیا] مکرر وایو چه لکه څنګه چه داخلق ګنړی چه قیامت [به نۀ] راخی [ هرګز داسې نۀ ده ] بلکه راخی به او[دوی ته به اوس معلومه شی] اوچونکه دغه خلق دې لره مستبعد یامحال ګنړی وړاند ددې دامکان اودوقوع بیان دې چه دې لره په محال ګنړلو سره زمونږ دقدرت نه انکار لازمیږی اوزمونږ دقدرت نه انکار خو ډیر عجیبه دې ځکه چه ﴿أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ مِهَادًا ۝ وَالْجِبَالَ أَوْتَادًا﴾ [آیا مونږ زمکې لره فرش او غرونولره [دزمکې] میخونه نۀ دی جوړ کړی ] یعنی په مثل دمیخونو موجوړ کړل لکه چه په څۀ شی دمیخونو لګولونه پس هغه شی دخپل خائې نه نۀ خوزی دغه شان زمکه په غرونو سره په خائې ټکاؤ شوه ددې تحقیق په سورة نحل کښې تیر شوې دې [او] ددې نه علاوه مونږ نور هم دقدرت دلیلو نه ظاهر کړل چنانچه ﴿وَخَلَقْنَاكُمْ أَزْوَاجًا﴾ [ مونږ تاسو لره جوړې جوړې ] یعنی سړی اوښځه اجوړ کړل ﴿وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا﴾ او مونږ ستاسو خوب لره دراحت شې جوړ کړو ﴿وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ

لِبَاسًا﴾ اومونږ شپې لره دپردې شي جوړ کړو ﴿وَّجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا﴾ اومونږ ورځې لره دمعاش وخت جوړ کړو ﴿وَّبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا﴾ اومونږ په تاسو دپاسه اووه مضبوط اسمانونه جوړ کړل ﴿وَّجَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا﴾ او مونږ ] په اسمان کښې [یوه روښانه ډیوه جوړه کړه ] مراد نمر دې لکه دا قول دالله تعالی ، ﴿وَّجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا﴾ (١) ﴿وَّاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا﴾ [او مونږ داوبو نه ډکو وريځو نه اوبه ووروليې ﴿لِّنُخْرِجَ بِهٖ حَبًّا وَّنَبَاتًا﴾ چه مونږ ددې اوبو په ذريعه غله اوسبزی ﴿وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا﴾ اوګڼ باغونه پيداكړو] او ددې ټولونه زمونږ دقدرت كمال ظاهردې بياپه قيامت باندزمونږ دقادريدونه ولې انكار كولې شي دابيان وو دامكان وړاند دوقوع ذكر دې چه﴾ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيْقَاتًا﴾ [بيشكه دفيصلې ورځ يو معين وخت دې ﴿يَّوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ اَفْوَاجًا﴾ يعني په كومه ورځ چه شپيلۍ ووهلې شی بيابه تاسو خلق ډلې ډلې راځئ؛] يعنى هر امت به جداجدا وی بيا مؤمن جدا كافر جدا بياابرار جدا اشرار جدا ټول به ديو بل نه جدا شی ميدان دقيامت ته به حاضريږی ﴿وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا﴾ [او اسمان به خلاص كړې شی بيا به په دې كښې دروازې جوړې شی ] يعنی دومره زيات به خلاص كړې شی لكه ډيرې دروازې چه يوځائی شی اولوئې ځائې فراخ شی پس كلام مبنی دې په تشبيه باند اوس داشبهه نه شی كيدې چه دروازې خو په اسمان كښې اوس هم دی بياپه دغه ورځ د دروازې كيدو څه معنې؟ او دخلاصيدل به دملا ئكو دنزول دپاره وی لكه چه په سورة فرقان كښې په ، ﴿تَشَقَّقُ السَّمَآءُ﴾ سره ئې تعبير فرمائيلې دې او ددې تشريح هلته تيره شوې ده ﴿وَّسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا﴾ [او غرونه به ] دخپل ځائې نه [الرې كړې شی پس هغه به دشګې په شان شی ] لكه داقول دالله تعالی ، ﴿كَثِيْبًا مَّهِيْلًا﴾ او دا واقعات به ددويمې شپيلۍ په وخت كښې وی البته دغرونو ورانيدلو كښې دلته هم اوكوم كوم ځائې چه واقع شوی دی دواړه احتماله دی ياخو د دويمې شپيلۍ نه پس به وی چه دې سره به دعالم ټول ځيزونه په خپل هيئت واپس راځی هركله چه دحساب وخت راشی نو غرونو لره به دزمكې سره برابر كړې شی چه په زمكه څه پناهی غر وغيره پاتې نه شی ټول به يوميدان شی اويابه داداولې شپيلۍ په وخت كښې وی په كومې سره چه فنا كيدل په خپله ددوی مقصود بالذات به وی بياپه دې تقريرباند يوم لره ددې ټولو واقعاتو ظرف فرمائيل به په دې بنا وی چه داولې شپيلۍ نه تر دويمې پورې مجموعه يوه ورځ مقرر شوی وی والله تعالی اعلم وړاند په دې يوم الفصل كښې چه كومه فيصله وی دهغې بيان دې يعنی ﴿اِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا﴾ [بيشكه دوزخ ديو انتظار ځائې دې] يعنی دعذاب فرښتې په انتظار اوتاك كښې دی چه كافران راشی ونې نيسی او عذاب وركړی اودغه ﴿لِّلطّٰغِيْنَ مَاٰبًا﴾ [دسركشانو ځائې ] دې ﴿لّٰبِثِيْنَ فِيْهَآ اَحْقَابًا﴾ [په كوم كښې چه به دوی دبې انتها زمانې پورې پراته وی ] او ﴿لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا بَرْدًا وَّلَا شَرَابًا﴾ [په دې كښې به هغه نه دڅه يخوالی ] يعنی راحت [مزه وڅكی ] په دې سره دزمهريريعنی سختې يخنۍ نفی نه كيږی [اونه دڅښلو دڅيز ] چه تنده پرې ماته شی ﴿اِلَّا حَمِيْمًا وَّغَسَّاقًا﴾ [بغير دګرمو اوبو او وينو زوو نه ﴿جَزَآءً وِّفَاقًا﴾ دا] دوی ته [پوره بدله ملاويږی ] اوهغه عملونه دكومو چه دابدله ده دادی ]چه ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ حِسَابًا﴾ [هغه خلقو دحساب ] دقيامت [ ويره نه لرله ﴿وَّكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كِذَّابًا﴾ اوزمونږ ]

---

(١) ترجمه:- او نمر لره ئې روښانه جوړ كړو.

هغو [ایتونو لره ] په کومو کښې چه دحساب اونوروحقو کارونو خبر وو [ښه دروغژن کولو ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ كِتَٰبًا﴾ اومونږه ] ددوی داعمالونه [هر شی لره ] ددوی په عملنامه کښې [لیکلی محفوظ کړی دی] پس په دغو عملونو به دوی خبر کړې شی او وبه وئیلې شی ورته چه ﴿فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا﴾ اوس ددغو عملونو [مزه وڅکئ چه مونږ به ستاسو سزا په مخه زیاتوو] دادکافرانو فیصله شوه وړاندایماندارو فیصله ذکر ده چه ﴿إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا﴾ [دخدائی نه دویریدونکو دپاره بیشکه چه کامیابی ده] یعنی دخوراك اوسیل دپاره ﴿حَدَآئِقَ وَأَعْنَٰبًا﴾ [باغونه ] چه قسم قسم میوې به وی په کښې [اوانګور ] داتخصیص پس دتعمیم نه د شان داهتمام دپاره دې او ﴿وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا﴾ [دزړهٔ خوشحالولو دپاره [خواناني هم عمره ښځې به وی] او دڅښلو دپاره به ﴿وَكَأْسًا دِهَاقًا﴾ [ترخلې خلې ډك جامونه دشرابو] او ﴿لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّٰبًا﴾ [هلته به نهٔ څهٔ بې هوده خبرې اوری اونهٔ دروغ] ځکه چه دا خبرې محض معدومې دی ﴿جَزَآءً مِّن رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا﴾ [دا] دوی ته د دوی د رب د طرف نه دنیکو [به بدله ملاویږی کومه چه به پوره انعام وی ﴿رَّبِّ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمَٰنِ﴾ [چه مالك دې داسمانونو اودزمکې اودهغو څیزونو کوم چه ددواړو په مینځ کښې دی ] اوکوم چه [رحمن دې ] او ﴿لَا يَمْلِكُونَ مِنْهُ خِطَابًا﴾ [چاته به دهغهٔ دطرف نه ] مستقل [اختیار نهٔ وی چه ] دهغهٔ په وړاند [عرض معروض وکړی ﴿يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَٰٓئِكَةُ صَفًّا﴾ په کومه ورځ چه ټول خاوندان دروحونو اوفرښتې ] دخدائی روبرو[ صف بسته ] په خشوع اوخضوع سره [ودریږی ] په دغه ورځ ﴿لَّا يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَٰنُ وَقَالَ صَوَابًا﴾ [څوك به خبرې نهٔ شی کولې بغیر دهغهٔ نه چاته چه رحمن [ دخبرو] اجازت ورکړی اوهغه سړې به خبره هم ټیك کوی [ دټیك خبرې نه مراد هغه خبره ده دکومې چه اجازت ورکړې شوې دې یعنی خبره به هم محدود او مقیده وی دانه چه څهٔ غواړی بس وائی به اوپه مستقل اختیار سره بره دامراد دې وړاندې دپورتنوټولو مضامینو نچوړ دې چه ﴿ذَٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ فَمَن شَآءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ مَـَٔابًا﴾ [دا] ورځ دکومې چه پورته ذکر وشو [یقینی ورځ ده پس دچازړهٔ چه غواړی ] ددې حالات نې واوریدل [دخپل رب طرف ته] خپل [ځائې جوړ کړی ] یعنی نیك عمل دې کوی چه هلته ورته نیك ځائې ملاؤشی وړاندې اتمام دحجت دې چه خلقو ﴿إِنَّآ أَنذَرْنَٰكُمْ عَذَابًا قَرِيبًا﴾ [مونږ تاسو لره دیو نزدې راتلونکی عذاب نه ویرولی يئ ] کوم چه په داسې ورځ کښې واقع کیدونکی دې ﴿يَوْمَ يَنظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾ [په کومه ورځ چه به هرسړې هغوعملونولره ] په خپل وړاندې خپل مخ کښې حاضر [ووینئ کوم چه به هغه په خپلولاسونو کړی وی ﴿وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَٰلَيْتَنِى كُنتُ تُرَٰبًا﴾ اوکافران به] دحسرت نه [ووائې چه کاش زهٔ وې خاوړې شوې ] چه دعذاب نه بچ شم او دابه هغه وخت وائی هر کله چه ځاروی ځناوران خاوړې شی دا روایت په درمنثور کښې دابوهریره رضي الله عنه نه دې ][1]

## معارف او مسائل

﴿عَمَّ يَتَسَآءَلُونَ﴾ ﴿عَمَّ﴾ د عَنْ او مَا نه جوړ شوې لفظ دې او مادَ استفهام دَپاره راځی. خو د ما نه الف غورځولې شوې دې. معنی دا شوه چې دا خلق د څه څیز باره کښې يوبل نه خپل مینځ

[1]) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۵ ص:۲۱٦]

کښې سوال کوی. بیا پخپله ددې جواب ورکوی فرمائی چې: ﴿عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيمِ ۝ الَّذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ ۝﴾ د نباء معنی خبر دې خو دا هر خبر ته نشی وئیلې بلکه هغې ته وئیلې شی چې عظیم الشان وی، دلته ددې خبر نه مراد قیامت دې، د آیت معنی دا شوه چې دا د مکې خلق ددې عظیم الشان خبر یعنی قیامت باره کښې بحث او سوال او جواب کوی، چې په دې باره کښې خپل مینځ کښې اختلاف لری.

ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دی چې کله قرآن کریم نازلیدل شروع شو نو دمکې کافران په خپلو مجلسونو کښې کیناستل او ددې باره کښې ئې بحثونه او خبرې اترې کولې. قرآن پاک کښې د قیامت بیان په لوئې شان سره راغلې دې چې ددوئ په نزد دا یو ناممکن څیز وو خکه بهٔ ئې په دې کښې ډیرې خبرې کولې، چا به رښتیا بللو او چا به دروغ بللو. خکه ئې په شروع کښې ددوئ دحال ذکر اوکړو، او ورپسې د قیامت واقع کیدل بیانوی. او ددوئ په نزد چې ددې په واقع کیدو کښې اشکال او لرې والې وو خکه ددې جواب ورکړې شو. او ځینو مفسرینو اوفرمائیل چې دا سوال و جواب څه اقعی تحقیق دپاره نه وو بلکه هغسې د ټوقو ټقالو په غرض وو، والله اعلم.

قرآن کریم ددوی به جواب کښې: ﴿كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ۝ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ۝﴾ جمله دوه ځل راوړله. د ﴿كَلَّا﴾ معنی هیڅرې نه، مراد دادې چې دا څیز صرف سوال وجواب او بحث وغیره سره ستاسو په ذهن کښې نشی راتلې. چې کله مخامخ درله راشی هله بهٔ ئې حقیقت درته معلوم شی. دا داسې یو یقینی څیز دې چې په کښې د بحث، سوال و انکار هیڅ ګنجائش نشته. بیا فرمائی چې ددې حقیقت به زر په دې خلقو واضح شی، مطلب دا چې په مړ کیدو سره به ورته د بل جهان د څیزونو ښکاره کیدل شروع شی. دهغه ځائې هیبتناکې ننداري به پخپله اووینی او حقیقت به ورته ښکاره شی. دې نه پس الله ﷻ د خپل کامل قدرت حکمت او کاریګرئی د څو ننداړو بیان کړې دې دهغې نه ښکاریږی چې د الله ﷻ د کامل قدرت نه دا څه لرې خبره نه ده چې دا ټول جهان فنا کړی او بیا ئې هم هغسې پیدا کړی. په دې کښې د زمکې او ددې د غرونو پیدا کول، بیا ئې د نر، ښځې یعنی جوړې په صورت کښې د انسان پیدا کول بیان کړل. بیا ئې دانسان دآرام، صحت او کاروبار دپاره د سازګارو حالاتو پیدا کول بیان کړل. یو په کښې داسې فرمائی چې:

﴿وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ۝﴾، ﴿سُبَاتًا﴾ دسبت نه مشتق دې چې معنی ئې خرئیل او پریکول دی، خوب ته الله ﷻ داسې شان ورکړې دې چې د انسان ټول غمونه، فکرونه، ختم کړی او د هغه زړهٔ او دماغ ته داسې آرام راولی چې ددنیا هیڅ آرام دهغې بدل نشی جوړیدې. په دې بنا ځینې حضراتو د سبات ترجمه آرام کړې ده.

**خوب ډیر لوئې نعمت دې:** د لته الله ﷻ دانسان د جوړې جوړې پیدا کولو د بیان نه پس د آرام دټولو سامانونو څخه په خاص طریقه د خوب بیان کړې دې. په غور کولو سره دا یو ډیر لوئې نعمت ښکاری چې دانسان ټول آرامونه په دې باندې اړه لری او دا نعمت الله ﷻ دټول مخلوق دپاره داسې عام فرمائیلې دې چې امیر، غریب، عالم، جاهل، بادشاه او مزدور ټولو ته دا دولت یوشان په یو وخت ورکولې شی. بلکه په غور کولو سره ښکاری چې دا نعمت

دغنانو اومالدارو په نسبت خوارانو او غریبانانو ته په اوچته پیمانه حاصل دي. غنانو او مالدارو سره دیخنئ او گرمئ ټول سامانونه شته، لیکن غریبانانو او خوارو ته بې سامانه په ډاگ میدان او لارې بازار کښې دا نعمت په پریمانه حاصل وي. هر څوک ئې وینې گوری بلکه دا هم معلومه خبره ده چې اکثر لوئې خلق دې دپاره د خوب گولئ او دوایانې استعمالوې اوبیا ئې هم ترې مطلب نه حاصلیږي. بیا دې ته هم اوگورئ چې الله ﷻ خوب یو اخې عام نعمت نه بلکه ټولو ساه لرونکو ډپاره مفت هم ورکړې دې او دټولو طبیعت ئې پخپله غواړي، یعنی کله خو څوک دا غواړي چې ټوله شپه ویښ پاتې شي او کار اوکړي خو الله ﷻ پرې خوب داسې غالب کړي چې بې اختیاره اودهٔ شي، دا خیال او اراده داسې کسانو ته راپورته کیږي چې کار روزگار ئې په ذمه ډیر زیات وي

خو الله ﷻ پرې دخوب غلبې سره دهغه د ټولې ورځې ستومانې لرې کړي. اورا تلونکې ورځې دپاره ئې اندامونه چست او طبیعت ئې قوي شي. وریسې ددې لوئې نعمت تکمله ئې دابیان کړه:

﴿وَجَعَلْنَا الَّيْلَ لِبَاسًا﴾ یعنی شپه مو د پټولو څیز جوړ کړو. اشاره دې طرفته ده چې انسان ته خوب هغه وخت راځي چې رڼا زیاته نه وي اودا ددهٔ طبیعت دې چې هر طرفته آرام وي، شور نه وي، الله ﷻ شپې لره داسې جامه یعنی داغوستو اوپټولو څیز اوبلله هغه دې طرف ته اشاره شوه چې قدرت ډرته یو اخې خوب نه بلکه په ټول جهان کښې ئې داسې حالات پیدا کړل چې خوب دپاره سازگاروی، اول دشپې تیاره، بل داچې په ټولو ساه لرونکو باندې په یو وخت یعنی دشپې خوب غالب شي کله چې په ټول جهان کښې آرام وي او که د نورو کارونو پشان د مختلفو خلقو دپاره د خوب مختلف وختونه وې نو چاته به هم د خوب په وخت آرام نه وو حاصل.

وریسې فرمائي چې: ﴿وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا﴾ چې د انسان راحت او آرام دپاره داهم ضروری ده چې ورته د خوراک وغیره آسانئ حاصلې وی گنی خوب به ئې مرگ شی که ټول وخت شپه وې او انسان په کښې په مخه اودهٔ وې نو دا څیزونه به څنگه حاصلیدل؟ ولې چې دې دپاره د منډو تړړو ضرورت دې، چې هغه صرف رڼا کښې کیدې شی دَدې وجه نه ئې اوفرمائیل چې مونږ صرف تیارهٔ جوړه نکړه بلکه یوه روښانه ورځ مو هم جوړه کړه چې په کښې په کاروبار کولو سره خپل معاشی ضروریات حاصل کړې شی. ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ أَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾.

وریسې د انسان د آرام دپاره د هغې سامان بیان دې چې آسمان سره تړون لری، پدې کښې د ټولو نه لویه فائده ورکوونکې څیز د نمر رڼا ده، ددې بیان داسې فرمائی چې:

﴿وَجَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا﴾ یعنی مونږ نمر لره یو روښانه پرقیدونکې ډیوه جوړه کړه بیا د آسمان د لاندې چې کوم څیزونه د انسان د آرام دپاره پیدا کړل، په هغې کښې دټولو نه زیات ضرورت څیز اوبه وروونکې وریځې دی دهغې بیان داسې فرمائی چې:

﴿وَأَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا﴾، ﴿مُعْصِرٰتٍ﴾ د ﴿مُعْصِرَةٍ﴾ جمع ده، معنی ئې د اوبو نه ډکې وریدونکې وریځې دی، دې نه معلومه شوه چې باران د وریځو نه نازلیږي. او چرته چې د آسمان نه د نازلیدو بیان دې نو هلته هم د آسمان آسمانی فضا مراد ده. یا دا اوونیلې شی چې څه وخت د آسمان نه هم نیغ په نیغه باران کیدیشی نو دې نه هم انکار نشی کیدې. هرکله چې د الله ﷻ د قدرت د اتولې کاریگرئ او انعامات بیان کړې شوی نو بیا د قیامت اصل مضمون بیانول دی فرمائی چې:

﴿إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيقَاتًا﴾ يعنې دفيصلې ورځ يو ټاکلې ځيز دې چې دا دنيا به پرې ختميږي ، کله چې به شپيلۍ پوک وهلې شي او نورو ايتونو نه معلوميږي چې شپيلۍ به دوه ځل پوک وهلې شي ، په رومبي پوک وهلو سره به ټول جهان فنا شي . په بل پوک وهلو سره به بيا ژوندي او قائم شي ، په دې وخت کښې د ټول جهان اولنئي او روستني انسانان د الله ﷻ په وړاندې ډلې ډلې حاضريږي . د ابي ذر غفاري رضي الله عنه د روايت مطابق نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې خلق به د قيامت په ورځ د درې قسمه ډلو په صورت کښې راځي . يوه ډله به هغه وي چې په مړۀ خيټه به په سورلو سوارۀ ميدان حشر ته راځي . بله ډله به د پياده خلقو وي چې دغې ميدان ته به راځي ، دريمه ډله به په مخې دحشر ميدان ته راښکلې شي . [ مظهري په روايت د نسائي. حاکم او بيهقي ] [1].

ځينو روايتونو کښې د ﴿افواج﴾ تشريح په لس قسمه ډلو سره کړې شوې ده . او ځينې حضراتو فرمائيلي دي چې دخپل خپل عمل او کردار په لحاظ به د انسانانو بې شميره ډلې به وي . پدې قولونو کښې هيڅ بې سموني نشته ، ټول يو ځائې کيدېشي.

﴿وَسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا﴾ د ﴿سُيِّرَتِ﴾ نه مراد دادې چې دا اوس په ځائې ولاړ غرونه به دخپلو ځايونو نه لرې کړې شي ، او ذرې ذرې به هوا کښې الوتونکې ګرځي .

د سراب لفظي معنى ذهاب يعنې تلل دي ، د ځنګل هغه شګې چې د لرې نه د اوبو پشان ښکاري ، دې ته هم سراب ځکه وئيلې شي چې په نيزدې ورتلو بيا هلته هيڅ اوبه نه وي .[ په حواله دصحاح اود راغب ] [2].

﴿إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا﴾ ، ﴿مِرْصَادً﴾ د څارنې ځائې ته وئيلې شي ، د لته د جهنم نه مراد جهنم دپاسه پل صراط دې دلته به د ثواب او عذاب دواړه قسمه فرښتې څارنه کوي چې هر څوک بۀ دخپل خپل عمل په جوړ جنت اودوزخ ته رسوي . [ قرطبي ] [3].

حسن بصري رحمه الله فرمائي چې د جهنم په پل يعني پل صراط به د څارند والو فرښتو څوکۍ وي چا سره به چې د جنت د تلو اجازت نامه وي، هغوئ به پل تيريدو ته پريښودې شي او چا سره چې نه وي هغوئ به ايسارولې شي . [ مظهري ] [4].

﴿لِلطَّاغِينَ مَآبًا﴾ ښکاره داده چې ﴿لِلطَّاغِينَ﴾ ، ﴿مَآبًا﴾ سره متعلق دي چې د: ﴿إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ﴾ دوئم خبر دې ، په دې شان د دواړو جملو معنې دا شوه چې د جهنم پل دهر نيک و بد څارنې ځائې دې. ټولو لره به دغه ځائې تيريدل وي ، جهنم د طاغين يعنې سرکشانو ځائې دې.

طاغين د طاغي جمع ده ، طغيان نه مشتق دې چې معنى ئې سرکشي ده ، طاغي داسې کس ته وئيلې شي چې په سرکشۍ او نافرمانۍ کښې د حد نه تير شي اودا هله کيدېشي چې بيخي ايمان نه هم اوځي . ځکه دلته د طاغين معنى به هم کفار کولې شي . او دا هم احتمال دې چې دې نه مراد هغه بد عقيده او ګمراه دمسلمانانو فرقې دي چې دقرآن پاک او سنت د حدونو نه

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۷۳] و المستدرك للحاكم كتاب التفسير ، تفسير سورة بني اسرائيل رقم الحديث:[۳۳۸۹] و مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث:[۳۵۵۳۷]

[2] ) الصحاح في اللغة مادة سرب : [ج: ۱ ص:۳۱۱] و مفردات االقرآن للراغب : [ج: ۱ ص:۴۰۶]

[3] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۷۴]

[4] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۹ص:۱۷۷]

وتلي وی اگر چې په ښکاره ئې کفر نه وی اختیار کړي. لکه رافضیان خارجیان او معتزله وغیره ، [مظهری ] [1].

﴿لَٰبِثِينَ فِيهَآ أَحۡقَابٗا﴾ ، ﴿لَٰبِثِينَ﴾ د لابث جمع ده معنی ئې ایسارونکی د ه ، احقاب د حقبه جمع ده، چه زمانه ډ رازته وئیلې شی ددې په مقدار کښې مختلف قولونه دی ، ابن جریر رحمه الله د علی رضی الله عنه نه ددې اندازه اتیا کاله نقل کړه ، کال ئې دولس میاشتې ، میاشت ئې دیرش ورځې او هره ورځ یو زر کاله ، په دې حساب باندې حقبه تقریبا ده کروړه اته اتیا لاکهه کاله جوړیږی. ابوهریره رضی الله عنه عبدالله بن عمر رضی الله عنه ، ابن عباس رضی الله عنه وغیره د حقبې اندازه د اتیا کالو په ځائې اویا کاله ګرځولې ده ، باقی حساب هم هغه دې . [ ابن کثیر ] [2].

مګر په مسند بزار کښې د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا فرمان منقول دې چې:
[ لايخرج احدكم من النار حتى يمكث فيه احقابا والحقب بضع وثمانون سنة كل سنة ثلاث مائة وستون يوما مما تعدون [مظهري] ] [3]

په تاسو کښې چې څوک د ګناهونو په سزا کښې جهنم ته ورراوغورځولې شی څوک به تر هغې ترې نه نه راوځی تر څوچې په کښې څو حقبې نه وی پاتې شوی ، او حقبه څه دپاسه د اتیا کالو جوړیږی. هر کال ئې درې سوه شپیته ورځې دې،کومې چې دا ستاسو اوسنۍ ورځې دی.
دې حدیث پاک کښې اګر چې ددې آیت مبارک تفسیر نه دې بیان شوې خو په هر حال د احقاب لفظ معنی په کښې بیان شویده. د څو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه ددې هره ورځ یو زر کاله منقول ده. که دا هم د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه آورېدلې شوی وی نو د حدیث پاک په روایتونو کښې تعارض اوشو. ددغې تعارض په وخت په یو باندې څه یقین نشی کیدې. مګر دومره خبره هم په دواړو روایتونو کښې شریکه ده چې حقبه یا حقب د ډیرې اوږدې زمانې نوم دی په دې وجه بیضاوی شریف د احقابا تفسیر په دهور متتابعه یعنی پرله پسې ډیرو زمانو سره کړې دې.

**دجهنم په همیشوالی باندې اشکال او جواب:** حقبه که هر څومره اوږده شی ، بیا به ئې هم آخری حد او انتها وی ، دې نه معلومیږی چې ددې د ختمیدو نه پس به کافران جهنمیان هم دجهنم نه اوځی. حالانکه دا دَ قرآن کریم د نورو واضحو نصونو نه خلاف دی چې په کښې د ﴿خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗا﴾ الفاظ راغلی دی او هم په دې وجه د امت په دې اجماع ده چې نه بهٔ جهنم کله فنا کیږی، اونه به کافران چرې ددې نه راویستلې شی.
سدی رحمه الله د مره بن عبدالله رضی الله عنه نه نقل کړی دی چې جهنمیان کافرانو که په دې خبر کړې شی چې هلته ایساریدل ئې د ټولې دنیا د شګو دَ شمیر د کالونو برابر وی نو په دې به هم خوشحاله شی ولې چې دغې شګو لره آخره ختمیدل شته چې دهغې نه پس به د جهنم نه خلاص شی او که جنتیان په دې خبر شی چې د هغوئ استوګنه به په جنت کښې ددنیا دشګو دشمیر د کالونو د زمانې برابره وی نو خفه به څکه شی چې دا به آخر ختمیږی او جنت نه به راویستلې شی. [ مظهری ] [4].

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۱۷۵:]
[2]) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۳۰۵]
[3]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۱۷۶] و مسند البزار رقم الحدیث :[۵۹۸۰]
[4]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۱۷۵ ، ۱۷۶]

بهرحال په دې آيت مبارک کښې د احقابا د لفظ نه چې دا معلومېږي چې د څو حقبو تېرولو نه پس به جهنميان کفار هم د جهنم نه ويستلې شي نو دا به څکه معتبر نه وي چې د ټولو نصونو او اجماع امت نه خلاف ده . ولې چې په دې آيت مبارک کښې ددې تصريح خو شته دې نه چې د احقاب نه پس به څه وي. صرف دومره بيان دې چې د احقابو په موده به جهنم کښې د دوی پاتې کيدل راځي ، خو دې نه دانه لازميږي چې دا حقابو نه پس به په جهنم کښې نه پاتې کيږي . يا په ترې راويستلې شي ، څکه حسن بصری رحمه الله ددې په تفسير کښې فرمائي چې په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ اهل جهنم دپاره څه موده او ميعاد نه دې مقرر کړې چې ګنی دهغې نه پس به ئې ترې ويستل اوګنړلې شي بلکه مراد دادی چې کله بۀ دزمانې يوه حقبه تيره شي بله به شروع شي ،دا شان د دويمې نه پس دريمه اودريمې نه پس څلورمه ، داسې هميشه دپاره. مطلب دا چې دا سلسله به هميشه پاتې کيږي چې ختميدل ئې نشته او سعيد بن جبير رحمه الله د قتاده رحمه الله نه هم دا تفسير روايت کړې دې چې د يوې حقبې د ختميدو نه پس به بله حقبه شروع کيږي . او دا سلسله به همشه جاري وي نه به ختميږي . [ ابن کثير و مظهری ] ([1]). او دلته يو احتمال بل هم شته چې ابن کثير رحمه الله د يحتمل په لفظ سره بيان کړې دې او قرطبي رحمه الله فرمائي چې دا هم ممکن دی او مظهری دې لره اختيار کړی دی ، هغه احتمال دادې چې په دې آيت مبارک کښې د طاغين نه مراد دی کافران وانه خستې شي بلکه هغه اهل توحيد ترې مراد واخستې شي چې د باطلو عقيدو په وجه په ګمراه فرقو کښې حسابيږي. او د محدثينو په اصطلاح کښې ورته اهل اهواء وئيلې شي . که دا ترې مراد واخستې شي نو د آيت مبارک حاصل به دا وی چې داسې اهل توحيد کلمه ويونکې چې د باطلو عقيدو لرلو په سبب د کفر حد ته رسدلی وو خو ښکاره کافر نه وو. هغه به د احقابو په مودو په جهنم کښې د پاتې کيدو نه پس آخر د توحيد د کلمې په برکت د جهنم نه به راويستلې شي.

مظهری ددې احتمال په تائيد کښې هغه مرفوع حديث پاک هم پيش کړو چې پورته د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه دمسند بزار په حواله نقل شوې دی ، هغې کښې دا بيان دې چې د احقابو په مودو تيريدو نه پس به دا خلق دجهنم نه راويستلې شي ، خو ابوحيان رحمه الله اوفرمائيل چې وريسې آيتونه : ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ۝ وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كِذَّابًا﴾ دې احتمال سره برابرنه دی چې طاغين نه دلته مراد اهل توحيد او ګمراه فرقې دی. ولې چې په دې آخری آيتونو کښې د قيامت د انکار او د رسولانو د دروغژن بللو ښکاره بيان دې . داشان ابو حيان رحمه الله دمقاتل رحمه الله دا قول هم فاسد ګرځولې دې چې ګنی دا آيت مبارک دې منسوخ اومنلې شي ([2]).

او د مفسرينو يوې ډلې دريم احتمال ددې آيت مبارک په تفسير کښې دا بيان کړې دې چې دې آيت پسې جمله :

﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ۝ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا﴾ دا حقابا نه جمله حاليه وی ، په دې بنا دآيت مبارک معنی به دا وی چې د احقابو په مودو به دا خلق نه ديويخې خوندناکې هوا مزه اوڅکې او نه د څه خوراک او څښاک څه شئ ، سوا د حميم او غساق نه بيا کيدې شي چې د احقابو په تيريدو سره دا حالت بدل شي او نور قسمه عذابونه پرې راوستې شي ، حميم هغه ويشيدونکې ګرمې

[1]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۷۵، ۱۷۶] و تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۳۰۶]
[2]) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج: ۱۰ ص:۳۸۷]

اوبه دی چې مخ ته په رانزدې کيدو به ئې د مخ غوښه سوزوي په خيټه کښې اچولو سره به دننه اندامونه ټکړې ټکړې کيدو سره بهر ته راوځي او غساق هغه وينې ، زوې وغيره چې د اهل جهنم د زخمونو نه به راوځي.

﴿جَزَآءً وِّفَاقًا﴾ يعنې کومه سزا به چې دوئ ته په جهنم کښې ورکولې شي هغه بهٔ د دوئ د باطلو عقيدو اوبدوعملونو په مطابق وي ، د عدل او انصاف په وجه به په دې کښې هيڅ زياتي نه وي.

﴿فَذُوْقُوْا فَلَنْ نَّزِيْدَكُمْ اِلَّا عَذَابًا﴾ يعنې څنګه چې تاسو په دنيا کښې په خپل کفر او انکار کښې په مخه زياتي کوله اوکه د مجبورئې دا مرګ درباندې نه وې راغلې نور به هم زيات شوی وې. داشان نن دهغې جزاء داده چې ستاسو عذاب بهٔ هم په مخه زياتولې شي. تردې ځائې پورې دکافرانو اوفاجرانو د سزا بيان وو ، وروسې د مؤمنانو متقيانو د ثواب او دجنت د نعمتونو بيان دې. ددې نعمتونو دبيانولو نه پس فرمائې چې:

﴿جَزَآءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا﴾ يعنې پورته دجنت د کومو نعمتونو چه بيان راغلې دې ، دا جزاء ده دمؤمنانو دپاره او ورکړه ده چې دهغوئ درب د طرف نه ډيره زياته ده دلته ئې اول دا نعمتونه د عملونو بدله اوبلله ، بيا ئې د الله ﷻ ورکړه اوبلله په ښکاره په دې دواړو کښې بې سمونې داسې ښکاري چې جزاء د څه شئ بدلې ته وئيلې شي. او عطاء يعنې ورکړه بې بدلې دانعام او احسان شئ ته وئيلې شي ، قرآن کريم دا دواړه لفظونه يو ځائې راوړل او دې ته ئې اشاره اوکړه چې په جنت کښې داخليدل او ددې نعمتونه صرف د صورت او ظاهر په اعتبار سره خو د اهل جنت د عملونو جزاء ده. ليکن دحقيقت په اعتبار سره داخالص د الله ﷻ ورکړه ده ، ځکه چې انساني عملونه خو د هغې نعمتونو بدله هم نشي جوړيدې چې کوم ورته په دنيا کښې ورکړې شوی وی. د آخرت د نعمتونو حاصليدل خو صرف د الله ﷻ فضل او انعام او خالص ورکړه او بخشيش دې ، لکه نبی کريم ﷺ يو ځائې کښې اوفرمائيل چې څوک هم په خپل عمل سره جنت ته نشی داخليدې تر څو چې د الله ﷻ فضل نه وي. صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چې تاسو هم؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې آؤ ، زهٔ هم په خپل عمل سره جنت ته نشم تلې[1]. او د ﴿حِسَابًا﴾ لفظ دوه معنې کيدیشی ، د تفسير په امامانو کښې ځينو رومبئ او ځينو دويمه معنی اخستې ده ، رومبئ معنی ئې:

[حِسَابًا عَطَآءً كَافِيًا كَثِيْرًا] يعنې داسې ورکړه چې د هغه ټولو ضرورتونو له کافي او ډيره وی او دا معنی ددې محاورې نه راخستې شوې ده. [احسبت فلانا اي اعطيته ما يكفيه حتى قال حسبي] يعنې د احسبت لفظ ددې معنی دپاره راځي چې ما ورته دومره ورکړل چې هغه لره پوره شو تر دې چې پخپله ئې اووئيل چې حسبي يعنې دا زما دپاره پوره دي او بله معنی د حساب د موازنې او مقابلې دپاره هم راځي. مجاهد ﷫ دلته هم دا معنی واخسته او د آيت مبارک مطلب ئې دا اوکرځولو چې د الله ﷻ دا ورکړه به جنتيانو ته د هغوئ دعملونو په حساب وي ددې عطاء درجې به د اخلاص اوښه عمل په جوړوي څنګه چې په صحيح احاديثو کښې د صحابه کرامو ﷺ د عملونو درجه د نور امت د عملونو په مقابله کښې دا ګرځولې شوې ده چې که صحابی ﷺ د الله ﷻ په لار کښې يو مدخرچ کړی يعنې اولګوی کوم چه تقريبا يوسير وی او غير

---

[1] صحيح البخاري كتاب المرضى ،باب نهى عن تمنى المريض الموت [ج:۲ص:۸۴۷]

صحابی رضي الله عنه د احد غر برابر خرچ اوکړی ، نو د صحابی رضي الله عنه یو مد به د دغې غر نه زیات بللې شی[1] ، والله اعلم .

﴿لَا يَمْلِكُونَ مِنْهُ خِطَابًا﴾ ددې جملې تعلق د مبیٔ جملې : ﴿جَزَآءً مِّن رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا﴾ سره هم کیدې شی . معنی به ئې دا وی چې الله ﷻ چاته چې د ثواب کومه درجه ورکړی . په هغې کښې به د خبرې کولو د چا وس نه وی چې ګنی فلانی ته زیات اوفلانی ته کم ولې ورکړې شو؟ اوکه دا خان له جمله اوګرخولې شی نو مطلب به ئې دا وی چې په محشر کښې به چاته د الله ﷻ داجازت نه بغیر دخطاب کولو اختیار نه وی . او دا اجازت دحشر په خینې ځایونو کښې به وی او خینو کښې به نه وی .

﴿يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَٰٓئِكَةُ صَفًّا﴾ د تفسیر د خینې امامانو په نزد د روح نه مراد جبرائیل ﷺ دې ، ددهٔ ذکر د عامو فرښتو نه وړاندې د دویٔ د لوئې شان ښکاره کولو دپاره دی . او په خینې مرفوع روایتونو کښې راغلی دی چه روح د الله ﷻ یو عظیم الشان لښکر دې چې فرښتې نه دی د هغویٔ سرونه اولاسونه پښې دی[2] ، نو ددې تفسیر په جوړ دوه صفونه به وی چې یو به د روح او بل به د فرښتو وی .

﴿يَوْمَ يَنظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾ ښکاره داده چې ددې نه مراد د قیامت ورځ ده . اوپه محشر کښې بهٔ هر څوک خپل عملونه په خپلو سترګو سره وینی خواه په دې شان چې عملنامه به ئې په لاس راشی هغه به ګوری یا په دې شان چې عملونه به په محشر کښې په شکل او صورت اختیارولو سره مخې ته راشی لکه چې دحدیث پاک د خینې روایتونو نه ثابت دی . او دا احتمال هم دې چې ددې نه مراد د مرګ ورځ وی او خپل عملونه لیدل په قبر او دوزخ کښې مراد وی . [ مظهری ][3] .

﴿وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَٰلَيْتَنِي كُنتُ تُرَٰبًا﴾ عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دې چې د قیامت په ورځ به ټوله زمکه یو هوار میدان شی چې په دې کښې به ټول انسانان، پیریان په زمکه تلونکی څنګلی او کورنی ځاروی راجمع کړې شی . په ځناورو کښې چې چا په چاباندې په دنیا کښې ظلم کړې وی نو دهغې بدله به ترې اخستې شی ، دا کار چې خلاص شی نو ټولو ځناورو ته به دخاورؤ کیدو حکم اوشی . هغه به خاورې شی دغه وخت به کافر خلق دا خواهش کوی چې کاش مونږ هم ځناور وې او اوس خاورې شوې وې ، د حساب کتاب نه او د جهنم دسزا نه خلاص شوې وې[4] . نعوذ بالله منه . والله اعلم .

تمت سورة النبابحمدالله ليلة الجمعة ۲شعبان ۱۳۹۱هجری

---

[1] ) صحیح البخاري كتاب المناقب ،باب قول النبي ﷺ لو كنت متخذا خليلا...... إلخ [ج:۱ص:۵۱٦] و صحیح مسلم كتاب فضائل الصحابة، باب تحريم سب الصحابة [ج:۲ص:۳۱۰]

[2] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۱۰ص:۱۸۲] و تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۹ص:۱۸۷]

[3] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۸٤] و مسند احمد حديث البرآء بن عازب ﷺ رقم الحديث:[۱۸۵۵۷] و المستدرك للحاكم كتاب الإيمان رقم الحديث:[۱۰۷]

[4] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۹ص:۱۸۹] و مسند احمد ،مسند ابی هريرة ﷺ رقم الحديث:[۷۳۰۳] وصحيح ابن حبان ، كتاب إخبار ، صلى الله عليه وسلم من مناقب الصحابة باب إخباره ﷺ عن البعث واحوال الناس فی ذالك اليوم رقم الحديث:[۷۳٦۳]

| اياتونه | سورة النازعات مكية وهي ست واربعون اية وفيها ركوعان | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۴۶ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکي دي | ۲ |

وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًا ۙ وَّالنّٰشِطٰتِ

قسم دی په راښکونکو فرښتو | چی راښکل کوی په سختۍ سره | قسم دی په آسانه ايستونکو فرښتو |

قسم دی په هغه فرښتو چی په سختۍ سره روحونه راوباسی او په هغې چی په نرمۍ سره

نَشْطًا ۙ وَّالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا ۙ

چی راښکل کوی په آسانۍ سره | قسم دی په ګرځيدونکو فرښتو | چی ګرځی په تيزۍ سره |

روحونه راکاږی | .........[ په فضا کښې ] لامبو وهی

فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا ۙ فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا ۘ يَوْمَ

بيا وړاندې کيدونکی وی | په مخکښې کيدو سره | بيا انتظام چلونکی وی | دهر کار | په کومه ورځ |

اوبيا تريله ور وړاندې کيږی | اودهر کار تدبير کوی | [چې قيامت به راځی].......... په هغه ورځ

تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ۙ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ؕ

چی خوزيدونکی [زلزله] | چی روستو به راځی په هغې پسې | روستو راتلونکی [دويمه زلزله] |

چې ريږدونکې زمکه اوريږی | ورپسې به دويم [زور دار آواز] راشی

قُلُوْبٌ يَّوْمَىِٕذٍ وَّاجِفَةٌ ۙ اَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ۘ يَقُوْلُوْنَ

[خينې] زړونه به | په دغه ورځ | ريږدونکی وی | سترګې دهغې به | يريدونکی وی | وائی دا خلق |

ډير زړونه به په دغه ورځ درزيږی | دهغوی سترګې به ښکته وی وی | .......... دوی وائی چې

ءَاِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ فِی الْحَافِرَةِ ؕ ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ؕ

آيا مونږ به بيا راوستلی کيږو | په واپسې کښې | آيا کله چی | شو مونږ | هډوکی | وراسته |

نه مونږ به لا بيا راژوندی کيږو | ......... کله چه مونږ رژيدلی هډوکی شوی يو؟

قَالُوْا تِلْكَ اِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ ۘ فَاِنَّمَا هِیَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ ۙ

وائی هغوی | دا خو به بيا | واپسی وی | تاوان ورکونکی | پس بيشکه دابه | سخت آواز وی | يو |

وائی چې يار دا خو به هسې دتاوان نه ډکه واپسی وی | [او اوره] هغه خو به بس يوه زورداره چغه وی

فَاِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ ؕ هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ۘ

پس يو دم به هغوی | په مخ دزمکې وی | آيا رارسيدلی دی تاته | خبر د واقعې | دموسی |

اودوی به ناخاقه ميدان [دحشر] کښې موجود وی | آيا تاته دموسی ﷺ دواقعې خبر رارسيدلی دی

إِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٦﴾ اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ

کله چې آواز اوکړو هغه ته | رب دهغه | په میدان پاك کښې | دطوی | لاړشه فرعون ته | بیشکه هغه

چې خپل رب ورته د طوی په پاکیزه وادئ کښې آواز اوکړو [اوداني ورته اوفرمائیل] چې فرعون ته ورشه

طَغٰى ﴿١٧﴾ فَقُلْ هَلْ لَّكَ اِلٰٓى اَنْ تَزَكّٰى ﴿١٨﴾

سرکشه دي | پس اووایه ورته | آیا تیارني ته | دي خبرې ته چې ته پاکوالي اختیار کړې |

چې هغه دحدنه تیر شوي دي | نو ورته اووایه چې آیا د پاکیدو خواهش لرې [چه د گناهونو نه پاك شې]

وَاَهْدِيَكَ اِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى ﴿١٩﴾ فَاَرٰىهُ الْاٰيَةَ الْكُبْرٰى ﴿٢٠﴾

او زۀ لاره اوښایم تاته | طرف د رب ستاته | چې ته اویریږې | نو وي ښودله هغه ته | نښه | لویه |

او چې زه درته دخپل رب لاره اوښایم | چې ته ترې نه ویره اوکړې | نو هغه ته ئې یوه لویه معجزه اوخودله

فَكَذَّبَ وَعَصٰى ﴿٢١﴾ ثُمَّ اَدْبَرَ يَسْعٰى ﴿٢٢﴾

نو دروغ اوگڼړله فرعون | او نافرماني ئې اوکړه | بیا واپس شو | چې کوشش کوی |

نو فرعون هغه دروغ اوگڼړله | اونافرماني ئې اوکړه | بیا مخ په شا په منډه لاړو

فَحَشَرَ فَنَادٰى ﴿٢٣﴾ فَقَالَ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى ﴿٢٤﴾

نو جمع ئې کړل خلق | نو اعلان ئې اوکړو | نو وې وئیل | زۀ یم رب ستاسو | لوئ |

نو خلق ئې راټول کړل [او اعلان ئې اوکړو | نو وې وئیل چې زۀ خو ستاسو لوئې رب یم

فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى ﴿٢٥﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً

پس راونیوو هغه لره | الله | په عذاب د آخرت | اوددنیا کښې | بیشکه په دې کار کښې لوئ عبرت دې

نو الله ورته په آخرت اودنیا دواړو کښې عذاب و رکړو | په دې کښې هغه ټولو خلقو دپاره عبرت دې

لِّمَنْ يَّخْشٰى ﴿٢٦﴾ ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ

| دپاره دهغه چا | چې یریږی | آیا تاسو | زیات سخت یئ | په لحاظ دپیدانش سره | یا آسمان |

چې [دالله ﷻ] نه ویریږی | .......... آیا ستاسو پیدا کول گران دی او که د آسمان؟

بَنٰىهَا ﴿٢٧﴾ رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوّٰىهَا ﴿٢٨﴾ وَاَغْطَشَ

چې الله جوړ کړو هغه | اوچت ئې کړو | چت دهغې | بیا ئې برابر کړو هغه | او توره تیاره ئې کړه |

چې هغه جوړ کړو | دهغې چت ئې اوچت اوکړو | اوبرابر ئې کړو | .............. او شپه ئې ورله

لَيْلَهَا وَاَخْرَجَ ضُحٰىهَا ﴿٢٩﴾ وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا ﴿٣٠﴾

شپه دهغې | او راوویستله هغه | رڼا [ورځ] دهغې | او زمکه | روستو ددې نه | اوغوړوله الله هغې لره

تیاره کړه | اوورځ ئې ورله رڼا روښانه کړه | اوزمکه ئې ددې نه پس اوغوړوله ..........

اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰىهَا ﴿٣١﴾ وَالْجِبَالَ اَرْسٰىهَا ﴿٣٢﴾

| راوویستلې ئې دی | دهغې نه | اوبه دهغې | اوواښه [خوراك] دهغې | او غرونه | او درول ئې هغې لره

دهغې نه ئې اوبه او واښه راوویستلې | او غرونه ئې پرې قائم کړل | [داهرڅه] ستاسو او ستاسو

مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ ۝ فَإِذَا جَاءَتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَىٰ ۝

سامان دژوند | دپاره ستاسو | او دپاره دځاروو ستاسو | پس هر کله چې | راشي | هغه آفت لوئ |

د ځاروو دفائدې دپاره دي | ............................نو څه وخت چې (دقیامت) هغه لویه هنگامه راشي

يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ مَا سَعَىٰ ۝ وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ

په کومه ورځ | چې رایادوئ به | انسان | هغه څه چې کړي وي هغه | او ښکاره کړې شي | دوزخ |

نو بنیادم ته به خپل عملونه ټول په ټول یاد شي | ............................او هرلیدونکي ته به

لِمَن يَرَىٰ ۝ فَأَمَّا مَن طَغَىٰ ۝

دپاره دهغه چا | چې لیدل کوي | پس هر چې دې هغه څوک | چې سرکشي یې کړې وي |

دوزخ ښکاره شي | ............................نو چا چې سرکشي اوکړه ............

وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ۝ فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَىٰ ۝

او غوره کړې نې وي ژوند ددنیا | پس بیشکه | دوزخ چې دي | هم هغه ځائې دوسیدو دي دهغه |

اوددنیا ژوند ئې (د آخرت په مقابله کښې) غوره اوګڼړلو | نو دوزخ به دهغه ټیکاؤنړه وي

وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ

او هر چې دې هغه څوک | چې اویریدو | دمخامخ کیدو درب خپل نه | او منع ئې کړو | نفس (خپل) |

اوڅوک چې دخپل رب په مخکښې دپیشن نه ویریدلې وي | او خپل نفس ئې دخواهشاتو

عَنِ الْهَوَىٰ ۝ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ ۝

دغلطو خواهشاتو نه | پس بیشکه جنت چې دي | هغه ځائې دوسیدو دي دهغه |

نه منع کړې وي | ............................نو جنت دهغه ټیکاؤنړه ده | ............................

يَسْأَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا ۝ فِيمَ أَنتَ

دا خلق تپوس کوي ستا نه | په باره دقیامت کښې | چې کله به وي | راتلل دهغې | په څه کښې ئې ته |

دوی ستا نه دقیامت په باره کښې پوښتنه کوي | چې کله به (قیامت) راځي | ........تاته ددې وخت څه

مِن ذِكْرَاهَا ۝ إِلَىٰ رَبِّكَ مُنتَهَاهَا ۝ إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرُ مَن

دوخت دیادولو دهغې نه | خاص رب ستاته دې | اخری علم دهغې | بیشکه ته | یرونکې ئې | هغه چالره

معلوم دي | ددې آخرې علم خو صرف الله ﷻ سره دې | ستا کار خو صرف هغه څوک ویرول دي | چې

يَخْشَاهَا ۝ كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا

| چې یریږي دهغې نه | لکه چې وي هغوئ | په هغه ورځ | چې اووینی دا قیامت |

دقیامت نه ویریږي | دوئ چې دقیامت ورځ اووینی نو داسې به وي لکه چې (په دنیا ............................

لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا ۝

چې وخت ئې تیر نه کړو | دغرمې نه روستنې وخت | یا دغرمې نه مخکینې وخت |

کښې ئې) اهیله دنمر دزیږې یا دڅاښت هومره وخت تیر کړې وي ............................

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په هغه (فرښتو) چه (د کافرانو روح) په سختۍ سره راکاږي او چه (د مومنانو د روح) غوټه په نرمۍ سره پرانيزي بيا په (فضا کښې) لامبو وهلو سره ځي. بيا په تيزۍ سره مخکښې کيږي. بيا چه کوم حکم ورته ملاؤ شي، د هغې (د پوره کولو) انتظام کوي. په کومه ورځ چه لړزيدونکې به (هر څيز اولړزوي بيا به هغې پسې يو بل جړق راشي په هغه ورځ به ډير زړونه درزيدونکي وي. سترګې به د هغوی ټيټې وي. دا (کافران خلق) وائي چه: آيا مونږ به زوړ حالت ته واپس کړې شو؟ آيا په هغه وخت چه مونږ هډوکې زاړه شو وائي چه: که داسې اوشوه، نو دا به د تاوان والا واپسي وي حقيقت خو دادې، چه دا يوه زورداره چغه ده. نو دهغې نه پس به ناساپه دوی په ډاګه زمکه کښې وي. (اے پيغمبره!) آيا تا ته د موسیٰ عليه السلام خبر راغلې دې؟ چه کله د هغه پروردګار هغه ته د طوی په مقدس ميدان کښې اواز کړې وو چه: فرعون ته لاړ شه، هغه ډيره سرکشي اختيار کړې ده. او هغه ته اووايه چه آيا ته دا خواهش لرې چه ته پاک شې؟ او دا چه اوښايم تا ته لاره ستا د پروردګار، نو اويريږې ته؟ نو موسیٰ عليه السلام هغه ته لويه زبردسته نښه اوښودله بيا هم هغه (موسیٰ عليه السلام لره) دروغژن اوګنړو، او نافرمانې ئې اوکړه. بيا ئې د کوشش کولو دپاره شا اوګرځوله بيائې ټول قوم راجمع کړو، او آواز ئې اوکړو، او وې وئيل چه: زه ستاسو لوئې درجې والا پروردګار يم. نتيجه دا شوه، چه الله تعالیٰ هغه د دنيا او آخرت په عذاب کښې راګير کړو. حقيقت دادې، چه په دې واقعه کښې د هغه سړی دپاره لوئې عبرت دې، چه د الله تعالیٰ ويره په زړه کښې لري. (اے انسانانو) آيا ستاسو پيدائش زيات مشکل دې که آسمان؟ جوړ کړې دې هغه الله تعالیٰ. پورته کړې دې چت د هغې بيائې هغه برابر کړې دې. او د هغې شپه ئې تياره کړې ده، او دهغې ورځې رڼرائې بهر راويستلې ده. او زمکه ئې د هغې نه پس خوره کړې ده. راويستلې ئې دی د هغې نه اوبه د هغې او ګياګانې د هغې. او غرونه ئې ښخ کړې دی. دې دپاره چه تاسو ته او ستاسو څارو ته فائده اورسوی. بيا چه هغه لويه هنګامه راشي، په دغه ورځ به انسان خپل ټول عملونه يادوی. او دوزخ به هر کتونکي ته ښکاره کړې شي. نو هغه کس چا چه سرکشي کړې وه. او د دنيا ژوند ته ئې ترجيح ورکړې وه. نو دوزخ به د هغه ځائې د اوسيدو وي. ليکن هغه څوک چه ويره ئې کړې وه د پيشۍ د رب خپل نه، او خپل نفس ئې د بدو خواهشاتو نه منع کړې وو. نو جنت به دهغه ځائې د اوسيدو وي. دا خلق ستا نه د قيامت د وخت باره کښې تپوس کوي، چه کله به وی دهغې قائميدل؟ ستا دې خبرې بيانولو سره څه کار دې؟ ددې علم خو ستا پروردګار پالدې ختم دې. کوم سړې چه ددې ورځې نه ويريږي، يقيناً ته صرف هغه لره خبرداره کونکې ئې. په کومه ورځ چه دوی اوويني هغې لره، په هغه ورځ به داسې معلوميږي، ګويا چه دوی (په دنيا يا قبر کښې) يو ماښام يا يو صبا نه زيات نه وی ايسار شوې.

## خلاصه تفسير

﴿وَالنّٰزِعٰتِ غَرْقًا﴾ [قسم دې په هغو فريښتو کومې چه] د کافرانو [روح په سختۍ سره وباسی ﴿وَّالنّٰشِطٰتِ نَشْطًا﴾ اوکومې چه] د مسلمانانو روح په اسانۍ سره وباسی ګويا ددوی [بند خلاصوی ﴿وَّالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا﴾ اوکومې چه ] روحونه واخلې د مزکې نه اسمان طرف ته په داسې تيزئی او سهولت سره ځی لکه چه ګويا [لامبو وهی روانې وی ﴿فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا﴾ بيا] هر کله چه

روحونه يوسي ورسيږي نوددغو روحونو په باره کښې چه کوم دخدائې حکم وي دهغې دَ امتثال دپاره [په تيزئ سره منډې وهي ﴿فَالْمُدَبِّرٰتِ أَمْرًا﴾ بيا] ددې ارواحو متعلق دثواب حکم وي يادعذاب په دواړه کارونو کښې [دهرکار تدبيرکوي] په دې ټولو قسم خوري وائي چه [قيامت به خامخا راځي] ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ﴾ په کومه ورځ چه خوزونکې څيز وخوزوي] مراد ترې نه اوله شپيلئ ده ﴿تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ﴾ دکوم نه پس چه به يو وروستو راتلونکې شې راشي] مراد دويمه شپيلئ ده ﴿قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ﴾ [ډير زړونه به په دغه ورځ درزيږي ﴿أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ﴾ دهغوی سترګې به] دپښيمانئ نه [ښکته وي] مګر داخلق دقيامت نه انکارکوي او ﴿يَقُولُونَ أَإِنَّا لَمَرْدُودُونَ فِي الْحَافِرَةِ﴾ [وائي چه ايا مونږ به په اول حالت کښې بياواپس شو] داولنی حالت نه مراد دمرګ نه وړاند ژوند دې چه داځنګه کيدې شي ﴿أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً﴾ [ايا هرکله چه مونږ رژيدلی هډوکی شو بيا به] ژوند ته [واپس شو] مقصود ترې نه استبعاددې چه داخو سخته ګرانه ده ﴿قَالُوا تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ﴾ [ونې ونيل چه] که داسې وشی نو [په دې صورت کښې خو دا واپسی] زمونږ دپاره [دلوئې خسارې به وي] ځکه چه مونږ خو ددې دپاره هيڅ سامان اوتيارئ نه دې کړې مقصود ددې نه مسخرې وې په اهل حق پورې په دې عقيده لرلو سره يعنی د دوی په عقيده به مونږ په لويه خساره کښې يو لکه څوك چه چالره په خيرخواهئ سره ووبروی چه په دې لارمه ځه زمرې به دربانديې پيښ شي او مخاطب دتکذيب په طور باند چاته ووائي چه ورورره که په دې لار لاړې نو زمرې به د وخوری مطلب دا چه په دغه لارې زمرې وغيره هيڅ هم نشته وړاندې ددې مذکوره استبعاد اوګرانوالی رد دې چه داخلق کوم چه قيامت ته بعيد اومشکل وائي ﴿فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ﴾ [نو] پوهه دشی چه مونږ ته هيڅ مشکل نشته بلکه [هغه خو به يو سخت اواز وی ﴿فَإِذَا هُم بِالسَّاهِرَةِ﴾ په کوم سره چه به ټول خلق فوراً په ميدان کښې راشي موجود شی] وړاند د دروغژن کوونکو په ويرولو او دروغژن کولو باند دوی ﷺ ته دتسلئ دپاره دموسیؑ قصه دفرعون سره بيانوی پس فرمائي چه ﴿هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ﴾ [ايا تاته دموسیؑ [قصه رسيدلې ده ﴿إِذْ نَادَاهُ رَبُّهُ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ۞ اذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَىٰ﴾ هرکله چه هغوی ته دهغه پروردګار په يوپاك ميدان يعنی طوی کښې [ دادَ دغې ميدان نوم دې] اواز وکړو چه ته فرعون ته لاړشه هغه لوئې شرارت اختيار کړې دې پس هغه ته لاړشه ﴿فَقُلْ هَل لَّكَ إِلَىٰ أَن تَزَكَّىٰ﴾ [اووايه چه ايا تاته ددې خبرې خواهش شته چه ته درست شې او] ﴿وَأَهْدِيَكَ إِلَىٰ رَبِّكَ فَتَخْشَىٰ﴾ ستا ددرستئ په غرض سره [زه تاته ستا درب طرف ته] دهغه دذات اوصفاتو [رهنمائي وکړم نو چه ته] دالله تعالی ذات او صفات واورې اودهغه نه [ووبيرېږې] اوپه دې ويره سره ستا درستی وشی غرض داچه حکم نې واوريدونو موسیؑ هغه ته لاړو اوپيغام نې ورسولو ﴿فَأَرَاهُ الْآيَةَ الْكُبْرَىٰ﴾ [بيا] هرکله چه هغه دنبوت دليل طلب کړونو هغه ته نې لويه نښه [دنبوت] اوخودله] مراد معجزه دهمساده يا په اراده دجنس مجموعه عصا اويد بيضاء دې ﴿فَكَذَّبَ وَعَصَىٰ﴾ نو هغه [فرعون دوی لره] دروغژن کړو او [ددوی] خبره نې ونه منله ﴿ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَىٰ﴾ بيا] دموسیؑ نه [جدا شو] دهغه خلاف نې [کوشش کول شروع کړل او] خلقو لره ﴿فَحَشَرَ فَنَادَىٰ﴾ [جمع کړه بيا] دهغوی په وړاند [په اوچت اواز نې تقرير وکړو ﴿فَقَالَ أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ﴾ ونې ونيل چه زه ستاسو رب اعلی يم] داعلی قيدئې دواقعی په طور

ووئیل پس اصل مقصود دانَارَبُّكُمُ دي او اَعْلٰى ئې صفت مادحه زيات کړو او احترازی نه دي په کوم سره چه دغير اعلی بل رب ثبوت هم وی ﴿فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى﴾ [پس الله تعالى هغهٔ لره داخرت اودنیاپه عذاب کښې ونیولو [ دنیاعذاب خو غرقول دي اواخر وی عذاب به سوزول وی ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى﴾ [بيشكه په دي ] واقعه [کښې دداسې سړی دپاره لوئې عبرت دي کوم چه ] دالله تعالى نه [ويريږی] وړاند قيامت لره بعيدياد مشکل ګڼړلو عقلی جواب دي يعنی ﴿ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ﴾ [ ښهٔ ستاسو]دوباره [پيدا کول ] فی نفسه [زيات سخت دی يا داسمان ] اوفی نفسه خکه ووئيل چه دالله تعالى دقدرت په نسبت سره خو ټول مساوی دی اوظاهره ده چه داسمان پيدا کول سخت دی بيا چه هرکله دائې پيدا کړو نو ستاسو پيدا کول څهٔ مشکل دی وړاندداسمان دپيدا کولو کيفيت بيان فرمائی چه ﴿بَنٰىهَا﴾[الله تعالى دهٔ لره جوړ کړو] داسې چه ﴿رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوّٰىهَا﴾[ ددهٔ چت ئې وچت کړو اودي ئې برابر جوړ کړو] چه چرته په دي کښې څيرې خائې چاؤدونه پيوند يا جوړ خونشته ﴿وَاَغْطَشَ لَيْلَهَا وَاَخْرَجَ ضُحٰىهَا﴾[اوددهٔ شپې لره ئې تيارهٔ جوړه کړه اوددهٔ ورځې لره ئې ښکاره کړه] دشپې ورځې نسبت ئې اسمان ته خکه وکړو چه شپه اوورځ دنمر په ختو اوپريوتو سره وی اود نمر تعلق داسمان سره دي ﴿وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا﴾[او ددي نه پس ئې زمکه خوره کړه ]او دخوړولو نه پس ئې ﴿اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰىهَا﴾[ددي نه ددي اوبهٔ او شينکې راويستله ﴿وَالْجِبَالَ اَرْسٰىهَا﴾ اوغرونه لره ئې]په دي [قائم کړل ﴿مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِاَنْعَامِكُمْ﴾ تاسو ته اوستاسو څارووته دفائدي رسولو دپاره ]اصل استدلال دپيدائش داسمان نهٔ وو مګر دزمکې ذکر ئې شايد خکه وکړو چه ددي حالات هر وخت دنظر په وړاند دی اواګر چه داسمان برابر نهٔ سهی ليکن فی نفسه دانسان دتخليق نه دزمکې تخليق هم سخت دي پس حاصل داستدلال داشو چه هرکله داسې داسې څيزونه مونږه جوړ کړی دی نو ستاسو دوباره ژوندی کول څهٔ مشکل دی وړاند دوباره ژوندی کيدونه پس چه کوم واقعات دجزا اوسزا سره متعلق دی دهغې تفصيل دي يعنی دقيامت امکان اودهغې واقع کيدل خو ثابت شو ﴿فَاِذَا جَآءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى﴾[پس هرکله چه هغه لويه هنګامه راشی ﴿يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْاِنْسَانُ مَا سَعٰى﴾ يعنی په کومه ورځ چه انسان خپلو کړو لره يادکړی ﴿وَبُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِمَنْ يَّرٰى﴾ او دليدونکو په وړاند دوزخ ظاهرکړې شی نو] په دغه ورځ به داحالت وی چه ﴿فَاَمَّا مَنْ طَغٰى﴾[کوم سړی چه سرکشی کړی وی] دحق نه اوداخرت نه منکر شوې وی ﴿وَاٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا﴾ په دي ئې ددنيا ژوندلره ترجيح ورکړې وی ﴿فَاِنَّ الْجَحِيْمَ هِيَ الْمَاْوٰى﴾ پس دوزخ به دهغهٔ ځائې وی ﴿وَاَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ﴾ اوکوم سړې چه] په دنياکښې[دخپل رب په وړاند داودريدونه ويريدلې وی] چه په قيامت اواخرت اوحساب کتاب ددهٔ ايمان مکمل وی ﴿وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى﴾[اونفس لره ئې د] حرام [خواش نه منع کړې وی] يعنی دصحيح عقيدې سره ئې نيك عمل هم کړې وی ﴿فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَاْوٰى﴾[پس جنت به دهغهٔ ټکانه وی] اوعمل صالح لار دجنت ده موقوف عليه نهٔ دي چونکه کفاروبه دقيامت نه دانکار په قصد سره د دي دوخت تپوس کولو وړاند ددغې جواب دي يعنی ﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا﴾[داخلق ستانه دقيامت په حقله تپوس کوی چه ددي وقوع به کله وی] پس ﴿فِيْمَ اَنْتَ مِنْ ذِكْرٰىهَا﴾ [ددي بيان کولو سره ستاڅهٔ تعلق دي[څکه چه دبيان موقوف عليه علم دي

اودقيامت معين وخت مونږ هيڅوا ته نه دي ښودلي بلكه ﴿إِلَىٰ رَبِّكَ مُنتَهَاهَا﴾ [دهغې ] دتعين دعلم [مدار صرف ستادرب طرف ته دي]او ﴿إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرُ مَن يَخْشَاهَا﴾ [ته خوصرف] په اجمالي خبرونو سره [داسې سړي لره ويرونكې ئې كوم چه ددې نه اوويريږي او ايمان راوړونكې وي اوداخلق چه دتادئ شوركوي نو پوهه دي شي چه ﴿كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا﴾ [كومه ورځ دوی هغې لره ويني نو] دوی ته ﴿لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا﴾ [ داسې به معلوميږي چه گويا]په دنيا كښې[صرف ديوې ورځې په اخرى حصه كښې يا ئې په اوله حصه كښې دوی پاتې شوی دی ]اوبس يعنى ددنيا اوږده موده به ورته لنډه معلوميږي اوگڼړي به چه عذاب ډيرزر راغې دكوم چه دوی استدعا كوی مطلب دادې چه جلد بازي ولې كوئ دوقوع په وخت كښې به هم دا گڼړئي چه ډير زر واقع شوكوم ډيل لره چه اوس ډير گڼړئ دابه ډيل نه معلوميږي]

## معارف او مسائل

﴿وَالنَّازِعَاتِ غَرْقًا﴾ ، ﴿نَّازِعَاتِ﴾ د نزع نه مشتق دې چې معنى ئې يو څيز په راښكلو سره ويستل دی . ﴿غَرْقًا﴾ ئې تاكيد دې ولې چې غرق او اغراق په يو كار كښې ډير زرو لگولو ته وئيلې شي ، نو :

[اغرق النازع فى القوس] محاوره په هغه وخت كښې استعمالولې شي چې په كمان يعنى ليندې راښكلو كښې لينده راښكونكې خپل ښه قوت او زرو اولگوی ، ددې سورت په شروع كښې د ملائيكو د څو صفتونه او حالتونه بيانولو سره ددې قسم خوړلې شوې دې او د حال په دلالت سره د قسم جواب حذف كړې شوې دې . مراد ددې نه د قيامت او حشر ، نشر يقينا واقع كيدل دی ، په فرښتو باندې قسم شايد په دې مناسبت سره خوړ لې شی چې اگر چې فرښتې اوس هم ټول كارونه د الله ﷻ په حكم سره سرته رسوی خو د قيامت په ورځ به دا مادی اسباب بيخی نه وی ځكه ئې خالص نسبت فرښتو ته اوكړې شو چې په دغې غير معمولى حالتونو او واقعاتو كښې به خالص فرښتې د الله ﷻ په حكم كار كوی .

دلته دفرښتو پنځه هغه صفتونه بيان كړې شوی دی چې تعلق ئې د انسان دمرگ او روح راويستلو سره دې . مقصد ئې دا بيانول دی چې قيامت حق دې . ددې شروع د انسان د مرگ نه اوكړې شوه چې د انسان دپاره هغه مرگ د قيامت يوه حصه ده اود قيامت په عقيده كښې دا ډير دخل لری .

ددغې پنځو صفتونو نه رومبې صفت : ﴿النَّازِعَاتِ غَرْقًا﴾ دې يعنى په سختئى اوراښكلوسره اوښكونكې، مراد ترې د عذاب فرښتې دی چې په سختئ سره د كافرو روح راوُباسی ، مراد ددې سختئ نه روحانی سختی او تكليف دې ، دا ضروری نه ده چې كتونكې دې هم دغه سختی محسوس كړی ځكه چې اكثر وختونو كښې دا هم ليدلې شی چې د كافر روح په آسانه اوځی ، خو په روح ئې ډيره سختی وی چې هغه ليدلې اومحسوسولې نشی بلكه هغه صرف د الله ﷻ په خبر وركولو سره معلوميدې شی ،بهر كيف دې جمله كښې د كافر د روح په سختئ سره د اوښكلو خبر وركړې شوې دې .

دوېم صفت : ﴿وَالنَّاشِطَاتِ نَشْطًا﴾ ، ﴿نَاشِطَاتِ﴾ دنشط نه مشتق دې . او معنى ئې بندونه خلاصول دی ، په كوم څيز كښې چې هوا وی يا اوبونه ډك وی دهغې غوټه خلاصولو سره ترې هغه هوا

یا اوبه وغیره په آسانی سره اوځی په دې کښې دمؤمن د روح وتلو تشبیه ورکړې شوې ده. مطلب ئې دادې چې د مؤمن د روح په اوبنکلو باندې تاکلې فرښتې په آسانئ سره د هغه روح راؤباسی. دلته هم روحانی آسانی مراد ده نو ډیو مسلمان په روح وتلو کښې ډیر وخت لګیدل ددې دلیل نه دې چې روح ئې په سختئ سره ویستلې شی. اګر چې په ظاهره پرې سختی لیدلې شی. اصل وجه داده چې دکافرو د روح ویستلو په وخت چې ورته دبرزخ عذاب رامخې ته شی نو روح ئې د ویرې په وجه بدن کښې پټیدل غواړی. ځکه ئې فرښتې په رابنکلو راؤباسی او د مؤمن روح ته دعالم برزخ ثواب، نعمتونه او زیری رامخې ته شی نو روح ئې هغې ته د وتلو په شوق کښې زر اوځی.

**دفرښتو دریم صفت** :: ﴿وَالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا﴾ دې، د ﴿سَبْحٌ﴾ لغوی معنی لامبا کول دی. دلته ترې مراد په تادئی تلل دی. ځکه چې په دریاب کښې لامبو کوؤنکی یا کشتئ وغیره کښې تلونکی ته څه بندیز وغیره مخې ته نه راځی په آسانه خپل منزل مقصود ته رسی. د تیز تللو دا صفت هم د مرګ فرښتو سره تعلق داسې لری چې د روح قبض کولو نه پس ئې دغه فرښتې په ډیرې تادئی آسمان ته اوړی.

**څلورم صفت** :: ﴿فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا﴾ دې، مراد دادې چې د روح قبض کولو نه پس ئې دغه فرښتې ښه یا بد مقام ته په ور اوړو کښې د تادئی نه کار اخلی. د مؤمن روح د جنتی هواګانو او نعمتونو ځایونو ته او د کافر روح د دوزخ هواګانو عذابونو ځایونو ته رسوی.

**پنځم صفت** :: ﴿فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا﴾ دې، دالله ﷻ د حکم د انتظام اوجاری کولو دپاره د مرګ ددغې فرښتو آخری کار به داوی چې کوم روح ته دثواب او آرام ورکولو حکم وی هغې دپاره به د آرام سامان جمع کړی او کوم لره چې عذاب او تکلیف کښې د اچولو حکم وی هغې دپاره دغسې انتظام اوکړی.

**قبر کښې ثواب او عذاب** :: د مرګ په وخت کښې د فرښتو راتلل او دانسان د روح قبض کولو نه پس ئې آسمان ته اوړل بیا دهغې ښه یا خراب مقام ته د زر رسولو اوهلته د ثواب او عذاب، تکلیف یا آرام انتظامونه ددۀ دپاره کول، ددې بیان شوؤ آیتونو نه ثابت شو، دا ثواب او عذاب به په قبر کښې وی، د حشر ثواب او عذاب ددی نه پس دې چې په صحیح احادیثو کښې ئې پوره تفصیل راغلې دې. د براء بن عازب رضی الله عنه یو اوږد حدیث پاک په مشکوة کښې په حواله د احمد بیان شوېدې[۱].

**دنفس او روح باره کښې د قاضی ثناء الله رحمه الله مفید تحقیق** :: د تفسیر مظهری په حواله د نفس او روح په حقیقت باندې څه کلام دسورۀ حجر د آیت نمبر ۲۹ لاندې تیر شوېدې. ددې سلسلې مزید تحقیق او وضاحت کول دخپل وخت بیهقی قاضی ثناء الله پانی پتی قدس سره دلته لیکلی دی[۲] چې په هغې سره ډیر اشکالونه حل کیږی. هغه دادی چې بیان شوی حدیث سره دا واضح کیږی چې انسانی نفس یو لطیف جسم دې چې په کثیف جسم کښې ځائې کړې شوې

---

[۱]) مسند احمد حديث البراء بن عازب رضی الله عنه رقم الحديث:[۱۸۵۵۷] و مشكوة المصابيح كتاب الجنائز باب مايقال عند من حضره الموت الفصل الأول رقم الحديث:[۱۶۳۰]

[۲]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۸۶]

دي . او هغه دمادي څلورو عنصرونو نه جوړ شوېدې . فلسفیان او طبیبان هم دې ته روح وائي ، مګر په حقیقت کښې انساني روح يو مجرد جوهراو رباني لطيفه ده چې دغې طبعي روح يعني نفس سره خاص تعلق لري . اود طبعي روح يعني نفس ژوند پخپله په دغې رباني لطيفه باندې اړه لري ګويا چې دې روح ته روح الروح وئيلې شي چې د بدن ژوند په نفس سره دې او د نفس ژوند د روح سره تړلې دې ، ددې مجرد روح او رباني لطيفې تعلق جسم لطيف يعني نفس سره څه او په څه شان دې ، ددې د حقیقت علم ددې دپیدا کونکی نه سوا بل چاته نشته او دا لطيف جسم يعني نفس الله ﷻ په خپل قدرت سره د يوې آئینې په مثال جوړ کړې دې چې د نمر په مقابله کښې ايخودې شوې وی نو دنمر رڼړا په دې کښې داسې راځي چې دا پخپله دنمر پشان رڼړا خوروی . انساني نفس که د وحی د تعليم په جوړ رياضت اومحنت کوی نو هغه به هم روښانه شی ګنی د کثيف جسم په خرابو اثراتو کښې لتاړيږی . دغسې لطيف جسم فرښتې پورته اوړی او بيا ئې په عزت سره ښکته راؤړی کله چې هغه روښانه شوې وی ، ګنی د آسمان دروازې دې دپاره نشی خلاصيدې هم د پورته نه لاندې راګذارولې شی هم ددې لطيف جسم په باره کښې تیرشوی حديث کښې فرمائيلی دی چې مونږ دا د خاوړې نه پیدا کړو ، بيا به ئې دې ته راواپس کوؤ ، بيا به ئې دوباره هم ددې نه پیدا کوؤ ، هم دا لطيف جسم د نيکو عملونو سره روښانه او خوشبودار جوړ شی . اود کفر اوشرک کولو سره بدبويه شی . باقی دمجرد روح تعلق دې کثيف بدن سره د لطيف جسم يعني نفس په ذريعه وی ، په هغې باندې مرګ نه راځي ، دقبر عذاب او ثواب هم دې لطيف جسم سره تړن لري چې تعلق ئې هم د قبر سره وی . او روح مجرد په عليين کښې وی او روح مجرد ددې د ثواب او عذاب نه بالواسطه اثراخلی . په دې شان په قبر کښې د روح موجود والې د نفس په معنی سره صحيح دې . او په عالم ارواح يعني عليين کښې ددې موجود والې د روح مجرد په معنی سره صحيح دې په داشان د مختلفو روايتونو تطبيق هم راتلې شی ، والله اعلم

وريسې د قيامت د واقع کيدو او په دې کښې رومبئ شپيلئ پوک وهلو سره د ټول جهان فنا کيدل بيا په دويم پوک وهلو سره ئې د ټول جهان دوباره نوی کيدل او په دې کښې د کافرانو ددې شبهې جواب دې په کومه کښې چې هغوئ وائي چې قيامت راتلل لرې خبره ده ، ددې په آخر کښې اوفرمائيل چې : ﴿فَإِذَا هُم بِالسَّاهِرَةِ﴾ ، ساهره د زمکې مخ ته وئيلې شی د قيامت دوباره راتلونکې زمکه به يو هوار ميدان وی . په کښې به هيڅ بنديز ، غر ، کنده ونه عمارت وغيره نه وی . وريسې نبی کريم ﷺ ته د موسی ﷺ اودفرعون په قيصې بيانولو سره تسلی ورکول دی

چې تاسو ﷺ د کافرانو او دقيامت د منکرانو ضد اوناړمئ نه خفګان خپل زړهٔ ته ځکه مه راولئ چې دمخالفينو نه ضررونه رسيدل يواځې تاسو ﷺ ته نه رسی ، پخوانو پيغمبرانو ﷺ د مخالفينو سخت سخت تکليفونه برداشت کړی دی . هغوئ ﷺ صبر اوکړو تاسو ﷺ هم دصبر نه کار واخلئ .

﴿فَأَخَذَهُ اللَّهُ نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولَىٰ﴾ ، ﴿نَكَالَ﴾ داسې يو عذاب ته وئيلې شی چې دهغې په ليدو سره نورو ته هم عبرت وی او ټول اوويريږی . د آخرت نکال فرعون دپاره دآخرت عذاب دې . او ﴿نَكَالَ الْأُولَىٰ﴾ نه مراد هغه عذاب دې چې ټول قوم سره دفرعون په درياب کښې ډوب شو .

وروسته بیا دحشر او نشر دهغې شبهې لرې کول دي چې دمړ کیدو او خاورې کیدو نه پس به څنګه دوباره ژوندی کولې شی. په دې کښې الله ﷻ آسمان، زمکه او په دې کښې پیدا کړې شوي عظیم الشان مخلوق بیان ذکرکولوسره غافل انسان لره پرې خبرداری دی چې کوم ذات داسې عظیم الشان مخلوق ته بغیر د څه مادې او آلې نه ابتدائی وجود ورکړو نو ددې د نیست ونابود کولونه پس ورته په دوباره وجود ورکولو سره تاسو تعجب ولې کوئی. وروستو بیا دا بیان دی چې د قیامت ورځ ډیره سخته ده په دغه ورځ به دهر چا عملونه د هغه رامخې ته شی، جنتیانو ته به جنت او دوزخیانو ته به دوزخ ورکړې شی، په آخر کښې دجنتیانو او دوزخیانو خاص خاص علامتونه بیان شوی دی چې دهغې په بنا یو انسان هم په دنیا کښې دا فیصله کولې شی چې د ضابطې له مخه مې مقام په جنت یا دوزخ کښې دی، ضابطه ورته څکه اوونیلې شوه چې د چا په شفاعت یا خالص د الله ﷻ په رحمت سره د چا دجهنم نه آزادیدل بیله خبره ده څنګه چې د ګڼرو نوروآیتونو. او حدیثونه دا ثابتیږی.

اول د جهنمیانو خاص علامات بیان کړې شوې چې دوه دی: ﴿فَأَمَّا مَن طَغَىٰ ۝ وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا﴾ اول طغیان یعنی د الله ﷻ د احکامو د پابندئی په څائې سرکشی کول، دویم ژوند لره په آخرت باندې غوره والې ورکول، یعنی کله چې داسې څه کار مخې ته راشی چې دهغې په اختیارولو سره په دنیا کښې خوآرام یا خوند ونه موندې شی مګر په آخرت کښې پرې عذاب مقرر دې. هغه وخت هغه ددنیا خوند لره په آخرت باندې غوروالی ورکولو سره د آخرت فکر شاته غورځوی. څوک چې دنیا کښې په دې دوؤ بلاګانو کښې اخته دې هغوئ دپاره فرمائی چې: ﴿فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَىٰ﴾ یعنی جهنم د هغه څائې دې.

وروستو دغسې دجنتیانو دوه نخښې ښائی چې:

﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَىٰ﴾ اول دا چې څوک د هر کار او عمل کولو په وخت دې نه ویریږی چې یو ورځ به زهٔ د الله ﷻ په وړاندې ددې عملونو حساب پیش کوم، بل دا چې چا خپل نفس په قابو کښې اولرلو، د ناجائزو خواهشاتو نه ئې منع کړو، چا چې په دنیا کښې دا دواړه صفتونه اختیار کړل، هغه ته قرآن کریم دا زیرې ورکړې دې چې: ﴿فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ﴾ یعنی جنت دهغه څائې دې.

**د نفس د مخالفت کولو درې درجې:** دې آیت مبارک کښې د جنت څایونو جوړیدو دپاره دوه شرطونه کیخودې شوې دی. اول شرط الله ﷻ ته دجواب ورکولو ویره ده، بل شرط نفس لره د هوی نه منع کول. او حقیقت دادې چې هم د الله ﷻ ویره نفس لره دهغوی دتابعدارئی نه منع کوونکې څیز دې. نو قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې د هوی دمخالفت درې درجې خودلی دی.

① اوله درجه ئې داده چې انسان د هغې باطلو عقیدو نه خلاص شی چې د ښکاره نصونو، اجماع دسلف نه خلاف وی، دې درجې ته په رسیدو سره هغه د سنی مسلمان بللو حقدار کیدیشی.

② دویمه یعنی درمیانه درجه داده چې کله ورته د څه نافرمانئی یا ګناه کولو اراده راپورته شی نو بیا ورته د الله ﷻ په وړاندې حساب ورکول رایاد شی. او په دغه وجه ګناه پریږدی. ددې درجې تکمله داده چې انسان د شبهاتو نه هم پرهیز اوکړی او هغه جائز او مباح کار کول

هم پرېږدي چې دهغې نه په يو ناجائز کار کښې د اخته کېدو وېره وي
څنګه چې د نعمان بن بشير رضي الله عنه د روايت مطابق نبي کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چې: چا چې دمشتبهاتو نه ځان اوساتلو هغه خپل عزت او دين محفوظ کړو. او څوک چې په مشتبهاتو کښې پرېوتو هغه به آخر په حرامو کښې اخته شي. مشتبهات هغه څيزونه دي چې د ناجائز او جائز کېدو دواړو احتمالونه په کښې وي. مثلا يو ناجوړه بنده په اودس کولو قدرت لري خو پوره يقين ئې نه وي چې اودس کول به راله نقصاني وي او که نه؟ نو دلته د تيمم کولو روا والې او ناروا والې مشتبه شو، دغسې څوک ناجوړه چې په ولاړې دمونځ کولو طاقت نه لري خو په ناستې مونځ کولو کښې ورته شک شي چې دا به زما دپاره درست وي او که نه؟ نو په داسې موقعو باندې مشتبه څيز پرېخودل او يقيني جائز څيز اختيارول تقوي ده. د مخالفت کولو درميانه درجه هم داده.

**د نفس مکرونه** :: په ښکاره ګناهونو کښې د نفس مخالفت کولو کښې په کوشش سره په خپل اختيار انسان کامياب دې شي ليکن د نفس يو قسم هوي هغه ده چې په عبادتونو او نيکو عملونو کښې شامليږي. رياء، نمائش، خپل ځان غوره ګڼړل، داسې باريک ګناهونه او د نفس سختې هواګانې دي چې اکثر انسان په کښې پخپله هم دهوکه کيږي. خپل عمل درست او صحيح ګڼړي، او هم دا هغه دنفس هوا ده چې مخالفت کول ئې د ټولو نه اول او د ټولو نه زيات ضروري دي، خو ددې نه د ځان ساتلو صحيح علاج او مجربه نسخه ددې نه سوا نشته چې انسان څوک داسې کامل شيخ او لټوي چې هغه دېو ماهر شيخ په خدمت کښې د پاتې کېدو مجاهدې کړې وي. دنفس د عيبونو او دهغې دعلاج کولونه واقف وي خپل ځان هغه ته اوسپاري او دهغه په مشوره باندې عمل اوکړي.
شيخ امام يعقوب کرخي رحمه الله فرمائي چې زه پخپل اول عمر کښې تر کانړ ووم، ما په خپل نفس کښې سستي او باطن کښې مې تياره محسوس کړه نو د څو ورځو روژو نيولو اراده مې ددې دلرې کولو دپاره اوکړه، ناګهانه د روژې په حالت کښې د بزرګ شيخ امام بهاؤالدين نقشبندي په خدمت کښې حاضرشوم، هغوئ رحمه الله ميلمنو دپاره ډوډئي راوغوښتله او ماته ئې هم د خوړلو حکم اوکړو او دائې اوفرمائيل چې خراب بنده دې څوک چې د نفس د هوي تابع وي. او وې فرمائيل چې د هغې روژې نيولو نه خوراک زيات غوره دي چې نفساني هوي سره وي، دغه وخت مې محسوس کړه چې زما نفس د عجب او خود پسندئي ښکار کېدو، کوم چې شيخ محسوس کړو او ماته ثابت شو چې په ذکر، شغل او نفلي عبادت کښې دېو کامل شيخ اجازت او هدايت کول پکار دي، څکه چې هغه د نفس دمکرونو او دهوکونه واقف وي چې دهغې خطا کېدلو نه ئې اوساتي کوم چې په نفلي عمل کښې د نفس تيرويستل وي. دغه وخت مې د شيخ نقشبندي رحمه الله په خدمت کښې عرض اوکړو چې حضرت! که څوک فاني في الله او باقي بالله شيخ پيدا نه کړي نو هغه دې څه کوي؟
شيخ اوفرمائيل چې ډېر ډېر استغفار دې وائي يعنې هر مونځ نه پس دې شل شل ځله استغفار کوي. اودا به سل ځله د ورځې شي. څکه چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چې کله کله زه پخپل زړه کښې خيرې محسوس کړم نو هره ورځ د الله جل جلاله نه سل ځله استغفار کوم يعنې بخښنه غوارم.

د هوا نفساني د مخالفت دريمه او اعلى درجه داده چې د ډيرو ذكرونو، مجاهدو رياضتونو په وجه خپل نفس داسې پاک جوړ کړي چې په کښې هغه هوائې نفساني پاتې نشي چې انسان شر طرفته راکاږي. دا دخاص ولايت مقام دې، دا هغه چاته حاصليږي چې د صوفيانو په اصطلاح کښې ورته فاني في الله اوباقي بالله ونيلې شي، هم دا خلق د قرآن کريم دهغې آيت مبارک مصداق دي په کوم کښې چې دشيطان په مخاطب کولو سره الله ﷻ فرمائي چې: ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ﴾ يعنى زما په خاص بنديګانو به ستا قابو نه چليږي او هم دا مصداق د هغې حديث دی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې:

[لن يؤمن احدكم حتى يكون هواه تبعاً لما جئت به] [1] يعنى په تاسو کښې هيڅوک ترهغې وخته پورې کامل مؤمن نشي جوړيدې تر څو چې نفساني خواهشات ئې زما د تعليماتو تابع نشي، انې الله ﷻ ! پخپل فضل وکرم سره دا زمونږ نصيب کړې.

په آخر د سورت کښې د کافرانو د هغې عنادی سوال جواب دې چې هغوئ به په نبی کريم ﷺ باندې ددې دپاره کولو چې دقيامت ټاکلې وخت ورته اوښائي. د جواب حاصل دادې چې هغه معين وخت الله ﷻ په خپل حکمت بالغه سره صرف خپل ذات دپاره مخصوص ساتلې دې، ددې خبر چا فرښتې يا رسول ﷺ ته هم ددې نه دې ورکړې شوې څکه دغه غوښتل عبث دی.

تمت سورة النازعات الحمدلله ٤شعبان ١٣٩١هجري دوشنبه

| رکوع ګاني | | | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة عبس مكية وهي اثنتان واربعون اٰية وفيها ركوع واحد | | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ② | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ۴۲ |

| عَبَسَ | وَتَوَلّٰىٓ ۙ ① | اَنْ جَآءَهُ | الْاَعْمٰى ② | وَمَا يُدْرِيْكَ |
|---|---|---|---|---|
| تندې ئې تريو کړو | او مخ ئې واړوؤ | چې راغې هغه ته | هغه روند | او څه پته ده تاته |
| تندې ئې تريو کړو | او مخ ئې واړولو | چې يو روند ورته راغلو | | اوتاته څه معلومه ده |

| لَعَلَّهٗ | يَزَّكّٰىٓ ۙ ③ | اَوْ يَذَّكَّرُ | فَتَنْفَعَهُ | الذِّكْرٰى ④ |
|---|---|---|---|---|
| کيدې شي چې هغه | پاک شي | يا په نصيحت غور اوکړي | پس فائده ورکړي هغه ته | نصيحت |
| چې هغه (په دين زده کولو) | پاک شي | يانصيحت اومنی | نوهغه ورته فائده ورکړی | |

| اَمَّا | مَنِ | اسْتَغْنٰى ۙ ⑤ | فَاَنْتَ | لَهٗ | تَصَدّٰى ⑥ |
|---|---|---|---|---|---|
| هر چې دې | هغه څوک | چې بې پرواهی ئې اوکړه | پس ته | هغه ته | توجه کوې |
| پاتې شوهغه سړې چې بې پرواه دې | | ........................ | نو تا | هغه ته | توجه اوکړه |

| وَمَا عَلَيْكَ | اَلَّا يَزَّكّٰى ⑦ | وَاَمَّا مَنْ | جَآءَكَ |
|---|---|---|---|
| حال دا چې نشته په تاباند ذمه واری | چې پاک نه شي هغه | او هر چې دې هغه څوک | چې راغې تاته |
| اوستا په کښې څه تاوان دې | که هغه پاک نشي | او څوک چې تاله په منډه منډه راغلو | |

[1] ) شرح السنة رقم الحديث:[١٠٤] ومشكوة المصابيح كتاب الإيمان باب الإعتصام بالكتاب والسنة الفصل الثاني رقم الحديث:[١٦٧]

يَسْعٰى ۝ وَهُوَ يَخْشٰى ۝ فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ۝ كَلَّآ اِنَّهَا

چي رامنډي وهي | او هغه يريږي [دالله نه] | پس ته | دهغه نه | مخ اړوې | هرگز نه | بيشکه دا [قران]

او هغه د [الله ﷻ] نه ويريږي | نو دهغه نه بې پرواه شوې | ..................بيا داسې مه کوه

تَذْكِرَةٌ ۝ فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ ۝ فِيْ صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ۝

يو نصيحت دې | پس هغه څوك | چي غواړي | قبول کړي هغه | [دا قران] په پاڼړو معززو کښې دې |

داخو يو نصيحت دې | نو چې دچا خوښه وي | هغه دې قبول کړي | په عزت مندو صحيفو کښې دي

مَّرْفُوْعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ۝ بِاَيْدِيْ سَفَرَةٍ ۝ كِرَامٍ

چي داوچتو مرتبو دی | پاکي دی | په لاسونو | دليکونکو فرښتو کښې دی | چي عزتمندې دی |

چې اوچتې او پاکې دی | دا دداسې ليکونکو [فرښتو] په لاسونو کښې دی | چې عزت مندې

بَرَرَةٍ ۝ قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَآ اَكْفَرَهٗ ۝

نيکانې دی | لعنت دې وی په [کافر] انسان باند | چې څومره سخت منکر دې هغه [دحق نه] |

او نيکانې دی | انسان [کافر] دې هلاک شی دې | څومره ناشکره دې

مِنْ اَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ ۝ مِنْ نُّطْفَةٍ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ ۝

دکوم څيز نه | الله پيدا کړو هغه | دنطفې نه | الله پيدا کړو هغه | بيا ئې تقدير مقرر کړو دهغه |

دڅومره حقير څيز نه ئې پيدا کړې دې | ديو څاڅکی نه الله ﷻ پيدا کړې دې | بيا ئې په يو خاص اندازه جوړ کړو

ثُمَّ السَّبِيْلَ يَسَّرَهٗ ۝ ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ ۝ ثُمَّ اِذَا

بيا ئې لار [دژوند] | آسانه کړه هغه ته | بيا ئې مړ کړو هغه | پس قبر ته ئې اورسولو هغه | بيا چې کله

ورته ئې بيا لار آسانه کړه | ..........بيائې مړ کړو | نو قبر کښې ئې کيخودو | بيا چې کله ئې

شَآءَ اَنْشَرَهٗ ۝ كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ اَمَرَهٗ ۝

خوښه شی دهغه | را ژوندي به کړی هغه لره | هرگز نه | اونۀ کړو هغه | هغه کار | چې حکم کړې وۀ الله هغه ته

خوښه شی | نو راژوندې به ئې کړی | ..........البته ده هغه حکم پوره نکړو کوم چه ورته الله کړې وو

فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ اِلٰى طَعَامِهٖ ۝ اَنَّا صَبَبْنَا الْمَآءَ

نو اودې گوری | انسان | خوراك خپل ته | بيشکه مونږه را بيوو | اوبۀ |

نو انسان دې خپل خوراک ته اوگوری | چې مونږ څومره اوبه [د اسمان د طرفه] راوروو

صَبًّا ۝ ثُمَّ شَقَقْنَا الْاَرْضَ شَقًّا ۝ فَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا

په رابيولو سره | بيا څيرې کړه مونږه | زمکه | په څيرولو سره | بيا زرغون کړې مونږ | په هغې کښې |

..........بيا مو زمکه اوچوله | .......................... نو په هغې کښې مو غلې

حَبًّا ۝ وَّعِنَبًا وَّقَضْبًا ۝ وَّزَيْتُوْنًا وَّنَخْلًا ۝ وَّحَدَآئِقَ غُلْبًا ۝ وَّفَاكِهَةً

دانې غلې | او انگور | او ترکاريانې | او زيتون [خونه] | او کجورې | او باغونه | گنړ گنړ | او ميوې |

او انگور او ترکاريانې ..........او زيتون او کهجورې او گنړ گور باغونه او رنگ رنگ ميوې

وَّاَبًّا ﴿۳۱﴾ | مَّتَاعًا | لَّكُمْ | وَلِاَنْعَامِكُمْ ﴿۳۲﴾ | فَاِذَا

او خوراکونه | په طور دسامان دژوند | دپاره ستاسو | او دپاره دخاروو ستاسو | نو هر کله چي |

اوګیاه زرغون کړل | چي ستاسو او ستاسو د څاروو په کار راځي | ............نو هر کله چي د

جَآءَتِ | الصَّآخَّةُ ﴿۳۳﴾ | يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ | مِنْ اَخِيْهِ ﴿۳۴﴾ | وَاُمِّهٖ | وَاَبِيْهِ ﴿۳۵﴾

راشي | هغه آواز سخت | په هغه ورځ به تښتي سړی | د رور خپل نه | اودمور خپلې نه | او دپلار خپل نه

قيامت چغه راشي | په دغه ورځ به سړی دخپل .........رور ...........او خپلې مور اوخپل پلار

وَصَاحِبَتِهٖ | وَبَنِيْهِ ﴿۳۶﴾ | لِكُلِّ امْرِئٍ | مِّنْهُمْ | يَوْمَئِذٍ

او دښځي خپلې نه | او دځامنو خپلو نه | دپاره دهر سړي به | ددوئ نه | په دغه ورځ |

اوخپلې ښځي اوخپل اولاد نه تښتي | ............چي په دوئ کښي دهر سړي به داسي حال وي

شَاْنٌ | يُّغْنِيْهِ ﴿۳۷﴾ | وُجُوْهٌ | يَّوْمَئِذٍ

يو داسي حالت وي | چي بې پرواه کوي به هغه لره [دټولو احوالونه] | [بعضي] مخونه به | په دغه ورځ

چي دبل [دپوښتني نه] به ئې غافله کړي وي | ..........................بعضي مخونه به په دغه ورځ

مُّسْفِرَةٌ ﴿۳۸﴾ | ضَاحِكَةٌ | مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿۳۹﴾ | وَوُجُوْهٌ | يَّوْمَئِذٍ

روښانه وي | خنديدونکي به وي | خوشحاليدونکي به وي | او [ځيني] مخونه به | په دغه ورځ |

روښانه وي | ........خاندي به.............خوشحاله بهٔ وي | ............اوځيني مخونه به په دغه

عَلَيْهَا | غَبَرَةٌ ﴿۴۰﴾ | تَرْهَقُهَا | قَتَرَةٌ ﴿۴۱﴾ | اُولٰٓئِكَ

[داسي وي] چي په هغې باندې به | ګردوي | پټ کړي به وي هغه لره | توروالي | دغه کسان چي دي

ورځ خړپړ وي | ............................چي د غم تياره به پرې راخوره شوي وي هم دغه کسان

هُمُ الْكَفَرَةُ | الْفَجَرَةُ ﴿۴۲﴾

هم هغوئ کافران دي | فاجران دي |

بدعمله کافران دي

## آسان ترجمه قرآن

تندي ئې تريو کړو (پيغمبر)، او مخ ئې واړولو ددې وجې نه چه راغلې وو ده ته ړوند. او (اے پيغمبره عليه السلام) تاته څه خبر دې؟ چه کيدې شي چه هغه پاک شي. يا به هغه نصيحت قبول کړي، او نصيحت کول به هغه ته فائده اورسوي هغه سړي چه بے پروا کړې ئې دې ځان خپل. نو ته هغه پسې لګيدلې ئې. حالانکه که هغه پاک نه شي، نو په تا باندې هيڅ ذمه داري نشته. او هغه چه تاته په محنت سره راغلې دې. او هغه چه زړه کښې د الله تعالیٰ ويره لري. نو د هغه د طرف نه ته بے پرواهي کوې. هيڅ ري داسي نه ده بکارا يقيناً دا قرآن خو يو نصيحت دې. اوس چه څوک غواړي، ياد دې کړي هغه په داسي صحيفو کښې ليکلې شوې دې، چه ډيرې عزت مندې دی اوچتې مرتبې والا دي، پاکې کړې شوې دي د هغې ليکونکو (فرشتو) په لاسونو کښې دي. چه خپله ډير عزت والا دي، ډيرې نيکي دی تباهی دې

وی په داسې انسان باندې، هغه څه ډير ناشکره دی. (هغه دې لږ سوچ اوکړی چه) الله تعالی هغه د څه څيز نه پيدا کړې دې د نطفې د يو څاڅکی نه. هغه ئې پيدا کړې هم دی، او بيا ئې هغه ته يو خاص انداز هم ورکړې دې بيا ئې هغه دپاره لار هم آسانه کړه بيا ئې مړ کړو هغه. او قبر ته ئې اورسوؤ. بيا چه کله اوغواړی، نو هغه لره به دوباره راپورته کړی هيڅوک ئې نه. د کومې خبرې چه الله تعالی ده ته حکم ورکړې وو، اوسه پورې هغه ده پوره کړې نه ده بيا دې لږ انسان خپل خوراک ته اوګوری. چه مونږ د پره نه ښه ډيرې اوبه راؤرولې. بيا مونږ زمکه په عجيبه طريقې سره اوشلوله بيا مونږ په هغې کښې غلې زرغونې کړې. او انګور او ترکارئ. او زيتون او کهجورې. او ګنړ ګنړ باغونه. او ميوې او ګيا کانړې. ټول هرڅه ستاسو اوستاسو د څاروؤ د فائدې دپاره. پس آخر چه کله هغه غوږونه شلونکې سخت آواز راشی (نو هغه وخت کښې به ددې ناشکرئ د حقيقت پته اولګی. دا به هغه ورځ وی. چه انسان به د خپل ورور نه هم تختی.او د خپل مور او پلار نه هم او د خپلې ښځې او بچو نه هم. (ځکه چه) په دغه ورځ به هر يو سره د خپل ځان داسې فکر وی، چه هغه سره به د بل چا غم نه وی. په دغه ورځ به ډير مخونه روښانه وی. خنديدونکې خوشحاله به وی. او ډير مخونه به په دغه ورځ داسې وی، چه په هغې باندې به خاورې پريوتې وی. توروالی به هغه پټ کړې وی. دا به هغه خلق وی، چه کافران وو، بدکار وو.

### خلاصه تفسير

**شان نزول** : ددې ايتونو دنزول قصه داده چه يوځل نبی کريم ﷺ دمشرکانو څنو سردار لره پوهول په څنو روايتونو کښې دهغوی دځنونومونه هم راغلی دی ابوجهل بن هشام ،عتبه بن ربيعه، اميه بن خلف ، شيبه په دې کښې حضرت عبدالله ابن ام مکتوم روند صحابی راغلو اوڅه تپوس ئې وکړو داقطع کلامی ددوی ﷺ خوښه نۀ شوه اوددۀ طرف ته ئې توجه ونۀ کړه اوناخوښئ په وجه ئې تندې مبارك ګنځی کړو هر کله چه ددې مجلس نه پورته شواو کورته تللو نو دوحی نښې ښکاره شوې اودا آيتونه عبس وتولی نازل شو ددې نه پس هرکله چه به هغه ددوی ﷺ خوا ته راتللو نو دوی ﷺ به ئې لوئې خاطرکولو داټول روايتونه په درمنثور کښې دی غرض دذکرشوې واقعې په حقله ارشاد کيږی چه ﴿عَبَسَ وَتَوَلَّىٰٓ ۝ أَن جَآءَهُ ٱلْأَعْمَىٰ ۝﴾ [پيغمبر] ﷺ [تندې ګنځی کړو اومتوجه نۀ شو په دې خبره چه دۀ ته يو روند راغې ] دلته خونې صيغه دغائب وفرمائيله چې دمتکلم انتهائی لطف اوکرم اودمخاطب عزت دې چه مخامخ ئې ورته ددې کار نسبت ونۀ فرمائيلو [او] وراند ئې دخطاب صيغه په طور دالتفات ځکه اختيارکړه چه شبهه داعراض نۀ وی ارشاد کيږی ﴿وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُۥ يَزَّكَّىٰٓ ۝﴾ [چه تاته څۀ خبردې چه شايد هغه ] نابينا ستا په تعليم سره په پوره طور [پاکيدو ﴿أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنفَعَهُ ٱلذِّكْرَىٰٓ ۝﴾ ياکم از کم په څۀ خاص کارکښې [نصيحت قبول کړی پس دۀ ته به نصيحت کول ]څۀ ناڅۀ[فائده ورسوی ﴿أَمَّا مَنِ ٱسْتَغْنَىٰ ۝﴾ نوکوم سړې چه ] ددين نه [بې پرواهی کوی ﴿فَأَنتَ لَهُۥ تَصَدَّىٰ ۝﴾ ته خودهغۀ فکر کوې ﴿وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّىٰ ۝﴾ حال دادې چه په تاهيڅ الزام نشته چه هغه نۀ پاکيږی ] دهغۀ دبې پرواهئ ذکر کولوسره دَ هغۀ طرف ته دزياتې توجه نۀ ورکولو هدايت دې ﴿وَأَمَّا مَن جَآءَكَ يَسْعَىٰ ۝﴾ [اوکوم سړې چه تاته] ددين په شوق کښې [په منډه راځی ﴿وَهُوَ يَخْشَىٰ ۝﴾ اوهغه] دخدای نه[ويريږی ﴿فَأَنتَ عَنْهُ تَلَهَّىٰ ۝﴾ تۀ دهغۀ نه بې توجهی کوې] په دې ايتونو کښې ئې د دوی ﷺ په اجتهادی لغزش

سره دوی ﷺ لره خبردار کړي دي منشاء ددې اجتهادداوه چه دا امرخو متيقن اوثابت دي چه اهم کار لره مقدم کول غواړي دوی ﷺ دکفر سختوالی لره موجب داهميت وګڼړلو لکه دوه بيماران وی يوته هيضه وی اوبل ته زکام نو دهيضې دمريض علاج اول وی اودحق تعالی ددې ارشاد مطلب دادې چه دمرض شدت هغه وخت موجب داهميت دي هرکله چه دواړه مريضان دعلاج طلب کوونکي وی ليکن کۀ سخت مرض والا دعلاج طلب نۀ کوی بلکه مخالف وی نو بيامقدم هغه دي کوم چه دعلاج طلب کونکې دې اګر چه دهغۀ مرض سپك وی وړاند دې مشرکانو طرف ته ددومره توجه ضروری نۀ کيدو لره ارشاد فرمائی چه ته اننده﴿كَلَّآ إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ﴾ [هرګز داسې مۀ کوه]څکه چه[قرآن ] محض يو[دنصيحت څيز دې] اوستاپه ذمه صرف ددې تبليغ دي ﴿فَمَن شَآءَ ذَكَرَهُۥ﴾ [پس دچازړۀ چه غواړي دادې قبول کړی ]اوڅوك چه نۀ قبلوی هغه پوهه شه چه په تاباندې هيڅ ضررنشته بيا تۀ دومره اهتمام ولې فرمائې وړاند دقرآن صفتونه بيان فرمائی چه ﴿فِى صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ﴾ [هغه] قرآن دلوح محفوظ [په صحيفوکښې] محفوظ [دي کوم چه]دالله تعالی په نزد [مکرمې دی ] يعنی پسنديده اومقبولې دی او﴿مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ﴾ [اوچتې درجې والا دې ]څکه چه لوح محفوظ تحت العرش دي لکه چه په درمنثورکښې دی [سورة البروج](1) اوهغه[مقدس دي] دخبيثو شيطانانو هلته رسائی نشته لکه داقول دالله تعالی دې ،﴿لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ﴾(2) ﴿بِأَيْدِى سَفَرَةٍ﴾ [کوم چه داسې ليکونکو ] يعنی فريښتو[په لاسونو کښې وی ﴿كِرَامٍۭ بَرَرَةٍ﴾ چه هغه مکرم ]او[نيك دي] داټول صفتونه ددۀ دالله تعالی دطرف نه په کيدودلالت کوی لکه چه په سورة واقعه په ايت ،﴿لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ﴾ کښې ئې بيان شوې دې اولوح محفوظ کۀ هر شان شئ واحد دې مګر ددې اجزاؤ لره په صحف سره تعبير وفرمائيلو اودې فريښتو ته ئې کاتبانې څکه ووئيل چه دوی دلوح محفوظ نه په امرالهی نقل کوونکې دی مطلب دايت داشو چه قرآن من جانب الله دنصيحت دپاره دې تۀ نصيحت کوه دخپلو فرضو نه به فارغه کيږې خواه کۀ څوك ايمان راوړی اوکۀ نۀ راوړی پس ددې قسم تقديم اوتاخير هيڅ ضرورت نشته ترددې پورې اداب دتذکير اوتبليغ شو وړاند دکفاروددې نه په فائده نۀ اخستو باندتشنيع دې چه په منکر﴿قُتِلَ ٱلْإِنسَٰنُ مَآ أَكْفَرَهُۥ﴾[بنده باندې]کوم چه په داسې تذکره سره نصيحت حاصل نۀ کړی لکه ابوجهل وغيره کومو لره چه تاپوهول اوهغه نۀ پوهيدل نو په داسې سړې [دخدائې لعنت دې چه هغه څومره ناشکره دې] هغه نۀ ګوری چه﴿مِنْ أَىِّ شَىْءٍ خَلَقَهُۥ﴾[الله تعالی دۀ لره دڅنګه] دحقير[شی نه پيدا کړو ]وړاند جواب دې چه ﴿مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُۥ فَقَدَّرَهُۥ﴾[دنطفې نه پيدا کړو وړاند ددې کيفيت ذکر دې چه دډيرو انقلاباتواوتغيراتونه پس [ددۀ صورت ئې جوړ کړه بيا ئې ددۀ ]اندامونه [په اندازه سره جوړ کړو] لکه چه د سورة قيامه په ايت ﴿فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ﴾(3) کښې تير شوی دی﴿ثُمَّ ٱلسَّبِيلَ يَسَّرَهُۥ﴾ [بيادۀ ] دوتلو [لارئې اسانه کړه] چنانچه ظاهره ده چه دداسې تنګې موقعې نه

1) تفسيرالدرالمنثور تفسير سورة البروج [ج:۱۵ ص:۳۴۵] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۸۱۸۸] كتاب حسن الخلق فصل فى الدعاء والمسالة من الله عزوجل حسن الخلق.

2) ترجمه:- دي ته د فرښتو نه علاوه بل څوك لاس نه لګوی.

3) ترجمه:-بيا الله تعالی جوړ کړو بيا ئې اندامونه صحيح کړل.

دخاص صحت مندبچي صحیح سالم راوتل صفا دلیل دي دالله تعالی دقادراو دبنده دمقدور کیدو ﴿ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ﴾ [بیا] پس دعمر دختمیدونه [ئې ده لره مرګ ورکړو بیا ئې ده لره قبرته بوتلو] که داول نه ئې په خاورو کښې کیږدی یاڅه موده پس خاورې شی اوپه خاورو کښې ملاو شی ﴿ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنشَرَهُ﴾ [بیاچه کله الله تعالی وغواړی ده لره به دوباره ژوندې کړی] مطلب داچه ټول تصرفات دلیل دې دانسان په قدرت الهی کښې د داخلیدو اونعمتونه هم د الله دی چې خنې حسی اوخنې معنوی دی چه مقتضی ئې وه وجوب طاعت اوایمان مګر ﴿كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَا أَمَرَهُ﴾ ده [هرګز] شکر [ونه کړو] او[ده ته چه کوم حکم شوې وو هغه ئې په ځائې نه کړو ﴿فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ﴾ پس انسان له پکار دی چه] دخپل پیدائش په ابتدائی حالاتو دنظر کولو نه پس په اسبابو دبقا اوژوند باندنظر وکړی مثلا[خپل خوراك طرف ته وګوری ] چه هغه باعث شی دحق پیژندو او اطاعت اودایمان اوورانـد دنظر کولو طریقه ښائی هغه دا ﴿أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا﴾ [چه مونږ په عجیبه طور سره اوبه وورولې ﴿ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا﴾ بیامو عجیبه طور سره مزکې لره څیرې کړه ﴿فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ۝ وَعِنَبًا وَقَضْبًا ۝ وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ۝ وَحَدَائِقَ غُلْبًا ۝ وَفَاكِهَةً وَأَبًّا﴾ بیا مونږ په دې کښې غله اوانګور اوترکاریانې او زیتون اوکجورې او ګڼ باغونه اومیوې وابنه پیدا کړل ] بعضې څیزونه ﴿مَّتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ﴾ ستاسو او[خنې څیزونه [ ستاسو دخاروو دفائدې دپاره دی ] اودا ټول هم نعمتونه اودلیلونه دقدرت دی اوپه دې مجموعه کښې هر څیز مقتضی دې د وجوب دشکر دایمان تردې ځایه مذمت بیان شو په نصیحت نه قبلولو اووراند ئې په نصیحت نه قبلولوسزا اوپه قبلولو ثواب داخرت مذکور دې یعنی اوس خو داخلق ناشکری اوکفر کوی ﴿فَإِذَا جَاءَتِ الصَّاخَّةُ﴾ [بیا هرکله چه غوږونه کڼرونکې شور راپورته شی ] یعنی قیامت دغه وخت به دټولې ناشکرئ مزه معلومه شی وراندې ددغې ورځې بیان دې چه ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ﴾ [په کومه ورځ ]داسې [بنده] دکوم چه بیان وشو[دخپل ورورنه ﴿وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ ۝ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ﴾ اوخپلې مور نه اودخپل پلار نه اودخپلې ښځې نه اودخپلو ځامنو نه تښتی[ یعنی څوك به دچاسره همدردی نه کوی] لکه دا قول دالله تعالی دې ﴿وَلَا يَسْأَلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا﴾ (۱) وجه داده چه ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ﴾ [په دوی کښې به هر سړی ته به د هغه ورځ] خپله [داسې مشغله وی کومه چه به ده لره بل طرف ته نه متوجه کوی] داخو دکفارو حال شو وراند دټولو مؤمنانو اوکفارو تفصیل دې چه ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ﴾ [ډیر مخونه به په دغه ورځ ]دایمان په وجه[روښانه] اودخوشحالئ نه ﴿ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ﴾ [خندان خوشحاله وی ﴿وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ﴾ اوډیر مخونه به په دغه ورځ ]دکفر په وجه [تور وی] اوددغې توروالې سره به ﴿تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ﴾ [په دوی ]دغم [خړوالې خوروی ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ﴾ داخلق فاجران اوکفار دی] په کافرسره اشاره ده دعقیدې دفساد طرف ته اوپه فاجر سره فساد دعملونوطرف ته ]

### معارف او مسائل

په شان نزول کښې د کوم نابینا صحابی عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه چې کومه واقعه نقل کړې شوې ده په هغې کښې بغوی رحمه الله دا الفاظ زیات روایت کړی دی چې دغې صحابی رضی الله عنه ته دا معلوم نه وو چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم نورو سره په خبرو کښې مشغول دی ځکه ئې په ورتلو سره

(۱) ترجمه:- او یو دوست به دبل دوست تپوس نه کوی.

نبي كريم ﷺ ته بيا بيا آوازونه كول شروع كړل .[ مظهري ][۱] .

او د ابن كثير په يو روايت كښې دا هم دي چې هغوئ د نبي كريم ﷺ نه د قرآن يو آيت د لوستلو سوال اوكړو. او د سمدستي جواب وركولو دپاره ئې تادي كوله او نبي كريم ﷺ دغه وخت د مكې مكرمې دكافرانو سردارانو ته ددين په تبليغ كولو او په پوهولو كښې مصروف وو. دغه سرداران عتبه بن ربيعه ، ابو جهل ، ابن هشام او د نبي كريم ﷺ تره عباس ﷺ وو چې دغه وخت پورې مسلمان شوې نه وو[۲] ، نبي كريم ﷺ په دغه موقعه باندې د عبدالله بن ام مكتوم ﷺ دغسې خطاب كول اودآيت مبارك د الفاظو د درست كولو دپاره په معمولي سوال باندې د سمدستي جواب وركولو دپاره تادي خوښه نه شوه. لويه وجه ئې دا وه چې دغه صحابي ﷺ پوخ مسلمان او هر وخت حاضر باش وو. نورو وختونو كښې ئې هم سوال كولې شو. د جواب په روستو كيدو كښې څه ديني ويره هم نه وه. په خلاف د سردارانو د قريشو چې نه خو هغوئ هر وخت د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې راتلل او نه ورته هر وخت د الله تعالى د كلمې رسول كيدې شو. دغه وخت ئې چې د نبي كريم ﷺ خبره آوريده نو ترې دهغوی دايمان راوړلو توقع كيدې شوه او كه د هغوئ خبره پريكړې شوې وې نو د ايمان نه دمحرومه كيدو خطره ئې ښكاره وه. ددې ټولو خبرو په وجه نبي كريم ﷺ دعبدالله ابن ام مكتوم ﷺ نه مخ واړولو ، د هغوئ په رويه ئې ناخوښي ښكاره كړه او سردارانو سره ئې دديني تبليغ خبرې كول جاري اوساتل. ددغې مجلس نه په فارغيدو باندې د سورة عبس دغه آيتونه مبارك نازل شو چې په كښې د نبي كريم ﷺ دا رويه ناخوښه اوګرځولې شوه. او هدايت وركړې شو. د نبي كريم ﷺ دغه رويه پخپل اجتهاد باندې بنا وه چې كوم مسلمان د مجلس د آدابو نه خلاف خبرې اترې كول غواړي هغه ته پرې خبرداري وركول پكار دي. دپاره ددې چې په آئنده كښې هغه د مجلس د آدابو اوطريقو خيال ساتي. بله خبره دا وه چې په ښكاره دكفر او شرك حال دټولو نه لويه ګناه ده چې د هغې دلرې كولو بندوبست دټولو نه اول پكار دې اوددين د فروعي احكامو دتعليم وروسته بندوبست پكار دې. كوم چې عبدالله بن ام مكتوم ﷺ غوښتل خو الله ﷻ دهغوئ دغه اجتهاد درست او نه بللو او خبرداري ئې پرې ورته وركړو. ورته ئې اوفرمائيل چې تاسو لره په دې خبره غور كول پكار وو چې څوك دديني مسئلې سوال كوي دهغې د جواب وركولو فائده يقيني ده اوڅوك چې ستاسو ﷺ خبره آوريدل هم نه خوښوي هغه سره د خبرو كولو فائده وهمي ده څكه وهمي خبره د يقيني نه غوره ګڼړل نه دي پكار.

بل خوا الله ﷻ دغه صحابي په اعمٰی يادولو سره معذوره اوبللو او ضباط ئې كړل چې دغه وخت دمجلس نه خلاف خبره كولو باندې دغه صحابي نيول څكه نه دي پكار چې هغه ته دا پته نه وه چې څه خبرې كوئي اوچا سره ئې كوئي ، په دې بنا معذوره بنده دمجلس د آدابو نه پخلاف خبرې كولو باندې نيول نه دي پكار.

﴿عَبَسَ وَتَوَلّٰى﴾ د ﴿عَبَسَ﴾ معنی تادي تريو كول او ناخوښي ښكاره كول دي : د ﴿تَوَلّٰى﴾ معنى مخ اړول دي. دلته دخطاب دالفاظو راوړلو موقعه وه خو قرآن كريم د غائب صيغه استعمال كړه.

---

[۱] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۱۹۷] وتفسير سورة البغوی ج:۸ ص:۳۳۳

[۲] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۳۲۰]

مطلب ئې دادې چې د زورنې په موقعه د نبی کريم ﷺ عزت او لحاظ ساتل وو ولې چې دا ددې خبرې يو قسم خيال اړول وو چې ګويا دا کار نبی کريم ﷺ نه ، بلکه بل چا کړې دې ځکه چې دا د هغوئ ﷺ د شان سره مناسب نه وو. او په بله جمله کښې ئې پخپله د هغوئ ﷺ عذر ته داسې اشاره اوکړه چې

﴿وَمَا يُدْرِيكَ﴾ يعنی تاسو ته څۀ خبر دې. په دې کښې ئې اوخودل چې د مخ اړولو وجه دا وه چې تاسو په اصل حقيقت باندې خبر نه شونی چې ددې صحابی د معلوماتو حاصلولو اثر يقينی دې. او نورو سره د خبرو کولو اثر وهمي دې ، او په دې بله جمله کښې د غائب د صيغې په پريخودو او د خطاب په صيغې راوړلو کښې هم د هغوئ ﷺ عزت او زړۀ ساتل دی. ولې چې دغائب په صيغې راوړلو سره داخيال راولاړيديشو چې نبی کريم ﷺ دومره ناخوښه کار کړې دې چې ورسره الله ﷻ خطاب کول هم پريخودل.

﴿لَعَلَّهُ يَزَّكَّىٰ ۝ أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنفَعَهُ الذِّكْرَىٰ ۝﴾ يعنی تاسو ته څه معلومه ده چې دا صحابی ﷺ کومه خبره معلومول غواړي دهغې فائده يقينی وه ، چې ستاسو ﷺ په تعليم ورکولو به ئې دخپل نفس صفائی کړې وه او کمال به ئې حاصل کړې وو ، او که دا هم نه وې نو کم ناکم د الله ﷻ د ذکر نه به ئې ابتدائی نفع پورته کړې وې. او هغې سره بۀ دهغه په زړه کښې د الله ﷻ د مينې او ويرې ترقی شوې وې.

د ﴿ذِكْرَىٰ﴾ معنی ډير ذکر کول دی ، [دا شان په صحاحو کښې دی][1].

د لته قرآن کريم دوه جملې اختيار کړې. ﴿يَزَّكَّىٰ﴾ او ﴿يَذَّكَّرُ﴾ ، د مخکينئ معنی پاک او صفا کيدل دی او دبلې معنی نصيحت حاصلول او د ذکر نه اثر قبلول دی. رومبې مقام د ابرارو او اتقياؤ دې چې خپل نفس دظاهری باطنی هر قسم ګندګئ نه پاک اوصفا کړی ، او دويم مقام ددين په طريقه باندې د تلو دابتدائی حال دې چې مبتدی ته دالله ﷻ ياد ورکولې شی په کوم سر چې دالله ﷻ لونې والې او ويره د هغه په زړه کښې ځائې اونيسی. مطلب دادې چې هغوئ ﷺ ته تعليم ورکول په هيڅ حال کښې خالی نه وو. خواه کامله فائده ورته شوې وې چې د نفسم مکمله تزکيه ئی حاصله کړې وی يا ابتدائی نفع حاصله شوې وی چې د الله ﷻ ياد اولونی او ويروه د هغوئ ﷺ په زړه کښې زيات شوې وې او دواړه جملې په حرف ترديد ﴿أَوْ﴾ سره ځکه استعمال کړې شوې چې ددې دواړو ځينې يو حال بۀ ضرور حاصل شوې وې. په دې کښې اصطلاحی [مانعة الخلو] ده يعنی دا احتمال هم شته چې دواړه فوائد جمع شی چې په ابتدا کښې ﴿تذکر﴾ يعنی ياد او ورپسې تزکيه يعنی صفائی وی ، [مانعة الجمع] نه ده چې دواړه نشی جمع کيدې. [ مظهری ][2].

**د تبليغ او تعليم دپاره يو اهم او قرآنی اصول** :: په دې موقعه کښې خو دا ښکاری چې د نبی کريم ﷺ په وړاندې دوه کارونه په يو وخت راغلل ،يو مسلمان ته تعليم اودهغې تکميل او زړه ساتل،او بل د نورو غير مسلمو دهدايت دپاره هغوئی ته توجه کول. دقران کريم دې ارشاد واضح کړه چې رومبې کار په دويم کار باندې وړاندې دې د بل کار په وجه په رومبی کار کښې

[1]) مفردات االقرآن لأصفهاني، مادة ذكر: [ج:۱ ص:۱۷۹]
[2]) تفسير المظهري [ج:۱۰ص:۱۹۸]

سستی کول یا څه خلل اچول درست نه دی. دې نه معلومه شوه چې د مسلمانانو تعلیم او د دوئ داصلاح فکر په اسلام کښې د غیر مسلمو د داخلولو دفکر نه زیات مهم او وړاندې دې.
په دې کښې هغه عالمانو دپاره یو مهم هدایت دې چې د غیر مسلمو د شبهو دلرې کولو او هغوئ لره اسلام سره د عادت کولو په خاطر ځینې داسې کارونه کوی چې ورسره د عامو مسلمانانو په زړونو کښې شکونه، شبهې یا شکایتونه پیداشی، هغوئ لره ددې قرآنی هدایتونو مطابق د مسلمانانو حفاظت او د حال سمول وړاندې لرل پکار دی لکه اکبر مرحوم اوفرمائیل چې:

بے وفا سمجیں تمهیں اهل حرم اس سے بچو　　دَیروالے کج ادا کهدیں یه بدنامی بهلی

یعنی د هغې خبرې نه ځان ساته چې مسلمانان دې پرې بې وفا بولی که کافران دې خلاف اوبې رواجه بولی نو خیر دې.
په وروسته آیتونو کښې قرآن کریم دا خبره په پوره وضاحت سره بیان کړې ده چې:
﴿أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَىٰ ۝ فَأَنتَ لَهُ تَصَدَّىٰ﴾ یعنی څوک چې تاسو ﷺ او ستاسو ﷺ ددین نه بې پروائی او بې مخئ کوی تاسو خو هغوئ پسې یئ چې په څه شان مسلمانان شی حالانکه دا ستاسو په ذمه نه دی که هغوئ مسلمانان نشی نو په تاسو باندې هیڅ الزام او څوک چې په منډه دعلم دین د طلب دپاره راشی او هغه د الله ﷻ نه ویریدونکې هم وی نو تاسو ورته توجه نه کوئی په دې کښې ښه په ښکاره رسول ﷺ ته دا هدایت ورکړې شوې دې چې مسلمانانو ته په تعلیم ورکولو، د هغوئ په اصلاح او تربیت کولو ئې پوخ مسلمان او قوی مؤمن جوړول ،غیر مسلمو لره په اسلام کښې دَ داخلولو د فکر نه زیات مهم او وړاندې دې ددې فکر زیات کول پکار دی. والله اعلم. دې پسې د قرآن کریم د الله ﷻ د طرفنه تذکره او نصیحت کیدل او ددې مکرم عالی شان کیدل بیان کړی دی.
﴿فِي صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ۝ مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ﴾ دلته د ﴿صُحُفٍ﴾ نه مراد لوح محفوظ دې، دا اګر چې هم یو دې خو په صیغې د جمع ﴿صُحُفٍ﴾ سره څکه راوړې شو چې په دې کښې ټولې آسمانی صحیفې لیکلې شوی دی، یا څکه چې فرښتې خپلې صحیفې ددې نه نقل کوی. د ﴿مَّرْفُوعَةٍ﴾ نه مراد ددغې صحیفو د الله ﷻ په نزد عالیشان کیدل دی. اود ﴿مُّطَهَّرَةٍ﴾ نه مراد دې چې جنب بنده د نفاس او حیض والا ښځې او بې اودسه لره دې ته لاس ور اوړل جائز نه دی.
﴿بِأَيْدِي سَفَرَةٍ ۝ كِرَامٍ بَرَرَةٍ﴾، ﴿سَفَرَةٍ﴾ د سافر جمع هم کیدیشی چې معنی ئې لیکونکې ده، په دې صورت کښې به دې نه مراد فرښتې، کراماً کاتبین یا انبیاء ﷺ او ددوئ ﷺ وحی لیکونکی حضرات وی، د ابن عباس ﷺ او مجاهد ﷫ نه هم دا تفسیر منقول دې.
اولفظ ﴿سَفَرَةٍ﴾ د سفیر په معنی قاصد [ ریبار] جمع هم کیدیشی، په دې صورت کښې دې نه مراد د فرښتو رسولان او انبیاء کرام ﷺ او د وحی لیکونکی حضرات صحابه کرام ﷺ به وی او د امت علماء کرام هم په دې کښې داخل دی. ولې چې دوئ هم د رسول الله ﷺ او د امت ترمینځه سفیران او ریباران قاصدان دی، نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې څوک قرآن لولی او هغه په قرآت کښې هم ماهر وی نو هغه سفره کرام ابرار سره دې او څوک چې ماهر نه وی مګر په ډیرې خوارئې سره قرآت صحیح کوی هغه لره غبرګ اجر دې. [ بخاری او مسلم

روايت كړو د عائشه نه ، مظهري] [1].

دې نه معلومه شوه چې كه ماهر قاري نه وي نو هغه ته غبرگ اجر وركولې شي يو د قرآن لوستلو او بل دخوارئي كولو ، دې نه دا هم معلومه شوه چې ماهر ته به بې شميره اجر وركولې شي. [مظهري] [2].

په تيرو شوؤ آيتونو كښې د قران كريم عاليشان واجب الايمان كيدل چې بيان شو نو وروسې هغې كافر انسان باندې لعنت او دالله ﷻ د نعمت په ناشكرئي باندې خبردارې وركول دي. د الله ﷻ د طرفنه قرآن كريم يو لوئې نعمت كيدل يو معنوي شئ دې. چې د علم او پوهې خاوندان پرې پوهيدې شي. وروسې د الله ﷻ د هغې انعامونو بيان دې چې د انسان دپيداكيدونه تر آخره پورې په انسان باندې كولې شي ،دا مادي او محسوس شئ دې. چې د معمولي شعور والا انسان پرې هم پوهيږي ، په دې سلسله كښې د انساني پيدائش داسې فرمائي چې:

﴿مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ ۝ مِنْ نُطْفَةٍ﴾ اول خو دې كښې يو سوال اوكړې شو چې ائې انسانه ته غور كوه چې الله ﷻ د څه شئ نه پيدا كړې ئې ، او هر كله چې ددې جواب تاكلې شوې دې ځكه بيا هم پخپله فرمائي چې: ﴿مِنْ نُطْفَةٍ﴾ يعني انسان ئې ديوې نطفې نه پيدا كړو ، بيا فرمائي چې: ﴿خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ۝﴾ يعني يواځې دا نه چې نطفې نه ئې د يو سا دار وجود جوړ كړو بلكه دائې په يو خاص انداز اولوئې حكمت سره جوړ كړو ، ددۀ قد ، قامت ، بدن ، شكل ، صورت ، د اندامونو اوږدوالې ، پلنوالې ، جوړونه ، بندونه ، سترگې ، پوزه او غوږونه ئې په داسې انداز جوړ كړل چې په معمولي خلاف كيدو ئې د انسان صورت ورانيږي او كار روزگار كول ددۀ دپاره مصيبت جوړيږي.

او د ﴿فَقَدَّرَهُ﴾ لفظ دلته دا مراد هم كيديشي چې كله انسان د مور په خيټه كښې وي نو دغه وخت الله ﷻ ددۀ د څلورو شيانو اندازه ليكي هغه دا چې ① دې به څۀ څه اوځنگه ځنگه عملونه كوي ، ② عمر بۀ ئې څومره وي ،③ روزي به څومره وركولې شي ، ④ په انجام كښې به دې نيک بخت وي كه بد بخت ؟! بخاري و مسلم په روايت د ا بن مسعود ﷺ] [3].

﴿ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ۝﴾ يعني الله ﷻ په خپل حكمت بالغه سره د انسان پيدا كول د مور خيټه كښې په داسې شان كوي چې هلته درې تيرې وي او مقام محفوظ وي. د چا په خيټه كښې چې دا كيږي هغې ته هم ددې د تفصيل پته نه وي. بيا دا روغ جوړ په تول څلور پنځه پونډه ماشوم په داسې تنگه لار باندې دنيا ته بهر راوځي چې نه هغه ته او نه ئې څيرونكي ته څه خاص نقصان وي. ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ۝﴾.

---

[1]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:١٩٩ ، ٢٠٠] و صحيح البخاري كتاب التفسير ، سورة عبس [ج:٢ص:٧٣٥] و صحيح مسلم كتاب فضائل القرآن، باب فضيلة حافظ القرآن [ج:١ص:٢٦٩]

[2]) تفسير المظهري[ج:١٠ص: ٢٠٠]

[3]) صحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب ذكر الملائكة [ج:١ص:٤٥٦] و صحيح مسلم كتاب القدر، باب كيفية خلق الآدمي في بطن امه ..... إلخ [ج:٢ص:٣٣٢]

﴿ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ﴾ د انسانی پیدائش د ابتدا بیانولو نه پس فرمائی چې انتهاء ئې په مرګ او قبر ده. ددې بیان ئې د انعاماتو په سلسله کښې فرمائیلې دې. دې نه معلومه شوه چې د انسان مرګ په حقیقت کښې څه مصیبت نه بلکه نعمت دې. لکه په یو حدیث پاک کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې [ تحفة المؤمن الموت ][1] یعنی د مومن ډالۍ دهغه مرګ دې. دجهان د مجموعې په اعتبار سره دې کښې لوئې حکمتونه دی. ﴿فَأَقْبَرَهُ﴾ بیا ئې په قبر کښې داخل کړو. دا هم یو انعام دې چې الله ﷻ انسان لره د عامو ځناورو په شان اونه ګرځولو چې مړ شی نو ګنی په زمکه دې ئې همداسې اوغورځوی چې مردار خواره مرغان او سپی وغیره همداسې اوخوری اوبو یو نه ترې راولاړ یږی. او خلق ترې کرکه کوی. بلکه په ډیر عزت سره ورته غسل ورکړې شی ، په صفا جامو کښې کفن کړې په عزت سره قبر کښې ښخ کړې شی.

مسئله :: دې آیت مبارک نه معلومه شوه چې مړ شوی انسان لره ښخول واجب دی.

﴿كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَا أَمَرَهُ﴾ په دې کښې د انسانی پیدائش ابتداء انتهاء او په دې کښې د الله ﷻ کامل قدرت او انعامات بیانولو نه پس ، منکرو انسانانو ته خبرداری ورکړې شو چې ددې الهی نښو او انعاماتو تقاضا داوه چې انسان پرې غور کولو سره په الله ﷻ ایمان راوړې وې، او د الله ﷻ په حکمونو باندې ئې عمل کولې. خو دې بدقسمته داسې اونه کړل ، وروسې بیا دهغې الهی انعاماتو بیان دې چې د انسانی پیدائش او مرګ په مینځ کښې په انسان کولې شی. یعنی د انسان روزی څنګه پیدا کولې شی ، چې آسمان نه اوبه، راوریږی. په زمکه کښې ښخې دانه کښې دغه اوبه ژوند پیدا کوی. په هغې سره یو کمزورې اونرې تیغ د زمکې په ځیری کیدو سره پورته راخیژی اوبیا ددې نه قسما قسم غلې ، میوې ، او باغونه موجودیږی. دا ټول انعامات بیا بیا انسان ته په وریادولو سره بیا په آخر دسورت کښې د قیامت بیان دې ، فرمائی چې:

﴿فَإِذَا جَاءَتِ الصَّاخَّةُ﴾، ﴿صَاخَّةُ﴾ داسې شور اوسخت آواز ته وئیلې شی چې انسان غوږونه ورسره کڼریږی دې نه مراد د قیامت شور یعنی شپیلۍ پوک وهل دی.

﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ﴾ دا دهغې وخت بیان دې چې په قیامت کښې به ټول خلق جمع کیږی. هر څوک به خپل خپل فکر کښې په نفسی نفسی ګویان وی، په دنیا کښې داسې خپلوان چې خپل مینځ کښې به یو بل باندې ځان قربانوی، هغوئ به په دغه ورځ دیوبل خبراخستل نشی کولې، بلکه د هغوئ په رامخامخ کیدو به ترې تښتی، انسان به خپل رونړه ، مور نه ، پلار نه، ښځې او اولاد نه پټ مخ منډې وهی ، په دنیا کښې اول خپل رونړه یوبل سره لاس امداد کوی. ددې نه زیات د مور پلار د لاس امداد فکر وی ، په طبعی ډول ددې نه هم زیات ئې خپلې ښځې سره تعلق وی ، په دې شان د کم تعلق نه اوچت تعلق ته تلل په ترتیب سره بیان کړې شوې دې. په دې میدان حشر کښې د مؤمنانو او کافرانو د انجام په بیانولو سره سورت ختم شو.

---

[1] المستدرك للحاكم كتاب الرقاق رقم الحديث:[۸۰۱٤]

| آیاتونه | سورة التكوير مكية وهي تسع وعشرون آية وركوعا واحدا | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۹ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱ |

اِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝ وَاِذَا النُّجُوْمُ انْكَدَرَتْ ۝ وَاِذَا الْجِبَالُ

کله چې نمر | اونغښتې شي | او کله چې ستورې | بې نوره او خواره واره کړې شي | او کله چې غرونه

څه وخت چې نمر راونغښتې شي | او څه وخت چې ستورې بې نوره شي | او څه وخت چې غرونه

سُيِّرَتْ ۝ وَاِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ۝

روان کړې شي | او کله چې دلسو مياشتو بلاربې اوښې | په خانې پرېښودې شي |

روان کړې شي | او لس مياشتينى بلاربې [اوښې] هيرې کړې شي

وَاِذَا الْوُحُوْشُ حُشِرَتْ ۝ وَاِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ۝ وَاِذَا النُّفُوْسُ

او کله چې ځنګلي ځناور راجمع کړې شي | او کله چې دریابونه | لمبه کړې شي | او کله چې روحونه

او څه وخت چې ځنګلي ځناور راجمع کړې شي | او څه وخت چې دریابونه اور شي | او څه وخت چې روحونه

زُوِّجَتْ ۝ وَاِذَا الْمَوْءٗدَةُ سُئِلَتْ ۝

يو ځاني کړې شي [دبدنونو سره] | او کله چې ژوندۍ ښخې شوې جينۍ | اوپوښتلې شي |

[دبدنونو سره] جوړې کړې شي | او څه وخت چې د ژوندۍ ښخې کړې شوو جينکونه تپوس اوشي

بِاَيِّ ذَنْۢبٍ قُتِلَتْ ۝ وَاِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ ۝ وَاِذَا السَّمَآءُ

چې په کومه ګناه سره | وژلې شوې وه هغه | او کله چې عملنامې | خورې کړې شي | او کله چې آسمان

چې په کومې ګناه وژلې شوې دی | او څه وخت چې عملنامې پرانستلې شي | او څه وخت چې آسمانونونه

كُشِطَتْ ۝ وَاِذَا الْجَحِيْمُ سُعِّرَتْ ۝ وَاِذَا الْجَنَّةُ اُزْلِفَتْ ۝

| بې پردې کړې شي | او کله چې دوزخ | لمبې کړې شي | او کله چې جنت | رانزدې کړې شي |

پوستکې اوويستلې شي | او هر کله چې دوزخ لمبه کړې شي | او څه وخت چې جنت رانزدې کړې شي

عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّآ اَحْضَرَتْ ۝ فَلَآ اُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ۝

معلوم به شي | هر انسان ته | هغه چې حاضر کړې وی هغه | نو نه | زه قسم خورم | په واپس کيدونکو

نو هر يو نفس ته به عمل معلوم شي | ............ نو زه قسم خورم په راتاويدونکو

الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ۝ وَالَّيْلِ اِذَا عَسْعَسَ ۝ وَالصُّبْحِ

سيده تلونکو | پټيدونکو روسترو کيدونکو باندې | او په شپه باندې | کله چې واپس راشي | او په صبا باندې

ګرځيدونکو او پټيدونکو ستورو | ......... او په شپه څه وخت چې را خوره شي | او په وخت د صبا

إِذَا تَنَفَّسَ ﴿١٨﴾ إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿١٩﴾
كله چې ساه واخلي | بیشکه دا قرآن | خامخا خبره ده | دپیغام وړونکی عزتمند [جبریل علیه السلام] |
چې کله راوخیژي | چې بیشکه دا [قرآن] دیوې عزتمندې فرښتې په ژبه راليږلې شوې دی |

ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿٢٠﴾ مُّطَاعٍ ثَمَّ
چې خاوند دقوت دي | دعرش والا په نیز | دغتې مرتبې خاوند دی | حکم ئې منلې کیږي | هلته
چې ډیر مضبوط دعرش خاوند [ الله جل جلاله ] سره دلوئې مرتبې خاونده ده |...............خبره ئې هلته

أَمِينٍ ﴿٢١﴾ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ رَآهُ
امانتدار دی | اونه دی ملګرې ستاسو | لیونی | اوبیشکه لیدلې ئې دی هغه |
منلې شي | او امانت ګر دی | اوستاسو ملګرې [محمد صلی الله علیه وسلم] لیونې نه دی | اوده هغه [جبریل علیه السلام]

بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ﴿٢٣﴾ وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ ﴿٢٤﴾ وَمَا هُوَ
په لمن د آسمان روښانه باند | اونه دی هغه | په رسولو دغیبو دعلم کښې ابخیل | اونه دی دا قرآن |
د آسمان غاړې سره لیدلې هم دی | اودا پیغمبر د غیبو خبرو په خودلو کښې بخیل نه دی | اودا کلام

بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ﴿٢٥﴾ فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ ﴿٢٦﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ
قول [وینا] | دشیطان رټلی شوی | نو کوم خوا روان یئ تاسو | نه دی دا | مګر | یو نصیحت |
درټلې شوی شیطان کلام نه دی | نو تاسو بل کوم اړخ ته روان یئ | دا [کتاب] خو بس ټول مخلوق

لِّلْعَالَمِينَ ﴿٢٧﴾ لِمَن شَاءَ مِنكُمْ أَن يَسْتَقِيمَ ﴿٢٨﴾
دپاره دخلقو | دپاره دهغه چاچې غواړي | ستاسو نه | چې په نیغه لار لاړ شي |
ته یو نصیحت دی | د هغه چا دپاره چې څوک په تاسو کښې په نیغه لار تلل غواړي

وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٢٩﴾
اونه کیږي هغه چې غواړئ تاسو | مګر کیږي هغه | چې غواړي الله چه رب د مخلوقاتو دی |
اوتاسو هغه څه غوښتلې شئ چې الله جل جلاله ئې اوغواړي | چې د ټول مخلوق رب دی

## آسان ترجمه قرآن

چه کله نمر راولغختلې شی او چه کله ستوري مات شي او راوغورزیږي. او چه کله غرونه روان کړې شي. او چه کله د لسو میاشتو بلاربې اوښې هم بے کاره پریخودلې شي او چه کله وحشي څناور راجمع کړې شي او چه کله سمندرونه لمبه کړې شي او کله چه د خلقو جوړې جوړې جوړې کړې شي او کومه ماشومه چه ژوندۍ په زمکه کښې خخه کړې شوې وه، د هغې نه تپوس اوکړې شي، چه هغه په څه جرم کښې وژلې شوې ده؟ او چه کله اعمال نامې پرانستلې شي. او چه کله د آسمان نه پوستکې اوویستلې شي. او چه کله دوزخ بل [غرغنده] کړې شي. او چه کله جنت نزدې کړې شي. نو هغه وخت به هر سړی ته خپل هغه عمل چه ده کړې وی، معلوم شي. اوس زه قسم خورم په هغې ستورو باندې، چه شا طرف ته واپس کیدونکې دی. چه په تلو تلو کښې پټیدونکې دی او قسم خورم په شپه باندې چه کله هغه تیره شي. او

په سحر باندې چه کله هغه ساه واخلي چه دا (قرآن) یقیناً د یوې عزت مندې فرښتې راوړلې شوې کلام دې چه قوت والا دې، او د عرش والا سره د هغه مرتبه ډیره اوچته ده. هلته د هغه خبره منلې کیږي او هغه امانت دار دې. او (اے مکې والو) تاسو سره اوسیدونکې دا صاحب (یعنی حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم)) څه لیونې نه دې. او دا بالکل رشتونې خبره ده. چه هغه دغه فرښته په ښکاره افق باندې لیدلې ده او نه دې هغه د غیبو خبرو بیانولو باندې بخل کونکې او نه دا (قرآن) د یَو مردود شیطان (جوړه کړې شوې) وینا ده. نو بیا هم چرته ځئ تاسو؟ دا خو د ټولې دنیا د خلقو دپاره یو نصیحت دې په تاسو کښې د هر هغه سړي دپاره چه برابر روانیدل غواړی. او نه شئ غوختلې تاسو. مګر دا چه الله تعالی اوغواړی، چه د ټولو جهانونو پروردګار دې.

## خلاصه تفسیر

﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾ [هر کله چه نمر بې نوره شی ﴿وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ﴾ او کله چه ستوری مات شی او غورزیږی ﴿وَإِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ﴾ او کله چه غرونه روان کړې شی ﴿وَإِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ﴾ او کله چه دلسو میاشتو بلاربې اوښې ازادې پریښودې شی ﴿وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ﴾ او هر کله چه وحشی ځناور] دویرې نه [ټول جمع شی ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ﴾ او هر کله چه دریابونه بل کړې شی ] دا شپږ واقعات خو به داولې شپیلۍ په وخت کښې وی کله چه دنیا اباده وی او په دې شپیلۍ سره به داتغیرات اوتبدیلۍ واقع شی او دغه وخت به اوښې هم په خپل خپل حالت باندې وی په کومو کښې چه به خنې لنګواله ته نزدې وی کوم چه دعربو په نزد دټولونه قیمتی مال دې هر وقت ئې ساتنه کولې شی مګر دغه وخت به په هله ګڼړه ګوډه کښې چاته هوش نۀ وی او وحشی ځناور به هم دویرې نه ټول په یو بل کښې ګډوډ شی او په دریابونو کښې به اول جوش راشی او په زمکه کښې به چاودونه واقع شی په کومو سره چه به ټول خواږه تروۀ دریابونه یوشی چه ذکر ئې په راتلونکی سورة کښې په ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ﴾ کښې فرمائیلې شوې دې بیا په شدت حرارت سره به ټولې اوبۀ اورشی شاید اول به هوا شی بیا به هوا اور جوړشی ددې نه پس به عالم فنا شی [او] ددې شپږو واقعاتو نه پس به دویمه شپیلۍ وی دکومې بیان چه دادې چه ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾[هر کله دیویو قسم خلق جمع کړې شی] کافران جدا مسلمانان جدا بیا په دوی کښې دیوې یوې طریقې والا جدا جدا ﴿وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ﴾[او کله چه دژوندۍ ښخې شوې جینۍ نه تپوس وشی ﴿بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ﴾ چه هغه په څۀ ګناه کښې قتل کړې شوې وه ] مقصود ددې تپوس نه دزنده درګور کونکوظالمانو اظهار دجرم دې ﴿وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ﴾[او هر کله چه عملنامې خلاصې کړلې شی ]چه ټول خپل خپل عملونه ووینی: لکه داقول دالله تعالی ،یلقاه منشورا([1]) ﴿وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ﴾[او هر کله چه اسمان کولاو کړې شی ] او ددۀ په کولاویدو سره به داسمان دپاسه څیزونه په نظر راشی او دارنګ د دۀ په کلاویدو سره به دوریځې نزول وشی لکه چه ذکر په نورلسمه[۱۹] پاره وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ ،ایت ﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ﴾ الخ([2]) کښې راغلې دې ﴿وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ﴾[او کله چه دوزخ ]نور زیات [ګرم کړې شی ﴿وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ﴾

[1]) ترجمه:- او دوئ چې هغه له کهولاؤ ا ووینی.
[2]) ترجمه:- او په هغه ورځ چې آسمان اوچوی | په وریځې سره.

اوکله چه جنت نزدې کړې شي] لکه په سورت ق ﴿وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾ کښې دی هرکله داټول واقعات دنفخ اولی اونفخ ثانیه واقع شی نودغه وخت ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ﴾ [هرسړې به هغه عملونو لره وپيژنی کوم چه ئې راوړی دی] اوهرکله چه داسې هيبتناکه واقعه کيدونکې ده] [نو] [زۀ منکرانو ته ددې حقيقت ښايم اوتصديق کوونکو لره ددې دپاره تياروم اوداوړه امرونه دقرآن په تصديق اوپه عمل کولوسره حاصليږی چه په دې کښې ددې داثبات اونجات طريقه ده په دې وجه ﴿فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ﴾ [زۀ قسم خورم په هغو ستورو ﴿الْجَوَارِ الْكُنَّسِ﴾ کوم چه]نيغ روان وی [په شا واپس شی ] اوبياپه شا باندې [روان وی] اوکله په شاخی په خپلو مطلعونو کښې[پټ شی ] داسې کار پنځو ستورو ته راپيښيږی چه کله نيغ ځی کله په شاځی او دوی ته خمسه متحيره وائی زحل ،مشتری ،عطارد، مريخ ،زهره ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ﴾ [اوقسم دې په شپه کله چه روانه شی ﴿وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ﴾ اوقسم دې په سحر کله چه هغه راشی] وړاند جواب دقسم دې ﴿إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ﴾ [چه داقرآن ] دالله تعالی کلام دې ديوې معززې فريښتې ]يعنی جبرائيل ﷺ [راوړې شوې دی ﴿ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ﴾ کوم چه قوت والادې ] لکه چه په نجم کښې دی ﴿عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ﴾ او [دعرش دمالك په نزد خاوند دمرتبې دې] ﴿مُّطَاعٍ ثَمَّ أَمِينٍ﴾ او[هلته ] يعنی په اسمانونو کښې [ددۀ خبره منلې شی ] يعنی فريښتې ددۀ خبره منی لکه چه دمعراج دحديث نه هم معلوميږی چه ددۀ په وينا سره فريښتو داسمانونو دروازې خلاصې کړی او[امانت دار دې ] چه وحی لره صحيح رسوی پس وحی راوړونکې خوداسې دې [او] وړاند په چا چه وحی نازليږی دهغۀ په نسبت ارشاد دې چه ﴿وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ﴾ [داتاسوسره وسيدونکې ] محمد ﷺ دکوم حال چه په ښۀ شان سره تاسو ته معلوم دې [مجنون نۀ دې ]لکه چه دنبوت منکرانو به ونيل ﴿وَلَقَدْ رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ﴾ [اوددوی دې فريښتې لره ] په اصلی صورت کښې داسمان [په صفا کناره ليدلې ده ] دصفا کنارې نه مراد اوچته کناره ده چه صفا په نظر راځی لکه چه په نجم کښې دی ﴿وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ﴾ اوددې مفصل بيان په سورة نجم کښې تير شوې دی ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ﴾ او دا پيغمبر په پټو[دوحی په خودلې شوو] خبرو باند بخل کوونکی هم نۀ دې [لکه چه دکاهنانو عادت وو چه قيمت به ئې اخستو څۀ خبره به ئې ښودله په دې سره دکهانت هم نفی وشوه اوددې هم چه دوی په خپل څۀ کار دچانه معاوضه واخلې ﴿وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ﴾ [اودا قرآن دچاشيطان مردود ونيلې شوې خبره نۀ ده ]په دې سره دکهانت دنفی نور تاکيد وشو مطلب داچه نۀ دې کاهن دی نۀ مجنون نۀ صاحب غرض اووحی راوړونکی لره پيژنی هم اووحی راوړونکې داسې دې پس لامحاله داد الله تعالی کلام دې اوتۀ دالله تعالی رسول يئ اوداقسمونه دمطلوب دمقام سره نهايت مناسب دی چنانچه دستورو نيغ تلل واپس کيدل او پټيدل مشابه دی دفريښتې د راتلو واپس تلواوپه عالم ملکوت کښې دورپټيدو سره اودشپې تيريدل اودسحر راتلل مشابه دی دقرآن سره چه سبب دظلمت دکفر درفع کيدو اودنور هدايت دظاهريدودې هرکله چه دا خبره ثابته ده ﴿فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ﴾ [نو تاسو خلق ]په دې باره [کښې کوم خواته روان يئ؟] چه دنبوت نه منکريږی ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ﴾ [بس داخو ] بالعموم [دټول جهان دمخلوق دپاره يو دلويه نصيحت نامه ده ] اوبالخصوص ﴿لِمَن شَاءَ مِنكُمْ أَن يَسْتَقِيمَ﴾ [دداسې سړی دپاره کوم

چه په تاسو کښې نيغ تلل غواړي ] دعامو خلقو دپاره هدايت په دې معنى سره دې چه دوى ته ئې نيغه لار وښوده اومؤمنانو متقيانو دپاره په دې معنى سره چه دوى ئې منزل مقصود ته ورسول [او] دخنو په نصيحت نه قبلولو سره ددې په نصيحت نامه کيدو کښې شك شبه نه شى کولې خکه چه ﴿وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ [تاسو بغير درب العلمين درضا نه هيڅ نه شئ کولې ] يعنى فى نفسه خو نصيحت دې ليکن تاثير ددې موقوف دې په مشيت باند کوم چه دخنو سره متعلق کيږي اودخنو سره په څه حکمت باند نه متعلق کيږي ]

## معارف او مسائل

﴿إِذَا ٱلشَّمۡسُ كُوِّرَتۡ﴾ دتکوير نه مشتق دې ، ددې معنى بې نوره کيدل هم راځى . دحسن بصرى رحمه الله هم دا تفسير دې اوددې معنى اچول اوغورځول هم راځى . ربيع بن خيثم ددې تفسير هم دا کړې دې چې سمندر کښې به نمر واچولې شى چې دهغې دګرمئ په وجه به ټول سمندراور جوړ شى او ددې دواړو ترمينځه څه بې سمونى نشته . کيدې شى چې اول به نمر بې نوره کړې شى، بيا به په سمندر کښې واچولې شى . په صحيح بخارى کښې د ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دې چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چې د قيامت په ورځ به نمر سپوږمئ په درياب کښې واچولې شى[1]، او په مسند بزار کښې دې سره دا هم دى چې به جهنم کښې به اچولې شى[2] . ابن ابى حاتم ، ابن ابى الدنيا او ابوالشيخ ددې آيتونو متعلق دا نقل کړى دى چې الله عز وجل به دقيامت په ورځ نمر ، سپوږمئ او ټول ستورى په سمندر کښې واچوى او بيا به پرې تيزه هوا چليږى ، هغې سره به ټول سمندر اور شى[3] . دغسې دا وئيل هم صحيح شو چې نمر ، سپوږمئ به په درياب کښې واچولې شى . او دا وئيل هم درست پاتې شو چې په جهنم کښې به اچولې شى خکه چې ټول سمندر به دغه وخت جهنم جوړ شى . [ مظهرى او قرطبى نه راواخستې شو][4].

﴿وَإِذَا ٱلنُّجُومُ ٱنكَدَرَتۡ﴾ د انکدار نه مشتق دې . ددې معنى پريوتل او راغورځيدل دى ، د پخوانو بزرګانو نه هم دا تفسير منقول دى او مراد دادې چې د آسمان ټول ستورى به په سمندر کښې پريوځى لکه چې په تيرو شوؤ روايتونو کښې ددې تفصيل راغلې دې .

﴿وَإِذَا ٱلۡعِشَارُ عُطِّلَتۡ﴾ دائې دعربو د عادت مطابق د مثال په طريقه فرمائيلى دى خکه چې ددې ړومبى مخاطبين د عربو خلق وو دهغوئ په نزد دلسو مياشتو بلاربه اوښه به لوئې دولت ګڼلې شو دهغې پيئو اوبچى ته به انتظار کيديشو ، هغوئ به ددې لکئ پسې ګرځيدل هيڅ وخت به ئې خوشې نه پريخودو .

﴿وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ سُجِّرَتۡ﴾ سُجِّرت د تسجير نه مشتق دې . ددې معنى اور لګول او تيزول هم دى . ابن عباس رضي الله عنهما ئې دلته هم دا معنى اخستې ده . او ددې معنى ډکول هم راځى ، او ګډوډ کول هم . نو د تفسير ځينې امامانو هم دا معنى اخستې ده . اوحقيقت دادې چې په دې کښې څه اختلاف نشته . اول به سمندر او خواړه دريابونو سره يوځائې کړې شى ددې ترمينځه

[1] صحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب صفة الشمس والقمر بحسبان [ج:١ص:٤٥٤]
[2] مسند البزار مسند انس بن مالك رضي الله عنه رقم الحديث [٨٦٩٦]
[3] تفسير ابن ابي حاتم تفسير سورة التكوير رقم الحديث:[١٩١٥٧]
[4] تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٠٤] و تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٩ص:٢٢٧]

بند یزونه به ختم کړې شي چې دې سره به خواړه او ترخه دریابونه یو ځائې شي او زیات به هم شي. بیا به په کښې نمر، سپوږمۍ او ستوري واچولې شي. بیا به دغه ټولې اوبه اور جوړې کړې شي. چې په جهنم کښې به شامل شي. [مظهری] (۱).

﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ یعنی کله چې د محشر حاضرین جوړې جوړې او ډلې جوړې کړیشی او دا ډلې به د ایمان او عمل په اعتبار سره وی، کافران به یو ځائې او مؤمنان به بل ځائې، بیا په کافرانو او مؤمنانو کښې هم د عادتونو او عملونو فرق وی په دغې اعتبار سره به مسلمانانو او کافرانو کښې هم ډلې ډلې جوړې شي. لکه چې د بیهقی په روایت د نعمان بن بشیر ﷺ د عمر فاروق ﷺ نه روایت کړې دې چې کوم خلق به یو قسم عملونه کوی هغوئ به یو ځائې کړیشی. نیک عملونه وی او که بد (۲)، مثلاً په ښه مسلمانانو کښې به دعلم دین خدمت کوونکی عالمان یو ځائې او عابدان زاهدان بل ځائې جهاد کوونکی غازیان به یو ځائې په صدقه او خیرات کښې خصوصیت لرونکی بل ځائې، نور په خاص خاص ګناهونو کښې شریکیدونکی به یو ځائې وی، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په محشر کښې به هر څوک خپل قوم سره وی. نیک عمله خلق به یو ځائې او بد عمله خلق به بل ځائې وی، په دې باندې دلیل دا آیت مبارک دې چې: ﴿وَكُنتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً﴾ (۳) یعنی په محشر کښې به دخلقو لوئې لوئې ډلې درې وی. لکه په سورة واقعه کښې ددې تفصیل دا راغلې دې چې یوه ډله به د سابقین اولین وی، بله ډله به د اصحاب الیمین، دا دواړه ډلې به خلاصې موندونکې وی. دریمه ډله به د اصحاب الشمال وی چې د کافرانو فاجرانو ډله به وی.

﴿وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ﴾ کله به چې ژوندئی ښخې شوې جینکو نه تپوس اوکړې شي. د عربو جاهلیت کښې دا دستور وو چې خپلې ژوندئی لونړه به ئې دشرم په وجه ژوندئی ښخولې. اسلام دغه خراب دستور ختم کړو، ظاهری الفاظو نه دا معلومیږی چې دا تپوس به پخپله هم دغې جنیئ نه کولې شي، ددې نه د تپوس کولو مطلب به دا وی چې دغه جینئ دخپلې بې ګناهئ او مظلومیت پوره فریاد د الله ﷻ رب العزت په دربار کښې پیش کړی چې د هغې د قاتلانو نه بدله واخستې شي. اودا هم کیدیشی چې ددغې جینئ په باره کښې به د هغې د قاتلانو نه تپوس کولې شي چې تاسو دا جینئ په کوم جرم کښې وژلې وه.

**یوه مهمه فائده ::** دلته بهرحال داسوال پیدا کیږی چې هرکله د قیامت نوم یوم الحساب یوم الجزاء او یوم الدین دې، هر چانه به دهغه د ټولو عملونو تپوس کیږی. نود احوالو او سختو د قیامت په سلسله کښې په خصوصیت سره دژوندئی ښخې کړې شوې جینئ باره کښې د تپوس کولو څهٔ خصوصیت او حکمت دې؟

چې غور اوکړې شی نو جواب ئې دا معلومیږی چې هرکله دا پخپله خپل مورپلار وژلې ده نو مدعی بهٔ ئې څوک وی نه، خصوصا چې دا په پټه ښخه کړې شوې وی نو ګواه به ئې څوک نه وی، نو په میدان حشر کښې د عدل او انصاف الهی عدالت دا غوښتنه ده چې دهغې

---

(۱) تفسیر المظهری[ج:۱۰ص:۲۰۵]
(۲) مصنف ابن ابی شیبة رقم الحدیث:[۳۴۹۲] و المستدرك للحاكم رقم الحدیث:[۳۹۲]
(۳) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۵ ص:۳۲۵]و تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:۱۹ص:۲۳۱]

ظلمونو حساب کتاب دې هم اوشي چې دهغې دمدعی اوګواه وغیره هم پته نه وي. والله اعلم

**څلور میاشتې پس حمل غورځول د قتل په حکم کښې دې ::**

**مسئله نمبر①** د ماشومانو ژوندی ښخول یا وژل سخته لویه ګناه ده. او لوئې ظلم دې. او څلور میاشتې پس حمل غورځول هم په دې حکم کښې دی چې دغه وخت په کښې روح او ساه راشي او هغه د ژوندي انسان په حکم کښې شي. دا شان څوک چې حامله ښځه په خیټه اووهی اوترې هغه بچې اوغورزوی نو د امت په اجماع سره په وهونکې باندې دهغې په دیت کښې غره یعنی یو غلام یادهغې قیمت واجبیږی. او دژوندې پیدا کیدو نه پس هغه مړ شو نو د لوئې بنده پوره پوره دیت ئې واجبیږی. د څلورو میاشتو نه وړاندې هم حمل غورځول حرام دی. کله چې څۀ مجبوری نه وی البته د ړومبی صورت په نسبت بۀ دا کم نا کم وی ځکه چې دې کښې د ژوندی انسان قتل په ښکاره نه دی. [مظهری](۱).

**مسئله نمبر②**: څه داسې صورت اختیارول په کوم سره چه حمل قرار وانخلی لکه نن صبا چې په دنیا کښې د ضبط تولید په نوم ددې په سونو صورتونه رائج شوې دی. دې ته هم رسول الله ﷺ وأدخفی فرمائیلی دی یعنی په پټه ژوندې بچې خښول [کما رواه مسلم عن حذامة بنت وهب](۲) او ځینې نورو روایتونو کښې د عزل یعنی داسې تدبیر کول چه نطفه رحم ته لاړه نه شی، په دې باندې د نبی کریم ﷺ د طرف نه سکوت یعنی خاموشي یاعدم ممانعت نقل دی خو هغه د ضرورت مواقع سره مخصوص دی. هغه هم داسې چه د همیشه دپاره د قطع نسل صورت جوړنه شی. [مظهری] نن صبا د ضبط تولید په نوم سره چې کومې دوایانې یا علاجونه کیږی په هغې کښې بعض داسې هم دی چه د همیشه دپاره د اولاد اونسل سلسله بنده شی ددې په یو حال کښې هم شریعت اجازت نه ورکوی(۳). والله اعلم

﴿وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ﴾ کشط په لغت کښې د څاروی پوستکې ویستل دی. په ظاهره دا حال د قیامت په ورځ د اول خل پوک وهلو دوخت دې چې هم په دې دنیا کښې به راپیښیږی، چې هغه نمر، سپوږمۍ او ستوری به ټول بې نوره کړې شی اوپه دریاب کښې به اوغورزولې شی. په کومو سره چې آسمان ښائسته وو د آسمان موجوده شکل بۀ بدل کړې شی، دې ته ئې کشط اوفرمائیلو او ځینو مفسرینو حضراتو د کشط معنی رانغښتل کړې ده په دې بنا د آیت معنی به دا شی چې آسمان بۀ راؤنغښتې شی کوم چې اوس لکه دچت پورته ولاړ دې.

﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ﴾ یعنی کله چې به دقیامت دغه بیان کړی حالت راپیښ شی، دغه وخت به هر انسان پوهه شی چې هغه خپل ځان سره څه سامان راوړې وې؟ د سامان نه مراد نیک یا بد عمل دې چې دا ټول به دهغه مخې ته راشي. ددې یو صورت دا هم کیدیشی چې اعمال لیکلې شوې په صحیفو کښې به لاس کښې ورکړې شی. یا به په داسې شان چې د اعمالوپه خاص شکل او صورت کښې به دهغه مخې ته راشی لکه چې د حدیث پاک د ځینې روایتونو نه معلومیږی. والله اعلم.

---

(۱) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۲۰۶]

(۲) صحیح مسلم کتاب النکاح، باب جواز الغیلة وهي وطي المرضع وکراهة العزل [ج:۱ص:٤٦٦]

(۳) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۲۰۶]

دقیامت دحالاتو او هیبتناکو ننداړو او دعملونو دحساب، کتاب بیان کولو نه پس الله ﷻ دځو ستورو په قسمونو خوړلو سره اوفرمائیل چې داقرآن پاک حق دې چې د الله ﷻ د طرفنه په لوئې حفاظت سره لیږلې شوېدې، او په کوم ذات چې دا نازل شوې دې هغه لويه هستي ده، وحي راوړونکې فرښته نبی کریم ﷺ داول نه پیژندله. ځکه ددې په حق کیدو کښې ورته هیڅ شک شبه نشي کیدې. دلته په پنځو هغه ستورو قسم خوړلې شوې دې چې په علم هیئت او فلکیاتو کښې خمسه متحیره نومیږی. او متحیره ورته ځکه وئیلې شي چې ددې پنځو ستورو حرکت په دنیا کښې داسې لیدې شي چې کله د مشرق نه مغرب ته روان وی او کله د مغرب نه مشرق ته روان وی. ددې مختلفو حرکتونو باره کښې د یونانیانو زړو فلسفیانو مختلف اقوال دی او د نوی فلسفیانو تحقیق په دې کښې د ځینې مطابق دې او دځینې خلاف دې. خو د حقیقت علم سوا د پیداکونکی نه بل هیچا ته نشته دې. د فلسفیانودا ټولې اندازې او تخمینې دی چې غلطی کیدیشی او صحیح هم. دې امت لره قرآن پاک په دې بې فائده بحثونو کښې نه دی اخته کړی، په څومره کښې چې ددوئ فائده کیدیشوه هومره ئې ورته اوخودله چې دوئ د الله ﷻ کامل قدرت اوبالغ حکمت په دې کښې اوګوری او ایمان دې راوړی.

﴿إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ۝ ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ۝﴾ په ستورو باندې دقسم خوړلو نه پس ئې اوفرمائیل چې دا قرآن پاک قول دې درسول کریم وړیسې ئې ددغې رسول یو صفت دابیان کړو چې [د طاقت خاوند دې]. دویم دا چې د رب العرش خوا ته هغه مطاع دې دهغه حکمونه د عرش فرښتې منی، دریم دا چې هغه دالله ﷻ په نزد امین یعنی امانتګر دې، په پیغام راوړلو او رارسولو کښې هغه نه د څه خیانت اوکمی بیشی امکان نشته، دلته د رسول کریم نه مراد جبرائیل ﷺ دې، ځکه چې رسول بنیادم کیدیشی، دغسې فرښته هم رسول کیدیشی. وړیسې څومره صفتونه چې د رسول بیان کړې شوی دی هغه ټول په جبرائیل ﷺ باندې چسپان کیدیشی. هغه په سورت نجم کښې په ښکاره ذی قوة بللې شوې دې لکه فرمائی چې: ﴿عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ ۝﴾[1] په عرش او آسمانونو کښې دهغه ﷺ مطاع کیدل دلیلة المعراج دحدیث پاک نه داسې ثابته ده چې کله به هغه سره د رسول ﷺ نه کوم آسمان ته ورغلو او د آسمان د دروازې صلاصولو اراده کوله نو د آسمان دروازه به کولاویدله او د آسمان فرښتو به د هغه په وینا د آسمانونو دروازې خلاصولې.

ځینې د تفسیر امامانو دلته درسول کریم نه مراد محمد ﷺ خودلې دې. او دغه بیان شوی صفتونه ئې په څه تکلف سره په نبی کریم ﷺ لګولی دی، والله اعلم.

وړیسې د نبی کریم ﷺ د لوئی او دکافرانو دبې هوده الزامونو جواب دې فرمائی چې: ﴿وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ۝﴾ ولې چې کافرانو به هغوئ ﷺ ته مجنون وئیلو.

﴿وَلَقَدْ رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ۝﴾ یعنی هغوئ ﷺ جبرائیل امین لره په ښکاره افق یعنی غاړه لیدلی دې لکه په سورة نجم کښې فرمائی چې ﴿فَاسْتَوَىٰ ۝ وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ ۝﴾[2]

---

[1]) ترجمه:- هغوئ ته یو فرښته تعلیم ورکوی چې ډیره طاقتوره ده.
[2]) ترجمه: بیاهغه فرښته په خپل اصل شکل کښې راښکاره شوه په داسې حالت کښې چې هغه په اوچت غاړه باندې وو.

اوددې ذکر کولو نه مقصود دادې چې وحی راوړونکې فرښتې نه هغوئ ﷺ ښه خبر وو هغه نې په اصلی صورت کښې هم لیدلې وو. څکه نې په دغې وحې کښې د څه شک شبهې گنجائش نشته ، د آیتونو نور مضمون په خلاصه تفسیر کښې واضح شوې دې

تمت سورة التکویر بحمدالله تعالی یوم الاربعاء ۸ شعبان ۱۳۹۱هجری

| اياتونه | | | رکوع گاني |
|---|---|---|---|
| | | سورة الانفطار مکیة وهي تسع عشرة اٰية ورکوعا واحدا | |
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| ۱۹ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱ |

اِذَا السَّمَآءُ انۡفَطَرَتۡ ۙ﴿۱﴾ وَ اِذَا الۡکَوَاکِبُ انۡتَثَرَتۡ ۙ﴿۲﴾ وَ اِذَا الۡبِحَارُ

کله چې آسمان | اوچوی | او کله چې ستوری | خواره واره شی | او کله چې دریابونه

څه وخت چې آسمان اوچوی | ....او چې ستوری خواره واره شی |.................. اودریابونه

فُجِّرَتۡ ۙ﴿۳﴾ وَ اِذَا الۡقُبُوۡرُ بُعۡثِرَتۡ ۙ﴿۴﴾ عَلِمَتۡ نَفۡسٌ مَّا

اوشلولې شی | او کله چې قبرونه | راکولاوکرې شی | معلوم به شی هر انسان ته | هغه څه |

یو بل سره په بهیدو یو خائې شی | اوهرکله چې قبرونه اونړولې شی | نو هرنفس ته به معلومه شی

قَدَّمَتۡ وَ اَخَّرَتۡ ؕ﴿۵﴾ یٰۤاَیُّهَا الۡاِنۡسَانُ مَا غَرَّكَ

چې وړاندې نې لیږلی دی | اوروستو نې پرېښودی دی | اې انسانه | څه شئ | په دهوکه کښې واچولې ته |

چې څۀ نې کړی دی اوڅه نې پریخودی دی | ائې انسانه ته دخپل مهربان رب په باره کښې کوم

بِرَبِّكَ الۡکَرِیۡمِ ۙ﴿۶﴾ الَّذِیۡ خَلَقَكَ فَسَوّٰىكَ

دخپل رب عزتمند په حقله | هغه رب | چې پیدا نې کړې ته | نو برابر نې کړې ته |

څیز دهوکه کښې اچولې نې | هغه رب چې ته نې پیدا کړې |..............نو برابر نې کړې

فَعَدَلَكَ ۙ﴿۷﴾ فِیۡۤ اَیِّ صُوۡرَةٍ مَّا شَآءَ رَکَّبَكَ ؕ﴿۸﴾ کَلَّا

نو برابر نې کړې ته | په کوم صورت کښې | چې خوښه شوه دهغه | [هغسې نې ] پیوند کړې ته | هرگز نه |

نو درمیانه حال نې کړې | په کوم صورت کښې چې نې خوښه وه هغسې ئې جوړ کړې | نه بلکه

بَلۡ تُکَذِّبُوۡنَ بِالدِّیۡنِ ۙ﴿۹﴾ وَ اِنَّ عَلَیۡکُمۡ لَحٰفِظِیۡنَ ۙ﴿۱۰﴾

بلکه تاسو دروغ گنړئ | جزا سزا لره | او بیشکه | مقرر دی په تاسو باند | خامخا نگرانی کونکی فرښتې

تاسو خودقیامت نه انکار کوئ| حال دا چې نگرانې فرشتې دربانډې مقرر دی

کِرَامًا کَاتِبِیۡنَ ۙ﴿۱۱﴾ یَعۡلَمُوۡنَ مَا تَفۡعَلُوۡنَ ﴿۱۲﴾

| عزتمندې | لیکونکې [فرښتې ] | چې معلوم دی هغوئ ته | هغه عملونه | چې کوئ نې تاسو

چې معززې لیکونکې دی |..................تاسو چې څه کوئ په هغې ښۀ پوهیږی

إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ﴿١٣﴾ وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي

| بیشکه چي نیکان خلق به | خامخا په نعمتونو کښي وي | او بیشکه چي بدکار خلق به

بیشکه نیک خلق به دنعمتونو په جنت کښي وي | او بیشکه بدکارخلق به په

جَحِيمٍ ﴿١٤﴾ يَصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّينِ ﴿١٥﴾ وَمَا هُمْ عَنْهَا

| خامخا په دوزخ کښي وي | ننوزي به هغې ته | په ورخ دجزا | او نهٔ به وي هغوئ | دهغې نه

جهنم کښي وي | کوم کښي چي به دوئ دقیامت په ورځ داخلیږي |اودوئ به ددغې

بِغَائِبِينَ ﴿١٦﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿١٧﴾ ثُمَّ مَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿١٨﴾

| غائبیدونکی | او څه معلومه ده تاته | چي څه ده ورخ دجزا | بیا څه پته ده تاته | چي څه ده ورخ دجزا

جهنم نه پټیدي نشي| اوتاته څه معلومه ده چي دبدلي ورخ څه ده |بیا تاته څه معلومه ده چي دبدلي ورخ څه ده

يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِنَفْسٍ شَيْئًا ۖ وَالْأَمْرُ

هغه ورخ | چي اختیار [طاقت] به نهٔ لري | يو نفس | دپاره دبل نفس | دهیڅ څیز | او حکم [فیصله] به

هغه داسي ورځ ده| چي هیڅوک به دهیچا په کار رانشي |اوپه دغه ورخ به

يَوْمَئِذٍ لِلَّهِ ﴿١٩﴾

په دغه ورخ | خاص الله لره وی |

حکم صرف د یو الله ﷻ چلیږی

## آسان ترجمه قرآن

چه کله آسمان اوچوی. او چه کله ستوری اودوریږی. او چه کله سمندرونه اوخوټکولي شی. او چه کله قبرونه پرانستلي شی. هغه وخت به هر سری ته پته اولګی، چه هغه مخکښ څه لیږلي دی، او روستو ئې څه پریښي دی اے انسانه! څه څیز دهوکه کړې ئې تهٔ، د هغې پروردګار په معامله کښ، چه ډیر کرم والا دی. هغه ذات چه ته ئې پیدا کړې، بیا ئې ته برابر کړې، بیا ئې په تا کښ اعتدال پیدا کړو؟ په هر صورت کښ چه هغهٔ خوښتل، هغهٔ تهٔ جوړ کړې، تیار کړې. هیچرې داسې ښکار نه دهٔ بلکه تاسو جزا او سزا لرهٔ دروغ ګنړئ. حالانکه په تاسو باندې څه نګرانان (فرشتې) مقرر دی. هغه عزتمند لیکونکې. چه پوهیږی په هغه څه چه تاسوئې کوئ یقین اوکړئ. چه نیکان خلق به یقیناً په لویو نعمتونو کښ وی. او بدکار خلق به ضرور دوزخ کښ وی. ننوځی به هغې ته په ورځ د جزا او سزا. دوی د هغې نه پټیدې نه شی. او تاته څه پته دهٔ، چه د جزا او سزا ورځ څه څیز دې؟ بیا تاته څه پته دهٔ، چه د جزا او سزا ورځ څه څیز دې؟ دا به هغه ورځ وی، چه په هغې کښ به د بل چا دپارهٔ څه کول د هیچا په اختیار کښ نه وی، او اختیار به ټول په دغه ورځ الله تعالی لرهٔ وی.

## خلاصه تفسیر

﴿إِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ﴾ [هر کله چه اسمان څیرې شی ﴿وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ﴾ او کله چې ستورې ] مات شی [اورژیږی ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ﴾ او کله چه ټول دریابونه ]خوارهٔ اوترخهٔ [وبهیږی] اووبهیږی یو

شی لکه چه په پورته سورة کښې دسجرت په تفسیر کښې بیان شوی دی دا درې واړه واقعات خو داولنې شپیلئ دی وړاند د دویمې شپیلئ نه پس واقعه ده یعنی ﴿وَاِذَا الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ﴾ [او هر کله چه به قبرونه کولاوکړې شي] یعنی مړی ترې نه راپورته شی ودرېږی دغه وخت ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَاَخَّرَتْ﴾ [هر سړې به خپل وړاند وروستو عملونه وپیژنی ]اوددې واقعاتو مقتضی داوه چه انسان دغفلت دخوب نه بیدار شوې وې په دې وجه وړاندې غفلت زجر اوخبرداري دې چه ﴿يٰٓاَيُّهَا الْاِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ﴾ [اې انسانه ته څه شی ستا ددا سې رب کریم نه په غفلت کښې غورزولې یئې ﴿الَّذِيْ خَلَقَكَ﴾ کوم چه ته ] انسان [جوړ کړې ﴿فَسَوّٰىكَ فَعَدَلَكَ﴾ بیائې ستا اندامونه برابر کړل بیائې تناسب کیښودو او ﴿فِيْٓ اَيِّ صُوْرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ﴾ [په کوم صورت کښې چه ئې غوښتل ته ئې مرکب کړې ﴿كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُوْنَ بِالدِّيْنِ﴾ هرگز ]مغرور [نه] دی کیدل پکار مگر تاسو دغرورنه واپس کیږئ نه [بلکه] په دومره درجه کښې موغرور زیات شوې دې چه [تاسو] په خپله [جزا او سزا لره] په کومه سره چه دا غرور دفع کیدې شو[دروغژن کوئ او] دادروغژن کول به ستاسو خالی نه خی بلکه زمونږ دطرف نه ﴿وَاِنَّ عَلَيْكُمْ لَحٰفِظِيْنَ﴾ [په تاسو] ستاسو دټولو عملونه [یاد ساتونکې دی] کوم چه زمونږ په نزد ﴿كِرَامًا كَاتِبِيْنَ﴾ [معزز] اوستاسو دعملونو [لیکونکی ]دی [مقرر دی ﴿يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ﴾ کوم چه ستاسو ټولوعملونو لره پیژنی ] اولیکی ئې پس په قیامت کښې به دا ټول عملونه پیش کیږی په کومو کښې چه ستاسو دا تکذیب اوکفر هم دې اوپه ټولویه مناسب جزا ملاوېږی چه تفصیل ئې وړاند دادې چه ﴿اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ﴾ بیشکه [نیک خلق به په ارام کښې وی ﴿وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ﴾ اوبد کار ]یعنی کافران [خلق به بیشکه په دوزخ کښې وی ﴿يَّصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّيْنِ﴾ په ورځ دجزا به په هغې کښې داخلیږی او] بیا چه داخل شی ﴿وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَآئِبِيْنَ﴾ [دهغې نه به بهر نه شی] بلکه په هغې کښې به همیشه وی ﴿وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ﴾ [اوتاته څه خبر دې چه ورځ دجزا څنگه ده ﴿ثُمَّ مَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ﴾ اومونږ [بیا] مکرر وایو چه[ تاته څه خبر دې چه دغه ورځ دجزا څنگه ده] مقصود ددې استفهام نه هولناک کیدل دی وړاندې جواب دې چه ﴿يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْئًا﴾ [هغه داسې ورځ ده په کومه کښې چه به دهیچا دچادنفع دپاره څه وس نه چلیږی ﴿وَالْاَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ﴾ اوټول حکومت به په دغه ورځ خاص دالله تعالی وی]

**معارف او مسائل**

﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَاَخَّرَتْ﴾ یعنی کله به چې د قیامت دغه حالات رامخې ته شی د کومو بیان چې د سورت په شروع کښې شوې دې. هغه آسمان خیری کیدل ، د ستورو گډوډ کیدل، تریخ اوخوږ دریابونه سره یوځائې کیدل ، د قبرونو نه د مړو راپورته کیدل ، دغه وخت به هر انسان پوهه شی چې هغه وړاندې څه اولیږل ، څه ئې روستو پریخودل د وړاندې لیږلو نه مراد پرې عمل کول دی ، اود روستو پریخودو نه مراد په هغې عمل نه کول دی. او د وړاندې لږلو دا معنې هم کیدیشی چې کوم عملونه ئې پخپله کړی وی او دروستو پریخودولو مطلب دادې چې پخپله ده خونه وی کړې دهغې روانه طریقه او رسم ئې پریخودې وی ، که نیک کار وی نو د هغې ثواب او که بد کاروی نو گناه به ئې په مخه عمل نامه کښې لیکلې شی څنگه چې په حدیث پاک کښې ئې هم بیان راغلې دې چې دکوم رسم یا طریقې بنیاد چا کیخودو که هغه

ښه وي او كه بد وي او په هغې باندې خلق عمل درآمد كوي نو دهٔ ته پرې هم ثواب او ګناه دهغوئ هومره ليكلې شي(١). دا مضمون وراندې هم په ﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ كښې تير شوې دې.

﴿يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ﴾ ددې نه په وړاندې آيتونو كښې د قيامت د هيبتناكو معاملاتو بيان شوېدې اوس په دې آيت مبارك كښې د انسان د مبدأ يعنى د پيدائش د ابتدائي مرحلو حالاتو لاندې پيدا كيدو وغيره بيان دې. ددې مجموعي تقاضا دا وه چې كه انسان څه قدرې هم د غور وفكر نه كار اخستې نو په الله ﷻ او په رسول به ئې ايمان راوړې وې او د دوئ د حكمونو نه بهٔ ئې لږ قدرې هم سر نه غړولې خو انسان په غفلت او هيره كښې پريوتو. په دې باندې د زورنې او خبردارئې په طريقه ئې دا سوال اوفرمائيلو چې اې انسانه! تاته د خپل ابتداء او انتهاء دا حالات رامخې ته شو نو بيا څه څيز ته په هيره او دهوكه كولو كښې اخته كړې چې الله ﷻ نه دې نافرماني كول شروع كړل.

دلته ئې د اولنو حالاتو څخه اول ﴿خَلَقَكَ فَسَوَّاكَ﴾ اوفرمائيل يعنى الله ﷻ ته پيدا كړې او صرف پيدا نه بلكه ستا وجود او ټول اندامونه ئې په يو خاص مناسب سره جوړ كړل، هر اندام ته ئې دهغې مناسب ځائې وركړو، د هر اندام شان لوړوالې، اوږدوالې او پلنوالې ئې په يو تناسب سره جوړ كړو چې لږ شان دهغې نه بدل شي. او خوزى نو د انسان د اندامونو هغه فائدې باقي نه پاتې كيږى كوم چې په موجوده صورت كښې دى ددې نه پس ئې اوفرمائيل چې: ﴿فَعَدَلَكَ﴾ يعنى ستاوجود ته ئې يو خاص سمون اوبخښلو چې ددنيا په بل سادار كښې نشته يعنى يو خوئې اندامونه په اعتدال سره دى او بل مزاج او طبيعت سره هم برابر دى. اګر چې دانسان په پيدا كولو كښې متضادى او مختلفې مادې شاملې دى لكه وينه، بلغم، سودا، صفراء، څه ګرم، څه يخ، مګر دالله ﷻ حكمت دغه بې سمونه څيزونه رايوځائې كړل او په سمون ئې ترې مزاج تيار كړو.

وريسې دريم خصوصيت ئې داسې بيانوى چې: ﴿فِي أَيِّ صُورَةٍ مَّا شَاءَ رَكَّبَكَ﴾ هر كله چې د انسان د پيدا كيدو طريقه، مزاج او مادې وغيره يو دى نو په ظاهره پكار دا وو چې د ټولو يو شكل او صورت وې، او د يو بل نه ئې فرق كيدل يو ناممكن خبره وې خو بيا هم الله ﷻ د كروړونو، اربونو او كربونو انسانانو په شكل اوصورت كښې داسې جدااوالى نه پيدا كړى دى چې يو بل سره ئې ګډون نشى كيدې بلكه بيلتون ئې ښه ښكاره كيديشي.

ددې ابتدائي حالاتو د بيان نه پس الله ﷻ ارشاد فرمائي چې: ﴿مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ﴾ يعنى اې غافله انسانه كوم پروردګار چې ستا په وجود كښې داسې داسې كمالات امانت ايخودى دى په داسې معامله كښې ته هم بيا ولې خطاء كيږې چې الله ﷻ دې هير كړى دې د الله ﷻ حكمونه نه منې، پكار وو چې پخپله ستا وجود او ستا هر پيوند تاته الله ﷻ رايادولې اود الله ﷻ په تابعدارئې كولو ئې مجبورولې، دلته درب صفت چې كريم راوړلې شو نو په هغې سره دې ته اشاره ده چې هر كله الله ﷻ دومره كريم دې چې انسان ته سمدستي د هغه بدعملئ سزا نه وركوى بلكه بيا ئې هم ښهٔ په مزو كښې ساتى نو هغه په دې تيروځي، كه

---

(١) صحيح البخاري كتاب العلم، باب من سن سنة حسنة...... الخ [ج:٢ص:٣٤١]

انسان لږ شان غور فکر کولې نو دا مهرباني د الله ﷻ ددې باعث جوړيدل پکار وو چې د الله ﷻ صحيح بنده جوړيد و سره د هغه پوره تابعدار جوړ شوې وې.

حسن بصري رحمه الله فرمائيلي دي چې [ كم من مغرور تحت الستر وهو لا يشعر ][1] يعني الله ﷻ د ډيرو مغرور انسانانو په ګناهونو او عيبونو باندې پرده اچولې ده هغه ئې نه شرمنده کوي. نو هغه په دغې مهربانئ د الله ﷻ باندې خطاء کيږي او په زيات غرور او لوئ کولو کښې اخته کيږي.

﴿إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ۝ وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٍ ۝﴾ ددې تعلق تيرې شوې جملې: ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ ۝﴾ سره دې، چې د قيامت په ورځ به هر انسان ته خپل خپل عمل رامخې ته شي نو په دې جمله کښې فرمائي چې فرمانبردار بندګان به په دغه ورځ د الله ﷻ په نعمتونو کښې خوشحاله وي او سرکش او نافرمانه به دجهنم په اور کښې وي.

﴿وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَائِبِينَ ۝﴾ يعني جهنميان به هيڅ وخت هم د جهنم نه نه شي غائبيدې خکه چې دوئ دپاره په جهنم کښې د هميشه پاتې کيدو حکم دې.

﴿لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِنَفْسٍ شَيْئًا﴾ يعني هيڅوک به هم پخپله خوښه بل چاته په محشر کښې څه فائده نشي ورسولې نه به د چا تکليف کمولې شي، دا خبره شفاعت سره بې سمونه څکه نه ده چې هغه به پخپل اختيار او خوښه نه وي بلکه الله ﷻ به دهغې اجازت ورکوي، يعني حکم به يواځې د الله ﷻ په قيامت کښې چليږي. دشفاعت اجازت به هم الله ﷻ ورکوي، هم هغه به ئې قبلوي. والله اعلم.

تمت سورة الانفطار بحمدالله ليلة الاربعاء ۸ شعبان ۱۳۹۱ هجري

| ركوع ګانې | | اياتونه |
|---|---|---|
| | سورة المطففين مكية وهي ست وثلاثون اية وركوعا واحدا | |
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ① | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | ㊱ |

وَيْلٌ | لِّلْمُطَفِّفِينَ ۝ | الَّذِينَ | إِذَا اكْتَالُوا | عَلَى النَّاسِ | يَسْتَوْفُونَ ۝

تباهي ده | دپاره دکم ناپ تول کونکو | هغه کسان | کله چې خان ته اخلي | دخلقو نه | نو پوره اخلي |

دکم تول کونکو دپاره تباهي ده | هغه چا دپاره چې د خلقو نه پيمانئ اخلي نو پوره ئې اخلي

وَإِذَا كَالُوهُمْ | أَو وَّزَنُوهُمْ | يُخْسِرُونَ ۝

او کله چې پيمانه ورکوي خلقو ته | يا تول کوي هغوئ ته | نو کمې کوي هغوئ ته |

او چې خلقو ته پيمانه ورکوي او يا ورته ئې تلي نو کم ورکوي

أَلَا يَظُنُّ | أُولَٰئِكَ | أَنَّهُم | مَّبْعُوثُونَ ۝ | لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ۝

آيا نه کوي ګمان | دا خلق | چې بيشکه دوئ | به دوباره ژوندي کړې شي | دپاره د ورځې لوئ |

آيا دوئ دا باور نه کوي | چې دوئ به [د قيامت] په لويه ورځ راژوندي کيږي؟ .........

[1] تفسير القرطبي (باختلاف النسبة) [ ج:۱۹ ص:۲٤٦ ]

يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ

په کومه ورځ | چې به ودریږي خلق | رب العالمين ته | هرگز نه | بيشکه عملنامه دبدکارو خلقو |

په کومه ورځ چې به ټول خلق رب ته پيش کيږي | داسې دې نه کوي | بيشکه دبدکارو کسانو

لَفِيْ سِجِّيْنٍ ۝ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا سِجِّيْنٌ ۝

خامخا په [رجسټرډ] قيد خانې کښې ده | او څه معلومات دی تاته | چې څه دې دقيد خانې رجسټر |

عملنامې په سجين کښې دی | او تاته څه معلوم دی چې سجين څه څيز دی

كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ ۝ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ الَّذِيْنَ

يو کتاب دی | ليکلې شوې | تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ گڼرونکو | هغه |

دا يو ليکلې شوې کتاب دې | په دغه ورځ د دروغ گڼرونکو دپاره تبادهی ده | چې څوک

يُكَذِّبُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ۝ وَمَا يُكَذِّبُ بِهٖٓ اِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ ۝

چې دروغ گڼري هغوئ | ورځ دجزا | او دروغ نه گڼري دا | مگر | هر دحدنه اوړيدونکې | گناهگار |

دقيامت ورځ دروغ گڼري | اوددې ورځې نه انکار يواځې هغه کس کوی | چې سرکشه گناهگار وی

اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝ كَلَّا

کله چې اورولې کيږي | هغه ته آيتونه زمونږ | نو وائي | چې قيصې دی دپخوانو خلقو | هرگز نه |

هرکله چې زمونږ آيتونه ورته اولوستلې شي انو وائي چې دا خو دمخکنو خلقو واقعات دی داسې نه ده

بَلْ ۜ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝

بلکه | زنګ لګولې دې | په زړونو دهغوئ باند | هغه گناهونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې |

بلکه ددوئ [بدو] عملونو ددوئ په زړونو باندې زنګ لګولې دې ........................

كَلَّآ اِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوْبُوْنَ ۝ ثُمَّ

هرگز نه | بيشکه دوئ به | ددیدار درب خپل نه | په دغه ورځ | په پرده کښې ساتلي شي | بيا به |

هرگزنه | دوئ به دخپل رب د ليدو نه په دغه ورځ بند [محروم] کړې شي |.............. بيا يقينا

اِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيْمِ ۝ ثُمَّ يُقَالُ هٰذَا الَّذِيْ

بيشکه دوئ | خامخا ننوتونکي وی دوئ دوزخ ته | بيا به اوونيلې شي | دا هغه څيز دې |

دوئ به جهنم ته داخليږي | بيابه ورته اوونيلې شي چې دا هغه جهنم دې | چې ........................

كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ۝ كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ

چې وئ تاسو | چې هغه به مو دروغ گڼرو | هرگز نه | او بيشکه علمنامه دنيکانو خلقو |

تاسو به دروغ گڼرلو |.......................هرگزنه بيشکه دنيکانو عملونه په ........................

لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ ۝ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا عِلِّيُّوْنَ ۝

خامخا داوچتو خلقو په رجسټر کښې ده | او څه پته ده تاته | چې څه دې داوچتو خلقو رجسټر |

علين کښې ليک وی |....................او تاته څه معلوم دی چې علين څه ځائې دی

كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ ﴿۲۰﴾ يَّشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿۲۱﴾ اِنَّ الْاَبْرَارَ

يو كتاب دي | ليكلې شوې | چې حاضريږي هغې ته | مقربې فرشتې | بيشكه نيكان خلق به |

دا يو ليكلې شوې كتاب دې | چې مقربې فرښتې ورته حاضرې وي |.......... بيشكه نيكان به

لَفِيْ نَعِيْمٍ ﴿۲۲﴾ عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ ﴿۲۳﴾ تَعْرِفُ

خامخا په نعمتونو كښې وي | ناست په تختونو باند | كتل به كوي | تاته به ښكاري |

دنعمت [په باغونو] كښې وي | په تختونو ناست كتل به كوي | ............. دهغوئ په مخونو به

فِيْ وُجُوْهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيْمِ ﴿۲۴﴾ يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِيْقٍ مَّخْتُوْمٍ ﴿۲۵﴾

په مخونو دهغوئ كښې | تازه والې دنعمتونو | څكولې كيږي به په هغوئ | شراب صفا | سربند |

د نعمتونو تازګي ښكاري | په هغوئ به مهرلګولې شوې خاص [پاک] شراب څكولې شي

خِتٰمُهٗ مِسْكٌ ۚ وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ

مهر دهغې به | مشك وي | او په دې كښې | پكار دي چې دكاميابئ پيداكولو كوشش اوكړي |

چې مهرونه به ئې د مشكو وي | او د دغه څيز په حاصلولو كښې دې رغبت كونكي

الْمُتَنَافِسُوْنَ ﴿۲۶﴾ وَمِزَاجُهٗ مِنْ تَسْنِيْمٍ ﴿۲۷﴾ عَيْنًا يَّشْرَبُ

كاميابئ غوښتونكي خلق | او شامل به وي دهغې سره | دتسنيم نه | دا يوه چينه ده | چې څكي به |

رغبت اوكړي | او په هغې كښې به د تسنيم [اوبه] ګډولې شي | دا يوه چينه ده چې مقرب خلق

بِهَا الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿۲۸﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا كَانُوْا

دهغې نه | الله ته نزدې خلق | بيشكه هغه خلق | چې جرمونه ئې كړي دي | وو به هغوئ |

بۀ ترې نه څكل كوي | ..........بيشكه څوک چې مجرمان دي ..........

مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَضْحَكُوْنَ ﴿۲۹﴾ وَاِذَا مَرُّوْا بِهِمْ

په هغه كسانو پورې | چې ايمان ئې راوړې وو | چې خندل به ئې | او كله چې به تيريدل | په هغوئ باند |

هغوئ به [ په دنيا كښې ] په مؤ منانو پورې خنداګانې كولې | او چې مسلمانان به ئې خوا كښې تيريدل

يَتَغَامَزُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَاِذَا انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمُ انْقَلَبُوْا فَكِهِيْنَ ﴿۳۱﴾

نو سترګې به ئې وهلې يو بل ته | او كله چې به واپس تلل | دكور خلقو ته | نو تلل به | خوشحاله |

نو يو بل ته به ئې سترګې وهلې | او چې خپلو كورونو ته به واپس تلل | نو هلته به ئې هم [مسلمانانو] پورې مسخرې كولې

وَاِذَا رَاَوْهُمْ قَالُوْٓا اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّوْنَ ﴿۳۲﴾

او كله چې به ئې ليدل هغوئ | نو وئيل به ئې | بيشكه دا خلق | خامخا بې لارې دي |

او چې مسلمانان به ئې اوليدل نو دا به ئې اووئيل | چې دا خلق ګمراهان دي

وَمَآ اُرْسِلُوْا عَلَيْهِمْ حٰفِظِيْنَ ﴿۳۳﴾ فَالْيَوْمَ

او حال دا چې نۀ دي ليږلې شوي دا كافران | په مومنانو باند | نګراني كونكي | نو نن ورځ |

حال دا چې دوئ په مسلمانانو باندې نګران مقرر شوي نه دي | .................. نو نن [دقيامت]

| عَلَى الْاَرَآئِكِ | يَضْحَكُوْنَ ﴿۳۴﴾ | مِنَ الْكُفَّارِ | اٰمَنُوْا | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| ناست په تختونو باند | خندا کوی | په کافرانو پورې | چې ایمان ئې راوړې دې | هغه کسان |

په ورځ به مسلمانان په کافرانو پورې خنداګانې کوی | ...................په تختونو به ناست وی

| يَفْعَلُوْنَ ﴿۳۶﴾ | كَانُوْا | مَا | هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ | يَنْظُرُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
|---|---|---|---|---|
| چې کول به ئې | چې وۀ هغوی | دهغې | آیا ملاوۀ شوه بدله کافرانو ته | ګوری هغوی ته |

نظاره به ئې کوی | چې آیا کافرانو ته دخپل عمل پوره پوره کړو بدله اورسیده که نه ؟

## آسان ترجمه قرآن

لویه خرابي ده په ناپ تول کښې کمی کوونکو دپاره. ددوی حال دادې، چه کله دوی د خلقو نه خپله څه څیز په ناپ سره اخلي نو پوره پوره اخلي. او چه کله چاته په ناپ یا تول سره ورکوی، نو کمی کوی آیا دا خلق دا سوچ نه کوی، چه دوی لره به یوه ورځ دوباره ژوندی کولې شی؟ په کومه ورځ چه ټول خلق به د رب العالمین مخکښې ولاړ وی. هیڅرې داسې نه ده پکار، یقین اوکړئ، چه د بدکارانو اعمال نامه په سجین کښې ده او تاته څه معلوم دی، چه سجین (کښې ایخودلې شوې اعمال نامه) څه څیز دې؟ هغه یو لیکلې شوې کتاب دې. لویه تباهی ده په دغه ورځ هغې خلقو لره چه حق لره دروغ ګنړی. څوک چه د جزا او سزا ورځ دروغ ګنړی. او دا ورځ هغه کس دروغ ګنړی، چه د حد نه تیریدونکې ګناه کار وی. کله چه لوستلې شی په ده باندې آیتونه زمونږ، نو دې وائی چه: دا خو دَ پخوانو خلقو قصې دی هیڅرې نه. بلکه دوی چه څه عمل کوی، هغې عملونو ددوی په زړونو باندې زنګ لګولې دې. هیڅرې نه، حقیقت دادې، چه دا خلق به په هغه ورځ د خپل پروردګار د دیدار نه محروم وی. بیا به دوی دوزخ ته ورداخلولې شی. بیا به ورته اووئیلې شی چه: دا هغه څیز دې، چه تاسو به دروغ ګنړلو. خبردار! د نیکانو خلقو اعمال نامه په علیین کښې ده او تاته څه معلومه ده، چه په علیین (کښې ایخودلې شوې اعمال نامه) څه څیز دې؟ هغه یو لیکلې شوې کتاب دې. چه هغې لره مقرب فرشتې ګوری یقین اوکړئ چه نیکان خلق به په ډیرو نعمتونو کښې وی، په تختونو باندې به ناست وی، او نظاره به کوی، د هغوی په مخونو باندې چه د نعمتونو کومه تازګی وی، ته به هغه صفا پیژنې. دوی باندې به داسې خالص شراب څکولې شی، چه په هغې باندې به مهر لګیدلې وی. مهر د هغې به هم د مشکو وی، او هم دا هغه څیز دې، چه په دې کښې رغبت کوونکو لره رغبت کول پکار دې. او په هغې شرابو کښې به د تسنیم اوبه ګډې کړې شوې وی چه یوه داسې چینه ده، چه د هغې نه به د الله تعالیٰ مقرب بندګان اوبه څکی، کوم خلق چه مجرمان وو، هغوی به ایمان والو پورې خندل. او کله چه به هغوی باندې تیریدل، نو یو بل ته به ئې په سترګو سترګو کښې اشارې کولې او کله چه به خپل کور والو ته واپس تلل، نو واپس به تلل په مسخرو سره. او کله به ئې چه دغه (مومنان) لیدل، نو دا به ئې وئیل، چه دا خلق یقیناً ګمراه دی. حالانکه دوی لره په دغې مسلمانانو باندې نګرانان نه وو لیږلې شوې عاقبت به دا شی. چه نن به ایمان راوړونکې په کافرانو پورې خاندی. په پالنګونو باندې به ناست وی، او ګوری به. چه کافرانو خلقو ته واقعی د هغې عملونو بدله ورکړې شوه، کوم چه هغوی کول.

## خلاصه تفسیر

﴿وَيۡلٞ لِّلۡمُطَفِّفِينَ﴾ [لويه خرابی ده په ناپ تول کښې کمی کوونکو لره ﴿الَّذِينَ إِذَا اكۡتَالُواْ عَلَى النَّاسِ يَسۡتَوۡفُونَ﴾ چه هر کله دخلقو نه] خپل حق [اخلی ناپ کوی نو پوره اخلی ﴿وَإِذَا كَالُوهُمۡ أَو وَّزَنُوهُمۡ يُخۡسِرُونَ﴾ او کله چه هغوی ته ناپ کوی یا تول کوی نو کمی کوی ] اګر چه خلقو نه خپل حق پوره اخستل مذموم نهٔ دی مګر ددې په ذکر کولو سره مقصود په خپله په دهٔ باندې مذمت کول نهٔ دی بلکه په کمو ورکولو باندې د مذمت تاکید اوتقویت دې یعنی کم ورکول اګر چه فی نفسه مذموم دی لیکن ددې سره کهٔ دنورو یوه ذره رعایت ونهٔ کړې شی نو نور زیات مذموم دی په خلاف درعایت کوونکی نه چه کهٔ په دهٔ کښې عیب وی نو یو هنر هم په کښې دې په دې وجه داولنی سړی عیب اشد دې اوچونکه اصل مقصود مذمت دې دکمو ورکولو په دې وجه په دې کښې دناپ تول دواړو ذکر اوشو چه ښهٔ وضاحت وشی چه په پیمانه کښې هم کم ورکوی اوپه تول کښې هم کم ورکوی اوچونکه پوره اخستل فی نفسه مدار دمذمت نهٔ دې په دې وجه ئې هلته دپیمانې اوتول دواړو ذکر ونهٔ کړو بلکه دیو ذکر ئې وکړو بیاتخصیص دپیمانې شاید خکه وی چه په عربو کښې دستور دپیمانې وو خصوصا کهٔ ایت مدنی وی لکه چه په روح المعانی کښې په روایت دنسائی اوابن ماجه اوبیهقی ئې ددې نزول دمدینې والو په باب کښې لیکلې دې نو دغه وخت ددې تخصیص وجه زیاته ظاهره ده خکه چه په مدینه کښې دپیمانې دستور دمکی نه هم زیات وو وړاند ئې داسې کوونکو لره ویرولی دی چه ﴿أَلَا يَظُنُّ أُوْلَٰٓئِكَ أَنَّهُم مَّبۡعُوثُونَ لِيَوۡمٍ عَظِيمٖ﴾ [ایا دې خلقو ته ددې یقین نشته چه هغوی به په یوه سخته ورځ کښې ژوندی پورته کولې شی ﴿يَوۡمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الۡعَٰلَمِينَ﴾ په کومه ورځ چې تول خلق درب العلمین په وړاندې ادریږی] یعنی ددغې ورځې نه ویریدل پکار دی او دتطفیف یعنی دخلقو دحق وهلونه توبه ویستل پکار دی چه دابیان او پورته کیدل او جزائې واوریده کوم چه مؤمنان وو هغه وویریدل اوکوم چه کافران وو هغوی انکار وکړو په دې وجه وړاند په انکار باند خبرداري ورکوی دفریقینو دجزاء تفصیل فرمائی چه لکه څنګه کافران خلق دجزا اوسزا نه منکر دی ﴿كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ الۡفُجَّارِ لَفِي سِجِّينٖ﴾ [هرګز ]داسې [نهٔ ده ] بلکه سزا اوجزا ضرور واقع کیدونکې ده په کومو عملونو چه جزااوسزاوی هغه هم لیکلی اومحفوظ دی اوددې مجموعې بیان دادې چه[دبد کارو] یعنی کافرانو [خلقو عملنامه به په سجین کښې وی ]هغه یو مقام دې په اوومه زمکه کښې کوم چه مقام دې دکفارو دارواحانو لکه چه په تفسیر ابن کثیر کښې دکعب نه اوپه درمنثور کښې دحضرت ابن عباس ﷺ مجاهد او فرقد اوقتاده اوعبدالله ابن عمر نه مرفوعا(۱) اودکفارو دعملونو هم په دې مقام کښې کیدل دعبدالله ابن عمر نه په درمنثور(۲) کښې منقول دی وړاندویرولو دپاره سوال دې چه ﴿وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا سِجِّينٞ﴾ [اوتاته څهٔ معلومه ده چه په سجین کښې ایښودې شوې عملنامه څهٔ شې دې ﴿كِتَٰبٞ مَّرۡقُومٞ﴾ هغه یو ټنبه شوې دفتر دې ] دنشان نه مراد مهر دې لکه په درمنثور کښې دکعب احبار نه روایت دی فیختم ویوضع ای بعدالموت یعنی مهر به پرې لګولې شی او ایخودې به شی.مقصود به داوی چه په دې

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت [ج: ۸ ص:۳۵۲]و تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۲۱۹ و ۲۲۰]
(۲) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۲۱۹ و ۲۲۰]

کښې دتغير اوتبدل هيڅ احتمال نشته پس مطلب ددغو عملونو محفوظ کيدل دی کومو سره چه دجزا په حق کيدل ثابت شو وړاند ددې عملونو دجزا بيان دې چه ﴿وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ﴾[په دغه ورځ ] يعنی دقيامت په ورځ [دروغژن کوونکولره به لويه خرابی وی ﴿الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ﴾ کوم چه ورځ دجزا لره دروغژن کوی ﴿وَمَا يُكَذِّبُ بِهٖٓ اِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ﴾ اودغې ]ورځې دجزا[ لره خو هغه سړې دروغژنه کوی کوم چه دحد] دبندګی [نه تيريدونکې اومجرم وی ﴿اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ﴾ اوکله چه ددهٔ په وړاند زمونږ ايتونه لوستلې شی نو داسې وائی چه دابې سنده خبرې دوړاندينو نه نقل را روانې دی] مطلب دابنودل دی چه کوم سړې دقيامت ورځ لره دروغژن کوی هغه زياتی کوونکې ګناهګار دې دروغژن کوونکې دقرآن دې وړاند ورځې دجزا لره په دروغژن کوونکو باند چه کوم صراحتاً مذکور دې خبردارې ورکړې دې چه داخلق دې لره غلطه ګنړی ﴿كَلَّا﴾[هرګز داسې نهٔ ده ] او چاته دې داشبهه نهٔ وی چه ددوی سره به څهٔ دليل دنفی وی په کوم سره چه دااستدلال کوی هر ګز نهٔ ده ﴿بَلْ ۜ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾[بلکه] اصل وجه دتکذيب داده چه[ددوی په زړونو ددوی دبدوعملونو زنګ پريوتې دې [په دې سره دحق قبلولو استعداد فاسد شو په دې وجه دناړامئ په بنا انکار کوونکی شول وړاند بيا په انکار زجردې چه لکه څنګه چهٔ داخلق ګنړی﴿كَلَّآ اِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوْبُوْنَ﴾[ هرګزداسې نهٔ ده ] وړاند دويل څهٔ تفصيل دې چه هغه خرابی داده چه [داخلق به په دغه ورځ ] يوخو[دخپل رب ] ددیدار[ نه منع کړې شی بيا] صرف په دې به بس نهٔ وی بلکه﴿ثُمَّ اِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيْمِ﴾[بيابيشکه دوی به په دوزخ کښې داخل شی ﴿ثُمَّ يُقَالُ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ﴾ بيا] دوی ته[به وونيلې شی چه دادې کوم لره چه تاسو دروغژن کولو] اودې خلقو به چه لکه څنګه دانصاف دورځې په دروغژن کولو کښې سزا لره دروغژنه کوله دغه شان به ئې دمؤمنانو جزا لره هم دروغژنه کوله وړاندې په دې خبردارې دې فرمائی چه دوی کوم دمؤمنانو داجزا و ثواب نه منکر دی ﴿كَلَّآ﴾ [هر ګز داسې نهٔ ده ] بلکه د دوی اجراو ثواب ضرور کيدونکې دې دکوم بيان چه دادې چه ﴿اِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ﴾ [دنيکانو خلقو عملنامه به په عليين کښې وی] هغه يو مقام دې په اووم اسمان کښې کوم چه مستقر دې دروحونو دمؤمنانو لکه چه په تفسير ابن کثير کښې دکعب نه دی[او] وړاند دپوهولو دپاره فرمائی اوسوال کوی چه ﴿وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا عِلِّيُّوْنَ﴾[تاته څهٔ معلومه ده چه په عليين کښې ايښودې شوې عملنامه څهٔ شې دې ﴿كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ﴾ هغه يونښه شوې دفتر دې کوم لره ﴿يَّشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُوْنَ﴾ چه مقربې فرښتې ] په شوق سره[ ګوری] اوداد مؤمن ډير لوئې اکرام دې لکه چه په روح المعانی کښې په تخريج دعبدبن حميد دحضرت کعب نه روايت دې چه کله دمؤمن روح ملائك قبض کوی وړی ئې دهر اسمان مقربې فرښتې ددهٔ سره کيږی تردې چه اووم اسمان ته ورسيږی ددهٔ روح کيږدی بيا فرښتې عرض کوی چه مونږ ددهٔ عملنامه کتل غواړو چنانچه دغه عمل نامه ښکاره کړی خودلې شی [په لنده سره] وړاندې ددوی داخرت دجزا بيان دې چه ﴿اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ ۙ عَلَى الْاَرَآئِكِ يَنْظُرُوْنَ﴾[نيك خلق به ډير په ارام کښې وی په تختونو به ] ناست دجنت عجائبات به[ ګوری] اې مخاطبه ﴿تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيْمِ﴾ [تهٔ به دهغوی په مخونو کښې داسائش تازګی پيژنې ﴿يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِيْقٍ مَّخْتُوْمٍ﴾اودوی ته به دڅښلو

دپاره خالص شراب ﴿خِتٰمُهٗ مِسْكٌ ۚ وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنٰفِسُوْنَ﴾ سربمهر په کومو چه به دمشکو مهر وی ملاویږی اوحرص کونکو لره دداسې شی: حرص کول پکار دی ]چه داحرص لائق دې خواه صرف شراب مراد واخستلې شی یادجنت ټول نعمتونه دی یعنی د شوق اورغبت څیزونه هم دادی نه چه ددنیا ناقص اوفانی لذتونه اوددې دحاصلولوطریقه نیك عملونه دی پس په دې کښې کوشش کول پکار دی ﴿وَمِزَاجُهٗ مِنْ تَسْنِيْمٍ﴾ [او ددې شرابو امیزش به دتسنیم داوبو سره وی ] عربو به عموما په شرابو کښې اوبه ملاوولې اوڅښل به ئې نو دهغه شرابو دامیزش دپاره به د تسنیم اوبه وی وړاند دتسنیم تشریح ده ﴿عَيْنًا يَّشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُوْنَ﴾ [یعنی یوه داسې چینه دکومې نه چه به مقرب خلق اوبه څښی ] مطلب داچه سابقینو یعنی مقربینو ته به خالصې دڅښلو دپاره دهغې اوبه ملاویږی او اصحاب الیمین یعنی ابرارو ته به دهغې اوبه په نورو شرابو کښې ګډې ملاویږی لکه چه په درمنثور کښې دقتاده اومالك بن الحارث اوابن عباس اوابن مسعود اوحذیفه نه دی(۱) او دامهر لګول علامت داکرم دې ورنه هلته دداسې حفاظت ضرورت نشته او دمشکودمهر مطلب دادې چه لکه څنګه چه قاعده ده چه لاك وغیره ولګوی په هغې مهر وهی اوداسې شی ته طین ختام وائی هلته به دشرابو د لوښی په خله باندې مشك ولګوی اومهر به پرې ووهی تردې پورې دفریقینو داخروی جزا جداجدا بیا ن وو وړاندې دمجموعه فریقینو دمجموعی حال ددنیا او آخرت ذکر دې یعنی ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا كَانُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَضْحَكُوْنَ﴾ [کوم خلق چه مجرمان ] یعنی کافران [وو هغوی به په ایماندارو پورې په دنیا کښې په طور دسپك ګنړولو [خنداګانې کولې اودا] ایمان والا ﴿وَاِذَا مَرُّوْا بِهِمْ يَتَغَامَزُوْنَ﴾هر کله چه به دکافرانو په مخکښې تیریدل نو په خپلو کښې به ئې په سترګو سره اشارې کولې [مطلب داچه ددوی سره به په تحقیر او مسخرو سره مخې ته ورتلل ﴿وَاِذَا انْقَلَبُوْا اِلٰى اَهْلِهِمُ انْقَلَبُوْا فَكِهِيْنَ﴾ [اوکله چه به خپلو کورونوته تلل نو] هلته به ئې هم د دوی ذکر کولو [پشارې [ اومسخرې ] به ئې کولې [ مطلب داچه په پټی شاه اومخامخ دواړو حالتونو کښې به ئې په دوی پورې مسخرې او خنداګانې کول مشغله وه البته مخامخ به ئې اشارې کولې او وروسته په ښکاره تذکرې کولې ﴿وَاِذَا رَاَوْهُمْ قَالُوْا اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّوْنَ﴾[اوکله چه به ئې دوی لیدل نو داسې به ئې ونیل چه داخلق یقینا په غلطئ باند دی ] خکه چه کفارو به اسلام په غلطه ګنړلو ﴿وَمَآ اُرْسِلُوْا عَلَيْهِمْ حٰفِظِيْنَ﴾ [حال دادې چه داکافران په مسلمانانو باند نګرانی کوونکی نه وو لیږلې شوی] یعنی دوی لره دخپل خان فکر کول پکار وو په هغوی پسې ولې شول پس د دوی نه دوه غلطیانې وشوې اول په اهل حق پورې مسخرې بیا دخپلې اصلاح نه بې فکری ﴿﴾ ﴿فَالْيَوْمَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ﴾[پس نن دقیامت په ورځ به مؤمنان په کافرانو پورې خنداګانې کوی ﴿عَلَى الْاَرَآئِكِ ۙ يَنْظُرُوْنَ﴾ په تختونو به ناست وی ددوی حال به ګوری] په درمنثور کښې دقتاده نه مذکور دی چه څنې کړکئ دریچې به داسې وی په کومو کښې چه به جنتیان دوخیانو ته کتلې شی پس ددوی بدحال به وینی په طور دانتقام به په دوی پورې خنداګانې کوی وړاندې تقریر دې ددې سزا یعنی ﴿هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ﴾[واقعی کافرانو ته د دوی دعمل پوره بدله ملاؤ شوه]

---

۱) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۲۲۱]

## معارف او مسائل

دَ عبدالله بن مسعود ﷺ د قول مطابق سورة تطفيف مکی سورت دې. ځکه چې په عامو مصحفونو کښې دا سورت مکی ليکلې شوې دې. او د ابن عباس ﷺ، قتادة ﷺ مقاتل ﷺ او ضحاک ﷺ په نزد دا سورت مدنی دې. خو صرف اته آيتونه ئې مکی دی. امام نسائی ﷺ، د ابن عباس ﷺ نه روايت کړې دې چې کله نبی کريم ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو دمدينې منورې خلقو به پيمانه کښې غلا کوله او نورو ته به ئې په پيمانه سره کم ورکول ځکه چې د دوئ عامې معاملې په پيمانه باندې بنا وې، په دې باندې مطففين نازل شو. د ابن عباس ﷺ دَ روايت مطابق دا اول هغه سورت دې چې د نبی کريم ﷺ مدينې منورې ته په رسيدلو نازل شوې دې وجه ئې دا وه چې اخستل به ئې په پيمانه او تله باندې پوره کول او بل ته به ئې کم ورکول. کله چې دا سورت نازل شو نو د مدينې منورې خلقو دغه خراب عادت داسې پريخودو چې تر اوسه پورې په پوره تول او پيمانه کولو باندې مشهور دی، [حاکم، نسائی، ابن ماجه په صحيح سند سره، مظهری] [1].

﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ﴾ مُطَفِّفِينَ مشتق دې، چې معنی ئې په ميچ تول کښې کمی کول دی اوداسې کوونکی ته مطفف وئيلې شی، د قرآن کريم ددې ارشاد نه ثابت شو چې تطفيف کول حرام دی

**تطفيف بواځې په پيمانه او تول کښې نه بلکه هر څيز حقدار ته کم ورکول په تطفيف کښې داخل دی:**

قرآن اوحديث کښې په ميچ تول کښې کمی کول حرام ګرځولې شوی دی. ولې چې روزګار هم په دې دوؤ طريقو باندې روان دې، هم ددې په ذريعه دا وئيلې شی چې د حقدار حق ادا شو اوکه نه؟ ليکن دا معلومه شوه چې دې نه مقصود هر يو حقدار ته خپل حق پوره پوره ورکول دی، په دې کښې کمی کول حرام دی، نو معلومه شوه چې دا صرف ناپ تول سره مخصوص نه دی بلکه د هر هغه څيزدا حکم دې چې پرې دحق دکمی يا زياتی جاج اخستی شی خواه دا په شمير وغيره سره وی اوکه بل څيز سره.

مؤطا امام مالک کښې راغلی دی چې عمر بن خطاب ﷺ داسې يو مونځ کوونکې اوليدو چې رکوع سجده وغيره ئې پوره پوره نه کول او زر زر ئې مونځ ختم کړو نو هغه ته ئې اوفرمائيل چې [لقدطففت] يعنی تا د الله ﷻ په حق کښې تطفيف اوکړو ددې نقل کولو نه پس امام مالک ﷺ اوفرمائيل چې [الکل شئ وفاء وتطفيف] [2] يعنی پوره حق ورکول يا کمې په کښې کول په هر څيز کښې شته. خواه هغه مونځ اودس وغيره وی يا نور حقونه وی، نو دالله ﷻ په حقونو کښې کمې او کوتاهی کوونکې د تطفيف مجرم دې. داشان په حقوق العباد کښې چې څوک په حق کښې کمی کوی هغه هم د تطفيف په حکم کښې دی، نوکر دپاره د نوکرئی ګوم وخت يا خائې چې ټاکلې شوې وی په هغې کښې کمې يا غذاب ورکول هم په تطفيف کښې داخل دی. وخت کښې دننه په کوم محنت سره چې دکار کولو چې څومره معمول او عادت دې په هغې کښې سستی کول هم تطفيف دې، په دې کښې په عامو خلقو

[1] ) تفسير المظهري[ج ۱۰ص:۲۱۷] و سنن ابن ماجة، ابواب التجارات،باب التوقی فی الکيل والوزن رقم الحديث:[۱۱۵۹۰]و المستدرك للحاکم کتاب التفسير رقم الحديث:[۲۲۴۰]

[2] ) موطا مالك کتاب وقوت الصلاة باب ماجاء فی دلوك الشمس وغسق الليل [ج:۱ ص:۱۲]

کښې تر دې چې د علم خاوندان هم بې پروائی کوې ، د خپلې نوکرئې په فرائضو کښې کمی کول څه ګناه نه ګڼړی ، اعاذنا الله منه .

**حديث پاک** عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روایت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې [خمس بخمس] یعنې د پنځو ګناهونو سزا پنځه څیزونه دی .

① څوک چې لوظ ماتوی نو په هغه باندې دهغه دښمن غالب کوی .

② کوم قوم چې د الله ﷻ قانون پریخودو په نورو قانونو فیصلې کوی په هغې کښې نیستی او احتیاجی عامه وی .

③ په کوم قوم کښې چې بې حیائی او زنا عامه شی په هغې باندې الله ﷻ طاعون او نور وبائی امراض راولی .

④ او کوم خلق چې په میچ تول کښې کمی کوی نو الله ﷻ ئې په قحطئ کښې اخته کوی .

⑤ کوم خلق چې زکوة نه ورکوی الله ﷻ ترې باران ایسار کړی [ قرطبی ، ذکر کړو او وې وئیل چې دې لره بزار تخریج کړې دې ، په معنی سره اومالک بن انس رضي الله عنه هم دا حدیث مبارک د ابن عمر رضي الله عنه نه ][1].

او طبرانی دابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په کوم قوم کښې د غنیمت د مال نه غلا کول رواج شی الله ﷻ د هغوئ په زړونو کښې د دښمن رعب اوهیبت اچوی او په کوم قوم کښې چې د ربوا یعنی سودخورئی رواج شی په هغې کښې مرګونه ډیر شی او کوم قوم چې په میچ تول کښې کمی کوی نو الله ﷻ د هغوئ روزی پریکوی . او څوک چې د حق خلاف فیصلې کوی په هغې کښې وژل او خون عام شی او څوک چې په لوظونو قولونو کښې تګی کوئې الله ﷻ په هغوئ باندې د هغوئ دښمن غالب کوی [ مالک موقوف روایت کړو دمظهری نه ][2].

**د خوارئې غریبئ ، لوږې ، قحطئ او د روزئ پریکېدو مختلف صورتونه** : دې حدیث پاک کښې د روزئ پریکیدلو مطلب داهم کیدیشی چې بیخی بې روزئ کړې شی یا دا چې روزی ئې وی خو استعمال ئې نشی کولې لکه په ډیرو رنځونو کښې چې داسې لیدلې کیږی او په دې زمانه کښې ډیر عام دی . دا شان دقحطی د اصورت هم کیدیشی چې دضرورت څیزونه بیخی نشی پیداکولې او دا هم کیدیشی چې د موجودوالی بلکه ډیر والی باوجود دومره ګران شی چې اخستل مشکل شی لکه چې نن صبا په اکثرو څیزونو کښې لیدلې شی او حدیث پاک کښې د خوارئې غریبئ غالب کیدلوارشاد دې دهغه مطلب یواځې دا نه دې چې پیسې او د ضرورت څیزونه ورسره پاتې نشی بلکه دفقر اصلی معنی محتاجی او حاجتمندی ده هرکس چې په خپل کاروبار او ضروریاتو د ژوند کښې د نورو څومره محتاج وی هغه هومره فقیر وی ددې زمانې په حالاتو باندې چې غور اوکړې شی نو انسان خپله استوګنه معاشرت او نقل وحرکت او ارادو پوره کولو کښې په داسې قوانینو کښې اخته ښکاری چې دهغې په لقمې

---

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۹ص:۲۵۳] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۱۰۸۳۰] و مجمع الزوائد كتاب الزكوة باب فرض الزكوة رقم الحديث :[۴۳۴۶]

[2] تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۱۸] و موطا امام مالك كتاب الجهاد باب ماجاء في الغلول [ج: ۲ص:۴۶۰]

او كلمې پورې پرې پابندۍ دى سره د مالدارئى په اخستلو كښې آزاد نه دى چې هر ځائې نه به ځيز اخستې شى ، په سفر كښې به آزاد نه وى چې ګنى هر چرته به تلې شى نو نن صبا په هر چا دومره دومره پابندۍ دى چې هر كار دپاره د دفترونو طواف كول او د افسرانو خولا ځه كوې چې چپراسيانو د خوشامندو كولو نه بغير ژوند تيرول ګران دى . دا ټوله محتاجى ده ، چې بل نوم ئې فقيرى ده ، په دې تفصيل سره هغه شبهې ختمې شوې چې د حديث پاک د ارشاد مطابق د ظاهرى حالاتو په اعتبار سره كيديشى .

**سجين او عليين ::** د سكين په وزن باندې سجين د سجن نه مشتق دې چې معنى ئې په تنګ ځائې كښې قيدول دى . په قاموس كښې دى چې سجين معنى تل دپاره بنديوان كيدل دى ، اود حديث پاک او آثارو نه دا معلوميږى چې سجين د يو خاص مقام نوم دې او د كافرانو او فاجرانو د روحونو مقام هم دادې او هم په دې مقام كښې دهغوئ عمل نامې وى ددې مطلب دا هم كيديشى چې د دوئ عمل نامې دغلته محفوظ كولې شى او دا هم كيديشى چې دغلته ځه داسې ټول ارخيز كتاب وى چې په كښې د ټولې دنيا كافرانو او فاجرانو عملونه ليكلې شى .

ددې مقام د ټاكلو په باره كښې د براء بن عازب ﷺ يو اوږد حديث دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې سجين د اوومې زمكې په لاندينۍ درجه كښې دى او عليين په اووم آسمان كښې د عرش لاندې يو مقام دې . [ بغوى ﷺ پخپل سند سره ئې اخراج اوكړو او احمد ﷺ وغير ئې هم اخراج اوكړو ، د مظهرى نه ] ([1]) .

دحديث پاک په ځينې روايتونو كښې دا هم دى چې سجين د كافرانو فاجرانو د روحونو ځائې او ډيره ده او علين د متقيانو مؤمنانو د روحونو مقام دې .

**دجنت او دوزخ مقام ::** امام بيهقى په دلائل نبوت كښې د عبدالله بن سلام نه روايت كړې دې چې جنت په آسمان او جهنم په زمكه كښې دې ([2]) او ابن جرير ﷺ پخپل تفسير كښې د معاذ بن جبل ﷺ نه روايت كړې دې چې نبى كريم ﷺ نه سوال اوكړې شو چې په قرآن پاک كښې دا راغلى دى چې د قيامت په ورځ به جهنم راوړې شى : ﴿وَجِايْٓءَ يَوْمَىِٕذٍۭ بِجَهَنَّمَ﴾ ددې ځه مطلب دې جهنم به د كوم ځائې نه راويستې شى؟ نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې د اوومې زمكې نه به راوړې شى ، ددغې روايتونو په بنا جهنم په اوومه زمكه كښې دې . دغه ځائې نه به په لمبو شى او ټول سمندرونه او دريابونه به ددې په اور كښې شامل شى . چې د ټولو مخې ته به راشى . په ځينې روايتونو كښې راغلى دى چې سجين په جهنم كښې د يو خاص مقام نوم دې هغه هم په دې باندې چسپان كيديشى . [ مظهرى ] ([3]) والله اعلم .

﴿كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ﴾ د لته د مرقوم معنى مختوم يعنى مهر لګولې شوې ده ، امام بغوى ﷺ او ابن كثير ﷺ فرمائى چې دا جمله د مقام سجين تفسير نه دې بلكه ددې د وړاندې چې ﴿كِتٰبٌ

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۲۰]و مسند احمد ،مسند البرزاء بن عازب ﷺرقم الحديث:[۱۸۵۳٤] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الح ديث[۳۹۰] ومجمع الزوائد كتاب الجنائز باب السؤال فى القبر رقم الحديث :[٤٢٦٧].

[2] ) دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[۲۲۳۷] باب ماجاء فى تحدث رسول الله ﷺ و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۸٦۹۸]

[3] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۲۰]

﴿الْفُجَّارِ﴾ راغلي دي. دهغې بيان دي[1] معنى ئې داده چې د كافرانو اوفاجرانو عمل نامې مهر لګولې شوې به دغلته محفوظ کړې شي چې په کښې به د څه کمۍ زياتۍ اوبدلون څه امکان نه وي اوددې دمحفوظ کولوځائې سجين دې ، هم دلته به دَ كافرانو روحونه جمع کولې شي.
﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ ، ﴿رَانَ﴾ د رين نه مشتق دي چې معنى ئې زنګ او خيرې دې ، مطلب دادې چې ددوئ په زړونو باندې د ګناهونو زنګ لګيدلې دې او څنګه چې زنګ اوسپنه خوري او خاوره ترې جوړه کړي ، دغسې ددوئ ګناهونه د دوئ د زړونو صلاحيت اوجوګتوب ختم کړې دې په کوم سره چې د ښۀ او بد بيلتون کولې شي.
ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې کله يومؤمن بنده ګناه کوي نو دهغه په زړه باندې يو تور ټکې اولګي. په توبې کولو سره او عمل صحيح کولو سره دغه تور ټکې ختم شي او زړه پخپل اصلي حالت باندې راتلو سره بيا روښانه شي اوکه توبه ئې اونکړه بلکه پخپلو ګناهونو کښې ئې په مخه زياتوالې کولو نو دغه تور والې ئې په ټول زړه باندې خور شي ، دغې ته ﴿رَانَ﴾ وئيلې شي چې په قرآن کريم کښې: ﴿بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ﴾ کښې راغلې دي. [ دا بغوي روايت کړو او دغسې ئې احمد رحمه الله او ترمذي رحمه الله ئې اخراج اوکړو او صحيح ئې ورته اووئيلو او نسائي ، ابن ماجه ، ابن حبان اوحاکم هم ، مظهري نه][2].
د ﴿كَلَّا﴾ لفظ چې ددې آيت مبارک په شروع کښې دې ، دېته حرف ردع وئيلې شي. ددې معنى دفع کول او زورنه وركول دي ، په اولنو آيتونو مبارکو کښې د كافرانو او د دروغو بللو بيان وو چې هغه قرآني آيتونو ته په قيصو بللو سره په دروغه بولي ، پدې آيت مبارک کښې د ﴿كَلَّا﴾ لفظ دهغوئ د زورنې او رټلو دپاره راوړې شوې دې چې جاهلانو دګناهونو په انبارونو کښې داخته کيدو په وجه دخپلو زړونو هغه نورانيت اوصلاحيت ختم کړې دې کوم سره چې حق او باطل پيژندلې شي اوالله ﷻ دا صلاحيت د هر انسان په فطرت اوخمبير کښې ايخودې دې ، مطلب دادې چې د دوئ دا دروغژن بلل په څه دليل يا عقل ، پوهې په بنا باندې نه دي بلکه په دې وجه دي چې ددوئ زړونه ړانده شوي دي ، دوئ ته ښه اوبد دسره په نظر نه راځي.
﴿إِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَمَحْجُوبُونَ﴾ يعني د قيامت په ورځ به دا كافران فاجران دخپل رب د زيارت نه محرومه دپردې شاته ايسار کړې شي. دا به دهغوئ د هغې عمل سزا وي چې په دنيا کښې ئې حق نه وو پيژندلې اوس د خپل رب د ملاقات او زيارت کولو جوګه پاتې نشو. امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمائي چې ددې آيت مبارک نه معلوم شو چې مؤمنانو او دالله ﷻ اولياء کرامو ته به دالله ﷻ زيارت نصيب کيږي ، ګنې بيا د کافرانو دا ايسارولو هيڅ فائده نشته دي[3].

---

[1]) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٢٥٠] و تفسير البغوى [ج: ٨ ص:٣٦٤]
[2]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٢٢] و تفسير البغوى [ج: ٨ ص:٣٥٠]و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب ومن سورة المطففين [ج:٢ ص:١٧١] و سنن ابن ماجة، ابواب الزهد ،باب ذكر الذنوب [ج:٢ ص:٣١٣ ] و المستدرك للحاكم كتاب التفسير باب تفسير سورة المطففين رقم الحديث:[٣٩٠٨] و السنن الكبري للنسائى رقم الحديث:[١١٦٥٨] و صحيح ابن حبان ، كتاب الرقاق باب الأدعية رقم الحديث:[٩٣٢]
[3]) تفسير البغوى [ج: ٨ ص:٢٦٥]

**فائده.** ځيني عالمانو فرمائيلي دي چې دا آيت مبارک ددې دليل دې چې هر انسان په فطری ډول الله ﷻ سره په محبت کولو مجبور دې ځکه ددنيا عام کافران او مشرکان که هر څومره په کفر او شرک کښي اخته دي او د الله ﷻ د ذات او صفتونو په باره کښي باطلې عقيدې لري خو دومره خبره په ټولو کښې شريکه ده چې د الله ﷻ لوئې او محبت د ټولو په زړونو کښې وی او دخپلې خپلې عقيدې په جوړ د الله ﷻ دلټون او رضا دپاره عبادتونه کوی. خو کله چې لار غلطه وی نو منزل مقصود ته نشي رسيدلې. مګر طلب د هغه حق د منزل وی. ددليل نيولو وجه داده چې که په کافرانو کښې د الله ﷻ د زيارت کولو شوق نه وې نو د دوئ د سزا دپاره بهٔ دا نه شو وئيلې چې دوئ به د زيارت الهی نه بې نصيبه پاتې کيږی ولې چې د زيارت نه دَ ډېره کوونکی دا سزا نشی کيدې چې د زيارت نه بې نصيبه کړې شي.

﴿اِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ﴾، ﴿عِلِّيِّيْنَ﴾ د ځيني حضراتو په نزد دعُلُوّ جمع ده او مراد د لوړې درجې علو او بلندی ده، او فراء په نزد دا د يوځائې نوم دې، دجمع په وزن راغلې دی خو جمع نه ده. اود سجين لفظ په تحقيق کښې وړاندې تير شوی دی چې د براء بن عازب ﷺ د مرفوع روايت نه ثابت دی چې عليين په اووم آسمان کښې دعرش لاندې يومقام دې په کوم کښې چې د مؤمنانو روحونه اوعمل نامه ايخودې کيږی ورپسې:

﴿كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ﴾ هم د عليين تفسير نه دې بلکه د نيکانو د عمل نامو بيان دې چې بيا ئې په: ﴿اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ﴾ کښې راغلې دې.

﴿يَّشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُوْنَ﴾، ﴿يَشْهَدُ﴾ د شهود نه مشتق دې. ددې معنی حاضريدل او په سترګو ليدل دی، ځيني مفسرينو حضراتو فرمائيلې دی چې د آيت مبارک مراد دادې چې د ابرار اونيکانو خلقو عمل نامې به مقربين يعنی فرښتې ګوری. قرطبی[(1)]. او که د شهود معنی حاضريدل واخستې شی نو د ﴿يَشْهَدُهُ﴾ ضمير به د کتاب په ځائې عليين ته راجع وی. او د آيت مبارک معنی به دا وی چې د الله ﷻ د نزديکانو روحونه به په دې مقام عليين کښې حاضر وی ځکه چې هم دغه مقام هم ددغې روحونو مقام جوړ کړې شوې دې. څنګه چې سجين د کافرانو د روحونو مقام دې. ددې دليل هغه حديث پاک دې چې په صحيح مسلم کښې د عبدالله بن مسعود ﷺ نه داسې روايت شوې دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې: د شهيدانو روحونه به د الله ﷻ په نزد دشنو مارغانو په ججورو کښې وی چې د جنتونو د باغونو او نهرونو سيل به کوی. او د هغوئ د اوسيدو ځايونه به قفصونو وی. چې د عرش لاندې به زوړند وی[(2)]. دې نه معلومه شوه چې دشهيدانو روحونه بهٔ د عرش لاندې وی او دجنت سيل به کولې شی. او په سورة ياسين کښې چې د حبيب نجار په واقعه کښې راغلې دی چې: ﴿قِيْلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۖ قَالَ يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ ۙ بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ﴾[(3)] دې نه معلوم شو چې حبيب نجار مړ کيدو سره په جنت کښې داخل شو او دحديث پاک په ځينې روايتونو کښې د مؤمنانو روحونه په جنت

---

(1) تفسير القرطبي [ ج:١٩ص:٢٦٤]

(2) صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب بيان ان ارواح الشهداء في الجنة [ج:٢ص:١٣٥]

(3) ترجمه:- ارشاد اوشو چې جنت ته داخل شئ وې وئيل چې کاش زما قوم ته دا معلومه شوې وې چې زما رب ماته بخښنه اوکړه.

کښې کیدل معلومیږي(۱) ، ددې تولو حاصل دادې چې ددې روحونو ډیره په اووم آسمان کښې د عرش لاندې ده او هم دغه مقام د جنت هم دې ، دغې روحونو ته د جنت د سیل کولو اختیار ورکړې شوې دې. او دلته اګر چې دا حال صرف د مقربینو پدې بیان شوې دې چې دوئ اعلی خصوصیت او فضیلت لری. مګر په حقیقت کښې هم دا ډیره د تولو مؤمنانو د روحونو هم ده لکه چې د کعب بن مالک ﷺ په حدیث مبارک کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې: [ انما نسمة المؤمن طائر يعلق فى شجر الجنة حتى ترجع الى جسده يوم القيامة ] (۲)
یعنی دمؤمن روح دمارغه په صورت کښې به دجنت په ونو کښې زوړند وی تر دې چې د قیامت ورځ به هغه خپلو جسمونو ته واپس راشی.
اوددې مضمون یو حدیث پاک دام هانی په روایت په مسند احمد او طبرانی کښې راغلې دې(مظهری)(۳)

**د مرګ نه پس دانسانی روحونو مقام چرته دې ؟ :** پدې معامله کښې د حدیث پاک روایتونه په ظاهره مختلف دی د سجین او علیین په تفسیر کښې چې کوم روایتونه بیان کړې شوی دی دهغې نه معلومیږی چې د کافرانو روحونه په سجین کښې پاتې کیږی. کوم چې په اوومه زمکه کښې دې او د مؤمنانونو روحونه په علیین کښې پاتې کیږی چې په اووم آسمان کښې د عرش لاندې دې او پدې اوسنی روایتونو کښې د ځینې نه دا معلومیږی چې د کافرانو روحونه به په جهنم کښې او د مؤمنانو روحونه به په جنت کښې وی. او دحدیث پاک د ځینې روایتونو نه معلومیږی چې د مؤمنانو او کافرانو دواړو روحونه به د دوئ په قبرونو کښې وی لکه د براء بن عازب ﷺ په اوږد حدیث پاک کښې راغلی دی چې کله د مؤمن روح فرښتې آسمان ته یوسی نو الله ﷻ اوفرمائی چې زما د بنده عمل نامه په علیین کښې اولیکئ او زمکې ته واپس کړئی ځکه چې دې مې هم زمکې نه پیدا کړې دې اود مرګ نه پس ئې هم هغې ته واپس کړئی
اوبیا به ئې هم ددې زمکې نه ژوندې کړې راؤباسم. په دې حکم سره به فرښتې دهغه روح قبر ته واپس راوړی. دغسې د کافر د روح دپاره به د آسمان دروازې نشی خلاصیدې او هم دغه حکم به وی چې دا خپل قبر ته واپس یوسئ ، امام عبدالبر ﷫ دا خبره غوره کړې ده چې د تولو روحونه د مرګ نه پس هم په قبر کښې وی. پدې کښې اولنی اودویم روایتونو کښې چې کوم دا اختلاف موندې شی چې ځینې روایتونو نه معلومیږی چې د مؤمنانو روحونه به په علیین کښې وی او ځینې نه معلومیږی چې په جنت کښې به وی ، په غور کولو سره دا څه اختلاف نه دې ولې چې علیین مقام هم په اووم آسمان کښې د عرش لاندې دې او د جنت هم دغه مقام دې لکه د قرآن کریم بیان دې چې: ﴿عِندَ سِدْرَةِ الْمُنتَهَىٰ ۝ عِندَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَىٰ ۝﴾(۱)

---

(۱) کنز العمال رقم الحديث:[۴۲۶۸۹]
(۲) موطا مالك كتاب الجنائز باب الجنائز [ج: ۱ص:۳۴۰] و سنن النسائى كتاب الجنائز ، باب ارواح المؤمنين[ج: ۱ ص:۲۹۲]
(۳) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۲۴] و مسند احمد ، ومن حديث ام هانى بنت ابى طالب ﷺ رقم الحديث:[۲۷۳۸۷] و المعجم الكبير رقم الحديث:[۲۰۸۳۸]
(۱) ترجمه:- سدرة المنتهى سره دې ته نزدې جنت الماوٰى دې.

یعنی جنت سدرة المنتهی سره دې او دا په اووم آسمان کښې دې څنګه چې حدیث پاک نه ثابته ده ، په دې بنا دغه ځائې هم جنت سره پیوست دې او دې روحونو ته د جنت د باغونو سیل نصیب دې ، ځکه دغې مقام ته جنت هم وئیلې شي.

داشان د کافرانو روحونه په سجین کښې دی او دا په اوومه زمکه کښې دې او د حدیث نه هم ثابت دی چې جهنم هم په اوومه زمکه کښې دې او جهنمیانو ته دغلته د جهنم تاؤ او تکلیفونه وررسی. ځکه دا وئیل صحیح دی چې د دوئ مقام په جهنم کښې دې ، البته دکوم تیر شوی روایت نه چې دکافرانو د روحونو په قبرونو کښې پاتې کیدل معلومیږی ، دا په ظاهره د تیرو شوؤ دوارو روایتونو نه مختلف دې ، ددې تطبیق ددې زمانې بیهقی قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې دابیان کړې دې چې د اخبره څه لرې نه ده چې دروحونو اصل مقام هم علیین اوسجین وی خو ددغې روحونو یوخاص تړون قبرونو سره هم قائم وی ، ددې رابطې په حقیقت خو دالله ﷻ نه سوا بل هیڅوک نه پوهیږی مګر څنګه چې نمر او سپوږمۍ په آسمان کښې دی اودهغې پلوشې زمکې لره هم روښانه کوی او ګرموی ئې دغسې د علیین اوسجین دروحونو څه معنوی رابطه قبرونو سره هم کیدیشی[1] او ددې تولو قولونو په جوړښت راوستو کښې د قاضی ثناء الله تحقیق دسورة نازعات په تفسیر کښې اوس تیر شوی دې ، ددې حاصل دادې چې د روح دوه قسمونه دی یو جسم لطیف دې چې دانسان په بدن کښې ورننوځی او دا مادی او عنصری جسم دې خو لطیف دې ځکه په نظر نه راځی دې ته نفس وئیلې شی. بل روح مجرد دې ، مادی نه دې . او هم دغه مجرد روح د اولنی روح ژوند دې ځکه ورته روح الروح وئیلې شي. دانسان د جسم سره تعلق خو ددې دواړو روحونو دې خو ړومبې قسم د روح د انسان په جسم کښې دننه پاتې کیږی چې د هغې دوتلو نوم مرګ دې ، د دې دویم روح د اول روح سره دې نزدې تعلق خو ئې شته خو ددې حقیقت الله ﷻ نه سوا بل چاته نه دې معلوم . دمرګ نه پس روح خو آسمانونوته اوړلې شی بیا قبرونوته راواپس کولې شی، ددې مستقر هم قبردې او هم اول په دې کښې عذاب اوثواب وی او روح مجرد په علیین یا سجین کښې پاتې کیږی. په دې شان تول قولونه رایوځائې شو اودمستقر ارواح جنت یا علیین کښې یاددې په مقابله کښې جهنم یا سجین کښې کیدل د روح مجرد په اعتبار سره دی اوددې مستقر په قبرکښې کیدل د روح اول قسم یعنی د نفس په اعتبار سره دی کوم چه جسم لطیف دې اودمرګ نه پس په قبرکښې پروت وی. والله اعلم.

﴿وَفِي ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ﴾ دتنافس معنی داده چې څه کسان د خاص زړه پورې ځیز دپاره منډې تررې وهی او کوشش کوی چې د نورو نه ړومبې حاصل کړی ، دلته د جنت دنعمتونو بیانولو نه پس الله ﷻ د غافل انسان دې اړخ ته مخه راګرځولې ده چې تاسو خو نن د دنیا فانی ځیزونو حاصلولو پسې لګیدلی یئ حالانکه دهمیشه پاتې کیدو ځیزونو او نعمتونو دجنت حاصلولو کوشش پکار دې چې په هر لحاظ سره مکمل هم دی او همیشه دپاره هم ، اکبر مرحوم فرمائی چې :

یه کہاں کا فسانه ہے سُود و زیاں ، جو گیا سو گیا جو ملا سو ملا

---

[1] ) تفسیر المظهري [ج:۱۰ص:۲۲۴]

کهو ذہن سے فرصت عمر ہے کم، جو دِلا تو خدا ہی کی یاد دِلا
یعنی داد کوم خاني افسانه ده سود او زیان چې کوم لاړو بس لاړو کوم چې حاصل شو نو حاصل شو، ذهن ته اووایه چې دعمر فرصت کم دې ، دالله ﷻ په یادولو کښې کوشش کوه .
﴿إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ﴾ په دې آیتونو مبارکو کښې الله ﷻ د اهل باطل د طرز عمل پوره نقشه راښکلې ده چې اهل باطل اهل حق مؤمنانو پورې استهزاءً خاندی او توقې ورپورې کوی او کله چې اهل حق ئې مخې ته راشی نو دا خلق خپل مینځ کښې یو بل سره دسترګو اشارې کوی چې دهغې نه مقصود هم هغوئ پورې توقې کول او ورته ضرر رسول دی ،بیا کله چې دا اهل باطل کافران خپلو خپلو ځایونوته راواپس شی نو مؤمنانو پورې ددغې کړو خنداګانو بیانونه کوی اومزې پرې اخلی او وائی چې مونږ مؤمنان بې عزته کړل او کله چې دغه خلق یعنی کافران مؤمنانو لره وینی نو په ښکاره دهمدردئی په انداز کښې داخبر کوی چې دا غریبانان یعنی مؤمنان ډیر ساده او نا پوهه دی چې محمد ﷺ ګمراه کړی دی دائې هم ورپسې توقې کول دی .
د نن صبا حالاتو باندې چې نظر واچولې شی نو نوی تعلیمافته خلق چې آخرت نه بې فکره شوی دی په الله ﷻ اورسول ﷺ باندې ئې تش په نوم ایمان راوړې دې ، هغوئ عالمانو نیکانو سره بعینه هم دغه رویه لری . الله ﷻ دې مسلمانان ددې دردناک عذاب نه خلاص کړی . مؤمنانو صالحانو دپاره په دې آیت مبارک کښې دتسلي کافی سامان دې پکار دی چې دوئ د خلقو دخنداګانو هیڅ پرواه اونه کړی ، چا څه ښه وئیلی دی چې :

ہنسے جانے سے جب تک ہم ڈرینگے — زمانہ ہم پہ ہنستا ہی رہے گا.

ترڅو چې مونږ دخلقو دخنداګانو نه ویریږو نو زمانه به هم مونږ پورې خندا کوی.

تمت سورة التطفيف والحمدلله ليلة يوم الاثنين ۱۲ شعبان ۱۳۹۱هجری

| ایاتونه | سورة الانشقاق مكية وهي خمس وعشرون اٰية وركوعا واحدا | ركوع كاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۲۵ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دی | ۱ |

اِذَا السَّمَآءُ انۡشَقَّتۡ ۝۱ وَاَذِنَتۡ لِرَبِّهَا وَحُقَّتۡ ۝۲

كله چې آسمان | اوشليږي | او حكم اومني | درب خپل | او حق دادې چې حكم اومني |

څه وخت چې آسمان اوشليږي |او دخپل رب حكم اومني |او هغه هم ددې قابل دې [چه دخپل رب حكم اومني]

وَاِذَا الۡاَرۡضُ مُدَّتۡ ۝۳ وَاَلۡقَتۡ مَا فِيۡهَا

او كله چې زمكه | خوره يعنى همواره كړې شي | او راواغورزوي | هغه څه چې په هغې كښې دننه دي |

او هر كله چې زمكه راښكلې شي| او هرڅه چې په كښې دي هغه بهر ته راوغورزوي

وَتَخَلَّتۡ ۝۴ وَاَذِنَتۡ لِرَبِّهَا وَحُقَّتۡ ۝۵ يٰۤاَيُّهَا الۡاِنۡسَانُ اِنَّكَ

او خالي شي | او حكم اومني | درب خپل | او حق دادې چې حكم اومني | اې انسانه | بيشكه ته |

| اوخالي شي | اودخپل رب حكم اومني | او هغه هم ددې قابله ده [چه داسې اوكړي] | اې انسانه ! ته

كَادِحٌ اِلٰى رَبِّكَ كَدۡحًا فَمُلٰقِيۡهِ ۝۶

عمل كونكې روان يې | رب خپل ته | په عمل كولو سره | نو ته ملاويدونكې يې دهغه سره |

لګيا يې دخپل رب طرف ته كوشش كوې | او خامخا ورسره مخامخ كيدونكې يې

فَاَمَّا مَنۡ اُوۡتِىَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيۡنِهٖ ۝۷

نوهر چې هغه څوك دى | چې وركړې شوه | عملنامه دهغه | په ښى لاس دهغه كښې |

نوهغه څوك چه عملنامه ورته په ښى لاس وركړې شي ..........

فَسَوۡفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيۡرًا ۝۸ وَّيَنۡقَلِبُ اِلٰۤى اَهۡلِهٖ مَسۡرُوۡرًا ۝۹

نوزردې حساب به اوكړې شي دهغه سره | حساب آسان | او واپس به شي | اهل خپل ته | خوشحاله |

نو هغه سره به آسان حساب اوشي| او خپلو خپلوانو ته به خوشحاله ورشي

وَاَمَّا مَنۡ اُوۡتِىَ كِتٰبَهٗ وَرَآءَ ظَهۡرِهٖ ۝۱۰ فَسَوۡفَ يَدۡعُوۡا

او هر چې هغه څوك دى | چې وركړې شوه | عملنامه خپله | دشا دهغه نه | نو آوازونه به كوى |

او چا ته چې عمل نامه د شا دطرفه وركړې شي | ........... .........نو هغه به د هلاكت دعاګانې

ثُبُوۡرًا ۝۱۱ وَّيَصۡلٰى سَعِيۡرًا ۝۱۲ اِنَّهٗ كَانَ فِىۡۤ اَهۡلِهٖ مَسۡرُوۡرًا ۝۱۳

هلاكت ته | او ننوزى به بل اور ته | بيشكه هغه وو | په كوروالو خپل كښې | خوشحاله |

....او هغه به بليدونكې اور ته داخليږي| دې به په [دنيا] كښې خپلو خپلوانو كښې ډير خوشحاله اوسيدو

إِنَّهُ ظَنَّ أَن لَّن يَحُورَ ﴿١٤﴾ بَلَىٰ إِنَّ رَبَّهُ

بیشکه هغه خیال کوؤ | چې هرگز به هغه واپس نشي الله ته | ولې نه | بیشکه رب دهغه |

ددهٔ داگمان وو چې [الله ﷻ] ته به نه پیش کیږم | ..........ولې نه بیشکه الله ﷻ ددهٔ

كَانَ بِهِ بَصِيرًا ﴿١٥﴾ فَلَا أُقْسِمُ بِالشَّفَقِ ﴿١٦﴾ وَاللَّيْلِ

وو د عمل دهغه | لیدونکې | نو نهٔ | قسم خورم | دماښام په سرخئ باندې | او په شپه باند |

کارونه لیدل کتل | نو زما دې په سورخئ باندې قسم وی | او په شپه اوپه هغه څیزونو چې شپې

وَمَا وَسَقَ ﴿١٧﴾ وَالْقَمَرِ إِذَا اتَّسَقَ ﴿١٨﴾ لَتَرْكَبُنَّ

او په هغه چې راجمع کړې دا شپه | او په سپوږمئ باند | کله چې کامله شي | خامخا به تاسو ورخیژئ

راغونډ کړی وی | او په سپوږمئ څه وخت چې پوره [بدر] شي چې تاسو به پوړئ

طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴿١٩﴾ فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾

یو حالت ته | دبل حالت نه پس | نو څه شوی دی په دوی | چې دوئ ایمان نهٔ راوړی |

پاؤړئي په پاؤړئ خیژئ |........... نو دا په دوئ څه شوی دی چې دوئ ایمان نه راوړی

وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ ﴿٢١﴾ بَلِ الَّذِينَ

کله چې لوستلې کیږی | په دوئ باند | قران | نو دوئ سجده نهٔ کوی | بلکه هغه کسان |

او کله چه دوئ ته قران پاک اولوستلې شي | نو دوئ سجده نه کوی | ............بلکه

كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ ﴿٢٢﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا

چې کفر ئې کړی دی | هغوئ دروغ گڼړی قران | او الله عالم دی | په هغه څه باند |

کافران [دا هرڅه] دروغ گڼړی | ............ اودوئ د زړونو په حال الله ﷻ ښه

يُوعُونَ ﴿٢٣﴾ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٤﴾

چې دوئ ئې ساتي په زړه کښې | نو زیرې ورکړه دوئ ته | د عذاب دردناک |

عالم دی | ............نو دوئ ته د دردناک عذاب زیرې ورکړه

إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ أَجْرٌ

مگر هغه کسان چې ایمان ئې راوړې دې | او عملونه ئې کړی دی نیک | هغوئ دپاره | بدله ده |

خو څوک چې مومنان دی | اونیک کارونه کوی | هغوئ دپاره نه ختمیدونکې اجر

غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٢٥﴾

نهٔ ختمیدونکې

مقرر دی

## آسان ترجمه قرآن

چه کله آسمان اوچوی او هغه به د خپل پروردګار حکم اوریدلو سره اومنی، او په هغه باندې لازم دی، چه داسې اوکړی او کله چه زمکه راخکلې شي او په دې کښې دننه چه څه دی، هغه به بهر راؤغوزوی، او

خالي به شي او هغې به د خپل پروردګار حکم اوریدلو سره اومني، او په هغې باندې لازم دی، چه داسې اوکړي. (دغه وخت به انسان ته خپل انجام معلوم شي) اے انسانه اته به خپل پروردګار ته رسیدلو پورې مسلسل په څه محنت کښې لګیدلې ئې تردې پورې چه هغه سره ملاؤ شې بیا چه کوم سړی ته د هغه اعمال نامه په ښي لاس کښې ورکړې شي، نو د هغه نه به آسان حساب اخستلې شي. او هغه به خپل کور والو ته په خوشحالئ سره واپس شي. لیکن هغه سړې چه هغه ته د هغه اعمال نامه روستو د شا نه ورکړې شي هغه به مرګ رابلي. او په تیز اور کښې به داخلیږي. مخکښې هغه د خپل کور والو په مینځ کښې خوشحاله وو. هغه داګنړلې وو، چه چرې به هم (الله تعالٰی ته) اونه ګرځي. ولې نه؟ د هغه پروردګار یقیناً هغه لیده. اوس زه قسم خورم په شفق باندې او په شپه باندې، او په هغې ټولو څیزونو باندې، کومو لره چه هغه راټولوي او په سپوږمئ باندې، چه کله پوره شي چه تاسو ټول به د یو منزل نه بل منزل ته خامخا خیژئ بیا دې خلقو ته څه شوې دی، چه ایمان نه راوړي؟ او کله چه ددوی مخکښې قرآن لوستلې شي، نو سجده نه کوي؟ بلکه دا کافران خلق حق لره دروغ ګنړي. او څه چه دوی جمع کوي، الله تعالٰی ته ښه معلوم دی اوس ته دوی ته د یو دردناک عذاب زیرې واوروه البته چه کومو خلقو ایمان راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، هغوی ته به داسې ثواب ملاویږي، چه چرې به هم نه ختمیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ﴾ [هر کله چه] ددویمې شپیلئ په وخت کښې [اسمان څیرې شی] چه ددې نه دوریځې په شکل دیو شي نزول وی په کوم کښې چه به فریښتې وی چه ذکرئې په نولسمه پاره ،وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ اوآیت وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ الخ(١) کښې دې ﴿وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ﴾ [اودخپل رب حکم به واوری] اومنی دلته دحکم نه مرادحکم تکوینی دانشاق دې اودمنلو نه مراد ددې وقوع دې [اوهغه] اسمان په وجه دقدرت دمحکوم کیدو [ددې لایق دې] چه کوم امر مشیت ددې په حقله وی دهغې وقوع خامخا وشی ﴿وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ﴾ [اوهر کله چه مزکه رابنکلې شی لویه کړې شی] لکه څرمن یاربړ چه رابنکلې شی [پس ددې وخت په مقدار سره به ددغې وخت مقدار زیات کړې شی چه ټول اولین اواخرین په دغې کښې ځائې شی لکه چه په درمنثور کښې په روایت دحاکم په سند جید سره مرفوعا وار ددې تمد الارض یوم القیمة مد الادیم الخ(٢) پس داسمان دانشقاق اومزکې دا اوږدول دواړه دحساب محشر دمقدماتو نه دی ﴿وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ﴾ [او] دغه مزکه [دخپل دننه څیزونه به] یعنی مړولره به [بهر راوغورزوی او] دټولو مړو نه به [خالی شی او] هغه مزکه [دخپل رب جکم به واوری اوهغه ددې لائقه ده] ددې تفسیر هم په مثل دتیردې پس دغه وخت به انسان خپل عملونه ووینې لکه چه وړاند ارشاد دې چه ﴿يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَاقِيهِ﴾ اې انسانه [ته خو خپل رب ته درسیدو پورې] یعنی دمرګ تروخته پورې [په کار کښې کوشش کوې] یعنی خنې په نیک

---

(١) ترجمه:- او په هغه ورځ چې آسمان اوچوی | په وریځې سره.او فرښتې به په کثرت سره راکوزیږی.

(٢) تفسیرالدرالمنثور سورة الإسراء آیت ٧٦ ، و وسن ابن ماجة ابواب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عیسی بن مریم ﷺ وخروج یاجوج وماجوج [ج: ٢ ص:٢٩٥] و شعب الإیمان للبیهقي فصل فی اصحاب الکبائر من اهل القبلة ..... إلخ رقم الحدیث[٢٩٨] و المستدرك للحاکم رقم الحدیث:[٨٧٠١]

کار کېښې لګیدلی دی ختی په بدکار کېښې [بیا ] په قیامت کېښې [دهغې ] کار دجزاء[ سره ملاوشی نو] په دغه ورځ ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ﴾[دکوم سړی عملنامه چه ده ته په ښي لاس ملاو شی ﴿فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا﴾ پس دهغه نه به اسان حساب واخستې شی ﴿وَيَنْقَلِبُ إِلَى أَهْلِهِ مَسْرُورًا﴾ او هغه به ] چه ددې نه فارغ شی [دخپلو متعلقینو خواته به په خوشحالۍ خوشحالۍ راشی ] اوداسان حساب مختلف مراتب دی یوداچه په ده به بالکل عذاب مرتب نه وی دخنو دپاره خو به داوی اوپه حدیث کېښې ددې تفسیر داراغلې دې چه په کوم حساب کېښې مناقشه [په وړه وړه خبره نیول] نه وی صرف پیشی وشی دابه ده هغه چا دپاره وی کوم چه بغیر دخه عذاب نه نجات بیامومی دویم دا چه په ده عذاب دائمي نه وی اودابه دعامو مؤمنانو دپاره وی اومطلق عذاب ددې منافی نه دې ﴿وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ وَرَاءَ ظَهْرِهِ﴾ [اودَ کوم سړی عملنامه چه ] ده په ګس لاس کېښې [دده دشانه ملاو شی ] مراد ددې نه کفار دی اودشاد دطرف نه دملاویدو دوه صورتونه کیدې شی یوداچه دده لاسونه به تړې شوی وی ګس لاس به ئې هم شاته وی دویم صورت دمجاهد قول دې چه دده ګس لاس به شاته وویستلې شی لکه په درمنثور(۱ ) کېښې دی ﴿فَسَوْفَ يَدْعُو ثُبُورًا﴾ [پس هغه به مرګ لره بلی] لکه چه په مصیبت کېښې عادت دې چه دَ مرګ ارزو کوی ﴿وَيَصْلَىٰ سَعِيرًا﴾ [اوپه جهنم کېښې به داخل شی ﴿إِنَّهُ كَانَ فِي أَهْلِهِ مَسْرُورًا﴾ دا سړې ]په دنیا کېښې [په خپلو متعلقینو کېښې ] یعنی اهل وعیال خادمانو اونوکرانو کېښې[خوشحاله خوشحاله وسیدو] تر دې چه په ډیره خوشحالۍ کېښې د اخرت دروغژن کوونکې شوې وو لکه چه وړاند ارشاد دې چه﴿إِنَّهُ ظَنَّ أَنْ لَنْ يَحُورَ﴾[هغه خیال کړې وو چه هغه لره ] خدائې طرف ته [واپس کیدل نشته ] وړاند رد دې ددې ګمان چه ﴿بَلَىٰ إِنَّ رَبَّهُ كَانَ بِهِ بَصِيرًا﴾ واپس کیدل به [ولې نه وی] وړاند دواپس کیدو نه پس دجزااثبات دې چه[ددوی رب دوی لره ښه لیدلو] اوددوی په عملونو ئې دجزا ورکولو سره مشیت متعلق کړې وو په دې وجه دجزا وقوع ضروری وو[پس] په دې بنا ﴿فَلَا أُقْسِمُ بِالشَّفَقِ﴾[زه قسم خورم په شفق ﴿وَاللَّيْلِ وَمَا وَسَقَ﴾ اوپه شپه اوپه هغو څیزونو کوم چه شپه راغونډ وی ] جمع کوی ئې مراد هغه ټول جاندار دی کوم چه دشپې د ارام دپاره خپلو خپلوځایونو ته ځی ﴿وَالْقَمَرِ إِذَا اتَّسَقَ﴾[اوپه سپوږمۍ هرکله چه هغه پوره شی] یعنی کامل بدرترې نه جوړ شی په دې ټولو څیزونو قسم خورم وایم ﴿لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ﴾[چه تاسوخلق به خامخا دیوحالت نه پس بل حالت ته رسئ ] داتفصیل دې دیَآيُّهَا الْإِنْسَانُ نه تر دَ فَمُلَاقِيهِ پورې پس هلته جنس ته خطاب وو دلته جمع افراد ته خطاب دې هلته ئې ملاقات کیدل دعمل سره ذکر مجملا وفرمائیلو دلته دهغه شی تفصیل دې دَ کوم سره چه په ورځ دمحشر ملاویږی یادده مخې ته راځی اودغه حالتونه یومرګ دې ددې نه پس دبرزخ حالات ددې نه پس دقیامت حالات بیا په خپله په دوی کېښې هم تعداد او کثرت دې او ددې قسمونو دمقام سره مناسبت داسې دې چه دشپې حالات مختلف کیدل چې اول شفق ښکاره شی بیا زیاته شپه راشی نو ټول اوده شی اوبیا دیوې شپې نه دبلې شپې دسپوږمۍ درڼرا زیاتوالې اوکم والې مختلف کیدل داټول مشابه دی داختلاف داحوالوسره پس دمرګ نه او دارنګ دمرګ نه عالم اخرت شروع کیږی لکه دشفق نه چه شپه شروع کیږی بیا

---

۱ تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۲۲۵]

په عالم برزخ کښې پاتې کيدل مشابه دی دخلقو داوده کيدلو سره اودسپوږمۍ پوره کيدل پس دنړۍ والی نه مشابه دی دقيامت دحيوة سره پس دفناد عالم نه ﴿فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ [پس] سره ددې مقتضياتو ډيرې اوايمان داجتماع نه [دې خلقو لره څه وشو چه ايمان نه راوړی او] په خپله خو دايمان اوحق طلب څه دې ددوی دعناد خو داحالت دې چه ﴿وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ﴾ [کله ددوی په وړاند قرآن لوستلې شي نو] دغه وخت هم خدائې طرف ته [نه ښکته کيږی ﴿بَلِ﴾ بلکه] په ځائې دښکته کيدو ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ﴾ [او کافران] نور التبه [تکذيب کوی ﴿وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ﴾ اوالله تعالی هر څه نه خبر دې څه چه داخلق] دبدو عملونو ذخيره [جمع کوی پس] ددې کفريه عملونو په سبب ﴿فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ [ته دوی ته ديو دردناکه عذاب خبر ورکړه ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ﴾ ليکن کوم خلق چه ايمان راوړی اوهغوی نيك عملونه وکړی دهغوی دپاره] په اخرت کښې [داسې اجر دې کوم چه چرې موقوف کيدونکې نه دې] دعمل صالح قيد دشرط په طور نه دې بلکه دسبب په طريقه دې]

## معارف او مسائل

دې سورت کښې د قيامت د حالاتو ، حساب کتاب او دنيک او بد د جزاء سزا او بيان غافل انسان ته پخپله خپل ذات او دهغه په چارچاپيره حالاتو کښې د غور کولو او ده ته په الله ﷻ اوقرآن پاک باندې دا يمان راوړو او دې ته د رسيدو هدايت دې ، دې کښې اول د آسمان د څيرې کيدو او د زمکې ددې حال بيان دې چې دا به دخپلې خيټې نه خزانې يا مړه انسانان رابهر کړی او محشر دپاره به يوه نوې زمکه تياره شي چې هوار ميدان به وی څه غار ، کنده اونه عمارت او غونډئی وغيره به نه وی. دا به په رانښکلو سره نوره هم اوږده کړې شی. چې ټول وړاندينی روستنی خلق به پرې ځائې شی ، دابيان په نورو سورتونو کښې په مختلفو عنوانانو سره راغلې دې. دلته يو نوې زياتوالې دادې چې د قيامت په ورځ به کوم تصرف د الله ﷻ د طرفنه وی دهغې باره کښې فرمائی چې: ﴿وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ﴾ د ﴿أَذِنَ﴾ معنی داده چې واؤبه ری ، مطلب دا دې چې په آوريدو سره به تابعداری کوی. د ﴿حُقَّتْ﴾ معنی داده چې [حق لها الانقياد] يعنی په زمکه باندې د الله ﷻ تابعداری کول واجب دی

**دالله ﷻ د حکمونو دوه قسمونه** :: دلته د آسمان او زمکې دتابعدارئی کولو او حکم منلو دوه معنې کيدې شی ، ولې چې د الله ﷻ حکمونه په دوه قسمه وی. يو تشريعی او بل تکوينی. تشريعی هغه دی چې په کښې يو قانون خودلې شی او ددې د خلاف کولو سزا هم خودلې شی خو کوونکې ئې خالص مجبور نشی کرځولې بلکه ددې اختيار ورکولې شی چې هغه په دغې حکمونو عمل کوی او که نه؟ داسې حکمونه عموما په هغې مخلوق باندې جاری کولې شی چې دعقل خاوندان وی لکه انسانان اوپيريان ، پدې باندې د دوئ نه فرمانبرداره اونافرمانه خلق جوړ شی. تکوينی او تقديری احکام داسې دی چې دهغې جاری کول جبری وی ، هيڅوک هم دهغې نه دسر ويښته هومره مخالفت هم نشی کولې. دې کښې پيريان او بنيادم هم داخل دی. يعنی څوک چې په تقدير کښې مؤمن ، کافر يا متقی ، فاسق وغيره کرځولې شوې وی ، ټول په ټوله د دغې تقديری قانون په جوړ په چليدلو باندې مجبور دې.

ذره ذره دہر کا پابستہ تقدیر ہے  زندگی کے خواب کی جامی یہی تعبیر ہے

یعنی د زمانې ذره ذره د تقدیر پابند ده ، اې جامی د ژوند دخوب هم دا تعبیر دې .
دلته دا کیدیشی چې آسمان او زمکې ته الله ﷻ شعور او فهم ورکړی کوم چې په مکلفینو کښې وی او کله چې دوئ ته څه حکم د الله ﷻ دطرفنه ملاؤشو ، هغې په خپل اختیار سره په دې باندې عمل اوکړو او دا هم کیدیشی چې ددې حکم نه مراد تکوینی حکم واخستې شی چې په منلو ئې مجبوره وی او نه منل ئې په اختیار کښې نه وی خو د : ﴿وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ﴾ الفاظ رومبئ معنې ته زیات نزدې دی ، د مجاز په ډول دویمه معنی هم ترې اخستې شی .
﴿وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ﴾ مد معنی راښکل او اوږدول دی ، د جابر بن عبد الله ﷛ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به زمکه په داسې شان راښکولو سره اوږدولې شی چې څنګه څرمن په راښکولو سره اوږدولې شی .مګر سره ددې به په میدان محشر کښې په دې زمکه ټول خلق پدې شان سره راجمع کولې شی چې د هر چا به صرف هغه ته د ولاړې ځائې به په کښې رسی ، [ حاکم په جید سند سره روایت کړو ، مظهری ] (۱).
﴿وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ﴾ یعنی راؤبه باسی زمکه هر هغه څیز چې ددې په خیټه کښې دې او بیخی به خالی شی ، یعنی د زمکې خزانې ، کانونه او ټول مړی انسانان به زلزلې راتلو سره د خپلې خیټې نه بهر راؤباسی .
﴿يَا أَيُّهَا الْإِنْسَانُ إِنَّكَ كَادِحٌ﴾ ،د ﴿كَدْحٌ﴾ معنی په یو کار کښې پوره کوشش او زور لګول دی .
د ﴿إِلَى رَبِّكَ﴾ معنی الی القاءربك یعنی د رب ملاقات ته ده ، یعنی د انسان د هر کوشش او هلې ځلې انتها خپل رب ته کیدونکې ده .
**الله ﷻ ته رجوع کول** :: په دې آیت مبارک کښې الله ﷻ انسانانو ته په خطاب کولو سره ورته د غور و فکر داسې یو لار خودلې ده چې څه قدرې هم عقل او شعور په کښې وی نو هغه د خپل کوشش مخه صحیح طرفته ګرځولې شی . چې په دنیا او دین کښې دسلامتئ او عافیت ضامن شی ، رومبئ خبره خوئې دا ارشاد کړه چې هر انسان ، نیک او بد ، مؤمن ، کافر دخپل فطرت نه ددې عادی دې چې څه نا څه حرکت اوکړی او څه څیز خپل مقصود جوړ کړی او د هغې دحاصلولو دپاره کوشش اومحنت برداشت کړی څنګه چې یو شریف او نیک خویه انسان د خپل معاش او ژوند د ضروریاتو حاصلولو دپاره فطری او جائز طریقې اختیاروی او په دې کښې خپل محنت او طاقت لګوی بدکار او بد خویه انسان هم خپل مقصودونه چرې بې محنته او بې کوششه نشی حاصلولې ، غله او ډاکوان او بدمعاشان اوګورئ چې په دهوکه ورکولو او لوټلو کښې څومره جسمانی او ذهنی تکلیفونه اوخوارئ کوی هله ئې مقصود حاصلیږی . دویمه خبره ئې دا اوخودله چې عقل مند انسان که غور اوکړی نو دهغه ټول حرکتونه بلکه سکنات هم د یو سفر پړاؤ نه دی چې په غیر شعوری ډول دهغې نه تیریږی او چې د هغې انتها د الله ﷻ په وړاندې حاضری ورکول یعنی مرګ دې .
په ﴿إِلَى رَبِّكَ﴾ کښې هم ددې بیان دې ، او دا انتها داسې حقیقت دې چې څوک ترې انکار نشی کولې یعنی د هر انسان هر کوشش او محنت په مرګ باندې ختیمدل یقینی دی . دریمه خبره

۱) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٢٨] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٨٧٠١]

ئې دا اوخودله چې د مرګ نه پس دخپل رب په وړاندې د حاضرئ په وخت کښې دهغه د ټولو حرکتونو عملونو او هر کوشش حساب کيدل دعقل او انصاف تر مخه ضروري دې . دپاره ددې چې د نيک او بد انجام بيل بيل معلوم شي . ګني نو په دنيا کښې ددې هيڅ بيلتون نشي کيدې . يو نيک بنده چې د يو مياشتې په محنت سره خپله روزي او کوم ضروريات حاصلوي غل داکو ئې صرف په يوه شپه کښې حاصلولې شي . که د حساب کتاب وخت يعني قيامت نه وې او د جزاء او سزا دغه وخت راتلل نه وې نو دواړه قسمه خلق به برابر وو چې دعقل او انصاف نه خلاف دی ، په آخر کښې فرمائي چې :

﴿فَمُلٰقِيْهِ﴾ ، د ﴿مُلٰقِيْهِ﴾ ضمير كدح ته هم راجع كيديشي ، نو معنى به ئې دا وي چې كوم كوشش دلته هر انسان كوي آخر خپل رب ته په رسيدو سره به خپلې دې كتې او كړو وړو ته رسى . د هغې ښې او خراب نتيجې بهٔ ئې مخې ته راشي او دا هم كيديشي چې د غه ضمير رب ته راجع وي اومعنى ئې دا وي چې هر انسان په آخرت كښې خپل رب سره ملاويدنكې او حساب كتاب دپاره د هغه په وړاندې پيش كيدونكې دې .

وروسته دنيک او بد ، مؤمن او کافر انسانانو د ځان ځان له انجام بيان دې ، شروع ئې داده چې عمل نامه به ورته په ښي يا ګس لاس کښې راځي . چا ته چې په ښي لاس کښې عمل نامه ورکړې شي هغه ته د جنت د نعمتونو دائمي زيرې دې . او چا ته چې په ګس لاس کښې عمل نامه ورکړې شي نو هغوئ ته د دوزخ د عذاب خبر ورکولې شي . په دې مجموعه باندې که انسان غور اوکړي چې د ژوند ضروريات بلکه غير ضروري دخوند ځيزونه خونيک و بد دواړه قسمه خلق حاصلوي ، داشان ددنيا ژوند د دواړو تيريږي خو ددې دواړو په انجام کښې د زمکې او آسمان فرق دې ، د يو په نتيجه کښې نه ختميدونکې هميشه پاتې کيدونکې آرام دې . دبل په نتيجه کښې دهميشه مصيبت عذاب دې بيا دې ولې انسان دغې انجام ته د خپل کوشش او عمل مخه اونه ګرځوي چې دنيا کښې ددهٔ ضرورتونه پوره کوي او د آخرت هميشه نعمت ورته حاصل شي .

﴿فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ۙ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا ۙ وَّيَنْقَلِبُ اِلٰٓى اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا ۙ﴾ په دې کښې دمؤمنانو حال بيان شوې دې چې ورته به عمل نامه په ښي لاس کښې ورکولې شي . ډير آسان حساب کتاب به ترې اخستې شي . د جنت زيرې به ورکړې شي او خپلو کور والو ته به په خوشحالئ خوشحالئ واپس کيږي د صحيح بخاري په يو حديث پاک کښې د عائشه صديقه ﷦ روايت دې چې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل: [من حوسب يوم القيامة عذب]

چې چا سره د قيامت په ورځ حساب او کړې شو هغه به د عذاب نه نه خلاصيږي . عائشه صديقه ﷦ سوال اوكړو چې قرآن پاک کښې دالله ﷻ دا ارشادنه دې چې :

﴿يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا ۙ﴾ نو نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چې په دې آيت مبارک کښې کوم ته حساب يسير وئيلې شوې دې هغه په حقيقت کښې مکمل حساب نه دې بلکه صرف درب العزت په وړاندې پيشي كول دی . اوچا نه چې د خپل عمل پوره پوره حساب واخستې شو هغه به هيچرې دعذاب نه نه خلاصيږي[1] .

---

[1]) صحيح البخاري كتاب العلم ،باب من سمع شيئا فلم يفهمه فراجع حتى يعرفه [ج:١ص:٢١]

دي حديث پاک نه معلومه شوه چې د مؤمنانو عملونه به هم د رب العالمين په وړاندې ټول پيش کيږي مګر د ايمان په برکت به په هغوئ باندې د هر عمل ټکې په ټکې حساب نه وي ، ددې نوم حساب يسير دې . او خپلو کور والو ته خوشحال خوشحاله د واپس کيدو دوه معنې کيدېشي ، يا خو د کور والو نه مراد د جنت حورې دي چې هلته به د دوئ کور والا وي او دا هم کيدېشي چې ددنيا کور والوته به دحساب کتاب نه پس خوشحالئ ښکاره کولو او زيرې ورکولو دپاره ورځي څنګه چې ددنيا دستور دې ، د تفسير امامانو دواړه احتمالونه بيان کړي دي . [ قرطبي ] ([1]).

﴿إِنَّهُ كَانَ فِيٓ أَهۡلِهِۦ مَسۡرُورًا﴾ يعنې د چا عمل نامه بهٔ چې دهغه د شا طرف نه دهغه په ګس لاس کښې ورکولې شي هغه بهٔ هلته خواهش کوي چې کاش هغه بيا خاورې شوي چې د عذاب نه خلاص شي ، خو دا به نشي کيدې څکه به جهنم ته بوتلې شي ، دهغې وجه يوه داده چې په دنيا کښې بهٔ هغه پخپل بال بچ کښې د آخرت نه په بې فکره کيدو سره په ناز او خوشحالئ اوسيدو ، په خلاف د مؤمنانو نه چې ورته به ددنيا په ژوند کښې کله هم بې فکري نه وي . بلکه د هر عيش و راحت په وخت به هم د آخرت فکر ورته ضرور لګيدلې وو لکه قرآن پاک ئې چې حالت داسې بيانوي چې : ﴿إِنَّا كُنَّا قَبۡلُ فِيٓ أَهۡلِنَا مُشۡفِقِينَ﴾ يعنې مونږ به چې بال بچ سره پاتې کيدو هم به راسره د آخرت ويره وه ، څکه ددې دواړو انجام ددوې مناسب اوشو چې په دنيا کښې به څوک خپل آل او عيال سره د آخرت نه بې فکره اوسيدل دعيش وعشرت او خوند مزو ژوند به ئې تيرولو نن به دهغوئ په برخه د جهنم دا عذاب وي اوکوم خلق چې به په دنيا کښې دآخرت دحساب او عذاب نه ويريدل ، هغوئ به هلته خوشحاله وي او اوس به خپل بال بچ سره په هميشه خوشحالئ کښې پاتې کيږي . دې نه معلومه شوه چې ددنيا په آرام او مزو کښې مست او خوشحاله پاتې کيدل د مؤمن کار نه دې ،بلکه دوئ ته په هيڅ حال کښې هم د آخرت د حساب نه بې فکري نه وي .

﴿فَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلشَّفَقِ﴾ په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ د څلورو شيانو په قسم سره مؤکد کولو سره د انسان بيا دغې خيز ته مخه راګرځولې ده چې بيان ئې ړومبې په : ﴿إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾ کښې راغلې دې . په غور کولو سره دا معلوميږي چې دا څلور شيان دهغې مضمون ګواهان دي کوم چې په جواب دقسم کښې راتلونکې دې . يعنې انسان لره په يو حال قرار نشته ، ددهٔ حالات او درجې هر وخت بدليږي ، ړومبې څيز شفق دی . شفق هغه سرخي ده چې نمر ډوبيدو نه پس مغرب طرف ته د آسمان په کنارو کښې ښکاري . دا د شپې شروع ده چې د انسان په حالاتو کښې د يو لوئې انقلاب مقدمه ده چې رڼا روانه اود تيارې سيلاب راروان دې ، دې نه پس پخپله د شپې قسم دې چې دغې انقلاب لره مکمل کوي . وروسته دهغې ټولو څيزونو قسم دې چې دشپې تيارې په خان کښې جمع کوي .

د ﴿وَسَقَ﴾ اصلي معنې جمع کول دي([2]) که عامه معنې ترې مراد واخستې شي نو په کښې ددنيا ټول کائنات داخل دي . کوم چې د شپې په تياره کښې پټيږي ، ساوالا ، نباتات ،

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۹ص:۲۷۲]

[2]) لسان العرب تحت مادة وسق [ج:۱۰ص:۳۷۸]

جمادات غرونه او دریابونه وغیره ټول شامل دي. او دجمع کولو په مناسبت سره ئې دا
معنی هم کیدیشي چې کوم څیزونه د عادت تر مخه د ورځې په رڼا کښې خوارۀ پاتې کیږي
د شپې په وخت ، هغه ټول په راپو ځائې کیدو سره خپلو خپلو مقامونو کښې راجمع کیږي
په کاروبار کښې خواره شوی سامانونه راغونډکړی یوځائې کړې شي دا لونې انقلاب پخپله
انسان اود هغه په متعلقاتو کښې دې ، څلورم څیز دکوم چې قسم خوړلې شوې دې هغه
﴿وَالْقَمَرِ اِذَا اتَّسَقَ﴾ دې ، دا هم د ﴿وَسَقَ﴾ نه مشتق دې چې معنی ئې راجمع کول دی. د سپوږمۍ
راجمع کول د خپلې رڼا راجمع کول دی چې دا په څوارلسمې شپه کښې وی کله چې میاشت
بیخی مکمله وی ، د ﴿اِذَا اتَّسَقَ﴾ لفظ د سپوږمۍ مختلفو طریقو او حالاتو ته اشاره ده چې
اول د یو انتهائی نرئی لیندې په شکل کښې وی بیا په مزه مزه په ترقی کولو سره د
څوارلسمې شپې مکمله شپوږمۍ شي. په مخه بدلیدونکو حالاتو دګواهۍ ورکوونکو څلورو
څیزونو په قسم خوړو سره الله ﷻ اوفرمائیل چې: ﴿لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ﴾ کوم څیزونه چه قط په
قط وی هغې یوقط ته طبق یا طبقه وئیلی شي جمع ئې طبقات راځي.

﴿لَتَرْكَبُنَّ﴾ د رکوب نه مشتق دې معنی ئې سوریدل دی معنی ئې داده چې ائې ورکونکی انسانه!
ته همیشه د یوې طبقې نه په بلې طبقې باندې مجبوره په مخه سوریدونکې روان ئې ، یعنی
بني نوعه انسان دخپل پیدا کیدو د اول سر نه تر آخره پورې په یو حال باندې نه پاتې کیږي.
بلکه ددۀ په وجود باندې درجه په درجه بدلونونه راځي.

**په انسانی وجود کښې بې شمیره بدلونونه او د همیشه سفر او دهغه آخری پړاؤ:** د نطفې نه ځکه وینه
جوړه شوه بیا هغې نه کرپندئ غوښه جوړه شوه بیا په هغې کښې هډوکی پیدا شو بیا په
هډوکو باندې غوښه اوختله او اندامونه مکمل شو. بیا په کښې روح واچولې شو او ژوندې
انسان ترې جوړ کړې شو چې د مور په خیټه کښې ئې خوراکه د رحم ګنده وینه وه. نهه
میاشتې پس الله ﷻ دنیا ته د راتلو لاره ددۀ ته آسانه کړه او دګنده خوراکې په ځائې ورته د
مور پئ حاصل شو. ددنیا کولاؤ فضا او هوائې اولیدله. ترقی ئې شروع شوه په دوه کاله
کښې ئې د ګرځیدو راګرځیدو او د وئیلو طاقت هم په حرکت کښې راغلو د مور پئی چې ترې
پریکړې نو ورته د هغې نه زیات خوندناک او قسماقسم خوراکې ملاؤ شوې ، د شپې ورځې
لوبې ټوقې ددۀ شغل جوړ شو. څه هوش او شعور ئې زیات شو نو د تعلیم او تربیت په
شکنجې کښې راوستې شو چې ځوان شو نو دغه ټول کارونه ئې پریخودل او د ځوانۍ
خواهشات ئې رابرخیره شو او د هغې ځائې اونیولو او یو نوې جهان ئې شروع شو ، نکاح ،
وادۀ او د کور کاروبار ئې دشپې ورځې شغل جوړ شو. آخری داغه دور ئې هم ختم شو ، په
قوتونو کښې ئې کموالې او کمزوری پیدا کیدل ، امروزه رنځونه پرې راتلل شروع شو.
بوډا توب راغلو او ددې جهان آخری پړاؤ ته د رسیدو سامانونه شروع شو. دا ټول څیزونه
خو د ټولو خلقو د سترګو وړاندې وی هیڅوک ترې انکار نشی کولې ، مګر د حقیقت نه نا
آشنا انسان ګنړی چې دا مرګ او قبر ددۀ آخری پړاؤ دې ، وروسته نور هیڅ نشته ، الله ﷻ
چې د کائناتو خالق او علیم و خبیر دې هغه راتلونکې حالات او مرحلې دخپلو پیغمبرانو
علیهم السلام په ذریعه غافل انسان پورې اورسولې چې قبر ستا آخری پړاؤ نه دې بلکه صرف دانتظار
کولو ځائې دې. وروسته بل یو لوئې جهان راتلونکې دې او په دې کښې به یو لوئې امتحان نه

پس د انسان آخري منزل مقرر شی چې د الله ﷻ د يادو او د آرام ځائي به وي يا به د هميشه عذاب او مصيبت ځائي وي او ددې آخري پړاؤ ته په رسيدو انسان خپل حقيقي مقام ته په رسيدو د بدلونو نو د چکر نه اوځي قرآن کريم ﴿إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الرُّجْعَىٰ﴾ (١) او ﴿إِلَىٰ رَبِّكَ مُنتَهَاهَا﴾ (٢) او ﴿إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾ کښې هم دا مضمون راخستې دې د غفلت په خوب اودهٔ انسان ئې د حقيقت او ددهٔ آخري پړاؤ نه خبر او پدې باندې خبر داز کړو چې ددنيا د عمر ټول حالات او بدلونو نه آخري پړاؤ ته دتلو سفر او ددې مرحلې دي او انسان په تلوراتلو، په ويښه اودهٔ په ملاستې ولاړه هر حال ددې سفر پړاؤ پرې کوي او آخر کښې ئې خپل رب ته رسيدل دي، دا د ټول عمر په حساب ورکولو سره په آخري پړاؤ کښې پاتې کيږي، چرته به چې يا سراسر اونه ختميدونکې آرام وي يا بهٔ معاذ الله هميشه عذاب اونه ختميدونکي مصيبتونه وي. نو د عقل مند انسان کار دادې چې په دنيا کښې خپل ځان مسافر ګڼړي او خپل اصلي وطن دپاره سامان تيارول او د هغې د وړاندې ليږلو فکر ددنيا د ټولو نه لوې مقصد جوړ کړي. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې [كن فى الدنيا كانك غريب اوعابر سبيل] (٣).

يعني په دنيا کښې په دې شان اوسيږه لکه يو مسافرځائي څو ورځو دپاره يو ځائي کښې پاتې شي يا په لاره روان څه وخت آرام دپاره چرته حصار شي.

د ﴿طَبَقًا عَن طَبَقٍ﴾ چې وړاندې بيان شوې دې. ابو نعيم د جابر بن عبدالله رضي الله عنه په روايت پخپله د نبی کريم ﷺ نه ددې مضمون روايت کړې دې. دا اوږد حديث دلته قرطبي رحمه الله په حواله د ابی نعيم او ابن کثير رحمه الله په حواله دابن ابی حاتم رحمه الله په تفصيل سره نقل کړې دې (٤)، په دې آيتونو کښې عاقل انسان ته دهغه د پيدائش او ددنيا په عمر کښې ورته راتلونکې حالات اوبدلونونه په وړاندې ايخودو سره دا هدايت اوکړو چې غافله! اوس هم وخت دې چې پخپل انجام باندې غور او د آخرت فکر کوه ددې ټولو روښانه هدايتونه باوجود ډير خلق د خپل غفلت نه نه اوړي، ځکه ئې په آخر کښې اوفرمائيل:

﴿فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ يعني په دې غافله او جاهلو انسانانو باندې څه شوي دي چې ددې ټولو آوريدو او پرې دخبريدو باوجود هم په الله ﷻ ايمان نه راوړي. ﴿وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ﴾ يعني کله چې ددوئ په وړاندې ددې واضحو هدايتونو نه ډک قرآن پاک لوستلې شي دغه وخت هم دوئ الله ﷻ ته نه ټيټيږي.

په لغت کښې دسجده او سجود معنی ټيټيدل دي چې د فرمانبردارئي او تابعدارئي نه کنايه ده. ښکاره داده چې دلته دسجدې نه مراد اصطلاحي سجده نه ده بلکه د الله ﷻ په وړاندې په تابعدارئي سره ټيټيدل مراد دي چې خشوع او خضوع ورته هم وئيلې شي. اوددې ښکاره وجه داده چې پدې آيت کښې د سجدې حکم ديو خاص آيت مبارک باره کښې نه بلکه د ټول قرآن پاک

---

(١) ترجمه:-اې مخاطبه! ستا د رب طرفته به ټول واپس کيږي.

(٢) ترجمه:- اودا چې ستا پروردګار طرفته واپس کيدل دي.

(٣) صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب قول النبی ﷺ كن فى الدنياء كانك غريب [ج:٢ص:٩٤٩]

(٤) تفسير القرطبي[ج:١٩ص:٢٧٨] و تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٣٦١]و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[١٩٢٠٣]

باره کښې دې که دې نه اصطلاحي سجده مراد واخستې شي نو دا به لازم شي چې د ټول قرآن پاک په هر آیت باندې دې سجده لازمه وی چې د امت په اجماع سره نشي مراد کیدې، په پخوانو او اوسنو بزرګانو کښې هیڅوک ددې قائل نه دی، اوس دا مسئله پاتې شوه چې ددې آیت مبارک په لوستلو او آؤریدو سجده واجبه ده او که نه؟ اګر چې په څه قدرې تاویل سره ددې آیت مبارک نه هم دسجدې په واجبیدو دلیل نیولې شي.لکه چې ځینې حنفی فقهاء کرامو وئیلی دی چې دلته د القرآن نه مراد ټول قرآن پاک نه د ې بلکه الف لام عهدی دې چې مراد ترې خاص هم دا آیت مبارک دې خو دا یوقسم تاویل دې چې داحتمال په درجه کښې ورته صحیح وئیلې شي. خودې نه قرآن پاک مراد اخستل د ښکاره عبارت نه لرې معلومیږی ،والله اعلم.

څکه صحیح خبره داده چې ددې فیصله دحدیث پاک د روایتونو او د صحابه کرامو ﷡ د معمول او عمل نه کیدیشي ، خو د حدیث پاک روایتونه د سجدهٔ تلاوت په باره کښې مختلف قسم راغلی دی. د ځینو نه وجوب او د ځینو نه رخصت معلومیږی. څکه د مجتهدینو امامانو په دې معامله کښې اختلاف دې ، د امام ابی حنیفه ﷫ په نزد په دې آیت مبارک باندې هم سجده واجب ده لکه دمفصل په نورو آیتونو چې واجب ده. امام اعظم ﷫ ددې په وجوب باندې دا راتلونکی احادیث پیش کړی دی.

په صحیح بخاری کښې د ابی رافع ﷛ په حدیث کښې راغلی دی چې هغه وائی چې ما یو ځل د ماسختن مونځ ابی هریره ﷛ پسې اوکړو ، هغوئ په دغې مونځ کښې ﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ﴾ اولوستو ، اوپدې آیت ئې سجده اوکړه. ما د ابی هریره ﷛ نه تپوس اوکړو چې د اسجده څنګه ده؟ هغوئ ﷛ اوفرمائیل چې ما دا ابی القاسم ﷺ پسې په مونځ کښې په دې آیت مبارک سجده کړې ده. څکه زه به همیشه په دې آیت مبارک سجده کوم تر هغې چې په محشر کښې مې نبی کریم ﷺ سره ملاقات اوشی(۱) اوپه صحیح مسلم کښې د ابوهریره ﷛ نه روایت دې چې هغوئ ﷛ فرمائی چې مونږ نبی کریم ﷺ سره په ﴿إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّتْ﴾ او ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ﴾ کښې سجده کړې ده(۲) قرطبی دا د ابن عربی ﷫ نه نقل کړی دی چې صحیح هم دادی چې په دې آیت مبارک کښې سجده شته ، مګر ابن عربی چې کوموخلقو سره مقیم وو په هغوئ کښې په دې آیت مبارک باندې د سجدې کولو رواج نه وو، هغوئ به دداسې یو امام په تقلید کښې دا سجده نه کوله دچا په نزد چې دا سجده واجب نه ده. نو ابن عربی ﷫ وائی چې ما دا طریقه اختیار کړه چې چرته امامت کوم نو هلته په مونځ کښې سورة انشقاق نه وایم. څکه چې زما په نزد پدې باندې سجده واجب ده که سجده اونکړم نو ګناهګاریږم ، او که کوم نو ټول مقتیدیان به مې دا کار ښه اونه ګڼړی. نو هسې بې وجې اختلاف ولې راپیدا کوم؟(۳) والله اعلم.

تمت سورة الانشقاق بحمدالله تعالی ۱۶ شعبان ۱۳۹۱هجری

---

۱) صحیح البخاري ابواب ماجاء فی سجود القرآن وسنتها ،باب من قرا السجدة فی الصلاة فسجد بها [ج:۱ص:۱٤۷]

۲) صحیح مسلم کتاب المساجد، باب سجود التلاوة [ج:۱ص:۲۱۵]

۳) تفسیر القرطبي [ ج:۱۹ص: ۲۸۰ ، ۲۸۱] و أحکام القرآن لابن العربي سورة الإنشقاق مسالة قوله تعالی: وإذا قرئ علیهم [ج:۸ ص:۲۲]

| ایاتونه | سورة البروج مكية وهي اثنتان وعشرون اٰية وركوعا واحدا | رکوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۲۲ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱ |

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الۡبُرُوۡجِ ۝۱ وَالۡيَوۡمِ الۡمَوۡعُوۡدِ ۝۲ وَشَاهِدٍ

قسم دې په اسمان | چه خاوند د برجونو دې | او په ورځ وعده کړې شوی باند | او په حاضریدونکې باند

قسم دې په اسمان چې د برجونو خاوند دې | او په هغه ورځ چې وعده ئې شوې ده | او قسم دې په گواه

وَّمَشۡهُوۡدٍ ۝۳ قُتِلَ اَصۡحٰبُ الۡاُخۡدُوۡدِ ۝۴ النَّارِ ذَاتِ الۡوَقُوۡدِ ۝۵

اوپه هغه ورځ چه حاضریدل ورته کولې شی | قتل کړې شول | خاوندان د کندو | د اور | چې خاوند د ډیر خشاک وه

او د چاخلاف چه گواهی ورکولې شی | د خندق جوړونکی قتل کړې شول | د اور خاوندان چې ډیر خشاک په کښې

اِذۡ هُمۡ عَلَيۡهَا قُعُوۡدٌ ۝۶ وَّهُمۡ عَلٰى مَا يَفۡعَلُوۡنَ

کله چې هغوئ | په غاړه د دغه کندو | ناست وو | او هغوئ | په هغه څه چې کول هغوئ |

پروت وو | څه وخت چې دوئ د اور په غاړه ناست وو | او څه چې دوئ په مومنانو باندې

بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ شُهُوۡدٌ ۝۷ وَمَا نَقَمُوۡا مِنۡهُمۡ

په مومنانو باند | حاضر وو [یعنی لیدل ئې ] | او نه کوله دشمنی هغوئ | د هغوئ سره |

کول هغه ئې په خپلو سترگو لیدل |..................او هغوئ [کافرانو] د دوئ [مسلمانانو] نه صرف

اِلَّاۤ اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَمِيۡدِ ۝۸ الَّذِىۡ

مگر په دې وجه | چې ایمان راوړې وو هغوئ | په الله غالب ستائیلې شوی باند | هغه [الله] |

د دې خبرې بدله اخستله | چې دوئ په الله ﷻ ایمان راوړې وو | چې غالب او ستائیلې ذات دې

لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ۝۹

چې هغه لره ده | بادشاهی د اسمانونو او د زمکې | او الله | په هر څیز باند | نظر لرونکې دې |

هغه ذات چه حکومت ئې په اسمانونو او زمکه کښې دې | او الله ﷻ په هر څه باندې خبردار دې

اِنَّ الَّذِيۡنَ فَتَـنُوا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَالۡمُؤۡمِنٰتِ

بیشکه هغه کسان | چې ظلم ئې اوکړو | په مومنانو سړو باند | او په مومنانو ښځو باند |

بیشکه کومو خلقو چې مومنانو سړو او ښځو ته عذاب ورکړو

ثُمَّ لَمۡ يَتُوۡبُوۡا فَلَهُمۡ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمۡ عَذَابُ الۡحَرِيۡقِ ۝۱۰

بیا ئې توبه اونه ویستله | نو دې هغوئ د پاره | عذاب د دوزخ | او دې هغوئ د پاره | عذاب د اور سوزونکی

او د دې نه پس ئې توبه اونه ویستله | .........نو هغوئ د پاره د جهنم عذاب مقرر دې

اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمۡ جَنّٰتٌ

| بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک | دې هغوئ د پاره | باغونه |

او هغوئ د پاره سوزونکې عذاب دې | بیشکه چاچې ایمان راوړې دې | او نیک عملونه ئې اوکړل هغوئ د پاره

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ۬ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيْرُ ؕ﴿۱۱﴾ اِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ

چې بهیږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه | دا کامیابي ده | لویه | بیشکه نیول | درب ستا |

باغونه دي | چې دهغې لاندې به ولې بهیږي | دا ډیره لویه کامیابي ده | بیشکه ستا درب نیول ډیر

لَشَدِيْدٌ ؕ﴿۱۲﴾ اِنَّهٗ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيْدُ ۚ﴿۱۳﴾ وَهُوَ الْغَفُوْرُ

ډیر سخت دي | بیشکه هم هغه | په اول خل پیدا کول کوي | او دوباره به ئې هم کوي | او هغه بخښونکې دې |

سخت دي | الله ﷻ په رومبي خل هم پیدا کول کوي | او دوباره به هم پیدا کول کوي | او هغه بخښونکې

الْوَدُوْدُ ۙ﴿۱۴﴾ ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيْدُ ۙ﴿۱۵﴾ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ؕ﴿۱۶﴾

محبت کونکې دې | خاوند دعرش دې | لوئې دې | کونکې دې | هغه کار لره چې وې غواړي |

او مینه کونکې دې | دعرش خاوند دې | لوئې ذات دې | .....څه چې غواړي هغه کوي

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْجُنُوْدِ ۙ﴿۱۷﴾ فِرْعَوْنَ وَثَمُوْدَ ؕ﴿۱۸﴾ بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

ایا راغلې دې تاته | خبر | دلښکرو | دفرعون او دثمود | بلکه هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې |

ایا تا د لښکرو قصې اوریدلې دي ؟| دفرعون او د [قوم د] ثمود د[لښکرو] بلکه کافران

فِيْ تَكْذِيْبٍ ۙ﴿۱۹﴾ وَّاللّٰهُ مِنْ وَّرَآئِهِمْ مُّحِيْطٌ ۚ﴿۲۰﴾ بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ

[حق ته] په دروغ وئیلو کښې اخته دي | او الله | چاپیره ددوئ نه | احاطه کونکې دې | بلکه دا قرآن دې

په انکار کښې [غافل] پراته دي | او الله ﷻ هر طرفته دوئ راګیر کړي دي | په اصل کښې دا قران پاک

مَّجِيْدٌ ۙ﴿۲۱﴾ فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ﴿۲۲﴾

لوئې دې | [پروت دې] په لوح محفوظ کښې |

د لوئې شان کتاب دې | چې په لوح محفوظ کښې سنبال دې

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په برجونو والا آسمان باندې، او په هغې ورځې باندې د کومې چه وعده کړې شوې ده او حاضریدونکې باندې او په هغه باندې کوم ته چه خلق حاضریږي چه د الله تعالی غضب دې په هغو خندق (کندستونکو) والو باندې هغې اور والو باندې، چه د خشاک نه ډک کړې شوې وو. کله چه دوی د هغې (اور) په غاړه ناست وو. او دوی چه د ایمان والو سره څه کول، دهغې نظاره ئې کوله. او دوی ایمان والو ته د بل څه خبرې نهٔ، صرف ددې خبرې سزا ورکوله چه هغوی په هغې الله تعالی باندې ایمان راوړلې وو. کوم چه اقتدار والا، او ډیر ستائیلې شوې دې. چه د هغه په قبضه کښې د ټولو آسمانونو او زمکې سلطنت دې. او الله تعالی هر څیز وینی. یقین اوساتئ، چه کوم خلق مومنانو سړو او مومناتو ښځو ته تکلیفونه ورکوی، بیا ئې توبه نه ده ویستلې، دهغوی دپاره د جهنم عذاب دې، او دوی ته به د سوزونکې اور سزا ورکولې شی. کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، دهغوی دپاره بے شکه (په جنت کښې) داسې باغونه دی، چه د هغې لاندې به نهرونه بهیږی دا لویه کامیابي ده. حقیقت دادې، چه ستا د رب رانیول ډیر سخت دی. هم هغه په اول ځل پیدائش کوی، او هم هغه به دوباره پیدائش کوی. او هغه ډیر بخونکې، او ډیر محبت کونکې دې. د عرش مالک دې، بزرګئ والا دې

څه چه اراده اوكړي، كوي. آيا تاته د هغې لښكرو خبر رارسيدلې دې. د فرعون او ثمودياڼو (د لښكرو خبر)؟ ددې باوجود هم كافران خلق حق لره دروغ ګنړلو كښې لګيدلي دي او الله تعالى چاپيره ددوى نه ګيره اچولې ده (ددوى په دروغ ګنړلو سره قرآن مجيد باندې هيڅ اثر نه پريوځي) بلكه دا قرآن ډير عظمت والا دې. چه په لوح محفوظ كښې ليكلې شوې دې.

## خلاصه تفسير

**شان نزول**: په دې سورة كښې ديوې قصې اجمالا ذكر دې كوم چه په صحيح مسلم[1] كښې ذكر ده نچوړ دهغې دادې چه يو كافر بادشاه وو هغه سره يو كاهن وو كاهن هغه چاته وائي كوم چه شيطانانو په ذريعه يادنجوم د اثارو په ذريعه دمستقبل څۀ غيبي خبرونه معلوموي خلقو ته ئې وائي دې كاهن بادشاه ته ووئيل چه ماته دې يو هوښيار هلك راكړې شي چه زۀ ورته خپل علم وښايم نو يو هلك ورله وركړې شو ددۀ په لاره كښې يو راهب يعني عيسائي پادري وسيدو او په دغه زمانه كښې دعيسى ﷺ دين حق دين وو او دا راهب په دې قائم عبادت ګزار وو دغه هلك به دۀ ته تلو راتلو او په پټه مسلمان شو يو خل دې هلك وليدل چه يو زمرى لاربنده كړې ده او دخدائې مخلوق پريشانه دى نو دۀ يوه كاڼړې په لاس كښې واخسته دعائې وكړه چه يا الله كۀ دراهب دين رښتونې وى نو دا ځناور زما په لاس مړ كړې او كۀ كاهن رښتونې وى نو مۀ ئې مړ كوې دائې ووئيل او زمرې ئې په كاڼړې وويشتلو او هغه پرې مړ شو په خلقو كښې شور جوړ شو چه دې هلك ته خو څۀ عجيبه علم ورځي يو ړون واوريدل راغې او درخواست ئې وكړو چه زما سترګې بيناشي ورته ووئيل په دې شرط چه تۀ مسلمان شې نو هغه قبوله كړه هلك دعا وكړه هغه ښۀ شو او مسلمان شو بادشاه ته دا خبره ورسيدل نو هغۀ هغه راهب او هلك او هغه ړوند لره ګرفتار كړل راوئې غوښتل هغه راهب او ړوند لره خو ئې قتل كړل او ددۀ دپاره ئې حكم وكړو چه دې غر ته وخيژوئ او ښكته ئې راوغورزوئ كومو خلقو چه دې غرته خيژولې وو هغه خپله هلاك شول او هلك صحيح سلامت راغې بيا بادشاه په سمندر كښې دغرقولو حكم وكړو هغه ددې نه هم بچ شو او كومو خلقو چه دې بوتلې وو هغه ټول ډوب شول بيا په خپله هلك بادشاه ته ووئيل چه بسم الله ووايه ما په غشي ووله نو زۀ به مړ شم چنانچه داسې ئې وكړل او هلك مړ شو پس دا عجيبه واقعه چه ئې وليده نو فوراً د عامو خلقو دخلونه دا آواز اوچت شو چه مونږ ټولو په الله تعالى ايمان راوړو بادشاه ډير پريشانه شو او دحكومت د اركانو سره ئې مشوره وكړه لوئې لوئې خندقونه ئې د اور نه ډك كړل او اشتهار ئې وركړو چه كوم سړې داسلام نه نۀ واپس كيږي هغه به په اور كښې سوزوو چنانچه ډير خلق ئې اوسوزول په دې صورت كښې دغضب الهي نازليدو بيان په قسم سره فرمائيلې شوې دى ﴿وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ﴾ [قسم دې په برجونو والا اسمان] مراد دبرجونو نه لوئې لوئې ستورى دى لكه په درمنثور كښې مرفوعا راغلى دى ﴿وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ﴾ [او قسم دې په وعده كړې شوې ورځې] يعنى دقيامت په ورځ ﴿وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ﴾ [او قسم دې په حاضريدنكي ورځ او قسم دې په هغه ورځ په كومه كښې چه دخلقو حاضرى وى ] په حديث كښې مرفوعا دى چه يوم موعود دقيامت ورځ ده او شاهد دجمعې ورځ ده او مشهود دعرفې ورځ ده او يوې ورځې ته شاهد ته ئې اوبلې ته ئې

[1]) صحيح مسلم كتاب الزهد، باب قصة اصحاب الأخذود [ج:۲ص:٤١٥]

مشهودشاید څکه وفرمائیل چه په جمعه کښې تول په خپل خپل ځائې وی نو ګویا دغه ورځ په
خپله راغلی اوپه یوم عرفه کښې حاجیان دخپلو خپلو ځایونو نه په عرفات کښې ددغې ورځې
په قصد سره جمع کیږی نو ګویا دغه ورځ مقصود اومشهود اونور خلق دحاضرئ قصد
کوونکی دی وړاند جواب دقسم دې ﴿قُتِلَ أَصْحٰبُ الْأُخْدُوْدِ﴾ [چه خندق والا ﴿النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ﴾
یعنی دډیرخشاك اور والا ملعونان شول ﴿إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُوْدٌ﴾ څهٔ وخت چه هغه خلق دهغې اور
خواته ناست وو﴿وَهُمْ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ شُهُوْدٌ﴾او هغوئ چه دمسلمانانو سره کوم [ظلم
اوستم [کولو هغې لره لیدلو ] ددوی دملعون کیدو په خبر ورکولو سره مسلمانانو ته تسلی
ورکول ظاهر دی چه دغه شان کوم کافران چه داوخت په مسلمانانو ظلم کوی هغه به هم په
لعنت کښې ګرفتار شی چه اثر به ئې خواه په دنیا کښې هم مرتب وی لکه دبدر وغیره په
غزاکښې چه قتل اورسوا شول یاصرف په اخرت کښې لکه چه دعامو کفارو دپاره یقینی ده
اودډښمن دعذاب په خبرسره تسلي کیدل طبعی امر دې او د دغو خلقوکښیناستل ددې ظلم
اوستم دانتظام اونګرانی دپاره وو اوپه لفظ دشهود کښې علاوه دنګرانئ نه اشاره د دغو خلقو
سنګدلئ طرف ته هم کیدې شی چه په لیدو ئې هم ترحم په دوی نه راتللو او ددې دخدائی
تعالی په لعنت کښې خاص دخل دې چه داسنګدلی سبب دلعنت دې ﴿وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُّؤْمِنُوْا
بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ﴾ [او دغو کافرانو په دغو مسلمانانو کښې بل هیڅ عیب نه وولیدلې بغیر ددې
نه چه هغوی په خدائې ایمان راوړې وو کوم چه زبردست او لائق وار دحمد دې ﴿الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ
السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ داسې دات چه دهغهٔ حکومت دې په اسمانونو اوپه مزکه کښې ] یعنی په
ایمان راوړونې دامعامله وکړه اوایمان راوړل ئې څهٔ خطائی نهٔ وه پس بې خطائی په هغو ظلم
وکړو په دې وجه دغه خلق ملعونان شول اووړاند دظالمانو دپاره عام وعیداو دمظلومانو دپاره
عامه وعده ده﴿وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ﴾[چه الله دهر څهٔ نه واقف دې ] دمظلوم دمظلومیت نه هم
پس دهغهٔ مددبه کوی او دظالم دظالمیت نه هم هغهٔ لره به سزا ورکوی خواه دلته خواه هلته
چنانچه وړاند دامضمون دې ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ﴾[چه چا مسلمانانو سړو
اومسلمانانو ښځو ته تکلیف ورسولو ﴿ثُمَّ لَمْ يَتُوْبُوْا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ﴾اوبیا ئې توبه ونهٔ کړه دهغوئ
دپاره دجهنم عذاب دې او[په جهنم کښې بالخصوص ﴿وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيْقِ﴾[دهغوی دپاره
دسوزیدوعذاب دې ] په عذاب کښې دهر قسم تکلیف داخل دې ماران ،لړمان ،طوقونه،
زنځیرونه ،حمیم ،غساق وغیره اوډبولو نه لوئې دسوزیدو عذاب دې په دې وجه ددې ئې په
تخصیص سره ذکر وفرمائیلو داخو ئې دظالم په حق کښې وفرمائیل وړاند دمؤمنانو په حق
کښې په کومو کښې چه مظلومان هم راغلل ارشاد دې چه ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا
الصّٰلِحٰتِ﴾[بیشکه کومو خلقو چه ایمان راوړو اوهغوی نیك عمل وکړو﴿لَهُمْ﴾ دهغوی دپاره ]
﴿جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ﴾ دجنت [باغونه دی دکومو لاند چه به نهرونه بهیږی ﴿ذٰلِكَ الْفَوْزُ
الْكَبِيْرُ﴾ او دالویه کامیابی ده] اوپورته دوه مضمونونه وو دکفارو دپاره دوزخی کیدل او
دمؤمنانو دپاره دجنت کیدل وړاندې ددوی مناسب خپل ځنې صفتونه اوافعال ددې مضمونونو
دتقریر دپاره ارشاد فرمائی چه﴿إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيْدٌ﴾بیشکه [ستا درب نیول ډیر سخت دی]
پس په کفارو دسختې سزا واقع کیدل څهٔ مستبعدنهٔ دی او دا رنګ ﴿إِنَّهٗ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيْدُ﴾[هغه
اول خل هم پیدا کوی اودوباره به په قیامت کښې هم پیدا کوی ] پس داشبه هم پاتې نهٔ شوه چه

اګر چه نیول ئې سخت دی مګر قیامت به واقع نه شی کوم چه وخت دې دنیولو په دې سره دکفارو دوعید تقریر اوشو اووړاندې تقریر دې دوعدې دمؤمنانو چه ﴿وَهُوَ الْغَفُورُ الْوَدُودُ﴾ [هغه لوئې بخښنې والا دې ]او[لوئې محبت کوونکې ﴿ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيدُ﴾ اودعرش مالك اوعظمت والا دې ] پس دایماندارو ګناه به معاف کړی اودوی لره به خپل محبوب جوړ کړی او ذوالعرش اومجید اګر چه دعذاب اوثواب دواړه سره متعلق کیدې شی چه دواړه فرع دی دصاحب سلطنت اوکمال صفات والا لیکن دلته دمقابلې په قرینې سره په دوی باندې دثواب متفرع کول مقصود دی او وړاندې ددواړو د اثبات دپاره یوصفت ارشاد دې چه ﴿فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ﴾ [هغه چه څۀ غواړی هر کله څۀ کولې شی ] وړاندې دمؤمنانو د زیاتې تسلئ اوکفارو لره دزیات خبر دارولو دپاره دخنو خاصو مغضوبینو حال بیان فرمائی چه ﴿هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْجُنُودِ﴾ [ایاتاته د هغو لښکرو حال رسیدلې دې ﴿فِرْعَوْنَ وَثَمُودَ﴾ یعنی فرعون ]اوال فرعون [اوثمودیانو ] چه څنګه ئې کفر وکړو اوڅنګه په عذاب کښې اخته شول په دې سره مؤمنانو لره تسلې حاصلول پکار دی اوکفارو لره ویریدل پکار دی مګر کفار بالکل دعذاب نه نۀ ویریږی ﴿بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي تَكْذِيبٍ﴾ [بلکه داکفار ] په خپله دقرآن [په تکذیب کښې ] لګیدلی [دی] پس دتعذیب دامضمون هم اونور مضامین هم دروغژن کوی [او] انجام کار ددې سزا به څکی څکه چه ﴿وَاللَّهُ مِن وَرَائِهِم مُّحِيطٌ﴾ [الله تعالی دوی لره دچاپیره نه راګیر کړی دی ] دهغۀ دقدرت د قبضې اوعذاب نه نۀ شی بچ کیدې او ددوی قرآن لره دروغژن کول محض حماقت دې څکه چه قرآن داسې شې نۀ دې کوم چه ددروغژن کولو قابل وی ﴿بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَّجِيدٌ﴾ [بلکه هغه یو باعظمته کتاب دې ﴿فِي لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ﴾ کوم چه په لوح مخفوظ کښې ] لیکلې شوې [دې] په کوم کښې چه دڅۀ تغیر اوبدلون احتمال نشته دهغۀ خائې نه په ډیر حفاظت سره صاحب وحی ته رارسولې شی لکه چه الله تعالی په سورة جن کښې فرمائی ﴿فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ رَصَدًا﴾(۱) پس په داسې صورت کښې دقرآن دروغژن کول بیشکه چه جهالت اوموجب دعذاب دې]

## معارف او مسائل

﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ﴾ بروج د برج جمع ده ، لوئې محل یا قلاته وئیلې شی لکه قرآن پاک فرمائی چې ﴿وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ﴾(۲) چې دلته د بروج نه مراد خالص بنګلې او محلونه دی او دبُرج د اصل مادې لغوی معنی ښکاره کیدل دی.

د ﴿تبرج﴾ معنی بې پردې ګرځیدل راګرځیدل دی ، په قرآن کریم کښې دی چې:

﴿وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ﴾(۳) په دې آیت کښې د بروج نه مراد د جمهورو مفسرینو په نزد لوئې لوئې ستوری دی ، ابن عباس رضی الله عنه ، مجاهد رحمه الله ، ضحاک رحمه الله ، حسن بصری رحمه الله ، قتاده رحمه الله او سدی رحمه الله د ټولو هم دا قول دې او دتفسیر ځینې نورو امامانو دلته د بروج نه مراد قصور مراد اخیستی دی. دې نه مراد هغه مکانونه دی چې په آسمان کښې پهره دارو او نګرانو فرښتو دپاره مقرر دی او ځینې متاخرینو دبروج نه مطلب دَ فلسفیانو د اصطلاح

۱) ترجمه:- نو ددې پیغمبر مخکښې او روستو حفاظت کوونکې فرښتې لیږی.
۲) ترجمه:تاسوچې چرته هم یئ هلته به تاسو لره مرګ راځی اګر چې تاسولوړولوړو په قلعه ګانو کښې یئ.
۳) ترجمه:- د پخوانئ زمانې د دستور مطابق مخ مه اړوئ.

مطابق د آسمان دولس حصې اخيستې دي چې هرې حصې ته برج وئيلې کيږي د دوئ خيال دا دې چې ثوابت ستورى هم په دغې برجونو کښې دي او نورې سيارې دفلك د حرکت سره حرکت او ګردش کوى او په دغې برجونو کښې سيارې نازليږى ، خو دا سراسرى غلط دى ، قرآن کريم د انه وائى چې ګنى سيارې په آسمانونو کښې انبنتې دى بلکه وائى چې هره سياره پخپل ذاتې حرکت سره ګردش کوى ، لکه : دسورة ياسين په آيت مبارک کښې دى چې :

﴿كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾[1] دلته د فلك نه آسمان مراد نه دې بلکه دسيارې د حرکت کولو ځائې دې . [مظهرى][2]

﴿وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ ۝ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ۝﴾ دتفسير په خلاصه کښې د ترمذى د مرفوع حديث په حواله ددې الفاظو تفسير ليکلې شوې دې چې د ﴿يَوْمِ مَوْعُودٍ﴾ نه مراد د قيامت ورځ ده ، اود شاهد نه مراد د جمعې ورځ او مشهود نه مراد د عرفې ورځ ده[3] . په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ د څلورو څيزونو قسم خوړلې دې ، د برجونو والا آسمان ، دقيامت د ورځې بيا دجمعې اود عرفې ورځې . د قسم جواب سره ددې څيزونو دقسم مناسبت دادې چې دا ټول څيزونه د الله ﷻ په کامل قدرت باندې او بيا د قيامت په ورځ حساب ، کتاب ، اوجزاء او سزا باندې دليل دى ، او د جمعې اوعرفې ورځ د مؤمنانو دپاره د آخرت د ذخيرې جمع کولو مبارکې ورځې دى ، وريسې د قسم په جواب کښې پدغې کافرانو باندې لعنت راغلې دې چا چې مسلمانانو لره دهغوئ د ايمان په وجه په اُور کښې اوسوزول او بيا د مؤمنانو دآخرت د درجو بيان ئې اوکړو.

**د اصحاب اخدود واقعې څه تفصيل**: همدغه واقعه ددې سورت د نازليدو سبب دې چې خلاصه ئې د صحيح مسلم د حديث پاک په حواله دتفسير په خلاصه کښې بيان شوې ده . ددې واقعې ذ کاهن په ځائې په ځينې روايتونو کښې ساحر راغلې دې او دغه بادشاه ديمن وو چې د ابن عباس رضي الله عنه د روايت مطابق نوم ئې يوسف ذونواس وو . ددۀ زمانه د نبى کريم ﷺ دپيدائش مبارک نه اويا کاله وړاندې وه او د هغه هلک نوم عبدالله بن تامر دې . اوراهب دعيسائى مذهب عابد زاهد وو ، ددۀ په وخت کښې حق دين د عيسى عليه السلام وو څکه دغه راهب دخپل وخت کلك مسلمان وو ، کوم هلک چې بادشاه د سحر يا جادو ازده کولو دپاره مقرر کړې وو. هغه به په لاره کښې دغه راهب له ورتلو او دهغه دکلام په آوريدو به ئې اثر قبلولو چې آخر مسلمان هم شو ، الله تعالى هغه داسې پوخ ايمان ورنصيب کړې وو.

چې دهغې دپاره د خلقو هر قسم تکليف زيان او ضرر زغملو . ساحر ياکاهن ته به چې ورتلو نو په لاره کښې بۀ دغه راهب سره ايسار شو هغه ساحر به ورته په دغې تاخير کولو سزا ورکوله ، دغسې به په واپسئ چې بيا راهب سره ايسار شو اوکور ته په رسيدو کښې به ئې تاخير اوکړو نو کور والو به ورته پرې سزا ورکوله . مګر هغه دچا پرواه نه کولو نه بغير راهب سره تګ راتګ پرې نښودو ، ددې په برکت هغه دداسې کرامتونو خاوند شو چې بيان ئې شوې دې . دغې ظالم بادشاه مؤمنانو ته د عذاب ورکولو دپاره په خلقو يو خندق اوکنستو او بنه

---

[1] ) ترجمه: - او دواړه په يوه دائره کښې ګردش کوى.

[2] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۳۴]

[3] ) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب تفسير سورة البروج [ج:۲ ص:۱۷۱]

مضبوط اور ئې په کښې بل کړو ، يو ايماندار ئې راوستو او ورته ئې اوونيل چې يا خو ايمان نه لاس اووينځه يا به دې په دې خندق کښې ورغوځوو خو د الله ﷻ دې مؤمنانو ته داسې استقامت ور نصيب کړو چه په دوی کښې هيڅوك هم په ايمان پريخودو راضي نه شو او په اورکښې ئې ورغوځيدل قبول کړو. صرف يوه ښځه لږه شان اوويريده چې ورسره په غيږی کښې ماشوم بچې وو نو هغې بچی ورته اوونيل چې ائې مورې صبر کوه ته په حقه يې ، دغه ظالم بادشاه په دغه اور کښې دځينې روايتونو مطابق دولس زره مؤمنان يا ددې نه هم زيات سوزولی وو.

کوم بختور هلک چې پورته ئې دَ کرامتونو ذکر شوې دې اودا چې بادشاه ته ئې دخپلو وژلو دپاره دا طريقه خودلې وه چې هم د هغه د ترکش نه دې غشې راواخلی بسم الله دې پرې اووائی او دې دې پرې اوولی نوشهيد به شی. په دغه شان هلک خو خپل ځان ورکړو مگر د دغې واقعې په ليدلو سره دَ بادشاه ټول قوم په يوه نعره مسلمانان شو دغه کافر ظالم الله ﷻ په دنيا کښې هم ناکامه او شرمنده کړو.

د محمد بن اسحاق د روايت مطابق ددغه بختور هلک قبر د څه ضرورت په خاطر د عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کښې اوکنستې شو.نو دَ عبدالله بن تامر جسد بيخی صحيح سالم وو د غشی د لگيدو په ځائې دهغه لاس پروت وو يوليدونکی کس چې دَ هغه لاس دَ هغه زخم نه لرې کړو نو د زخم نه ئې وينې جاری شوې بيا ئې هغسې کيخودو نووينه ئې بنده شوه ، دهغه رحمه الله په لاس کښې يو گتمه وه چې پرې الله ربی ليکلی وو د يمن گورنر چې ددې واقعې خبر عمر فاروق رضي الله عنه ته ورکړو نو هغوئ رضي الله عنه ورته په جواب کښې اوليکل چې هغه رحمه الله دې خپل شان سره د گتمې بيا دفن کړې شی. [ ابن کثير ]([1]).

**فائده** :: ابن کثير رحمه الله په حواله د ابن ابی حاتم نقل کړی دی چې د اور د خندق واقعه په دنيا کښې يوه نه ده بلکه په مختلفو ملکونو او زمانو کښې شوی دی. بيا ابن ابی حاتم په هغې کښې درې واقعې په خصوصيت سره بيان کړی دی. هغه وائی چې يو خندق په يمن کښې وو [چې دهغه واقعې په زمانه کښې دَ فترت دَ رسول اکرم ﷺ نه اويا کاله مخکښې پيښه شوې وه]. دويم خندق په شام او دريم په فارس کښې وو خو کوم خندق چې بيان ئې په دې سورت کښې دې هغه خندق د نجران ملك دَ يمن خندق دې څکه چې داد عربو په ملك کښې وو([2]).

﴿إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ﴾ دا ددغې ظالمانو دسزا بيان دې چا چې مسلمانانو لرف صرف دهغوئ د ايمان راوړو په وجه د اور په خندق کښې اچولی سوځولی وو اوپه سزا کښې ئې دوه خبرې اوفرمائيلې: ﴿فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ﴾ يعنی دوئ دپاره په آخرت کښې دَ جهنم عذاب دې. دويم اللهم عذاب الحريق يعنی دوی دَپاره د سوزولو عذاب دې. کيديشی چې دويمه جمله د ړومبئ جملې بيان او تاکيد وی اومعنی دا وی چې جهنم ته په ورتلو به د هميشه بليدونکی او دَ عذاب ورکولې شی او دا هم کيديشی چې په دويمه جمله کښې د هغوئ ددې دنيا د سزا بيان وی د ځينې روايتونو مطابق کوم مؤمنان چې هغوئ اور کښې اچولی او ورغوځولی وو.

---

[1]) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۳۷۰]
[2]) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۳۷۱]

ورته د رسیدو نه مخکښې الله ﷻ د هغوئ روحونه قبض کړل او تش جسدونه ئې اور ته اورسیدل ، بیا دغه اور دومره بل شو چې د خندق د حدونو نه ورپورې وتو او په ښار کښې خور شو او هغه ټول خلق ئې اوسوځول کوم چې دمؤمنانو دسوځیدو تماشې ته ولاړ وو ، صرف بادشاه یوسف ذو نواس اوتښتیدو او د اور نه د بچ کیدو دپاره ئې ځپل ځان په دریاب کښې ور واچولو په هغې کښې ډوبیدو سره مړ شو . [مظهری]([1]) . دغې خلقو دپاره د جهنم د عذاب اودعذاب حریق خبر سره قرآن دا قید هم اولګولو چې : ﴿ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا﴾ یعنی دا عذاب به هغه چا ته وی چې پخپل دې کار باندې پښیمانه کیدو سره توبه ګار نشی . په دې کښې دغې خلقو ته د توبې بلنه ورکړې شوې ده .

حسن بصری ﷫ فرمائی چې د الله ﷻ دې رحم او مهربانئی ته او ګورئی چې دغې خلقو د الله ﷻ اولیاء ژوندی اوسوزول اود هغوئ تماشه ئې کوله او الله ﷻ سره ددې هم هغوئ ته د توبې اوبخښنې غوښتلو بلنه ورکوی . [ابن کثیر]([2]) .

تمت سورة البروج والحمدلله ۱٦شعبان ۱۳۹۱هجری

| رکوع ګانې | | | آیاتونه |
|---|---|---|---|
| | | سورة طارق مكية وهي سبع عشر آية وركوعا واحدا | |
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ① | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ⑰ |

وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ ﴿١﴾ وَمَا أَدْرَاكَ

قسم دې په آسمان باند | او راښکاره کیدونکې باندې په شپه کښی | او څه پته ده تاته |

قسم دې په آسمان او په هغه څیز چې د شپې ښکاره کیږی | اوتاته څه معلوم دی چې

مَا الطَّارِقُ ﴿٢﴾ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ﴿٣﴾ إِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا

چی څه دې ښکاره کیدونکې دشپې | ستورې ځلیدونکې دې | نشته یو نفس | چی نه وی په هغې باند

دشپې راتلونکې څیز څه دې ؟ | هغه یو روښانه ستورې دې | داسې یو نفس نشته چې په هغه یونه یو

حَافِظٌ ﴿٤﴾ فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ ﴿٥﴾

| ساتونکې [نګران] | پس اودې ګوری | انسان | چی دڅه څیز نه | پیدا کړې شوې دې |

محافظ مقرر نه وی | نو بنیادم دې اوګوری چې هغه د څه نه پیدا کړې شوې دې

خُلِقَ مِنْ مَاءٍ دَافِقٍ ﴿٦﴾ يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ ﴿٧﴾

پیدا کړې شوې دې | داوبو توپ وهونکو نه | چی راوخی | دمنځ دشا | او دسینې مینځ نه

هغه دیوتوپ وهونکو اوبو نه پیدا کړې شوې دې | چې د ملا او د سینې دمینځ نه راوخی

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۲۳۸]

[2]) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۲۷٦]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُ | عَلَىٰ رَجْعِهِ | لَقَادِرٌ ﴿٨﴾ | يَوْمَ | |
| بيشكه چې هغه [خالق] | په دوباره پيدا كولو دهغه [انسان] باند | خامخا قادر دي | په كومه ورځ | |
| بيشكه الله ﷻ ددهٔ په دوباره پيدا كولو پوره پوره قدرت لري | ......په كومه ورځ | | | |
| تُبْلَى | السَّرَائِرُ ﴿٩﴾ | فَمَا لَهُ | مِنْ قُوَّةٍ | وَلَا نَاصِرٍ ﴿١٠﴾ |
| چې به ظاهر كړې شي | پټ رازونه | پس نهٔ به وي هغه لره | څه طاقت | اونهٔ مددګار |
| چې پټ رازونه ښكاره كړې شي | نو نه به ددهٔ خپل طاقت وي او نه به ئې څوك مددګار وي | | | |
| وَالسَّمَاءِ | ذَاتِ الرَّجْعِ ﴿١١﴾ | وَالْأَرْضِ | ذَاتِ الصَّدْعِ ﴿١٢﴾ | |
| قسم دې په آسمان | باران ورونكې باند | او په زمكه | چاودونكې باند [په تخم راختلو سره] | |
| قسم دې چې په اسمان بارانونه وروي | او په زمكه چې [شينكى ته] اوچوي | | | |
| إِنَّهُ | لَقَوْلٌ | فَصْلٌ ﴿١٣﴾ | وَمَا هُوَ | بِالْهَزْلِ ﴿١٤﴾ |
| چې بيشكه دا قرآن | خامخا وينا ده | جدا كونكې [دحق اوباطل] | اونهٔ دې هغه | بې فائدې |
| بيشكه دا قران پاك [دحق او دباطل ترمينځه] فيصله كونكې كلام دې | اودا څه عبث خبره نه ده | | | |
| إِنَّهُمْ | يَكِيدُونَ | كَيْدًا ﴿١٥﴾ | وَأَكِيدُ | |
| بيشكه دا كافران [دمكې] | تدبيرونه [چلونه] كوي | په چلونو كولو سره | اوزهٔ تدبير كوم | |
| هغه خلق په خپل خپل تدبير كښې لګيا دي | ......اوزه [الله ﷻ] هم تدبير كوم | | | |
| كَيْدًا ﴿١٦﴾ | فَمَهِّلِ | الْكَافِرِينَ | أَمْهِلْهُمْ | رُوَيْدًا ﴿١٧﴾ |
| په تدبير كولو سره | نو مهلت وركړه | دې كافرانو ته | مهلت وركړه دوئ ته | [مهلت] لږ |
| پس ته كافرانو ته [لږنور] مهلت وركړه او څه موده دوئ پريږده | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په آسمان، او د شپې په راتلونكي باندې اوتاته څه معلومه ده، چه هغه راتلونكې د شپې څه دې؟ ستورې ځليدونكې. چه هيڅ يونفس داسې نشته، چه په هغه باندې څوك نګرانى كونكې نه وي. اوس انسان دې دا اوګورى، چه هغه د كوم څيز نه پيدا كړې شوې دې؟ پيدا كړې شوې دې د اوبو توپ وهونكو نه چه د ملا او د سينې د هډوكې د مينځ نه راوځي بے شكه الله تعالى د ده په دوباره پيدا كولو باندې ښه قادر دې په كومه ورځ چه ټولې پټې خبرې ښكاره كړې شي. نو انسان سره به نه څه طاقت وي، او نه څوك مددګار. قسم دې په آسمان باندې چه باران والا دې او په زمكې باندې چه شليدو والا ده. چه دا (قرآن) يوه فيصلې والا خبره ده. او دا څه ټوقه نه ده. بيشكه دا (كافران خلق) تدبيرونه چلوي. او زه هم خپل تدبير چلوم لهٰذا (اے پيغمبره) دغې كافرانو ته مهلت وركړه، دوى لږې ورځې په خپل حال باندې پريږده.

## خلاصه تفسير

﴿وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ ۝﴾ [قسم دې په اسمان اوپه هغه شى كوم چه دشپې ښكاره كيدونكې دې ﴿وَمَا أَدْرَاكَ مَا الطَّارِقُ ۝﴾ اوتاته څهٔ معلومه ده چه هغه دشپې ښكاره كيدونكې شې څهٔ دې

﴿النَّجْمُ الثَّاقِبُ ﴾ هغه روښانه ستوري دي ] هرستوري چې وی لکه داقول دالله تعالی دي .والنجم اذاهوي(¹) وراند جواب دقسم دي چه ﴿إِن كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ﴾ [یوسړي داسي نشته په کوم چه څوك عملونه یادونکي ] فرېښته [مقرر نه وی] لکه داقول دالله تعالی دي ،وان علیکم لحافظین کراماکاتبین یعلمون ماتفعلون(²) مطلب داچه په دي عملونو محاسبه کیدونکي ده اوددي قسم دمقصودسره مناسبت دا دي چه لکه څنګه په اسمان کښي ستوري هر وقت محفوظ دي مګر ظهور ئې په شپه کښي وی دغه شان عملونه ټول په عملنامه کښي داوخت محفوظ دی مګر ظهور به ددي خاص په قیامت کښي وی هرکله چه خبره داده ﴿فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ مِمَّ خُلِقَ ﴾ [نو انسان لره ] دقیامت فکر پکار دي اوکهٔ ددي داستبعاد شبهه ئې وی نو دهٔ لره کتل پکار دی چه هغه دڅهٔ شی نه پیداکړي شوي دي ﴿خُلِقَ مِن مَّاءٍ دَافِقٍ ﴾ هغه دیو توپ وهونکو اوبونه پیدا شوي دي ﴿يَخْرُجُ مِن بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ ﴾ کومې چه دشااوسینې ]یعنی ټول بدن [دمینځ نه وځی ]مراد ددي اوبو نه منی ده خواه صرف دسړی یادسړی اوښځې ددواړو اودښځې په منی کښې اګر چه توپ وهل دسړی دمنی برابر نهٔ وی لیکن څهٔ توپ په کښې خامخا وی اوپه بل تقدیر یعنی کله چه داوبو نه مراد دسړی ښځې دواړو نطفه وی نو لفظ دماء مفرد راوړل په دې بنا باند دي چه دَ دواړو مادي مخلوطې شي اوپه مثل دیوشي وګرځي اوشا اوسینه چونکه دبدن دوه طرفونه دی په دې وجه کنایه دټول بدن نه کیدې شي حاصل دادي چه دنطفي نه انسان جوړول زیاته عجیبه ده په نسبت ددوباره جوړولو اوکله چه زیات عجیبه کار دهٔ دقدرت نه ظاهرېږي نو ددې نه ثابت شوه چه ﴿إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ ﴾ [هغه دهٔ په دوباره پیداکولو خامخا قادر دي ]پس دغه دقیامت داستبعاد شبهه دفع شوه اودادوباره پیدا کول به په هغه ورځ وی ﴿يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ ﴾ [په کومه ورځ چه به ټول هر څهٔ رازونه ښکاره شی ] یعنی ټولې پټې خبرې باطلې عقیدې فاسد نیتونه به ظاهر شی اوپه دنیاکښې څنګه چې په موقع دجرم نهٔ منکرېږی هغې لره پټوی داخبره به هلته ممکنه نهٔ وی ﴿فَمَا لَهُ مِن قُوَّةٍ وَلَا نَاصِرٍ ﴾ [پس دي انسان ته به نهٔ په خپله ] دمدافعت [قوت وی اونهٔ به دهٔ څوك حمایتی وی] چه عذاب لره دهٔ نه دفع کړی اوکهٔ وونیلې شی چه امکان دقیامت اګرچه عقلی دي مګر وقوع ئې نقلی دي اودلیل نقلی قران دي اودغه اوس هم محتاج داثبات دي نو ددي په حقله واورئ چه ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ﴾ [قسم دي په اسمان دکوم نه چه پرله پسې باران کیږی ﴿وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ﴾ اوپه مزکه کومه چه ] دتخم راویستلوپه وخت کښې [څیرې شی ] وراند جواب دقسم دي ﴿إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ﴾ [چه دا قرآن دَ حق او دَباطل په مینځ کښې یوفیصله کوونکې کلام دي ﴿وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ ﴾ اوهغه څهٔ لغوه شې نهٔ دي ] په دې سره دقران حق کلام دالله تعالی دطرف نه کیدل ثابت شو مګر باوجود دَ اثبات دَحق ددي خلقو حال دادي چه ﴿إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا ﴾ [داخلق] دحق نفی کولو دپاره [قسم قسم تدبیرونه کوی ] ﴿وَأَكِيدُ كَيْدًا ﴾ او زهٔ هم] دَ دوی دناکامئ اوسزا دپاره ]قسم قسم تدبیرونه کوم ] او ظاهره ده چه زماتدبیر به غالب کیږی اوهر کله چه زماتدبیر کول مووا ورېدل ﴿فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا ﴾ [نو تهٔ دي کافرانو ] دمخالفت نه ویریږه مه اوپه

---

¹) ترجمه: قسم دي وی په ستورو باندي کله چي هغه پریوزي.

²) ترجمه: اوپه تاسو باندي یاد لرونکي معززه لیکلو والا مقرر دی چي ستاسو ټول افعال ورته معلوم دی.

دوی دزر عذاب راتلو خواهش مهٔ کوه بلکه دوی [لره هم دغسې پرېږده اوزیاتې ورځې نه [بلکه لږې ورځې ئې پرېږده ] بیا به زهٔ په دوی عذاب نازل کړم خواه د مرګ نه وړاند یا د مرګ نه پس.
داخری قسم داخری مضمون سره دامناسبت دې چه قرآن دآسمان نه راځی اوپه چاکښې چه قابلیت وی هغه مالا مال کوی لکه باران چه آسمان نه راځی اوزمکه ښهٔ خړوب کوی ]

## معارف او مسائل

دې سورت کښې الله ﷻ دآسمان ا و ستورو په قسم خوړلو دا ارشاد فرمائیلې دې چې په هر انسان باندې یو محافظ مقرر دې چې ددهٔ ټول کارونه ، عملونه ،حرکات او سکنات ګوری او پرې پوهیږی ، ددې عقلی تقاضا داده چې انسان په خپل انجام باندې غور اوکړی چې دنیا کښې ددهٔ هرڅه کړه وړه د الله ﷻ په نزد محفوظ دی اودا محفوظ ساتل حساب دپاره دی چې په قیامت کښې به وی ښکه دې په هیڅ وخت کښې دآخرت او قیامت د فکر نه غافله نه شی.
دې نه پس دهغې شبهې جواب دې چې شیطان ئې د خلقو په زړونو کښې اچوی چې دمرګ نه پس په خاوره کیدو ذره ذره کیدو نه پس بیا د ټولو حصوراجمع کیدل او په کښې ژوند راپیدا کیدل یو وهمی خیال بلکه دعوامو په نظر کښې ناممکن دې. په جواب کښې د انسان په اول پیدا کیدو باندې دغور کولو هدایت دې چې هغه په څه شان دمختلفو ذرو او مختلفو مادو نه جوړ وی ځنګه چې په اول ځل ئې د ټولې دنیا مختلفې ذرې راجمع کړې او یو ژوندې سمیع او بصیر انسان ئې جوړ کړو دغه د الله ﷻ به په دې باندې ولې قدرت نه وی چې بیا دوباره ئې هغسې پیدا کړی اوپه غافل انسان باندې ئې دا ضباط کړل چې د آخرت د فکر چې څهٔ خودنه ده ته کړې شوې ده هغه دې کپ شپ نه ګڼړی ښکه چې دا یو داسې حقیقت دې چې مخې ته بهٔ ئې راځی په آخر کښې د کافرانو ددې شبهې جواب ورکړې شو چې کفر ، شرک او ګناهونه که د الله ﷻ خوښ نه وی نو په دنیا کښې پرې عذاب ولې نه راځی ؟ په دې باندې دا سورت ختم کړې شوې دې.
په ړومبی قسم کښې آسمان سره د طارق قسم دې . دطارق معنی د شپې راتلونکې ده ، هرکله چې ستوری د ورځې نه ښکاری ځکه ئې ورته طارق اوفرمائیل او پخپله ئې قرآن پاک داسې تفسیر اوفرمائیلو:
﴿وَمَآ اَدۡرٰىكَ مَا الطَّارِقُ﴾ تاته څه خبر دې چې طارق څه څیز دې ؟ بیا ئې اوفرمائیل چې: ﴿النَّجۡمُ الثَّاقِبُ﴾ یعنی ستورې روښانه دې. د نجم معنی ستورې دې، قرآن کریم یو ستورې نه دې ټاکلې ځکه هر ستوری ته وئیلې شی خو ځینې مفسرینو ترې خاص ستورې یعنی زحل مراد اخستې دې او دعربو د کلام نه ئې په دې باندې د نجم اطلاق ثابت کړې دې ، د ثاقب معنی روښانه ځلیدونکې دې.
﴿اِنۡ كُلُّ نَفۡسٍ لَّمَّا عَلَيۡهَا حَافِظٌ﴾ دا د قسم جواب دې ، په دې کښې د شروع حرف اِنۡ نافیه دې او لما حرف د الا معنی ورکوی. چې دقبیله هذیل په لغت کښې د استثناء معنی ورکوی. او د آیت مبارک معنی داده چې هیڅ نفس داسې نشته چې حفاظت کوونکې به ئې نه وی ، دحافظ معنی څارنه کوونکې هم ده . چې د چا عملونه په نظر کښې لری دپاره ددې چې حساب ئې واخلی اوحافظ په معنی محافظ هم راځی او مطلب ئې د مصیبتونو او آفتونو حفاظت کوونکې ده . د ړومبۍ معنې په اعتبار د حافظ نه مراد د عملونو لیکونکې فرشته ده او دلته

اګر چې دائي د مفرد په لفظ دجنس په معنی بیان کړېده خو ددې کنړ والې د بل آیت مبارک ﴿وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ ۝ كِرَامًا كَاتِبِينَ ۝﴾[1] نه ثابت دي.
او د بلې معنی په اعتبار سره هغه فرښتې مرادد ي چې الله ﷻ د هر انسان د حفاظت دپاره مقرر کړې دي. هغه دشپې ورځې دټولو آفتونو او مصیبتونو نه دانسان ساتنه کوي.
سوا دهغې آفت او مصیبت نه چې الله ﷻ ئې دغې انسان ته رسول تاکلی وي لکه په یو بل آیت مبارک کښې په ډاګه وائي چې: ﴿لَهُ مُعَقِّبَاتٌ مِّنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾ یعنی انسان دپاره وار په وار راتلونکې محافظې فرښتې تاکلې شوی دي چې د هغه د وړاندې روستو حفاظت د الله ﷻ په امر سره کوي.
یو حدیث پاک کښې راغلی دي چې الله ﷻ اوفرمائیل چې په هر مؤمن باندې د الله ﷻ د طرفنه درې سوه فرښتې دده د حفاظت دپاره مقرر دي چې د انسان د هر اندام حفاظت کوي، په دوئ کښې اوه فرښتې خو صرف د انسان د سترګو د حفاظت دپاره مقرر دي، دغه فرښتې ترې نه هر هغه مصیبت او آفت په شا تمبوي کوم چې په دهٔ باندې ئې راتلل مقدر نه وي. ددغې تمبولو مثال داسې دې لکه دشاتو نه چې مچان په پکې وغیره سره شړلې شی که په انسان باندې دغه پهره نه وی نو شیطانان به ئې اوتښتوی. [ قرطبی ][2].
﴿خُلِقَ مِن مَّاءٍ دَافِقٍ ۝﴾ یعنی انسان پیدا کړې شوې دې د توپ وهونکو اوبو نه چې د شا او د سینې د هډونکو تر مینځه راوځی. په عام توګه مفسرینو حضراتو ددې دا مفهوم اخستې دې چې نطفه د سړی د شا او دښځې د سینې نه راوځی خو د انسانی اندامونو دماهرو طبیبانو تحقیق او تجربه داده چې په حقیقت کښې نطفه د انسان د هریواندام نه را اوځی او د بچی هراندام د هغه نطفې د هغه جزنه جوړیږی چې دنارینه او زنانه کوم اندام نه وتلی وی. البته دماغ لره په دې معامله کښې دټول نه زیات دخل دې. څکه لیدې شی چې ډیر جماع کوونکې اکثر د دماغی کمزوری مریضان وی، دې سره دهغوئ تحقیق داهم دې چې نطفه د ټولو اندامونو نه په رابیلیدو د حرام مغز په ذریعه په خصیتینو کښې راجمع شی بیا د هغه ځائې نه راوځی.
که دا تحقیق صحیح وی نو دمفسرینو حضراتو دا خبره هم صحیح کیدیشی چې نطفه د سړی د شا او دښځې دسینې نه راوځی په دې توجیه کښې هم څه بُعدنشته دې څکه چې د طبیبانو په دې خبره اتفاق دې چې دماغ دنطفې په خارجیدو کښې لوئې دخل لری او ددماغو په ځائې خلیفه اوقائم مقام حرام مغز دې چې دملا دتیر ترمینځه تر خصیتینو پورې راغلې دې ددې څه حصې په هډوکو کښې هم راغلی دی. په دې بنا دا کیدیشی چې د ښځې په نطفه کښې د سینې د هډوکو نه د راغلې نطفې او د سړی په نطفه کښې د شانه دراغلې نطفې دخل زیات وی [ البیضاوی ][3].
که د قرآن پاک په الفاظو باندې غور اوکړې شی نو په هغې کښې د ښځې او دسړی تخصیص نشته، صرف دومره فرمائی چې نطفه دشا او دسینې د مینځ نه راوځی. نو ددې بې تکلیفه

[1]) ترجمه: - او په تاسو باندې یاد لرونکې معززه لیکلو والا مقرر دی
[2]) تفسیرالقرطبي[ج:۲۰ص:۳] و مجمع الزوائد کتاب القدردفع ما لم یقدر علی العبد رقم الحدیث :[۱۱۹۰۳]
[3]) تفسیر البیضاوی تحت هذه الآیة[ ج:۵ص:۳۸۹]

مطلب دا کیدیشی چې نطفه د انسان د ټول بدن نه راوځي چې د هغې نه تعبیر په وړاندې روستو، سره اوشو. ولې چې دواړه په بدن کښې ضروري برخې دي

﴿إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ﴾ د رجع معنی په بیرته راګرځول دي مطلب دادې چې کوم خالق کائنات انسان لره اول د نطفې نه پیدا کړې دې، هغه الله ﷻ دده په دوباره پیدا کولو په ښه شان سره قادر دې.

﴿يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ﴾ د ﴿تُبْلَى﴾ لفظي دَ امتحان اخستو او آزمیښت کولو ده او د ﴿سَرَائِرُ﴾ معنی پټ څیزونه دي، مطلب دادې چې دقیامت په ورځ به دانسان د ټولو هغې عقائدو اوخیالاتو او دَ نیت اوعزم امتحان اوشي چې په زړه کښې پټ وي او په دنیا کښې پرې هیڅوک خبر شوی نه وي. دا شان هغه اعمال او افعال چې کوم ده په پټه کړې وؤ او په دنیاکښې پرې هیڅوک خبرنه وؤ په محشرکښې به دَدې ټولو امتحان واخستې شي، یعنی دغه پټ رازونه به ئې هم ښکاره کړې شي. حضرت عبدالله بن عمر ﷠ اوفرمائیل چې الله ﷻ به دقیامت په ورځ د انسان هر پټ راز ښکاره کړي دَ هرې ښکلې او خرابې عقیدې اوعمل علامت به دَ انسان په مخ باندې یا دَ ښائست په صورت کښې اویا دَ ظلمت او توروال په صورت کښې ښکاره کولې شي. [قرطبي][1].

﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ﴾ رجع هغې باران ته وئیلې شي چې وار په وار کیږي او دَ اودریدو نه پس بیا بیا کیږي.

﴿إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ﴾ یعنی قرآن کریم یو فیصله کوونکې قول دې چې د حق او باطل ترمینځه فیصله کوي او پدې کښې چاته دشک شبهې ګنجائش نشته.

علي ﷠ فرمائیلي دي چې ما رسول الله ﷺ نه واوریدل چې هغوئ دقرآن پاک باره کښې داسې اوفرمائیل: [كتاب فيه خبر ما قبلكم وحكم ما بعدكم وهو الفصل ليس بالهزل]

یعنی دا یو داسې کتاب دې چې په کښې تاسو نه د وړاندې امتونو حالات اوخبرونه دي او تاسونه پس راتلونکو دپاره حکمونه دي، دافیصله کوونکې قول دې څه دټوقو خندا څیز نه دې[2]

تمت سورة الطارق بحمدالله تعالى ۱۷ شعبان ۱۳۹۱ هجرى

| اياتونه | | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة الاعلى مكية وهي تسع عشرة اية وركوعا واحدا | | |
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ⑲ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ① |

| سَبِّحِ | اسْمَ رَبِّكَ | الْأَعْلَى | الَّذِي | خَلَقَ |
|---|---|---|---|---|
| پاکي بیان کړه | دنوم درب خپل | چې دټولو نه اوچت دې | هغه رب | چې پیدا ئې کړو [هر څیز] |

دخپل رب دنوم پاکي بیان کړه | ..........چې اوچت دې | ..........هغه ذات چې مخلوق ئې پیدا کړو

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۹]

[2]) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۹]رو جامع الترمذي، ابواب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل القرآن [ج:۲ ص:۱۱۸] و مسند احمد، مسند علی بن طالب کرم الله وجهه رقم الحديث:[۷۰٤]

فَسَوّٰى ۝٢ وَالَّذِىْ قَدَّرَ فَهَدٰى ۝٣ وَالَّذِىْٓ

نو برابر ئې کړو هغه | او هغه رب | چې تقدير ئې جوړ کړو | بيا ئې لار اوښودله | او هغه رب |

نو برابر ئې کړو | او هغه ذات چې دهر څيز اندازه ئې مقرر کړه | بيا ئې لاره اوخودله | اوهغه ذات

اَخْرَجَ الْمَرْعٰى ۝٤ فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحْوٰى ۝٥ سَنُقْرِئُكَ

چې راويې ويستل | بوټي [واښه] | نو کړل ئې هغه | وچ | تور | مونږ به وايو [يعني اوروو] تاته

چې واښه ئې رازرغون کړه | .......... بيا ئې هغه تور بوس کړل | ..........مونږ به تاته [قران پاک] لولو

فَلَا تَنْسٰٓى ۝٦ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ

بيا به ته نه هيروې هغه | مګر هغه | چې اوغواړي الله | بيشکه هغه | پوهيږي | په ښکاره |

نوستا نه به نه هيريږي | مګر هغه څه چې الله ﷻ ئې اوغواړي | ......هغه په ښکاره هم پوهيږي

وَمَا يَخْفٰى ۝٧ وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرٰى ۝٨ فَذَكِّرْ

او په هغې چې پټ وی | او مونږه اسانتيا درکوؤ تاته | طرف داساني طريقې ته | نونصيحت کوه ته |

او په هغه څه هم چې پټ دی | اوتاته به داسان دين لاره اسانوؤ | ............نو ته نصيحت کوه

اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى ۝٩ سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى ۝١٠ وَيَتَجَنَّبُهَا

که فائده ورکوی | نصيحت | نصيحت به قبلوی | هغه څوک چې يريږي | او خان به ساتی ددې نه |

که نصيحت څه فائده ورکوی | څوک چې ويريږي نو هغه به نصيحت قبلوی | او څوک چې بدنصيبه دی

الْاَشْقَى ۝١١ الَّذِىْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى ۝١٢ ثُمَّ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا

لوئ بدبخته سړي | هغه بدبخته | چې ننوځی به | وور | لوئ ته | بيا به نه مرى | په هغې کښې |

هغوئ به ترې نه ډډه کوی | هغه کس چې لوئي اور ته داخليږي | ........... بيا به په کښې نه مری

وَلَا يَحْيٰى ۝١٣ قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ۝١٤ وَذَكَرَ

اونه به ژوندې کيږي | بيشکه چې کامياب شو | هغه څوک | چې پاکوالي ئې اختيارکړو | او ياد ئې کړو

اونه رغيږي | ......هغه څوک کامياب شو | .......چاچې خان پاک کړو | ..........اودخپل رب نوم ئې

اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ۝١٥ بَلْ تُؤْثِرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ۝١٦ وَالْاٰخِرَةُ

| نوم درب خپل | بيا ئې مونځ اوکړو | بلکه تاسو | غوره کوئ | ژوند ددنيا | حالانکه آخرت |

يادولو | اومونځ ئې کولو | بلکه تاسو ددنيا ژوند غوره کوئ | ..........حال دا دې چې آخرت

خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ۝١٧ اِنَّ هٰذَا لَفِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ۝١٨

بهتره دې | او باقى پاتې کيدونکې دې | بيشکه دا خبره | خامخا په صحيفو مخکينو کښې وه |

دير پائيدار دې | .........بيشکه دا مضمون په پخوانو صحيفو کښې هم بيان شوې وو

صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى ۝١٩

په صحيفو دابراهيم | او دموسى کښې |

[يعني] دابراهيم ؑ او موسى ؑ په صحيفو کښې

## آسان ترجمه قرآن

تسبيح كوه د خپل پروردگار د نوم، چه دهغه شان د ټولو نه اوچت دې. داسې ذات دې، چه هر څه ئې پيدا كړل، او برابر ئې كړل. او هغه ذات چه هر څيز ته ئې يو اندازه وركړه، بيا ئې لاره اوښودله او هغه ذات چه (د زمكې نه) ئې شنه گيا راؤيستله. بيا ئې هغه اوچه تور رنگې اوكرځوله (اے پيغمبره) يقيناً لولو مونږ په تا باندې، نو ته به هيروې نه. سوا دهغې نه چه اوغواړي الله تعالى يقين اوكړه. هغه په ښكاره څيزونو باندې هم پوهه دې اوپه هغه څيزونو باندې هم، چه پټ شوې دى. او مونږ به تا ته په آسان شريعت باندې (د تللو دپاره) سهولت دركړو لهٰذا ته نصيحت كوه. كه د نصيحت فائده وى. د چا په زړه كښې چه د الله تعالى ويره وى، هغه به نصيحت منى، او د هغې نه به لرې هغه څوك وى، چه لوئې بدبخت وى. چه په لوئې اور كښې به داخليږى. بيا په هغې اور كښې به نه مر كيږى، او نه به ژوندې كيږى كاميابې ته اورسيدو هغه كس، چه پاكى ئې اختيار كړه. او د خپل پروردگار نوم ئې واخستلو، او مونځ ئې اوكړو. ليكن تاسو غوره كوئ ژوند د دنيا. حالانكه آخرت ډير زيات غوره دې. او باقى پاتې كيدونكې دې. دا خبره يقيناً په مخكښنو (آسمانى) صحيفو كښې هم ليكلې ده. د ابراهيم عليه السلام او موسٰى عليه السلام په صحيفو كښې.

## خلاصه تفسير

اې پيغمبر ﷺ ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [ته] اوكوم مؤمنان چه تاسره دى [دخپل پروردگار عالى شان دنوم تسبيح ] اوپاكى [بيا نوئ﴿الَّذِیْ خَلَقَ فَسَوّٰى﴾ كوم چه] هر شى لره [جوړ كړو بيائې] هغې لره [ښيك جوړ كړو ] يعنى هرشى لره ئې په مناسب طور باند جوړ كړل ﴿وَالَّذِیْ قَدَّرَ فَهَدٰى﴾ [اوچاچه] دجاندارو دپاره ددوى مناسب څيزونو لره [تجويز كړل بيائې ] دغې جاندارو لره ددغو څيزونو طرف ته [لار وښوده ] يعنى دهغوى په طبيعتونو كښې ئې ددغو څيزونو تقاضا پيداكړه ﴿وَالَّذِیْۤ اَخْرَجَ الْمَرْعٰى﴾ [اوچاچه ] شنه ښائسته [وابښه] دمزكې نه راويستله ﴿فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحْوٰى﴾ بيائې داتور خشاك كړو [ اول عام تصرفات مذكور دى بيادحيواناتو په حقله بيادنباتاتو په حقله مطلب دادې چه دطاعاتو په ذريعه داخرت تيارى كول پكار دى كوم خائې چه په عملونو جزااوسزا كيدونكې ده اوددې طاعاتو دطريقې خودلو دپاره مونږ قران نازل كړې دې او تالره مو ددې دتبليغ دپاره ماموره كړې دې پس ددې قران په نسبت مونږ وعده كوو چه ﴿سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰۤى﴾ [مونږه] څومره [قرآن ] په نازونو [تاته به نې وايو] يعنى دريادوو به نې [بيا به ته ] ددغې نه څه جزء [نه هيروې ﴿اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ﴾ مگر څومره ] هيريدل [چه الله تعالى ته منظور وى] چه دنسخ يوه طريقه داهم ده لكه چه الله تعالى فرمائى ﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا﴾ الخ[1] پس هغه به خامخا ستااودټولو دذهنونو نه هيرولې شى او داياد ساتل اوهيرول به ټول قرين حكمت وى خكه چه ﴿اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ وَمَا يَخْفٰى﴾ هغه هر ظاهر اوپټ لره پيژنى [ په دې وجه دهغه نه دڅه شى مصلحت پټ نه دې] نوهر كله چه ديوشى محفوظ ساتل مصلحت وى نو محفوظ ئې ساتى اوكله چه ئې هيرول مصلحت وى نو هيروى ئې [او]

[1]) ترجمه:- مونږ د يو آيت حكم موقوف كوؤ يا هغه آيت منسوخ كوؤ نوددې آيت نه بهتر يا ددې آيت په مثل بل نازلوؤ.

لکه څنګه چه مونږ ستاد پاره دقران یادول اسانوو دغه شان ﴿وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرَىٰ﴾ [مونږ به ددې اسان ] شریعت په هر حکم باندې چلیدلو [دپاره تاته سهولت درکړو ] یعنی پوهیدل به پرې هم اسان وی اوعمل به پرې هم اسان وی اوتبلیغ به هم اسان وی او مزاحمتونه به دفع کړو اوشریعت صفت یسرٰی راوړل په طور دمدح دی یاپه دې وجه چه داسبب دې دیسر اوهرکله چه مونږ تادپاره دوحی په حقله دهر کاراسانولو وعده کوو ﴿فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ الذِّكْرَىٰ﴾ [نو ته ] لکه څنګه چه په خپله تسبیح اوپاکی کوې دغه شان نوروته هم [نصیحت کوه که نصیحت کول مفیدوی ] مګر لکه څنګه چه ظاهره اومعلومه ده چه نصیحت په خپل ذات کښې همیشه مفید وی لکه چه الله تعالی فرمائی ﴿فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (۱) حاصل داشو چه هر کله نصیحت دنفع شې دې نوته دنصیحت کولو اهتمام کوه مګر سره ددې چه نصیحت په خپل ذات کښې نافع اومفید دې په دې سره دا مه ګنړه چه دابه ټولو دپاره مفید وی اوټول به دې لره ومنی بلکه ﴿سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَىٰ﴾ [هغه سړې نصیحت منی کوم چه] دخدائې نه [ویرېږی ﴿وَيَتَجَنَّبُهَا الْأَشْقَى﴾ اوکوم چه بدنصیبه دې هغه ددې نه ډډه کوی ﴿الَّذِي يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرَىٰ﴾ کوم چه ] اخر [په لوئې اورکښې ] یعنی په اور ددوزخ کښې کوم چه ددنیا داورنه ډیر لوئې دې [به داخل شی ﴿ثُمَّ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ﴾ بیابه ] ددې نه زیاته داچه [نه به په دې کښې مړه کیږی اونه به ] دارام په ژوند [ژوندی وی [یعنی کوم خائې چه دنصیحت قبلولو شرط موجود نه وی هلته اګر چه ددې اثر ظاهرنه وی مګر نصیحت فی نفسه نافع شو اومفید دې اوستا په ذمه ددې واجب کیدو دپاره داکافی ده خلاصه داول دسورة نه تردې خایه پورې داشوه چه ته خپل تکمیل هم کوه اونورو ته هم ددې تبلیغ کوه چه مونږ ستا مددګار یو وړاند ددې تفصیل دې چه دالله تعالی نه ویریدونکی دنصیحت نه فائده اخلی ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ﴾ [بامراد شو کوم سړې چه] دقران په اوریدو دباطلو عقیدو اورذیلو اخلاقونه [پاك شو ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ﴾ اوخپل رب نوم اخلی اومونځ کوی ] مګر اې منکرانو تاسو قران اوري اوداخرت سامان نه تیاروئ ﴿بَلْ تُؤْثِرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا﴾ [بلکه تاسو ددنیا ژوند مخکښې کوئ ﴿وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ حال دادې چه آخرت ] ددنیانه په ډیرو درجو غوره اوپائیدار دې او دا مضمون صرف دقرآن دعوی نه ده بلکه ﴿إِنَّ هَٰذَا لَفِي الصُّحُفِ الْأُولَىٰ﴾ [دامضمون په مخکینو صحیفو کښې هم دې ﴿صُحُفِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ﴾ یعنی دابراهیم اوموسی] علیهم السلام په صحیفوکښې [ په روح المعانی کښې دعبدبن حمید په روایت سره مرفوع حدیث مذکور دې چه په ابراهیم علیه السلام لس صحیفې نازلې شوې اوپه موسی علیه السلام دتورات دنزول نه وړاند لسې ۱۰ صحیفې نازلې شوې ](۲)

## معارف او مسائل

**مسئله:** عالمانو فرمائیلی دی چې کله قاری د ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ تلاوت کوی نو [سبحان ربی الاعلی ] وئیل مستحب دی . د صحابه کرامو رضی الله عنهم عبدالله بن عباس رضی الله عنه ، ابن عمر رضی الله عنه ، ابن زید رضی الله عنه ، ابی موسی رضی الله عنه او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هم دا معمول وو چې کله به یې دا سورت

---

(۱) ترجمه:- پوهول کوئی خکه پوهول ایمان والو ته فائده رسوی.

(۲) تفسیر روح المعاني [ج:۲۲ ص:۳۸۱] و صحیح ابن حبان کتاب البر والاحسان باب ماجاء فی الطاعات وثوابها رقم الحدیث:[۳۶۲] و کنز العمال رقم الحدیث:[۴۴۱۵۸]

شروع کولو نو [سبحان ربی الاعلی ] به ئې وئیلو. [ قرطبی ] [1]. یعنی مونځ نه سوا کله چې څوک تلاوت کوی نو داسې وئیل مستحب دی.

**مسئله**: عقبه بن عامر جهنی ﷺ نه روایت دې چې کله ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ سورت نازل شو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې [اجعلوهافی سجودکم] یعنی دا کلمه [سبحان ربی الاعلی ] په سجده کښې وایئ [2].

﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ د تسبیح معنی پاک لرل، او پاکی بیانول دی. د ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ﴾ معنی داده چې د خپل رب نوم پاک لره. مراد دادې چې دخپل رب دنوم تعظیم او تکریم کوه او د الله ﷻ دنوم اخستو په وخت د خشوع او خضوع، او ادب لحاظ ساتئ او د هر داسې څیز نه د الله ﷻ نوم پاک لرئی چې الله ﷻ سره نه ښائی. په دې کښې دا هم داخل دی چې الله ﷻ لره صرف په هغې نومونو یادوئ چې الله ﷻ پخپله دخپل ځان دپاره بیان کړی دی یا الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته خودلی دی دهغې نه سوا بل یو نوم سره الله ﷻ بلل جائز نه دی.

**مسئله**: دا شان دې حکم کښې داهم داخل دی چې کوم نوم الله ﷻ لره خاص دې هغه دچا مخلوق دپاره استعمالول دهغه د پاکوالی اوبې عیبئ نه خلاف دی ځکه جائز نه دی [ قرطبی] [3].

لکه رحمان، رازق، غفار، قدوس وغیره. نن صبا په دې معامله کښې دخلقو غفلت په مخه زیاتیږی د نومونو لنډول د خلقو شوق دې ځکه عبدالرحمان ته رحمان، عبدالرازق ته رازق او عبدالغفار ته غفار همداسې وائی او په دې پوهیږی چې ددې ویونکې او آوریدونکې دواړه ګناهګار دی. او دا بې لذته ګناه خلق دشپې ورځې کوی. او ځینې مفسرینو حضراتو دلته د اسم نه پخپله د مسمی ذات مراد اخستې دی او د عربی ژبې په اعتبار ره ددې ګنجائش هم شته. او په قرآن پاک کښې هم ددې معنی دپاره استعمال شوی دی. او حدیث پاک کښې چې رسول اکرم ﷺ ددې کلمې د مونځ په سجده کښې د وئیلو حکم ورکړې دې دهغې په عملی کولو کښې چې کومه کلمه اختیار کړې شوې ده هغه سبح اسم ربك الاعلی نه بلکه سبحان ربی الاعلی ده. دې نه معلومیږی چې دلته د اسم نه مراد مسمی دې، [ قرطبی ] [4] والله اعلم.

**د کائناتو په پیدا کولو کښې لطیف او باریک حکمتونه**: ﴿الَّذِي خَلَقَ فَسَوَّىٰ ۝ وَالَّذِي قَدَّرَ فَهَدَىٰ﴾

دا ټول د اعلی رب د صفتونو بیان دې چې د کائناتو په پیدا کولو کښې د الله ﷻ د حکمت بالغه اوقدرت کامله دلیدلو سره تعلق لری، په دې کښې رومبې صفت، خَلَقَ، دې، د خَلَقَ معنی صرف کاریګری نه ده بلکه د عدم [نیشت] نه بغیر د څه رومبئ مادې نه په وجود کښې راوړل دی او داکار دچا مخلوق په وس کښې نه وی، صرف د الله ﷻ قدرت کامله دې چې بغیر د څهٔ وړاندینئ مادې نه کله چې غواړی او څه چې غواړی د نیشت نه ئې شته کوی. دې پیدا کولو سره بل تړلې صفت ﴿فَسَوَّىٰ﴾ دې چې د تسویة نه مشتق دې. او ددې لفظی

---

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۳]
[2] ) سنن ابوداود، کتاب الصلاة، باب ما يقول الرجل فی رکوعه وسجوده [ج:۱ص: ۱۲٦]
[3] ) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱٤]
[4] ) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱٤]

معنی دَ برابرولو ده، اودَ برابرولو نه مراد دادې چې هريو څيز تـه کوم وجود ورکړې شوې دې دَهغې جسامت شکل اوصورت دَ اندامونو او اجزاء وضع او هيئت کښې يوخاص تناسب په خيال کښې ساتلوسره دا وجود ورکړې شو. انسان او هريو څناور تـه دَهغـه دَ ضرورت مناسبت سره اندامونه ورکړې شو اوهغه اندامونه ئې دَ هغه دَ جسامت اووضع هيئت دَهغـه دَ ضرورياتو په مناسبت سره جوړکړل. لاسونه، پښې او دهغې دَ گوتو په بندونو کښې داسې جوړونه او قدرتی سپرنگونه اولگول چه هغه هرطرف ته تاوولې ماتولې اوقـط کولې شی. دغه شان يوبل اندام ته اوگورئی دا دَ حيرانتيانه ډك تناسب پخپله انسان په خالق کائنات حکمت اوقدرت باندې دَ ايمان راوړلو دَپاره کافی دی.

په دې سلسله کښې دَ دريم څيزباره کښې اوفرمائيل ﴿قَدَّرَ﴾ د تقدير پـه معنی کښې يو څيز په خاص انداز باندې جوړولو اوپه خپل مينځ کښې دَ موازنت هم راغلی دی. او پـه معنی دَ قدر اوقضا هم استعماليږی. دَ کوم معنی چه دهرڅيز متعلق دَ الله تعالی فيصله او خاص تجويزده. په دې آيت کښې هم دغـه معنی مراد ده. اومطلب دادې چه الله تعالی دَ دنيا څيزونه صرف پيدا کولو او جوړولو سره پرينخودل بلکه هرڅيز ئی دَ يوخاص کار دَپاره پيدا کړو. اودَهغې مناسب ئې هغې ته وسائل ورکړل اوهم په هغه کار کښې ئی هغه اولگولو. کـه غور اوکړې شی نو داکاردَ يو خاص جنس يادَ نوع مخلوق دپاره مخصوص نه دی، ټول کائنات اومخلوقات هم داسې دی چې هغه الله تعالی ﷻ دَخاص خاص کارونو دپاره جوړ کړی د ی او هغوی ئی هم په هغه کار کښې لگيا کړی دی. هرڅيزدَخپل رب پـه مقرر کړې شوې ډيوټئی باندې لگيدلې دې. آسمان اودَ هغې ستوری، بريښنا او باران نه واخلـه تر انسانانو، حيوانانو، نباتاتو او جماداتو په ټولو کښې دَدې مشاهده کيږی. چې کوم يو په کوم کار باندې دَهغوی خالق لگولې دی هم په هغې باندې لگيادې:

ابرو بادومه خورشيد وفلك دركارانند

يعنی وريځې، باد، سپوږمئ، نمر او آسمان ټول په ټاکلی کار کښې لگيا دی.
دغه شان مولانا رومی رحمه الله فرمائی:

خاك وباد وآب د آتش بنده اند بامن وتومرده با حق زنده اند

يعنی خاوره، باد، اوبه، اور بندگان دی، زما او ستا په نيز مړهٔ خو الله ﷻ سره ژوندی دی. خصوصا دانسان هر نوع او قسم چې الله ﷻ کومو خاصو کارونو دپاره پيدا کړی دی هغه په قدرتی ډول په دې کار کښې لگيدلی دی، ددوئ مينه اوشوق ټول هم ددې کارنه چاپيره گرځی.

هر يكے رابهر كارے ساختند ميل او را دردلش اندا ختند

يعنی هر يو ئې د کوم کار دپاره جوړ کړې دې د هغې شوق او مينه ئې دهغې په زړه کښې واچوله.

څلورم څيز ئې دا اوفرمائيلو چې ﴿فَهَدٰى﴾ يعنی رب العالمين چې کوم څيز د کوم کـار دپاره پيدا کړو هغه ته ئې دهغه هدايت هم اوفرمائيلو چې هغه دې په څه شان دا کـار سرته اورسوی. حقيقت خو دا دې چې دا هدايت ټولو کائناتو اومخلوقاتو لره شامل دې، آسمان وی اوکه آسمانی مخلوقات يا زمکه او ددې مخلوقات وی، ولې چې الله ﷻ يو خاص قسم عقل

اوشعور دوئ ته هم ورکړې دې اګر چې هغه د انسان عقل او شعور نه کم دې ، لکه د قرآن پاک په بل آیت مبارک کښې ارشاد دې چې :

د ﴿اَعْطٰى كُلَّ شَیْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى﴾ یعنی الله ﷻ هر څیز پیدا کړو او شته ئې کړو ،بیا ئې ورته د هغه د سپارلی کار هدایت اوکړو. ددغې هدایت عام اثر دادې چې آسمانونه ، زمکه ، ستوری ، سیارې ، غرونه اودریابونه ټول په یوه مخه چې اول پیداښت نه په کوم خدمت مقرر کړې شوی دی ، دغه خدمت په صحیح طریقه بې د څه کمئ زیاتئ یا سستئ نه په ځائې راوړی . خصوصا انسانان او حیوانان دکومو چې عقل او شعور هر وخت لیدلې شی ، په دې کښې غور کولو سره معلومیږی چې په دې کښې هر نوع ، هر قسم بلکه هر یو ته د خپل ژوند د ضروریاتو حاصلولو اوخپلو مخالفو څیزونو د دفع کولو دپاره څنګه باریک هنرونه خودلی دی چې عقل حیران شی ، انسان خود ټولو نه زیات دعقل اوشعور خاوند دې ، د ځنګل ځناور ، درندګان ، الوتونکی او په زمکه کښې دننه اوسیدونکی څیزونه اوګورئی چې هر یو ته د خپل ژوند د ضرورتونو حاصلولو ، استوګنې کولو اودخپل ځانی اوجنسی ضرورتونو پوره کولو دپاره څنګه هنرونه ئې ورازده کړی دی . او دا ټول بې واسطې دخالق کائنات په تعلیم او ازده کولوسره دی . په څه سکول ، کالج کښې یا د یو استاد نه ئې نه دې زده کړی ، بلکه دا ټول ددغې هدایت اوداالله ﷻ د خودنې نتیجې دی چې بیان ئې په ﴿اَعْطٰى كُلَّ شَیْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى﴾ اوددې سورت په ﴿قَدَّرَ فَهَدٰى﴾ کښې راغلې دې .

**د انسان سائنسی تعلیم هم په حقیقت کښې د الله ﷻ ورکړه ده** :: انسان ته چې الله ﷻ د ټولو نه زیات مکمل عقل ، شعور ورکړې دې . او دهٔ لره ئې د کائناتو مخدوم جوړ کړې دې ، ټوله زمکه ، غرونه ، دریابونه ، او په دې کښې پیدا کیدونکی څیزونه د انسان دخدمت اوفائدې دپاره پیدا کړې شوی دی . خو ددې نه پوره پوره فائده پورته کول او مختلف قسم منافع حاصلول او دمختلفو څیزونو رایو ځائې کولو سره یونوې څیز ترې جوړول د لوئې علم او هنر کار دې . قدرت په انسان کښې په فطری ډول دا عقل او فهم ایخودې دې چې د غرونو په کنستلو سره ، په دریابونوکښې د غوپو وهلو سره په سوږنو کالی او دریابی څیزونه حاصلوی . او بیا د لرګی ، اوسپنې ،تانبې او پیتلو وغیره په رایوځائې کولو سره ددې نه د خپل ضرورت نوی نوی څیزونه جوړوی . دا عمل او هنر د فلسفیانو په تحقیقونو او د کالجونو په تعلیمونو اړه نه لری ، د دنیا د اول سر نه دا کارونه بې تعلیمه خلقو هم دغسې کړی دی او هم دغه فطری سائنس دې چې الله ﷻ انسان ته په فطری ډول ورکړې دې ، وریسې د فنی او علمی تحقیقاتو په ذریعه په دې کښې د ترقئ کولو استعداد هم د الله ﷻ د قدرت ورکړه ده . پدې باندې ټول پوهیږی چې سائنس څه څیز لره نه پیدا کوی بلکه د قدرت دپیدا کړو څیزونو استعمال ښائی او ددې استعمال ادنی درجه خو الله ﷻ انسان ته په فطری ډول خودلې ده .وریسې ئې په دې کښې د فنی تحقیقاتو او د ترقئ لوئې فراخه میدان ایخودې دې او د انسان په فطرت کښې ئې په دې باندې د پوهیدو استعداد او صلاحیت ایخودې دې . ددې نندارې په دې سائنسی دور کښې هره ورځ نوې نوې مخې ته راځی . او معلومه نه ده وریسې به ددې نه زیات هم څهٔ څه مخې ته راځی په غور کولو سره معلومیږی چې دا ټول د قرآن کریم د یو

لفظ ﴿فَهَدٰی﴾ تشريح ده چې الله ﷻ انسان ته ددې ټولو کارونو لار اوخودله او دوئ ته ئې ددې د پوره کولو استعداد او بخښلو خو افسوس دې چې په سائنس کښې ترقی کوونکی ددې نه نور هم زيات ناآشنا بلکه رانده کيږي.

﴿وَالَّذِيْٓ اَخْرَجَ الْمَرْعٰى ۙ فَجَعَلَهٗ غُثَاۗءً اَحْوٰى ۙ﴾ د ﴿مَرْعٰى﴾ معنی د څرند ځائې دې چرته چې څاروی څري او ﴿غُثَاۗءً﴾ هغه خځلې وغيره ته وئيلې شي چې د سيلاب د اوبو دپاسه راځي.

﴿اَحْوٰى﴾ د حوة نه مشتق دې، معنی ئې شوخ تيز زرغنوالې دې چې يو قسم تور والې په کښې وی، په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ د ټوکيدو باره کښې د خپل قدرت او حکمت څه بيان فرمائيلې دې چې زمکې نه ئې شينه وابښه راويستل بيا په اوچولو سره ئې تور کړل او هغه شينوالې ئې لاړو. په دې کښې د انسان انجام ته هم اشاره ده چې دا د جسم تازګی، ښکلا، اوچستی، چالاکی، د الله ﷻ ورکړه ده خو آخرې بيا هم ختميدونکې ده.

﴿سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰٓى ۙ اِلَّا مَا شَاۗءَ اللّٰهُ ۭ﴾ په تير شوؤ آيتونو کښې الله ﷻ دخپل قدرت او حکمت څو ننداري بيانولو نه پس نبی کريم ﷺ ته د نبی کريم ﷺ د پيغمبرئی د ذمه دارئی ادا کولو دپاره څو هدايتونه ورکړې دی او د هدايتونو نه وړاندې ئې د نبی کريم ﷺ د کار آسانولو زيرې آؤرولې دې، هغه دا چې په ابتداء کښې به هرکله چې په نبی کريم ﷺ قرآن کريم نازليدو او جبرائيل امين به ورته دقرآن کريم څه آيت آؤرولو نو په دې ويره به ئې جبرائيل ؑ سره سره لوستلو چې هسې نه د ذهن نه مې اونه وځي. ځکه په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ نبی کريم ﷺ ته د قرآن کريم ياد لرل پخپله ذمه واخستل او د نبی کريم ﷺ صحيح لوستل ئې هم په خپله ذمه واخستل نتيجه به ئې دا وی چې: ﴿فَلَا تَنْسٰٓى ۙ اِلَّا مَا شَاۗءَ اللّٰهُ ۭ﴾ چې تاسو ﷺ به قرآن کريم نه هيروئی خو هغه چې الله ﷻ ئې د هغه د څه حکمت په بنا باندې تاسو نه هيرول منظور وی، ددې مطلب دادې چې دقرآن کريم د څه حصې دمنسوخ کولو دوه طريقې دی، يو دا چې الله ﷻ صفا حکم راؤليږي چې فلانې آيت، سورت يا حکم منسوخ شو او دهغې په ځائې بل آيت مبارک يا حکم وغيره راشي. او دويم صورت ئې دادې چې دغه آيت الله تعالی د نبی کريم ﷺ او دټولو مسلمانانو د ذهنونونه اوباسي او ترينه ئې هير کړی لکه چې الله ﷻ بل ځائې کښې هم دغسې فرمائی چې: ﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا﴾ اوبعض حضراتو د: ﴿اِلَّا مَا شَاۗءَ اللّٰهُ ۭ﴾ د استثناء مطلب دا ګرځولې دې چې کيديشی چې الله ﷻ د څه مصلحت او حکمت په بنا باندې په عارضی ډول څه آيت مبارک ستاسو د ذهن نه هير کړی او بيا درته راياد شی لکه د حديث پاک په ځينې روايتونو کښې راغلی دی چې يو ورځ نبی کريم ﷺ يو سورت تلاوت کړو، په هغې کښې ديو آيت مبارک لوستل ترې پاتې شو. ابی بن کعب ؓ چې ليکونکې د وحی وؤ دا اوګڼل چې ګنی دغه آيت مبارک منسوخ شوې دې کله چې تپوس اوکړو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې منسوخ شوې نه دې بلکه په هيره رانه پاتې شو [ قرطبی ] (۱). نو ددې استثناء حاصل دا شو چې وختی او عارضی ډول د يو آيت مبارک هيريدل او بيا ورته رايادېدل دې وعدې دې سره بې سمونه نه دی. والله اعلم.

---

۱) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۹] و مسند احمد رقم الحديث:[۱۵۳۶۵]

﴿وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرَىٰ﴾ ددې لفظي ترجمه داده چې مونږ به تاسو ﷺ طريقه يُسْرَىٰ دپاره آسان کړو ، د طريقه نه مراد اسلامي شريعت دې ، په ظاهره د مقام مقتضاء دا وه چې دا ونيلې شوې وې چې مونږ به دا طريقه اوشريعت تاسو دپاره آسان کړو خو قرآن کريم ددې په ځائې اوفرمائيل چې مونږ به تاسو ﷺ دې طريقې دپاره آسان کړو ، په دې کښې داحکمت خودل دی چې الله ﷻ به تاسو په مادی او طبعي ډول داسې جوړ کړی چې شريعت به ستاسو طبيعت جوړ شی او تاسو به د شريعت په سانچه کښې قالب شئ .

﴿فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ الذِّكْرَىٰ﴾ په تير شوؤ آيتونو مبارکو کښې نبی کريم ﷺ ته د نبی کريم ﷺ د پيغمبرئی په فرض ادا کولو کښې د الله ﷻ د طرفنه د ورکړو آسانو بيان وو. اوس په دې آيت مبارک کښې ددغې فرضو د ادا کولو حکم دې. نو د آيت مبارک د الفاظ معنی داده چې تاسو ﷺ خلقو ته تبليغ او نصيحت کوئی که نصيحت کول نفع ورکوی. دا الفاظ سره ددې چه د شرط راغلی دی مگر په حقيقت کښې هيڅ شرط مقصود نه دې بلکه دغه تاکيدی حکم ورکول دی. ددې مثال زمونږ په عرف کښې دادې چې چاته د خبردارئی په ډول اوونيلې شی. که ته بنيادم ئې نو تالره فلانې کار کول پکار دی. يا که ته د فلانی خوئې ئې نو تاله داسې کول پکار دی. دلته مقصود شرط نه وی بلکه دا ښکاره کول وی چې کله ته انسان ئې يا دفلانی شريف يا بزرگ خوئې ئې نو درباندې دا کار لازم دې ، په دې بنا د آيت ددې جملې مطلب دا شو چې د تبليغ او نصيحت مفيد کيدل خو تاکلی او يقينی دی ځکه دا مفيد څيز هيڅکله مه پريږدئی .

﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ﴾ ، ﴿تَزَكَّىٰ﴾ د زکوة نه مشتق دې ، اصلی معنی ئې پاکول دی ، د مال زکوة ته هم زکوة ځکه ونيلې شی چې ورسره پاتې مال پاک شی. دلته د ﴿تَزَكَّىٰ﴾ مفهوم عام داسې دې چې مالی او اخلاقی پاکيزگی لرهم اومالی زکوة لره هم شامل دی.

﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ﴾ يعنی دخپل رب نوم اخلی او مونځ کوی. په ظاهره دې کښې هر قسم فرض اونفل مونځ شامل دې ، ځينې مفسرينو چې ددې تفسير خاص د اختر مونځ کول کړې دې. هغه هم په دې کښې داخل دې.

﴿بَلْ تُؤْثِرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا﴾ عبد الله بن مسعود ﷺ اوفرمائيل[۱] چې په عامو خلقو کښې دنيا لره د آخرت نه دبنهٔ گڼړلو وجه داده چې د آخرت نعمتونه او آرام د سترگو نه پټ او قرض دې. ځکه هغې خلقو ځوک چې حقيقت نه ناخبره دی حاضر د غائب د نقد او قرض نه غوره گڼړلو ، خو دا د دوئ د دائمی نقصان سبب جوړ شو ، دې نقصان نه د ساتلو دپاره الله ﷻ د خپلو کتابونو او رسولانو په ذريعه د آخرت نعمتونه او راحتونه داسې واضح کړل چې گويا کښې دا حاضر او موجود دی ، او دا ئې اوخودل چې کوم څيز د نغدوالی په وجه خوښوی دا کوته ، نيمگړې او ډير زر فناکيدونکې دې. د عقل مند کار دا نه دی چې په دې باندې زړه وروِلی او ټول زور هم دې دپاره اولگوی. ددې حقيقت واضح کولو دپاره وروستې ارشاد فرمائی چې:

﴿وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ په دې کښې هغې خلقوته خبرداری ورکول دی چې دنيا د آخرت نه غوره گڼړی ، فرمائی چې هغوئ دې دعقل نه کار واخلی ، هغوئ څه څيز غوره کوی او څه څيز

[۱] تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۳]

پریږدی. په دنیا باندې چې هغوئ زړه بائیللې دې نو د دې لوئې نه لوئې آرام او خوند هم د رنځ ، غم ، تکلیف او مشقت د ګډون نه خالی نه دې. بله دا چې دا همیشه دپاره نه وی ، نن بادشاه صبا فقیر نن ځوان ښه طاقتور او صباله کمزورې عاجز او بوډا وی ، دا هره شپه او ورځ لیدلې شی. په خلاف د آخرت نه چې هغه د دواړو عیبونو نه پاک دې. د هغې هر نعمت او راحت سراسری خیر دې ، دَ دنیا نعمت او آرام سره ددې هیڅ نسبت نشته او ددې نه لویه خبره داده چې دا : ﴿اَبْقٰى﴾ همیشه پاتې کیدونکې دې ، انسان دې لږ شان غور اوکړی چې که هغه ته اووئیلې شی چې ستا په وړاندې دوه مکانونه دی

یو عالیشان محل ، بنګله ده چې هر قسم سامان په کښې موجود دې او بل یو معمولی کچه مکان دې او ضروری سامانونه هم په کښې نشته ، اوس تاته اختیار دې چې دغه بنګله او محل صرف میاشتې دوؤ دپاره قبلولې اوبیا به ئې خالی کوې یا دا کچه مکان اخلې چې همیشه دپاره به هم ستا وی نو عقل مند انسان به په دغې دواړو کښې کوم یو غوره کوی ؟ ذَدې مقتضاء خوداده چې که دآخرت نعمتونو نه بالفرض نیمګړی او ددنیادَ نعمتونه کم هم وې نو بیا هم د هغې غوره کول ځکه پکار وو چې هغه به همیشه دپاره وی او کله چې هغه د دنیا د نعمتونو په مقابله کښې زیات غوره هم دی ، نو څوک بیوقوف او بد نصیبه دهغې په پریخودو سره ددنیا نعمت ترې غوره ګنړلې شی.

﴿اِنَّ هٰذَا لَفِی الصُّحُفِ الْاُوْلٰى ۙ صُحُفِ اِبْرٰهِیْمَ وَمُوْسٰى ﴾ یعنی ددې سورت ټول مضمونو نه یا آخری مضمون چې ددنیا په نسبت د آخرت زیات غوره والې او ددې همیشوالې په پخوانو صحیفو کښې هم موجود وو ، بیا ئې وړپسې داسې فرمائی چې دا مضمون د ابراهیم ﷺ او موسی ﷺ په صحیفو کښې وو. موسی ﷺ ته د تورات نه مخکښې هغه صحیفې هم ورکړې شوې وې هغه هم مراد کیدې شی او د صحیفو نه مراد تورات هم کیدیشی.

**د ابراهیم ﷺ د صحیفو مضمونونه** : آجری د ابی ذر غفاری رضی الله عنه نه روایت کړې دې چې هغوئ رضی الله عنه نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې د ابراهیم ﷺ صحیفې څه او څنګه وې ، نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې په دغې صحیفو کښې د عبرت دمثالونو بیان وو. دهغې په یو مثال کښې ظالم بادشاه مخاطب کړې شو اوورته اووئیلې شو :

ائې په خلقو باندې مسلط شوې ، مغرو او مبتلی ما درته حکومت دې دپاره نه وو درکړې چې په مخه ته ددنیا مال جمع کوې بلکه دې دپاره مې حکومت درکړې وو چې د مظلوم خیرې تر ما پورې رارسیدو ته پرې نږدی. ځکه چې زما د قانون مطابق د مظلوم دعا زه نه واپس کوم اګر چې هغه دکافر د خلې نه وتلې وی.

او په یو مثال کښې عامو خلقو ته په خطاب کولو سره ئې اوفرمائیل :

دعقل مند انسان کار دادې چې هغه دخپلو وختونو درې حصې کړی یوه حصه دې دخپل رب عبادت او هغه سره مناجات دپاره کړی. دویمه حصه دخپلو عملونو دحساب دپاره او دالله ﷻ په عظیم قدرت او کاریګرئی کښې د غور او فکر. دریمه حصه دخپلو معاشی او طبعی ضروریاتو حاصلولو دپاره او وې وئیل چې په عقل مند انسان باندې لازم دی چې د خپلې زمانې د حالاتو نه خبروی او پخپل مقصود دی کار کښې لګیا پاتې شی ، دخپلې ژبې حفاظت

اوکړي او څوک چې خپل کلام خپل عمل اوګڼري ، دهغه کلام به ډير کم صرف په ضروري کارونو کښې پاتې شي[1] .

**د موسی ﷺ د صحيفو مضمونونه :** ابوذر ﷺ اوفرمائيل چې بيا مې عرض اوکړو چې دموسی ﷺ په صحيفو کښې څه وو؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې په هغې کښې سراسر عبرتونه وو د هغې نه يو څو کلمات دادي .

① زما تعجب دې په هغه چا چې د مرګيدو يقين ئې وي بيا هغه څنګه خوشحاله پاتې کيديشي.

② او په هغه چا مې تعجب دې چې په تقدير ايمان لري هغه به څنګه عاجز پاتې راغلې او غمژن وي.

③ او په هغه چا مې تعجب دې چې دنيا او د هغې انقلابونه او د خلقو ترقی او تنزل ويني هغه څنګه په دنيا باندې په تسلئ سره پاتې کيديشي ؟

④ او په هغه چا مې تعجب دې چې د آخرت په حساب ئې يقين وي هغه به څنګه عمل کول پريږدي ؟

ابوذر ﷺ اوفرمائيل چې بيا مې دا سوال اوکړو چې ددغې صحيفو نه څه شئ تاسو ته په راغلې وحی کښې هم شته ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ائې ابوذره ﷺ ! دا آيتونه اولوله : ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ ۝ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ﴾ تر آخره د سورة اعلی پورې . [ قرطبي][2].

تمت سورة الاعلی بحمدالله تعالی ليلة يوم الاحد ۱۸ شعبان ۱۳۹۱هجری

......................

| آياتونه | | سورة الغاشيه مكية وهي ست وعشرون آية وركوعا واحدا | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ㉖ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

| هَلْ أَتَاكَ | حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ ۝ | وُجُوهٌ | يَوْمَئِذٍ | خَاشِعَةٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| آيا راغلې دې تاته | خبر دخوريدونکې آفت | [بعضې] مخونه به | په دغه ورځ | يريدونکې وي |
| [ائې پيغمبره] آياتاته دچاپيره خوريدوواقعې | [قيامت] څه خبر راغلې دې | ډيرمخونه به هغه ورځ ذليله | | |

| عَامِلَةٌ | نَاصِبَةٌ ۝ | تَصْلَىٰ نَارًا | حَامِيَةً ۝ | تُسْقَىٰ | مِنْ عَيْنٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| مشقت کونکې | ستړی ستومانه به وی | سوزی به په اور | ګرم کښې | څکولې کيږی به پرې | دچينې |
| زيلې اوستړی وی | [داخلق به] بل شوی اور ته داخليږی | چې د ويشيدونکې چينې نه به پرې اوبه | | | |

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲٥] و صحيح ابن حبان ، کتاب البر والإحسان رقم الحديث:[۳٦۱] و کنز العمال رقم الحديث:[٤٤۱٥۸]

[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲٥] و صحيح ابن حبان ، کتاب البر والإحسان باب ما جاء فی الطاعات و ثوابها رقم الحديث:[۳٦۲]

آنِيَةٍ ۝٥ لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِنْ ضَرِيعٍ ۝٦ لَّا يُسْمِنُ

يشيدلی نه | نه به وی هغوی لره | خوراك | سوا د ازغني وچو وښو نه | چی نه به چاقيږی |

څکولی شی | بغير دازغو د بوټی نه به دوی دپاره بل خوارک نه وی | ..........چې نه به پرې چاقيږی

وَلَا يُغْنِي مِنْ جُوعٍ ۝٧ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ۝٨

اونه به دفع کوی | دلوږې نه | [بعضې] مخونه به | په دغه ورځ | تازه وی |

اونه به پرې لوږه تنده ختميږی | ..........................ډير مخونه به په هغه ورځ تازه وی

لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ۝٩ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ۝١٠ لَّا تَسْمَعُ فِيهَا

کوشش خپل ته به خوشحاله وی | په جنت اوچت کښی به وی | نه به اوری هغه | په هغې کښی |

پخپل عمل به خوشحاله وی | په اوچتو باغونو کښې به ناست وی | چې هيڅ عبث خبره به

لَاغِيَةً ۝١١ فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ۝١٢ فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ ۝١٣

فضول خبری | په هغې کښی به | چينه جاری وی | په هغې کښی به | تختونه اوچت وی |

نه آوری | په هغې کښې به چينې بهيږی | په هغې کښې به اوچت اوچت تختونه وی

وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ ۝١٤ وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ ۝١٥

او پيالئ به وی | کيښودلې شوی | او تکيه ګانې به وی | قطار په قطار لګيدلې شوی |

اوپه ترتيب ايښی ګلاسونه به وی | او په قطارونو کښې ايښی بالختونه به وی

وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ ۝١٦ أَفَلَا يَنْظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ۝١٧

او فرشونه به وی | غوړيدلې شوی | آيا نو نه ګوری دا خلق | اوښانو ته | چی څرنګې جوړ کړې شول

او هر خواته غوړيدلی قالينونه به وی | آيا دوئ اوښ ته نه ګوری چې څنګه پيدا شوې دې

وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ۝١٨ وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ۝١٩ وَإِلَى الْأَرْضِ

او آسمان ته | چی څرنګې اوچت کړې شو | او غرونو ته | چی څرنګې مضبوط ودرلې شو | او زمکې ته

او آسمان ته نه ګوری چی څنګه اوچت کړې شوې دې؟ | اوغرونو ته چې څنګه اودرولې شوی دی؟ اوزمکې ته

كَيْفَ سُطِحَتْ ۝٢٠ فَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنْتَ مُذَكِّرٌ ۝٢١

| چی څرنګې اوغوړولې شوه | نو نصيحت کوه | بيشکه چی ته | نصيحت کونکې ئې |

نه ګوری چې څنګه خوره کړې شوې ده | نو ته نصيحت کوه څکه چې ته نصيحت کونکې يئ

لَّسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ ۝٢٢ إِلَّا مَنْ تَوَلَّى

نه ئې ته په هغوئ باند | مسلط کړې شوې [جبر کونکې ] | مګر هغه څوك | چی مخ ئې واړوؤ |

ته په دوئ نګران مقرر شوې نه يئ | ..........................خوچا چې مخ اوګرځولو

| وَكَفَرَ ۝ | فَيُعَذِّبُهُ | اللّٰهُ | الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ ۝ | إِنَّ إِلَيْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او انکار ئې اوکړو | پس په عذاب به کړي هغه لره | الله | په عذاب لوئ سره | بیشکه مونږ ته دی |
| اوانکار ئې اوکړو | نو الله ﷻ به ورته ډیر لوئې عذاب ورکوی | | .............. | بیشکه مونږ طرفته |

| إِيَابَهُمْ ۝ | ثُمَّ إِنَّ | عَلَيْنَا | حِسَابَهُمْ ۝ |
|---|---|---|---|
| واپس راتلل ددوئ | بیا بیشکه | په مونږ باند دی | حساب کول ددوئ |
| ددوئ واپسی ده | ..........نو بیا به مونږ ورسره حساب کوو | | |

## آسان ترجمه قرآن

آیا تاته د هغې واقعې (یعنی قیامت) خبر رارسیدلې دې، چه هر څیز لره به پټ کړی ډیر مخونه به په دغه ورځ ذلیله وی. مصیبتونه زغمونکې، ستړې به وی. او ګرم اور ته به داخلیږی. دوی باندې به د خوټکیدلې چینې نه اوبه څکولې شی. ددوی دپاره به ازغی دار بوټی نه سوا نور څه خوراک نه وی. چه نه به څربوی بَدن لره، او نه به لوږه ختموی. ډیر مخونه به په دغه ورځ تروتازه وی. (په دنیا کښې) دخپل کړې شوې محنت په وجه به مطمئن وی. په عالیشان جنت کښې به وی. نه به اوری په هغې کښې بے فائدې خبرې په هغې جنت کښې به بهیدونکې چینې وی. په هغې کښې به اوچت اوچت تختونه وی. او مخښې ته ایخودلې شوې پیالې او په قطار کښې لګولې شوې نرم بالختونه. او قالینونه خوارۀ کړې شوې. آیا دوی نه ګوری اوښانو ته، چه دوی څرنګه پیدا کړې شوې دی او آسمان ته چه څرنګه اوچت کړې شوې دې. او غرونو ته چه څرنګه اودرولې شوې دی. او زمکې ته چه څرنګه غوړولې شوې دۀ. نو (اے پیغمبره) ته نصیحت کوه یقیناً ته بس نصیحت کونکې ئې. نه ئې ته په دوی باندې زبردستی کونکې مګر هغه څوک چه مخ ئې واړولو، او کفر ئې اختیار کړو. نو الله تعالیٰ به هغه ته لوئې زبردست عذاب ورکړی. یقیناً ددې ټولو واپسی خاص مونږ ته دۀ بیا یقیناً ددوی حساب اخستل په مونږ باندې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿هَلْ أَتٰىكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ ۝﴾ [ تاته دهغې احاطه کوونکې عامې واقعې څۀ خبررسیدلی دې] مراد ددې واقعې نه قیامت دې چه په ټول عالم به دهغې اثر احاطه کوونکې وی اوددې استفهام نه مقصود تشویق دې چه دخبرې داوریدو اهتمام پرې پیداشی وړاند په صورت دجواب ددې خبر تفصیل دې یعنی ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ۝ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ ۝﴾ [ډیر مخونه به په دغه ورځ ذلیل ] او[مصیبت تیرونکی ستړی ستومانه وی ] او ﴿تَصْلٰى نَارًا حَامِيَةً ۝﴾ [په سوزونکی اور کښې به داخلیږی ] او ﴿تُسْقٰى مِنْ عَيْنٍ اٰنِيَةٍ ۝﴾ [دجو شیدلې چینې نه به پرې اوبۀ څښولې شی ] او ﴿لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِنْ ضَرِيعٍ ۝﴾ [دوی ته به بغیر دازغی دارو ونونه نور څۀ خوراك نصیب نۀ وی ﴿لَا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِنْ جُوعٍ ۝﴾ چه نۀ به خوړونکو لره چاقوی اونۀ به ئې لوږه دفع کوی ] یعنی نۀ به په کښې دغذا جوړیدو صلاحیت وی نۀ دلوږې دفع کولو اودمصیبت برداشت کولو نه مراد په حشر کښې پریشان ګرځیدل اوپه دوزخ کښې دزنځیرونو اوطوقونو پیټې پورته کول دی او د دوزخ په غرونو ختل اوددې داثر نه ستړی کیدل ظاهر دی اوجوشیدلې چینه هغه کومې ته چه ئې په نورو ایتونو کښې حمیم فرمائیلې دې اوددې ایت نه معلومیږی چه هلته به ددې هم چینه

وی اودافرمائیل چه د دوی طعام به بغیر دضریع نه بل څهٔ نهٔ وی ددې مطلب دادې چه څهٔ خوندور خوراك به نهٔ وی دضریع په شان دزقوم یاغسلین ددوی په خوراك كښې شامليدل دې منافی نهٔ دی اودمخونو نه مراد خاوندان دمخونو دی داخو د دوزخیانو حال شو وړاند د جنتیانو حال دې یعنی ﴿وُجُوْهٌ يَّوْمَىِٕذٍ نَّاعِمَةٌ﴾ [ډیر مخونه به په دغه ورځ تروتازه ] او﴿لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ﴾ [دخپلو نیکو کارونو په وجه به خوشحاله وی ] او﴿فِيْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ﴾ [په بهشت برین یعنی لوړو جنتونو كښې به وی ﴿لَّا تَسْمَعُ فِيْهَا لَاغِيَةً﴾ په كوم كښې چه به څهٔ لغوه خبره نهٔ اوری ] ﴿فِيْهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ﴾ اوپه دې جنت كښې به بهيدونكې چينې وی]او﴿فِيْهَا سُرُرٌ مَّرْفُوْعَةٌ﴾ [په دې ]جنت [كښې اوچت تختونه ]خوارهٔ [دی ﴿وَّاَكْوَابٌ مَّوْضُوْعَةٌ﴾ اوایښودې شوې پیالې موجود دې دی ] یعنی داسامان به ددوی په وړاندې موجود وی چه كله ئې اوبهٔ زړهٔ وغواړی وخت به په كښې نه لګی ﴿وَّنَمَارِقُ مَصْفُوْفَةٌ﴾ [او برابر لګیدلې شوې ګدئ تكیه ګانې دی ﴿وَّزَرَابِيُّ مَبْثُوْثَةٌ﴾ اوهر طرف ته قالینونه خوارهٔ پراتهٔ دی ] چه كوم ځائې غواړی ارام به كوی دیو ځائې نه بل ځائې ته دتللو ضرورت به ورته هم نهٔ وی داتفصیل شو دجزا او ددې مضامینو په اوریدو چه كوم خنې خلق دقیامت نه انكار كوی په كوم كښې چه به داټول واقعات وی نو د دوی غلطی ده څكه چه ﴿اَفَلَا يَنْظُرُوْنَ اِلَى الْاِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ﴾ [ایا هغه خلق اوښ ته نهٔ ګوری چه څنګه په عجیبه طور سره پیدا كړې شوې دې ] چه هیئت اوخاصیت دواړه په نسبت دنورو څناورو په دهٔ كښې عجیبه دی ﴿وَاِلَى السَّمَاۤءِ كَيْفَ رُفِعَتْ﴾ [اواسمان ته ] نهٔ ګوری [چه څنګه اوچت كړې شوې دی ﴿وَاِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ﴾ او غرونو ته نهٔ ګوری [چه څنګه ودرولې شوی دی ﴿وَاِلَى الْاَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ﴾ اومزكې ته ] نهٔ ګوری [ چه څنګه خوره كړې شوې ده ] یعنی دې څیزونو ته په كتلو دالله تعالی په قدرت باند استدلال نهٔ كوی چه په قیامت كښې دهغهٔ په قادروالی باند پوهه شی او تخصیص ددې څلورو څیزونو څكه دې چه دعربو خلق به اكثر په ځنګلونو كښې ګرځیدل دغه وخت د دوی په وړاندې اوښ وو پورته اسمان لاند مزكه اوكیر چاپیره غرونه په دې وجه ئې په دې علاماتو كښې دغور كولو دپاره ارشاد وفرمائیلو اوهر كله چه داخلق سره دوجود ددلیلونو غورنهٔ كوی ﴿فَذَكِّرْ اِنَّمَاۤ اَنْتَ مُذَكِّرٌ﴾ [نوتهٔ ] هم د دوی زیات فكر مهٔ كوه بلكه صرف [نصیحت كوه څكه چه تهٔ خو بس صرف نصیحت كوونكې ئیې ﴿لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ﴾ اوتهٔ په دوی مسلط نه ئیې ] چه په زیات فكر كښې پریوځې﴿اِلَّا مَنْ تَوَلّٰى وَكَفَرَ﴾[ها مګر كوم چه مخ اړوی اوكفر كوی ﴿فَيُعَذِّبُهُ اللّٰهُ الْعَذَابَ الْاَكْبَرَ﴾ نو خدائې به دهٔ لره ] په اخرت كښې [لویه سزا وركړی ]څكه چه ﴿اِنَّ اِلَيْنَاۤ اِيَابَهُمْ﴾ [مونږ ته به د دوی راتلل وی ﴿ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ﴾ بیا زمونږ كار ددوی نه حساب اخستل دی [ته زیات غم مهٔ كوه]

### معارف او مسائل

﴿وُجُوْهٌ يَّوْمَىِٕذٍ خَاشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ﴾ قیامت كښې به دمؤمنانو كافرانو دواړه ډلې د یوبل نه جدا شی بیل بیل به دمخونونه پیژندې شی ، دلته د كافرانو دمخونو یو حال دا خودلې دې چې هغوئ به ﴿خَاشِعَةٌ﴾ وی ، د خشوع معنی ټیټیدل او ذلیله كیدل دی . مونږ كښې د خشوع هم دغه مطلب دې چې د الله ﷻ په وړاندې سر ټیټی شی او د ذلت او بې وسئ نښې نښانې په خپل بدن باندې ښكاره كړی . كومو خلقو ته چې په دنیا كښې الله ﷻ په وړاندې خشوع او

عاجزي اختيار نکړه نو قيامت کښې به ئې په مخونوباندې دخوارئي اوشرمندګئ ښېې ښکاره وي. دويم او دريم حال ئې د دوئ دمخونو دا بيان کړو : [۲]عَامِلَةٌ [۳]نَّاصِبَةٌ ، د ﴿عَامِلَةٌ﴾ معنى عمل او محنت کؤونکې دې ، په محاوره کښې عامل عامله داسې کس ته وئيلې شي چې په مخه باندې دکار کولو په وجه ستړې ستومانه او مشقت کښې پريوتلي لاندې راغلى وي، ښکاره خبره داده چې د دوئ دا دواړه حالـه د دنياوي چې په آخرت کښې خو به څه عمل اوخواري کول نه وي څکه قرطبى وغيره مفسرينو ددې مطلب دا اخستې دې چې رومبې حال يعنى په څيرو باندې خواري او شرمندګي به ئې په آخرت کښې وي او د عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ دواړه حالته ددوئ به دنيا کښې(۱) څکه وى چې ډير کافران فاجران په دنيا کښې مشرکانه عبادتونه او په باطلو طريقو سره مجاهده او رياضت په دنيا کښې کوى. د هندوانو جوګيان دنصرانيانو راهبان ډير داسې دى چې په اخلاص سره د الله ﷻ د رضا لټولو په خاطر په دنيا کښې عبادت او رياضت ښه په محنت سره کوى ، خو هرکله چې دغه عبادت مشرکانه وى او په باطلو طريقو سره کولې شي څکه ئې څه اجر وثواب نه وى ، په دې بنا ددې خلقو مخونه په دنيا کښې عاملة ناصبة او په آخرت کښې به هم پرې د ذلت او شرمندګئ تور والې خوروى.

حسن بصرى رحمه الله روايت کړې دې چې کله فاروق اعظم رضي الله عنه دشام ملک ته ورغلو نو يو نصرانى راهب د هغوئ رضي الله عنه خواته راغلو چې د بوډاتوب په عمر کښې ډير په بد حال وو ، شکل ئې وران وو ، بدن ئې اوچ کلک وو ، جامې ئې بې ډوله او خرابې وې ولې چې هغه خپل مذهبى عبادت ، رياضت ، خوارئى ، او مجاهده کښې به هر وخت بوخت لګياوو ، عمر فاروق رضي الله عنه چې ددهٔ دا حال اوکتو نو په ژړا شو ، خلقو ترې ددې وجه اوپوښتله نو هغوئ رضي الله عنه اوفرمائيل چې د بوډا په حال مې رحم راغلو چې دغې عاجز د يو مقصد دپاره لوئې محنت او خوارى اوکړه خو سره د دې ئې هم د الله ﷻ رضا پيدا نه کړې شوه، په دې غرض عمر فاروق رضي الله عنه دا آيت مبارک تلاوت کړو: ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ﴾ [قرطبى](۲).

﴿نَارًا حَامِيَةً﴾ د ﴿حَامِيَةً﴾ معنى ګرمه ده ، او د اور ګرموالې د هغې طبعى څيز دې بيا ددهٔ خاص صفت په دې غرض دى چې ددغې اور ګرمى به ددنيا د اور پشان په هيڅ وخت کښې نه کميږى او نه به ختميږى بلکه هميشه به همدغسې وى.

﴿لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِن ضَرِيعٍ﴾ يعنى جهنميانوته به دخوراک دپاره د ضريع نه سوا بل هيڅ نه ملاويږى. ﴿ضَرِيعٍ﴾ په دنيا کښې يو ازغن [خوزانو والا] واښه دى چې په زمکه خوريږى هيڅ څاروې دهغې خواته نه ورځى. بدبويه ، زهرژن او ازغن دې. [ دا تفسير ئې عکرمه اومجاهده اوکړو قرطبى ](۳).

**په جهنم کښې به واښه او ونې څنګه وى** :: دلته دا شبه کول نه دى پکار چې هر کله دجهنم اور سوځوونکې دې نو پدې کښې به واښه او ونه وغيره څنګه کيدې او پاتې شى ؟ ددې جواب دادې چې هرکله الله ﷻ په دنيا کښې د ونو بوټو خوراکه اوبهٔ ، هوا او خاورې جوړه کړې وه او په دې به

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۷]
(۲) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۷]
(۳) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۳۰]

پائیدل نود الله ﷻ دا قدرت شته چې په جهنم کښې ددې خوراکه اوروی . هم په دې باندې پائیږی .

**د یو شبهې جواب** قرآن کریم کښې د اهل جهنم د غذا په باره کښې مختلف څیزونه بیان شوی دی . دلته ئې دهغې غذا ضریع خودلې ده . بل ځائې کښې زقوم او په بل ځائې کښې غسلین ، دلته د ضریع دخاص کولو مطلب دادې چې دغې جهنمیانو ته به سوا د ضریع غونډې څیز نه څه بله خوراکه نشی ورکولې چې بدن به ورسره ګنی څه تسلئ او ترقئی پیداکړی . یا خو به ضریع وی یا ددې پشان بل څه خوراکه لکه زقوم او غسلین به وی چې بدن به اولتہ په سخت تکلیف کښې ترې اخته کیږی . او قرطبی فرمائیلی دی چې کیدیشی چې د جهنم په مختلفو درجو کښې د جهنمیانو مختلفې غذاګانې وی چرته ضریع ، چرته زقوم او چرته غسلین

﴿لَا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِن جُوعٍ﴾ په تیر شوی آیت کښې د جهنمیانو خوراکه ضریع خودلې شوې ده کله چې دا آیت مبارک نازل شو نو دمکې څینې کافرانو چې واؤریدو وې وئیل چې زمونږ اوښان خود ضریع په خوراک ښه چاقیږی . دهغې په جواب کښې الله ﷻ فرمایی چې د جهنم ضریع به ددنیا د ضریع پشان نه وی بلکه د جهنم په ضریع به نه خو بدن غټیږی اونه به ولږه پرې ختیمږی .

﴿لَا تَسْمَعُ فِيهَا لَاغِيَةً﴾ یعنی په جنت کښې به د جنتیانو په غوږونو کښې داسې څه خبره نه پریوځی چې لغو ، بیهوده او زړه خفه کوونکی وی ، په دې کښې باطل کفری کلمات هم راغلل ، کنځل ، بدې ردې لړل تپل او په چا الزام لګول او داسې ټولې هغه خبرې اغلې چې د هغې په آؤریدو انسان ته تکلیف رسی ، بل ځائې کښې قرآن کریم په دې باره کښې داسې فرمائی چې : ﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا﴾ یعنی جنتیان به په جنت کښې څه لغوه یاد الزام لګولو خبره نه آؤری ، ددې نه علاوه په نورو ځایونو دقرآن کریم کښې هم دا مضمون راغلې دې . دې نه معلومه شوه چې الزام لګول او بې ډیه خبرې د ډیر نقصان څیز دې ، ځکه قرآن کریم د جنتیانو په حالاتو کښې دا په اهتمام سره بیان کړو چې د جنتیانو په غوږونو کښې به کله څه داسې خبره نه پریوځی چې ورسره د هغوئ زړه به خرابیږی .

**د ژوند تیرولو ښېنې طریقې** :: ﴿وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ﴾ ، ﴿أَكْوَابٌ﴾ د کوب جمع ده ، د اوبو څکلو لوښی ته وئیلې شی لکه آبخورې او ګلاسونه وغیره ، دلته دموضوعة په لفظ راؤړلو سره دا اوخودلې شو چې دغه ګلاسونه به اوبو سره نزدې پراته وی ، په دې فرمائیلو سره د ژوند تیرولو یوه مهمه طریقه دا اوخودلې شوه چې دَ اوبو څکلو لوښی دې اوبو سره نزدې ځکه پراته وی چې په اوبو څکلو کښې څه تکلیف راپیښ نشی ، دغسې دکور د ټولو خلقو د استعمال څیزونه مثلا لوټې ، ګلاسونه ، تولیه وغیره په ځائې کښې لړل پکار دی چې دهغې په راخستو کښې نوروته تکلیف اونه رسی دا خبره ده موضوعة لفظ نه معلومه شوه چې د جنتیانو د آرام دپاره به د اوبو څکلو لوښی به ئې اوبو سره نزدې پراته وی .

﴿أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ﴾ دقیامت دحالاتو او په دې کښې د مؤمن او کافر دجزاء او سزا بیان فرمائیلو نه پس ددغه جاهلو عناد کونکو هدایت طرفته ئې توجه اوفرمائیل چې د خپلې بیوقوفئ په وجه په دې بنا باندې د قیامت انکار کوی چې هغوئ ته د مرګ او خاورې کیدو نه روستو دوباره ژوندی کیدل ډیر لرې بلکه محال ښکاری . دهغوئ دهدایت دپاره د الله ﷻ د

قدرت نخښنې خو په آسمان او زمکه کښې بې شميره دی، دلته ئې دهغې ځينې دداسې
څلورو ځيزونو بيان اوفرمائيلو چې د صحرائی عربو خلقو دحال سره مناسب دی ، يو خو دا
چې په اوښانو سوارۀ ډير لرولرو ځايونو ته سفرونه کوی . په داسې حالت کښې دوئ ته دټولو
نه زيات نزدې اوښ وی . دسر دپاسه ئې آسمان او لاندې زمکه ، ښی او ګس طرفته ته وړاندې
، روستو ئې غرونه دی . هم په دې څلورو ځيزونو کښې ورته د غور کولو حکم ورکړې شوې
دې چې نورې د قدرت نخښنې پريږدئی . په دې څلورو کښې خو غور اوکړئی نو داالله ﷻ قدرت
کامله به درته په هر ځيز باندې ښکاره شی او په ځاروؤ کښې د اوښ څه داسې خصوصيتونه
هم دی چې په خصوصيت سره غور کوونکو دپاره د الله ﷻ د حکمت او قدرت آئينه جوړيدې
شی . اول خو په عربو کښې دټولو نه زيات لوئې ځاروې د خپل ډيل ډول په اعتبار سره سره
اوښ دې هلته هاتی نه وی ، بلکه دا چې الله ﷻ دې لوئی بدن والا حيوان داسې جوړ کړې دې
چې دعربو کډوال او غريب نيستمن انسان هم ددې دومره لوئې ځاروی په پاللو کښې څه
مشکل نه محسوسوی . که هم داسې خپلې مخې ته آزاد پريخودې شی نو خپله خيټه پخپله
مړوی ، د لوړو ونو پاڼړې هم پخپله راشوکوی اوخوری ئې ، دهاتی او نور ځاروؤ خوراکه په
ګرانه برابر ولې شی . د عربو په صحراګانو کښې اوبه هم ډير کمې پيدا کيږی . هر چرته هر
وخت نه ملاويږی . قدرت ددې په خيټه کښې يو داسې محفوظه ټينکئ لګولې ده چې د اوو
اتو ورځو دپاره په کښې اوښ ځان دپاره اوبه په څکلو سره محفوظې ساتلې شی . چې په دمه
دمه دهغه د اوبو ضرورت پوره کوی په داسې لوړ ځاروی باندې د سوريدو دپاره د پاؤړئی ،
ضرورت پيښيدو خو قدرت د هغه دپښې درې قطه پيدا کړې چې په هره پښه کښې ئې ګوډې
جوړې کړې چې د هغې په راقط کولو سره هغه چوکيږی چې داشان پرې سوريدل اوترې
راکوزيدل آسان شو ، دومره خواری کښ دې چې د هر ځاروی نه زيات پيټې په ځان باروليې
شی، د عربو په ميدانونو کښې د ورځې سفر د نمر په وجه سخت مشکل دې قدرت دې ځاروی
کښې ټوله شپه دسفر کولو عادت ايخودې دې ، عاجز دومره دې چې يوه ماشومه جينئ ئې د
مهار نه نيولې هر چرته بوتلې شی دغسې ددې نور هم ډير خصوصيتونه دی چې انسان ته د الله
ﷻ دقدرت او حکمت بالغه سبق ورکوی . په آخر د سورت کښې د رسول الله ﷺ د تسلئ
دپاره فرمائی چې مونږ تاسو لره د دوئ نه مسلط کړې چې ټول مؤمنان جوړ کړې : ﴿لَسْتَ عَلَيْهِمْ
بِمُصَيْطِرٍ﴾ بلکه ستاسو کار تبليغ او نصيحت کول دې د هغې په کولو سره تاسو ﷺ بې فکره
شئ ، د هغې حساب ، کتاب او جزاء سزا ټول زمونږ کار دې .

تمت سورة الغاشية بحمدالله ليلة يوم الاثنين ۱۹ شعبان ۱۳۹۱هجری

| آياتونه | سورة الفجر مكية وهي ثلثون اٰية وركوعا واحدا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳۰ | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم كونكې دې | ۱ |

وَالْفَجْرِ ۝۱ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝۲ وَّالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝۳ وَالَّيْلِ اِذَا يَسْرِ ۝۴

قسم دې په سحر | او په شپو لسو | او په جفت | او په طاق | او په شپه | كله چې تيريږي |

قسم دې په وخت د سحر او په لسو شپو او قسم دې په جفت او په طاق باندې او په شپه چې په تيريدو شي

هَلْ فِيْ ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِيْ حِجْرٍ ۝۵ اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ

آيا شته دې په دې كښې | قسم | دپاره دخاوند دعقل | آيا اونه ليدل تا | چې څه اوكړل | رب ستا |

بيشكه عقل مندو دپاره دا ډير لوئې قسم دې | .... آيا تا اونه ليدل [يعنې تاته علم نشته] چې ستا الله ﷻ

بِعَادٍ ۝۶ اِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ۝۷ الَّتِيْ لَمْ يُخْلَقْ

دعاديانو سره | [يعنې] دارم قوم سره | چې خاوندان دستنو وو | هغه | چې نه وو پيدا شوي |

دعاديانو يعنې دارم دقوم سره څه اوكړل چې دستنو غوندې لوړدنګ وو او چې دهغوئ په شان [مضبوط]

مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ ۝۸ وَثَمُوْدَ الَّذِيْنَ

په شان دهغوئ | په ملكونو كښې | او څه ئې اوكړل دثموديانو سره | هغه [ثموديان] |

په هيڅ وطن كښې نه وو پيدا شوي | اودثمود دقوم سره [ئې څه اوكړل] چې په وادى القرى كښې

جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ۝۹ وَفِرْعَوْنَ ذِي الْاَوْتَادِ ۝۱۰

چې تراشلې ئې وو كاڼې [په واد [القرى] كښې] او څه ئې اوكړل دفرعون سره | چې خاوند دميخونو وو

ئې [كورونو دپاره] كاڼې تراشل | .................. اوفرعون دميخونو ولا سره [ئې څه اوكړل]

الَّذِيْنَ طَغَوْا فِي الْبِلَادِ ۝۱۱ فَاَكْثَرُوْا فِيْهَا

دا هغه كسان وو | چې سركشى ئې كړې وه | په ملكونو كښې | نو ډير ئې اوكړو | په هغې كښې |

دې ټولو په [خپلو خپلو] ښارونو كښې سركشى كړې وه | .................. نو ډير فسادونه ئې په كښې

الْفَسَادَ ۝۱۲ فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ۝۱۳ اِنَّ رَبَّكَ

فساد | پس راپريباسو | په هغوئ باندې | رب ستا | شرق دعذاب | بيشكه رب ستا |

جوړ كړې وو | نو ستا رب پرې د عذاب يوه كوړه [حصه] راوليږله | .................. بيشكه ستا رب

لَبِالْمِرْصَادِ ۝۱۴ فَاَمَّا الْاِنْسَانُ

خامخا په تاك كښې دې [ښه نظر ساتونكې دې] .................. | پس هر چې انسان دې |

دنافرمانو په تاك كښې دې | .................. د [كافر] انسان خو دا حال دې چې

إِذَا مَا ابْتَلٰهُ رَبُّهٗ فَأَكْرَمَهٗ وَنَعَّمَهٗ

کله چه په امتحان کښې واچوئ هغه رب دده | پس عزت ئې ورکړو هغه ته | او نعمت ئې ورکړو هغه ته |

چه کله پرې الله ﷻ امتحان اوکړی | ..............نو عزت ورکړی او نعمت ورکړی

فَيَقُوْلُ رَبِّيْٓ أَكْرَمَنِ ۝ وَأَمَّآ إِذَا

نو وائی هغه | رب زما | عزت راکړو ماته | او هر چې دا خبره ده | چې کله ئې |

نو دې وائی | .........چې ماته زما رب عزت راکړو | ............او کله چې پرې داسې

مَا ابْتَلٰهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهٗ فَيَقُوْلُ رَبِّيْٓ

په امتحان کښې واچوئ هغه ته | نو تنګ ئې کړو | په هغه باند | رزق دهغه | نو وائی | چې رب زما

امتحان اوکړی | ............ چې روزی پرې تنګه کړی | نو وائی چې زما رب زه

أَهَانَنِ ۝ كَلَّا بَلْ لَّا تُكْرِمُوْنَ الْيَتِيْمَ ۝ وَلَا تَحٰٓضُّوْنَ

| ذلیله کړم زه | هرګز نه | بلکه نه کوئ عزت تاسو | دیتیم | اونه تیزوئ تاسو یو بل |

ذلیله کړم | .........خبره داسې نه ده | بلکه تاسو دیتیم پالنه نه کوئ | .............او مسکین ته خوراک

عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ۝ وَتَأْكُلُوْنَ التُّرَاثَ أَكْلًا لَّمًّا ۝ وَّتُحِبُّوْنَ الْمَالَ

په طعام دمسکین | او خورئ تاسو | مال د میراث | په خوړلو ټولو سره | اومحبت کوئ تاسو دمال سره

ورکولوباندې یو بل ته ترغیب نه ورکوئ | ودمیراث مال [حق ناحق] ټول خورئ | او [ددنیا] مال مو ډیر

حُبًّا جَمًّا ۝ كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ۝ وَّجَآءَ رَبُّكَ

| په محبت ډیر سره | هرګز نه | کله چې | وټکولې شی زمکه | په ټکولو سختو سره | او راشی رب ستا

زیات خوښ دې | په دې نه کیږی | هرکله چه زمکه ریزه ریزه کړې شی | اوستارب [میدان حشرته] راشی

وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا ۝ وَجِايْٓءَ يَوْمَئِذٍۢ بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ

| او فرشتې | [ولاړې وی] په قطار قطار کښې | او راوړې شی | په دغه ورځ | دوزخ | نو په دغه ورځ به

او فرشتې قطار قطار اودریږی | اوپه هغه ورځ به جهنم راوړې شی | ............نو په دغه ورځ به

يَّتَذَكَّرُ الْإِنْسَانُ وَأَنّٰى لَهُ الذِّكْرٰى ۝ يَقُوْلُ

یاد شی | انسان ته | او څه فائده به ورکړی | هغه ته | وریادیدل | وائی به هغه |

انسان ښه پوهه شی | خو دپوهیدو موقع به ترې تیره شوې وی | ....... وائی به چې

يٰلَيْتَنِيْ قَدَّمْتُ لِحَيَاتِيْ ۝

ای افسوس دې مالره | چې مخکښې تیارې کړې وې ما | دپاره دژوند زما [په آخرت کښې] |

ائې کاش ! دې [د آخرت] ژوندن له مې وړاندې اچه زه په دنیا کښې وما څه رالیږلی وې

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهٗٓ أَحَدٌ ۝ وَّلَا يُوْثِقُ

نو په دغه ورځ به | نه ورکوی عذاب | پشان دعذاب دهغه | بل هیڅوک | اونه به تړل کوی |

نو په دغه ورځ به هیڅوک د الله ﷻ په شان عذاب نشی ورکولې | او نه به څوک د الله ﷻ غوندې

وَثَاقَهٗٓ اَحَدٌ ﴿٢٦﴾ يٰٓاَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ﴿٢٧﴾ ارْجِعِيْٓ اِلٰى رَبِّكِ

پشان دتړلو دهغه | بل هيڅوك | اې نفسه | د اطمينان | واپس شه | رب خپل ته |

مضبوط تړل کولې شی [ الله ﷻ به نيکانوته اووائی ] ائې مطمئن نفسه! ته خپل رب ته واپس شه

رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ﴿٢٨﴾ فَادْخُلِيْ

په داسې حال چی ته خوشحاله ئې [ په نيك انجام ] | او خوښ ئې [خپل رب ته] | نوشامل شه |

په داسې حال کښې چې ته دهغه نه راضی يئ |......او هغه ستانه راضی وې|بيا زما په نيکانو بندګانو

فِيْ عِبٰدِيْ ﴿٢٩﴾ وَادْخُلِيْ جَنَّتِيْ ﴿٣٠﴾

په بندګانو زما کښې | او داخل شه جنت زما ته

کښې شامل شه | او زما جنت ته داخل شه

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په وخت د سحر باندې. او په لسو شپو باندې ،او جفت او طاق باندې او په شپه باندې کله چه دا روانه شي (چه په آخرت کښې به جزا او سزا ضرور وی) د يو عقل مند دپاره (د هغه يقين راوستلو دپاره) دا قسمونه کافي دی او که نه؟ آيا ته نه ګورې، چه ستا پروردګار د عاديانو سره څه معامله اوکړه. او هغې اوچتو ستنو والا قوم إرم سره چه د هغوی پشان د دنيا په ټولو ملکونو کښې هيڅ يو قوم نه دې پيدا کړې شوې؟ اود ثموديانو سره ئې څه اوکړل، چه هغوی د غرونو په لمن کښې د کاڼړو ګټان تراشلې وو او د ميخونو والا فرعون سره ئې څه اوکړل؟ دا هغه خلق وو، چه دوی په دنيا کښې سرکشی اختيار کړې وه. نو په هغې کښې ئې فساد زيات جوړ کړې وو نو ستا پروردګار په هغوی باندې د عذاب کروړه راګزوله. يقين اوکړه، ستا پروردګار ټول په نظر کښې اخستلې دی ليکن د انسان حال دادې، چه کله د هغه پروردګار ده لره آزمائی، او په ده باندې اکرام او اعزاز کوی،نو دې وائی چه: زما پروردګار زما عزت اوکړو. او بل طرف ته چه کله دې آزمائی، او ده ده په رزق کښې تنګسيا راولی، نو وائی چه: زما پروردګار زما بے عزتی اوکړه. هيچرې داسې نه ده پواځې دا نه، بلکه تاسو د يتيم عزت نه کوئ. او مسکينانو ته خوراک ورکولو کښې يو بل ته ترغيب نه ورکوئ. او د ميراث مال تاسو په رانغختلو سره خورئ او د مال سره ډيره مينه ساتئ. هيچرې داسې نه ده، چه کله زمکه ذرې ذرې کړې شی په ذرې ذرې کولو سره. او ستا پروردګار او او فرشتې صفونه صفونه (ميدان حشر ته) راشی. او په دغه ورځ به جهنم رامخښې ته کړې شی،نو په دغه ورځ به انسان پوهه شی،او هغه وخت به کوم ځائې وی پوهه کښې راتلل؟ هغه به وائی، چه کاش! ما د خپل دې ژوند دپاره څه مخکښې راليږلې وې. نو په دغه ورځ به د الله تعالیٰ د عذاب برابر هيڅوک عذاب ورکونکې نه وی. او نه به دهغه د تړلو پشان څوک تړلو والا وی. (البته نيکانو خلقو ته به اووئيلې شی چه) اے هغه نفسه چه (د الله تعالیٰ په اطاعت کښې) ئې آرام موندلې دې خپل پروردګار طرف ته داسې راؤګرځه، چه ته د هغه نه راضی ئې، او هغه ستا نه راضی دې. نو شامل شه زما په (نيک) بندګانو کښې. او داخل شه زما جنت کښې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝﴾ [قسم دې دصبا په وخت او] دذی الحجه [ په لسو شپو ] یعنی لسو تاریخونو [بانـد] چـه دغـه نهایـت فـضیلت والا دی لکـه چـه پـه حـدیث کـښـې ئـې تفسیر دې([1])﴿وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝﴾ [اوپه جفت اوطاق ] دجفت نه مراد لسم تاریخ دذی الحجې اوطاق نه نهم تاریخ کذافي الحدیث([2]) او په یو حدیث کښې ترې نه مونځ مراد دې چه دڅه طاق رکعتونه وي اودڅهٔ جفت([3]) دحدیث اولنی روایت ته روایتا هم صحیح ونیلې شوې دې لکه چه په روح([4]) کښې دی اودرایتا هم هغه راجح دې ځکه چه په دې سورة کښې په کومو څيزونو چه قسم وخوړې شو هغه ټول په زمانه اووختونو قسمونه دی په مینځ کښې جفت اوطاق هم چه دوختونو قسم وی نوتناسب ئې واضحه کیدې شی اوداتطبیق هم کیدې شی چه دجفت اوطاق نه مراد هر هغه جفت اوطاق وی کوم چه لائق دتعظیم دی او وختونه او ورځې هم په دې کښې داخلې دی اوشمیر دمونځ درکعتونو هم ﴿وَالَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ۝﴾ [او] قسم دې [په شپه کله چه هغه روانه شی ] یعنی تیریږی لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿وَالَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ۝﴾([5]) وړاند په طور دجملې معترضې دتاکید دپاره د دې قسم عظیم والې فرمانی چه﴿هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ ۝﴾[ایا په دې دعقلمند دپاره کافی قسم هم دې ] دا استفهام دتقدیر اوتاکید دپاره دې یعنی په دې مذکوره قسمونو کښې هر قسم د تاکید دکلام دپاره کافی دې اواګر چه ټول قسمونه کوم چه په قران کښې مذکور دی هم داسې دی مګر داهتمام دپاره ددې دکافی کیدو وضاحت ئې وفرمائیلو لکه چه تیر شوی دی په دې داقول دالله تعالی په سورة واقعه کښې ، ﴿وَإِنَّهُ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ۝﴾([6]) اوجواب دقسم مقدر دې چه ضرور به دوی له سزاوی لکه چه په جلالین([7]) کښې دی چه ائنده کلام پرې قرینه ده په کوم کښې چه دتیرومنکرانو دعذاب ذکر دې یعنی ﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ۝﴾[ایا تاته معلومه نهٔ ده چه ستاپروردګار دقوم عاد ﴿إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ۝﴾یعنی قوم ارم سره څهٔ معامله وکړه ﴿الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ ۝﴾دکومو قدوقامت چه دستنو دتنو په شان اوږدهٔ وو اودکومو دزور اوقوت برابر چه په دنیا کښې په ښار کښې څوك سړي نهٔ دې پیداشوي ] ددې قوم دوه لقبونه دی عاد اوارم ځکه چه عاد ځوئي دې دعاص اودغه دارم اودغه دسام بن نوح عليه السلام پس کله دوی ته دپلار په نوم عاد وائی اوکله ورته دنیکهٔ په نوم ارم وائی اود دې ارم یو ځوئې عابر دې اودعابر ځوئې ثمود دې دکوم په نوم سره چه یوقوم مشهور دې پس عاد اوثمود دواړه په ارم کښې ملاؤ دی عاد په واسطه دعاص اوثمود په واسطه دعابر اودلته ارم ځکه زیات کړې شو چه په دې قوم د عاد کښې دوه طبقې دی یوه طبقه متقدمین کوموته چه عاد

[1] ) جامع الترمذي ، ابواب الصوم باب ماجاء في العمل في ايام العشر [ج:۲ ص:۱۵۸]
[2] ) مسند احمد ،مسند جابر بن عبدالله رقم الحديث:[۱۴۵۱۱]
[3] ) جامع الترمذي ، ابواب التفسير تفسير سورة الفجر و مسند احمد ،مسند عمران بن حصين رضي الله عنه رقم الحديث:[۳۲۶۵]
[4] ) تفسير روح المعاني [ج:۲۲ ص:۴۱۰]
[5] ) ترجمه:- اود شپې کله چې په تیریدو شي.
[6] ) ترجمه:-او که تاسو غور اوکړئ نو دا ډیرلوئ قسم دې.
[7] ) تفسير جلاللين تحت هذه الأية [ ص:۴۹۸]

اولي وائي دويمه متاخرين طبقه کوموته چه عاد اخرى وائي پس په ارم زياتولو سره اشاره وشوه چه عاد اولى مراد دي خکه چه په وجه دقرب اولې والى دواسطو دارم اطلاق په عاد اولى باند كيږي لکه داسې په روح(۱) کښې دى وهذاالتحقيق عندي قاض على ماسبق في الاعراف والنجم والله تعالى اعلم[او] وړاند دعاد نه پس دنورو هلاکيدونکو امتونو بيان فرمائى چه تاته معلومه ده چه ﴿وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ﴾[دقوم ثمود سره] څۀ معامله وکړه [کوم چه په وادي القرىٰ کښې ] دغرونو [کټې به ئې تراش کولې] اوکانونه به ئې جوړول وادي القرىٰ ددوى په ښارونو کښې ديو ښار نوم دي لکه چه ديونوم حجردې اودا تول دحجاز اوشام په مينځ کښې دى اوپه تولو کښې ثمود يان وسيدل لکه په ځينو تفسيرونو(۲) کښې داسې دى ﴿وَفِرْعَوْنَ ذِي الْأَوْتَادِ﴾[اودميخونو والا فرعون سره [ په درمنثور کښې دابن مسعود اوسعيد بن جبير رضي الله عنهما اومجاهد رحمه الله اوحسن رحمه الله اوسدى رحمه الله نه ددې په تفسير کښې منقول دى چه هغۀ به چا ته سزا ورکوله نو دهغۀ په څلورو لاسونو پښو به ئې څلور ميخونه ووهل اوسزا به ئې ورکوله اوددې يو تفسير په سورة ص کښې تير شوې دې وړاند د ټولو په شريکه صفت فرمائى چه ﴿الَّذِينَ طَغَوْا فِي الْبِلَادِ﴾[کومو چه په ښارونو کښې سرپورته کړې وو﴿فَأَكْثَرُوا فِيهَا الْفَسَادَ﴾ او په دې کښې ئې ډير فساد خور کړې وو﴿فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ﴾ پس ستا رب په دوى دعذاب کروړه راوورولو ] يعني عذاب ئې پرې نازل کړو پس عذاب لره په کوړه سره اوددې نازلولو لره ئې په ورولو سره تعبير وفرمائيلو وړاند ددې عذاب دعلت اودموجودينو دعبرت دپاره ارشاد دې چه ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾[بيشکه ستا رب ] دنافرمانو [په انتظار کښې دې ] دکومو نه چه ذکر شوى خو ئې هلاك کړل اوموجودينو لره عذابوونکې دې [پس] ددې مقتضاداوه چه موجوده کفارو عبرت اخستې وې اودهغوى عملونونه چه دعذاب واجبوونکى دى بچ شوى وې ليکن دکافرانو [خلقو] داحال دې چه هغه عملونه کوم چه دعذاب واجبوونکى دى اختيار وى چه ددې تولو اصل د دنيا محبت دې﴿فَأَمَّا الْإِنسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ﴾ چنانچه دوى [لره کله چه د دوى پروردګار په ازمانش کښې واچوى ﴿فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ﴾يعنى دوى لره ] په ظاهره [انعام اواکرام ورکړى] لکه مال اوجاه وغيره په کوم سره چه مقصود دهغوى شکر ګزارى کتل وى اوپه دې وجه ئې دې لره په ازمانش کولو سره تعبير وفرمائيلو ﴿فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ﴾[نودې] دې لره خپل لازمى حق ګنړى په فخر اوغرور سره [وائى چه زما رب زما قدر زيات کړو] يعنى زۀ دهغۀ مقبول يم چه ماته ئې داسې داسې نعمتونه راکړل ﴿وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ﴾[اوهر کله چه دۀ لره] په بل شان [په ازمانش کښې واچوى يعنى ددۀ رزق لره په دۀ تنګ کړى ] چه په دې سره مقصود ددۀ صبر اور ضاکتل وى اوپه دې وجه ئې دې لره په ازمانش کولو سره تعبير وفرمائيلو ﴿فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ﴾[نو دې ] شکايت کوى[وائى چه زما رب زما قدر کم کړو ] يعنى زۀ ئې سره ددې چه مستحق داکرام وم دخپل نظر نه نن صبا وغورزولم چه دنيوى نعمتونه کم شول مطلب دا چه کافر دنيا لره مقصود بالذات ګنړى چه ددې فراخئ لره دليل دمقبوليت اوخپل ځان ددې مستحق اوتنګئ لره دليل دمردوديت او خپل ځان لره ددې غير مستحق ګنړى پس په دې

۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۲ ص:۴۱۴]

۲) تفسير روح المعاني [ج:۲۲ ص:]۴۱۶

کښې دوه غلطۍ دی یوه دنیا مقصود بالذات ګڼړل په کوم سره چه داخرت نه انکار اوددې نه اعراض پیدا کیږی او دویمه دعوی داستحقاق په کوم سره چه په نعمت فخر اوغرور او ناشکری اوپه مصیبت شکوه اوبې صبری پیدا کیږی اوداټول عملونه سبب دعذاب دی وړاند په دې زجر اوخبر دارې دې چه ﴿كَلَّا﴾[هر ګز داسې نه ده ] یعنی نه دنیا مقصود بالذات ده اونه ددې کیدل یانه کیدل دلیل دمقبولیت یا مخذولیت دې اونه څوك دځه اکرام مستحق دې اونه څوك دصبر اوشکر دوجوب نه مستثنی دې وړاند په صیغه دخطاب په طور دالتفات فرمانی چه په تاسو خلقو کښې صرف داعملونه سبب دعذاب نه دی ﴿بَل لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ﴾[بلکه] په تاسو کښې نور عملونه هم مذموم اودنارضایۍ دالله تعالی اوموجب دعذاب دی چنانچه [تاسوخلق د یتیم] هیڅ [قدر] اوخاطر داری [ نه کوئ ] مطلب داچه دیتیم سپکوالي اوپه ده ظلم کوئ چه دهغه مال خورئ ﴿وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ﴾ [ اونورو ته هم دمسکین دخوراك ترغیب نه ورکوئ] یعنی دنورو واجب حقوق نه نه په خپله اداکوئ اونه نوروته دواجب حقونو ادا کولو وایئ اوعملا ددې پرینښودونکی او اعتقادا ددې منکرېئ اودکافرو دپاره پرینښودل دواجبو دعذاب دزیاتی سبب وی اودعقیدې فساد یعنی کفر اوشرك دعذاب اصل بنیاد دې ﴿وَتَأْكُلُونَ التُّرَاثَ أَكْلًا لَّمًّا﴾ [او]تاسو [ دمیراث مال ټول لوئ خورئ نې ] یعنی دنورو حق خورئ اومیراث په موجوده تفصیل سره اګر چه په مکه مکرمه کښې مشروع نه وو مګر نفس میراث په شرع ابراهیمی اواسماعیلی سره متوارث راروان وو چنانچه په جاهلیت کښې بچو او جینکو لره دمیراث مستحقې نه ګڼړل ددې دلیل دې چه دمیراث حکم دوړاند نه وو چه بیان نې دسورة نساء داولې رکوع ایت ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ﴾ الخ لاتد تیر شوی دې ﴿وَتُحِبُّونَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا﴾[او] تاسو خلق [ دمال سره ډیر محبت ساتئ ] او ذکر شوی عملونه ټول ددې فرع دی ځکه چه ددنیا محبت دټولو خطاګانو بنیاد دې غرض داټول عملونه قولي اوفعلي اوحالي موجب دعذاب دی پس دانسان داحال دې چه دعبرت مضامین واورې په خانې ددې چه عبرت نې اخستې داسې عملونه اختیاروی کوم چه نور زیات موجب دعذاب دی په دې وجه الله تعالی ده لره عذاب ورکونکې دې لکه چه الله تعالی فرمانی ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ وړاند دغو خلقو ته زجر اوخبر دارې دې کوم چه دا کارونه سبب دعذاب نه ګنړی ﴿كَلَّا﴾[هرګز داسې نه ده] لکه چه تاسو ګنړئ چه په دې عملونو به عذاب نه وی ضرور به وی وړاند دجزا اوسزا وخت ښائی په کوم کښې چه به دوی ته عذاب اواهل طاعت ته اجرا اوثواب ملاویږی ارشاد دې چه ﴿إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا﴾[ځه وخت چه مزکه ] لوړ لوړ اجزائې لکه غرونه وغیره [مات رامات ] او[ذره ذره کړې شې] مزکه هواره کړې شی لکه چه دا قول دالله تعالی دې ﴿لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا﴾ سورت طه ﴿وَجَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا﴾[او ستا پروردګار اوجوق درجوق فرینښتې ] په میدان دحشر کښې [راشی ] دا به دحساب وخت وی اودالله تعالی راتلل دمتشابهاتونه دی چه حقیقت نې د الله تعالی نه سوا بل چاته نه دې معلوم ﴿وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ﴾[اوپه دغه ورځ به جهنم راوړې شې] لکه چه په سورة مدثر کښې دومایعلم جنود ربك په حقله بیان شوې دې ﴿يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّىٰ لَهُ الذِّكْرَىٰ﴾ [په دغه ورځ به انسان ته پوهه راشی اواوس دپوهې راتلو موقع چرته پاتې ده ] یعنی اوس دپوهیدونه څه فائده کیدې شی ځکه چه دغه دارالجزاء ده دارالعمل نه دې وړاند دپوهې راتلو نه پس چه ده کومه خبره وی د هغې بیان دې چه ﴿يَقُولُ يَا لَيْتَنِي قَدَّمْتُ لِحَيَاتِي﴾ هغه

[په وائي چه كاش ما ددې اخر وى ژوند دپاره څه عمل نيك وړاند ليږلي وې ﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهُ أَحَدٌ﴾ پس په دغه ورځ به نه دخدائې دعذاب برابر څوك عذاب وركوونكې راوځي ﴿وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُ أَحَدٌ﴾ اونه به ددهٔ دبندولو برابر څوك بندونكې راوځي [يعني داسې سخته سزا اوقيد به وركوى چه په دنيا كښې په نهٔ چرې چا داسې سخته سزا وركړې وى اونه به داسې سخت قيد وركړې وى دا سزا خو به دهغو خلقو وى كومو چه دعذاب عملونه كړى وى اوكوم چه دالله تعالى فرمانبردار وو هغوى ته به ارشاد وشي چه ﴿يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ﴾ [ اې اطمينان والا روحه ] يعني دچاچه په حق كار يقين اوګمان وو او څه قسمه شك اوانكار نې نهٔ وو اوتعبير دروح نه په اعتبار دجزء اشرف دې ﴿ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً﴾ [ته دخپل پروردګار درحمت خواته څه داسې چه تهٔ د هغهٔ نه خوشحاله اوهغه تانه خوشحاله ﴿فَادْخُلِي فِي عِبَادِي﴾ بيا هلته لاړ شه تهٔ زما په خاصو بندګانو كښې شامل شه ] داهم روحاني نعمت دې چه دمينې دپاره ددوستانو نه لونې هيڅ شې نشته ﴿وَادْخُلِي جَنَّتِي﴾ [اوزما په جنت كښې داخل شه ] په لفظ دمطمئنه كښې ددغو خلقو نيكو عملونو طرف ته اشاره وشوه اودنيكو عملونو طرف ته اشاره اود عملونو دعذاب تفصيل بيان فرمائيل شايد په دې وجه دى چه زيات مقصود دلته دمكې خلقو ته اوړول دې اودغه وخت هلته دداسې عملونو مرتكب زيات وو

## معارف او مسائل

په دې سورت كښې په پنځوځيزونوياندې قسم خوړلوسره دَدې مضمون تاكيد كړې شوې دې كوم چه وړاندې ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ كښې بيان شوې دې يعني په دې دنيا كښې چه كوم څه تاسو كوئى په هغې باندې جزاء او سزا كيدل لازمي دى او يقيني ده چه ستاسو رب ستاسو دَ ټولو اعمالو په نګرانئ كښې دې كه هغه هم دې جملې ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ ته جواب قسم اووئيلې شى يا محذوف اوګرځولې شى.

هغه پنځه ځيزونه دَ كومو چه قسم خوړلې شوې دې په هغې كښې اولنى ځيز فجر يعني صبح صادق دې. كيدې شي چه مراد ترې دَ هرې ورځ سحر وى چه هغه په دنيا كښې يوعظيم انقلاب راوړى اودالله تعالى دَ كامل قدرت طرف ته لار خودنه كوى اوداهم ممكن دى چه الفجر الف لام دعهد ګرځولوسره ددې نه دَ يو خاص ورځې سحر مراد وى. مفسرين حضراتو صحابه كرامو دَ حضرت على رضي الله عنه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوابن زبير رضي الله عنهما نه وړاندې معنى يعني دَ عام وخت دَ سحر دكومې ورځې چه هم وى نقل دې. اودَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په يوروايت كښې دَدې نه مراد دَ محرم د مياشتې دَ اولنى تاريخ فجر دې چه دَ اسلامى قمرى كال شروع ده. حضرت قتاده رحمه الله هم دغه تفسير كړې دې.

اوبعضې مفسرينو حضراتو دَ ذى الحجه لسم تاريخ يعنى دَ يوم النحر سحر دَدې مراد ګرځولى دې. دَمجاهد رحمه الله اوعكرمه رحمه الله هم دغه قول دې. اودَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم په يوقول كښې دا نقل دى دَ يوم النحردَ ورځې دَ تخصيص وجه داده چه الله تعالى دَ هرې ورځې دپاره يوه شپه مقرر كړې ده چه دَاسلامى اصولو مطابق دَ ورځې نه وړاندې وى. صرف يوم النحر داسې ورځ ده چه دې سره څه شپه نشته دې ځكه چه دَ يوم النحرنه وړاندې كومه شپه ده هغه دَ يوم النحرنه ده بلكه شرعًا هم دَعرفه شپه ده. هم دغه وجه ده كه يوحج كونكې دَعرفه په ورځ ميدان عرفات ته اونه رسيدې شو دَ شپې دَ صبا صادق نه وړاندې كوم وخت كښې هم عرفات ته اورسيدو نودَهغه

وقوف معتبر او حج نې صحيح كيږي. ددې نه معلومه شوه چه د عرفه د ورځې دوه شپې دي يوه ددې نه وړاندې او بله ددې نه پس او د يوم النحر هيڅ شپه نشته دې. په دې لحاظ سره د يوم النحر سحر د دنيا په ټولو ورځو كښې يو خاص شان لري. [قرطبي] (۱)

دويم څيز د كوم چه قسم خوړلې شوې دې لياڵ عشر يعني لس شپې، د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قتاده رحمه الله مجاهد رحمه الله سدی رحمه الله صحاك رحمه الله، كلبي رحمه الله د ائمه تفسير په نيز د ذى الحجه د شروع نه لس شپې مراد دی ځكه چه په حديث كښې د دې لوئی فضيلت راغلې دې. رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې چه د عبادت د پاره د الله تعالى په نيز په ټولو ورځو كښې عشرة ذى الحجه [د ذوى الحجه اولنئ لسې شپې ورځې] د ټولو نه غوره ده. ددې د هرې ورځې روژه د يو كال د روژو برابر ده او په دې كښې د هرې شپې عبادت د شب قدر برابر دې. [رواه ترمذی وابن ماجه بسند ضعيف عن ابي هريرة رضي الله عنه مظهری] (۲). او ابوزبير رحمه الله د حضرت جابر رضي الله عنه نه نقل كړی چه پخپله رسول الله ﷺ د ﴿وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝﴾ په تفسير كښې فرمائيلی دی چه دې نه مراد عشره ذى الحجه ده. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلی دی چه دا لس شپې هم هغه دی كومې چه د حضرت موسى عليه السلام په قصه كښې راغلې دی. ﴿وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝﴾ ځكه چه هم دغه لس شپې د كال په ورځو كښې غوره دی. امام قرطبي رحمه الله فرمائی چه د حضرت جابر رضي الله عنه د مذكوره حديث نه غوره ورځې كيدل د عشره ذى الحجه معلومې شوې (۳). او ددې نه دا هم معلوميږی چه د حضرت موسى عليه السلام د پاره هم دغه لس شپې د ذى الحجه مقرر كړې شوې وې.

﴿وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝﴾ د شفع لغوی معنى د جوړه كوم ته چه په اردو كښې جفت وائی [او په پښتو كښې ورته تكې وائی] او د وتر معنى طاق او فرد ده. [د قرآن كريم په الفاظو كښې دا متعين نه دی چه ددې جفت او طاق نه څه مراد دی. په دې وجه د ائمه تفسير اقوال په دې كښې بې شميره دی. مګر پخپله مرفوع حديث كوم چه ابو الزبير رحمه الله د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت كړې دې د هغې الفاظ دا دی: [﴿وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝﴾ هو الصبح وعشر النحر والوتر يوم عرفه والشفع يوم النحر] (۴) يعنى رسول الله ﷺ د ﴿وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝﴾ متعلق فرمائيلی چه د فجر نه مراد سحر او د عشر نه مراد عشره نحر ده [او دا عشره د ذى الحجه رومبې عشره كيدې شى په كوم كښې چه يوم النحر شامل دې] نور ئې فرمائيلې دی چه د وتر نه مراد د عرفه ورځ او د شفع نه مراد يوم النحر [لسمه ذى الحجه] ده.

قرطبي رحمه الله د دې روايت نقل كولو سره فرمائيلی دی چه دا د اسناد په اعتبار سره اصح دې په نسبت د دويم حديث چه د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه په روايت سره نقل شوې دې په كوم كښې چه د شفع او وتر مونځ ذكر دې. په دې وجه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما عكرمه رحمه الله نحاس رحمه الله هم دا اختيار كړې دې چه شفع نه مراد يوم النحر او وتر نه مراد يوم عرفه ده (۵).

او بعض ائمه د تفسير ابن سيرين رحمه الله مسروق رحمه الله ابوصالح رحمه الله او قتاده رحمه الله فرمائيلی دی چه د شفع نه مراد ټول مخلوقات دی ځكه چه الله تعالى ټول مخلوقات جوړه جوړه يعنى جفت پيدا كړی

---

(۱) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۳۸، ۳۹]
(۲) تفسيرالمظهري [ج:۱۰ص:۲۵۳] وجامع الترمذي، ابواب الصوم باب ماجاء فى العمل فى ايام العشر [ج:۲ ص:۱۵۸]
(۳) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۳۹]
(۴) السنن الكبري للنسائی كتاب المناسك يوم الحج الأكبر رقم الحديث: [۴۰۸۶]
(۵) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۴۰]

دی. لکه چې ارشاد ئې فرمائيلې ﴿ وَمِن كُلِّ شَيۡءٍ خَلَقۡنَا زَوۡجَيۡنِ ﴾ يعنې مونږ د هرې څيز جوړه پيدا کړې ده. کفر او ايمان، شقاوت او سعادت، نور او ظلمت، ليل او نهار، يخني گرمي، آسمان او زمکه، پيريان او انسانان، سړي او ښځه او د دې ټولو په مقابله کښې وتر هغه صرف د الله تعالى ذات دې. ﴿هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۞ اللَّهُ الصَّمَدُ ۞﴾ ﴿وَالَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ۞﴾، يسر د سرى نه مشتق دې د کوم معنى چه د شپې د تګ ده. دلته پخپله شپې ته اووئيلې شو چه کله هغه روانه شي يعنې ختمه شي. د دې پنځو قسمونو ذکر کولو نه پس الله تعالى په غفلت کښې پروت انسان ته په يو خاص انداز کښې د سوچ او فکر کولو د دعوت ورکولو د پاره فرمائي ﴿هَلۡ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجۡرٍ ۞﴾ د حجر لفظي معنى ده رامنع کول. د انسان عقل هغه د بدو نه او نقصان رسونکو څيزونو نه رامنع کونکې دې. په دې وجه حجر په معنى د عقل هم استعماليږي. دلته هم دغه معنى مراد ده. د آيت معنى داده چه آيا د عقل مند سړي د پاره دا قسمونه هم کافي دي که نه؟ دا صورت خو د استفهام دې مګر په حقيقت کښې انسان د غفلت نه بيدارولو د پاره يو تدبير دې. مطلب دا چه د الله تعالى په اوچت شان باندې او د هغه قسم خوړلو سره يوه خبره بيانولو باندې او پخپله هم د دغه څيزونو په عظمت باندې د کومو چه قسمونه خوړلې شوي دي. که لږ شان غور او کړې نو د کوم څيز د پاره چه قسمونه خوړلې شوي دي د هغې يقيني کيدل به ثابت شي. او هغه څيز هم دغه دې چه د انسان به د هر عمل په آخرت کښې حساب کيدل او په هغې باندې جزا او سزا کيدل د شک شبهې نه بالا دي. چې دا جواب قسم شي د دې باوجود چه صراحةً ذکر نه دې مګر د سباق کلام نه ثابت دې او وړاندې چه په کافرانو باندې د عذاب کيدو کوم بيان کيږي هغه هم د دې بيان دې چه د کفر او ګناه سزا په آخرت کښې ملاويدل خو فيصله شوې خبره ده کله کله په دنيا کښې هم په داسې خلقو عذاب راليګلې کيږي. په دې سلسله کښې د دريو قومونو د عذاب ذکر دې. اول قوم عاد، دويم قوم ثمود او دريم قوم فرعون. عاد ثمود دوه قومونه د چا سلسله نسب چه پورته لاړشي ارم سره ملاويږي دغه شان لفظ ارم د عاد او ثمود دواړو د پاره وئيلې شي. دلته صرف عاد سره د ارم ذکر کولو وجه خلاصه تفسير کښې د عاد او ثمود دواړو قومونو تحقيقي حالاتو سره تير شوي دي.

﴿إِرَمَ ذَاتِ الۡعِمَادِ ۞﴾ لفظ ارم د عاد عطف بيان يا بدل دې او مقصود د دې نه د قبيله عاد د دواړو قسمونو نه د يو تعيين دې يعنې عاد اولى ځوك چه د هغوى متقدمين دي د هغوى نه د لفظ عاد ارم سره ښکه تعبير کړې شوې دې چه دا خلق د خپل نيکه ارم سره په نسبت د عاد اخرى ډير نيزدې دي. دوى په دې ځائې کښې قرآن کريم د عاد ارم په لفظ سره او سورت نجم کښې ﴿أَهۡلَكَ عَادًا الۡأُولَىٰ ۞﴾[1] په عنوان سره تعبير کړې دي. د دوى په صفت کښې قرآن کريم ﴿ذَاتِ الۡعِمَادِ﴾ فرمائيلې دي. عماد او عمود ستنو ته وائي. قوم عاد ته ذات العماد ځکه اووئيلې شو چه د دوى قدوقامت ډير اوږد وو او دا قوم په خپل جوړخ او قوت او طاقت کښې د ټولو نورو قومونو نه ممتاز وو. د دوى دا امتياز پخپله قرآن پاک په ډير واضح الفاظو کښې بيان کړل ﴿ لَمۡ يُخۡلَقۡ مِثۡلُهَا فِي الۡبِلَادِ ۞﴾ يعنې داسې اوږد او قوي قوم چې په دنيا کښې دوى نه وړاندې نه وو پيدا کړې شوى. قرآن کريم د دوى د اوږدو قدونو او د دې شان او شوکت د دنيا د ټولو قومونو نه زيات واضح خو اوفرمائيل ولې د دوى څه پيمائش ذکر کول د ضرورت نه زيات کار وو هغه ئې پريخودو. په

---

[1] ) ترجمه:- هغه ذات پخواني قوم عاد لره هلاك كړو.

اسرائيلي رواياتو كښې دَ دوی دَ قد وقامت اوقوت متعلق عجيبه اقوال ذكر دی. دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما او مقاتل رحمه الله نه دَ دوی دَقامت اوږدوالې دولس لاسه يعني شپږ گزه يا ۱۸ فټه نقل دي اوښكاره خبره ده چه دَ هغوی دا قول هم دَ اسرائيلي رواياتو نه ماخوذ دې. والله اعلم.

او بعض مفسرينو حضراتو فرمائيلي چه ارم دَهغه جنت نوم دې كوم چه دَ عاد خوئي شداد جوړ كړې وو او هم دَهغې صفت ذات العماد دې چه هغه يوعظيم الشان عمارت په ډيرو زياتو ستنو باندې قائم كيدل دَ چاندئي او جواهراتو نه جوړ كړې وو دې دپاره چه خلق دَ آخرت دَ جنت په بدله كښې دا نقد جنت اختيار كړی خوچه كله دا عالي شان محلات تيار شو او شداد دَخپل مملكت رئيسانو سره په دې كښې دَ ورتللو اراده اوكړه نو دَالله تعالى عذاب نازل شو اودا ټول هلاك شو او هغه محلات هم وران شو [قرطبي] (۱) په دې اعتبار سره په دې آيت كښې دَ قوم عاد دَ يو خاص عذاب ذكر اوشو كوم چه ....شداد بن عاد اودهغه جوړ كړې شوی جنت باندې نازل شو. او اولني تفسير كول چه جمهورو مفسرين اختيار كړې دې په هغې كښې په قوم عاد باندې چه څومره عذابونه راغلل دَهغې ټولو بيان دې.

﴿وَفِرْعَوْنَ ذِي الْأَوْتَادِ﴾ اوتاد دَ وَتَد جمع ده ميخ ته وائي. فرعون ته دَ ذی الاوتاد وئيلو مختلف وجوهات مفسرينو حضراتو بيان كړی دی. مشهور دَ جمهور مفسرينو په نيز هم هغه دی كوم چه دَ تفسير په خلاصه كښې پورته تيرشوی دی. چه په دې لفظ كښې دَهغوی دَ ظلم اوستم او خطرناكو سزاگانو ذكر دې. هغه به دَ چانه چه خفه شو دَهغه څپې لاسونه په څلورو ميخونو كښې ټړل يا پخپله په هغې كښې ميخونه ورټكوهل اوهغه به ئې په نمر كښې سملاولو او په هغه باندې به ئې ماران او لړمانان راپريخودل. او بعض مفسرينو دَهغه خپله بي بي آسيه سره متعلق يوه اوږده قصه دَهغې دَ مؤمنه كيدو اوبيا دَ فرعون په مخامخ دَ ايمان اظهار كول اوبيا دَ فرعون هم ددې قسم سزا په ذريعه دَهغې دَ هلاك كولو ذكر كړې دې. [مظهری] (۲)

﴿فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ﴾ دَ قوم عاد قوم ثمود اوقوم فرعون دَ شرفساد ذكر كولو سره چه كوم عذاب په هغوی باندې نازل شو په هغوی دَ عذاب كوړه راخلاصولو په عنوان سره تعبير كړی دی. په دې كښې دې طرف ته اشاره ده لكه څنگه چه كوړه دَ بدن په مختلف اطرافو باندې لگی په هغوی باندې هم مختلف قسم عذابونه نازل كړې شو.

﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ مرصاد اومرصد رصدگاه او انتظارگاه ته وئيلې شي چه چرته په اوچت مقام باندې وی چرته په كيناستو باندې چه سړې دَ لرې لرې خلق ليدلې شي اودهغوی دَ افعالو او اعمالو نگراني كولې شي. دَ آيت مطلب دادې چه الله تعالى دَ ټولو انسانانو ټولو اعمالو، حركات اوسكنات ته گوری. په دې دوی ټولو ته دَهغې سزا اوجزا وركونكې دې. بعض مفسرينو فرمائيلي چه هم دا جمله دَ هغه قسمونو جواب دې كوم چه په ﴿وَالْفَجْرِ ۝ وَلَيَالٍ عَشْرٍ﴾ كښې ذكر دی.

**په دنيا كښې دَ رزق تنگي يا فراخي دَالله تعالى په نيزه مقبول يا مردود كيدو علامت نه دې:** ﴿فَأَمَّا الْإِنْسَانُ﴾ الايه، دلته دَ انسان نه مراد په اصل كښې خو هم كافر انسان دې چه الله تعالى سره متعلق څه چه غواړی خيال اوتړی مگر دَ مفهوم عام په اعتبار سره هغه مسلمان هم په دې خطاب كښې شريك دې چه دَدوی په شان خيال كښې راگيروی اوهغه خيال دادې چه كله الله تعالى چاته په خپل رزق

---

۱) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۴۷]
۲) تفسير المظهري [ج:۱۰ص:۲۵۵، ۲۵۶]

كښي وسعت مال او دولت صحت او روغوالي ورکړې نو شيطان هغه په دوو باطل خيالاتو کښې راګيروي. اول دا چه هغه ګنړي چه دا زما ذاتي صلاحيت عقل او فهم کوشش او دعمل لازمي نتيجه ده چه هم ماته ملاويدل پکاردي. زه ددې مستحق يم. بل دا چه ددې څيزونو په حاصليدو سره دا اوګرځوي چه زه د الله تعالى په نيز هم مقبول يم، که چرې مردود وې نو ماته به ئې دا نعمتونه ولې راکول. دغه شان چه کله په يوانسان باندې د رزق تنګي اولږه او فقر راشي نو هغه د الله تعالى په نيز د مردود کيدو دليل اوګنړي او په هغې باندې په دې وجه خفا شي چه زه خود انعام او اکرام مستحق ووم زه ئې بې وجې ذليل او فقير کړم. داسې خيالات خو به په کافرانو او مشرکانو کښې وو او په قرآن کښې په ډيرو ځايونو کښې د کافرانو د دغه خيالاتو ذکر هم دې. افسوس دې چه نن صبا ډير مسلمانانو هم په دې ګمراهئ کښې راګير دی. الله تعالى په دې آيت کښې د دې قسم انسانانو ذکر کولو سره اوفرمائيل ، ،کلا» يعنى ستاسو دا خيال بالکل باطل او بې بنياد دې. نه په دنيا کښې د رزق وسعت د الله تعالى په نيز نيك او مقبول کيدو علامت دې او نه د رزق تنګي ،اولږه او فقر د الله تعالى په نيز د مردود يا ذليل کيدو علامت دې بلکه اکثر معامله برعکس وی. د فرعون د خدائی دعوی کولو باوجود په هغوی باندې چرته د سر درد هم نه وو راغلی او بعض پيغمبران دشمنانو په آره سره اوڅيرل دوه ټکړې ئې کړل او رسول الله ﷺ اوفرمائيلی دی چه په مهاجرينو حضراتو کښې کوم فقيران او مفلس وو هغه به د اغنياء مهاجرين نه څلويښت کاله مخکښې جنت کښې داخليږی. [رواه مسلم عن عبد الله بن عمر ﷺ، مظهری] [1] په يو بل حديث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه الله تعالى کوم بنده سره محبت کوی په هغه په دنيا کښې داسې پرهيز کوی لکه څنګه چه تاسو خلق د خپل بيمار د اوبو نه پرهيز کوئی. [رواه احمد والترمذی عن قتادة بن النعمان. مظهری] [2].

**په يتيم باندې صرف خرچ کول کافی نه دی بلکه دهغه احترام کول هم ضروری دی:** د دې نه پس د کافرانو په يو څو خرابو خصلتونو باندې د هغوی تنبيه ده . اول ﴿لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ﴾ يعنى تاسو د يتيم بچی عزت نه کوئی. په دې کښې اصل خو دل خو دادی چه د يتيم حقوق نه اداکوئی په هغه باندې ضروری خرچ نه کوئی خو ددې تعبير د اکرام په عنوان سره اوکړې شو په کوم کښې چه اشاره ده د عقل او انسانيت کوم مال چه الله تعالى تاسو ته درکړې دې د هغې د شکر تقاضا خو دا ده چه تاسو صرف يتيم ته دا نه چه د هغه حق ورکړئی او په هغه باندې خرچ اوکړئی بلکه واجب دی چه د هغه اکرام هم اوکړئی. د خپلو بچو په مقابله کښې هغوی سپك او خوار مه ګنړئی. دا په ظاهره د کافرانو د هغه قول جواب دې چه د دنيا اکرام او تنګی به مو سپکاوې ګنړلو په دې باندې صرف ، ،بَلْ ، ، سره يې دا ذکر اوفرمائيل چه کله په تاسو د رزق تنګي راځی نو هغه په دې وجه چه تاسو په دې قسم خرابو عادتونو کښې راګيريئی چه د يتيم په شان د رحم قابل بچو حقوق هم نه اداکوئی. دويم خراب خصلت ئی د هغوی دا اوخودلو ﴿وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ﴾ يعنى تاسو به په خپله يو غريب مسکين ته څه ورکول چه نورو ته هم د دې د ورکولو ترغيب نه ورکوئی چه هغوی هم دا کار کولې. په دې عنوان کښې هم د کافرانو د خراب عادت مذمت سره

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۵۸] و صحيح مسلم کتاب الزهد ، فصل فى الصبر على قلة ما يجد و دخول الفقراء الجنة الأغنياء اربعين خريفا [ج:۲ص:۴۱۰]

[2] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۵۸] و جامع الترمذي ، ابواب الطب باب ماجاء فى الحمية [ج:۲ ص:۲۳]

بيان كښې دي طرف ته اشاره ده چه د غريبانانو مسكينانو حق لكه څنګه چه په غنيانو اومالدارانو باندې دې چه هغوى له دې د خپل خان نه وركړى. دغه شان كوم خلق چه په خپله د وركړې طاقت نه لرى هغوى له هم دومره كول خو پكاردى چه نورو خلقو ته د دې ترغيب وركړى.
دريم خراب خصلت نې دا بيان كړو ﴿وَتَأْكُلُونَ التُّرَاثَ أَكْلًا لَّمًّا﴾ د لمّ معنى د جمع كولو ده مطلب دا چه تاسو د ميراث مال حلال اوحرام جمع كولوسره ټول خورئى خپلې حصې سره د بل حصه هم غصب كوئى. دلته په خصوصيت سره د ميراث د مال ذكر اوكړې شو حالانكه يومال په كوم كښې چه حلال اوحرام راجمع كړې شوى وى هغه ناجائزدى. د خصوصيت وجه كيدې شى دا وى چه د ميراث په مال باندې زيات نظر ساتل اوهغې پسې لګيدل د ډير كم همتنى او كم حوصله كيدو دليل دې چه د مردارې خوړونكى خناورو په شان نيغ ګورى چه كله به زمونږ مورث مرشى اوكله به مونږ ته د دغه مال د تقسيم موقع په لاس راشى. اولولعزم او همت ناك خلق په خپله ګټه باندې خوشحاليږى د مړو په مال باندې داسې د حرص نه ډك نظر نه اچوى.
څلورم خراب خصلت نې دا بيان كړو ﴿وَتُحِبُّونَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا﴾ د جم معنى د كثيرده مطلب دا چه تاسو د مال محبت ډير زيات كوئى د ډيروالى طرف ته په دې لفظ سره اشاره اوشوه چه د مال په يو درجه محبت خود انسان فطرى تقاضا ده هغه د مذمت سبب نه دې بلكه د دې په محبت كښې د حد نه زياتيدل او ډير كوشش كول د مذمت سبب دې. د كافرانو د دې خرابو خصلتونو د بيانولو نه پس بيا د اصل مضمون طرف ته راګرځى چه د سورت په شروع كښې پنځو قسمونوسره مؤكد كړې شوې دې يعنى د آخرت جزا او سزا. په دې سلسله كښې نې اول د قيامت ذكراوكړو.
﴿كَلَّا إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا﴾ د لفظ دك لفظى معنى يوځيز په وهلوسره د ماتولو ده. مراد د قيامت زلزله ده چه غرونه به خپل مينځ كښې اوجنګوى ذره ذره به ئې كړى او دكا دكا مكرر راوړلوسره دې طرف ته اشاره ده چه د قيامت زلزله به يوشان روانه وى.
﴿وَجَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا﴾ يعنې راځى به ستا رب اوفرښتې صف په صف، مراد ترې د حشر ميدان ته راتلل دى. د الله تعالى د راتلو به څه شان وى دا د الله تعالى نه بغيربل څوك نه پيژنى. دا د متشابهات نه دې اود فرښتو صف په صف كښې راتلل ښكاره دى. ﴿وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ﴾ يعنى راوړلې به شى په هغه ورځ جهنم. د جهنم د راوړلو څه مطلب دې؟ اوڅنګه به د حشرميدان ته راوړلې شى؟ د دې حقيقت خو هم الله تعالى پيژنى. ښكاره خبره داده چه جهنم كوم چه اوس د اوومې زمكې لاندې دې هغه وخت به راڅوټكيږى او سمندرونه به ټول د اور شى په هغې كښې به شامل شى دغه شان به جهنم دحشر په ميدان كښې د ټولو په وړاندې راشى.
﴿يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّىٰ لَهُ الذِّكْرَىٰ﴾ په دې ځائې كښې د تذكر نه مراد په پوهه كښې راځى يعنى كافرانوته به په هغه ورځ معلومه شى چه مالـه په دنياكښې څه كول پكاروو اوما څه اوكړل. خودغه وخت په دې خبره پوهيدل به بې فائدې وى ځكه چه د عمل اود احوالو د اصلاح زمانه به تيره وى. آخرت دار العمل نه دې دار الجزاء دې. وړاندې د دغه تذكر بيان دې چه هغه به خواهش كوى چه افسوس په دنيا كښې مې څه نيك عمل كړې وې. ﴿يَا لَيْتَنِي قَدَّمْتُ لِحَيَاتِي﴾ بيائى د دغه تمنا باطل اوغير مفيد كيدل اوخودل اوس چه د كفر اوشرك سزا مخې ته راغله نواوس په دغه تمنا سره هيڅ فائده نشته دې اوس خود عذاب او راګيرولو وخت دې اود الله تعالى د رانيولو برابر هيڅ رانيول نشى كيدې. د كافرانو عذاب بيانولو نه پس په آخره كښې د مؤمن ثواب اود هغه په جنت

کښې داخلیدل ذکر فرمائیلی دی.
(يَاأَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ) دلته دَ مؤمن روح ته په نفس مطمئن لقب سره خطاب کړې شوې دې. دَ مطمئنه لفظي معني ساکنه ده مراد هغه نفس دې کوم چه دَالله تعالى ذکر اودَ هغه طاعت سره سکون حاصلوی. ددې په پریخودو کښې بې آرامي محسوس کوی اوداهم هغه نفس کیدې شي چه ریاضات اومجاهدات کولوسره خپل خراب عادتونه او رذیل اخلاق ئې لرې کړې وی. دَ حق اطاعت اودَ الله تعالى ذکر دَهغه مزاج او شریعت دَهغه طبیعت جوړېږی هغه ته خطاب کولوسره اوفرمائیلې شو (ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ) یعنی راؤګرځه دَخپل رب طرف ته، دَ راګرځیدلو په لفظ سره معلومېږی چه دَ ده رومبې مقام هم خپل رب سره وو اوس هم هلته دَ واپس کیدلو حکم کیږی. په دې سره هغه روایت ته تقویت ملاوېږی په کوم کښې چه دی دَ مؤمنانو روحونه دَ هغوی عمل ناموسره علیین کښې وی اوعلیین په اووم آسمان باندې دَ رحمن دَ عرش په سوری کښې یومقام دې. دَ انسانانو دَ ټولو روحونو اصل دَ حصاریدو ځائی هم دغه دې. هم دَهغه ځائی نه روح راوړلوسره دَ انسان په بدن کښې اچولې شي اوبیا دَ مرګ نه پس هم هغه ځائی ته ځي.
(رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً) یعنی دا نفس دَالله تعالى نه دَ هغه په تکوینی او په تشریعی احکامو باندې راضي دې اوالله تعالى دَ هغه نه راضي دې. ځکه چه دَ بنده دَ الله تعالى په تقدیری احکامو باندې راضي کیدې ددې علامت دې چه الله تعالى دَهغه نه راضي دې. که چرې الله تعالى دَهغه نه راضي نه وې نوهغه ته به د رضا بالقضاء هډو توفیق نه وو. دا نفس دَخپل مرګ په وخت په خپل مرګ باندې راضي اوخوشحاله وی. دَ حضرت عباده بن صامت ﷺ په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی [من احب لقاء الله احب الله لقائه ومن كره لقاء الله كره الله لقائه] یعنی کوم سړې چه الله تعالى سره ملاویدل خوښوی الله تعالى هم هغه سره ملاویدل خوښوی اوڅوك چه دَالله تعالى ملاقات ناخوښه کوی الله تعالى هم دَ هغه سره ملاقات کول ناخوښه کوی. ددې حدیث په اوریدو باندې حضرت عائشه صدیقه ﷺ دَ رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه الله تعالى سره ملاویدل خو هم دمرګ په ذریعه کیدې شي. لیکن مرګ خو نه زمونږ اونه دَنورو خوښ دې. حضورپاك اوفرمائیل داخبره نه ده حقیقت دادې چه مؤمن له دَ مرګ په وخت فرښتې دَالله تعالى دَ رضا اوجنت زیرې ورکوی دکوم په اوریدوسره چه هغه مرګ ډیر خوښ ګڼړی. دغه شان کافرله دَ مرګ په وخت سزا او عذاب مخې ته کوی ځکه په دغه وخت هغه له دَمرګ نه خراب او مکروه بل څیز نه وی. [رواه البخاری ومسلم. مظهری][1] خلاصه داده چه دَمرګ محبت یا کراهت هغه وخت معتبر نه دې بلکه دَ زنکدن په وخت دَ مرکیدو او الله تعالى سره په ملاویدو باندې راضي وی الله تعالى هم دَ هغه نه راضي. هم دغه مفهوم دې دَ راضية مرضيه.
(فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ۝ وَادْخُلِي جَنَّتِي) نفس مطمئنه مخاطب کولو سره دا به داحکم وی چه زما په خاص بندیګانو کښې شامل شه اوزما په جنت کښې داخل شه. په دې کښې اول دَالله تعالى نیك اومخلص بندیګانوسره دَ شاملیدلوحکم دې بیا په جنت کښې داخلیدل په دې کښې اشاره ده چه په جنت کښې داخلیدل په دې باندې موقوف دی چه اول دَ الله تعالى د نیکو مخلصو بندیګانو په زمره

[1]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۶۲] و صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب من احب القاء الله احب الله لقائه [ج:۲ص:۹٦۳] و صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء والتوبة والأستغفار، باب من احب القاء الله..... إلخ[ج:۲ص:۳٤۳]

کښې شامل وي دغه ټولوسره به جنت کښې داخليږي. ددې نه معلومه شوه چه په دنيا کښې د صالحينو صحبت اوملګرتيا اختياروي. داعلامت دهغې دې چه دې به هم جنت ته هغوي سره ځي. په دې وجه حضرت سليمان عليه السلام په خپله دعا کښې فرمائيلي دی ﴿ وَأَدْخِلْنِي بِرَحْمَتِكَ فِي عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ ﴾[1] اوحضرت يوسف عليه السلام په دعا کښې اوفرمائيل ﴿ وَأَلْحِقْنِي بِالصّٰلِحِيْنَ ۝ ﴾[2] معلومه چه دصالحينو صحبت هغه لوئي نعمت دې چه انبياء کرام عليهم السلام هم دهغوي ددعانه مستغني نه دی.

﴿وَادْخُلِيْ جَنَّتِيْ ۝﴾ په دې آيت کښې جنت الله تعالى خپل ځان طرف ته منسوب کولوسره زما جنت اوفرمائيلو چه لوئي اعزاز اواکرام دې. او په دې کښې اشاره ده چه په جنت کښې صرف هم دغه نه دی چه هرقسم راحتونه جمع دی اودائمي دی بلکه د ټولونه لويه خبره داده چه هغه د الله تعالى د رضا مقام دې.

په مذکوره اياتونو کښې دمؤمنانو جزا اوثواب داسې ذکر کړې شو چه دهغوي روحونو ته به د الله تعالى د طرف نه د ملائکو په واسطه سره اعزاز اواکرام سره خطاب کولې شي کوم چه په دې آياتونو کښې ذکر دی. داخطاب به کوم وخت کيږي په دې کښې د تفسير بعض ائمه حضراتو فرمائيلي دی چه په قيامت کښې د حساب کتاب نه پس به داخطاب کيږي اود سباق آيات نه ددې تائيد کيږي چه پورته کوم د کافرانو د عذاب بيان شوې دې هغه به په آخرت کښې د قيامت نه پس کيږي. ددې نه معلومه شوه چه د مؤمنانو دا خطاب به هم هغه وخت وي. اوبعض حضراتو فرمائيلي چه مؤمنانو ته به داخطاب د مرګ په وخت هم په دنيا کښې کيږي او ډيرزيات صحيح احاديث په دې ګواه دی. هم په دې وجه ابن کثير رحمه الله فرمائيلي دی چه ظاهر دادې چه د مؤمنانو روحونو ته به په دواړو وختونو کښې داخطاب کيږي د مرګ په وخت هم او بيا په قيامت کښې هم[3].

هغه احاديث په کوم سره چه دا خطاب په وخت د مرګ کيدل معلوميږي نوهم هغه حديث عباده بن صامت رضي الله عنه دې کوم چه پورته تيرشوې دې. او يو اوږد حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه مسند احمد نسائي او ابن ماجه کښې دې په کوم کښې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد دې کله چه د مؤمن د مرګ وخت راځي نود رحمت فرښتې سپينه کپړه د ريښمو مخې ته کړي اوده‌غه روح ته خطاب کوي «اخرجي راضية مرضية الى روح الله وريحانه» يعني د دې بدن نه راوځه په داسې حالت کښې چه ته د الله تعالى نه راضي ئې او الله تعالى تانه راضي، اودا راوتل د الله تعالى د رحمت اوجنت د هميشه والي د راحتونو طرف ته به وي. الحديث[4]. او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه يوه ورځ آيت ﴿يَاأَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ۝﴾ د حضورپاك په وړاندې اولوستلې شو نوصديق اکبر رضي الله عنه چه په مجلس کښې موجودوو اووئيل يا رسول الله صلى الله عليه وسلم دا څومره ښکلې خطاب او اکرام دې. حضورپاك اوفرمائيل واوره فرښته به د مرګ نه پس تاته داخطاب کوي. [ابن کثير][5]

---

[1]) ترجمه:- اوما په خپل رحمت سره خپلو نيکانو بندګانو کښې داخل کړه.
[2]) ترجمه:- او ما په خاص بندګانو کښې شامل کړه.
[3]) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۴۰۰]
[4]) سنن النسائی کتاب الجنائز ، باب[ ما يلقى به المؤمن من الکرامة [ج: ۱ ص:۲۵۹] و سنن ابن ماجة، ابواب الزهد ،بابذکر الموت والإستعداد له (بألفاظ مختلفة) [ج:۲ ص:۳۱۴] و مسند احمد ،مسند ابی هريرة رضي الله عنه رقم الحديث:[۸۷۶۹]
[5]) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۴۰۱] و تاريخ دمشق [ج: ۳۰ ص:۴۳۳]

**يو څو عجيبه واقعات:** حضرت سعيد بن جبير رحمه الله فرمائی دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په طائف کښې انتقال اوشو. دَ جنازې تياريدو نه پس يوه عجيبه اوحيرانونکې مرغئی دَ کومې مثال چه اول کله هم نه وو ليدلې شوې راغله او دَ جنازې په نعش کښې داخله شوه بيا چا هغه په وتلو باندې اونه ليدله کوم وخت چه نعش په قبر کښې کيخودې شو نود قبر غاړې ته يو غيبی آواز دا آيت ﴿يَآ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ﴾ الخ اولوستلو ټولو لټيون اوکړو چه څوك لوستل کوی چا ته معلومه نه شوه. [ابن کثير][1]

او امام حافظ طبرانی کتاب العجائب کښې په خپل سند سره فتان بن رزين ابی هاشم نه دَ هغه خپله واقعه نقل کړې ده. هغوی فرمائيل چه يو خل مونږ دَ روم په ښارونو کښې قيد کړې شو اودَ هغه خائی بادشاه ته ئی پيش کړو. هغه کافر بادشاه مونږ مجبوره کړو چه مونږ دَ هغه دين اختيار کړو اوڅوك چه دَ دغې نه انکار کوی دَ هغه سټ به وهلې شی. مونږ يو څو کسان وو په هغې کښې درې کسان دَ خپل ځان دَ ويرې مرتد شو اودَ بادشاه دين ئی اختيار کړو. څلورم سړې چه پيش شو هغه کفر کولو اودَ هغه دين اختيارولونه انکار اوکړو. دَ هغه سر ئی پرې کړو او نيزدې يو نهر کښې واچولو. هغه وخت خودغه سر دَ اوبو بيخ ته لاړو دَ هغې نه پس دَ اوبو سر له راغلو اودَ هغه خلقو طرف ته په کتلو سره دَ هغوی نومونه واخستل آواز ئی ورکړو چه فلانکی فلانکی اوبيائی اووئيل چه الله تعالی فرمائيلی دی ﴿يَآ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً فَادْخُلِي فِي عِبَادِي وَادْخُلِي جَنَّتِي﴾ دې نه پس ئی بيا په اوبو کښې غوپه اولګوله.

داعجيبه واقعه ټولو اوليدله او واوريدله اودهغه خائی نصارىٰ ددې نه پس تقريبًا ټول مسلمانان شو اود بادشاه تخت په خوزيدو شو. دا درې کسان کوم چه مرتد شوی وو دا ټول بيا مسلمانان شو اوبيا خليفه ابوجعفر منصور مونږ ټول دَ هغه دَ قيد نه راخلاص کړو. [ابن کثير][2]

| اياتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | سورة البلد مکية وهي عشرون اٰية ورکوعا واحدا | | |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۲۰ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ۱ |

لَآ أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ① وَأَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ ②

نه | زهٔ قسم خورم | په دې ښار | حال داچې ته | حلال کړې شوې ئې | په دې ښار کښې |

زهٔ قسم خورم په دې ښار [مکه] باندې | اوته پدې ښار کښې [فاتحانه شان سره] داخليدونکې يې |

وَوَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ ③ لَقَدْ خَلَقْنَا

او قسم دې په پلار باند | او په هغې | چې پيدا شو دهغه نه | په حقيقت کښې پيدا کړې دې مونږ |

اوقسم دې دپلار [يعنی ادم عليه السلام] او د ده په اولاد | ............ چې مونږ انسان په سختئ کښې

الْإِنْسَانَ فِي كَبَدٍ ④ أَيَحْسَبُ أَنْ لَّنْ يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ⑤ يَقُولُ

انسان | په مشقت کښې | ايا ګمان کوی دې | چې هرګز به قادر نشی | په ده باند | هيڅوك | وائی دې

پيدا کړې دې | آيا انسان داخيال کوی چې دهيچا وس به په ده اونه رسی | ............ دې پخپله

---

[1] ) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص: ۴۰۱] و تفسير القرطبي [ ج: ۲۰ ص: ۵۸] و سير اعلام النبلاء فی ذکر عباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه [ج: ۳ ص: ۳۳۴]

[2] ) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص: ۴۰۱]

أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ۝٦ أَيَحْسَبُ أَن لَّمْ يَرَهُ أَحَدٌ ۝٧ أَلَمْ نَجْعَل لَّهُ

چې خرچ کړو ما | مال ډیر | آیا ګمان کوي دی | چې اونه لیدو ده لره هیڅ چا | آیا ورنه کړې مونږ | ده ته

وائی چې ما [داسلام خلاف] ډیر مالونه برباد کړل | آیا دی خیال کوي چې دی هیچا نه دی لیدلی | آیا مونږ ده ته

عَيْنَيْنِ ۝٨ وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ۝٩ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ۝١٠

دوه سترګې | او یوه ژبه | او دوه شونډې | او وښودلې مونږه ده ته | دوه لارې |

دوه سترګې یوه ژبه او دوه شونډې نه دی ورکړی | او د [خیر او شر] دوه لارې مو ورته نه دی خودلی

فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ۝١١ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ ۝١٢

نو همت نې اونه کړو د تیریدو | په سخته لار باند | او څه پته ده تاته | چې څه ده هغه سخته لار |

بیا هغه [د دین] ګزرګاه ته داخل شو | ............................ او تاته څه خبر دې چې ګزرګاه څه څیز دې

فَكُّ رَقَبَةٍ ۝١٣ أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ ۝١٤ يَتِيمًا

آزادول دغلام دی | یا خوراك ورکول دی | په هغه ورځ کښې | چې خاوند دلوږې وی | یتیم ته |

[او ورڼه هغه] دچاڅټ [دغلامۍ نه] خلاصول دی | یا دلوږې په ورځ کښې خوراک ورکول دی | یتیمانو ته

ذَا مَقْرَبَةٍ ۝١٥ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ۝١٦ ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا

چې خپل وی | یا مسکین ته | چې په خاورو خړ وی | بیا وی | دهغه کسانونه | چې ایمان ئې راوړې دی

چې رشته دار هم وی | یا په خاوره کښې ناست مسکین ته | بیا هغه د مومنانو نه هم وی [مسلمان وی]

وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ ۝١٧ أُولَٰئِكَ

| او یو بل ته نصیحت کوی | په صبر کولو سره | او یو بل ته نصیحت کوی | په رحم کولو سره | دا خلق |

او هغوئ په خپل مینځ کښې یو بل ته د صبر او د رحم کولو نصیحت کوی | ............... دا خلق

أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ۝١٨ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا

ملګری د ښی طرف دی | او هغه کسان | چې انکار ئې اوکړو | په آیتونو زمونږه |

به ډیر خوش نصیبه وی | او هغه خلق کومو چې زمونږ په آیتونو باندې کفر اوکړو |

هُمْ أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ ۝١٩ عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ ۝٢٠

هم دوئ ملګری د ګس طرف دی | په هغوئ باند به وی | اور | سرپوښ کړې شوې |

هغوئ د ګس طرف [خراب] خلق دی | د هغوئ نه به اور د هر طرف چارچاپیره وی

## آسان ترجمه قرآن

زه قسم خورم په دې ښهر باندې. هرکله چه (اے پیغمبره) ته په دې ښهر کښې مقیم ئې او (قسم خورم په) پلار باندې، او دهغه په اولاد باندې چه مونږ انسان په مشقت کښې پیدا کړې دې آیا دې دا خیال کوی، چه په ده باندې د هیچا وس نه رسیږی؟ وائی چه: ما ډیر مال الوځولې دې آیا دې دا خیال کوی، چه ده لره هیڅوک نه وینی؟ آیا مونږ ده ته دوه سترګې نه دی ورکړې. او یوه ژبه او دوه شونډې مو نه دی ورکړې؟ او مونږ ده ته دواړه لارې ښودلې دی بیا هم هغه په هغې دَره کښې داخل نه شو او تاته څه

پته ده چه هغه ډېره څه څيز دې. د چا څټ (د غلامۍ نه) آزادول. يا چرته د اولږې والا ورځ باندې (چاته) خوراک ورکول. يو رشته دار يتيم ته. يا يو مسکين ته چه په خاورو کښې لوغړيدلې وي. بيا هغه په هغې خلقو کښې شامل نه شو، کومو چه ايمان راوړې دې، او کومو چه يو بل ته د ثابت قدمۍ تاکيد کړې دې او يو بل ته ئې د رحم کولو تاکيد کړې دې. هم دا هغه خلق دی، چه لوئې نصيبې والا دی او کومو خلقو چه زمونږ د آيتونو نه انکار کړې دې، هغه بدبخته خلق دی په دوی باندې به داسې اور مسلط وی، چه په دوی باندې به بند کړې شی.

## خلاصه تفسير

﴿لَآ اُقۡسِمُ بِهٰذَا الۡبَلَدِ﴾ [ زۀ قسم خورم په دې ښار ] مکه [باند او] دقسم دجواب نه وړاند دنبی کريم په حق کښې يوه خوشحبری ورکړې شوه ﴿وَاَنۡتَ حِلٌّ بِهٰذَا الۡبَلَدِ﴾ او [تالره په دې ښار کښې جنګ کول حلاليدونکې دې ] چنانچه دمکې د فتح په ورځ د دوی دپاره قتال جائز کړې شو دحرم احکام باقی نه، وو پاتې شوی ﴿وَوَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ﴾ [اوقسم دې په پلار اوپه اولاد ] دټول اولاد پلار ادم عليه السلام دې په ادم اوبنيادمو ټولو باند قسم وشو وړاند جواب دقسم دې ﴿لَقَدۡ خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ فِیۡ كَبَدٍ﴾ [چه مونږه انسان لره په لوئې مشقت کښې پيدا کړې دې ] چنانچه ټول کله په مرض کښې کله په غم کښې کله په فکر کښې اکثر وخت اخته وی اوددې مقتضا داوه چه په دۀ کښې عجز اودرماندګی پيدا شوې وې اوخپل ځان ئې په حکم دتقدير کښې بند ګڼړلې دحکم اورضا تابعدار وې ليکن دکافر انسان داحالت دې چه بالکل په هيره کښې پروت دې نو ﴿اَيَحۡسَبُ اَنۡ لَّنۡ يَّقۡدِرَ عَلَيۡهِ اَحَدٌ﴾ [ ايا هغه داخيال کوی چه په دۀ به دچاوس نۀ چليږی [ يعنی ايا دالله تعالی دقدرت نه خپل ځان خارج ګڼړی کوم چه په دومره هيره کښې پروت دې (يَقُوۡلُ اَهۡلَكۡتُ مَالًا لُّبَدًا) [او وائی چه مادومره زيات مال خرچ کړو [ يعنی يوخو ځان لوئې ګڼړی بيا درسول په عداوت اومخالفت داسلام اوپه ګناهونو کښې خرچ کولو لره هنرګڼړی بيا دروغ هم وائی چه هغې ته ډير مال وائی (اَيَحۡسَبُ اَنۡ لَّمۡ يَرَهٗۤ اَحَدٌ) [ايا هغه دا خيال کوی چه دۀ لره چانۀ دې ليدلې ] [يعنی الله تعالی خوليدلې دې اوهغه پوهه دې چه په معصيت کښې ئې خرچ کړې دې پس په دې به سزا ورکړی دارنګ مقدارئې هم ليدلې دې چه دومره نۀ دې خومره چه خلقو ته يقين ورکول غواړی داحال دمطلق کافر دې چه دغه وخت د دوی دمخالفتونو دا اقوال اواحوال وو غرض دا سړې نۀ خو په تکليف اور رنج سره متاثر شو اونۀ په انعاماتو اواحساناتو سره دکومو چه وړاند بيان دې چه (اَلَمۡ نَجۡعَلۡ لَّهٗ عَيۡنَيۡنِ ۙ وَلِسَانًا وَّشَفَتَيۡنِ) [ايا مونږ دۀ لره دوه سترګې اوژبه اودوه شونډې نۀ دی ورکړی ﴿وَهَدَيۡنٰهُ النَّجۡدَيۡنِ﴾ اوبيا دۀ ته دوه لارې دخير اوشر ښودلې دی] چه دضرر دلارې نه ځان وساتی اوپه نافع لار باندې روان شی پس ددې هم مقتضادا وه چه دَ الله تعالی داحکامو تابع وې (فَلَا اقۡتَحَمَ الۡعَقَبَةَ) [مګر هغه سړې ] ددين [په غونډۍ تيريدلو ونۀ وتلو] ددين کارونو ته ئې خکه غونډۍ ووئيل چه په نفس باند ګران دی (وَمَاۤ اَدۡرٰٮكَ مَا الۡعَقَبَةُ) [ اوتاته معلومه ده چه ]د [غونډۍ ] نه [څۀ ] مراد [دۀ ﴿فَكُّ رَقَبَةٍ﴾ هغه دچا څټ ] دغلامۍ نه [ازادول دی (اَوۡ اِطۡعٰمٌ فِیۡ يَوۡمٍ ذِیۡ مَسۡغَبَةٍ) ياخوراك ورکول دی دلوږې په ورځ (يَّتِيۡمًا ذَا مَقۡرَبَةٍ ۙ اَوۡ مِسۡكِيۡنًا ذَا مَتۡرَبَةٍ) چارشته دار يتيم ته يا چاپه خاوړو کښې ناست محتاج ته] يعنی دالله تعالی دې احکامو لره په ځانې کول پکار وو ﴿ ثُمَّ ﴾ [بيا] دټولو نه زياتی داچه (كَانَ مِنَ الَّذِيۡنَ

اٰمَنُوْا)[دهغو خلقو نه نۀ شو کوم چه ایمان راوړی (وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ) اویو بل ته ] د ایمان [دپابندئ وصیت کوی اویو بل ته د ترحم ] په مخلوق یعنی ظلم نۀ کولو [وصیت کوی] ایمان خو د ټولونه مقدم دې بیا امر په ثابت قدمئ په ایمان د نورونه افضل دې بیا د خلقو دازارنه بچ کیدل د باقی نه اهم دی بیا د دې عملونو رتبه ده کومه چه د فَكُّ رَقَبَةٍ نه تر مَتْرَبَةٍ پورې مذکور دی پس د اثُمَّ د تفخیم در تبې د پاره دې مطلب دا چه په ټولو اصولو اوفروعو کښې اطاعت کول پکار وو وړاندې د الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا الخ د جزا بیان دې یعنی (اُولٰٓىِٕكَ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ)[دا خلق ښی طرف والا دی ] چه د جزا تفصیل ئې په سورة واقعه کښې دې اودلته په دې کښې مطلق اهل ایمان خواص اوعوام ټول داخل دی [او وړاند د دوی د مقابلینو بیان دې چه (وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا)[ کوم خلق چه زمونږ د ایتونو نه منکر دی ] په خپله په اصولو کښې مخالف دی د فروعو به څۀ وائې (هُمْ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ)[هغه خلق ګس طرف والا دی په دوی به اور احاط کونکې وي چه پرې بند به کړې شی ] یعنی د دوزخیانو نه به دوزخ ډك کړې شی دروازه به وریسې بنده کړې شی څکه چه د خلود په وجه خو به دوی ته وتل ملاویږی نه]

## معارف او مسائل

(لَآ اُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ) حرف لا دلته زائده دې او په قسمونو کښې دا حرف زائده راوړل د عربو په محاوره کښې معروف دې. او زیات اصح دادی چه دا حرف لا د مخاطب د باطل خیال د تردید د پاره د قسم په شروع کښې راوړلې شی د کوم معنی چه داوی دا تاسو چه کوم خیال تړلې دې هغه نه دې بلکه مونږ قسم سره وایو چه حقیقت هم هغه دې کوم چه مونږ بیانوو. اود البلد نه مکه مکرمه مراد ده لکه څنګه چه په سورت والتین کښې هم د مکې په ښار سره قسم خوړلې شوې دې اودې سره ئې د دې صفت امین هم بیان کړو.

(وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ) د مکې د ښار قسم خوړل د نورو ښارونو په نسبت د هغه ښار شرافت او فضیلت خودل دی. حضرت عبدالله بن عدی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د هجرت په وخت د مکې ښار ته خطاب کولو سره اوفرمائیل چه [په الله تعالی قسم ته په ټوله زمکه کښې د الله تعالی په نیز د ټولونه زیاته بهتر اومحبوب ئې اوکه زه د دې خائی نه په ویستلو سره مجبور کړې شوې نه وې نوزه به ستاد زمکې نه نه وتلم] [رواه الترمذی وابن ماجه، مظهری][1]

(وَاَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ) په لفظ د حل کښې دوه احتماله دی یو خودا چه د حلول نه مشتق دې د کوم معنی چه په یو څیز کښې د ننه خائی کیدل اوسیدو او ورکوزیدو راځی. په دې اعتبارسره د حل معنی به د کوزیدلواو اوسیدلو والاوی او د آیت مراد به داشی چه د مکې ښار پخپله هم محترم اومقدس دې. خاص کر په هغه وخت چه نبی کریم ﷺ هم په دغه ښار کښې وی. نو د مکین په فضیلت سره د مکان فضیلت هم زیاتیږی په دې وجه د ښار عظمت اوحرمت د حضورپاك په دې کښې مقیم کیدو سره ډبل شو. دویم احتمال دادې چه لفظ حل مصدر حلت نه مشتق وی د کوم معنی چه د یو څیز حلال کیدل دی. په دې اعتبار سره د حل دوه معنې کیدې شی. یودا چه هغوی د مکې کافرانو حلال ګڼرلې وی چه د حضورپاك قتل کولو پسې لګیدلې وی حالانکه هغوی ﷺ

[1] ) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۲۶٤] و جامع الترمذي ، ابواب المناقب باب فی فضل مكة [ج:۲ ص:۲۳۰] و سنن ابن ما جة ابواب المناسك باب فی فضل مكة [ج:۲ ص:۲۲٤]

پخپله هم د مکې په ښار کښې یو ښکار هم حلال نه ګڼړی مګر دغوی ظلم او سرکشی تردې حده پورې زیاته شوې ده چه په کوم مقدس مقام کښې د یو ځناور قتل کول هم جائز نه دی او پخپله هم د دغه خلقو هم دا عقیده ده. نو هلته هغوی د الله تعالی د رسول قتل او وینه حلال ګڼړلې ده.
دریمه معنی د حِلّ دا هم کیدی شی چه د حضور پاك دا خصوصیت دې چه د حضور پاك د پاره په حرم مکه کښې د کافرانو قتل کول حلال کیدونکی دی لکه چه د فتح مکه په موقع د یوې ورځې د پاره د حضور پاك نه د حرم احکام اوچت کړې شوی وو او د کافرانو قتل کول حلال کړې شوی وو.
په مذکوره تفسیر کښې خلاصه تفسیر کښې هم دغه دریمه معنی اخستو سره تفسیر کړې شوې. په مظهری کښې دریواړه احتمالات ذکر دی(۱) او د دریواړو معنو ګنجائش دې. ﴿وَوَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ﴾ د والد نه مراد حضرت آدم علیه السلام دې چه د ټولو انسانانو پلار دی او د مَا وَلَدَ نه د هغه اولاد مراد دې. چه د دنیا د ابتداء نه به ترقیامته پورې وی. دغه شان په دې لفظ کښې د حضرت آدم علیه السلام او ټولو بنیادمو قسم اوشو. وړاندې د قسم جواب ذکر دې.
﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي كَبَدٍ﴾ د کَبَد لفظی معنی محنت او مشقت ده. مطلب دا شو چه انسان په خپل فطرت سره داسې پیدا کړې شوې دې چه د اول عمرنه تر آخره پورې په محنتونو او مشقتونو کښې اوسیږی. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چه د حمل د شروع نه د موز په رحم کښې محبوس پاتې شو بیائی د پیدا کیدو د وخت محنت او مشقت یې برداشت کړو. بیا د مور پیئې ځکل او بیا د هغې نه اوریدلو محنت بیا د خپل ژوند تیرولو او د ژوند د ضروریاتو د حاصلولو محنت بیا د بوډاوالی تکلیفونه بیا مرګ بیا قبر بیا حشر او په دې کښې د الله تعالی په وړاندې د اعمالو جواب ورکول بیا جزا او سزا په ده باندې دا ټول دورونه هم د محنت راځی.
او دا محنت او مشقت سره د دې چه انسان سره مخصوص نه دې ټول ځناور هم په دې کښې شریك دی. مګر دا حال ئې د انسان د پاره بالخصوص ځکه ذکر کړو چه اول خو هغه د ټولو ځناورو نه شعور او پوهه لرې او د محنت تکلیف هم د شعور په اندازه زیات وی. دویم او آخری او د ټولو نه لوئی محنت په محشر کښې دوباره راژوندې کیدو سره د ټول عمر حساب کتاب ورکول کوم چه په نورو ځناورو کښې نشته دې.
بعض علماؤ فرمائیلی چه هیڅ یو مخلوق دومره مشقتونه نه برداشت کوی څومره چه انسان برداشت کوی د دې باوجود چه هغه په بدن کښې د نورو ځناورو په نسبت ضعیف او کمزورې دې. ښکاره خبره داده چه د انسان دماغی قوت د ټولو نه زیات دې په دې وجه د هغه تخصیص او کړې شو.
د مکې مکرمې د حضرت آدم علیه السلام او د هغه د اولاد قسم خوړلو سره الله تعالی دا حقیقت بیان کړو چه انسان مونږ په سختو محنت او مشقت کښې هم د دې د پاره پیدا کړې دې چه د دې خبرې دلیل دې چه انسان پخپله نه دې پیدا شوې یا دې چرته بل انسان نه دې راپیدا کړې بلکه د هغه پیدا کونکې هم یو قادر مختار دې. چا چه په خپل حکمت سره هر یو مخلوق خاص خاص مزاج او خاص اعمالو او افعالو استعداد ورکولو سره پیدا کړې دې. که چرې د انسان په تخلیق کښې پخپله د انسان څه دخل وې نو هغه به د خپل ځان د پاره دا محنتونه او مشقتونه کله هم نه وو تجویز کړی. [قرطبی](۲)

---

(۱) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۲٦٤]
(۲) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:٦۳]

**په دنیا کښې مکمل راحت نکوم کښې چه څه تکلیف نه وي چانه نه شي حاصلیدلې په دې وجه انسان له پکار دي چه د منفعت دپاره تیار اوسي:** په دې قسم اود قسم په جواب کښې انسان په دې خبره باندې خبردار کړو چه دا ستاکوم خواهش دې چه په دنیا کښې دهمیشه دپاره راحت اوهم راحت ملاؤشي هیڅ تکلیف ته واسطه رانه شي. دا یو خام خیال دې چه کله به هم حاصل نه شي. په دې وجه ضروري دي چه په دنیا کښې هرسړی له محنت مشقت غم خفګان راشي اوچه کله مشقت اوتکلیف راتلل دي نود عقلمند داکار دې چه دامحنت اومشقت دې دهغه ځیزدپاره اوکړي چه د همیشه دپاره د ده په کارراشي اود همیشه خوشحالئ سامان جوړشي اودا صرف په ایمان او د حق په طاعت کښې دي. وړاندې د غافل او آخرت نه د منکر انسان یو څو جاهلانه خصلتونو ذکرکولوسره فرمائي ﴿ اَيَحْسَبُ اَنْ لَّنْ يَّقْدِرَ عَلَيْهِ اَحَدٌ ﴾ یعنی ولې دا بې وقوف داګنړي چه د هغه بداعمال چا لیدلي نه دي هغه له پوهیدل پکاردي چه دهغه خالق دهغه هرعمل ته ګوري.

**د سترګواو ژبې په تخلیق کښې بوخوحکمتونه:** ﴿ اَلَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ عَيْنَيْنِ ۙ وَلِسَانًا وَّشَفَتَيْنِ ۙ وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ ۚ ﴾ نجدین تثنیه ده د نجد د کوم لفظي معنی چه دهغه لاري ده چه پورته د اوچتوالي طرف ته خي مراد دې نه کولاؤ واضحه لار ده. او په دغه دوو لاروکښې یوه د خیر ښیګړې او دویمه د شر اوهلاکت لار ده.

په وړاندیني آیت کښې د انسان په دغه غفلت اوجهالت باندې تنبیه وه چه هغه داګنړي چه په ماباندې د الله تعالی هم قدرت نشته دې. اوبل دا چه دهغه اعمال اوافعال څوك لیدونکې نشته دي. په دې آیت کښې د یوڅو هغه نعمتونو ذکر دې چه الله تعالی دهغه په وجود کښې داسې ورکړي دي چه پخپله دهغې په صنعت اوحکمت کښې غور اوکړې شي نودالله تعالی بې مثال حکمت او قدرت نظاره به هم په دغه ځیزونو کښې اوکړي. په دې کښې اول د دو سترګو ذکر دې چه د سترګو په نازکه پرده کښې نازك رګونه په هغې کښې قدرتي رڼا بیا د سترګې جوړخ چه دا ډیرزیات نازك اندام دې ددې د حفاظت به څه سامان پخپله ددې په خلقت کښې اوکړې شو چه ددې د پاسه ئې خپلې پردې واچولې چه د خودکار مشین په شان کله یونقصاني ځیزمخې ته راځي نوپخپله بغیرد څه اختیارنه بندیږي. د دغه پردو دپاسه د سترګو بانړه اودرولې شو چه دوړې بندې کړي. ددې دپاسه د وریځو ویښته اولګولې شو چه د پورته نه راتلونکې څه ځیز نیغ په نیغه په سترګه کښې رانه شي. دانی په مخ کښې دننه داسې اولګولې چه پورته سخت هډوکې دې لاندې د اننګی سخت هډونکې دې که سړي کله پرمخې راپریوځي یا د ده په مخ باندې څه ځیز راپریوځي نو دغه ښکته پورته هډوکي سترګه بچ کوي.

دویم ځیز ژبه ده د دې عجیبه او حیرانونکې تخلیق اود زړه د خبرو ترجماني چه ددې راز نه ډك او خودکار مشین په ذریعه سره کیږي د حیرانونکې طریقه کار ته کتلوسره په زړه کښې یومضمون راغلو دماغو په هغې باندې غور اوکړو دهغې دپاره ئې عنوان او الفاظ تیارکړل. هغه الفاظ دغه د ژبې د مشین نه رااووتل دا دومره لوئي کار څومره په تیزئي سره کیږي چه اوریدونکې ته دا احساس هم نه شي کیدې چه د دغه الفاظو په ژبه باندې راتلو کښې ددې شاته څومره مشینرئي کارکړې دې نوهله دا کلمات په ژبه باندې راغلل. ژبې سره د شونډو ذکر ددې دپاره اوکړې شو چه د ژبې په کارکښې شونډې ډیر امداد کوي د آواز او حروفو جدا شکلونه هم دوی جوړوي. اوکیدې شي ددې دپاره هم چه قدرت ژبه داسې یوتیز عمل کونکې مشین جوړ کړې دې چه په نیم مینټ کښې په دې سره داسې کلمه هم وئیلې کیدې شي چه هغه د جهنم نه اوباسي اوجنت ته ئې

اورسوی لکه دَ ایمان کلمه یا په دنیا کښې دَ دښمن په نظر کښې هم هغه دوست جوړ کړی لکه دَ تیرشوی قصور معافی. هم په دغه ژبه سره هم په دومره وخت کښې داسې کلمه هم وئیلې کیدې شی چه دې جهنم ته اورسوی لکه دکفر کلمه یا په دنیا کښې دَ ده لونی لونی مهربان دوستان دَ هغه دښمنان جوړ کړی لکه کنځلې وغیره. څنګه چه دَ ژبې فائدې بې شمیره دی نودَ دې تباهئی هم په دغه انداز سره دی. لکه دا یوه توره ده چه په دښمن باندې هم چلیدې شی او خپله مرنی هم پرې کولې شی. په دې وجه الله تعالی دا توره دَ دوو شونډو په غلاف کښې راپټولوسره ورکړې ده. او په دې خائې دَ شونډو ذکر کول دې طرف ته اشاره کیدې شی چه کوم مالك انسان ته ژبه ورکړه هم هغه دَدې دَ بند ساتلودَپاره دوه شونډې هم ورکړې. په دې وجه دَدې په استعمال کښې دَ سوچ او فکر نه کار اخستل پکاردی چه بې موقع دا دَ شونډو دَ مینځ نه راونی نه ویستلې شی. دریم څیز دَ دوو لارو هدایت یعنی الله تعالی انسان ته دَخیر اوشر اوښه او بددَ پیژند ګلودَپاره یو طاقت او ماده پخپله په دې وجود کښې کیخودې ده لکه چه په قرآن کښې ارشاد دې ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ یعنی په انسانی نفس کښې دننه الله تعالی دَ فجور اوتقوی دوارو مادې کیخودې دی نودغه شان یو ابتدائی هدایت انسان ته پخپله دَ ده دَ ضمیر نه ملاویږی بیا دَ دغه هدایت دَ تائیددَپاره انبیاء کرام ﷺ او آسمانی کتابونه راغی چه هغه بالکل واضحه کوی.

خلاصه دا شوه چه جاهل اوغافل انسان دَ حق دَ قدرت منکرکه دَخپل بدن په یوڅو ښکاره څیزونو کښې غوراوکړی نودَ قدرت حکمت اودَحق دکمال مشاهده به ئی اوشی. په سترګوسره اوګوره بیانی په ژبه سره اقرار اوکړه بیا په دوو لارو کښې دَخیرلار اختیار کړه.

وړاندې بیا دَده په غفلت اوبې فکرئی باندې تنبیه ده چه دَدې روښانه دلائلوسره دَ الله تعالی دَ کامل قدرت اودَدې په ذریعه په قیامت کښې دوباره دَ ژوندی کیدو اودَ حساب ورکولو یقین کیدل پکاردی. دَدې یقین مقتضاء دا وه چه ده خلق خدا ته نفع او خوشحالی رسوله، دَهغوی دَتکالیفونه بچ کیدو او په الله تعالی باندې یې ایمان راوړلې او پخپله ئې خپله اصلاح کوله اودَ نورو خلقو دَاصلاح فکرئی کولې. دې دَپاره چه په قیامت کښې دوی اصحاب یمین یعنی په جنتیانو کښې شامل شی مګر دې بدنصیب داسې اونه کړه بلکه په کفرباندې قائم پاتې شو دَ کوم انجام چه دَ دوزخ اوردې. دَسورت دَ آخره پورې دا مضمون بیان شو په دې کښې دَ یوڅو نیکواعمالو نه اختیارول په یوخاص انداز کښې بیان کړی دی.

﴿فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ۝ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ ۝ فَكُّ رَقَبَةٍ ۝﴾ عقبه دَ غرلونی چتهان او کټ ته هم وائی اودَ دوو غرونو په مینځ کښې لار ته هم وائې. اودَدښمن نه خلاصې حاصلولو کښې دا عقبه دَ انسان امداد کوی چه دَ غرد پاسه اوخیژی اوددښمن نه خپل ځان بچ کړی یا بیا دغه لار کښې داخل شی او دَهغه ځائی نه اوخی. دې ځائی کښې یې طاعاتو او عباداتو نه په عقبه سره تعبیر اوکړل لکه څنګه چه عقبه دَ دښمن نه دَ خلاصی سبب وی نو دغه شان اعمال صالحه هم دَ آخرت دَعذاب نه دَ خلاصی ذریعه جوړیږی. بیا په دغه نیکو اعمالو کښې ﴿فَكُّ رَقَبَةٍ﴾ اوفرمائیلې شو یعنی یوغلام آزادول ډیر لوئی عبادت او دَ یوانسان ژوند جوړول دی. دویم څیزیې ﴿أَوْ إِطْعَامٌ﴾ بیان کړو چه په نهر باندې خوراك کول یو ډیر لوئی ثواب دې اوخوراك چه په چا باندې هم اوکړې شی دَ ثواب نه خالی نه دی مګر بعض باندې خوړل ډیر زیات ثواب دې. په دې وجه دَهغه لونی ثواب دَ حاصلولودَپاره ئی اوفرمائیل ﴿يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ۝ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ۝﴾ یعنی خاص چه کله خوراك په یو

داسې یتیم باندې اوکړې شی کوم سره چه ستا خپلولی هم وی نو په دې دوچند ثواب شو. یوډ نهر خیته ډ کول او خپلوان سره صله رحمی اوډ هغه حق اداکول. ﴿فِىْ يَوْمٍ ذِىْ مَسْغَبَةٍ﴾ یعنی خاص په داسې ورځ کښې په هغه باندې خوراك كول په كومه ورځ چه هغه اوګې وی دَنور ډير ثواب موجب دی. دغه شان کـه یتیم خپلـوان نـه وی اوداسې مسکین وی دَ کـوم مسکینتوب چـه هغـه پـه خاورو کښې اچولې وی مراد ډير زيات مفلس او محتاج وی او په چاباندې چه خرچ اوکړې شی هغه چه څومره ډير محتاج وی هم هغه هومره به خرچ کونکی ته ثواب زیات ملاویږی.

**دَ ایمان تقاضاده چه انسان دې صرف په خپله نیکئی باندې اکتفاء نه کوی نوروته دې هم دَ نیکوهدایت کوی:** په دې آیت کښې دَ ایمان نه پس دَ مؤمن دا فرض اوخودلې شو چه نورو مسلمانانو رونړو ته دې هم دَصبر اورحمت تلقین کوی. دَصبرنه مراد نفس دَ بدو نه منع کول او نیکویاندې عمل کول دی. اودَ مرحمت نه مراد دَ نورو په حال باندې رحم کول دَ هغوی تکلیف خپل تکلیف ګنړل هغوی ته تکلیف ورکول اوپه هغوی باندې دَظلم کولونه بچ کیدل.په دې کښې تقریباً دَدین ټول احکام راغلل.

تمت سورة البلد بحمدالله ۲۳ شعبان ۱۳۹۱هجری

| رکوع ګانې | | | اياتونه |
|---|---|---|---|
| | سورة الشمس مكية وهى خمس عشرة اٰية وركوعا واحدا | | |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ① | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ⑮ |

وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا ۝ وَالْقَمَرِ اِذَا

| قسم دې په نمر | او په ګرمئ دنمر باند | او قسم دې په سپوږمئ باند | کله چې |

قسم دې په نمر او دهغې په رنړا |............ او [قسم دې] په سپوږمئ چې وریسې

تَلٰهَا ۝ وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا ۝ وَالَّيْلِ

| هغه راځي په نمر پسې | او قسم دې په ورځ باند | کله چې ښکاره کړی دغه نمر | قسم دې په شپه باند |

راځیژی | .........او [قسم دې] په ورځ چې روښانه شی| ............او [قسم دې] په شپه چې

اِذَا يَغْشٰهَا ۝ وَالسَّمَآءِ وَمَا

| کله چې راخوریږی په نمر باند | او قسم دې په اسمان باند | او په هغه ذات باند |

راخوره شی | او [قسم دې] په اسمان او په هغه الله ﷻ چې جوړ کړې ئې دې [اسمان]

بَنٰهَا ۝ وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰهَا ۝

| چې جوړ ئې کړو دغه آسمان | او قسم دې په زمکه باند | او په هغه ذات باند | چې وې غوړوله دغه زمکه |

او[قسم دې] په زمکه او په هغه ذات چې خوره کړې ئې ده [دا زمکه] ..................

وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰهَا ۝

| او قسم دې په نفس دانسان باند | او په هغه ذات باند | چې برابر ئې کړو هغه |

او[قسم دې] په نفس او په هغه الله ﷻ چې ډیر برابر ئې جوړ کړې دې [دا نفس]

فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوٰىهَا ﴿۸﴾ قَدْ أَفْلَحَ

| نو په زړونو کښې ئې واچوله دغه نفس ته | بدی دهغه | او نیکی دهغه | یقینا چی کامیاب شو

نو بد او نیک ئې ورته خودلی دی | ..........................هغه کس کامیاب شو چا چې

مَنْ زَكّٰىهَا ﴿۹﴾ وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰىهَا ﴿۱۰﴾

هغه کس | چی پاك ئې کړو نفس خپل | او ناکام شو | هغه څوك | چی تباه یې کړو دغه نفس

خپل نفس پاک کړو | ..........................او هغه کس ناکام شو چې چا خپل نفس خراب کړو |

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ ﴿۱۱﴾ إِذِ انْبَعَثَ أَشْقٰىهَا ﴿۱۲﴾

دروغ اوګڼړو | ثمودیانو | په وجه دسرکشئ خپلې | کله چی راپورته شو | دټولو نه بدبخته سړې دهغوئ

[قوم د] ثمود دخپلې سرکشئ په و جه [صالح] دروغژن اوګڼړلو | کله چې په هغوی کښې یو بدبخته راپورته شو

فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ نَاقَةَ اللّٰهِ وَسُقْيٰهَا ﴿۱۳﴾

| نو اووئیل | هغوئ ته | رسول دالله | [لاس مهٔ وروړئ] اوښې دالله ته | او [مهٔ بندوئ] اوبه څکل ددې

نو رسول دالله ﷺ ورته اووئیل | چې خبردار دا د الله ﷻ اوښه ده | او ددې دڅکلو وار مقرر دې

فَكَذَّبُوْهُ فَعَقَرُوْهَا ۠ فَدَمْدَمَ

| نو دروغ اوګڼړو هغوئ هغه لره | پس زخمی ئې کړه هغه اوښه | نو راوستلو هلاکت

خودوئ پیغمبر دروغژن اوګڼړلو | او اوښه ئې زخمی [مړه] کړه | ..........................نو الله ﷻ پرې

عَلَيْهِمْ رَبُّهُمْ بِذَنْۢبِهِمْ فَسَوّٰىهَا ﴿۱۴﴾

| په هغوئ باند | رب دهغوئ | په سبب دګناهونو دهغوئ | نو برابر ئې کړل هغوئ په هلاکت کښې

د هغوی د ګناه په وجه عذاب راوستلو ..........................| ..........................نو ټول ئې برابر کړل ......

وَلَا يَخَافُ عُقْبٰهَا ﴿۱۵﴾

| اونهٔ یریږی الله | دانجام دهغې نه |

او الله تعالی دهغوئ د هلاکت د انجام هیڅ پرواه نه کوی

**آسان ترجمه قرآن**

قسم دې په نمر باندې، او دهغه په خوره شوې رڼا باندې او په سپوږمۍ باندې، چه کله نمر پسې راشی. او په ورځ باندې، چه کله هڅکاره کړی نمر لره. او په شپه باندې، هرکله چه پټ کړي نمر لره. او قسم دې په آسمان باندې، او په هغه ذات باندې چه دا ئې جوړ کړې دې. او په زمکه باندې، او په هغه ذات چه دا ئې غوړولې ده. او په انسانی نفس باندې، او په هغه ذات چه دا ئې برابر کړې دې. بیا ئې دده په زړه کښې هغه خبره هم واچوله. کومه چه دده دپاره د بدکارئ ده، او هغه هم چه دده دپاره د پرهیزګارئ ده کامیابي به هغه ته ملاویږی، چه دا نفس پاک کړی او نامراده به هغه کس وی، چه دهٔ لره (په ګناه کښې) ورخخ کړی ثمودیانو د خپلې سرکشئ د وجې نه (پیغمبر ته) دروغژن وئیلې وو. چه کله د هغوی نه د ټولو نه بدبخت سړې راپورته شو نو د الله تعالی پیغمبر هغوی ته اووئیل چه: خبردار! د الله تعالی د

اوښې، او د هغې داوبو څکلو خيال اوساتئ. بيا هم دوی پيغمبر لره دروغژن کړو، او هغه اوښه ئې مړه کړه نتيجه دا چه ددوی پروردگار ددوی د گناه په وجه دوی ټول تباه کړل او ټول ئې برابر کړل. او الله تعالی ته د دوی د بد انجام څه ويره نشته.

## خلاصه تفسير

﴿وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا﴾[قسم دي په نمر اودده په رنړا ﴿وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰهَا﴾ اوپه سپوږمۍ کله چه دنمر د پريوتو نه پس راشی ] يعنی راوخيژی مراد ددې نه دمياشتې دمينځ دخنو شپو سپوږمۍ ده چه دنمر پريوتو نه پس راخيژی اوداقيد شايد ځکه وی چه دغه وخت درنړا کمال وی لکه چه دضحها اشاره ده کمال درنړا د نمر ته اويادغه وخت دوه نښې نښانې دقدرت پرله پسې متصل ظاهريږی دنمر پريوتل او دسپوږمۍ راختل ﴿وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا﴾[او] قسم دې [ په ورځې کله چه هغه دې [ نمر] لره ښه روښانه کړی ﴿وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰهَا﴾ او] قسم دې [په شپه کله چه هغه دې ] نمر [لره] او د ده اثارو اوانوارو لره بالکليه [پټ کړی] يعنی ښه شپه شی چه دورځې درنړا هيڅ اثر پاتې نه شی او څلور ځيزونه په کومو چه قسم خوړل شوې دې په دې کښې کوم قيدونه لګولې شوی دی هغه يو قسم د دوی دکمال دحالت په اعتبار سره دې ﴿وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰهَا﴾[او] قسم دې [په اسمان اوپه هغه ] ذات کوم [چه ده لره جوړ کړو] مراد االله تعالی دې [دې دغه شان په وَمَا طَحٰهَا، وَمَا سَوّٰهَا کښې هم او په مخلوق قسم په خالق دقسم نه مخکښې فرمائيل ځکه چه کيدې شی چه په دې کښې ذهن لره دليل نه مدلول طرف ته منتقل کول وی ځکه چه مصنوع دليل دې په صانع نو په دې کښې په توحيد باند دليل طرف ته هم اشاره وشوه ﴿وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰهَا﴾ [ او] قسم دې [په مزکه او په هغه ] ذات[چاچه دې لره خوره کړه ﴿وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰهَا﴾ او] قسم دې دانسان [په روح اوپه هغه ] ذات[چاچه ده لره ] په هر صورت شکل اواعضاؤ سره [درست جوړ کړو ﴿فَاَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰهَا﴾ بيا ئې ده ته بدعملی اوپرهيز ګاری ] د دواړو خبرو[ده ته القاء وکړه] دااسناد په اعتبار دتخليق دی يعنی په زړه کښې چه کوم دنيکۍ رحجان کيږی ياکوم چه دبدۍ طرف ته ميلان کيږی د دواړو خالق الله تعالی دې اګر چه داولنی القاء واسطه فرښته وی او ددويم شيطان بيا دغه رحجان اوميلان کله مرتبې دعزم ته رسی کوم چه دانسان په قصد اواختيار باند عذاب اوثواب مرتب کيږی دکوم نه پس چه صدور دفعل په تخليق دحق سره وی اوکله عزم ته نه رسی دغه معاف دې وړاندې دمضمون دتکميل دپاره دفاجرانو او تقوی دارو انجام ښائی چه ﴿قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰهَا﴾[ يقينا هغه مراد ته ورسيدل چاچه دې ] روح[ لره پاك کړو ] يعنی نفس لره ئې دګناهونو نه منع کړو اوتقوی ئې اختيار کړه ﴿وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰهَا﴾[اونامراده شو چاچه ده لره ] په ګناهونو کښې [دوب کړو ] اوپه ګناهونو ئې مغلوبه کړو ددې نه پس دقسم جواب مقدر دې يعنی اې د مکې کفارو هر کله چه تاسو فاجران يئې نو خامخا به په غضب اوهلاکت کښې اخته شئ په اخرت کښې خو يقينا او په دنيا کښې هم څنې وخت لکه چه قوم دثمود ددې فجور په وجه دغضب الهی اودعذاب مستحق جوړ شول دکومو چه داقصه ده چه ﴿كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ﴾[قوم دثمود دخپل شرارت په سبب ] دصالح عليه السلام [تکذيب وکړو ] اودادهغه زمانې قصه ده ﴿اِذِ انْۢبَعَثَ اَشْقٰىهَا﴾[ هر کله چه په هغه قوم کښې کوم چه دټولو نه زيات بد بخت وو هغه ] داوښې دقتلولو دپاره [راپورته شو ] يعنی

تيار شو او ددۀ سره نور خلق هم شريك وو ﴿فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ نَاقَةَ اللّٰهِ وَسُقْيٰهَا﴾ [نو دغو خلقو ته دالله تعالى پيغمبر ] صالح ﷺ هر کله چه ورته ددې دقتلولو دعزم اطلاع وشوه لکه داسې په خازن کښې دی [وفرمائيل چه دالله تعالى د] دې [اوښې نه اوددې داوبو څښلو نه خبردار شئ] يعنى دې لره قتلوئ مه او ددې اوبۀ بندوئ چونکه دقتل دارادې اصل سبب هم داوبو وار وو په دې وجه ددې وضاحت ئې وفرمائيلو اودالله تعالى اوښه ئې ورته خکه ووئيل چه خدائې تعالى دې لره دمعجزې په طور عجيبه شان سره پيدا کړه اودنبوت دليل ئې جوړ کړو اوددې احترام ئې واجب کړو﴿فَكَذَّبُوهُ فَعَقَرُوهَا﴾ [پس هغوئ پيغمبر لره] يعنى د نبوت دليل لره کوم چه دناقة الله په ذريعه ظاهر کړو[ دروغژن کړو ] خکه چه هغۀ لره دغو خلقو نبى نۀ منلو[ بيا ئې دغې اوښې لره مره کړه ﴿فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُمْ بِذَنْبِهِمْ فَسَوّٰىهَا﴾ نود هغوئ پروردګار دهغوئ دګناه په سبب په هغوئ هلاکت نازل کړو بيا دې ] هلاکت [ لره ئې دټول قوم دپاره [ عام کړو ﴿وَلَا يَخَافُ عُقْبٰهَا﴾ اوالله تعالى ته ددې هلاکت په اخر کښې دڅۀ خرابئ ] راتلو او دچا نه څۀ [انديښنه ونۀ شوه ] لکه ددنيا بادشاهانو ته څنې وخت يو قوم ته دسزا ورکولو نه پس احتمال وى چه په دې باندې دې په ملك کښې څۀ هنګامه اوشور مرتب نۀ شى دثمود اود اوښې مفصله قصه په سورة اعراف کښې تيره شوى ده]

### معارف او مسائل

﴿وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا﴾ دې سورت کښې د اوۀ څيزونو قسم راغلې دې ، او اوۀ وارو څيزونو سره ددوى د حالت دکمال په اعتبار څۀ صفتونه او قيدونه بيان کړې شوې دى.

**رومبی قسم:** ﴿وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا﴾ دلته اګر چې :﴿ضُحٰهَا﴾ په واؤ عطف سره ذکر کړې شوې دې. مګر په قرينې د روستنو څيزونو سره د ضحى ذکر د شمس د صفت په ډول دې يعنى قسم دې دنمر کله چې هغه په وخت د څابست کښې وى . ضحى هغه وخت ته وئيلى شى چې کله نمر راختو نه پس لږڅه اوچت شى او د هغې رڼرا په زمکه باندې خوره شى، دغه وخت هغه انسان ته نزدې ښکارى او زيات تيز نه وى خکه ورته خلق په ښه شان کتې هم شى.

**دوېم:** ﴿وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰهَا﴾ يعنى د سپوږمئ قسم کله چې چې دا نمر پسې راشى ددې دا مطلب هم کيديشى چې کله سپوږمئ دنمر ډوبيدو نه پس راؤخى اودا د مياشتې په مينځ کښې وى کله چې سپوږمئ تقريبا مکمله او پوره وى اود ورپسې راتلو دا مطلب هم کيديشى چې څنګه دضحى په وخت چې نمر مکمل په نظر راخى دغسې سپوږمئ چې ورپسې راشى يعنى په کامل کيدو کښې د نمر تابع شى.

**دريم قسم:** ﴿وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا﴾ د ﴿جَلّٰهَا﴾ ضمير دزمکې يا دنيا طرفته هم راجع کيديشى اګر چې ددې نه وړاندې دزمکې او دنيا ذکر نه دې راغلې مګر دعربو په محاوره کښې داسې څو څيزونو ته هم ضمير راجع کولې شى چې دهغې ذکر وړاندې نه وى شوې دا هغه څيزونه دى چې عموما دانسان په وړاندې وى په داسې شان بغيرد ذکرما سبق ضمير راجع کول مشهور او معروف دى اوپه قرآن پاك کښې هم ددې نظيرونه موجود دى ،په دې اعتبار سره ئې معنى دا شوه چې: قسم دې د ورځې او ددنيا يا دزمکې چې ورځې روښانه کړې ده،په دې کښې هم اشاره دې طرفته ده چې د ورځې قسم ددې حالت په اعتبار سره دې کله چې هغه په پوره شان روښانه شى او دعبارت په اعتبارسره ښکاره داده چې دا ضمير نمرته راجع وى ، په دې صورت

کښې به ئې معنی دا وی چې قسم دې په ورځې کله چې نمر لره روښانه کړي ، دا اسناد به مجازي وي مطلب به ئې دا وي چې کله دورځې دراوتو په سبب نمر په نظر کښې روښانه ښکاري.

**څلورم قسم** :: ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰىهَا﴾ يعنی قسم دې د شپې کله چې هغه نمر باندې خوره شي ، يعنی د نمر رڼرا پټه کړي .

**پنځم قسم**:: ﴿وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنٰهَا﴾ په دې کښې د نظم د سباق په اعتبار سره زياته واضحه خبره داده چې ﴿مَا بَنٰهَا﴾ کښې صرف ما مصدريه اوګرځولې شي ، دامعنی واخستې شي چې قسم دې د آسمان اوددې د جوړونکی لکه قرآن کريم فرمائی چې ﴿بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ﴾[1] .

**شپږم قسم** :: دا شان شپږم قسم :﴿وَالْأَرْضِ وَمَا طَحٰهَا﴾ کښې ما د مصدر په معنی واخستو ، ترجمه ئې دا شوه چې قسم دې د زمکې او ددې د غوړولو ، دلته دآسمان جوړول او دزمکې دَ خوررولو ذکر هم ددې کامل حالت خودل دی ، يعنی قسم دې د آ سمان په هغې حالت کښې دَ هغې پيدا کول اوتکوين مکمل شو او قسم دې د زمکې کله چې خوررولو سره ددې پيدا کول مکمل شو. قتاده رحمه الله وغيره نه هم داتفسير منقول دې. کشاف ، بيضاوی او قرطبی هم دا اختيار کړی دی[2] او ځينې مفسرينو حضراتو دلته ما حرف د من په معنی اخستې دې اوددې نه ئې د الله ﷻ ذات مراد اخستې دې ، چې قسم دې دَ آسمان اوددې دَ جوړونکی، دا شان دَ ﴿وَالْأَرْضِ وَمَا طَحٰهَا﴾ مفهوم ئې دا بيان کړې دې چه قسم دې د زمکې او ددې د خورونکی مګر دلته تر اوسه پورې خومره قسمونه چې ذکر شوی دی او وروسې راتلونکی ټول قسمونه د مخلوقاتو دی. په مينځ کښې د الله ﷻ د ذات قسم راتلل د چلن او ترتيب نه لرې معلوميږی. او په دې صورت کښې چې پورته ليکلې شوې دې دا اشکال هم نه لازميږی چې د مخلوقاتو قسم د خالق په ذات باندې ولې وړاندې کړې شو؟

**اووم قسم** :: ﴿وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰىهَا﴾ په دې کښې هم چې ما مصدريه واخستې شی نو معنی به ئې دا وی چې :قسم دې د انسان د ځان او ددې دسمولو او موزون جوړولو او که د مَا معنی مَنْ اوکړې شی نو معنی به ئې دا وی چې قسم دې د نفس او ددې دبرابرونکی او سمونکی ، دبرابرولو او سمولو مفهوم ددې نه وړاندې سورتونو کښې راغلې دې.

﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰىهَا﴾ د الهام معنی په زړه کښې اچول د فجور معنی ښکاره ګناه او د تقوی مطلب مشهور او معروف دې ، دا جمله هم دَ اوړم قسم ﴿وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰىهَا﴾ سره تړلې ده يعنی الله ﷻ انسانی ځان جوړ کړوو بيا ئې دده په زړه کښې دفجور او تقوی دواړو الهام اوکړو ، مراد دادې چې د انسانی ځان په پيدا کولو کښې الله ﷻ د ګناه اوفرمانبردارئی دواړو مادې او استعداد ايخودې دې ، بيا ئې انسان ته يو خاص قسم اختيار اوقدرت ورکړې دې. چې هغه خپل قصد او اختيار سره دګناه لار اختيار کړی. کله چې هغه په خپل قصد او اختيار سره په دې کښې څه لار اختيار کړه. نو په هغې به ورته ثواب او عذاب ورکولې شی. په دې تفسير سره هغه شبه ختمه شوه چې هر کله ګناه او فرمانبرداری پخپله د انسان په خمبير کښې ايخودې شوې ده نو ددې دواړو کول ئې مجبوری شوه چې په عبادت او فرمانبردارئی ورته

---

[1] ) ترجمه:- که زما پروردګا ماته بخښنه اوکړه.
[2] ) تفسير البيضاوی [ج: ۵ ص:۴۰۱] وتفسير الکشاف [ج: ۷ ص:۲۹۵]

ثواب او په نافرمانئ او گناه کولو ورته عذاب ورکول نه وو پکار . او دا تفسير د يو مرفوع حديث نه ا خستې شوې دې کوم چې په صحيح مسلم کښې د عمران بن حصين ﷺ نه روايت دې چې ځينې خلقو نبي کريم ﷺ نه د تقدير د مسئلې باره کښې سوال اوکړو نو نبي کريم ﷺ په جواب کښې دا آيت مبارک تلاوت اوکړو[1]. دې آيت مبارک نه د تقدير د مسئلې د شبهې جواب په دې صورت کښې کيديشي چې کله د فجور او تقوى د الهام نه مطلب دا واخستې شي چې د دواړو مادې او استعداد و نه الله ﷻ په نفس انساني کښې ايخودې دې خو هغه ئې په دې کښې په يو باندې هم مجبور محض نه دې گرځولې بلکه قدرت او اختيار ئې ورکړې دې چې په خپله خوښه او اراده يو په کښې اختيارولې شي.

ابي هريره ﷺ او ابن عباس ﷺ د روايت مطابق کله چې به نبي کريم ﷺ دا آيت مبارک تلاوت کولو نو په اوچت آواز به ئې دا دعا کوله چې : [ اللهم آت نفسي تقوها أنت وليها ومولاها وأنت خير من زكاها ] ([2]) يعني ائې الله ﷻ ! زما ځان ته د تقوى توفيق راکړې ،هم ته زما د ځان ولي او مربي يې.

ددې اوؤ قسمونو نه پس د قسم په جواب کښې فرمائي چې : ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ زَكَّاهَا ۝ وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسَّاهَا ۝﴾ يعني يقيناً مراد پيدا کړې هغه چا چې دخپل ځان صفائي ئې اوکړه ، باطيني صفائي کول د تزکيه اصلي معنى ده مراد دادې چې چا د الله ﷻ په فرمانبردارئي کولو سره خپل ظاهر او باطن پاک کړو او بې نصيبه شو هغه څوک چا چې خپل ځان د گناهونو په دلدل کښې ورننوستو. ددَسّى لفظ دَسّ نه مشتق دې . چې معنى ئې په زمکه کښې ښخول دي لکه الله ﷻ فرمائي چې : ﴿أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ﴾([3]) او ځينې مفسرينو دلته د زکى او دَسّى دواړو ضمير د فاعل الله ﷻ ته په راجع کولو سره دا معنى کړې ده چې مراد موندونکې شو هغه څوک چا لره چې الله ﷻ پاک کړو او نامراده او بې نصيبه شو هغه څوک چې الله ﷻ هغه لره په گناهونو کښې وربوښت کړو، دې آيت تول انسان په دوؤ ډلو کښې تقسيم کړل . يو مراد موندونکې ، او بل نامراده ، وريسې ددې دويم قسم خلقو يوه واقعه دمثال په ډول پيش کولو سره ددې د خراب انجام نه ويرول کړې شوې دى . چې دغې نامرادو ته خو به آخرت کښې سخته سزا خامخا ورکولې شى . ورته په دنيا کښې هم دسزا يو قسط ورکولې شى لکه قوم ثمود ته چې ورکړې شو . ددې واقعه په تفصيل سره سورة اعراف کښې راغلې ده دلته ئى ددې طرفته اجمالي اشاره اوکړه او دهغوئ عذاب ئې بيان کړو.

﴿فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُمْ بِذَنْبِهِمْ فَسَوَّاهَا﴾ دَمْدَمَ لفظ داسې سخت عذاب دپاره وئيلې شى چې په يو کس يا قوم باندې بيا بيا راځي ، نزدې چې فنائي کړې او د فَسَوَّاهَا مطلب دادې چې دا عذاب تول قوم نه راچاپيره شو چې په کښې ناړينه ، زنانه هلک او بوډا وغيره تول برابر شو په آخر کښې فرمائي چې :

---

[1]) صحيح مسلم كتاب القدر، باب كيفية خلق الآدمي في بطن امه ..... إلخ [ج:٢ص:٣٣٣]
[2]) تفسير القرطبي [ ج:٢٠ص:٧٦] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١١٠٢٨] و مجمع الزوائد كتاب التفسير باب سورة الشمس رقم الحديث :[١١٤٩٥]
[3]) ترجمه:- يا دا په خاوره کښې دفن کړه.

﴿وَلَا يَخَافُ عُقْبٰهَا﴾ یعنی د الله ﷻ دعذاب او د یوقوم د تباه کولو معامله ددنیا د معاملاتو پشان مه گڼره چې په دې کښې د لوئی نه لوئی بادشاه چې لوئې طاقت او دبدبه لری هغه چې کله یو قوم سره ددغې تول قوم د هلاکولو معامله کوی نو دهغه پخپله هم دا خطره وی چې هسې نه د دوئ پاتې څه خلق مونږ نه بدله واخلی او زمونږ خلاف بغاوت اونکړی عرض داچې په دنیا کښې دنورو خرابونکی پخپله هم بې خطرې پاتې کیږی. څوک چې په نورو باندې حمله کوی هغه ته به پخپله هم دا خطره راپیښید ونکې وی چې ما باندې به هم څوک حمله اوکړی. خو الله ﷻ داسې ذات دې چې هغه ته هیڅ وخت د هیچا نه دغسې خطره نشی راولاړیدې. والله اعلم.

تمت سورة الشمس بحمدالله ۲٤شعبان ۱۳۹۱هجری

| اياتونه | | سورة الليل مكية وهي احدي وعشرون اية وركوعا واحدا | | ركوع گاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۲۱ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۱ |

وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى ① وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى ②

قسم دې په شپه | کله چې خوره شی | او قسم دې په ورځ | کله چې روښانه شی |

قسم دې په شپه چې راخوره شی | ..............او [قسم دې] په ورځ چې روښانه شی

وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى ③ إِنَّ سَعْيَكُمْ

او قسم دې په هغه ذات | چې پیدا ئې کړو | نر | او ښځه | بیشکه چې کوششونه ستاسو |

او [قسم دې] په هغه ذات چې نر او ښځه ئې پیدا کړی دی | ............چې بیشکه ستاسو کوششونه

لَشَتّٰى ④ فَأَمَّا مَنْ أَعْطٰى وَاتَّقٰى ⑤

خامخا مختلف دی | پس هر چې دې | هغه څوک | چې ورئې کړو [مال] | او خان ئې اوساتو دبدئ نه |

مختلف دی | ............نوچاچې [دمال حقونه] ورکړل | ............او پرهیزګار شو

وَصَدَّقَ بِالْحُسْنٰى ⑥ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْيُسْرٰى ⑦

او رښتینی ئې اومنله | نیکی | نو آسانی به پیدا کړو مونږ هغه ته | دپاره دآسانئ لارې |

او دښائسته دین تصدیق ئې اوکړو | ............ نو مونږ به ورته د آسانئ لاره آسانه کړو

وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰى ⑧ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنٰى ⑨

او هر چې دی | هغه څوک | چې بخل ئې اوکړو | او بې پروائی ئې اوکړه | او دروغ ئې اوګڼرله | نیکی |

او چا چې شومتیا اوکړه | او بې پروا شو | ............اود ښائسته دین نه ئې انکار اوکړو

فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى ⑩ وَمَا يُغْنِيْ عَنْهُ مَالُهٗۤ إِذَا

نو آسانتیا به پیدا کړو مونږ هغه ته | دپاره دسختئ لارې | او پکار به رانشی دهغه مال خپل | کله چې

نو مونږ به ورته دسختئ لار مخکښې کړو | ............اودده مال به دده هیچرې پکار رانشی

تَرَدّٰى ﴿۱۱﴾ اِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدٰى ﴿۱۲﴾ وَاِنَّ لَنَا لَلْاٰخِرَةَ

| هلاك شي هغه | بيشكه زمونږ په ذمه دى | خامخا لار ښودل | او بيشكه مونږ لره دي | خامخا آخرت

هركله چې دې مر شى | بيشكه هدايت كول زمونږ كار دې | .........او آخرت او دنيا دواړه زمونږ په

وَالْاُوْلٰى ﴿۱۳﴾ فَاَنْذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظّٰى ﴿۱۴﴾ لَا يَصْلٰهَآ اِلَّا

| او دنيا | نو يروم زه تاسو | د اور نه | چې لمبې وهى | نۀ به ننوزى هغې ته | مگر |

قبضه كښې دى | نوزه تاسو دهغه لمبې وهونكې اور نه يروم | چې هغې ته به هغه

الْاَشْقَى ﴿۱۵﴾ الَّذِىْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ﴿۱۶﴾ وَسَيُجَنَّبُهَا

بدبخته سړې | هغه | چې دروغ ئې اوگڼړو | او مخ ئې واړوؤ | او لرې به ساتلې كيږى دهغې نه |

بدنصيبه داخليږى | چې انكار ئې كړې دې | او مخ ئې اړولې دې | اوهغه نيكان

الْاَتْقَى ﴿۱۷﴾ الَّذِىْ يُؤْتِىْ مَالَهٗ يَتَزَكّٰى ﴿۱۸﴾ وَمَا لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ

پرهيزگار انسان | هغه | چې وركوى | مال خپل | دپاره دپاك كيدو | او نۀ وى د هيچا | په هغه باندې |

به ترې نه بچ ساتلې شى | چې خپل مالونه دخان دپاكولو دپاره [د الله په لار كښې] وركوى | او دۀ سره چا

مِنْ نِّعْمَةٍ تُجْزٰٓى ﴿۱۹﴾ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْاَعْلٰى ﴿۲۰﴾

څه احسان | چې خلاصوى بدله دهغې | مگر دپاره د لټولو | درضا درب خپل | چې لوئ دې |

احسان كړې نه وو | چې بدل ئې خلاصولو | خو دخپل لوئې رب رضامندى ئې لټوله

وَلَسَوْفَ يَرْضٰى ﴿۲۱﴾

او خامخا به هغه راضي وى [دهغه نه] |

اوډير زر به [دخپل رب نه] راضى شى ۔

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په شپه باندې چه كله هغه خوره شى. او په ورځ باندې، چه هغه روښانه شى. او په هغه ذات باندې، چه نر او ښځه ئې پيدا كړل. چه په حقيقت كښې ستاسو كوششونه مختلف قسمه دى پس هغه چا چه (د الله تعالى په لاره كښې مال) وركړو، او تقوىٰ ئې اختيار كړه. او ځائسته خبره ئې په زړه سره اومنله نو مونږ به هغه دپاره د آرام ځائې ته رسيدلو كښې تيارى اوكړو او هرچه هغه كس دې، چه د كنجوسئ نه ئې كار واخستلو او(د الله تعالى نه ئې) بے نيازى اختيار كړه. او د ټولو نه ځائسته خبره ئې دروغ اوگڼړله. نومونږ به هغه دپاره دتكليف ځائې ته رسيدلو كښې تيارى اوكړو اوكله چه داسې سړې د تباهئ كندې ته غورزيږى، نو د دۀ مال به دده هيڅ پكار رانشى. دا رشتيا دى، چه لاره ښودل زمونږ په ذمه دى. او دا هم رشتيا دى، چه آخرت او دنيا دواړه زمونږ په قبضه كښې دى لهٰذا ما تاسو ديو لمبو والا اور نه خبرداره كړې يئ په دې اور كښې به بل څوک نه، هم هغه بدبخت داخليږى. چاچه حق لره دروغ گڼړلې وى، او مخ ئې اړولې وى او ددې نه به هغه پرهيزگار سړې لرې كړې شى. چه خپل مال د پاكوالى حاصلولو دپاره (د الله تعالى په لاره) كښې وركوى حالانكه په هغه باندې د چا هيڅ څه احسان نه وو، چه

دهغې بدله ئې ورکوله. البته هغه صرف د خپل پروردګار رضامندۍ غواړي، چه د هغه (پروردګار) شان ډیر اوچت دې، یقین اوکړه، داسې سړې به لږدې ده چه خوشحاله شي.

**خلاصه تفسیر**

﴿وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ﴾ [قسم دې په شپه کله چه هغه] نمر لره او ورځ لره [پټ کړي ﴿وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ﴾ او] قسم دې [په ورځ کله چه هغه روښانه شي ﴿وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ﴾ او] قسم دې [په هغه] ذات [چاچه نر اوماده لره پیداکړه] مراد الله تعالی دې وړاند جواب دقسم دې چه ﴿إِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتَّىٰ﴾ بیشکه ستاسو کوششونه] یعنی عملونه [مختلف دی] اودغه شان ئې ثمرات هم مختلف دی ﴿فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَاتَّقَىٰ﴾ [پس چاچه] دالله تعالی په لاره کښې مال [ورکړو اوالله تعالی نه وویریدو ﴿وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ﴾ اوښه خبره] یعنی دین اسلام ئې [رښتونې وګڼړلو ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَىٰ﴾ نو مونږ به ده لره د راحت دځیز دپاره سامان ورکړو] دراحت دځیز نه نیك عمل اوپه واسطه دنیك عمل جنت مراد دې چه دیسر سبب اومحل دې په دې وجه یسری ونیلې شو ورنه دیسری معنی ده اسان ځیز ﴿وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَىٰ﴾ [اوچاچه] دواجبو حقوقونه [بخل وکړو او] په خائې دخدائې دَ ویرې نه [بې پرواهي اختیار کړه ﴿وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَىٰ﴾ او ښه خبره] یعنی دین اسلام [لره ئې دروغژن کړلو ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَىٰ﴾ نو مونږ به ده ته دتکلیف دشی دپاره سامان ورکړو] دتکلیف دشی نه بد عملِ اوپه واسطه دبد عمل دوزخ مراد دې چه دعسر سبب اومحل دې په دې وجه دغې ته ئې عُسر وئیلو اودسامان ورکولو نه مراد دواړه خایه دادې چه ښهٔ یابد کار دده دپاره اسان شی اوبې تکلفه ترې نه بیا کیږی اودغسې اسباب جمع شی بیا نیك عملونه سامان دجنت کیدل اوبد عملونه سامان ددوزخ کیدل ظاهر دی په حدیث کښې دی امامن کان من اهل السعادة فسیسر لعمل اهل السعادة وکذا في الشقاوة(۱) څوك چه نیك بختو عملونه وی نو ده ته دنیك بختونه اسان کړې شی اودغه شان څوك چه بدبخت وی هغهٔ ته دبدبختو [او] وړاندې دصاحب عسری دحال ذکردې چه ﴿وَمَا يُغْنِي عَنْهُ مَالُهُ إِذَا تَرَدَّىٰ﴾ [دده مال به دده هیڅ په کار رانهٔ شی هر کله چه هغه برباديږی] دبربادۍ نه مراد جهنم ته تلل دی ﴿إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ﴾ [واقعی زمونږ په ذمه] دخپلې وعدې مطابق لار خودل دی پس دغه مونږ په پوره طور سره خودلې ده بیا چا دایمان اواطاعت لار اختیار کړه چه ذکر ئې په مَنْ أَعْطَىٰ الخ کښې شوې دی اوچا دکفر اومعصیت لار اختیار کړه چه ذکر ئې په مَنْ بَخِلَ الخ کښې شوې دې [او] چه څنګه لار یوسړې اختیار کړی هغه شان ثمره به هغهٔ ته ورکړو ځکه چه ﴿وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَىٰ﴾ [زمونږ په قبضه کښې دې اخرت اودنیا] یعنی په دواړو کښې زمونږ حکومت دې په دې وجه په دنیا کښې مونږه احکام مقرر کړل اوپه اخرت کښې به په مخالفت اوموافقت باند جزا اوسزا ورکړو چه بیان ئې دوه خایه په سَنُيَسِّرُهُ کښې شوې دې وړاند په طور دصفایۍ اووضاحت ارشاد دې چه ماکومې تاسو ته دمختلفو عملونو مختلفې سزاګانې ښودلې دی ﴿فَأَنذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظَّىٰ﴾ [نو زهٔ تاسو لره دیو لمبو وهونکی اور نه وویروم] په کوم چه جمله فَسَنُيَسِّرُهُ

(۱) صحیح البخاري کتاب الجنائز ،باب موعظة المحدث عند القبر [ج:۱ص:۱۸۲] و صحیح مسلم کتاب القدر، باب کیفیة خلق الآدمي فی بطن امه ..... إلخ [ج:۲ص:۳۳۳]

لِلْعُسْرٰى دلالت كوي چه ايمان اواطاعت چه ذكر ئې په أَعْطٰى الخ كښې دې اختيار كړئ ددغې اور نه بچ شئ اود كفر اومعصيت چه ذكر ئې په بَخِلَ الخ كښې دی په اختيارولو دوزخ ته مه ځئ خكه چه دغې ته دَ تللو اونه تللو دغه اسباب دی چنانچه وړاند ددې وضاحت دې چه ﴿لَا يَصْلٰهَآ اِلَّا الْاَشْقَى ۝ الَّذِيْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ۝﴾[په دې كښې به ] دهميشه دپاره [هغه بدبخت داخليږی كوم چه] حق دين لره [دروغژن كړو ] اوددې نه ئې[ روګرداني وكړه ﴿وَسَيُجَنَّبُهَا الْاَتْقَى ۝﴾ اوددې نه به داسې سړې لرې ساتلې شی كوم چه لوئې پرهيزګار دې ﴿الَّذِيْ يُؤْتِيْ مَالَهٗ يَتَزَكّٰى ۝﴾كوم چه خپل مال محض په دې غرض سره وركوی چه] دګناهونو نه[پاك شی] يعنی محض دحق رضا دده مطلوب وې ﴿وَمَا لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ مِنْ نِّعْمَةٍ تُجْزٰٓى ۝﴾[اوبغير دخپل عالی شان پروردګار درضا جوئ نه] چه دا دَ ده مقصود دې [دده په ذمه دچا احساس نه وو چه ] په دې وركړو سره [دده بدله وركول ] مقصود [وی] په دې كښې نهايت مبالغه ده په اخلاص كښې ځكه چه دچا بدله خلاصول هم فی نفسه مستحب او غوره اوموجب دثواب دی مګر په فضيلت كښې دابتدائی احساس برابر نه دی پس هر كله چه ددې سړی د الله تعالی په لاره كښې خرچ كول ددې نه هم مبرا دی نو دريا وغيره دَ ګناه داميزش نه به په درجهٔ اولی بری وی اوداكمال اخلاص دې [او] دداسې سړی دپاره پورته صرف دجهنم نه بچ كيدل مذكور وو وړاند داخرت دنعمتونو حاصليدل فرمائی چه ﴿وَلَسَوْفَ يَرْضٰى ۝﴾ [دا سړې به ډير زر خوشحاله شی] يعنی په اخرت كښې به ورته داسې داسې نعمتونه ملاؤ شی په كومو سره چه به ده ته دائمی خوشحالی نصيب شی]

## معارف اومسائل

﴿اِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتّٰى ۝﴾ داداسې جمله ده چه په سورت انشقاق كښې ذكرشوې ده. ﴿اِنَّكَ كَادِحٌ اِلٰى رَبِّكَ كَدْحًا ﴾[1] دَ كوم تفسير چه وړاندې تيرشوې دې. مطلب دا چه انسان دَ خپل فطرت نه دَ څه نا څه كاردپاره سعی عمل او كوشش كښې اخته وی مګر بعض خلق په خپل محنت او كوشش سره دَ هميشه راحت سامان تياره وی اوبعض نور په خپل همدغه محنت سره دَ هميشه عذاب اخلې لكه چه په حديث كښې دی هرانسان چه كله سحر پاسی نوهغه خپل نفس په تجارت باندې لګوی. څوك په دې تجارت كښې كامياب شي او خپل خان دَ آخرت دَ عذاب نه آزاد كړی اوڅوك په كښې داسې هم وی چه دَهغه محنت سعی اودَ هغه عمل هم دَهغه دَ هلاكت سبب جوړيږی. مګر دَعقل كاردادې چه اول دې دَخپل كوشش اوعمل انجام باندې سوچ اوكړی دَكوم عمل په انجام كښې چه دَ وقتی آرام اوخوند وی خودَ دائمی عذاب او خفګان سبب وی هغې ته دې نه ورځی.

**د سعی اوعمل په اعتبارسره د انسانانو دوه ډلې:** مخكښې قرآن كريم دَ سعی اوعمل په اعتبارسره دَ انسانانو دوه ډلې خودلی دی اودَ دواړو نی درې درې صفتونه ذكر كړل. اولنی ډله دَ كاميابو خلقو ده دَهغوی درې عملونه دادی: ① ﴿فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى﴾ ② ﴿وَاتَّقٰى ۝﴾ ③ ﴿وَصَدَّقَ بِالْحُسْنٰى ۝﴾ يعنی چا چه دَ الله تعالی په لار كښې مال خرچ كړو اودَ الله تعالی نه په ويريدوسره دَ ژوند په هره شعبه كښې دَهغه دَ احكامو دَ خلاف ورزئی كولونه بچ كيدو او چاچه دَ ښه خبرې تصديق اوكړو. دَ ښه خبرې نه مراد كلمه ايمان لا الـه الا الله ده. [كما قال ابن عباس، والضحاك والسدی][2] دَدې كلمې د

---

[1] ) ترجمه:- ته خپل رب ته د رسيدو پورې په كار كښې اخته اوسه.

[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۲۰ص:۸۳]

تصدیق نه مراد ایمان راوړل دی اوسره دَدې چه ایمان دَ ټولو عملونو روح او دَ ټولونه مقدم دې. دَدې دلته دَ مؤخر کولو وجه کیدې شی دا وی چه دې ځائی ذکر دَ سعی عمل او کوشش دې اوهغه هم اعمال دی. ایمان خو یوقلبی څیزدې چه په زړه کښې دَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ تصدیق اوکړی اوبیا په ژبه باندې هم دَدې اقرار دَشهادت دَ کلمې په ذریعه اوکړی. او ښکاره خبره ده چه په دې دواړو څیزونو کښې څه بدنی محنت نشته اونه دا ځوك دَ اعمالو په فهرست کښې شمیری.

دَ دویمې ډلې ئې هم دَ دریو عملونو ذکر اوفرمائیلو ﴿وَأَمَّا مَنۢ بَخِلَ ۝٨ وَٱسْتَغْنَىٰ ۝٩ وَكَذَّبَ بِٱلْحُسْنَىٰ﴾ یعنی چا چه دَالله تعالی په لار کښې دَ مال خرچ کولونه بخل اوکړو چه فرض زکوة او صدقات واجبه هم دَ ادا کولو نه ډډه اوکړه اودَ الله تعالی نه ویریدلو اودَهغه طرف ته دَ ښکته کیدلو اودَ اطاعت اختیارولوپه ځائی دَهغه نه بې پرواهی اوبې رخی اختیارکړه اوښه خبره یعنی کلمې دَ ایمان تکذیب ئې اوکړو. دَدې دواړو ډلو نه دَ اولنئی ډلې باره کښې فرمائی ﴿فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلْيُسْرَىٰ﴾ لِلْيُسْرَىٰ دَ يُسْرَىٰ لفظی معنی ده آسان او آرام ورکونکې څیز په کوم کښې چه مشقت نه وی دې نه مراد جنت دې. دغه شان دَدې په مقابله کښې دَ دویمې ډلې متعلق فرمائیلی ﴿فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلْعُسْرَىٰ﴾ عُسْرَىٰ لفظی معنی مشکل اوتکلیف ورکونکې څیز ده دې نه مراد جهنم دې. اودَدواړو جملو معنې دادی چه کوم خلق خپل محنت اوسعی په اولنو دریو کارونو کښې لګوی یعنی دَ الله تعالی په لار کښې خرچ، دَالله تعالی نه وریدل اودَ ایمان تصدیق. دغه خلقو به مونږ یسرىٰ یعنی اعمال جنت آسان کړو اوکوم خلق چه دغه عمل او سعی په نورو دریو کارونو کښې لګوی دَهغوی به مونږ عسرىٰ یعنی اعمال جهنم آسان کړو. دلته په ظاهره دَ مکان دَ تقاضا مطابق داسې وینا کول وو چه دَهغوی دَپاره به اعمال جنت یا اعمال دوزخ آسانولې شی ځکه چه آسان یا مشکل کیدل هم دَ اعمالو صفت کیدې شی نوپخپله ذوات اواشخاص نه آسانیدې شی اونه مشکل کیدې شی. مګر قرآن کریم دَدې تعبیر داسې اوفرمائیلو چه پخپله دَ دغه خلقو ذات او وجود ددغه اعمالودَپاره آسان کړې شی. په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه دَهغوی طبیعتونه اومزاجونه به داسې جوړ کړې شی چه دَاولنئی ډلې دَپاره به اعمال جنت دَهغوی طبیعت جوړشی ددې خلاف عمل کولو کښې به هغوی تکلیف محسوس کوی. دغه شان دَ دویمې ډلې مزاج به داسې جوړ کړې شی چه دوی ته به هم اعمال جهنم خوښیږی اوهم په هغې کښې به ورته راحت ملاویږی. دَ جنت دَاعمالونه به ئې نفرت کیږی. دَ دې دواړو ډلومزاجونوکښې دا کیفیت پیدا کول په دې سره تعبیر کړې شو چه دوی پخپله دَ دغه کارونودَ پاره آسان شو. په یومرفوع حدیث کښې ددې تائید داسې راغلې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی [اعملوا فكلّ ميسر لما خلق له اما من كان من اهل السّعادة فسييسر لعمل السعادة واما من كان من اهل الشقاوة فسييسّر لعمل اهل الشقاوة] [رواه البخاری ومسلم عن علی رضي الله عنه][1] یعنی تاسوچه کوم عمل کوئی نو بس کوئی ځکه چه دَ هریوسړی دَپاره هم هغه کار آسان کړې شوې دې دَ کوم دَپاره چه هغه پیدا کړې شوې دې ځکه چه څوك نیك بخت خوش نصیب دی نود هغوی دَپاره دَ اهل سعادت والا اعمال طبعی رغبت جوړیږی او څوك چه اهل شقاوت بدنصیب یعنی اهل جهنم دی دَهغوی دَپاره هم دَاهل شقاوت والا اعمال کول مزاج او

[1]) صحيح البخاري كتاب الجنائز ،باب موعظة المحدث [ج:١ص:١٩٢] و صحيح مسلم كتاب القدر، باب كيفية خلق الآدمي في بطن امه ..... إلخ [ج:٢ص:٣٣٣]

طبیعت جوړېږي مګر دا دواړه څیزونه دَ خپل خدائی ورکړې شوي اختیار استعمالولو په نتیجه کښې ملاوېږي په دې وجه په دې باندې دَثواب اوعذاب ترتب مستبعد نه ښي وښيلې. دې نه پس بدنصیب ډلې اهل جهنم ته تنبیه ده ﴿وَمَا يُغْنِىْ عَنْهُ مَالُهٗۤ اِذَا تَرَدّٰى﴾ یعني دَ مال په خاطر دې کم بخت په حقوق واجبه کښې هم بخل کولو. دا مال به په ده باندې دَ عذاب راوړلو وخت کښې دَ ده هیڅ په کار رانشي. دتَرَدّٰی لفظي معنی په کنده کښې پریوتل اوهلاکیدل ده. مراد دادې چه دَمرګ نه پس په قبر کښې اوبیا په قیامت کښې کله هغه د جهنم په کنده کښې پریوځي نودامال به هغوی ته هیڅ ګټه ورنه کړي.

﴿لَا يَصْلٰىهَاۤ اِلَّا الْاَشْقَى ۙ الَّذِىْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى﴾ دادَ جهنم دَ اور دَ حال بیان دې چه په دې کښې به نه داخلیږي مګر هغه سړې کوم چه بدنصیب دې اوچا چه دَالله اودَ هغه دَ رسول ﷺ تکذیب کړې. اودَهغوی دَ اطاعت نه ئې مخ اړولې اودا ښکاره ده چه دَالله او رسول تکذیب کونکې صرف هم کافر کیدې شي. په دې سره په ظاهره دا خبره معلومیږي چه مؤمن ګناهګار کوم چه دَ تکذیب مجرم نه دې جهنم ته به نه ځي، حالانکه دَ قرآن اوحدیث بې شمیره نصوص دَدې نه ډك دي چه مؤمن هم کومه ګناه کوي که چرې هغه توبه اونه کړه یا دَچا په شفاعت یا په خاص رحمت سره هغه معاف نه کړې شو نوهغه به هم جهنم ته ځي اودَ خپلو ګناهونو سزا خوړلو پورې به جهنم کښې وي. البته د سزا خوړلونه پس به د جهنم نه راویستلې شي اوبیابه دَ ایمان په برکت په جنت کښې داخلیږي. په ظاهره ددې آیت الفاظ دَدې خلاف دي ځکه ضروري دي چه دَدې آیت مراد داسې وي چه د نورو قرآني آیاتونو او احادیث صحیحه خلاف نه وي. دَدې ډیره آسانه توجیه خوهغه ده کومه چه په خلاصه تفسیر کښې اخستې شوې ده چه دلته دَ دخول جهنم نه مراد هغه دخول دې چه دَهمیشه دَپاره وي اوداسې داخلیدل صرف دکافر پورې خاص دي. مؤمن به په څه نا څه وخت کښې دَخپلو ګناهونو دَ سزا خوړلونه پس دَ جهنم نه راویستې شي. علماء کرامو اومفسرین حضراتو دَ دې نه علاوه څه نور توجیهات هم بیان کړي دي هغه هم په خپل ځائی صحیح کیدې شي. په تفسیر مظهري کښې دَدې یوه توجیه دا ذکر شوې ده چه په دې آیت کښې اشقی او اتقي نه مراد عام نه دې بلکه هغه خلق مراد دي چه دَ حضورپاك په مبارکه زمانه کښې موجود وو. دهغه موجود خلقو نه یومسلمان باوجود دَګناه کیدو نه هم په برکت دَ صحبت دَ نبي ﷺ جهنم ته نه ځي.

**صحابه کرام ټول په ټول دَ جهنم نه محفوظ دي:** وجه داده چه اول خو په دې حضراتو کښې دَچانه هم دَ ګناه صادر کیدل ډیر شاذ او نادر شوي دي. اودَ آخرت دَ وېرې په وجه دَهغوی دَ حالاتونه دا لازم معلومیږي که دَچا نه څه ګناه شوې هم ده نوهغه به توبه کړې وي. بیا دَهغه دَ یوې ګناه په مقابله کښې دهغوی نیك اعمال دومره زیات دي چه دَهغې په وجه سره هم دغه ګناه معاف کیدې شي. لکه چه قرآن کښې دي ﴿اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ یعني نیك اعمال دَ بدو اعمالو کفاره جوړیږي اوپخپله د نبي ﷺ صحبت داسې عمل دې چه په ټولو نیکو اعمالو باندې غالب دې. په حدیث کښې دَ امت دَ صالحانو باره کښې راغلي دي [هم لا یشقی جلیسهم ولا یخاب انیسهما [صحیحین]([1]) یعني دا هغه خلق دي چا سره چه کیناستونکی شقي اونامراد کیدې نه شي

[1]) تفسیرالمظهري[ج:۱۰ص:۲۷۷] و صحیح البخاري كتاب الدعوات ،باب فضل ذكر الله تعالى (بإختصار) [ج:۲ص:۹٤۸] وصحیح مسلم كتاب الذكروالدعاء والتوبة باب فضل مجلس الذكر (بإختصار )[ج:۲ص:۳٤٤]

اوخوك چه دَدوى نه مانوس وى هغه محروم نه شى پاتې كيدې. نوچه كوم سړې دَ سيد الانبياء ﷺ جليس اوانيس وى هغه څنګه شقى كيدې شى. په دې وجه په احاديث صحيحه كښې دَدې تصريحات موجود دى چه صحابه كرام ټول په ټول دَ عذاب دَ جهنم نه خلاص دې. پخپله قرآن كريم كښې دَ صحابه كرامو باره كښې موجود دى ﴿ إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴾ يعنى دكوموخلقو دَپاره چه زمونږ دَ طرف نه حُسْنٰى مقدر شوې ده هغوى به دَ جهنم دَ اور نه لرې وى. او په يوحديث كښې ارشاد دې چه دَ جهنم اور به هغه سړې پورې نه لګى چاچه زه ليدلې يم. [ترمذي عن جابر ﷺ] (۱).

﴿ وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى ۝ الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّىٰ ﴾ دادَ اهل شقاوت په مقابله كښې دَ اهل سعادت دَ تقوىٰ اختيارونكو حضراتو دَ جزاء بيان دې چه كوم سړې دَاتقى دَ حق مكمل اطاعت كونكې وى اوهغه خپل مال دَالله تعالى په لاركښې صرف دَدې دَپاره خرچ كوى چه هغه دَ ګناهونونه پاك شى داسې سړې به دَ هغه جهنم دَ اور نه لرې ساتلې شى.

دَ آيت الفاظ خو عام دى كوم سړې هم چه دَ ايمان سره دَ الله تعالى په لاركښې مال خرچ كوى دَ هغه دَپاره دا بشارت اوزيرې دې ليكن دَ شان نزول دَ واقعې نه معلوميږى چه اصل مراددې لفظ اتقى نه حضرت صديق اكبر ﷺ دې. ابن ابى حاتم دَ حضرت عروه نه روايت كړې دې چه اووه مسلمانان داسې وو كوم چه دَ مكې كافرانو خپل غلامان جوړ كړى وو كله چه هغوى مسلمانانو شو نوهغوى ته به ئى قسم قسم تكليفونه او سزاګانې وركولې. حضرت صديق اكبر ﷺ خپل ډيرمال خرچ كړو هغوى يې دَ هغه كافرانو نه واخستل او آزادئى كړل په دې خبره باندې دا آيت نازل شو [مظهرى] (۲)

هم دَ دغه مناسب ايت آخرى جمله ده ﴿ وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُ مِن نِّعْمَةٍ تُجْزَىٰ ﴾ يعنى په كومو غلامانوچه صديق اكبر ﷺ دغه عظيم احسان اوكړو چه ډير دولت ئى خرچ كړو وائى خستل او آزاد ئى كړل دَهغوى څه پخوانې احسان هم په هغه نه وو دَ كوم په بدله كښې چه به ئى دا قدم اوچتولو بلكه ﴿ إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْأَعْلَىٰ ﴾ يعنى دَهغه مطلب دَ الله تعالى چه دَ اوچت شان والادې دَ رضانه بغير بل هيڅ نه وو.

مستدرك حاكم كښې دَحضرت زبير ﷺ نه نقل دى چه دَصديق اكبر ﷺ داعادت هم وو چه كوم مسلمان به ئى دَ كافرانو په لاس كښې قيد ليدلو هغه به ئى اخستلو او آزادولو به ئى اودا خلق به عموماً كمزورى وو. دَصديق اكبر ﷺ پلار حضرت ابوقحافه ﷺ هغه ته اووئيل چه كله ته غلامان آزاده وې نو دومره كار اوكړه چه داسې غلامان آزاده وه كوم چه طاقتور او بهادر وى دې دَپاره چه هغوى صبا ستا دَ دښمنانو مقابله اوكړى او ستا حفاظت اوكړې شى. حضرت صديق اكبر ﷺ اوفرمائيل زما مقصد دَدغه آزادو كړو شوو نه څه فائده حاصلول نه دى بلكه زه خو هغوى صرف دَالله تعالى دَ رضا دَپاره آزادوم. [مظهرى] (۳)

---

(۱) جامع الترمذي ، ابواب المناقب ماجاء في فضل من راى النبي ﷺ وصحبه

(۲) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۷۹ ، ۲۸۰] و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[۱۹۳۶۷]

(۳) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۷۹ ] و المستدرك للحاكم كتاب التفسير باب تفسير سورة والليل اذا يغشى رقم الحديث:[۳۹۰۳]

﴿ وَلَسَوْفَ يَرْضٰى ﴾ یعنی کوم سړی چه په خپل مال خرچ کولو کښې صرف دَ الله تعالی رضا ته او کتلِ خپله څه دنیاوی فائدې ته ئی اونه کتل نو الله تعالی به هم هغه په آخرت کښې راضي کوی او دَ جنت عجیبه او دائمی نعمتونه به ورته ورکوی. دَ شان نزول واقعه سره دَ دې آیاتونو دَ صدیق اکبر رضی الله عنه په شان کښې نازلیدل ثابت دی په دې وجه دا آخری کلمه دَ حضرتِ صدیق اکبر رضی الله عنه دپاره یو عظیم زیرې او اعزاز دې چه هغوی ته هم په دنیا کښې دَالله تعالی دَ طرف نه دَ راضی کیدلو زیرې واورولې شو.

تمت سورة الیل بحمدالله ۲۵ شعبان ۱۳۹۱ هجری

| ایاتونه | | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | سورة الضحی مکیة وهی احدی عشرة اٰیة ورکوعا واحدا | |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑪ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ① |

وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى ۝ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ

قسم دې په څاښت | او قسم دې په شپه | کله چې خوره شی | چې نه ئې پریښودې ته | رب ستا |

قسم دې دڅاښت په وخت | او په شپه هر کله چې دا راخوره شی | چې نه ته خپل رب پریخودې یې

وَمَا قَلٰى ۝ وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰى ۝

اونهٔ ناراضه شوې دې [ستانه] | او خامخا روستنې دور | بهتر دې | دپاره ستا | داولنی دورنه |

او نه درنه خفه شوې دې | ..........او ستا دپاره اخرت د دنیا نه ډیر بهتر دې

وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى ۝ اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيْمًا

او ډیر زر به درکړی تاله | رب ستا | پس ته به خوشحاله شې | آیا هغه پدیانه کړې ته | یتیم |

او ډیر زر به درته الله ﷻ دومره څه درکړی | چې راضی به شې | ...........ایا الله ﷻ ته یتیم

فَاٰوٰى ۝ وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى ۝ وَوَجَدَكَ

نوځانې ئې درکړو | اوپیدائی کړې ته | لار نهٔ پیژندونکې | نو لار ئې در اوخودله | اوپیدائی کړې ته |

بیانه وې پیدا کړې چه ځانې ئې درکړو | او بې لارې ئې پیدا کړې وې نو لار ئې درته سمه کړه | اومحتاجه ئې

عَآئِلًا فَاَغْنٰى ۝ فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ ۝ وَاَمَّا السَّآئِلَ

غریب | نو مالدار ئې کړې | نوهر چې دې یتیم | نو سختئ مهٔ کوه په هغه | او هر چې سوالګرې دې

پیدا کړې وې | نو مالدار ئې کړې | ..........نو یتیم ته قهر مه کوه | ..........او سوال کړې

فَلَا تَنْهَرْ ۝ وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۝

| نو مهٔ رټه هغه | او هر چې نعمت | د رب ستا دې | نو بیان کره [اظهار ئې اوکره] |

مه رټه | ..........اود الله ﷻ نعمت [چه پیغمبری ده] هر چاته بیانوه

**آسان ترجمه قرآن**

(اے پیغمبره) قسم دې د څاښت په وخت کښې رنړا بالدې. او په شپه بالدې، کله چه د هغې تیاره خوره شی چه ستا پروردګار نه ته پریخې ئې، او نه درنه خفه شوې دې او یقیناً روستو راتلونکې حالات

په ستا دپاره د مخکښنی حالاتو نه غوره وی او یقین اوکړه، چه نزدې ده، چه رب ستا تاته دومره درکړی، چه ته به خوشحاله شې. آیا تا هغهٔ یتیم نه وې موندلې، نو ځائې ئې درکړو تاته او ته ئې د لارې نه ناخبره اوموندلې، نو لاره ئې درته اوښودله او وې موندلې ته فقیر، نو غنی ئې کړې پس هر چه یتیم دې، نو ته په هغه باندې سختي مه کوه. او هرچه سوالګر دې، نو هغه لره رټه مه او هر چه نعمت دپروردګار ستا دې، نو د هغې تذکره کوه.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالضُّحٰى ۝ وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى ۝﴾ [قسم دې دورځې په رنړا اوپه شپه کله چه هغه قرار ونیسی] د قرار نیولو دوه معنی کیدې شی یوه حقیقی یعنی ددې د تیارې کاملیدل ځکه چه دشپې تیارهٔ په مزه مزه زیاتیږی چه څهٔ شپه تیره شی نو مکمله شی دویمه مجازی یعنی دسا والا په کښې دې اودهٔ کیدل اود آوازونو اوشورشغب په دې کښې خاموشه کیدل وړاند جواب دقسم دې ﴿مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى ۝﴾ [چه ستاسو پروردګار نه تالره پرېښودې دې اونهٔ تانه بیزاره شوې دې] ځکه چه اول خو تانه څهٔ خبره داسې نهٔ ده شوې دویم انبیاء ﷺ لره الله تعالی ددې نه محفوظ او معصوم جوړ کړی دی پس تهٔ دکفارو په خرافاتو اولغویاتو باند غمژن کیږه مه کوم چه دځو ورځو وحی د تاخیر په سبب ئې دا ووئیل چه دهٔ لره ددهٔ خدائې پرېښودې دې تهٔ به برابر په نعمت سره مشرف کیږی اودا شرف اوکرامت خو ستا دپاره په دنیا کښې دې ﴿وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰى ۝﴾ [ اواخرت ستا دپاره ددنیا نه په ډیرو درجو غوره دې ] پس هلته به تاته دې نه زیات نعمتونه ملاویږی ﴿وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى ۝﴾ [اوډیر زر به الله تعالی تالره ] په اخرت کښې ډیر نعمتونه [درکړی پس تهٔ به ] په هغه ورکړو سره [خوشحاله شې ] اوپه څهٔ چه ئې قسم خوړلې دې دهغې ددې خوشخبرئ سره دا مناسبت دې چه لکه څنګه الله تعالی په ظاهره دخپل قدرت اوحکمت مختلفې نښې ظاهروی په ورځ پسې شپه اوشپه پسې ورځ لره راولی دا کیفیت دباطنی حالاتو وګنړه کهٔ دنمر د رنړا نه پس دشپې دتیارې راتلل دالله تعالی دخفګان او نارضګئ دلیل نهٔ دې اونهٔ ددې څهٔ ثبوت دې چه ددې نه پس به دورځې رنړا چرته نهٔ وی نو څو ورځې په منع کیدو سره داولې ګنړلې شی چه نن صبا خدائې دخپل منتخب شوی پیغمبر نه خفه اوناراضه شو اودهمیشه دپاره دوحی دروازه بنده شوه داسې وئیل خو دخدائې تعالی په علم محیط اوحکمت بالغه باند اعتراض کول دی ګویا هغه خبر نهٔ وو چه چالره زهٔ نبی جوړوم هغه به اننده ددې اهل ثابت نهٔ شی نعوذ بالله منه وړاند په څنو نعمتونو سره دذکر شوی مضمون تائید دې یعنی ﴿اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيْمًا فَاٰوٰى ۝﴾ [ ایا الله تعالی تالره یتیم نهٔ وو موندلې بیا ئې [تالره ] ځائې درکړو] چه تهٔ دمور په ګیډه کښې وې ستاپلار وفات شو الله تعالی ستا په نیکهٔ سره پرورش وکړو دځائې درکولو مطلب دادې ﴿وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى ۝﴾ [او الله تعالی تالره ] دشریعت نه [بې خبره بیاپیداکړو پس ] تاته ئې دشریعت [لار وښودله ] لکه داقول دالله تعالی دې ﴿مَا كُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْاِيْمَانُ﴾ الخ[1] اودوحی نه وړاندې دشریعت تفصیل نه معلومیدل څهٔ عیب نهٔ دې ﴿وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَاَغْنٰى ۝﴾ [اوالله تعالی تالره ناداره بیاپیداکړو پس مالدارئې جوړ کړې ] داسې چه حضرت خدیجه رضی الله عنها په مال کښې تا په طور دمضاربت تجارت

[1]) ترجمه:- تاته دا خبرهم نه وو چې کتاب څه څيزدې او نه درته دا خبر وو چې ایمان څه څیز دې؟

وکړو په دې کښې نفع وشوه بيا حضرت خديجه ﵂ تاسو سره نکاح وکړه اوخپل ټول مال ئې حاضر کړو مطلب داچه په تاسو دابتداء نه انعامات کیږی اننده به هم کیږی په دغو انعاماتو دشکر ادا کولو حکم دې چه کله مونږ تاته داانعامات درکړی دې ﴿فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ﴾ [ نوتهٔ ددې په شکر یه کښې [په يتيم سختي مهٔ کوه ﴿وَاَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْ﴾اوسوال کوونکي مهٔ رټه ] داخو شکر فعلی دې ﴿وَاَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ﴾ [اودخپل رب د [ذکرشوو] انعاماتو تذکره کوه]

## معارف او مسائل

**شان نزول** :: ددې سورت د نازليدو د سبب باره کښې بخاری او مسلم کښې د جندب بن عبدالله په روايت راغلی دی[1] چې يو ځل د نبی کريم ﷺ يوه ګوته مبارکه زخمی شوه دهغې نه وينه جاری شوه نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې:

ان انت الا اصبع دميت وفی سبيل الله ما لقيت

ته خو يوه ګوته ئې چې وينې شوې او تاته رسيدلې تکليف د الله ﷻ په لار کښې دې.
جندب ﵁ دا واقعه بيان کړه نو وې فرمائيل چې دې نه پس څو ورځې جبرائيل ﵇ څه وحی راؤنه ړه نود مکې مشرکانو داپيغور ورکول شروع کړلو چې محمد ﷺ لره دَ هغوئ خدائې پريخودو اوترې ناراض شو، په دغه موقعه دا سورت ضحی نازل شو. د جندب ﵁ يو روايت چې په بخاری کښې دې په هغه کښې يو دوه شپې تهجدو دپاره د نه پورته کيدو ذکر دې[2]، وحی راتلو کښې د تاخير ذکر په کښې نشته، او ترمذی کښې د تهجدو دپاره د يو دوه شپو د نه پورته کيدو ذکر نشته صرف په وحی کښې د ډيل راتلو ذکر دې، ښکاره خبره ده چې په دې دواړو کښې بې سمونی نشته چې دواړه خبرې دې راپيښې شوی وی. راوی کله يو بيان کړو کله بله. او دا پيغور ورکوونکې دابی لهب ښځه ام جميل وه. لکه چې په نورو روايتونو کښې دی[3] او د وحی د روستوالی واقعات څو ځل راپيښ شوی دی. يو دقرآن کريم دنازليدو په شروع کښې چې د فترت وحی په زمانه ياديږی. دا د ټولو نه زياته اوږده وه، بله واقعه هم هغه وخت راپيښه شوه کله چې يهودو يا مشرکانو د رسول الله ﷺ نه دَ روح د حقيقت باره کښې سوال اوکړو او نبی کريم ﷺ ورته بيا د جواب ورکولو دپاره اوفرمائيل خو د ان شاء الله نه وئيلو په وجه څو ورځې د وحی سلسله بنده پاتې شوه په دې باندې مشرکانو دا پيغور ورکول شروع کړل چې د محمد ﷺ رب د نبی کريم ﷺ نه خفه شوې دې. او نبی کريم ﷺ ئې پريخودو. دا ټولې واقعې ددې سورت دنازليدو سبب کيدیشی او دا ضروری نه ده چې ټولې دې هم په يوزمانه کښې راپيښې شوی وی بلکه وړاندې وروستو هم کيدیشی.
﴿وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰى﴾ دلته که د آخرت نه مراد قيامت واخستې شی نو د ﴿اُوْلٰى﴾ نه به مراد دنيا واخستې شی په دې بنا ئې تفسير هغه دی چې د تفسير په خلاصه کښې پورته راغلې دې . هغه داسې چې دا پيغور درکوونکی کافران او مشرکان به په دنيا کښې خوب اووينی چې

---

[1]) صحيح البخاري كتاب التفسير، باب تفسير سورة الضحٰى [ج:۲ص:۷۳۸، ۷۳۹] و صحيح مسلم كتاب الجهاد، باب ما يلقى النبي ﷺ من اذى المشركين والمنافقين [ج:۲ص:۱۰۹] و جامع الترمذي ابواب التفسير، باب من تفسير سورة الضحٰى [ج:۲ص: ۱۷۲]
[2]) صحيح البخاري كتاب التفسير، باب تفسير سورة الضحٰى [ج:۲ص: ۷۳۹]
[3]) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۹۴۵]

دوئ بيخي په غلطئ وو ، مونږ دې پسې د آخرت دانعاماتو هم تاسو ﷺ سره وعده کوؤ چې تاسو ته به هلته ددنيا نه زيات انعامات درکولې شي . او دا هم څه لرې خبره نه ده چې دلته آخرت دهغې په لفظي معنی کښې واخستې شي يعنی روستنی حالت او د ﴿أُولى﴾ نه رومبی حالت مراد واخستې شي نو دآيت مبارک مطلب به دا شي چې په تاسو ﷺ به د الله ﷻ انعامات په مخه داسې زياتيږي چې هر روستې حالت به د اول حالت نه زيات غوره وی په دې کښې علوم او معارف او دالله ﷻ د نزديکت په درجو کښې ترقی درکول هم داخل دی او ددنيا معاشی مسئلې او عزت او حکومت هم .

﴿وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ﴾ يعنی ستاسو رب به تاسو ﷺ ته دومره درکړی چې تاسو ﷺ به راضی شئ ، په دې کښې د الله ﷻ رسول ﷺ ته څه خاص څيز ورکول اونه ياکل څکه ئې مطلب عام شو چې ستاسو ﷺ د خوښې هر څيز به تاسو ته دومره درکړی چې تاسو ﷺ به راضی شئ . د هغوئ د خوښې په څيزونو کښې ددين اسلام ترقی په عام ډول ددين اسلام په دنيا خوريدل بيا د امت هر ضرورت او پخپله د هغوئ په دښمنانو باندې غالب راتلل د هغوئ په ملک کښې د الله ﷻ کلمه پورته کول او حق دين خورول ټول داخل دی . په حديث پاک کښې راغلی دی چې کله دا آيت مبارک نازل شو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې : [اذالا ارضی وواحد من امتی فی النار]

يعنی چې خبره داسې شوه نو زۀ به تر هغې نه راضی کيږم چې په جهنم کښې مې يو امتی هم پاتې نشی [ قرطبی ][1] او د علی کرم الله وجهه په روايت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ به زما د امت باره کښې زما شفاعت قبول کړی تردې چې الله ﷻ به فرمائی چې :

[رضيت يامحمد ﷺ] يعنی ائې محمد ﷺ اوس ته تاسو راضی يئ نو زه به عرض اوکړم چې [يا رب رضيت] يعنی ائې الله ﷻ ! زه راضی يم[2] .

او په صحيح مسلم کښې د عمرو بن العاص ؓ په روايت راغلی دی چې يوه ورځ نبی کريم ﷺ هغه آيت مبارک تلاوت اوفرمائيلو چې د ابراهيم ؑ باره کښې دې چې : ﴿فَمَنْ تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي ۖ وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾[3]

بيائې بل آيت مبارک تلاوت کړوت چې په کښې د عيسی ؑ قول دې چې : ﴿إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ﴾[4]

بيا هغوئ ؑ ددعا د پاره لاسونه پورته کړل . او زاری او فرياد ئې اوکړو او بيا ئې اوفرمائيل چې : [ اللهم امتی امتی ] الله ﷻ جبرائيل ؑ اوليږلو چې دهغوئ ﷺ نه تپوس اوکړی چې تاسو ﷺ ولې ژاړئ ؟ [او دائې هم اوفرمائيل چې مونږ ته اګر چې هرڅه معلوم دی ] . جبرائيل ؑ

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۹۶] و شعب الإيمان للبيهقي، كتاب حب النبی ﷺ فصل فی بيان النبی ﷺ و فصحاته. رقم الحديث[۱۳۷٤]

[2] ) المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث:[۲۱۳۹]

[3] ) ترجمه:- بيا چې کوم کس زما په لار تګ کوی هغه زما دې او کوم کس چې زما حکم نه منی نو ته ډير مغفرت والا او ډير رحمت والا ذات يئ.

[4] ) ترجمه:- که ته دوئ ته سزا ورکړې نو دا ستا بندګان دی.

راغلو او تپوس ئې اوکړو ، نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چې زه د خپل امت بخښنه غواړم ، الله ﷻ جبرائيل علیه السلام ته اوفرمائيل چې لاړ شه او وايه چې الله ﷻ تاسو ﷺ ته فرمائي چې زه به تاسو ﷺ ستاسو ﷺ د امت باره کښې راضی کړم او تاسو ﷺ نه به نه خفه کيږم.[1]

د کافرانو دبيان شوی پيغور په جواب کښې چې رسول الله ﷺ باندې په دنيا کښې او آخرت کښې د الله ﷻ د انعامونو اجمالي بيان راغلې دې. په دې کښې ددې لړ شان تفصيل د درې خاصو نعمتونو په ذکر سره بيان کړې شو ېدې.

**اول**: ﴿أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ﴾ يعنی مونږ تاسو ﷺ لره يتيم بيا موندلئ چې د والد صاحب وفات مو ستاسو دپيدا کيدو نه وړاندې شوې وو او هغوئ هيڅ مال او جائيداد هم نه وو پريخودې چې ورسره ستاسو پالنه کيدې شوه نو مونږ ستاسو ﷺ مقام جوړ وو يعنی ستاسو د نيکه عبدالمطلب او وريسې د ترهٔ ابی طالب په زړونو کښې مو ستاسو داسې مينه واچوله چې د نسلی اولاد نه ئې زيات ستاسو پالنه کښې کوشش کوؤ.

**دويم نعمت**: ﴿وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَىٰ﴾ د ضال معنی ګمراه هم ده او ناواقفه ، ناخبره هم ، دلته دا دويمه معنی مراد اخستې شی چې پيغمبرئ نه وړاندې تاسو ﷺ د الله ﷻ دشريعت احکامو او عملونو نه بې خبره وئې تاسو ﷺ ته ئې د پيغمبرئ مرتبه درکړه او لار ئې درته اوخوده.

**دريم نعمت**: ﴿وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَىٰ﴾ عائل د علية نه مشتق دې چې معنی ئې فقير او محتاج کيدل دی ، د آيت مبارک معنی دا شوه چې تاسو ﷺ الله ﷻ نيستمن اوبې ماله بيا موندو نو غنی او مالدار ئې کړئې ، چې هغه شروع د خديجة الکبری رضی الله عنها په مال سره په توګه دَ شرکت دمضاربت د تجارت کولو نه اوشوه . بيا هغوئ رضی الله عنها پخپله د هغوئ رضی الله عنها په نکاح کښې راتلو سره ام المؤمنين جوړه شوه نو هغوئ رضی الله عنها ټول مال د رسول الله ﷺ د خدمت دپاره شو.

ددې دريواړو نعمتونو بيانولو نه پس نبی کريم ﷺ ته د دريو څيزونو حکم ورکړې شو.

**اول**: ﴿فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ﴾ د قهر معنی غلبه کول او په خبر تسلط کول دی. مراد دادې چې تاسو ﷺ چالره يتيم ، کمزورې او بې وارثه ګڼړلو سره دهغه په مالونو او حقونو په دې شان خيته مه وراچوئی چې دهغه حق ضائع شی ځکه نبی کريم ﷺ يتيم سره د شفقت دمعاملې تاکيد اوفرمائيل او هغه سره ئې د زړهٔ ماتولو د معاملې نه منع اوفرمائيله. ارشاد دې چې دمسلمانانو په کورونو کښې زيات غوره کور هغه دې چې په کښې څوک يتيم وی او هغه سره د احسان اومينې سلوک کولې شی. اود ټولو نه خراب کورهغه دې چې په کښې څوک يتيم نه وی او ورسره خراب سلوک کولې شی. [ بخاری په الادب المفرد کښې او ابن ماجه او بغوی روايت کړو ، [ مظهری ][2].

---

[1] ) صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب دعاء النبي ﷺ لامته وبكائه وشفقة عليهم رقم الحديث:[۳۰۱] [ج:۱ص:۱۱۳]

[2] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۸۷] و سنن ابن ماجة، كتاب الأدب ،باب حق اليتيم والأدب المفرد باب خيربيت في المسلمين بيت فيه يتيم رقم الحديث[۳۷ ] وشرح السنة للبغوى كتاب الإستئذان باب ثواب كافل اليتيم رقم الحديث:[۳۴۵۴]

**دويم حکم** :: ﴿وَاَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنۡهَرۡ﴾ ، ﴿تَنۡهَرۡ﴾ د نهر نه مشتق دې. چې معنی ئې زورنه ورکول او رټل دی. او د سائل معنی سوال کوونکي په دې کښې هغه هم داخل دې چې د څه مال سوال کوی. او هغه هم چې د علمی تحقيق سوال کوی د دواړو قسمو سوال کوونکو د رټنې او زورنې نه نبی کريم ﷺ منع کړې شو ،ښه خبره داده چې سوال کوونکي په څه ورکولو سره رخصت کړې شی او که نشی ورکولی نو په نرمئ سره دې ورته عذر کوی. په داشان د يو علمی مسئلې سوال کوونکی په جواب کښې هم سختی او بد خوئی کول منع دی. په نرمئ او شفقت سره جواب ورکول پکار دی. سوا ددې نه چې سوال کوونکي په هيڅ صورت کښې نه منی نو په ضرورت سره زورنه هم جائزده.

**دريم حکم** :: ﴿وَاَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ﴾ ﴿حَدِّثۡ﴾ د تحديث نه مشتق دې چې معنی ئې خبره کول دی مراد دا دې چې تاسو ﷺ دخلقو په وړاندې د الله ﷻ د نعمتونو بيان کوئی. دا هم شکر ادا کولو يو طريقه ده تردې پورې چې يو انسان په بل چا باندې احسان اوکړی د هغه د شکر اداکولو هم حکم ورکړې شوې دې. حديث پاک کښې دی چې څوک د خلقو په احسان باندې دهغوئ شکريه نه ادا کوی هغه د الله ﷻ شکر هم نه ادا کوی. [ احمد روايت کړو چې راويان ئې ثقه دی ، [ مظهری ] ([1]).

يو حديث پاک کښې ارشاد دې چې څوک په تاسو احسان کوی نو پکار دی چې تاسو هم دهغه د احسان بدله ورکوئی. اوکه د مالی بدلې ورکولو توفيق مو نه وی نو هم دا کوئی چې د خلقو په وړاندې دهغه تعريف کوئی. ولې چې چا د خلقو په جمع کښې د هغه ثناء او تعريف اوکړونوهغه د شکر گذارئی حق ادا کړو [ بغوی روايت کړو د جابر بن عبد الله ﷺ نه ، [مظهری] ([2]).

**مسئله** :: د هر نعمت شکر ادا کول واجب دی ، دمالی نعمت شکر دادې چې په دې مال کښې څه د الله ﷻ دپاره په اخلاص د نيت سره خرچ اوکړی. اود بدنی نعمت شکر دادې چې جسمانی طاقت د الله ﷻ په واجباتو ادا کولو کښې لګيا کړی او د علم او معرفت شکر دادې چې نوروته ئې تعليم ورکړی. [ مظهری ] ([3]).

**مسئله** :: د سورة والضحیٰ نه تر آخر د قرآن پورې هر سورت سره تکبير وئيل سنت دی ددغې تکبير الفاظ شيخ صالح مصری رحمه الله [لااله الاالله والله اکبر] خودلی دی. [ مظهری ] ([4]).

ابن کثير رحمه الله دهر سورت په ختم باندې اوبغوی رحمه الله دهر سورت په شروع کښې يو ځل تکبير وئيل سنت بللی دی. [ مظهری ] ([5]). په دواړو کښې چې کوم سنت اختيار کړی سنت به ئې اداشی، والله اعلم.

---

[1]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٨٧] و مسند احمد ،مسند ابي هريرة ﷺ رقم الحديث:[٧٩٣٩]

[2]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٨٧] و سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب الرفق وشكر المعروف [ج:٢ص:٦٦٢] و جامع الترمذي ، ابواب البر والصلة ، باب ماجاء فى المتشبع بما لم يعطه [ج:٢ ص:٢٣]

[3]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٨٨]

[4]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٨٩]

[5]) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٢٨٨]

**فائده:** د سورة ضحی نه دقرآن کريم تر آخره پورې په ډيرو سورتونو کښې په رسول الله ﷺ باندې د الله ﷻ خاص انعامات اود نبی کريم ﷺ دمخصوص فضيلتونو ذکر دې اوپه څو سورتونو کښې د قيامت او د هغې دحالاتو بيان دې. دقرآن کريم شروع پخپله ددې نه شويده چې قرآن کريم عظيم دې، شک شبه په کښې نشته او ختميدل ئې دهغه ذات په لوئين اوشان باندې اوکړې شو په چا چې قرآن نازل شوې دې.

تمت سورة الضحی ۲۸ شعبان ۱۳۹۱هجری

| اياتونه | | سورة الانشراح مكية وهي ثماني اٰيات وركوعا واحدا | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑧ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ۝١ وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ ۝٢ الَّذِيْ

آيا مونږه پرانه نسته | ستاد پاره | سينه ستا | او اوچت کړو مونږ | ستانه | بوج ستا | هغه بوج |

آيا مونږ تا له ستا سينه نه ده خلاصه کړې | او ستا نه مو هغه بوج نه دې ښکته کړې | چې ستا

اَنْقَضَ ظَهْرَكَ ۝٣ وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ۝٤ فَاِنَّ مَعَ الْعُسْرِ

چې ماتوله ئې | ملاستا | او پورته کړو مونږه | ستاد پاره | شهرت ستا | نو بيشکه | دسختئ سره |

ملاتې ماته کړې وه | اوستانوم مو نه دې پورته کړې | نو بيشکه په سختئ پسې آسانی راځی

يُسْرًا ۝٥ اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ۝٦ فَاِذَا فَرَغْتَ

آسانتيا وی | بيشکه | سختئ سره | آسانتيا وی | نو هر کله چې | وزګار شي ته |

بيشکه چې په سختئ پسې آسانی راځی | نو هر کله چې فارغ شې [د عبادت نه] نو په عبادت کښې

فَانْصَبْ ۝٧ وَاِلٰى رَبِّكَ فَارْغَبْ ۝٨

نو کوشش کوه په عبادت کښې | او رب خپل ته | رغبت [توجه] کوه |

ښه محنت کوه | ........... اوخپل رب ته رغبت کوه

## آسان ترجمه قرآن

(اے پيغمبره) آيا نه ده پرانستلې مونږ تا لره سينه ستا. او لرې کړې دې مونږ ستا نه هغه پيټې ستا. چه هغې ماته کړې وه ملا ستا. او مونږ ستا دپاره ستا تذکرې ته اوچت مقام ورکړې دې نوحقيقت دادې، چه سختئ سره آسانی هم وی. يقيناً سختئ سره آسانی هم وی لهٰذا کله چه ته فارغ شې، نو (په عبادت کښې) ځان ستړې کړه او خاص خپل رب ته رغبت اوکړه.

## خلاصه تفسير

﴿اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ۝١﴾ [آيا مونږ ستاسو په خاطر ستا سينه] په علم اوحلم سره [خلاصه نه کړه] يعنی علم موهم وسيع درکړو اوپه تبليغ کښې چه کوم دمخالفينو په مزاحمت سره ازار رسی په

دې کښې مو درته تحمل اوحلم هم درکړو [كذا قال الحسن كما في الدر منثور] (۱) ﴿وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ﴾ [اومونږ تاته ستا هغه بوج لرې کړو ﴿الَّذِي أَنْقَضَ ظَهْرَكَ﴾ کوم چه ستا ملامانه کړې وه ] دوزر نه مراد هغه مباح اوجائز کارونه دی کوم چه به کله کله دخه حکمت اومصلحت تر مخه ددوی نه صادریدل اووروستو به د هغې خلاف حکمت اوخلاف اولی کیدل ثابتیدل اودوی ﷺ به په وجه دلوئې شان او انتهائی قرب په هغې سره غمژن کیدل داسې لکه چه په گناه سره څوك غمژن کیږی په دې کښې خوشخبری ده په داسې کارونو دمؤاخذې نه کیدو [لکه په درمنثور کښې دمجاهد اوشريح بن عبيد الحضرمي نه دی] (۲) پس په دې بنا دا خوشخبری دوی ﷺ ته دوه ځل وشوه اول په مکه کښې ددې سورة په ذريعه دويم په مدينه کښې په سورة فتح کښې ددې تاکيد اوتکميل اوتجديد اوتفصيل دپاره ﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾ [اومونږ ستا په خاطر ستا آوازه اوچته کړه ] يعنی اکثر ځانې په شريعت کښې دالله تعالى دنوم سره ستاسو نوم مبارك پيوست کړې شو لکه په درمنثور کښې مرفوعا دی، قال الله اذا ذكرت ذكرتَ معى (۳) يعنى الله تعالى فرمائی چه کوم ځائې زما ذکر کيږی نوستابه هم ماسره وی [رواه ابن جرير وابن ابی حاتم] (۴) لکه په خطبه کښې په تشهد کښې په مونځ کښې په اذان کښې په اقامت کښې اودالله تعالى دنوم لوئې اوشهرت ظاهر دې پس څوك چه ورته نزدې وی په رفعت اوشهرت کښې به هغه هم تابع وی اوچونکه په مکه کښې حضور ﷺ اومؤمنان په قسم قسم تکليفونو اوسختو کښې گرفتار وو په دې وجه ددې دازالې په طريقه دتفريع په سابق باند وعده فرمائې چه هر کله مونږ تاته روحانی راحت درکړو او روحانی تکليف مو درنه لرې کړه لکه چه د ﴿أَلَمْ نَشْرَحْ﴾ الخ نه معلومه شوه پس په دې سره په دنيوی راحت اومحنت کښې هم زمونږ دفضل اوکرم اميدوار کيدل پکار دی چنانچه مونږ وعده کوو چه ﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ [ بيشکه دموجوده مشکلاتو سره] [يعنى ډير زر کوم چه حکما دپرله پسې په معنى کښې دی] [اسانی] کيدونکې [ده] اوچونکه ددغو مشکلاتو اقسام اوشمير ډير وو په دې وجه دا وعده مکرر دتاکيد دپاره فرمائی چه ﴿إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ [بيشکه دموجوده مشکلاتو سره اسانی ] کيدونکې [ده] چنانچه دغه مشکلات يويو رفع شو لکه چه روايتونونه د اواحاديثو اوسيرت اوتاريخ په دې متفق دی وراندې په دې نعمتونه دشکر حکم دې چه هرکله مونږ په تاسو ﷺ داسې داسې نعمتونه کړی دی ﴿فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ﴾ [نوته هر کله چه] تبليغ داحکامونه کوم چه نوروته دنفع رسيدو په وجه عبادت دې [فارغ کيږې نو] په نورو عبادتونو کښې چه ستا دذات سره خاص متعلق دی] محنت کوه[ مراد ترې نه ډير عبادت اورياضت دې چه ستا دشان سره دامناسب ده[او] څه چه غوارې په هغې کښې ﴿وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَبْ﴾ [دخپل رب طرف ته توجه ساته] يعنى دهغه نه ئې غواړه اوپه دې کښې هم په يو حيثيت سره خوشخبری ده دزوال عسر په خپله

(۱) تفسير الدر المنثور [ج:۱۰ ص:۲۸۹]
(۲) تفسير الدر المنثور [ج:۱۰ ص:۲۸۹]
(۳) تفسير الدر المنثور [ج:۱۰ ص:۲۹۰]
(۴) تفسير الطبري [ج:۲۴ ص:۴۹۵]و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[۱۹۳۹۳] و مسند ابی يعلى مسند ابی سعيد الخدری ﷺ، رقم الحديث:[۱۳۴۹] وصحيح ابن حبان كتاب الزكوة باب ذكر الإخبار عن إباحة تعداد النعم للمنعم على المنعم رقم الحديث:[۳۴۵۱]

د درخواست کولو حکم گویا د درخواست پوره کولو وعده ده]

## معارف او مسائل

څنګه چې د سورهٔ ضحیٰ په آخر کښې بیان شوی دی چې د سورهٔ ضحیٰ نه تر آخره د قرآن پاک پورې په دوؤویشتو سورتونو کښې زیات ذکر په نبی کریم ﷺ باندې د الله ﷻ د انعامونو او دهغوئ د شان د اوچتوالی باره کښې مضمونونه دی. صرف څو سورتونه د قیامت د حالاتو باره کښې یا د څینې نورو مضمونونو باره کښې راغلی دی. په سورة انشراح کښې هم دهغې خاص نعمتونو بیان دې چې په رسول الله ﷺ باندې الله ﷻ کړی دی او دهغې په بیان کښې ئې د استفهام هغه عنوان اختیار کړې دې کوم ځائې کښې چې په سورهٔ ضحیٰ کښې ﴿اَلَمۡ یَجِدۡکَ﴾ کښې اختیار کړې وو.

﴿اَلَمۡ نَشۡرَحۡ لَکَ صَدۡرَکَ﴾ د شرح د لفظ معنی خلاصول ده او دغسې سینه خلاصول دې لره د علومو ، معرفتونو او نیکو خویونو دپاره د فراخولو په معنی کښې استعمالیږی لکه په یو بل آیت مبارک کښې دی چې : ﴿فَمَنۡ یُّرِدِ اللّٰهُ اَنۡ یَّهۡدِیَهٗ یَشۡرَحۡ صَدۡرَهٗ لِلۡاِسۡلَامِ﴾(١) د نبی کریم ﷺ سینه مبارکه الله ﷻ د علومو، معارفو او بهترینو خویونو دپاره دومره فراخه جوړه کړې وه چې د نبی کریم ﷺ علم او حکمت لویو لویو عقل مندو هم بیا پیدا کولې نه شو. او هم د دې شرح صدر په نتیجه کښې مخلوق طرف ته د نبی کریم ﷺ توجه کول الله ﷻ ته په توجه کولو کښې اړ نه جوړیدو. او په څینې صحیح احادیثو کښې راغلی دی چې د الله ﷻ په حکم سره فرښتو د نبی کریم ﷺ سینه مبارکه په ښکاره څیرې کړه او صفائې ئې کړه څینې مفسرینو دلته د شرح صدر نه مراد هغه شق صدر یعنی د سینې مبارک د څیرې کیدو معجزه اخستې ده . [ ابن کثیر وغیره](٢) والله اعلم.

﴿وَوَضَعۡنَا عَنۡکَ وِزۡرَکَ ۙ الَّذِیۡۤ اَنۡقَضَ ظَهۡرَکَ﴾ د وزر لفظی معنی پیتې ده او د نقض ظهر معنی ملا ماتیدل او تیتیدل دی لکه چې دروند څه پیتې په چا واچولې شی نو دهغه ملا ورسره تیتیږی . دې آیت مبارک کښې ارشاد دادې چې هغه پیتې کوم چې ستا ملا ماته کړې وه مونږ هغه تاسو ﷺ نه لرې کړو. دغه پیتې هغه دې چې د تفسیر په خلاصه کښې ئې بیان تیر شو. دې نه مراد هغه جائز او مباح کارونه دی چې کوم نبی کریم ﷺ څینې وختونه د حکمت او مصلحت په بنا اختیار کړی وو خو روستو بیا معلوم شو چې هغه د مصلحت نه خلاف یا خلاف اولی وو ولې چې نبی کریم ﷺ به په دې هم ډیر خکه غمژن کیدو چې د نبی کریم ﷺ شان ډیر لوړ وو او د الله ﷻ د نزدیکت یو خاص مقام ورته حاصل وو ، په دې وجه په دې آیت مبارک کښې ورته الله ﷻ زیرې ورکړو او هغه پیتې ئې په دې زیری آؤرولو سره لرې کړو.

او څینې مفسرینو د وزر نه مطلب هغه پیتې اخستې دې چې د پیغمبرئی په ابتداء کښې د وحی اثر هم په نبی کریم ﷺ باندې سخت وو ، بله ذمه واری پرې دا اچولې شوې وه چې په ټوله دنیا کښې دې حق خوروی ، د کفر او شرک مخالفت دې کوی . او په توحید دې خلق راجمع کی ، او په دې ټول کار کښې حکم دا وو چې ﴿فَاسۡتَقِمۡ کَمَاۤ اُمِرۡتَ﴾ یعنی تاسو ﷺ د الله ﷻ

---

(١) ترجمه:نوکوم کس ته چې دالله تعالی دخپلې لارې توفیق ورکړی نودهغه سینه داسلام دپاره فراخه کړی.
(٢) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۴۲۹]

په حکم باندې مضبوط اوسئ ، چې په کښې يو طرفته تيټيدل نه وي ، ددې لوئې پيټې به نبي کريم ﷺ محسوسولو او د حديث پاک په ځينې روايتونو کښې راغلي دي چې د نبي کريم ﷺ په ږيره مبارکه کښې څه سپين ويښته پيدا شو نو وې فرمائيل چې دې آيت ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ﴾ زه بوډا کړم(۱).

نو ددې پيټې د لرې کولو زيرې په دې آيت مبارک کښې ورکړې شوې دې او ددې د لرې کولو صورت په ورپسې آيت مبارک کښې راغلې دې چې ستاسو دهر مشکل نه پس آساني کيدونکې ده، الله ﷻ دسينې مبارکې د فراخولو په ذريعه دنبي کريم ﷺ حوصله دومره اوچته کړه چې دا ټول مشکلات ورته آسان ښکاريدل. اودغه پيټې، پيټې پاتې نه شو. والله اعلم

﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾ د نبي کريم ﷺ ذکر پورته کول دادی چې په ټولو اسلامي شعائرو کښې د الله ﷻ نوم سره د نبي کريم ﷺ نوم مبارک اخستې شي ، چې د ټولې دنيا په منارو او منبرونو باندې:

[اشهد ان لا اله الا الله ] سره [اشهد ان محمدا رسول الله ] وئيلې شي او په دنيا کښې څوک پوهه انسان د نبي کريم ﷺ نوم ښه په عزت او تعظيم سره اخلي اګر چې مسلمان هم نه وي.

**فائده** :: دلته د دريو نعمتونو بيان دې ، ① شرح صدر ② رفع وزر ③ رفع ذکر . دا درې واړه په دريو جملو کښې بيان شوي دي او په هر يو کښې د فعل او مفعول تر مينځه يو بل حرف ﴿لَكَ﴾ يا ﴿عَنكَ﴾ راوړې شوې دې ، په دې کښې د نبي کريم ﷺ خصوصيت او خاص لوئيت ته اشاره ده چې دا ټول کارونه ستاسو ﷺ په خاطر کړې شوي دي.

﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ۝ إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ د عربي ژبې قاعده داده چې د کومې کلمې په شروع کښې الف لام دتعريف وي ددغې کلمې په الف لام سره دوباره راوړل هم هغه مطلب لري کوم چه دمخکښې کلمې وؤ او بغير د الف لام نه ئې دوباره راوړل دا مطلب لري چې ددې دواړو جملو مصداقونه جدا جدا دي. په دې بنا دلته دا دويم العسر نه مطلب هم رومبې عسرا مراد دې اولفظ يُسراً دواړو ځايونو کښې بغيرد الف لام نه دې نودې نه معلومه شوه چه د دويم يسرا نه مطلب بل يسر دې. نتيجه ئې دا راووته چې يو عسر سره دوه يسر دي خو دلته د دوؤ مطلب صرف دوه ته بلکه ګڼرې دي يعني يوې يوې سختئ سره به تاسو ته ګڼرې آسانئ درکولې شي.

حسن بصري رحمه الله نه مرسلا روايت دې هغه فرمائي چې : مونږ ته بيان اوشو چې نبي کريم ﷺ خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته په دې ايت مبارک سره زيرې واؤرولو او وې فرمائيل چې [لن يغلب عسر يسرين] يو عسر په دوؤ يسرونو سره يعني يو سختي په دوؤ آسانو باندې غالب نشي راتلې(۲)، نو د تاريخ او سيرت په کتابونو کښې چې خپلو او غيرومسلم او غيرمسلم ليکلي دي په دې ګواه دي چې کوم کارونه مشکل نه مشکل بلکه د خلقو په نظر کښې ناممکن ښکاريدل، دهغوی ﷺ دپاره هغه ټول آسانيدل ، دبيان شوي روايت نه معلوم شو چې په العسر کښې الف لام عهدي دې چې مراد ترې د رسول الله ﷺ صحابه کرام رضي الله عنهم عسر دې ،

---

۱) شعب الإيمان للبيهقي باب ذكر سورة هود رقم الحديث[۲۳۴۰]

۲) تفسير الدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۲۹۱] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۹۵۰] و شعب الإيمان للبيهقي باب في الصبر على المصائب ،فصل في ذكر ما في الأوجاع والأمراض ...... إلخ رقم الحديث[۹۵۴۱]

یعني یو مشکل سره د دوؤ آسانو وعده صرف نبي کریم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ سره ده چې الله تعالی په دې شان سره پوره کړه چې دنیا په خپلو سترګو سره اولیدله اوس که په دنیا کښې چاته د سختئ نه پس آسانئ نصیب نه شي نو هغه دې آیت سره بې سمونه نه ده البته د الله ﷻ عادت اوس هم دادې چې څوک په سختئ باندې صبر کوي او د زړه د اخلاصه په الله ﷻ باندې تکیه لري او تېرلو نه په ځان کټ کولو سره هم د هغه اسره لري او د هغه د فضل امیدوار وي او په کامیابئ کښې د ډیل راتلو په وجه نا امیده نشي نو ضرور به الله ﷻ په هغه باندې آساني راولي. [ فوائد عثمانیه ][1] د حدیث پاک د ځینې روایتونو نه هم ددې تائید کیږي[2].

**تعلیم او تبلیغ کونکوډپاره په خلوت کښې دالله ﷻ ذکر او الله ﷻ ته توجه کول هم ضروري دي** :: ﴿فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ۝ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَبْ ۝﴾ یعنی کله چې تاسو ﷺ د یو محنت یعنی دحق دبلنې او د حق د احکامو نه اوزګار شئ نو بل محنت دپاره تیار شئ هغه دا چې په مونځ کښې دالله ﷻ په ذکر او دعا استغفار کښې لګیا شئ. اکثرو مفسرینو ددې آیت مبارک هم دا تفسیر کړې دې. ځینې حضراتو نور تفسیرونه هم لیکلی دی مګر نزدې هم هغه دې کوم چې پورته اولیکلې شو ، ددې حاصل دادې چې د نبي کریم ﷺ د بلنه ، تبلیغ او خلقو ته لار خودل د هغوئ د اصلاح فکر کول د نبي کریم ﷺ دټولو نه لوئې عبادت وو. خو دا عبادت د مخلوق په واسطه دې چې د الله ﷻ په اصلاح باندې توجه ورکړې او دهغې انتظام اوکړې د آیت مقصود دادې چې صرف په دې عبادت بالواسطه باندې تاسو بسوالې مه کوئی بلکه کله چې تاسو ددې نه اوزګار شئ نو بې واسطې خلوت کښې الله ﷻ ته مخ اوکړئ د الله ﷻ نه په هر کار کښې دکامیابئ دعا کوئی چې اصل مقصود کوم دپاره چې انسان پیدا کړې شوې دې هغه دالله ﷻ ذکر او بې واسطې عبادت دې او شاید هم دې دپاره رومبې قسم یعنی بالواسطه عبادت نه ئې د اوزګارتیا ذکر اوفرمائیلو چې دغه کار یو ضرورت دپاره دې ، دهغې نه اوزګارتیا کیدیشی او بل کار یعنی الله ﷻ ته توجه کول یو داسې څیز دې چې مؤمن ددې نه هیڅکله نشي فارغیدې بلکه خپل ټول عمر او زور په دې کښې لګول دي.

**فائده:** دې نه معلومه شوه چې عالمان چې د تعلیم تبلیغ اود خلقو د اصلاح کار کوؤنکی دی ، هغوئ لره ددې نه غافله کیدل پکار نه دي ، پکار دي چې هغوئ څه وخت الله ﷻ ته په توجه کولو او د الله ﷻ د ذکر کولو دپاره هم خاص کړي لکه د پخوانو عالمانو سیرتونه په دې ګواه دی . دې نه بغیر تعلیم او تبلیغ هم اثر نه کوي. په دې کښې نور او برکت نه وي.

**فائده** :: ﴿فَانْصَبْ﴾ فانصب د نصب نه مشتق دې ، اصلی معنی ئې ستړې والې او ستومانی ده په دې کښې اشاره دې ته موندې شي چې عبادت او دالله ﷻ ذکر تر هغه پورې جاری اولرلې شي چې څه محنت او ستومانی ورته محسوسه شي.
صرف دنفس په راحت او خوشحالئ باندې د هغې اړه پاتې نشي اود څه وظیفې او معمول پابندی کول پخپله یو مشقت او ستومانی ده اګر چې مختصر کار وي.

تمت سورة الانشراح والحمدلله

[1] ) تفسیر عثمانی تحت هذه الآیة [ ج:۲ ص:۸۲٤]
[2] ) موطا مالك كتاب الجهاد باب الترغيب فى الجهاد [ج:۲ ص:٤٤٦] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۰۱۰]

| ایاتونه | سورة التين مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | ركوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑧ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ① |

وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ۝١ وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ ۝٢ وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ ۝٣

قسم دي په اينځر | او په خونه | او په طور سينا باند | او په دې ښار د امن باند |

زما قسم دې په انځر | او په ښونه | او په طور سينا باندې | او په دې امانت گر ښار [مكه] باندې

لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ۝٤ ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ

بيشكه پيدا كړو مونږ | انسان | په بهترين شكل كښې | بيا واپس كړو مونږه هغه | ډير لاند |

چه بيشكه مونږ انسان په ښه معتدل صورت كښې پيدا كړې دې | بيا مو [د عمر تيريدو په وجه]

سٰفِلِيْنَ ۝٥ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ

دلاندونه | بغير دهغه كسانونه | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوكړل نيك | پس هغوئ دپاره دي

دلاندې نه لاندې مرتبې ته اوغورزولو | خو څوک چې مومنان دی | او نيک كارونه كوی | نو هغوی دپاره

اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ۝٦ فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ ۝٧

اجر | نه ختميدونكې | نو بياولې تا دروغژن اوګڼړی | پس ددې نه | په بدله ملاويدلو كښې |

نه ختميدونكې ثواب مقرر دی | نو [انسانه] ددې نه پس كوم څيز د جزا د ورځې دروغ گڼړلو تا آماده كوی

اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ ۝٨

آيا نه دې الله | لوئ حاكم | دټولو حاكمانونه

ايا الله ﷻ دټولو حاكمانو دپاسه لوئې حاكم نه دې [بلكه دې]

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې، په انځر او زيتون باندې. او د صحراء سينا په غر طور باندې. او په دې امن و امان والا ښهر باندې چه مونږ انسان په ډير خائسته جوړخت كښې پيدا كړې دې. بيا مونږ هغه د لاندينو نه ټولو كښې لاندې حالت ته ورګرځولې دې سوا د هغه كسانو نه چه ايمان ئې راوړې دې، اونيک عملونه ئې كړې دی. نو دوی ته به داسې اجر ملاويږي، چه چرې به هم ختم نه شي. بيا (اے انسانه) هغه څه څيز دې، چه تا د جزا او سزا په دروغ ګڼړلو باندې اماده كوی. آيا الله تعالى د ټولو حكمرانانو نه لوئې حكمران نه دې؟

## خلاصه تفسير

﴿وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ۝١﴾ قسم دې په اونه دَ انځر او دَ زيتون په اونه ﴿وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ ۝٢﴾ [ او په طور سينين ﴿وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ ۝٣﴾ او په دې امن والا ښار [ يعنى مكه معظمه ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ۝٤﴾ [چه مونږ انسان لره په ډيره ښكلې سانچه جوړ كړې دې بيا] په دوی كښې چه كوم بوډا شی ﴿ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ ۝٥﴾ [مونږ ده لره دښكته حالت والو نه هم زيات ښكته كړو]

يعنى دغه خوبصورتي په بدصورتي؛ سره اوقوت په ضعف سره بدل شي اوناكاره شي مقصود ددې نه بيا نول دكمال قباحت دى په كوم سره چه دده په دوباره پيداكولو دحق تعالى قدرت كيدل واضح كيږي لكه دا قول دالله تعالى دې ﴿اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ﴾ الخ[1] اومقصود ددې سورة دا معلوميږي چه الله تعالى قدرت په دوباره پيدا كولو او ژوندى كولو ثابتول دى لكه چه ﴿فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ﴾ په جمله سره دې طرف ته اشاره مونديږې شي اوددې ايت دعموم نه چونكه دا معلوميږي چه بوډاكان ټول په جمع قبيح اوناكاره شي ددې ايهام لرې كولو دپاره وړاند په ايت كښې يوه استثنى بيانولې شي ﴿اِلَّا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ [ليكن كوم خلق چه ايمان راوړى اونيك كار وكړى ﴿فَلَهُمْ اَجْرٌ غَیْرُ مَمْنُوْنٍ﴾ نو دهغوى دپاره دومره ثواب دې كوم چه به چرې قطع نۀ شى ] په كوم كښې چه ئې وښوده چه مؤمن صالح د بوډا ضعيف كيدو باوجود دانجام په اعتبار سره ښۀ وى بلكه داول نه زيات دده عزت سوا شى وړاندې په خَلَقْنَا او رَدَدْنَا باندې تفريع ده چه كله الله تعالى په تخليق اوتقليب دحالاتو قادر دې [نو] اې انسانه ﴿فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ﴾ [بيا كوم شې تالره دقيامت په باره كښې منكر جوړوى ] يعنى هغه كوم دليل دې دكوم په بنا چه تۀ ددې په موجودګۍ كښې دقيامت نه منكريږې ﴿اَلَیْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِیْنَ﴾ [ايا الله تعالى د ټولو حاكمانو نه لوئې حاكم نۀ دې ] په دنيوى تصرفاتو كښې هم دكومو نه چه دتخليق انسانى اوبيا په زوړ والى كښې په دۀ كښې دتغيراتو ذكر پورته راغلې دې اوپه اخروى تصرفاتو كښې هم دكومو نه چه قيامت اومجازاة هم دى]

## معارف او مسائل

﴿وَالتِّیْنِ وَالزَّیْتُوْنِ﴾ دې آيت مبارك كښې د څلورو څيزونو قسم خوړلې شوې دې چې په كښې دوه ونې دى يو تين يعنى انځر ، بله زيتون ،دريم غر يعنى طور او څلورم ښار يعنى مكه مكرمه ددې تخصيص وجه دا كيديشى چې دا دواړه ونې ډير بركت او ډيرې نفع والا دى څنګه چې طور غر او دَمكې ښار كثير البركت دې اوداهم كيدې شى چې دلته د تين او زيتون د ذكر نه مراد هغه ځائې وى چرته چې دا ونې ډير پيدا كيږ ى چې هغه د شام ملك دې كوم چې د پيغمبرانو ﷺ خزانه دې او ابراهيم ﷺ دغلته اوسيدل كړى دى . هغوئ ﷺ ته هلته نه د هجرت حكم اوشو او دمكې ښار ته راوستې شو پداسې شان په دې قسمونو كښې ټول هغه مقدس مقامات شامل شو چرته چې خاص خاص پيغمبران ﷺ پيدا شو او پيغمبران جوړ شو د شام ملك دعامو پيغمبرانو ﷺ وطن اود استوګنې ځائې دې ، كوه طور هغه ځائې دې چرته چې الله ﷻ موسى ﷺ سره كلام كړې وو . او سينين يا سيناء د هغه ځائې نوم دې چرته چې دا غر واقع دې . او بلد امين مكه مكرمه دخاتم الانبياء ﷺ دپيدا كيدو او استوګنې ځائې دې .

ددې څلورو څيزونو په قسم خوړلو سره اوفرمائيلې شو چې :﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِیْۤ اَحْسَنِ تَقْوِیْمٍ﴾ د تقويم لفظى معنى د يو څيز قوام يعنى ټينګوالې او بنياد سمول دى،د احسن تقويم نه مراد دا دې چې دَ ده فطرت او جبلت هم د نور مخلوق په اعتبار سره زيات ښكلې جوړ كړې شو او دده جسمانى شكل شباهت هم ددنيا د ټولو سادارو نه زيات غوره او ښكلې جوړ كړې شوې دې .

---

[1]) ترجمه:- ا لله تعالى داسې ذات دې چې تاسوهغه كمزورئى په حالت كښې پيدا كړئى.

**انسان په ټولو مخلوقاتو کښې د ټولو نه زيات ښکلې دې.** ددې حاصل دادې چې انسان لره الله ﷻ په ټول مخلوقات کښې د ټولو نه زيات ښکلې جوړ کړې دې. ابن عربي رحمه الله او فرمائيل چې د الله ﷻ په ټول مخلوق کښې د انسان نه زيات ښکلې بل نشته دې، ځکه چې ده لره الله ﷻ د ژوند سره عالم، قادر، متکلم، سميع، بصير، مدبر او حکيم جوړ کړې دې. او دا ټول صفتونه په اصل کښې پخپله د الله ﷻ دی چنانچه د بخاری او مسلم په روايت کښې راغلی دی چې [ان الله خلق ادم على صورته] الله ﷻ آدم عليه السلام پخپل صورت باندې پيدا کړې دې. مراد ترې هم دا کيدې شی چې دَالله تعالى دځينې صفتونو څه درجه ده ته هم ورکړې شوېده ورنه الله ﷻ د هر صورت او شکل نه بری دې. [قرطبی][1].

**د انسانی حسن يوه عجيبه واقعه:** قرطبي د لته نقل کړې دی چې عيسى بن موسى هاشمي چې د خليفه ابی جعفر منصورِ دربار يو خاص غړې وو د هغه خپله ښځه ډيره زياته خوښه وه، يو ځل د سپوږمۍ په شپه کښې ئې دغې خپلې ښځې ته د ډيرې مينې نه اووئيل چې [انتِ طالق ثلثاً ان لم تكوني احسن من القمر] که ته د څوارلسمې سپوږمۍ نه زيات ښکلې نه ئې نو ته دې طلاقه يې. په دې وينا آؤريدو سره ترې ښځه پورته شوه او پرده کښې شوه چې بس زه طلاقه شوم اګر چې دا خبره په لوبو ټوقو کښې د خلې نه ئې وتلې وه. خوبيا هم دطلاق لفظ چې څوک خپلې ښځې ته د خلې نه اوباسی نو په هر شان هغه طلاق واقع کيږی. عيسٰى بن موسىٰ دغه شپه ډيره بې آرام تيره کړه صبا له د خپل وخت خليفه ابی جعفر منصور ته راغلو او خپله قيصه ئې ورته بيان کړه. او خپله پريشانی ئې ورته هم ښکاره کړه. منصور د ښار فقهاء او مفتيان ټول راجمع کړل او سوال ئې اوکړو ټولو هم دا يو جواب ورکړو چې بس طلاق شوې دې. ولې چې سپوږمۍ نه څوک انسان زيات ښکلې نشی کيدې. خو دغه علماء کرامو کښې يو عالم بالکل چپ ناست وو چې د امام ابی حنيفه رحمه الله شاګرد وو، خليفه منصور ترې د خاموشۍ وجه اوپوښتله نو هغوئ بسم الله اولوستله او سورة التين ئې لوستل شروع کړل او وې فرمائيل چې اني امير المؤمنين، الله ﷻ هر انسان لره په احسن تقويم کښې اوبللو، هيڅوک ددۀ نه زيات ښکلې نشته، په دې آؤريدو ټول عالمان حيران شو هيڅ مخالفت ئې اونه کړو. او منصور حکم ورکړو چې طلاق نه دې شوې[2].

دې نه معلومه شوه چې د الله ﷻ په ټول مخلوق کښې انسان زيات ښکلې دې يعنی ددۀ ظاهر، باطن دواړه ښکلی دی، د حسن او جمال په اعتبار سره هم او دبدنی جوړښت په اعتبار سره هم ددۀ په سر کښې څنګه اندامونه څنګه عجيبه کارونه کوی چې يوه مستقله کارخانه معلوميږی. چې په کښې ګڼ خود کار مشينونه چليږی، د غه حال ئې د سينې او خيټې هم دې. دغسې د ده د لاسونو، پښو ترکيب اوهيئت او شکل وغيره د زړګونو حکمتونو نه ډک دی ځکه فلسفيانو وئيلی دی چې انسان يو ورکوټې جهان دې چې د ټول جهان نمونه ده. د ټول جهان کښې چې کوم څيزونه خواره وی هغه ټول دده په وجود کښې راجمع دی.

[1] تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۱۴] و صحيح مسلم كتاب الصلة والبر، باب النهى عن ضرب الوجه [ج:۲ص:۳۲۷] و أحكام القرآن لابن العربي سورة التين [ج:۸ ص:۸۲]

[2] تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۱۴] و أحكام القرآن لابن العربي سورة التين [ج:۸ ص:۸۲]

[قرطبی] (۱) صوفیاء کرامو هم ددې تائید کړې دی او ځینې حضراتو د انسان د سر نه تر پښو پورې د ټول جهان نمونې په دې کښې خودلی دی .

﴿ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ﴾ په رومبئ جمله کښې دا بیان وو چې انسان د ټول مخلوق او کائناتو نه زیات ښکلې جوړ کړې شوې دې . او پدې جمله کښې د دې بالمقابل دا خودلې شی چې څنګه دا انسان په خپل ابتداء او ځوانئ کښې د ټولو نه زیات ښکلې او د ټولو نه زیات غوره وو، په آخر کښې په دهٔ دا حالت هم راځی چې هغه د بدتر نه بدتر او دخراب نه زیات خراب شی ښکاره داده چې ددهٔ خرابی او بد والې په جسمانی لحاظ سره خودلې شوې دې چې د ځوانئ په ختمیدو سره شکل او صورت بدلیږی . بوډا والې ئې بالکل شکل بدل کړنی، دې بدشکله ښکاریدل شروع شی . بیکاره او په نورو باندې بار جوړ شی . د چا په کار نه راځی . په خلاف د نورو ځاروؤ نه چې هغه تر آخره پورې پخپل کار کښې لګیا وی . انسان ترې د پئیو، سورلئ کولو او بار اوړل، او داسې نور په سوؤنو کارونه اخلی ، ذبح کولې شی، که مړ شی نو بیا ئې هم څرمن ، ویښته ، هډوکی بلکه دبدن هره حصه ئې د انسانانو پکار راځی . خو چې انسان بوډا ، عاجزه ، کمزورې او بې وسه شی نو په مادی او ددنیادارئی په اعتباره سره د هیڅ کار نه پاتې کیږی ، د مرګ نه پس ئې هم د بدن د هیڅ حصې نه کار نشی اخستې ، خلاصه ئې داده چې ﴿اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ﴾ ته د انسان د رسیدو نه مراد ددهٔ مادی او جسمانی کیفیت دې ، دا تفسیر دامام ضحاک وغیره نه منقول دې . [قرطبی] (۲) .

ددې تفسیر په بنا په : ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ﴾ د نیکانو او صالحانو مؤمنانو د استثناء مطلب دا نه دې چې ګنی په دوئ دبوډا توب او بې وسئ حالت نه راځی بلکه مطلب دا دې چې ددغې جسمانی بیکارئی او مادی خرابئ نقصان دوی ته نه رسیږی . بلکه نقصان صرف هغې خلقو ته رسی چې چا خپل ټول فکر او طاقت په دغې مادی درستئ باندې لګولې وو. هغه اوس ختم شو او په آخرت کښې د دوئ څه حصه نشته ،پخلاف د صالحانو مؤمنانو چې د دوئ اجر او ثواب کله هم ختمیدونکې نه دې ، که په دنیا کښې دبوډا توب بیمارئی ، کمزورئې او بې وسئ سره ئې واسطه راشی نو په آخرت کښې ددهٔ دپاره لوئې درجې دی . او سراسری آرام دې . او د بوډاتوب په بیکارئی کښې هم دعمل د کمیدو باوجود هم د هغه په عمل نامه کښې ټول عملونه لیکلې شی کوم به ئې چې د طاقت په عمر کښې ادا کول . انس ﷜ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کله یو مسلمان په څه بیمارئی کښې ګرفتار شی نو الله ﷻ د هغه د عملونولیکونکو فرښتو ته حکم اوفرمائی چې ده کوم نیک عمل په خپل روغتیا کښې کولو هغه ټول ددهٔ په عمل نامه کښې لیکئ . [امام بغوی په شرح السنة کښې روایت کړو او بخاری د ابی موسیٰ ﷜ په مثل ددې د مریض او مسافر په باره کښې] (۳) . دې نه علاوه په دې مقام د مؤمنانو صالحانو د جزاء جنت او ددې

---

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۱۴]

(۲) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۱۵]

(۳) صحیح البخاري کتاب‌الجهاد ،باب ما یکتب للمسافر مثل ماکان یعمل فی الإقامة [ج:۱ص:۴۲۰] و مسند احمد ،مسند عبدالله بن عمرو بن العاص ﷜ رقم الحدیث:[۶۸۲۵]

نعمتونو بيانولو په ځائې: ﴿فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ﴾ اوفرمائيل يعنى اجر به ئې كله هم نه ختميږي او كټ كيږي نه په دې كښې اشاره دې طرفته ته هم كيديشى چې ددۀ دابدله هم ددنيا مادى ژوندنه شروع كيږي. الله ﷻ په خپلو مقبولوبندګانو دپاره په بوډا والى او كمزورتى كښې داسې اخلاصى ملګرى وركوى چې ددۀ تر آخرى وخته پورې روحانى فائدې پورته كوى. او د دوئ په هر شان خدمت كوى. د غسې د بوډا توب هغه وخت كله چې انسان په مادى او جسمانى ډول باندې بې كاره او په خلقو باندې پيتې ګنړلې شى ، د الله ﷻ دغه بندګان دغه وخت هم بيكاره نه وى ، او ځينې مفسرينو ددې آيت مبارك تفسير دا فرمائيلې دې چې ﴿رَدَدْنٰهُ أَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ﴾ عامو انسانانو دپاره نه بلكه دكافرانو او فاجرانو د پاره دى، چا چې خداداد : ﴿أَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ﴾ او انسانى كمالات اوشرافت او عقل مادى خوندونو پسې برباد كړل نو ددې ناشكرئى په سزا كښې به هغه :﴿أَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ﴾ ته رسولې شى ، په دې صورت كښې به د: ﴿إِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ استثناء هم پخپل ظاهرى مطلب باندې پاتې كيږي. چې ﴿أَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ﴾ ته په رسيدو سره دغه خلق مستثنى دى چې ايمان ئې راوړو او د نيک عمل پابند پاتې وى ولې چې د دوئ اجر به هم هميشه جارى وى. [ مظهرى ] [1].

﴿فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ﴾ په تير، شوؤ آيتونو مباركو كښې د انسان د پيدا كولو د كاملو الى او په ده باندې د الله ﷻ د خاص انعام بيا په بوډا توب كښې د حالاتو د بدلون بيان سره په دې آيت مبارک كښې د قيامت منكرينو ته خبردارې وركړې شوې دې. چې د الله ﷻ دقدرت دداسې تندارو او بدلون ليدلو نه پس هم آيا ددې څه ګنجائش شته چې تاسو د قيامت اوآخرت دروغژنى اوكړئى. آيا الله ﷻ په ټولو حكومت كوؤنكو باندې حاكم نه دې ؟

**مسئله** :: د ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دې چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې څوک سورة التين لولى او : ﴿أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ﴾ ته اورسى نو هغه ته پكار دى چې دا كلمه اووائى چې: [بلى انا وعلى ذالك من الشاهدين ] څكه فقهاء كرام فرمائى چې دا كلمه لوستل مستحب دى

تمت سورة التين والحمدلله ۳۰ شعبان ۱۳۹۱هجرى

[1]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۹۸]

| آیاتونه | سورة العلق مکية وهي تسع عشرة آية ورکوعاً واحداً | رکوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۱۹ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم کونکې دې | ۱ |

اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ۝۱ خَلَقَ الْاِنْسَانَ

اولوله | په نوم درب خپل | هغه رب | چي پيدا ئي کړو [ټول کائنات] | پيدا ئي کړو انسان |

[اې زما محبوبه] دخپل رب په نوم قرآن لوله| چې مخلوق ئې پيدا کړې دې |انسان ئې دچکه ويني نه

مِنْ عَلَقٍ ۝۲ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ۝۳ الَّذِيْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۝۴

دچکه ويني نه | اولوله | او رب ستا | ډير کريم دې | هغه | چي علم ئي اوښودو | په ذريعه دقلم |

پيدا کړې دې|ته قرآن پاک لوله|اوستارب ډير مهربان دې| هغه ذات دې چې دقلم په ذريعه ئې ليکل خودلی دی

عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ۝۵ كَلَّآ اِنَّ الْاِنْسَانَ

وې ښودل انسان ته | هغه چي نهٔ وو معلوم هغه ته | داسې نهٔ ده | بيشکه چي انسان |

انسان ته ئې هغه څه خودلی دی چې ورته معلوم نه وو|................ رښتيا داده چې [کافر]انسان د

لَيَطْغٰٓى ۝۶ اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰى ۝۷ اِنَّ اِلٰى رَبِّكَ الرُّجْعٰى ۝۸

خامخا سرکشی کوی | چې وې ليدو ځان خپل | بې پروا | بيشکه رب ستاته | واپس کيدل دی |

حده تير يږی | هرکله چې ځان مالداره اووينی | ............بيشکه ستا رب ته د هرچا واپس کيدل دی

اَرَءَيْتَ الَّذِيْ يَنْهٰى ۝۹ عَبْدًا اِذَا صَلّٰى ۝۱۰ اَرَءَيْتَ

ايا تااوليدو | هغه سړې | چې منع کوی | يوبنده | کله چې مونځ کوی هغه | څه خيال کوې ته |

تا هغه سړې اوليدو چې [د الله ﷻ نيک] بنده [محمدصلی الله عليه وسلم] دمونځ نه منع کوی اګوره

اِنْ كَانَ عَلَى الْهُدٰٓى ۝۱۱ اَوْ اَمَرَ بِالتَّقْوٰى ۝۱۲ اَرَءَيْتَ

که وی هغه سړې | په صحيح لار | ياحکم کوی | د پرهيزګارئ | څهٔ خيال کوې ته |

که دا [منع شوې] سړې په هدايت وی| يا دتقوی تعليم ورکوی | ګوره که دا [منع کونکې]

اِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ۝۱۳ اَلَمْ يَعْلَمْ بِاَنَّ اللّٰهَ يَرٰى ۝۱۴

که هغه دروغ اوګڼړو حق | او مخ ئې واړوو | آيا معلومه نهٔ ده هغهٔ ته | چې بيشکه الله | وينی |

منکر وی | اومخ ئې [دحق نه ګرځولې وی| ............ ايا دې نه پوهيږی چې الله ﷻ هر څه وينی

كَلَّا لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ ۝۱۵ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ۝۱۵

هرګز نهٔ [داسې نهٔ ده] | که چرې منع نهٔ شو هغه | نو خامخا به راکاږو هغه | دوېښتو دتندی نه |

خبردار | که دې منع نشو | ...............نو مونږ به ئې داوربلګی نه راکاږو

نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ۝۱۶ فَلْيَدْعُ نَادِيَهٗ ۝۱۷

هغه تندې | چې دروغژن دې | سخت خطا کار دې | نو رادې اوغواړی | ډله دملګرو خپلو |

هغه څتوکې چې دروغژن او خطاکار دې | ..........بيا دې دې خپل ملګری راوغواړی

| سَنَدْعُ | الزَّبَانِيَةَ ﴿۱۸﴾ | كَلَّا | لَا تُطِعْهُ | وَاسْجُدْ | وَاقْتَرِبْ ﴿۱۹﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| مونږ به هم راوغواړو | فرشتې دعذاب | هرګز نه | چې خبره اونه منې دهغه | او سجده کوه | او نزدې شه |

مونږ به ددوزخ فرشتې راوغواړو | ددۀ خبره اونه منې | او سجدې کوه | او الله ﷻ ته خان نزدې کړه

## آسان ترجمه قرآن

اولوله د خپل پروردګار نوم اخستلو سره، هغه ذات چه ټول هر څه ئې پیدا کړي دي هغۀ انسان د چک وینې نه پیدا کړې دې. اولوله، او ستا پروردګار د ټولو نه زیات کرم والا دې. هغه ذات چه د قلم په ذریعې سره ئې تعلیم ورکړو. انسان ته ئې د هغې خبرې تعلیم ورکړو، چه دې پرې نه پوهیدو حقیقت دادې چه انسان ښکاره سرکشي کوی ځکه چه هغه خپل ځان بے پرواه ګنړلې دې رشتیا خو داده، چه ستا پروردګار طرف ته د ټولو واپس کیدل دی. آیا تا هغه سړې هم لیدلې دې، چه یو بندۀ لره منع کوی چه کله هغه مونځ کوی؟ آیا خبر را کړئ، چه که هغه (مونځ کونکې) په هدایت باندې وی. یا د تقوٰی حکم ورکوی، (نو آیا هغه لره منع کول ګمراهی نه دۀ؟) آیا خبر را کړئ، که هغه (منع کونکې) حق لره دروغ ګنړی، او مخ اړوی آیا هغه ته دا معلومه نه دۀ، چه الله تعالی وینی؟ خبردار! که هغه منع نه شو، نو مونږ به هغه د تندی د ویښتو نه راؤلیسو. د هغه تندی ویښتۀ، چه دروغژن او ګناه کار دې. اوس دې هغه راؤبلی خپل مجلس والا مونږ به د دوزخ فرشتې راؤبلو هیچرې نه، د هغه خبرۀ مه منه، او سجدۀ اوکړۀ، او را نزدې شه.

## خلاصه تفسیر

دَ اِقْرَاْ نه دَ مَالَمْ يَعْلَمْ د ټولو نه اولنۍ وحی ده د کومې دنزول نه چه دنبوت ابتداء وشوه چه قصه ئې په حدیث دشیخینو کښې داده چه دنبوت ورکیدو ته په نزدې زمانه کښې دوی ﷺ په خپله خلوت پسند شو دوی ﷺ به غار حرا ته تشریف وړو اوځو ځو شپې به هلته وو یوه ورځ ناڅاپه جبرائیل ؑ تشریف راوړو اودوی ﷺ ته ئې ووئیل چه اقرا یعنی لوله دوی ﷺ وفرمائیل چه مااناٰبقارئٍ یعنی زۀ دځۀ لوستونکې نۀ یم هغوی ورلره په غیږ کښې زور ورکړو بیائې پریښودو اوبیا ئې ورته ووئیل چه اقرأ دوی ﷺ بیا هغه جواب ورکړو دغه شان درې خله ئې زور ورکړو په اخر خل د پریښودو نه پس ئې ورته ووئیل اقرأ نه تر مَالَمْ يَعْلَمْ پورې ، ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ۚ﴾[1] [اې پیغمبر ] ﷺ په [تاسو] چه کوم [قران ] نازلیږی په کوم کښې چه ددې وخت نازلیدونکې ایتونه هم داخل دی [دخپل رب نوم اخله لوله یعنی هر کله چه لولې نو بسم الله الرحمن الرحيم ۝ وایه لوله لکه چه په دې ایت ﴿فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ۝﴾ کښې دقران سره داعوذبالله لوستلو حکم شوې دې اوپه دې دواړو کارونو سره چه کوم اصل مقصود دې یعنی توکل او استعانت دغه خو واجب دې اوپه ژبه سره وئیل سنت اومستحب دی اګر چه داصل مقصود په اعتبار سره ددې ایت دنزول په وخت دوی ﷺ ته دبسم الله معلومیدل ضروری نۀ دی لیکن په څنو روایتونو کښې ددې سورۀ سره دبسم الله الرحمن الرحيم ۝ نازلیدل هم راغلې دی ، اخرجه الواحدي عن عكرمة والحسن انهما قالا اول ما نزل بسم الله الرحمن الرحيم واول سورة اقرا

[1]) صحیح البخاري كتاب بدء الوحي ،رقم الحديث[۳] [ج:۱ص:۳]

واخرجه ابن جرير وغيره عن ابن عباس انه اولما نزل جبرئيل عليه السلام على النبى صلى الله عليه وسلم قال يا محمد استعذ ثم قل بسم الله الرحمن الرحيم، كذا في روح المعاني(۱) اوپه دې ايتونو کښې چه کوم قرات لره دالله تعالى دنوم سره د شروع کولو حکم شوی دی په دې حکم کښې په خپله ددې ايتونو داخلېدل داسې دی لکه يوبل ته چه ووائی اسمع ما اقول لك يعنې چه زۀ تاته څۀ وايم نو هغه اوږه نو په خپله ددې جملې داوريدو حکم کول هم دده مقصود وی پس حاصل به دا وی چه خواه دَ آيتونه لوله ياکوم ايتونه چه وروستو نازليږی هغه لولى دټولو قرات په نوم دخدائی سره کول پکار دی اودوی ﷺ ته په ضروری علم سره معلومه شوه چه دا قرآن اووحی ده اوپه احاديثو کښې چه کوم د دوی ﷺ ويريدل او ورقه بن نوفل ته بيانول راغلې دی هغه په وجه دشبهې نه وو بلکه دوحی په هيبت اوويرې سره اضطراری وۀ اوورقه ته بيانول اطمنان اوزيات يقين دپاره وو نۀ چه دعدم يقين په سبب اومعلم شاګرد ته دا بجد شروع کولو په وخت کښې وائی چه ها لوله پس په دې سره تکليف مالا يطاق نه لازميږی اوددوی عذر فرمائيل يا خو په دې وجه چه دۀ ته ددې جملې معنى متعينه شوې نۀ وی چه په ما څۀ لوستل غواړی اودا کار څۀ خلاف شان نۀ دې يا باوجود دتعين دمراد په دې دې چه دَ قرات استعمال اکثرَ ليکلى شوی څيزونه لره دلوستلو په معنى کښې راځی نو دوی په دې وجه چه حرفونه ئې نۀ پيژندل داعذر فرمائيلې وی اودحضرت جبرائيل عليه السلام زور ورکول په غالب ګمان والله اعلم په حقيقت د حال څکه به وو چه په دوی ﷺ کښې دوحی دبار پورته کولو استعداپيدا کړی اوپه لفظ درب سره اشاره دې طرف ته ده چه مونږ ستا مکمل تربيت کوو اودنبوت اعلى درجوته به دې رسوو وړاندې د رب صفت دې يعنى هغه داسې رب دې ﴿خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ﴾[کوم چه ] مخلوقاتو لره[پيدا کړل ] ددې وصف په تخصيص کښې دا فائده ده چه دحق تعالى په نعمتونو کښې اول ظهور ددې نعمت کيږی نو په ذکرکولو کښې ددې مقدم کيدل مناسب دی او دارنګ خلق دليل دې په خالق باندې اود ټولونه اهم او وړومبې معرفت دخالق دې وړاند په طور دتخصيص پس دتعليم نه ارشاددې چه کوم چه په ټول مخلوقات کښې بالخصوص [انسان لره دويني دټکړې نه پيدا کړو] ددې تخصيص نه پس په تعليم کښې اشاره ده چه په نعمت دخلق کښې دعام مخلوقات نه زيات انعام په انسان دې چه دۀ لره ئې ترکومې درجې پورې ترقى ورکړه چه څنګه صورت ئې ورله جوړ کړو په عقل اوعلم سره ئې مشرف جوړ کړو پس انسان له زيات شکر اوذکر کول پکار دی اوتخصيص دعلق شايد څکه دې په دايو برزخی حالت دې چه ددې نه وړاند نطفه اوغذا اوعنصردې اوددې نه پس مضغه اوترکيب دهډوکو اوپوکل دروح دی پس داګويا دټولو مخکو اووروستو حالتونو مينځ دې وړاندې قرائت لره اهم مقصود مقررولو دپاره ارشاد دې چه ﴿اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ﴾[ته قرآن لوله ] حاصل داچه په وړومبی امر يعنی ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ سره ددا شبهه نۀ شی کولې چه دلته اصل مقصود ذکر داسم الله دې بلکه قرات په خپله هم فی نفسها مقصود دې څکه چه دتبليغ ذريعه هم دا قرات دې او اصل کار دصاحب وحی هم دغه تبليغ دې پس په دې تکرار کښې ددوی ﷺ دَ نبوت اومامور بالتبليغ کيدو اظهار هم وشو [او] وړاندې دهغه عذر رفع کولو طرف ته اشاره ده کوم چه دوی ﷺ اول جبرائيل عليه السلام ته پيش کړې وو چه زۀ لوستونکې نۀ يم په دې وجه ارشاد فرمائی چه [ستا رب لوئې کريم دې ] چه څۀ غواړی ورکوی

(۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۳ ص:۳۶]+

اوهغه داسې دي ﴿الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ﴾ [کوم چه] لیکونکو لوستونکو ته [په قلم سره د لیکلو تعلیم ورکړو] اوعموما اومطلقا ﴿عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ یَعْلَمْ﴾ [انسان ته ئې ] په نورو ذریعو سره [دهغو څیزونو تعلیم ورکړو کوم چه هغه نه پیژندل ] مطلب دا چه اول خو تعلیم څه په کتاب پورې منحصر نه دې ځکه چه په نورو طریقو سره هم دتعلیم مشاهده کیدې شي دویم اسباب موثر بالذات نه دي حقیقی مسبب اوعلم ورکوونکی مونږ یو پس اگر چه ته په لیکلو باند نه پوهیږې مگر هر کله چه مونږ تاته دقرأت امرکړې دې نو مونږ به په نورو ذریعو سره تاته دقرأت اودعلومو د وحی دیادولو باندې قدرت درکړو چنانچه داسې وشوه پس په دې ایتونو کښې د دوی ﷺ دنبوت اوددې دمقدماتو اومتماتو پوره بیان وشو اوچونکه دصاحب دنبوت مخالفت انتهائی درجه گناه اوناکاره کار دې په دې وجه په راتلونکو ایتونو کښې دکومو نزول چه داولنو ایتونو نه یوه موده پس شوې دې د دوی ﷺ دیو خاص مخالف یعنی د ابوجهل بدوالې په عامو الفاظو سره دې په کومو کښې چه نور مخالفین هم شامل شی چه ددې دنزول سبب دادې چه یوځل ابوجهل دوی ﷺ په مونځ کولو ولیدو ونې وئیل چه ما ډیر ځله ته ددې نه منع کړې دوی ﷺ هغهٔ لره ورټلو نوهغهٔ ووئیل چه په مکه کښې دټولو نه زیاته مجمع ماسره ده اوداتې هم وئیلی وو چه که بیا م په مونځ کولو ولیدې نو نعوذ بالله په څټ به دپښه کیږدم چنانچه یوځل په دې قصد سره لاړو مگر چه نزدې ورسیدو نو ودریدو او په شاتې واپس کیدل شروع کړل خلقو ترې نه دوجهې تپوس وکړو نو ونې وئیل چه ماته په مینځ کښې یو خندق د اور حائل معلوم شو او پرده دار څیزونه م په نظر راغلل دوی ﷺ وفرمائیل دغه فرښتې وی که دې نور راوراندې شوې وې نو فرښتو به تکړې تکړې کړې وو او شوکولې به ئې وو په دې داآیتونه نازل شول لکه په درمنثور کښې ئې دصحاحو وغیره کتابونو دحدیث نه داسې دی[1]

ارشاد فرمائی چه ﴿كَلَّاۤ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَیَطْغٰۤی﴾ [بیشکه په رینتیا سره] کافر [بنده دحد] دسرې توب [ نه وځی ﴿اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰی﴾ په دې وجه چه خپل خان لره ] دابنائې جنس نه [مستغنی وینی ] لکه داقول دالله تعالی دې، ﴿وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا﴾ الخ[2] حال دادې چه په دې استغناء سره سرکشی حماقت دې ځکه چه اگر که چاته گویا دمخلوق نه من وجه استغناء هم وشي لیکن دحق تعالی نه استغنا خو په هیڅ حال کښې نهٔ شی کیدې حتی چه په اخر کښې ﴿اِنَّ اِلٰی رَبِّكَ الرُّجْعٰی﴾ [اې مخاطبه ] عامو [ستارب طرف ته دټولو به واپس کیدل وی ] او هغه وخت به هم لکه دژوند په حالت کښې ددهٔ دقدرت په احاطه کښې گیروی اوپه دې حالت کښې کوم چه دهٔ ته دسرکشئ سزا ورکړې کیږی ددې نه به هم چرې نهٔ شی تښتیدې پس د داسې قادرنه داسې عاجز کله مستغنی کیدې شی نو خان لره مستغنی گنړل اوپه دې بنا سرکشی کول لوبه بې وقوفی ده وراندې په صورت داستفهام تعجب دې ددهٔ په سرکشئ یعنی ﴿اَرَءَیْتَ الَّذِیْ یَنْهٰی﴾ [اې مخاطبه ] عام ښه دهغه سړی [حال خو وښایه کوم چه ] ﴿عَبْدًا اِذَا صَلّٰی﴾ زمونږ [یوخاص بنده لره منع کوی کله چه هغه ] بنده [مونځ کوی] مطلب دا چه دهغه سړی حال خو وگوره نو وښایه چه ددې نه زیاته د تعجب خبره به هم څهٔ وی حاصل دا چه مونځ کوونکی لره

---

[1] ) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۳۰۲] و صحیح مسلم کتاب صفة المنافقین .... إلخ ، باب صفة القیامة والجنة والنار[ج:۲ص:۳۷۲]و مسند احمد ،مسند ابی هریرة رضی الله عنه رقم الحدیث:[۸۸۳۱]

[2] ) اوکه الله تعالی د خپل بنده دپاره روزئ کښې فراخوالی راولی نو دوئ په دنیا کښې فساد جوړ کړی،

دمونځ نه منع کول ډيره ناکاره اوتعجب خبره ده وراندې ددې تعجب دتاکيد اوتقويت دپاره مکرر فرمائی چه ﴿اَرَءَيْتَ اِنْ كَانَ عَلَى الْهُدٰٓى﴾ [ اے مخاطبه] [عام] [ايا داخووښايه چه کهٔ هغه بنده ] کوم چه دمونځ نه منع شوې دې [په هدايت وی] کوم چه لازمی کمال دې ﴿اَوْ اَمَرَ بِالتَّقْوٰى﴾ [ياهغه] نوروته هم [دتقوی تعليم کوی] کوم چه کمال متعدی يعنی نوروته نفع رسول دی اوشايد چه په کلمه دترديد راوړو سره اشاره دې طرف ته وی چه کهٔ په دې کښې يوصفت هم وی نو بيا هم دمنع کوونکی دمذمت دپاره کافی وو بيالاخهٔ کوې چه دواړه په کښې وی او﴿اَرَءَيْتَ اِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى﴾[اے مخاطبه] [عام] ايا دا خو اوښايه چه کهٔ دغه سړی [ منع کوونکې حق دين لره] دروغژن کوی او[ دحق دين نه ] مخ اړوی يعنی نهٔ عقيده لری اونه عمل يعنی اول خو دا وګوره چه دمونځ نه منع کول څومره بددی بيابالخصوص دا وګوره چه کله منع کوونکې يوګمراه اوچالره چه منع کوی هغه دهدايت اعلی نمونه ده نو داڅومره عجيبه خبره ده وراندې په دې منع کولو باندې دهٔ ته وعيد دې يعنی ﴿اَلَمْ يَعْلَمْ بِاَنَّ اللّٰهَ يَرٰى﴾ [ايا هغه سړی ته دا خبر نشته چه الله تعالی ] ددهٔ سرکشئ اوپه دې سره پيداکيدونکو عملونه لره[وينی] اوپه دې سزا ورکوی وراند په دې زجر دې يعنی ﴿كَلَّا لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ ۬ لَنَسْفَعًۢا بِالنَّاصِيَةِ﴾ دهٔ لره [ هر ګز ] داسې [نهٔ ده] کول پکار او[کهٔ داسړې ] دخپل دې حرکت نه[واپس نهٔ شو نو مونږ به ]دهٔ لره [دتندی نه ونيسو ﴿نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ﴾کوم چه دروغژن اوپه خطا کښې ککړ تندې دې ] جهنم طرف ته[ رابه ئې کاږو] ناصيه دتندی ويښتوته وئيلې شی کوم ته چه په ويښتو کښې اوريلګې وانی ددې په صفت کښې ئې کاذبه اوخاطئه مجازا وفرمائيل اودې چه کوم په خپله مجمع باند مغرور دې اوزمونږ پيغمبر پرې ويروی ﴿فَلْيَدْعُ نَادِيَهٗ﴾[پس دې دې خپلو مجلسيانو لره راوبلی ]کهٔ دهٔ داسې وکړل نو﴿سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ﴾[مونږ به هم د دوزخ پيادو لره راوبلو] چونکه هغهٔ راونهٔ بلل په دې وجه الله تعالی دغو فرېښتو لره هم راونهٔ بللې لکه چه طبری دقتاده نه روايت کړې دې (1)مرسلاقال النبی صلی الله عليه وسلم لوفعل ابوجهل لاخذته الملئكة الزبانيه عيانا(2) وراندې بيا دزيات دزجر دپاره دهٔ ته خبرداری دې چه ﴿كَلَّا ۭ لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ﴾ دهٔ لره [هرګز] داسې [نهٔ دی] کول پکار مګر[ته] ددې نالائق ددې حرکتونو پرواه مهٔ کوه او[ددهٔ خبره مه منه ] لکه چه تراوسه دې هم نهٔ ده منلې [اوپه خپله طريقه مونځ کوه او دخدائې نزديکت حاصلوه ] په دې کښې يولطيفه وعده ده چه حق تعالی به تاله ددې خلقو د ضررنه محفوظ ساتی څکه چه په مونځ سره قرب حاصليږی اوقرب موجب دعظمت دې الاحکمةعاصمة پس داسې کارونو طرف ته هيڅ التفات مه کوه په خپل کار کښې لګياوسه ]

## معارف او مسائل

**د نبوت د وحی ابتداء اود اولو نه رومبی وحی** د صحيحين او نورو معتبرو رواياتونه ثابت دی او د جمهورو سلف اوخلف په دې باندې اتفاق دې چه د وحی شروع د سورت علق يعنی اقرأ نه شوې

(1) نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ابو جهل طرفته ورتللم نو د دوزخ فرېښتې به د ټولو په وراندې دهغه غوښه به ئې چيچلې وې.

(2) تفسيرالطبري [ج:۲۴ ص:۵۲۷] و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب تفسير سورة اقرا باسم ربك[ج ۲ ص:۱۷۲] و مسند احمد ،مسند عبدالله بن عباس عبدالمطلب عن النبي ﷺ رقم الحديث:[۳۴۸۳]

ده اوددي سورت رومبي پنځه آياتونه مَا لَمْ يَعْلَمْ پورې د ټولونه اول نازل شوي دی[1]. بعض حضراتو سورت مدثر د ټولونه اول سورت ګرځولې دې او بعض سورت فاتحه. امام بغوی رحمه الله فرمائيلی دې چه د جمهورو سلف او خلف په نيز صحيح هم دغه دی چه د ټولو نه مخکښې د سورت اقرأ پنځه آياتونه نازل شوی. [كذا روى عن ابن عباس والزهري وعمرو بن دينار. درمنثور][2] او کوم حضراتو چه سورت مدثر ته رومبې سورت وئيلې دې د دې وجه دا ده چه د اقرأ نازليدو نه پس د قرآن په نزول کښې د څه مودې پورې توقف وو کوم ته چه زمانه فترت وئيلی شی او د وحی په تاخير او توقف سره رسول الله ﷺ سخت خفه شوې وو. د هغې نه پس بيا ناڅاپی حضرت جبرائيل علیه السلام مخې ته راغلو او د سورت مدثر آياتونه نازل شو. هغه وخت هم په رسول الله ﷺ باندې د نزول وحی او ملاقات جبرائيل سره هم هغه کيفيت شروع شو کوم چه د سورت اقرأ د نازليدلو په وخت شوې وو. د کوم بيان چه وړاندې راځي. دغه شان د فترت نه پس د ټولو نه اول د سورت مدثر د شروع آياتونه نازل شو. په دې لحاظ سره دې ته هم رومبې سورت وئيلی شی او سورت فاتحه چه کومو حضراتو رومبې سورت ګرځولې دې د هغې هم يوه وجه ده هغه دا چه مکمل سورت د ټولو نه اول هم سورت فاتحه نازل شو. د دې نه وړاندې د يوڅو سورتونو متفرق آياتونه نازل شوی وو [مظهری][3]. د صحيحين په اوږد حديث شريف کښې د نبوت او وحی د شروع واقعه داسې بيان شوې ده. چه ام المؤمنين حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی د ټولو نه اول په رسول الله ﷺ باندې د وحی سلسله په رؤياء صادقه يعنی رښتونی خوبونو سره شروع شوه د کوم کيفيت چه داوو چه کوم څه به حضورپاك په خوب کښې ليدل بالكل د هغې مطابق به واقعه پيښيدله او په هغې کښې به د څه تعبير هم ضرورت نه وو. د سحر د رڼرا په شان واضحه توګه باندې په خوب کښې ليدلې شوې واقعه به مخې ته راتلله.

دې نه پس رسول الله ﷺ ته د مخلوق نه يوطرف ته په خلوت کښې د عبادت کولو داعيه قوی راغله د کوم د پاره چه حضورپاك غار حراء خوښ کړو [دا غار د مکې مکرمې قبرستان جنة المعلی سره څه وړاندې په يوغرباندې دې کوم ته چه جبل النور وئيلی شی د دې څوکه د لرې نه ښکاری] حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها فرمائی چه حضورپاك به دغه غار ته د شپې تللو او هلته به اوسيدلو او عبادت به ئې کولو ترکومې چه به د بال بچ د خير ښيګړې ضرورت نه وو پيښ شوې هم هلته به اوسيدلو او د هغه وخت د پاره به حضورپاك ضروری سامان اوړلو او بيا د سامان ختميدو نه پس به ئې حضرت خديجه رضی الله عنها له تشريف راوړلو او د نورو څو ورځو د پاره به ئې توخه اوړله. تر دې چه حضورپاك هم په دغه غار حراء کښې وو چه ناڅاپی د حضور مخې ته حق يعنې وحی راورسيدله[4] [په غار حراء کښې د خلوت په زمانه کښې د علماؤ اختلاف دې. د صحيحين[5] روايت دې چه حضورپاك يو مياشت يعنی پوره د رمضان مياشت هلته قيام کړې.

[1] صحيح البخاري باب كيف كان بدء الوحي ،[ج ١ص ٣] و صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ [ج:١ص:٨٨]

[2] تفسيرالدرالمنثور [ج:١٥ ص:٢٩٩] و تفسير البغوى [ج ٨ ص:٤٧٤]

[3] تفسير المظهري[ج:١٠ص:٣٠١]

[4] صحيح البخاري باب كيف كان بدء الوحي ،[ج:١ص:٣]

[5] صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب بدء الوحي إلى رسول الله ﷺ [ج:١ص:٨٨]

ابن اسحاق په سیرت کښې او زرقاني په شرح مواهب کښې فرمائیلي دي چه دَدې نه زیاته موده په یوصحیح روایت سره ثابته نه ده] اودا عبادت کوم چه حضورپاك په غارحراء کښې دَ وحی دَ نازلیدلو نه مخکښې کولو دغه وخت دَ مونځ وغیره تعلیم خو شوې نه وو. بعض حضرات فرمائي دَحضرت نوح علیه السلام او حضرت ابراهیم علیه السلام دَ شریعتونو مطابق به نې عبادت کولو مګر نه په یوروایت سره دَدې څه ثبوت شته او نه دَ حضورپاك دَ امي کیدو دَ وجې نه دا احتمال صحیح دی بلکه ښکاره داده چه هغه وخت دَحضورپاك عبادت صرف دَمخلوق نه تعلق کټ کیدل اودَ الله تعالی طرف ته توجه خاص اودَ تفکر وو. [مظهري][1]

حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائي چه دَ وحی دَ راتلو صورت دا شوچه فرښته یعنی جبرائیل علیه السلام حضورپاك له راغلو او ورته ئې اووئیل اقرأ نو حضورپاك اوفرمائیل مَآاَنَابِقَارِي یعنی زه لوستونکې نه یم [ځکه چه حضورپاك امي وو. دَجبرائیل امین دَ قول اقرأ مراد په حضورپاك باندې هغه وخت ښکاره نه وو چه څه او څنګه اولوستل غواړي. آیا یو لیکلې شوې تحریر به راکوي کوم چه لوستل دی، په دې وجه دَ خپل امي کیدو عذر ئې اوکړو] دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په روایت کښې دی چه حضورپاك اوفرمائیل زما په دې جواب باندې جبرائیل امین زه په خپله غیږ کښې اونیولم او دومره زور ئې راکړو چه ماته دَهغې تکلیف محسوس شو. دې نه پس ئې زه پریخودم اوبیائې هم هغه خبره اوکړه اقرأ ما بیا هم هغه جواب ورکړو چه زه لوستونکې نه یم. نوبیا جبرائیل امین غیږ کښې اونیولم اودومره زور ئې راکړو چه ماته دَهغې تکلیف محسوس شو بیائې پریخودم اووئې وئیل ﴿ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ ۝ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۝ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ۝ الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۝ عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَالَمْ یَعْلَمْ ۝ ﴾

دَ قرآن کریم دا [دَ ټولو نه اولنی پنځه] آیاتو اخستو سره حضورپاك واپس کور ته تشریف راوړو. دَ حضورپاك زړه رپیدلو. حضرت خدیجه رضی الله عنها له راغلو وئې فرمائیل [زَمِّلُوْنِیْ زَمِّلُوْنِیْ] ماپټ کړه ما پټ کړه [حضرت خدیجه رضی الله عنها په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې کپړې واچولې] ترهغه وخته پورې چه دَ ویرې دا کیفیت لرې شو [دا کیفیت او رپیدل دَ جبرائیل علیه السلام دَ ویرې نه وو ځکه چه دَ حضورپاك شان دَ هغه نه ډیر اوچت اوبالا دې بلکه دَ دغه وحی په ذریعه چه دَ نبوت او رسالت کومه ذمه واری حضورپاك ته حواله کړې شوه دَ هغې بوج محسوس کولو او یوه فرښته دَهغې په اصلی صورت کښې په لیدلو سره په طبعي توګه دا دَ هیبت کیفیت پیدا شو]

حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائي دَ ګذارې کیدونه پس رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت خدیجه رضی الله عنها ته دَ غار حراء ټوله واقعه بیان کړه اووئې فرمائیل چه په دې سره په ما باندې یوداسې کیفیت شروع شو چه ماسره دَ خپل ځان ویره شوه. حضرت خدیجه ام المؤمنین رضی الله عنها عرض اوکړو چه داسې هیڅ کله نه شي کیدې الله تعالی به تاسو هیڅ کله ناکام نه کړي ځکه چه تاسو صله رحمي کوئې. په بوج کښې دَ راګیرو خلقو بوجونه اوچتوئې. بې روزګار سړې په کسب باندې لګوئې. دَ میلمنو ملمستیاکوئې، اودَ مصیبت وهلو خلقو امداد کوئې. [حضرت خدیجه لیکلې لوستلې ښځه وه کیدې شي چه دَ پخوانو کتابونو توریت او انجیل نه یائې دَ دې دَعلماؤ نه داخبره معلومه کړې وی چه دَ کوم سړي عادات واخلاق داسې کریمانه وی هغه محروم اوناکام کیږی نه په دې وجه ئې په دې طریقه سره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته تسلي ورکړه].

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۰۰]

دي نه پس حضرت خدیجه ﷺ حضورپاك دَ خپل تره خوئي ورقه بن نوفل له بوتللو. ده دَ جاهلیت په زمانه کښې دَ بت پرستئ نه توبه کړې وه او نصراني شوې وو [څکه چه دَهغه وخت حق دین هم دغه وو] ورقه بن نوفل [تعلیم یافته سړې ووعبراني ژبه باندې هم پوهیدلو اوعربي خودَهغه مورنئ ژبه وه] هغه به په عبراني ژبه کښې هم لیکلو او به انجیل به ئې په عربي ژبه کښې هم لیکلو اوهغه وخت هغه ډیر بوډا وو دَ بوډاوالی دَ وجې نه ئې نظر تللې وو حضرت خدیجه ﷺ اوونیل زما دَ تره خویه لږ شان دَ خپل وراره خبره واوره. ورقه بن نوفل دَ حضورپاك نه حال احوال معلوم کړو نوحضورپاك چه په غار حراء کښې کوم څه لیدلي وو هغه ئې بیان کړل. ورقه بن نوفل اوریدوسره اوونیل چه دا هم هغه ناموس یعنې فرښته ده کومه چه الله تعالی په حضرت موسی ﷺ باندې نازل کړې وه. افسوس چه زه ستا دَ نبوت په زمانه کښې قوي وې اوافسوس چه زه هغه وخت ژوندې وې کوم وخت چه به ستاقوم تادَ وطنه اوباسي. رسول الله ﷺ [په حیرانتیاسره پوښتنه] اوکړه آیا زما قوم به ما اوباسي. ورقه اوونیل بیشکه اوباسي به دې څکه چه کله هم یوسړي هغه حق پیغام او حق دین راوړلې راغلې دې کوم چه تاسو راوړلې دې نودَ هغه قوم هغه تنګ کړې دې اوکه چرې ما هغه زمانه اولیدله نو زه به ستا پوره امداد کوم. مګر ورقه دَ دې نه یوڅو ورځې پس انتقال شو اودَدې واقعه نه پس دَ قرآن دَ وحی سلسله بنده شوه. [بخاري ومسلم] (۱) دَ فترت وحی دَ مودې متعلق دَ سهیلي روایت دادې چه دوه نیم کاله پورې وه اوبعض روایاتو کښې دَ دریو کالو موده بیان کړې شوې ده. [مظهري] (۲)

﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ۝﴾ باسم ربك کښې لفظ اسم زیاتولوسره دې طرف ته اشاره ده چه قرآن کله هم لولئ دَالله نوم اخستلوسره یعنې بسم الله الرحمن الرحیم لوستلوسره شروع کوئ لکه چه په خلاصه تفسیر کښې لیکلي شوي دي. دویمه اشاره په دې کښې دَهغه عذر جواب طرف ته ده چه حضورپاك پیش کړې وو زه قاري نه یم. باسم ربك په لفظ سره دې طرف ته اشاره اوکړې شوه سره دَدې چه حضورپاك دَ خپل موجوده حالت په اعتبار سره امي دې لیکونکې لوستونکې نه دې مګر ستارب سره ټول قدرت دې هغه امي سړي ته اعلی علوم اودَ خطابت سلیقه اودَ فصاحت اوبلاغت هغه درجه ورکولې شي دَ کوم په مخکښې چه لوئې لوئې تعلیم یافته عاجزشي لکه روستوچه دَدې ظهور اوشو [مظهري] (۳). او په دې مقام باندې دَ الله تعالی اسماء حسنی نه لفظ دَ رب په خصوصیت سره اختیارولو کښې دَدې مضمون نور تائید اوتاکید اوشو چه الله تعالی ستا پروردګاردې دَهرقسم ترتیب کولې شي. هغه دَ امي کیدوسره په تاسو باندې لوستل هم کولې شي. الَّذِي خَلَقَ دَ صفات الهیه نه په دې ځائې کښې دَ تخلیق صفت په خصوصیت سره ذکرکولو کښې کیدې شي دا حکمت وي چه په مخلوقاتو باندې څنګه الله تعالی انعامات اواحسانات دي په هغې کښې دَ ټولو نه اولنې انعام هغه ته وجود ورکول دي چه په تخلیق رباني سره ورکړې کیږي. او دې ځائې کښې دَ خَلَقَ مفعول یعنې کوم څیز ئې چه پیدا کړو هغه ئې ذکرنه کړو په دې کښې دَ عموم طرف ته اشاره ده چه دا ټول کائنات هم دَهغه مخلوق دي.

---

(۱) صحیح البخاري باب کیف کان بدء الوحي ،[ج:۱ص:۳]و صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب بدء الوحی إلى رسول الله ﷺ [ج:۱ص:۸۸]

(۲) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۰۲]

(۳) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۰۳ ، ۳۰۴]

﴿خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ﴾ اَلَّذِیْ خَلَقَ کښې دَ پوره کائناتو دَ تخلیق بیان شوې وو او په خَلَقَ الْاِنْسَانَ کښې دَ اشرف المخلوقات انسان ذکر ئې اوفرمائیل چه په غور سره اوکوروئي نو دَ ټول کائنات او ټولو مخلوقاتو خلاصه انسان دې. په جهان کښې چه څه دي هم دَ هغې نظائر دَ انسان په وجود کښې موجود دي. په دې وجه انسان ته عالم اصغر وئیلې شي او دَ انسان په تخصیص سره دَ ذکر کولو وجه یوه داهم ده چه دَ نبوت رسالت او دَ قرآن دَ نازلو مقصد دَ الله تعالی دَ احکامو تنفیذ او تعمیل دې او هغه هم انسان سره مخصوص دي. دَ عَلَقَ معنی دَ چکې وینې ده. دَ انسان په تخلیق باندې مختلف دورونه تیر شو او تیریږي دَ ده شروع دَ خاورې او عناصر نه ده بیا دَ نطفه نه او دَ هغې نه پس عَلَقه یعنی دَ چکه شوې وینه جوړیږي بیا مضغه یعنی غوښه بیا هډوکي وغیره پیدا کیږي. علقه په هغه ټولو ادوارو دَ تخلیق کښې یو مینځنې حالت دې دَ دې په اختیار ولو سره دَ دې اول او آخر ته اشاره اوکړې شوه.

﴿اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ﴾ دلته لفظ دَ اقرأ مکرر راوړلې شوې دې دَ کوم یوه وجه خو په خلاصه تفسیر کښې راغلې ده او داهم وئیلې شي چه رومبې اقرأ خو پخپله دَ حضور پاک دَ لوستلو دَپاره فرمائیلې شوې وه. دا دویمه دَ تبلیغ او دعوت او خلقو ته دَ خودلو دَپاره فرمائیلې شوې او که صرف دَ تاکید دَپاره تکرار وی نو هغه هم څه لرې خبره نه ده. او صفت اکرم کښې دې طرف ته اشاره ده چه په تخلیق عالم او تخلیق انسان کښې دَ الله تعالی خپله هیڅ نفع او غرض نشته دې بلکه دا هرڅه دَ مهربانئ او کرم دي چه بغیر دَ طلب نه ئې کائناتو ته دَ وجود نعمت ورکړو.

﴿اَلَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ﴾ دَ تخلیق انسانی نه پس دَ هغه دَ تعلیم بیان دې ځکه چه تعلیم هم هغه څیز دې چه انسان دَ نورو ټولو حیواناتو نه ممتاز او دَ ټولو مخلوقاتو نه اشرف او اعلی جوړوي. بیا دَ تعلیم عام صورتونه دوه دي یو زبانی تعلیم او بل دَ قلم په ذریعه تحریر او خط. دَ سورت په شروع کښې لفظ اقرأ کښې سره دَ دې چه هم دَ زبانی تعلیم شروع ده مګر په دې آیت کښې چه کوم ځائې دَ تعلیم ورکولو بیان راغلې دې په هغې کښې قلمی تعلیم مقدم کولو سره بیان کړې دې.

**دَ تعلیم دَ ټولو نه رومبې او اهم ذریعه قلم او کتابت دې:** یو صحیح حدیث دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت سره دې په کوم کښې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي **لما خلق الله الخلق کتب فی کتابه فهو عنده فوق العرش، ان رحمتی غلبت غضبی** یعنی الله تعالی په ازل کښې کله چې مخلوق پیدا کړو نو په خپل کتاب کوم چه الله تعالی سره په عرش باندې دې دا کلمه اولیکله "زما رحمت زما په غضب باندې غالب دې"[1]. په یو بل حدیث کښې داهم ثابت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل [**اول ما خلق الله القلم فقال له اکتب فکتب ما یکون الی یوم القیمة فهو عنده فی الذکر فوق عرشه**] یعنی دَ ټولو نه اول الله تعالی قلم پیدا کړو او هغه ته ئې حکم ورکړو چه لیکه، قلم هغه ټول څیزونه کوم چه دَ قیامت پورې کیدونکي وو اولیکل، دا کتاب الله تعالی سره په عرش باندې دې [قرطبی][2]

**دَ قلم درې قسمونه.** علماء کرامو فرمائیلي دي چه په عالم کښې درې قلمونه دي. یو دَ ټولو نه رومبې قلم کوم چه الله تعالی په خپل لاس باندې پیدا کړو او دَ کائناتو دَ تقدیر لیکلوئې هغه ته حکم

[1] صحیح البخاري کتاب بدء الخلق ،باب ماجاء فی قول الله تعالی: وهو الذي يبدء الخلق ثم يعيده [ج:١ص:٤٥٣] و شرح السنة للبغوی کتاب الرقاق باب الرجاء وسعة رحمة الله عزوجل رقم الحدیث:[٤١٧٧]
[2] تفسیر القرطبي[ج:٢٠ص:١٢١] وجامع الترمذي ، ابواب القدر باب ماجاء فی الرضاء بالقضا [ج:٢ ص:٣٧]

ورکړو دویم د فرښتو قلم په کوم سره چه هغوی ټول کیدونکي واقعات او د هغوی مقادیر او نور د انسانانو اعمال لیکي دریم د عام انسانانو قلم په کوم سره چه هغوی خپل کلام لیکي او په خپلو مقاصدو کښې تري کار اخلي او کتاب په حقیقت کښې د بیان یو قسم دي او بیان د انسان مخصوص صفت دي [قرطبي][1] امام تفسیر مجاهد رحمه الله د ابو عمرو رحمه الله نه نقل کړي دي چه الله تعالی په ټول کائنات کښې څلور څیزونه په خپل لاس د قدرت پخپله جوړ کړل او د هغې نه سوا د باقي مخلوقاتو د پاره ئې حکم د کُن ورکړو یعنی اوشئي نو موجود شو هغه څلور څیزونه دا دي. قلم عرش جنت عدن او آدم علیه السلام

**علم کتابت د ټولو نه اول په دنیا کښې چاته ورکړې شو** بعض حضراتو فرمائیلي د ټولو نه اول د کتابت دا فن ابو البشر حضرت آدم علیه السلام ته خودلې شوې وو او د ټولو نه اول هم هغوی لیکل شروع کړه [کعب احبار] او بعض حضراتو فرمائیلي د ټولو نه اول دا فن حضرت ادریس علیه السلام ته ملاؤ شوې دې د ټولو نه رومبې کاتب په دنیا کښې هم هغه دې [ضحاك] او بعض حضراتو فرمائیلي چه هر سړي کوم کتابت کوی هغه تعلیم هم د الله تعالی د طرف نه دې[2].

**خط او کتابت د الله تعالی لوئې نعمت دې** حضرت قتاده رحمه الله فرمائیلي دي چه قلم د الله تعالی ډیر لوئې نعمت دې که چرې دا نه وو نو نه به یو دین قائم پاتې شوې وې او نه به د دنیا کاروزګار صحیح وې. حضرت علی رضي الله عنه فرمائیلي د الله تعالی ډیر لوئې کرم دې چه هغه خپلو بندګانو ته د هغه څیزونو علم ورکړو کوم چه هغوی نه پیژندل او هغوی د جهالت د تیارونه د علم نور طرف ته راوویستل او د علم کتابت ترغیب ئې ورکړو څکه چه په دې کښې بې شمیره او لوئې فائدې دي د کوم چه د الله تعالی نه علاوه بل څوك احاطه نه شي کولې د ټولو علومو او حکم تدوین او اولین او آخرین تاریخ د هغې حالات او مقالات او د الله تعالی نازل کړې شوی کتابونه ټول هم د قلم په ذریعه سره لیکلې شوی دی او تر آخره پورې به باقي وی. که چرې قلم نه وی نو د دنیا او دین ټول کارونه به وران ویجاړ وو.

**علماء سلف او خلف همیشه د خط او کتابت ډیر اهتمام کړې دې** علماء سلفو او خلفو همیشه د خط او کتابت ډیر اهتمام کړې دې په کوم چه د هغوی د تصانیف عظیم الشان ذخیرې ترننه پورې موجود ده. افسوس دې چه زمونږ په دې دور کښې علماء او طلباء دا اهم ضرورت داسې هیر کړې دې چه په سوونو کښې به دوه څلور کسان په مشکل سره تحریر کتابت پیژندونکي وی. فالی الله المشتکی

**رسول الله ﷺ ته د کتابت تعلیم نه ورکولو کښې راز** الله تعالی د خاتم الانبیاء ﷺ شان د خلقو د فکر او قیاس نه اوچت جوړولو د پاره د حضور پاك د پیدائش د ځائې نه واخله د حضور پاك ذاتي حالاتو چنړې ټول داسې جوړ کړي وو چه په کوم کښې یو انسان په خپل ذاتي کوشش او محنت سره څه کمال نه شي حاصلولې د پیدائش د پاره د عربو صحرا خوښ کړې شو چه د متمدن دنیا او حکمت او علم د ګهوارو نه بالکل جدا شوې وو او لارې او مواصلات دومره سخت وو چه د شام عراق او مصر وغیره متمدن ښاریو نه د دې ځائې د خلقو هیڅ جوړ نه وو. په دې وجه ټول عرب امیین یادیدل په داسې ملك او داسې قبائلو کښې رسول الله ﷺ پیدا شو او بیا الله تعالی داسې تیارې او کړل چه د عربو په خلقو کښې خال خال چا به د علم حکمت او خط و کتابت زده کولو

[1] تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۲۱]
[2] تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۲۰]

نو حضور پاك ته دهغې دَ زده كولو هم موقع ورنه كړې شوه په داسې حالاتو كښې پيدا كيدونكى انسان نه دَ علم حكمت او اخلاق فاضله عاليه څنګه تصور كيدې شي ناڅاپى الله تعالى په خلعت نبوت سره سرفراز كړو اودَ علم اوحكمت نه ختميدونكى سلسله دَ حضور پاك په ژبه مباركه باندې روانه كړه په فصاحت اوبلاغت كښې دَ عربو لوئى لوئى شعراء اوبلغاء دَحضور پاك په وړاندې عاجز پاتې شو دا يوه داسې ښكاره معجزه وه چه هريوسترګو والا دَدې په ليدو سره دا يقين كولونه بغيرنه شو پاتې كيدې چه دَ حضورپاك دَ انسانى كمالاتو سعى اوعمل نتيجه نه بلكه دَ الله تعالى غيبى عطيات دى. دَخط اوكتابت تعليم نه وركولو كښې هم دغه حكمت وو [ماخوذ ازقرطبى] (۱)

﴿عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ دَدې نه په وړاندې آيت كښې دَتعليم دَ يو خاص ذريعې ذكر وو چه په عام توګه دَ تعليم دَپاره استعماليږى يعنى قلمى تعليم.

**دعلم ذريعه صرف قلم نه بلكه بې شميره ذرائع دى.** په دې آيت كښې دَ دې ذكر دې چه اصل تعليم وركونكې الله تعالى دې اودهغه دَپاره دَتعليم ذرائع بې شميره دى. څه قلم سره مخصوص نه دى په دې وجه ئې اوفرمائيل الله تعالى انسان ته هغه علم وركړو دكوم نه چه هغه اول ناخبره وو. په دې كښې دَ قلم يا دَ بل ذريعه تعليم ذكرنه كولوسره دې طرف ته اشاره ده چه دَالله تعالى دا تعليم دَ شروع نه جارى دې چه اول ئې په هغه كښې عقل پيدا كړو كوم چه دَ ټولو نه لوئى دَ علم ذريعه ده. انسان په خپل عقل سره پخپله بغيردَ څه تعليم نه ډير څه زده كولې شى. بيا دَه وړاندې روستو دَ قدرت كامله داسې مناظر او دلائل دَ قدرت كيخودى دى دكوم مشاهده كولوسره چه هغه په خپل عقل سره خپل پيدا كونكې اوپيژندې شى. بيا دَوحى اوالهام په ذريعه دَ ډيرو څيزونو علم انسان ته وركړې شو اودَ ډيرو ضرورى څيزونو علم ئې دَ انسان په ذهن كښې خپل پخپله پيدا كړو په كوم كښې چه دَ يوې ژبې يا قلم دَتعليم دخل نشته دې. يوبې شعوره ماشوم دَ مورد خيټې نه پيدا كيدوسره خپل دَ خوراك مركز يعنى دَمور سينې پيژنى. بيا دَ سينو نه دَ پينو راويستو دَپاره خلې ته زور وركول ده ته چا اوخودل او چا ورته خودلې شو. بيا ده ته الله تعالى دَ پيدا كيدو نه اول يو هنر دَ ژړا اوخودلو. دَ ماشوم دا ژړا دَ هغه دَ ټولو ضرورتونو دَ پوره كولو ذريعه جوړيږى. دَ ده په ژړا كتلوسره مور پلار په دې فكر كښې شى چه هغه ته څه تكليف دې. دهغه اولږه تنده يخنى ګرمى ټول ضرورتونه هم په دې ژړا سره پوره كيږى. دا دَ ژړا تعليم دې نوى پيدا شوى بچى ته چا خودلې شو او څنګه ئې كولې شو. داټول دَ الله تعالى علم دې كوم چه الله تعالى دَ هرساه لرونكې خاص كر دَ انسان په ذهن كښې پيدا كوى. دَدې ضرورى علم نه پس بيا دَ زبانى تعليم او بيا دَ قلبى تعليم په ذريعه دَهغه په علومو كښې زياتوالې كيږى. او ﴿مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ يعنى څوك چه هغه نه پيژندل دَ دې دَ وينا كولو په ظاهره څه ضرورت نه وو خكه چه عادتًا تعليم خودهغه څيزونو كيږى كوم چه انسان نه پيژنى. دَدې په فرمائيلو كښې دې طرف ته اشاره ده چه داداالله تعالى دَ طرف نه وركړې شوى علم او هنر دې انسان دې دا خپل ذاتى كمال نه ګنړى. ﴿مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ سره ئې اشاره اوفرمائيله چه په انسان باندې يوداسې وخت هم راغلې دې كوم وخت چه هغه هيڅ نه پيژندل لكه چه په قرآن كريم كښې ارشاد دې ﴿أَخْرَجَكُم مِّن بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ لَا

---

(۱) تفسير القرطبي [ ج.۱۳ص.۳۵۲] تفسير سورة العنكبوت آيت:۴۸

تَعْلَمُوْنَ شَیْئًا) یعنی الله تعالی تاسو ته ستاسو د میندو د خیټونه په داسې حالت کښې اوویستلئ چه تاسو هیڅ نه پیژندل معلومه شوه چه انسان ته کوم علم اوهنر ملاؤشوې دې هغه د هغه ذاتی نه بلکه ټول د هغه د خالق اومالك ورکړه ده. [مظهری](١) اوبعض مفسرین حضراتو په دې آیت کښې د انسان نه حضرت آدم ﷺ یا نبی کریم ﷺ مراد اخستې دې خکه چه آدم ﷺ د ټولو نه رومبې انسان دې چاته چه تعلیم ورکړې شو (وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا)(٢)
او نبی کریم ﷺ هغه آخری پیغمبر دې د چا په تعلیم کښې چه ټول انبیاء سابقین علوم او د لوح اوقلم علوم شامل دی کماقال ومن علومك علم اللوح والقلم(٣)
تردې چه سورة اقرأ پنځه آیاتونه د ټولو نه اول نازل شو. د دې نه روستونو آیاتونه د ډیرې مودې نه پس نازل شو ځکه چه باقی آیاتونه د سورت د آخر پورې د ابوجهل د یوې واقعې سره متعلق دی.
او د وحی اونبوت شروع کیدو نه اول په مکه کښې هیڅوك د حضورپاك مخالف نه وو. حضورپاك به ئې د آمین په لقب سره یادولو اومحبت اوتعظیم به ئې کولو. د ابوجهل مخالفت اودښمنی خاص کر د مونځ نه منع کولو واقعه چه وړاندې راتلونکو آیاتونو کښې ذکر ده. ښکاره خبره ده چه د هغه وخت ده کوم وخت چه رسول الله ﷺ د نبوت اودعوت اعلان اوکړو اود معراج په شپه ورته د مونځ کولو حکم ورکړې شو.
(كَلَّآ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَیَطْغٰۤی ﴿﴾ اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰی ﴿﴾) د دې آیت مبارك اشاره سره د دې چه د یو خاص سړی ابوجهل طرف ته ده چه د رسول الله ﷺ په شان کښې ئې گستاخی کړې وه مگر عنوان ئې عام اوساتلو په کوم کښې چه د عاموانسانانو یوه کمزوری بیان کړې شوه چه انسان ترکومې پورې د نورو خلقو محتاج پاتې وی نونیغ روان وی اوکله چه د هغه دا گمان پیداشی چه زه د چا محتاج نه یم د ټولو نه بې پرواه یم نود هغه په نفس کښې طغیان یعنی سرکشی وغیره او په نورو باندې د ظلم اوستم رجحانات پیدا کیږی لکه څنگه چه په عام توگه مالدارانو او د حکومت والو او اولاد اواحباب یاد خدام په کثرت سره مشاهده کیږی چه هغه د خپل هم سنگ خلقو سره په طاقت کښې سست کیدوسره څوك په خیال کښې نه راولی. چونکه د ابوجهل هم دغه حال وو چه د مکې د مالدارانو خلقونه وو اود هغه د قبیلې بلکه ټول ښار خلقو به د هغه تعظیم اوتکریم کولو اوخبره به ئې منله هغه هم په دې گیره کښې راگیرشو تردې چه د سید الانبیاء او اشرف الخلائق په شان کښې ئې گستاخی اوکړه. په مخکښې آیت کښې د داسې سرکشو د خراب انجام تنبیه ده.
(اِنَّ اِلٰی رَبِّكَ الرُّجْعٰی ﴿﴾) رجعی په شان د بشری اسم مصدر دې. معنی دا چه ټول به د خپل رب طرف ته واپس کیږی د دې ظاهری معنی خو هم دغه ده چه د مرگ نه پس به ټول الله تعالی له ورخی او د نه اوبد عمل حساب ورکول دی. هغه وخت به دغه طغیانی اوسرکشی کونکی بدانجام په خپلو سترگو اووینی اودا هم لرې نه ده چه په دې جمله کښې د مغرور انسان د غرور علاج خودلې شوې دی چه اې بې وقوفه ته خپل خان د ټولو نه بې پرواه او خودمختار گنړې که چرې غور دې

---

١) تفسیر المظهری[ج:١٠ص: ٣٠٤ ، ٣٠٥]
٢) ترجمه :- او الله تعالی علم ورکړو حضرت آدم ﷺ ته د ټولو څیزونود نومونو.
٣) ترجمه :- د لوح او قلم علم ددوئ د علمونو څخه دې.

اوکړو نو خپل هر حالت بلکه په هریو حرکت او سکون کښې به ته خپل ځان د خپل رب محتاج وینې که هغه ته په ظاهره باندې د یو انسان محتاج کړې نه ئې نو کم ازکم دې ته خو ګوره چه د الله تعالی ته په هر څیز کښې محتاج ئې. او د انسانانو د محتاجئی نه بې پرواه ګڼړل هم صرف ظاهری مغالطه ده ګنی الله تعالی انسان مدنی الطبع جوړ کړې دې هغه یوازې د خپلو ضرورتونو نه یو ضرورت هم نه شي پوره کولې. خپلې یوې نوړئی ته او ګوره نو معلومه به شي چه د زرګونو انسانانو او څناورو د سخت محنت او د اوږدې مودې پورې د کار کولو په نتیجه کښې دغه نوړئی لمده ده چه په بې فکرئی سره ئې تیره وی او دومره په زرګونو انسانان په خپل خدمت کښې لګیا کول د چا د وس طاقت خبره نه ده. هم دغه حال د هغه د لباس او نورو ضرورتونو دې د دې په راجوړولو کښې د زرګونو لاکهونو انسانانو او څناورو د محنت دخل دې کوم چه ستا غلامان نه دی. که چرې تا دې تولو ته په تنخواه ورکولو سره هم غوښتلې چه خپل دغه کارونه پوره کړې نو هیڅ کله دا ستا په وس کښې راتلې نه شو. په دې تولو خبرو باندې په غور او فکر کولو سره په انسان باندې دا راز ښکاره کیږی چه د هغه د تولو ضرورتونو د پوره کولو نظام پخپله د هغه جوړ کړې نه دې بلکه خالق کائنات په خپل حکمت بالغه سره جوړ کړې او چلولې دې. د چا په زړه کښې واچول چه په زمکه کښې د کرکیلې کار اوکړه، د چا په زړه کښې دا پیدا کړه چه د لرګو تراشلو او ترکاڼئی کار اوکړه، د چا په زړه کښې یې د لوهار د کار رغبت واچولو، څوک ئې په محنت مزدورئی کښې راضی کړو، څوک ئې د تجارت طرف ته راغب کولو سره د انسانی ضرورتونو بازار اولګولو. نه یو حکومت د دې انتظام په قانون سره کولې شو او نه یو فرد. په دې وجه د دغه غور او فکر لازمی نتیجه ﴿إِلَىٰ رَبِّكَ الرُّجْعَىٰ﴾ ده یعنی د تولو څیزونو انجام کار د الله تعالی د قدرت او حکمت تابع کیدل مشاهده کښې راځی.

﴿أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ ۝ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ ۝﴾ د دې آیت نه تر آخر سورت پورې د یوې واقعه طرف ته اشاره ده کوم وخت چه الله تعالی نبی کریم ﷺ ته د مونځ کولو حکم ورکړو او حضور پاك مونځ کول شروع کړو نو ابوجهل حضور پاك د مونځ کولو نه منع کړو او دهمکئی ئې ورکړه چه که بیا دې مونځ اوکړو او سجده دې اوکړه نو هغه به معاذالله ستاسو سټ د خپو لاندې چقنړی کړی. د دې جواب او د هغه د رټنې د پاره دا آیت راغلې دې. په دې کښې اوفرمائیل:

﴿أَلَمْ يَعْلَم بِأَنَّ اللَّهَ يَرَىٰ ۝﴾ یعنی ولې هغه دا نه پیژنی چه الله تعالی وینی. دلته ئې دا ذکر اونه فرمائیلو چه چاته ګوری په دې وجه هر عام او خاص ته شامل دې چه مونځ کونکې بزرګ هستی هم وینی او ددې نه منع کونکې بدبخت هم وینی. دلته صرف په دې جمله باندې اکتفا اوکړې شوه چه مونږ دا هرڅه وینو. وړاندې د کتلو نه پس به څه حشر وی د هغې په نه ذکر کولو کښې دې طرف ته اشاره ده چه هغه خطرناك انجام د تصور قابل نه دې.

﴿لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ۝﴾ سفع د مصدر نه مشتق دې د کوم معنی چه په سختئی سره د چقنړی کولو ده. او ناصیة د سر وړاندې ویښتو ته وائی کوم چه په تندی د پاسه وی. د کوم سړی د تندی ویښته چه د یو سړی په لاس کښې راشی نو هغه د ده په لاس کښې مجبور او مقهور کیدو سره پاتې شی.

﴿كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِب ۝﴾ دا نبی کریم ﷺ ته هدایت دې چه د ابوجهل په خبره باندې غوږ مه ږده او په سجده او مونځ کښې مشغول اوسیږه هم دغه د الله تعالی د نیزدیکت لار ده

**د سجدې په حالت کښې د دعا قبليدل** ابوداؤد کښې د حضرت ابوهريره ﷺ روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی [اقرب مايكون العبد من ربه وهو ساجد فاكثروا الدعاء][1] يعنى بنده خپل رب ته د ټولو نه زيات هغه وخت نيزدې وی کوم وخت چه هغه په سجده کښې وی په دې وجه په سجده کښې ډيره دعاکوئی او په يوبل صحيح حديث کښې دالفظ هم راغلې دې [فانه احق ان يستجاب لكم] يعنى د سجدې په حالت کښې دعاد قبليدو لائق ده.

**مسئله** د نفل مونځونو په سجدو کښې دعا کول ثابت دی، د حديث په بعض رواياتو کښې د دغه دعا خاص الفاظ هم راغلی دی چه هغه الفاظ ماثوره اولوستلې شی نو بهتردی. فرائضو کښې دا قسم دعاګانې کول ثابت نه دی ځکه چه په فرائضو کښې اختصار مطلوب دې.

**مسئله** د دې آيت په لوستونکو او اوريدونکو باندې د تلاوت سجده کول واجب ده. صحيح مسلم کښې په روايت د حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه په دې آيت باندې سجده د تلاوت کول ثابت دی[2]. والله اعلم.

تمت سورة العلق ۵ رمضان ۱۳۹۱هجری

| اياتونه | سورة القدر مكية وهي خمس ايات وركوعا واحدا | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۵ | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | ۱ |

إِنَّآ أَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ ۝١ وَمَآ أَدْرٰىكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ۝٢

بيشکه نازل کړو مونږه دا [قرآن] | په شپه دقدر کښې | او څه پته ده تاته | چې څه ده شپه دقدر |

مونږ دا کتاب د عزت په شپه کښې رانازل کړيدې او تاته څه معلومه ده چې دعزت شپه څومره [اوچته] ده

لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ۝٣ تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ

شپه دقدر | بهتره ده | د زرو مياشتو نه | نازليږی [راکوزيږی] | فرښتې | او روح [جبريل ﷺ]

دعزت شپه د زرو مياشتو [دعبادت] نه بهتره ده | په دې کښې فرښتې او روح [جبريل ﷺ]

فِيْهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ ۚ مِّنْ كُلِّ أَمْرٍ ۝٤ سَلٰمٌ ۛ هِيَ

په دې شپه کښې | په اجازت درب خپل سره | د هرکارنه | سلامتيا ده | دا شپه ده |

دالله ﷻ په حکم هرامرخير سره راکوزيږی ,,,,,,,,,,,,,,,,,,,, | ټوله سلامتيا ده | ..... داشپه

حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ ۝٥

دختو دصبا پورې |

ترصبا ختو پورې قائمه وی

[1] سنن ابوداود، کتاب الصلاة ، باب فی الدعاء في الركوع والسجود [ج:۱ص:۱۲۷] وو صحيح مسلم كتاب الصلاة، باب النهي عن قراءة القرآن فی الرکوع والسجود [ج:۱ص:۱۹۱]

[2] صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة ، باب سجود التلاوة [ج:۱ص:۲۱۵]

## آسان ترجمه قرآن

بے شکه مونږ دا قرآن مجید په شب قدر کښې نازل کړې دې او تاته څه معلومه ده. چه شب قدر څه څیز دې. شب قدر د زرو میاشتو نه هم بهتر دې په دې کښې فرښتې او روح د خپل پروردګار په اجازت سره هر کار دپاره نازلیږی هغه شپه ټوله سلامتیا ده. تر د صبا راختلو پورې.

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ﴾ بیشکه مونږ قرآن په شب قدر کښې نازل کړې دې ] په شب قدر کښې دنازلیدو تحقیق په سورۃ دخان کښې تیر شوې دې [او] دشوق زیاتولو دپاره فرمانی چه ﴿وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ﴾ [ تاته څۀ معلومه ده چه شب قدر څنګه شې دې ] وراند جواب دې چه ﴿لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ﴾ [شب قدر دزرو میاشتو نه غوره ده ] یعنی چه زرو میاشتو کښې چه دعبادت کولو خومره ثواب دې دهغې نه زیات په شب قدر کښې دعبادت کولو ثواب دې لکه چه خازن(۱) کښې دی اودغه شپه داسې ده چه ﴿تَنَزَّلُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ وَٱلرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِم مِّن كُلِّ أَمْرٍ﴾ [په دغه شپه کښې فرښتې اوروح القدس ] یعنی جبرائیل ﷺ [ دخپل پروردګار په حکم سره هر دخیر کار لره راواخلی ] زمکې ته [راکوزیږی] اودغه شپه ﴿سَلَٰمٌ﴾[سراسر سلام دې ] لکه په حدیث دبیهقی کښې دحضرت انس ﷺ نه مرفوعا روایت دې چه په شب قدر کښې حضرت جبرائیل ﷺ دفرښتو په یوه ډله کښې راځی اوکوم سړی لره چه په ولاړې په قعده په ذکر کښې مشغول وینی نو په هغۀ درود لیږی یعنی دهغۀ دپاره درحمت دعا کوی(۲) اوخازن دابن الجوزی ﷫ نه په دې روایت کښې یُسَلِّمُونَ هم زیات کړې دې(۳) یعنی دسلامتۍ دعا کوی اویُصَلُّونَ مطلب هم دغه دې ځکه چه په رحمت اوسلامتۍ کښې تلازم دې دې ته نې په قرآن کښې سلام ونیلې دې اودامر خیرنه مراد دادې او دا رانګ په روایتونو کښې په دې کښې دتوبې قبلیدل د اسمان ددروازو خلاصیدل اوپه هر مؤمن دملائکو سلام کول راغلی دی لکه په درمنثور(۴) کښې داسې دی اوددې کارونو په واسطه دملائکو کیدل اوموجب دسلامتیا کیدل ظاهر دی یاد اَمر هغه کارونه دی دکومو عنوان چه په سورۃ دخان کښې امر نه مراد حکیم اوپه دې شپه کښې دهغوئ طې کیدل ذکر فرمانیلی دی او ﴿هِىَ حَتَّىٰ مَطْلَعِ ٱلْفَجْرِ﴾[دغه شب قدر ] ددې صفت او برکت سره د صبح صادق د راختلو پورې برقراره وی دا نه چه ددې شب قدر برکت په څه خاص حصه کښې وی اوپه څۀ کښې نه وی.

## معارف او مسائل

**شان نزول :** ابن ابی حاتم دمجاهد نه مرسل روایت کړې دې چې نبی کریم ﷺ دبنی اسرائیلو د یو مجاهد حال بیان کړو چې پوره زر میاشتې مسلسل په جهاد کښې مشغول پاتې شوې وو چرې ئې هم وسله نه وه ایخودې مسلمانانو په دې آوریدو تعجب اوکړو په دې باندې سورۃ قدر نازل شو چې په کښې ددې امت د پاره صرف د یوې شپې عبادت لره ددغې مجاهد دتو...

---

(۱) تفسیر الخازن [ج: ٦ ص:۲۹۲]

(۲) شعب الإیمان للبیهقي فصل فی لیلة القدر فی لیلة العیدین ویومهما رقم الحدیث[۳۵٦۲]

(۳) تفسیر الخازن [ج: ٦ ص:۲۹۲]

(۴) تفسیرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۳۱۵]

عمریعني د زرو میاشتو د عبادت نه زیات غوره گرځولې شوې دې. او ابن جریر رحمه الله د مجاهد په روایت یو بله واقعه دا بیان کړې ده چې په بني اسرائیلو کښې د یو عابد داشان وو چې ټوله شپه به په عبادت کښې مشغول پاتې کیدو او صبا کیدو سره به سمدستي جهاد د پار تیاریدو ، ټوله ورځ به ئې جهاد کښې تیروله ، یو زر میاشتې هغه په مخه په داسې شان عبادت کښې تیرې کړې نو الله ﷻ ددې امت غوره والې په ټولو امتونو باندې د ثابتولو په غرض سورت قدر نازل کړو دې نه هم دا معلومیږي چې شب قدر د امت محمدیه د خصوصیتونو څخنې دی. [ مظهري ][1].

ابن کثیر رحمه الله هم دا قول د امام مالک رحمه الله نقل کړې دې او څینې شافعي امامانو دې ته د جمهورو قول وئیلې دې. خطابي په دې باندې د اجماع دعوی کړې ده. خو څینې محدثینو په دې کښې اختلاف کړې دې [ د ابن کثیر نه دا قول راخستې شوې دې ][2].

**د لیلة القدر معنی:** د قدر یو معنی لوئي او شرافت ده زهري وغیره علماء کرامو دلته هم دا معنی اخستې ده او دغې شپې ته دلیلة القدر وئیلو وجه ددغې شپې لوئي او شرافت دې او ابوبکر وراق اوفرمائیل چې دې شپې ته لیلة القدر څکه اووئیلې شو چې دې نه وړاندې د خپلې بې عملئ په وجه د چا قدر او قیمت نه وو، په دې شپه کښې د توبې استغفار او نور عبادت په ذریعه هغه دشرافت او قدر خاوند گرځي نه.

د قدر بله معنی تقدیر او حکم هم راځي. پدې اعتبار سره به ددې د نوم وجه دا وی چې پدې شپه ټول مخلوق دپاره چې څه تقدیر ازلي کښې لیکلې شوی دی دهغې چې کومه حصه پدې کال کښې د رمضان نه تر راتلونکي رمضان پورې راپیښیدونکي ده هغه داسې فرښتو ته حواله کولې شي چې د کائناتو د کارونو انتظام کولو دپاره ټاکلې شوی دی ، په دې کښې د هر انسان د عمر ، مرگ ، روزئ او باران وغیره اندازه دغې فرښتو ته لیکلې شي تر دې چې په دغې کال کښې به چاته حج نصیب کیږي هغه هم لیکلې شي او هغه فرښتې چې ورته د اڅیزونه سپارلې شي د ابن عباس رضی الله عنهما په قول څلور دی. ① اسرافیل علیه السلام ② میکائیل علیه السلام ③ عزرائیل علیه السلام ④ جبرائیل علیه السلام. [ قرطبي ][3].

د سورة دخان په آیت مبارک ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ۝ فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ ۝ أَمْرًا مِّنْ عِندِنَا﴾ دا مضمون پخپله بنه په وضاحت سره راغلې دې چې پدې مبارکه شپه کښې ټول هر څه د تقدیر فیصلې لیکلې شي او ددې آیت مبارک په تفسیر کښې تیر شوی دی چې د جمهورو مفسرینو په نزد د ﴿لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ نه هم مراد لیلة القدر دې ، اوکومو چې ترې مراد د شعبان پنځلسمه یعنی لیلة البراءت اخستې ده د هغې جوړښت په دې شان راولې چې د تقدیر رومبنئ فیصلې په اجمالي ډول په شب برات کښې کیږي. بیا د هغې تفصیلونه په لیلة القدر کښې لیکلې شي. ددې تائید د ابن عباس رضی الله عنهما د یو قول نه کیږي کوم چې امام بغوي رحمه الله په روایت د ابی الضحی داسې نقل کړې دې چې الله ﷻ د ټول کال د تقدیر ی څیزونو فیصلې خو

[1] تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۱۰] و تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث:[۱۹٤۲٤]
[2] تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:٤٤۲ ، ٤٤۳]
[3] تفسیر القرطبي تفسیر سورة الدخان[ ج:۱٦ص:۱۲۷ و ۱۲۸]

په شب برات یعنی نصف شعبان په شپه کښې کوی بیا په شب قدر کښې دا فیصلې متعلقه فرښتو ته حواله کولې شی. [مظهری ][۱]. او دا روميې ليکلې شوی دی چې د تقديری ځیزونو فیصلې په دې شپه کښې د کیدو مطلب دادې چې په دې کال کښې د تقدیر کوم ځیزونه چې جاری کیدونکی دی هغه د لوح محفوظ نه په نقل کولو سره فرښتو ته حواله کولې شی اود تقدیر اصل لیک په ازل کښې شوې دې.

**دليلة القدر تاكل** :: دومره خبره خود قرآن پاک د واضحو بیانونو نه ثابته ده چې شب قدر د رمضان المبارک په میاشت کښې راځی خو د نیټې په ټاکلو کښې د عالمانو مختلف اقوال دی چې شمیر ئې څلویښت ته رسی. خو تفسیر مظهری[۲] کښې راغلی دی چې په دې ټولو اقوالو کښې صحيح قول هغه دې چې ليلة القدر د رمضان المبارک په آخری لسو کښې وی خو د آخری لسو څه یوه خاصه نیټه ټاکلې شوې نه ده. بلکه په دې کښې یوه شپه کیدې شی چې په هر رمضان کښې بدلیږی خو دغه شپه به طاق وی لکه یویشتمه ، درویشتمه ، پنځویشتمه ، اوویشتمه او یوکم دیرشمه کښې د صحیح احادیثو په رنړاکښې ددې زیات احتمال دې. په دې قول کښې هغه ټول احادیث چې د شب قدر د تعیین متعلق راغلی دی جمع کیږی په کومو کښې چه یویشتمه ، درویشتمه ، پنځویشتمه ، اوویشتمه او یوکم دیرشمه شپو کښې د شب قدر د کیدو ذکر راغلې دې. که چرې شب قدر په دې شپو کښې دائر او هررمضان کښې د منتقل کیدو والا اوګرځولې شی نود حدیث دا ټول روایات په خپل خپل ځائی صحیح او ثابتیږی. په یوکښې هم د تاویل ضرورت نشته دې. ځکه اکثر د فقهې امامانو دې لره په لسو آخرو شپو کښې بدلیدونکې شپه ګرځولې ده. ابوقلابه رحمه الله ، امام مالک رحمه الله ، احمد بن حنبل رحمه الله ، سفیان ثوری رحمه الله ، اسحاق بن راهویه رحمه الله ، ابوثور رحمه الله ، مزنی رحمه الله او ابن خزیمه رحمه الله ټولو هم دغسې فرمائیلی دی او په یو روایت کښې د امام شافعی رحمه الله نه هم ددې په موافق منقول دی، او د امام شافعی رحمه الله دویم روایت دادې چې دا شپه بدلیدونکې نه بلکه هم یوه ټاکلې شپه ده. [ ابن کثیر ][۳].

صحیح بخاری کښې د عائشه صدیقه رضی الله عنها په روایت سره نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چې: [تحروا ليلة القدر في العشر الاواخر من رمضان][۴] یعنی شب قدر د رمضان شریف په لسو اخری شپو کښې لټوئ. او دصحیح مسلم په حواله د عمر فاروق رضی الله عنه په روایت کښې راغلی دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې [فاطلبوها في الوتر منها] یعنی شب قدر په آخری لسو طاقو شپو د رمضان کښې لټوئ. [ مظهری ][۵].

**دليلة القدر ځینې فضیلتونه او ددې شپې مخصوص دعا** :: ددې شپې لوئې فضیلت هم هغه دې چې په دې سورت کښې بیان شوې دې چې ددې عبادت د زور میاشتو یعنی درې اتیا کالو او څلورو میاشتو د عبادت نه زیات غوره دې ، بیائې د غوره کیدو څه حد هم نه دې ټاکلې شوې چې دا

---

[۱] ) تفسير المظهري [ج:۱۰ ص:۳۱۱] و تفسير البغوى تفسير سورة الدخان [ج: ۷ ص:۲۲۸]
[۲] ) تفسير المظهري [ج:۱۰ ص:۳۱۳]
[۳] ) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۴۵۰]
[۴] ) صحيح البخاري كتاب الصوم ،باب تحري ليلة القدر في الوتر من العشر الأواخر [ج:۱ ص:۲۷۰]
[۵] ) تفسير المظهري [ج:۱۰ ص:۳۱۴] و صحيح مسلم كتاب الصيام ، باب فضل ليلة القدر..... إلخ [ج:۲ ص:۳۶۹]

به څومره چنده زيات وي يعني لس چنده به زيات وي که زرګونه يا لکونه چنده به زيات وي.
دا ټول احتمالونه شته. او صحيحين کښې د ابي هريره ﷛ په روايت نبي کريم ﷺ فرمائي چې څوک په شب قدر کښې عبادت د پاره اودريدو د هغه ټول کړې ګناهونه معاف شو[1].
او د ابن عباس ﷛ نه روايت دې چې نبي کريم ﷺ فرمائي چې په شب قدر کښې جبرائيل ﷤ او ورسره هغه ټولې فرښتې چې په سدرة المنتهى مقام کښې دي جبرائيل ﷤ سره په دنيا کښې راکوزيږي او هيڅ يو مؤمن نارينه او زنانه به داسې نه وي چې سلام به ورته نه کوي سوا د هغه چا نه چې شراب څکي يا د خنزير غوښه خوري[2].
او يو حديث پاک کښې نبي کريم ﷺ فرمائي چې څوک د شب قدر د خير و برکت نه محروم شو هغه بيخي محرومه بدنصيبه دې[3]. په شب قدر کښې ځينې حضرات خاص انوار هم وينې. خو نه دا ټولو ته حاصليږي، او نه ددغې شپې په برکتونو او ثواب حاصليدو کښې ددې څه دخل شته څکه په دې فکر کښې پريوتل نه دي پکار. حضرت عائشه صديقه ﷞ د نبي کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چې زه شب قدر بيا اووينم نو څه دعا به کوم؟ نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې دا دعا کوه: [ اللهم انك عفو تحب العفو فاعف عني ] يعني اې الله ﷻ ته ډير معافي کوونکې يې، او معافي ورکول خوښوې زما خطاګانې معاف کړه. [ قرطبي ][4].
﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ دا آيت مبارک په ډاګه بيانوي چې قرآن کريم په شب قدر کښې نازل شوې دې. ددې دا مطلب هم کيديشي چې ټول قرآن پاک د لوح محفوظ نه په دې شپه کښې نازل کړې شوې دې. بيا به جبرائيل ﷤ لږ لږ راوړو چې درويشت کاله پرې تير شو، او دا هم مراد کيديشي چې په اول کښې څو آيتونه په دې شپه کښې نازل شو باقي لږ لږ په درويشت کاله کښې نازليدو.

**ټول آسماني کتابونه په رمضان کښې نازل شوي دي**: ابوذر غفاري ﷛ روايت کړيدې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې د ابراهيم ﷤ صحيفې د رمضان شريف په دريمه نيټه، تورات په شپږمه نيټه، انجيل په ديارلسمه نيټه، زبور په اتلسمه نيټه، د رمضان شريف نازل شوي دي.
او قرآن کريم په څلريشتمه نيټه د رمضان په نبي کريم ﷺ باندې نازل شوې دې. [مظهري][5].
﴿تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ﴾ د روح نه مراد جبرائيل ﷤ دې، د انس ﷛ په روايت نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې په شب قدر کښې جبرائيل ﷤ د فرښتو يو لوئې جماعت سره په زمکه راکوزيږي او څومره د الله ﷻ بندګان نارينه او زنانه چې په مونځ يا د الله ﷻ په ذکر کښې

---

[1] ) صحيح البخاري كتاب الصوم ،باب من صام رمضان ايمان و احتسابا..... إلخ [ج:١ص:٢٥٥] و صحيح مسلم كتاب صلاة المسافر، باب الترغيب في قيام رمضان رقم الحديث:[٢٥٩١١]
[2] ) تفسير القرطبي [ ج:٢٠ص:١٣٧]
[3] ) سنن النسائي كتاب الصيام باب فضل شهر رمضان ذكر الإختلاف على معمر فيه [ج: ١ ص:٢٩٩] و سنن ابن ماجة، ابواب الصيام،باب ماجاء في شهر رمضان [ج:١ ص:١١٨ ]
[4] ) تفسيرالقرطبي[ج:٢٠ص:١٣٨] وجامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب رقم الحديث[٣٤٣٥][ج: ٢ص:١٩١]
[5] ) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٣١١ ، ٣١٢] و المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث:[ ٣٨٨٢]

مشغول وی هغې ټولو دپاره د رحمت دعا کوی [ مظهری ][1].

﴿مِنْ كُلِّ أَمْرٍ﴾ کښې ﴿مِنْ﴾ حرف د باء په معنی دې لکه په ﴿يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾[2] کښې چې من د باء په معنی کښې دې. ددې معنی دا شوه چې په ليلة القدر کښې فرښتې هغه تقديری واقعات زمکې ته راوړی کوم چې په دغې ټول کال کښې به راپيښيږی. او ځينو مفسرينو حضراتو مجاهد رحمه الله وغيره ﴿مِنْ كُلِّ أَمْرٍ﴾ ﴿سَلٰمٌ﴾ سره په يوځائې کولو او يو ځائې لوستلو دا معنی مراد اخستې ده چې دا شپه سلامتی ده د هر شر، آفت او خراب څيزنه [ ابن کثير ][3].

﴿سَلٰمٌ﴾ اصل عبارت ﴿هِيَ سَلٰمٌ﴾ دی، دغې لفظ ترې حذف کړې شو، معنی ئې دا ده چې دا شپه سراسری سلام او سلامتی او سراسر خير دې، په دې کښې د شر نوم هم نشته [قرطبی][4].

او ځينې حضراتو د عبارت تقدير داسې جوړ کړې دې ﴿سَلٰمٌ هُوَ﴾ اوبيا ئې د ﴿مِنْ كُلِّ أَمْرٍ﴾ صفت جوړ کړې دې اومعنی ئې داشوه چې دا فرښتې هرداسې يوڅيز راوړی چې خيراوسلام وی [مظهری][5]

﴿هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ﴾ يعنی د ليلة القدر دا برکتونه يواځې ددغې شپې په خاص حصه کښې نه وی بلکه دشپې د شروع نه تر د صبا پورې هم يو حکم دې.

**فائده:** دې آيتونو مبارکو کښې ئې ليلة القدر د يو زرو مياشتو نه زياته غوره، يا ده کړی ده اوښکاره خبره ده چې په دغې زرو مياشتو کښې به هر کال شب قدر هم راځی نو خبره به کوم ځائې ته رسيږی. د تفسير امامانو فرمائيلی دی چې د لته د زرو مياشتو نه هغه مراد دی چې شب قدر په کښې شامل نه وی ځکه په کښې څه اشکال نشته. [ ابن کثير دمجاهد رحمه الله نه ][6]

هر کله چې د مياشتې د راختو ځايونه مختلف دی په دغې حساب په مختلفو ملکونو اوښارونو کښې شب قدر په مختلفو نيټو کښې کيدل څه اشکال نه لری. يعنی چرته چې شب قدر وی هلته به ورسره دغه برکتونه وی، والله اعلم.

**مسئله:** چاچې په شب قدر کښې دماسختن او صبا مونځ په جمع اوکړو هغه هم ددغې شپې ثواب بيامونډو. او هر چا چې څومره زيات عبادت اوکړو په هغې حساب سره به ثواب ورته ملاويږی. صحيح مسلم کښې د عثمان غنی رضی الله عنه په روايت نبی کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چې کوم سړی د ماسختن مونځ په جمع اوکړو نو د پاتې نيمې شپې دمونځ کولو ثواب ئې بيان مونډو. يعنی په دغې کولو سره دټولې شپې د مونځ کولو ثواب ئې بيا مونډو[7].

سورة القدر بحمدالله ۷رمضان ۱۳۹۱هجری

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۱۵] ز شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۳۵۶۲]

[2] ) ترجمه :- هغوئ دالله تعالی په حکم د هغه حفاظت کوی.

[3] ) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:٤٤٥]

[4] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۳٤]

[5] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۱۵]

[6] ) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:٤٤۳]

[7] ) صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب صلاة الجمعة..... إلخ[ج:۱ص:۲۳۲]

| اياتونه | سورة البينة مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحد | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۸ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱ |

لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَالْمُشْرِكِيْنَ مُنْفَكِّيْنَ

نه وو | هغه کسان | چې کفر ئې کړې وو | داهل کتابونه | او د مشرکانو نه | منع کیدونکې |

کافران اهل کتاب او مشرکان تول (د خپل باطل دین نه) جدا کیدونکې نه وو ......

حَتّٰى تَاْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ۙ رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ يَتْلُوْا

تر دې پورې | چې راشي هغوئ ته | روښانه دليل | يعنی يو رسول | د طرفه دالله نه | چې لولي |

تر دې چې څرګند دليل ورته راغي | ......... ........يعنی دالله ﷺ رسول چې پاکيزه صحيفې

صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۙ فِيْهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ؕ وَمَا تَفَرَّقَ

صحيفې پاکې | چې په هغې کښې | ليکل شوې کتابونه وی | صحيح سلامت | اونه وو جدا جدا شوی |

ورته لولی (چې په هغې کښې صحيح (د دين) حکمونه ليکلی دی او کتابيان خو دهغې نه پس ديو بل نه

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ

هغه کسان | چې ورکړې شوې وو ورته کتاب | مګر | روستو دهغې نه | چې راغلې وو هغوئ ته |

......... جدا شوی وو | چې څرګند دليل ورته راغلې وو | .........

الْبَيِّنَةُ ؕ وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ

روښانه دليل | اونه وو حکم شوې هغوئ ته | مګر دا | چې عبادت دې کوی دالله |

......... | او دوئ ته خو صرف دا حکم شوې وو | چې دالله ﷺ عبادت دې کوی

مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۙ حُنَفَآءَ وَيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

حال دا چې خالص کونکې وی | هغه لره | د دين خپل | [او] يو مخيزی [وی] | او قائيموی دې مونځ |

دين دې خالص د هغه منی | ......... دباطل نه دې حق ته مخ ګرځوی | . او مونځ دې کوی

وَيُؤْتُوا الزَّكٰوةَ وَذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

او ورکوی زکوة | او دا | دين محکم دی | بيشکه هغه کسان | چې کفر ئې کړې دی | داهل کتابونه |

او زکواة دې ورکوی | او هم دا مضبوط (سم) دين دی | بيشکه چا چې انکار کړې دی (که اهل کتاب

وَالْمُشْرِكِيْنَ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ اُولٰٓئِكَ هُمْ

او د مشرکانو نه | په اور د دوزخ کښې به وی | هميشه به وی په هغې کښې | دا کسان چې دی | دوی |

دی او که مشرکان دی | د دوزخ په اور کښې به هميشه دپاره پراته وی | او دوئ په تولو کښې

شَرُّ الْبَرِيَّةِ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ

ډير بد دخلقو دی | بيشکه هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيک |

خراب خلق دی | بيشکه کومو کسانو چې ايمان راوړې دې او نيک کارونه ئې کړی دی

| عِندَ رَبِّهِمْ | جَزَآؤُهُمْ | الْبَرِيَّةِ | خَيْرُ | أُولَٰئِكَ هُمْ |
|---|---|---|---|---|
| په نز درب ددوئ | بدله ددوئ | بهترین دخلقو دی | دوئ | دا کسان چي دی |

هغوئ په ټولو کښي ښه خلق دی | د هغوئ بدله د هغوئ درب سره دهمیشه اوسیدلو

| فِيهَا | خَالِدِينَ | الْأَنْهَارُ | مِن تَحْتِهَا | تَجْرِي | جَنَّاتُ عَدْنٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغې کښي | همیشه به وی | نهرونه | لاندې دهغې نه | چي بهیږی به | جنتونه دهمیشه اوسیدو دی |

باغونه دی | ........................ چي د هغې لاندې به ولې بهیږی

| لِمَنْ | ذَٰلِكَ | عَنْهُ | وَرَضُوا | عَنْهُمْ | رَضِيَ اللَّهُ | أَبَدًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغه چادی | دا هرڅه | دالله نه | اوراضی شول هغوئ | دهغوئ نه | راضی شوالله | همیشه همیشه |

همیشه به په کښي اوسیږی | الله ﷻ به دهغوئ نه راضی وی | اوهغوئ به دالله ﷻ نه راضی شی | دا [مرتبه] هغه

| رَبَّهُ | خَشِيَ |
|---|---|
| درب خپل نه | چي اویریدو |

دپاره ده | چي دخپل رب نه ویریږی

### آسان ترجمه قرآن

د اهلِ کتابو او مشرکینو نه چه کوم خلق کافران وو، هغوی تر هغه وخته پورې منع کیدونکي نه وو، ترڅو پورې چه هغوی ته روښانه دلیل نه وو راغلې یعنې د الله یَو رسول چه پاکې کرې شوې صحیفې لولی. چه په هغې کښې مضبوط او رشتونې مضامین لیکلې شوې وی. او کوم چه اهل کتاب وو، هغوی جدا لاره د دې نه پس اختیار کړه، چه کله هغوی ته روښانه دلیل راغلې وو او دوی ته ددې نه سوا هیڅ حکم نه وو ورکړې شوې چه د یو الله عبادت دې داسې کوی، چه بندگی دې صرف هغه لره خالص کړی، او مونځ دې قائم کړی، او زکوٰة دې ادا کړی، او هم دا د رشتونې امت دین دې. یقین اوکړئ، چه په اهلِ کتابو او مشرکینو کښې کومو خلقو کفر اختیار کړې دې، هغوی به د جهنم اور کښې داخلولې شی، چه هلته به همیشه دپاره اوسیږی، دا خلق په ټول مخلوق کښې د ټولو نه زیات بد دی. او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، هغوی بے شکه په ټولو مخلوقاتو کښې د ټولو نه بهترین خلق دی د هغوی پروردگار سره د هغوی انعام هغه د همیشه والی جنتونه دی، چه د هغې لاندې به نهرونه بهیږی، هلته کښې به دوی همیشه دپاره اوسیږی، الله تعالیٰ به ددوی نه خوشحاله وی، او دوی به دهغه نه خوشحاله وی، دا ټول هرڅه د هغه چا دپاره دی، چه د خپل پروردگار ویره په زړه کښې لری.

### خلاصه تفسير

﴿لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ﴾ [کوم خلق چه داهل کتابو اومشرکانو نه ] وړاند دبعثت نبویه نه [ کافر وو ﴿مُنفَكِّينَ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ﴾ هغوی ] دخپل کفر نه هر گز [واپس کیدونکی نه وو تر څو پورې چه دوی ته واضح دلیل رانهٔ شی ] یعنی ﴿رَسُولٌ مِّنَ اللَّهِ يَتْلُو صُحُفًا مُّطَهَّرَةً﴾ [یو دالله رسول کوم چه] دوی ته [پاکې صحیفې واوروی اولولی ﴿فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ﴾ په کومو کښې چه درست مضامین لیکلی وی ] مراد قرآن دې مطلب دا دې چه ددې کفارو دومره

سخت وو اوپه داسې جهل کښې اخته وو چه بغير دچاعظيم رسول نه د دوى په لارې کيدو هيڅ توقع نۀ وه په دې وجه الله تعالى په دوى باند خپل حجت تمام کولو دپاره ئې دوى ﷺ ته قرآن ورکړو اومبعوث ئې وفرمائيلو[او] دوى لره پکار وو چه دائې غنيمت گڼړې وې او په دۀ ئې ايمان راوړې وې مگر ﴿وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ﴾[کوم خلق چه اهل کتاب وو] اوغير اهل کتاب خو په درجهٔ اولى [هغوى ددې ښکاره دليل راتلونه پس ]په دين کښې[مختلف شول ] يعنى دحق دين نه ئې هم اختلاف وکړو اوپه خپل مينځ کښې اختلاف کوم چه وړاند وو هغه ئې هم دحق دين په اتباع کولو باند لرې نۀ کړو اومشرکينو ته خونې په درجه اولى خکه ووئيل چه دوى ته خو دوړاند نه هم څۀ اسمانى علم نۀ وو ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ﴾[ حال دادې چه هغو خلقوته ] په تيرو کتابونو کښې [ دا حکم شوې ووچه دالله تعالى عبادت دې داسې کوى چه عبادت لره دهغۀ دپاره خالص ساتى په يکسوئى: دې کوى] دباطلو دينونو په شان دې چاړله دالله تعالى سره نۀ شريکوى ﴿وَيُقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوا الزَّكٰوةَ وَذٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ﴾ [اودمونځ پابندى دې ساتى اوزکوة دې ورکوى او داطريقه ده دهغو دروستو مضامينو[ ذکر شوو ښودلې شوې دتقرير نچوړ داشوو چه دغو اهل کتابو ته ددوى په کتابونو کښې دا حکم شوې وو چه په قرآن اورسول ﷺ دايمان راوړى اوهم دا تعليم وو دقرآن کوم لره چه ئې مخکښې په کتب قيمه سره تعبير فرمائيلې دې په دې وجه ددې قرآن په نۀ منلو سره په خپله دخپلو کتابونو مخالفت هم لازميږى داخو الزام اهل کتابوته شو اومشرکانو اگر چه وړومبى کتابونه نۀ منل مگر د حضرت ابراهيم عليه السلام دطريقې حقوالې خو دوى هم منلو اوداخبره په يقينى طور ثابته ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام دشرك نه بالکل برى وو د کتب قيمه يعنى دقرآن دهغۀ دطريقې سره موافق کيدل هم ظاهردى په دې وجه په دوى هم حجت تمام شو اومراد د دغو مخالفينو متفرقينو نه خنې هغه کفار دى کومو چه ايمان نۀ راوړو اوپه قرينه دمقابله سره داهم معلومه شوه چه کومو خلقو تفرق اوخلاف ونۀ کړو هغه اهل ايمان دى وړاند دعمل دبيان نه پس په وضاحت سره دکفارو ددوه قسمونو يعنى اهل کتابو او مشرکانو اود مؤمنانو دسزا او جزا مضمون ارشاد فرمائى يعنى ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ وَالْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خٰلِدِينَ فِيهَا﴾[بيشکه کوم خلق چه د اهل کتابو او مشرکانونه کافر شو هغوى به اور ددوزخ ته خى کوم خانې چه به هميشه هميشه وسيږى ]او﴿أُولٰئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ﴾[داخلق په مخلوق کښې بد ترين دى] او﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾[بيشکه کومو خلقو چه ايمان راوړو اوهغوى ښۀ کارونه وکړل﴿أُولٰئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ﴾ هغه په مخلوق کښې بهترين مخلوق دې ﴿جَزَاؤُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ د هغوى صله دهغوى دپروردگار په نزد دهميشه وسيدو جنتونه دى دکومو لاند چه به نهرونه بهيږى کوم چه به هميشه هميشه وسيږى ]او﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ﴾[الله تعالى به دهغوى نه خوشحاله وى اوهغوى به دالله تعالى نه خوشحاله وى ] يعنى نۀ به هغوى ته څۀ مصيبت رسى اونۀ به ورته څۀ بدکار وړپيښيږى په کومو سره چه احتمال دعدم رضادجانبينونه وى او﴿ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ﴾[دا]جنت او رضا[دهغه سړى دپاره دى کوم چه دخپل رب نه ويريږى ] اودالله تعالى نه په ويره باندې ايمان اوعمل صالح مرتب کيږى کوم لره چه ئې دجنت ددخول اودرضا حاصلولو مدار فرمائيلې دې.

......

## معارف او مسائل

اول آيت کښې د نبي کريم ﷺ د پيغمبر کيدو نه وړاندې په دنيا کښې د کفر، شرک او جهالت انتهائي عموم او غلبه بيان فرمائيلې دې چې د کفر او شرک د داسې عالمګير تيارې لرې کولو دپاره د رب العالمين د حکمت او رحمت تقاضا داشوه چې څنګه د هغوئ رنځ سخت او وبا عالمګيره ده دهغې د علاج دپاره هم څوک د ټولو نه لوئې ماهر، حاذق علاج کوونکې ليږل پکار دی. ددې نه بغير به هغه ددې مرض نه خلاصې بيا نه موندې شی، وروسته د هغې حاذق او ماهر حکيم صفت بيانوی چې د هغه وجود بينه يعنی ښکاره حجت وی، د شرک او کفر باطلولو دپاره وروسته فرمائی چې مراد ددې علاج کوونکی نه د الله ﷻ هغه لوئې رسول دې چې د قرآن کريم په واضح حجت راوړلو سره د دوئ خواته راشی، په دې مجموعه کښې د هغوئ ﷺ د پيغمبر کيدو نه وړاندې د زمانې د لوئې فساد او هر اړخ ته د جهالت او تياره کيدل هم معلوم شو او د نبي کريم ﷺ دشان لوئی هم بيان شوه، وروسته قرآن کريم د څو مهمو صفتونو بيان فرمائی.

﴿يَتْلُوا صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۝ فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ۝﴾، ﴿يَتْلُوا﴾ د تلاوت نه مشتق دې چې معنی ئې لوستل دی خو هر لوستلو ته تلاوت نشی وئيلې بلکه هغې لوستلو ته وئيلې شی چې د لوستونکی د خودنې بيخی مطابق وی دې ته تلاوت وئيلې شی، په دې وجه د تلاوت لفظ عموما د قرآن کريم دلوستلو دپاره استعماليږی.

﴿صُحُفٌ﴾ د صحيفه جمع ده په کومو کاغذونو کښې چې څه مضمون ليکلې شوې وی هغې ته صحيفه وئيلې شی.

﴿كُتُبٌ﴾ د کتاب جمع ده، ددې يوه معنی خو ليکلې شوې څيز دې، دې اعتبار سره کتاب او صحيفه تقريبا يوه معنی لری. او کله کتاب د حکم په معنی کښې هم استعماليږی. لکه قرآن کريم آيت ﴿لَّوْلَا كِتَابٌ مِّنَ اللَّهِ سَبَقَ﴾[1] کښې چې کتاب د حکم په معنی استعمال شوې دی، دلته هم دغه دويمه معنی مراد ده. څکه کتاب په مشهوره معنی واخستې شی نو کتابونه او صحيفې بيخی يو څيز دې. د ﴿فِيهَا﴾ بيا څه معنی پاتې کيږی.

﴿مُطَهَّرَةً﴾ دا د صحف صفت دی، ابن عباس ؓ اوفرمائيل چې دې نه مراد دادې چې دا صحيفې، دروغو شک منافقت او ګمراهئ نه پاکې دی.

﴿قَيِّمَةٌ﴾ د مستقيمه په معنی کښې وو د کتب، صفت دې معنی ئې داده چې دا احکام مستقيم يعنی سم، منصفانه او معتدل دی او ددې معنی مضبوط او مستحکم هم کيدې شی. نو مطلب دا شو چې د الله ﷻ حکمونه چې په قران کريم کښې راشی تر قيامته پورې به قائم دائم پاتې کيږی.

د آيت مبارک مطلب دا شو چې دهغې زمانې د مشرکانو او اهل کتابو ګمراهی داسې حد ته رسيدلې وه چې د خپلو باطلو عقيدو نه ئې اخوا کيدل ممکن نه وو تر څو چې هغوئ ته د الله ﷻ کولاؤ نښې نښانې او ښکاره حجت رانشی. څکه الله ﷻ هغوئ دپاره خپل رسول ﷺ

---

[1] ترجمه :- که د الله تعالی يو خط نه وې ليکلې شوې.

ښکاره حجت جوړ کړو او وې ليږلو د چې هغوی ﷺ کار دا وو چې دوی ته به پاکې صحيفې په لوستلو آوروليې ، مراد دادې چې د وحی خداوندې هغه احکام به ئې ورته آوروول چې بيا د صحيفو په ذريعه محفوظ کړې شوه ځکه چې ابتداء به په تلاوت کښې نبی کريم ﷺ د څه صحيفې نه ، نه بلکه د خپل ياد نه په لوستلو به ئې آوروول او دا پاکې صحيفې داسې دی چې په کښې داسې احکام الهيه دی کوم چې په عدل او اعتدال سره ورکړې شوی دی او هميشه قائم پاتې کيدونکی دی.

﴿وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ﴾ د ﴿تَفَرَّقَ﴾ نه دلته مراد انکار او اختلاف دې ، دقرآن پاک او د رسول الله ﷺ دَ پيغمبرئ نه چې دَ نبی کريم ﷺ دَ بيدا کيدو او د پيغمبر کيدونه وړاندې پرې ټول اهل کتاب اتفاق لرلو ولې چې د دوی په آسمانی کتابونو تورات او انجيل کښې د نبی کريم ﷺ د پيغمبرئ او دَ نبی کريم ﷺ د خاص خاص صفتونو او پرې د قرآن کريم دَ نازليدو ښکاره بيان موجود وو ، ځکه يو يهودی او نصرانی لره په دې کښې اختلاف نه وو چې په آخره زمانه کښې به محمد ﷺ تشريف راوړی . په محمد ﷺ به قرآن کريم نازليږی ، د نبی کريم ﷺ تابعداری کول به په ټولو باندې لازمه وی لکه چې په قرآن پاک کښې هم د هغوئ د اتفاق بيان په دې شان کړې شوې دې :

﴿وَكَانُوا مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ يعنی دا اهل کتاب د نبی کريم ﷺ د پيغمبر کيدو نه وړاندې د دوئ دراتلو په انتظار کښې وو او کله به ئې چې مشرکانو سره مقابله وه نو دَ راتلونکی پيغمبر په واسطه به ئې خپله فتح غوښتله يعنی الله ﷻ نه به ئې دعا کوله چې دَ راتلونکی نبی آخر الزمان ﷺ په برکت مونږ ته فتح راکړې ، يا دا چې مشرکانو ته به ئې ونيل چې تاسو خو زمونږ په خلاف زور آزمائی کوئی مګر زر داسې يو رسول راتلونکی دې چې تاسو ټولو ته به ماتې درکړی او مونږ به هر کله چې نبی کريم ﷺ سره يو ځکه به مونږ په تاسو باندې برې بيا مومو.

خلاصه داده چې د نبی کريم ﷺ دپيغمبر کيدو نه وړاندې ټولو اهل کتابو د نبی کريم ﷺ په پيغمبر کيدو باندې اتفاق لرلو خو د نبی کريم ﷺ په تشريف راوړلو سره منکر شو. يو ځائې کښې هم دا مضمون قرآن کريم داسې بيانوی چې : ﴿فَلَمَّا جَاءَهُم مَّا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ﴾ يعنی کله چې دغې خلقو ته هغه رسول، يا حق دين يا قرآن کريم راغلو کوم لره چې هغوئ هم دخپلو آسمانی کتابونو د پيشنګويئ په جوړ پيژندلو نو کفر کول ئې شروع کړل او په دې آيت مبارک کښې ئې دغه مضمون په دې شان بيان کړو.

﴿وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ يعنی دا عجيبه خبره ده چې دَ نبی کريم ﷺ د راتلو اوليدو نه وړاندې ددغې خلقو نبی کريم ﷺ سره څه اختلاف نه وو ټولو نبی کريم ﷺ د پيغمبرئ عقيده لرله خو کله چې دا دَ الله ﷻ بينه واضحه يعنی رسول آخرالزمان ﷺ تشريف راوړو نو په دوئ کښې اختلاف پيدا شو ، څه خلقو پرې ايمان راوړو او ډيرو ترې انکار اوکړو.

دا معامله چونکه اهل کتابو سره مخصوصه وه ځکه په دې آيت مبارک کښې ئې صرف د اهل کتابو ذکر اوفرمائيلو مشرکين ئې شامل نکړل بلکه وې فرمائيل چې : ﴿وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ او رومبی معامله مشرکانو او اهل کتابو دواړو لره عامه او شامله وه ، ځکه ئې هلته اوفرمائيل چې : ﴿لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنفَكِّينَ﴾

او پورته بیان شوي د تفسیر په خلاصه کښې دوئمه معامله هم په مشرکانو او اهل کتابو دواړو کښې عامه اوګرځولې شوه او دهغې مطابق پرې تقریر اوکړې شو. والله اعلم.

﴿وَذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ﴾ دلته لفظ د ﴿قَيِّمَةِ﴾ په ظاهره د ﴿كُتُبٌ﴾ صفت دې چې پورته بیان ئې شوې دې ، او ځینو دې لره دملت صفت ګرځولې دې ، د آیت مبارک حاصل دا دې چې اهل کتابو ته د هغوئ په کتابونو کښې هم دا حکم ورکړې شوې وو چې خپل عبادت او تابعداری خالص د الله ﷻ دپاره لری او مونځ قائموی او زکوٰة ادا کوی ، بیا ئې اوفرمائیل چې دا یواځې د دوئ خصوصیت نه دې ، دهر قیمه ملت یا ټول قیمه کتابونه چې دالله ﷻ د طرفنه نازل شوی دی دهغې ټولو طریقه هم دا ده او ظاهره داده قیمه چې د ﴿كُتُبٌ﴾صفت دې. دې نه مراد په وړاندې قرینې سره که قرآنی حکمونه واخستې شی نو د آیت مبارک مطلب به دا وی چې دې محمدی شریعت کوم احکام چې دوئ ته ورکړل هغه هم بعینه هم هغه وو چې رومبې د هغوئ کتابونو ورکړی وو که دهغې نه بل شان احکام ئې وې نو دهغوئ د مخالفت به څه بهانه کیدې شوه اوس هغه هم نشته.

﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهٗ﴾ په دې آیت مبارک کښې د جنت د ټولونه زیات لوئې نعمت بیان شوې دې چې الله ﷻ دوئ نه راضی دې اوس ئې د ناراضګئ هیڅ خطره نشته . د ابی سعید خدری ؓ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ به جنتیانو ته خطاب دپاره اوفرمائی [یاأهل الجنة] نو جنتیان بهٔ جواب ورکوی [لبيك ربنا وسعديك والخير كله في يديك] ائې زمونږه ربه مونږ حاضر یو او دَحکم منلو ته دې تیار یو اوهره ښګیړه هم ستا په لاس کښې ده. بیا به الله ﷻ فرمائی چې [هل رضيتم] آیا تاسو خوشحاله یئ . هغوئ به جواب ورکړی چې ائې زمونږه ربه اوس هم د نه راضی کیدو څه احتمال شته؟ ځکه چې تا راته ټول هر څه راکړی دی چې نور مخلوق ته دې نه دی ورکړی. الله ﷻ بهٔ فرمائی چې آیا تاسو ته ددې نه هم زیات غوره نعمت درکړم ؟

بیابه فرمائی چې ما خپله رضا په تاسو باندې نازله کړه اوس به چرې هم تاسو نه ناراض نه شم [ بخاری او مسلم روایت کړو په حواله د مظهری ] ([1]).

دې حدیث پاک کښې جنتیانو نه تپوس اوشو چې تاسو راضی یئ او په دې آیت مبارک کښې خبر ورکړې شو چې: ﴿وَرَضُوْا عَنْهُ﴾ یعنی جنتیان بهٔ هم دالله ﷻ نه راضی وی ، دلته په ظاهره دا سوال پیدا کیږی چې د الله ﷻ نه اود الله ﷻ دهر حکم او فعل نه راضی کیدل خو د بندګئ فرض او ورسره لازم دی ، دې نه بغیر څوک جنت ته تلې نشی. بیا دلته دجنتیانو د رضامندئ د ذکر کولو څه مطلب دې ؟ جواب دادې چې درضا دعام مفهوم په اعتبار سره خودا صحیح دی چې په تقدیر باندې راضی کیدل د بندګئ واجبات او فرض دی لیکن د رضا یوه بله درجه هم شته چې ددې نه وړاندې ده چې الله ﷻ چا بنده ته د هغه هر مراد ورکړی هیڅ خواهش او تمنا ئې باقی نه پریږدی، د لته د رضا نه هم مراد دا دې لکه په سورة ضحٰی کښې چې د نبی کریم ﷺ دپاره راغلی دی چې: ﴿وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ فَتَرْضٰى﴾ یعنی الله ﷻ بهٔ تاسو ته زر درکړی

[1] ) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۱۹ ] وصحيح البخاري كتاب التوحيد ،باب كلام رب مع اهل الجنة [ج:۲ص:۱۱۲۱]و صحيح مسلم كتاب الجنت وصفة ونعيمها، [ج:۲ص:۳۷۸]

هغه ځيز چې ورسره به تاسو ﷺ راضي شئ ، د لته هم مراد انتهائي آرزو پوره کول دي خکه ددې آيت مبارک په نازلولو باندې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې بيا خو به زه تر هغې وخت پورې راضي نه يم تر څو چې يو مؤمن هم جهنم کښې پاتې وي .[مظهري](1).

﴿ذٰلِكَ لِمَنۡ خَشِيَ رَبَّهٗ﴾ په آخر د سورت کښې ټول ديني کمالونه او دَ آخرت نعمتونه چې په څه اړه لري هغه ئې اوخودل چې خشيت دَ الله دې ، خشيت هغې ويرې ته نشي وئيلې چې د يو دښمن يا درنده يا موذي ځيز نه طبعا وي بلکه خشيت هغې ويرې ته وئيلې شي چې د چا د ډيرې لوئين او بزرګئ د وجې نه بل چا ته پيدا شوي وي چې مطلب ئې دا وي چې دغه بل به په هر کار او هر حال کښې د هغه د رضا لټولو فکر کوي . او د ناراضګئ دشبهې نه هم بچ کيږي . هم دا هغه ځيز دې چې انسان لره کامل او مقبول بنده جوړونکې دې .

تمت سورة البينة بحمدالله تعالى

| اياتونه | | سورة الزلزال مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ⑧ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ① |

| إِذَا | زُلۡزِلَتِ | الۡاَرۡضُ | زِلۡزَالَهَا① | وَاَخۡرَجَتِ | الۡاَرۡضُ | اَثۡقَالَهَا② |
|---|---|---|---|---|---|---|
| کله چې | اوخوزولې شي | زمکه | په خوزولو دهغې سره | او راؤباسي | زمکه | بوجونه خپل |

څه وخت چې زمکه زلزلې سره اوجرقولې شي | .................اوزمکه به خپل بارونه بهرته راؤباسي

| وَقَالَ | الۡاِنۡسَانُ | مَا لَهَا③ | يَوۡمَئِذٍ | تُحَدِّثُ | اَخۡبَارَهَا④ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووائي | انسان | چې څه اوشو په دې | په دغه ورځ به | بيانوي زمکه | خبرونه [حالات] خپل |

اوانسان به اووائي چې په دې زمکه څه چل اوشو ؟! په دغه ورځ به زمکه خپل ټول حالونه اووائي

| بِاَنَّ رَبَّكَ | اَوۡحٰى لَهَا⑤ | يَوۡمَئِذٍ | يَّصۡدُرُ | النَّاسُ |
|---|---|---|---|---|
| په سبب ددې چې رب ستا به | وحی کړې وي هغې ته | په دغه ورځ به | واپس کيږي | خلق |

خکه چې ستا رب به ورته حکم کړې وي | ............په دغه ورځ به خلق ټولې ټولې راوځي

| اَشۡتَاتًا ۙ | لِّيُرَوۡا | اَعۡمَالَهُمۡ⑥ | فَمَنۡ |
|---|---|---|---|
| جداجدا [خواره واره] | دپاره ددې چې ورته اوښودلې شي | عملونه خپل | نو هغه څوک |

............چې خپل عملونه ورته اوخودلې شي | .................نوچا

| يَّعۡمَلۡ | مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ | خَيۡرًا | يَّرَهٗ⑦ | وَمَنۡ | يَّعۡمَلۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې کړې ئې وي | په مقدار د ذرې | نيکي | اوبه ويني هغه | او هغه څوک | چې کړې ئې وي |

چې ديوې ذرې هومره برابر نيکي کړې وي | هغه به اووينی | ..................او چاچې ديو

(1) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۲۰] و شعب الإيمان للبيهقي كتاب النبي ﷺ فصل في بيان النبي ﷺ فصاحته رقم الحديث[۱۳۷۴]

| مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ | شَرًّا | يَّرَهٗ ﴿٨﴾ |
|---|---|---|
| په مقدار د ذرې | بدي | اوبه ويني هغه |
| ذرې هومره بدي کړې وي هغه به اووينې | | |

## آسان ترجمه قرآن

چه کله زمکه په خپلې زلزلې سره اوجړقولې شي. او زمکه خپل بوجونه بهر راوباسي او انسان به اووائي، چه دې لره څه شوي دي. په دغه ورځ به زمکه خپل ټول خبرونه بيانوي ځکه چه ستا پروردګار هغې ته دا حکم ورکړې دې. په دغه ورځ به خلق مختلفو ډلو کښې اوګرځولې شي. دې دپاره چه د دوي اعمال دوي ته اوښودلې شي نو چاچه په اندازه د ذرې څه نيکي کړې وي، هغې لره به اووينې، او چاچه په اندازه د ذرې څه بدي کړې وي، هغې لره به اووينې.

## خلاصه تفسير

﴿إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا﴾ [ کله چه زمکه په خپلو سختو خوزيدو سره وخوزولې شي ﴿وَأَخْرَجَتِ الْأَرْضُ أَثْقَالَهَا﴾ اومزکه خپل بوجونه بهر راوغورزوي ] مراد دبوجونو نه خزانې اومړي دي او اګر چه دخنو راويتونو نه مخکښې هم دخزانو بهر راوتل معلوميږي ليکن ممکنه ده چه د قيامت نه وړاندې کومې خزانې بهر راغلې وې په ورځو تيريدو سره بياپه هغې خاوري راغلې وي اوپټې شوي وي او د قيامت په ورځ بيا راوخي اودخزانو په ښکاره کيدوکښې شايد دا حکمت وي چه د مال ډير محبت کوونکي په خپلو سترګو د مالونو بيکاره کيدل اووينې [او] چه دا حالت ووينې ﴿وَقَالَ الْإِنْسَانُ مَا لَهَا﴾ کافران [خلق به ووائي چه دې لره څه وشو ] چه مزکه داسې خوزي اوټولې خزانې بهر راوخي ﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾ په دغه ورځ به مزکه ټول خپل[ ښه او بد]خبرونه بيان کړي ﴿بِأَنَّ رَبَّكَ أَوْحَىٰ لَهَا﴾ په دې سبب سره چه ستا رب به دې ته دا حکم کړې وي ] په ترمذي وغيره کښې ددې په تفسير کښې مرفوع حديث راغلې دې چه کوم سړي په مخ دزمکه باندې کوم عمل کړې وي ښه يا بد زمکه به ټول اووائي دا به دزمکې شهادت وي ﴿يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ النَّاسُ أَشْتَاتًا﴾[1] په دغه ورځ به خلق مختلفې ډلې شي [ دموقف حساب نه به ] واپس شي يعني کوم خلق چه دمحشر دحساب نه فارغ شي او واپس کيږي نو څه جماعتونه به دجنتيانو څه به ددوزخيانو مقرر شي جنت اودوزخ طرف ته به روان شي ﴿لِيُرَوْا أَعْمَالَهُمْ﴾ [ددې دپاره چه عملونو] فائدو او نقصانونو [لره] ئې [اووينې] ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ﴾ پس کوم سړي چه] په دنيا کښې[يوه ذره برابر نيکي وکړي نو هغې لره به ووينې؛ ﴿وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ اوکوم سړې چه يوه ذره برابر بدي وکړي هغه به ووينې؛ [ په دې شرط چه تر دغه وخته پورې هغه خير او شر باقي پاتې شوې وي ورنه که دکفر به سبب هغه شې فنا شوې وي يا د ايمان او توبې په ذريعه بدي معاف شوي وي نوهغه په دې کښې داخل نه دي ځکه چه اوس نه هغه باطل شوې خير خير دې اونه هغه معاف شوې ګناه اوشرشر دې په دې وجه په محشر کښې به هغه مخې له نه راځي]

---

[1] ) جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة باب منه [ج: ۲ ص:۶۸]

## معارف او مسائل

﴿إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا﴾ دې کښې اختلاف دې چې په دې آیت مبارک کښې د کومې زلزلې بیان دې. دا به هغه وی چې رومبی ځل شپیلۍ پوک وهلونه پس په دنیا کښې به وی ، لکه د قیامت په نخښو کښې چې ددې زلزلې ذکر راغلې دې او که د دې نه مراد هغه زلزله ده چې د مړی راژوندی کیدونه پس به وی چې نفخه ثانیه ده، دې باره کښې روایات او د مفسرینو اقوال مختلف دی خو دا هم څه لرې خبره نه ده چې زلزلې دې متعدی وی. یو د اول ځل شپیلۍ پوک وهلو نه مخکښې دویمه د دویم ځل پوک وهلونه پس چې مړی ژوندی شی او دلته هم دغه دویمهٔ زلزله مراد وی او په دې سورت کښې چې کوم وروستو د قیامت د حالاتو او حساب کتاب ذکر دې هغه ددې قرینه ده چې دا زلزله هغه دویمه زلزله ده چې د دویم ځلی شپیلۍ پوک وهلو نه پس به وی. والله اعلم. [مظهری][1].

﴿وَأَخْرَجَتِ الْأَرْضُ أَثْقَالَهَا﴾ رسول الله ﷺ ددې زلزلې متعلق ارشاد اوفرمائیلو چې زمکه به دخپل ځیګر ټکړې د لویو لویو کانړو په شکل کښې بهر ته راؤغورزوی ، ددې په لیدو یو کس چې هغه د مال د پاره څوک وژلې وی هغه به ددې په لیدو سره داسې وائی چې دا هغه څیز دې چې ما دده دپاره دومره لوئې جرم کړې وو ، چا چې خپلوانو سره د مال په وجه تعلق پریخودې وو هغه به وائی چې ددې څیز دپاره ما دغه حرکت کړې وو ، غل به اووائی چې دا هغه مال دې د کوم د غلا کولو په سزا کښې چې زما لاس پریکړې شوې وو ، ددې په لیدو به دغه غل وائی چې ددې په سزاء کښې ما خپل لاس بائیللې وو ، بیا به هیڅوک هم دغسې سرو زرو پسې مخه نه اوړی [ مسلم روایت کړو ، د ابی هریره ﷺ نه][2].

﴿فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ﴾ په آیت مبارک کښې د خیر نه مراد هغه خیر دې چې په شریعت کښې معتبر دې، یعنی څوك چې ایمان سره وی بغیر د ایمان نه دالله ﷻ په نیز هیڅ یو نیک عمل نیک نه دې، یعنی په آخرت کښې یو داسې نیك عمل چې په حالت د کفر کښې شوې وی د هغې به هیڅ اعتبار نه وی. لکه چې په دنیا کښې هغه ته د هغې بدله ورکړې شی، په دې وجه د دې آیت مبارک نه په دې باندې استدلال کړې شوې دې چې د کوم سړی په زړه کښې یو ذره برابر ایمان وی هغه به آخر د جهنم نه راوښکلې شی ځکه چې د دې آیت د وعدې مطابق هغه ته به د خپل نیک عمل میوه هم په آخرت کښې ملاویدل ضروری دی. او که هیڅ نیکی ئې هم نه وی نو پخپله ایمان ډیره لویه نیکی ده. په دې وجه چې یو مؤمن هر څومره هم ګناهګار وی همیشه به په جهنم کښې نه پاتې کیږی. البته که کافر په دنیاکښې څه نیك عمل هم کړې وی نو د شرط عمل یعنی ایمان د نشتوالی د وجې نه بیکاره دې په دې وجه په آخرت کښې د هغه هیڅ نیکی خیر نه دې.

﴿وَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ دې نه مراد هغه شر دې چې په دنیا کښې ئې د هغې نه توبه نه وی کړی. ولې چې په توبې سره د ګناه معاف کیدل ، دقرآن اوسنت نه په یقینی توګه ثابت دی، البته کومې ګناه نه چې توبه نه وی شوی دهغې نتیجه په خامخا په آخرت کښې مخې ته راځی خواه هغه ورکوټې وی او که لوئې. ځکه خو نبی کریم ﷺ عائشه صدیقه ﷺ ته اوفرمائیل

[1] ) تفسیر المظهری[ج:۱۰ص:۳۲۱]
[2] ) صحیح مسلم کتاب الزکاة ، باب الحث علی الصدقة [ج:۱ص:۳۲۶]

چې د هغې ګناه نه د ځان ساتلو پوره بندوبست کوه چې وړوکې یا سپکه ګڼړلې شي ولې چې د الله ﷻ د طرف نه په هغې باندې هم ګرفت شته دې [نسائی او ابن ماجه د عائشه صدیقه ﷞ په روایت] ([1]).

عبدالله بن مسعود ﷜ اوفرمائیل چې دا آیت مبارک د قرآن کریم د ټولو نه زیات مضبوط او جامع آیت دې اودَ انس ﷜ په یو اوږد حدیث پاک کښې دی چې نبی کریم ﷺ دې آیت مبارک ته الفاذة الجامعة یعنی ځانګړې ټول اړخیز فرمائیلې دې ([2]).

اودَ انس ﷜ او ابن عباس ﷜ په یو حدیث پاک کښې راغلی دی چې رسول الله ﷺ ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ﴾ ته نیم قرآن، قل هو الله احد ته دریمه حصه دَ قرآن او سورة الکافرون ته څلورمه حصه دقرآن پاک فرمائیلې ده . [ترمذی اوبغوی روایت کړو په حواله د مظهری] ([3]).

| ایاتونه | | | رکوع ګانې |
| --- | --- | --- | --- |
| | سورة العاديات مكية وهي احدي عشرة ايات وركوعا واحدا | | |
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑪ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ① |

وَالْعٰدِيٰتِ ضَبْحًا ۙ فَالْمُوْرِيٰتِ قَدْحًا ۙ

قسم دې په منډه وهونکو اسونو باند | دپرشار سره | بیا ایستونکی د اور دی | په وهلو دنوکونو سره |

قسم دې په منډه وهونکو آسونو چې پرشیږي | ..................نو په پښو وهلو داور بخری غورزوی

فَالْمُغِيْرٰتِ صُبْحًا ۙ فَاَثَرْنَ بِهٖ نَقْعًا ۙ فَوَسَطْنَ

بیا حمله کونکې دی | په صبا کښی | بیا پورته کوی | په دې موقع | دوړه | بیا منځ ته ورننوزی |

نو د صبا په وخت په دښمن حمله کوی | نو په هغې سره ګرداو غبار اوچتوی | ...............نو ددښمن

بِهٖ جَمْعًا ۙ اِنَّ الْاِنْسَانَ لِرَبِّهٖ لَكَنُوْدٌ ۚ

په دې حالت کښی | ډلې [ددشمن] ته | بیشکه انسان | درب خپل | ډیر ناشکره دې |

[دلښکر] مینځ ته ورننوځی | .............................. بیشکه چې انسان دخپل رب ناشکره دې

وَاِنَّهٗ عَلٰى ذٰلِكَ لَشَهِيْدٌ ۚ وَاِنَّهٗ لِحُبِّ الْخَيْرِ

او بیشکه دا انسان | په دې ناشکرئ باند | خامخا ګواه دې | او بیشکه دې | په مینه دمال کښی |

اودې پخپله په دې خپله ناشکرئ ګواه دې | ...............................اودې دمال په مینه کښې

لَشَدِيْدٌ ۙ اَفَلَا يَعْلَمُ اِذَا بُعْثِرَ مَا

خامخا سخت دې | آیا نو هغه نه پیژنی هغه وخت | کله چې | راپورته کړې شي | هغه څه |

ډیر[زیات]سخت دې |............آیا دهٔ ته معلومه نه ده چې څه وخت د قبرونو نه هغه څه چې په کښې دی

---

[1]) سنن ابن ماجة، كتاب التوحيد باب ذكر الذنوب[ج:۲ ص:۳۱۳] وسن الكبرى للنسائى كتاب الرقائق رقم الحديث:[۱۱۸۱۱]

[2]) صحيح مسلم كتاب الزكاة ، باب اثم مانع الزكاة [ج:۱ص:۳۱۸]

[3]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۲۶] و جامع الترمذي ، ابواب فضائل القرآن باب إذا زلزلت [ج:۲ ص:۱۷۳]

| فِي الْقُبُورِ ۙ | وَحُصِّلَ | مَا | فِي الصُّدُورِ ۙ | إِنَّ رَبَّهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې په قبرونو کښې دی | اوراېهرکړې شي | هغه څه | چې په سينو کښې دی | بيشکه رب دهغوئ به |
| [مړي] راپورته کړې شي | او د سينو پټ رازونه به ښکاره کړې شي | ............... | | نو په دغه |

| بِهِمْ | يَوْمَئِذٍ | لَخَبِيرٌ ۝ |
|---|---|---|
| په هغوئ باندې | په دغه ورځ | خامخا خبردار وی |
| ورځ به الله تعالی ددوئ په حال ښه خبر وی | | |

### آسان ترجمه قرآن

قسم دې په هغه اسونو باندې چه منډې وهي او هنرېږي. بيا چه (په خپلو پښو وهلو سره) د اور پسرې الوځوی بيا چه د سحر په وخت کښې حمله کوی. بيا په دغه موقع دوړې الوځوی. بيا په دغه وخت کښې د يو ټولي په مينځ کښې ورننوځي چه انسان د خپل پروردګار ډير زيات ناشکره دې. او هغه خپله ددې خبرې ګواه دې اوحقيقت دادې، چه هغه د مال په مينه کښې ډير سخت دې آيا دهٔ ته هغه وخت معلوم نه دې، چه کله په قبرونو کښې چه څه دی، هغه بهر راؤشيندلې شي. او په سينو کښې چه څه دی، هغه ظاهر کړې شي يقيناً ددوی پروردګار په دغه ورځ ددوی (په دې حالت باندې) ښه خبردار ه دې.

### خلاصه تفسير

﴿وَالْعٰدِيٰتِ ضَبْحًا ۙ﴾ [قسم دې په هغو اسونو چه په هواکيږې منډې وهی ﴿فَالْمُوْرِيٰتِ قَدْحًا ۙ﴾ بيا] په ګټه [نوك ووهي لمبه پورته کړي ﴿فَالْمُغِيْرٰتِ صُبْحًا ۙ﴾ بيا دسحر په وخت کښې حمله کوی ﴿فَاَثَرْنَ بِهٖ نَقْعًا ۙ﴾ بياهغه وخت ګرد پورته کوی ﴿فَوَسَطْنَ بِهٖ جَمْعًا ۙ﴾ بيا هغه وخت ]ددښمنانو [په لښکر ورننوځی ] مراد ددې نه د جنګ اسونه دی جهاد وی يا غير جهاد عرب چونکه دجګړو اوجنګونو عادت وو دکومو دپاره چه به اسونه ساتلې شول ددې په مناسبت سره په دې جنګی اسونو قسم وخوړې شو وراند جواب دقسم دې چه ﴿اِنَّ الْاِنْسَانَ لِرَبِّهٖ لَكَنُوْدٌ ۚ﴾ [بيشکه] کافر [بنده دخپل پروردګار لوئي ناشکره دې ﴿وَاِنَّهٗ عَلٰى ذٰلِكَ لَشَهِيْدٌ ۚ﴾ اودهٔ ته په خپله هم ددې خبر دې ] کله هم په ابتداء کښې او کله دځهٔ غورنه پس دخپلې ناشکرئ احساس کوی ﴿وَاِنَّهٗ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيْدٌ ۚ﴾ [ اوهغه دمال په محبت کښې ډير مضبوط دې ] دا د دهٔ د ناشکرئ سبب دې وراند دمال په محبت اوناشکرئ باند وعيد دې يعنی ﴿اَفَلَا يَعْلَمُ اِذَا بُعْثِرَ مَا فِي الْقُبُوْرِ ۙ﴾ [آيا هغهٔ ته هغه وخت معلومه نهٔ دې کله چه ژوندی کړې شي څومره مړی چه په قبرونو کښې دی ﴿وَحُصِّلَ مَا فِي الصُّدُوْرِ ۙ﴾ اوظاهر به شي څهٔ چه په زړونو کښې دی ﴿اِنَّ رَبَّهُمْ بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّخَبِيْرٌ ۝﴾ بيشکه دهغوی پروردګار دهغوی دحال نه په هغه ورځ پوره خبردار دې ] اومناسبه جزا به ورکړی لنده دا چه کهٔ انسان ته د دغې وخت پوره خبر وې اوداخرت حال ئې ليدلې نو د ناشکرئ اودمال دمحبت نه به واپس شوې وو

### معارف او مسائل

د ابن مسعود رضي الله عنه، جابر رضي الله عنه، حسن بصری رحمه الله، عکرمه رحمه الله، عطاء رحمه الله په نزد سورة عاديات مکی دې او د ابن عباس رضي الله عنه، انس رضي الله عنه، امام مالک رحمه الله، قتاده رحمه الله په نزد مدنی

سورت دي . [ قرطبي ] [1]

دې سورت کښې الله ﷻ د جنګي اسونو څه خاص حالات او صفتونه بيان اوفرمائيل قسم خوړل اوددې سره ئې دا ارشاد اوفرمائيلو چه انسان دَخپل رب ډير غټ ناشکره دې. داخبره خو په قران پاک کښې بيابيا معلومه شوې ده چې الله ﷻ دخپلو مخلوقاتو څيني دمختلفو څيزونو په قسم خوړو سره خاص واقعات او احکام بيانوي. دا دالله ﷻ خصوصيت دې انسان دپاره د چا مخلوق قسم خوړل جائز نه دی او دقسم خوړلو مقصد دعامو قسمونو پشان خپله خبره ثابته او يقيني خودل دی او دا خبره هم روميې راغلې ده چې قرآن کريم د کومو څيزونو په قسم خوړلو سره چې څه مضمون بيانوی نوهغې څيزونو لره دهغې مضمونونو په ثبوت کښې دخل وی. او دا څيز ګويا ددغې مضمون ګواهي ورکوی دلته د جنګي اسونو د سختو خدمتونو ذکر ګويا کښې ددې په ګواهئ کښې راوړې شوې دې چې انسان لوئې ناشکره دې ، تشريح دَدې داده چې د اسونو خصوصا د جنګي اسونو په حالاتو باندې نظر واچوئی چې هغه په ميدان جنګ کښې خپل ځانونه په خطره کښې اچولو سره څومره سخت محنتونه اوخدمتونه دانسان په حکم او اشاره انجام ته رسوی. سره ددې چې انسان داسونو پيدا کوونکې نه دې .اسونو ته دخوراک څښاک کوم څيز چې انسان ورکوی هغه هم دهغه پيدا کړی نه دی ، دده کار صرف دومره دې چې د الله ﷻ پيدا کړې خوراک څښاک دهغې مخې ته راوړاندې کوی خو سره ددې هم دغه آس د انسان سخت نه سخت خدمتونه کوی او دده په ادنی اشارې سره مشکل کارونه سرته رسوی. يعنی اس د انسان دومره احسان هم نه پيژني او منی يې ، بل خوا انسان ته اوګورئی چې الله ﷻ د يو سپک ځاځکی نه پيدا کړو او ورته ئې د مختلفو کارونو طاقت وراوبخښلو ، عقل او شعور ئې ورکړو ، دده د خوراک څښاک ټول څيزونه ئې پيدا کړل، او دده ضروريات ئې آسان کړل او ده ته ئې راؤ رسول، دې کار ته عقل هم حيران دې خو سره ددې هم انسان نه شکر ګزاره کيږي. اوس د الفاظو تشريح اوګورئی :

﴿غٰدِيٰتِ﴾ د عدو نه مشتق دې معنی ئې منډه وهل دی .

﴿ضَبْحًا﴾ دا هغه آواز دې چې د آس دمنډې وهلو په وخت دهغه دسينې نه راؤځی چې ترجمه ئې هنړيدل او سونړيدل کړې شوې ده .

﴿مُوْرِيٰتِ﴾ د ايراء نه مشتق دې. چې معنی ئې اور راويستل دی څنګه چې د سپين کانړی په ټکولو يا په تيلی وهلو سره به ترې راويستلې شی.

﴿قَدْحًا﴾ د قدح معنی نوک وهل جنګول دی ، په کانړيزه زمکه کښې کله چې اس منډې وهی، خصوصا چې د اوسپنې نعلونه پرې هم وهلې شوی وی. نو د هغې د جنګيدو او ټکراويدو نه داور بڅرې هم راپورته کيږی .

﴿مُغِيْرٰتِ﴾ د اغاره نه مشتق دې ، چې معنیٰ ئې حمله کول او چا په وهل دی .

﴿صُبْحًا﴾ د صبا د وخت تخصيص دعادت دبيان په ډول دې ، ولې چې دعربو خلقو به دبهادرئی ښکاره کولو په غرض دشپې په تياره کښې چاپه کول عبث ګنړلو او حمله به ئې دصبا کيدونه بس کوله .

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۵۳]

﴿فَأَثَرْنَ﴾ د اثارت نه مشتق دې. معنی ئې گرد آلوزول دی، مطلب دادې چې آسونه په تیزئی منډه وهی کښی نو په معمولی منډه ترې دصبا په وخت گرد نه پورته کیږي.
﴿فَوَسَطْنَ بِهِ جَمْعًا﴾ یعنی دا د دښمن په صفونو کښې بې دڅه ویرې ورننوځی.
﴿كَنُودٌ﴾ ددې معنی حسن بصری رحمه الله هغه بنده کوی چې مصیبتونه یاد لری او نعمتونه هیروی.
ابوبکر واسطی رحمه الله فرمائی چې هغه بنده ﴿كَنُودٌ﴾ دې کوم چې دالله ﷻ نعمتونه دالله ﷻ په نافرمانیانو کښې لگوی. او ترمذی اوفرمائیل چې هغه څوک ﴿كَنُودٌ﴾ دې چې نعمتونه گوری او نعمت ورکوونکی ته نه گوری. ددې تولو اقوالو حاصل د نعمت ناشکری کول دی څکه د ﴿كَنُودٌ﴾ ترجمه ناشکره کړې شوې ده(۱).
﴿وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ﴾ د خیر لفظی معنی هره ښیگړه ده، عربو به مال ته هم خیر وئیلو. گویا مال سراسر خیرخیر او فائده فائده ده حالانکه په حقیقت کښې ښینی مال انسان لره په زرگونو مصیبتونو کښې اخته کوی، په آخرت کښې خو د هر حرام مال هم دغه انجام دې، کله خو په دنیا کښې هم مال د انسان دپاره وبال جوړ شی مگر دعربو دمحاورې په جوړ په دې آیت مبارک کښې مال نه په خیر سره تعبیر کړې شویدې لکه په بل یو آیت مبارک کښې ﴿إِن تَرَكَ خَيْرًا﴾(۲) کښې چې د خیر نه مراد مال اخستې شوې دې.
اوس په دې آیت مبارک کښې د آسونو په قسم خوړلو سره د انسان باره کښې دوه خبرې شوی دی. ① یو دا چې هغه ناشکره دې مصیبتونو او تکلیفونو لره یاد لری نعمتونه او احسانانونه هیروی. ② بله دا چې هغه د مال په مینه کښې مست دې، دا دواړه خبرې دشریعت او عقل له مخې بدې دی په دې کښې انسان لره په دغې بدو خصلتونو باندې خبرول مقصود وی، د ناشکرئی بد والې خو بیخی ښکاره دې، د مال مینې ته چې بد اووئیل حالانکه په دې باندې د انسانی ضرورتونو اړه ده اوددې گټلو او کاروبار کولو ته شریعت صرف حلال نه بلکه د ضرورت په اندازه فرض گرځولې دی نو د مال محبت ته بد وئیل یاخود وصف د سختنی په اعتبار سره دی چې زیاته مینه ورسره لرلې شی تر دې پورې چې د الله ﷻ د حکمونو نه هم غافله شی او د حرامو حلالو پروا نه لری. یا د دې وجې چې دمال کاروبار کول او د ضرورت په اندازه جمع کول خو بدیت نه لری بلکه فرض دی خو مینه ددې هم بدیت لری. ولې چې مینه زړه سره تعلق لری، ددې حاصل به دا وی چې مال دضرورت په اندازه حاصلولو او دهغې نه کار اخستل خو یو فریضه اوستائیلې شوې خبره ده لیکن په زړه کښې ددې مینه کیخودل بیا هم بدیت لری لکه چې انسان د ډکو او تشو متیازو ضرورت هم پوره کوی دهغې انتظام هم کوی خو په زړه کښې ئې مینه ورسره نه وی په ناروغتیا کښې دوائی هم خوری. آپریشن هم کوی خو په زړه کښې ئې ددې څیزونو مینه نه وی بلکه د مجبورئی په درجه کښې ئې کوی. دغسې دالله ﷻ په نزد مؤمن لره داسې کیدل پکار دی چې دضرورت په اندازه مال هم حاصل کړی دهغه حفاظت هم کوی او دضرورت په موقعو کښې ترې کار هم اخلی خو زړه ئې ورسره نه وی لکه مولانائې روم چې په ډیر بلیغ اندازه کښې فرمائیلی دی:

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۶۲]
(۲) ترجمه :- په دې شرط چې څه مال یې په میراث کښې پرېښودې وی.

آب اندر زیر کشتی پشتی است آب در کشتی هلاک کشتی است

یعني او به چې تر څو پورې د کشتۍ لاندې وي نو د کشتئي د پاره مددګار او ددې مضبوطول دي خو چې او به په کشتۍ کښې دننه شوې نو بیا د کشتۍ تباه کول دي.

دغسې تر کومه پورې چې مال د زړه د کشتئي نه یو خوا وي نو دا فائده مند دی او کله چې په زړه کښې ورننوځي نو هلاکت دی په آخر د سورت کښې د انسان په دې دواړو خرابو خصلتونو باندې د آخرت وعید واؤ رولې شو.

﴿اَفَلَا یَعْلَمُ اِذَا بُعْثِرَ مَا فِی الْقُبُوْرِ﴾ آیا دې غافل انسان ته خبر نشته چې د قیامت په ورځ کله چې مړي په راژوندي کولو سره د قبرونو نه راپورته کړې شي او د زړه پټې خبرې به هم ټولې رابرڅیره شي او په دې هم ټول پوهیږي چې رب العالمین د دې ټولو حالاتونه خبر دې نو ددې مطابق به جزاء او سزا ورکوي ځکه دعقل منډئي کار دادې چې د ناشکرئي نه واوړي او د مال په مینه کښې دومره وراخته نشي چې د ښه او بد فرق نه کوي.

**فائده** :: دې آیت مبارک کښې دا دوه خراب خصلتونه د مطلق انسان کړې شوي دي حالانکه په انسانانو کښې پیغمبران اولیاء او ډیر نیکان عبادت ګذار داسې دي چې ددې خرابو خصلتونو نه پاک او شکر ګذار بندګان وي، مال لره د الله ﷻ په لار کښې خرچ کولو د پاره تیار او سیړي د حرام مال نه ځان ساتي. پدې بنا ددې خرابو خصلتونو نسبت انسان ته د اکثریت په اعتبار سره داسې دي چې اکثر انسانان دا خراب خصلتونه لري. ځکه ځینې حضراتو دلته د انسان نه مراد کافر اخستې دې، ځنګه چې په خلاصه ئې تفسیر کښې دغسې دی. ددې حاصل به دا وي چې دا دواړه ناکاره خصلتونه په اصل کښې د کافر دی، الله ﷻ دې نکړي که په مسلمانانو کښې هم دا خصلتونه پیداشي نو ددې فکر کول پکار دی. والله اعلم.

تمت سورة العدیت بحمدالله تعالی

| ایاتونه | | | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة القارعة مکیة وهي احدی عشرة ایات ورکوعاواحدا | | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | | |
| ⑪ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ① |

اَلْقَارِعَةُ ۝١ مَا الْقَارِعَةُ ۝٢ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْقَارِعَةُ ۝٣ یَوْمَ

لویه حادثه | څه ده هغه لویه حادثه | او څه معلومه ده تاته | چې څه ده هغه لویه حادثه | هغه ورځ |

ټکونکې | هغه ټکونکې څه ده | او تاته څه معلومه ده چې هغه ټکونکې څه ده | ............ په دغه

یَكُوْنُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوْثِ ۝٤ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ ۝٥

چې شی به خلق | پشان د پتنګانو | خورو ورو | او شی به غرونه | پشان د وړی | وهلې شوی |

ورځ به خلق د خورو ورو پتنګانو په شان ګرځي او غرونه به د شیندلې شوې رنګینې وړئ په شان الوزي

فَاَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِیْنُهٗ ۝٦ فَهُوَ فِیْ عِیْشَةٍ رَّاضِیَةٍ ۝٧

هر چې دې هغه څوک | چې درنې شی | تلې د هغه | پس هغه به | په ژوند | خوښ کښې وی |

نو دچا د نیکو عملونو | تلې چې درندې شي | ............ هغه به په ښه مزه کښې وي

| وَأَمَّا مَنْ | خَفَّتْ | مَوَازِينُهُ | فَأُمُّهُ | هَاوِيَةٌ |
|---|---|---|---|---|
| او هر چې دې هغه څوك | چې سپکې شوې | تلې دهغه | نو ځاني دقرار دهغه | ژوره کنده ده |
| اود چا [دبدوعملونو] تلې چې سپکې شی | ........................دهغه ځائې هاويه دې | | | |

| وَمَآ أَدْرٰكَ | مَا هِيَهْ | نَارٌ حَامِيَةٌ |
|---|---|---|
| او څه پته ده تاته | چې څه څيز دې هغه | اور گرم دې |
| اوتاته څه معلومه چې هاويه څه څيز دې | هغه گرم اور دې | |

## آسان ترجمه قرآن

**(ياده کړه) هغه واقعه چه زړونه به اوټکوی. څه ده هغه زړونه ټکولکې واقعه. او تاته څه معلومه ده، چه هغه زړونه ټکولکې واقعه څه ده؟ په هغه ورځ چه ټول خلق به د خواره شوې پتنګانو پشان شی. او غرونه به د وهلې شوې رنګين مالوچو پشان شی. پس هر هغه کس چه دهغه تله درنه وی. نو هغه به په ژوند خوشحاله کښې وی. او د چا د عملونو تله چه سپکه وی. نو د هغه ځائې به يو ژوره کنده وی. او تاته څه معلومه ده، چه هغه ژوره کنده څه څيز دې؟ يو سخت گرم اور دې.**

## خلاصه تفسير

﴿اَلْقَارِعَةُ۝ مَا الْقَارِعَةُ۝﴾ [هغه ټکوونکې شې څۀ دې هغه ټکوونکې شې ﴿وَمَآ اَدْرٰكَ مَا الْقَارِعَةُ۝﴾ اوتاته څۀ معلومه ده چه څۀ رنګې دې هغه ټکوونکې شې [ مراد ترې نه قيامت دې کوم چه زړونو لره دګبراهټ نه اوغوږونو لره په سختو آوازونو اوټکوی اودا به په هغه ورځ وی ﴿يَوْمَ يَكُوْنُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوْثِ۝﴾ [په کومه ورځ چه بنيادم پريشانه دپتنګانو په شان شی] دپتنګانو سره تشبيه دخوځيزونو په وجه ورکړې شوه يودير والې چه ټول اولين اواخرين انسانان به په ميدان کښې جمع شی دويم کمزوری کيدل چه ټول انسانان به دغه وخت په کمزورئ کښې دپتنګانو په شان کمزوری وی دا دواړه وصفونه خو به دټول اهل محشر په انسانان کښې عام وی دريم بې تاب اوبې ارامه اخواديخوا ګرځيدل کوم چه په پتنګانو کښې مشاهده کولې شی دا صورت به خاص په مؤمنانو کښې نۀ وی هغوی به دخپلو قبرونو نه مطمئن راپورته کيږی ﴿وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ۝﴾ [ اوغرونه به د ويشنلې شوی رنګينې وړنی په شان شی عِهْن رنګينې وړې ته وئيلې شی دغرونو رنګونه چونکه مختلف دی اودغه ټول به په هوا کښې الوزی چه مثال به ئې دهغه وړنی دَ پشم په شان وی په کوم کښې چه مختلف قسمه د ويښتو رنګونه شامل وی په دغه ورځ به انسانی عملونه تللې شی ﴿فَاَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ۝﴾ [بيا چه د کوم سړی قول] دايمان [دروند وی ] يعنی کوم چه مؤمن وی ﴿فَهُوَ فِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ۝﴾ [هغه به په خاطر خواه ارام کښې وی ] يعنی نجات به بيا مومی جنت ته به خی ﴿وَاَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ۝﴾ [اودَ کوم سړی تول ] دايمان [چه سپك وی ] يعنی کافر وی ﴿فَاُمُّهٗ هَاوِيَةٌ۝﴾ [دهغۀ ځائې به هاويه وی ﴿وَمَآ اَدْرٰكَ مَا هِيَهْ۝﴾ او تاته څۀ معلومه ده چه هغه] هاويه [څۀ شې دې ]هغه ﴿نَارٌ حَامِيَةٌ۝﴾ [يو ګرم شوې اور دې ]

## معارف او مسائل

دې سورت کښې د عملونو دتول اودهغې په دروندالی او سپکوالی باندې د جنت او دوزخ حاصلیدوبیان دې د عملونو تللو پوره تحقیق او د شبهاتو جواب د سورة اعراف په شروع کښې تیر شو بـدې ، هلتـه اوګـورئی . هلتـه دا هـم لیکلـې شـوی دی چـې د حدیث پـاک د روایتونو او د آیتونو دتطبیق نه معلومیږی چې د عملونو تول به غالبا دوه ځله کیږی په یو ځل تول سره به دمؤمن اوکافر ترمینځه بیلتون راوستې شی نو د مؤمن چابړې به دروند اود کافر به سپک وی ، بیا به په مؤمنانو کښې د نیکو او بدو عملونو ترمینځه فرق کولو دپاره دوئم ځل تول کولې شی . په دې سورت کښې په ظاهره هغه ړومبې تول مراد دې چې په کښې به د هر مؤمن دَتلې چابړې دایمان په وجه دروند وی خواه د هغه عمل هر څنګه وی او د کافر ایمان نشته ځکه به د هغه چابړې سپک وی اګر چې هغه څه نیک کارونه هم کړی وی ، په تفسیر مظهری کښې راغلی دی چې په قرآن کریم کښې په عام ډول باندې دجزا او سزا ترمینځه مقابله کول دکافرانو او نیکانو مؤمنانو ترمینځه شوې ده چې اصلی مؤمنان هم دغه دی ، پاتې شو هغه مؤمنان چې بد او نیک عملونه ئې ګډوډ کړی وی قرآن کریم په عام ډول په هغې چپ پاتې شوې دې ، او په دې ټولو آیتونو کښې داخبره دیادولو جوګه ده ، چې په قیامت کښې د خلقو عملونـه تللې شی شمیرلې بـه نشی ، او د عمـل وزن داخلاص اود سنت د تابعدارئی په وجه زیاتیږی . اګر چې په شمیر کښې کم وی دهغه چا د نیک عملونو په نسبت به زیات وی چې هغه په شمیر کښې مونځونه ،روژې ، صدقې ، خیراتونه ،حج او عمرې ئې ډیرې کړې وی مګر په اخلاص کښې ئې کمی وی یا دسنت مطابقت په کښې کموالې وی نو دهغه تول به کم وی[1] .

تمت سورة القارعة بحمدالله تعالی

[1]) تفسیر المظهری ج:۱۰ص:۳۳۰

| اياتونه | سورة التكاثر مكية وهي ثماني ايات وركوعا واحدا | ركوع كانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑧ | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | ① |

| كَلَّا | زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ② | حَتّٰى | التَّكَاثُرُ① | اَلْهٰكُمُ |
|---|---|---|---|---|
| هرگز داسې نه | چې زيارت اوكړو تاسو دمقبرو | تر دې پورې | [حرص] دمال ډيرولو | غافله كړې تاسو |

دمال د ډيرولو حرص تاسو غافله كړې ئې | تر دې چې تاسو قبرونو ته اورسيږئ | ..............خبردار

| كَلَّا | سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ④ | ثُمَّ كَلَّا | سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ③ |
|---|---|---|---|
| هرگز داسې نه ده | ډير زر به معلوم شې تاسو ته | بيا هر گز داسې نه | ډير زر به معلوم شي تاسو ته |

زر به پوهه شئ | ..............بيا ياد لرئ چه زر به پوهه شئ | ..............هر گز نه

| ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا | الْجَحِيْمَ⑥ | لَتَرَوُنَّ | عِلْمَ الْيَقِيْنِ⑤ | لَوْ تَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| بيا به خامخا وينئ تاسو هغه | دوزخ | خامخا به وينئ تاسو | په علم يقيني سره | كاش چې تاسو پوهيدلې |

كه تاسو خپل انجام يقيني طور پيژندې | تاسو به ضرور په خپلو سترگو دوزخ ا ووينئ | بيا به هغه خامخا

| عَنِ النَّعِيْمِ⑧ | يَوْمَئِذٍ | ثُمَّ لَتُسْئَلُنَّ | عَيْنَ الْيَقِيْنِ⑦ |
|---|---|---|---|
| په باره ددې نعمتونو كښې | په دغه ورځ | بيا به خامخا تپوس كيږي ستاسو نه | په سترگو ديقين سره |

ديقين په سترگو اووينئ| بيا به په دغه ورځ تاسو نه دنعمتونو تپوس كولې شي

## آسان ترجمه قرآن

ډيو بل نه (د دنيا عيش و عشرت) زيات حاصلولو حرص تاسو په غفلت كښې اچولې يئ تردې پورې چه تاسو قبرستان ته اورسيدئ. هيڅكله داسې نه ده، زر ده چه تاسو ته به پته اولگي. بيا (واورئ چه) هيڅكله داسې نه ده، زر ده چه تاسو ته به پته اولگي، هيڅكله نه، كه تاسو په يقيني علم سره په دې خبره پوهه وئ (نو داسې به مو نه كول) يقين اوكړئ، چه خامخا تاسو به اووينئ دوزخ لره بيا يقين اوكړئ، چه تاسو به هغې لره بالكل يقين سره اووينئ. بيا به ستاسو نه په هغه ورځ د نعمتونو باره كښې تپوس كولې شى (چه د هغې مو څه حق ادا كړې دې)

## خلاصه تفسير

په دنيوی سامان ﴿اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ①﴾ [فخر كول تاسولره ] دآخرت نه [غافله ساتى ﴿حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ②﴾ تر دې چه تاسو قبرستان ته ورسئ ] يعنى مړه شئ لكه داسې په ابن كثير كښې دى مرفوعا[1] ﴿كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ③﴾ [هر گز نه ده ] يعنى نه دنيوى سامان قابل فخر دې اونه قابل غفلت دې[تاسو ته به ډير زر] قبرونه ته په رسيدويعنى مړه كيدو سره[معلومه شى ﴿ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ④﴾ بيا] دوباره تاسو لره خبردارولې شى چه [ هر گز] دا څيزونه قابل فخر اوتو جه او آخرت قابل غفلت او انكار[نه دې تاسوته به ډير زر] دقبرنه په وتلو يعنى حشر كښې [معلومه

[1] تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۴۷۲]

شي ] لکه داسې په فتح البيان کښې مرفوعا راغلې دي او په دريم خل بيا تاسو لره متوجه کولې شي چه ﴿كَلَّا﴾ [هر گز ] دا څيزونه قابل فخر اوتوجه او آخرت قابل غفلت اوانکار [نه دي] او ﴿كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ الْيَقِينِ﴾ [که تاسو په يقيني طور سره پوهيدې] يعنی په صحيح دليلونو کښې مو دغور اوتوجه نه کار اخستې اويقين مو پرې راتلې نو چرې به په دې سامان په فخر او دآخرت نه په غفلت کښې نه پريوتلې: ﴿لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ﴾ [والله تاسو خلق به ضرور دوزخ لره وويني: ﴿ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِينِ﴾ بيا] مکرر دتاکيد دپاره وئيلې شی [والله تاسو خلق به ضرور په داسې ليدو وويني چه په خپله به يقين وی ] خکه چه دغه ليدل به په استدلال او دلائلو سره نۀ وی په کومو سره چه په يقين حاصليدو کښې وخت لګی بلکه دغه به دسترګو مشاهده وی لنډه دا چه په خپلو سترګو سره ليدلو لره ئې په ﴿عَيْنَ الْيَقِينِ﴾ سره تعبير فرمائيلې دې ﴿ثُمَّ﴾ [بيا] بله خبره واورئ چه ﴿ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾ [په دغه ورځ به تاسو نه دټولو نعمتونو تپوس کيدې شی ] چه دحق تعالی درکړې شوو نعمتونو حق مو په ايمان اواطاعت سره په ځائې راوړې دې اوکۀ نۀ]

## معارف او مسائل

﴿أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ﴾، ﴿تَكَاثُرُ﴾ دکثرت نه مشتق دې ، معنی ئې ډير مال دولت جمع کول دی نو ابن عباس رضی الله عنه او حسن بصری رحمه الله ددې لفظ هم دا تفسير کړې دې . اودا لفظ کله د فخر کولو دپاره هم استعمالولې شی ، څنګه چې د قتاده رحمه الله تفسير دې . اود ابن عباس رضی الله عنه په يو روايت کښې راغلی دی چې نبی کريم ﷺ : ﴿أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ اولوستلو او وې فرمائيل چې دې نه مراد په ناجائز طريقو سره مال حاصلول دي او په مال باندې چې د الله ﷻ کوم فرض جاری کيږی په هغې کښې ئې نه لګوی [ قرطبی ] (۱).

﴿حَتَّىٰ زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ﴾ دلته د مقابر د زيات کولو نه مراد په مرګ سره قبر ته رسيدل دی لکه چې په حديث مرفوع کښې پخپله رسول الله ﷺ د ﴿حَتَّىٰ زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ﴾ په تفسير کښې داسې اوفرمائيل چې [حتى يأتيكم الموت] [ابن کثير په روايت دابن ابی حاتم ] (۲). څکه به د آيت مطلب دا وی چې تاسو خلقو لره دمال ، دولت ډير والې يا په مال ، اولاد قبيله او نسب باندې فخر کول په غفلت کښې اچوی دخپل انجام او د آخرت دحساب څه فکر نه کوئی تر دې چې په دې حال کښې تاسو ته مرګ راځی . اوهلته په عذاب کښې راګير کړې شئ . دا خطاب په ظاهره عامو انسانانو ته دې چې د مال اولاد په مينه يا په نورو باندې خپلې توجه ثابتولو او فخرکولو کښې داسې مست پاتې کيږی . چې خپل انجام ته سوچ کولو ته ئې هډو ډ سره مخه نه وی . عبدالله بن شخير رضی الله عنه فرمائيلی دی چې زه يو ورځ د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو نبی کريم ﷺ ﴿أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ لوستلو اودائې اوفرمائيل چې :

[يقول ابن ادم مالي مالي وهل لك من مالك الا ما اكلت فافنيت اولبست فابليت او تصدقت فامضيت وفى رواية لمسلم وما سوى ذلك فذاهب وتاركه للناس] [ابن کثير او قرطبی په روايت د مسلم او ترمذی او احمد] (۳)

---

(۱) تفسیرالقرطبي[ج:۲۰ص:۱٦۹] وصحيح مسلم كتاب الزهد، فصل لا ينبغی للإنسان .... إلخ [ج:۲ص:٤۰۷]

(۲) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:٤۷۲]

(۳) صحيح مسلم كتاب الزهد، فصل لا ينبغی للإنسان ....إلخ [ج:۲ص:٤۰۷] وجامع الترمذي،ابواب الزهد باب ماجاء لوكان لابن آدم واديان .... إلخ [ج:۲ ص:۵۹] ومسند احمد حديث مطرف بن عبدالله رضی الله عنه رقم الحديث:[۱٦۳۰۵]

يعنى سړي وائي چه زما مال او زما مال حالانكه په دې كښې ستا حصه خو هم دومره ده كومه چه تا خوړلو سره فنا كړه يا دې واغوستله زړه دې كړه يا دې صدقه كړه دَ خان نه دې مخكښې اوليږله او دې نه سوا چه څه دى هغه ستا دَ لاس نه تلونكى دى ته دا دَخلقو دپاره پريخودونكې ئى.

امام بخارى رحمه الله انس رضي الله عنه نه روايت كړې دې چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل: [لو كان لابن ادم واديامن ذهب لاحب ان يكون له واديان ولن يملأ فاه الا التراب ويتوب الله على من تاب][1] يعنى كه دَ آدم زاد دَپاره يو وادى [دَ غره لمن] دَ سرو زرو نه ډكه موجود وى نو [هغه به په دې باندې صبر اونه كړى بلكه] غواړى به چه دوه واديانې نورې وى او دَهغه خله خو به [دَقبر] دَ خاورو نه سوا په بل څيز ډكه نشى او الله تعالى توبه قبلوى دَهغه سړى چه دَهغه طرف ته رجوع وى.

كه د انسان يو وادى دسرو زرونه ډكه وى نو هغه به پرې صبر نشى بلكه غواړى به چې داسې دوه واديانې شى او ددهٔ خله خو د قبر د خاوړو نه سوا بل څيز نشى ډكولې او الله ﷻ توبه قبلوى دهغه چا چې الله ﷻ ته ئې رجوع وى.

ابى بن كعب رضي الله عنه فرمائيلى دى چې مونږ به دحديث پاک دغه الفاظ قرآن كريم ګڼړل تردې چې سورة ﴿أَلْهَىٰكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ نازل شو. داسې معلوميږى چې رسو الله ﷺ ﴿أَلْهَىٰكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ اولوستلو او دغه بيان شوى الفاظ به ئې ددې د تفسير او تشريح په ډول لوستلى وى. دې نه څينې صحابه كرامو رضي الله عنهم ته دا شبه شوه چې دا هم د قرآن كريم الفاظ دى. وروسې چې كله ټول سورة ﴿أَلْهَىٰكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ مخې ته راغلو نو دا الفاظ په كښې نه وو په دې سره اصل حقيقت څرګند شو. چې دغه الفاظ د تفسير وو.

﴿كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ الْيَقِينِ﴾ د لو حرف شرط دپاره استعماليږى ، ددې دپاره د جزاء ضرورت وى، چې هغه د چلن په قرينه دلته حذف كړې شوې دى. يعنى: ﴿لَمَا أَلْهَىٰكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ يعنى كه تاسو ته دقيامت دحساب كتاب يقين وې نو تاسو به په دې تكاثر او تغافل كښې نه پريوتئ.

﴿ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِينِ﴾ د تيرې شوې خلاصې د تفسير نه معلوم شوى دى چې: ﴿عَيْنَ الْيَقِينِ﴾ نه مراد هغه يقين دې چې د سترګو په ليدلو سره حاصليږى چې دا دټولو نه د لوړې درجې يقين دى ، ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چې موسى عليه السلام كله په كوه طور كښې وو او په كلى كښې ئې قوم دسخى عبادت كول شروع كړل نو الله ﷻ ورته هلته په كوه طور باندې خبر وركړې وو چې قوم دې په دغې وبال كښې اخته شوې دې خو هلته پرې دومره اثر نه وو شوې څومره چې په خپلو سترګو ئې دخپل قوم حال اوليدو او د هغې اثر پرې اوشو. نو بې اختياره ئې د تورات تختئ دلاس نه پريوتې. [احمد اوطبرانى په صحيح سند سره روايت كړو ، مظهرى][2].

﴿ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾ يعنى تاسو ټولونه به د قيامت په ورځ د الله ﷻ د دركړى نعمتونو باره كښې تپوس كيږى چې تاسو دهغې څه شكر ادا كړو. او هغه مو په ګناهونو كښې خو خرچ نه كړو. په دې كښې د څينې نعمتونو باره كښې خو پخپله د قرآن كريم په بل ځائې كښې داسې وضاحت راغلو: ﴿إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا﴾[3]

---

[1]) صحيح البخاري كتاب الرقائق ،باب ما يتقى من فتنة المال [ج:۲ص:۹۵۲]
[2]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۳۵] و مسند احمد ،مسند عبدالله بن عباس رقم الحديث:[۲٤٤۷]
[3]) ترجمه :- غوږ او سترګه او زړه هر كس نه ددې باره كښې تپوس كيږى.

چې په كښې د انسان دآوريدو ، ليدلو او زړه متعلق هغه لكهونه نعمتونه راغلل چې انسان ئې هر وخت استعمالوى.

**حديث پاك**: او نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې د قيامت په ورځ به د بنده نه د كوم څيز چې د ټولو نه ړومبې تپوس كيږى هغه تندرستى ده، هغه ته به وئيلې شى چې آيا مونږ تاته روغتيا نه وه دركړې. او آيا مونږ درته يخې اوبه څكلو دپاره نه وې دركړې. [ترمذى د ابى هريره رضي الله عنه او ابن حبان رحمه الله په خپل صحيح كښې ، ابن كثير] [1].

**حديث**: او نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې په محشر كښې به هيڅوك دخپل ځائې نه نشى خوزيدې تر څو چې د پنځو سوالونو جواب ترې وانخستې شى ، يو دا چې دهٔ خپل عمر په كومو كارونو كښې فنا كړې دې. دويم دا چې دهٔ د ځوانئ طاقت په كومو كارونو كښې استعمال كړې دې. دريم دا چه كوم مال دې حاصل كړې وو هغه دې په كومه طريقه حاصل كړې وو په جائز كه په ناجائز. څلورم دا چې دغه مال ئې په كوم كوم ځائې كښې لګولې دې. پنځم دا چې كوم علم الله ﷻ ده ته وركړې وو په هغې باندې ئې څومره عمل كړې وو؟ [رواه البخارى] [2].

او د تفسير امام مجاهد رحمه الله فرمائيلى دى چې په قيامت كښې به دا سوال د هر خوند باره كښې وى [قرطبى] [3] خواه د هغې تعلق خوراك ، څكاك سره وى ، يا لباس مكان سره يا ښځې اولاد سره يا حكومت او عزت مرتبې سره وى ، قرطبى ددې په نقل كولو سره اوفرمائيل چې دا بيخى درست دى ، په دې تپوس كښې د يو خاص نعمت تخصيص نشته.

**دسورة تكاثر خاص فضيلت**: نبى كريم ﷺ صحابه كرامو رضي الله عنهم سره خطاب كولو كښې اوفرمائيل چې آيا په تاسو كښې څوك ددې قدرت نه لرى چې هره ورځ د قرآن كريم يو زر آيتونه لولى؟ صحابه كرامو رضي الله عنهم عرض اوكړو چې امروزه زر آيتونه څوك لوستلې شى؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې په تاسو كښې څوك ﴿أَلْهَىٰكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ نشى لوستلې.

مطلب دا دې چې روزانه دا لوستل د يو زر آيتونو د لوستلو برابر ثواب لرى. [مظهرى په حواله د حاكم اوبيهقى دابن عمر رضي الله عنه نه] [4].

تمت سورة التكاثر بحمدالله تعالى

---

[1]) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:٤٧٦] و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب ومن سورة الهكم التكاثر[ج:۲ ص: ۱۷۳] و صححه ابن حبان ذكر الإخبار عن سؤال الرب عزوجل رقم الحديث:[٧٤٨٨]

[2]) تفسير روح المعاني تفسير سورة الصافات[ج:۱۲ ص:۷۸]و جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة باب ماجاء فى شاق الحساب والقصاص [ج:۲ ص:٦٧]

[3]) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۷۷]

[4]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۳٦] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۲۰۸۱] كتاب فضائل القرآن ذكر فضائل سورة راى متفرقة و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۲۲۸۷] فصل فى فضائل السور الآيات وذكر الهكم التكاثر.

| آیاتونه | سورة العصر مکیة وهي ثلاث آیة ورکوعا واحدا | رکوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ۱ |

| |
|---|
| وَالْعَصْرِ ۝١ إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ ۝٢ إِلَّا الَّذِيْنَ |
| قسم دې په زماني \| چې بیشکه انسان \| خامخا په خساره کښې دې \| ماسوا دهغه کسانونه \| |
| قسم دې په زمانه چې یقینا انسان ډیر په تاوان کښې دې \| ..................سوا د هغه خلقو نه |
| اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ ۥ |
| چې ایمان ئې راوړو \| او عملونه ئې اوکړل نیك \| او یو بل ته نصیحت کوی \| دحق سره دملګرتیا کولو |
| چې ایمان ئې راوړې دې \| اونیک کارونه ئې کړی دی\| اوخپل مینځ کښې یوبل ته دحق تلقین کوی |
| وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ۝٣ |
| \| او یوبل ته نصیحت کوی \| په صبر کولو سره \| |
| اوخپل مینځ کښې یوبل ته د صبر نه دکار اخستلو تاکید کوی |

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په زمانې باندې چه په حقیقت کښې انسان په لوئې تاوان کښې دې. سوا د هغې خلقو نه چه ایمان ئې راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، او یو بل ته د حقې خبرې نصیحت کوی، او یو بل ته د صبر نصیحت کوی

## خلاصه تفسیر

﴿وَالْعَصْرِ ۝١﴾ [قسم دې په زمانه] په کومو کښې چه غم او تاوان واقع کیږی چه ﴿إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ ۝٢﴾ [انسان] دخپل عمر ضائع کولو په وجه [په لویه خساره کښې دې ﴿إِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ مګر هغه خلق کوم چه ایمان راوړئ او نیك کارونه وکړی ] کوم چه د خپل نفس کمال دې ﴿وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ ۥ﴾ [او یو بل ته په حق دقائم پاتې کیدو وصیت کوی ﴿وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ۝٣﴾ او یو بل ته ] دعملونو دپابندئ وصیت کوی [ کوم چه د نورو تکمیل دې نو کوم خلق چه په خپله هم کمال حاصل کړی او دنورو هم تکمیل کوی دغه خلق البته په تاوان کښې نهٔ دی بلکه په نفع کښې دی]

## معارف او مسائل

**دسورة عصر خاص فضیلت:**: عبید الله ابن حصن فرمائی چې د نبی کریم ﷺ په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې د وه کسان داسې وو چې کله به یو بل سره یو ځائې شو نو تر هغې به نه جدا کیدل چې تر څو به د یوبل په وړاندې سورة العصر نه وولوستې . [ طبرانی ][1]

[1] ) المعجم الکبیر للطبراني رقم الحدیث:[۱۳٦٦]

او امام شافعی رحمه الله اوفرمائیل چې که صرف په دې سورت کښې خلقو غور کولې نو هغوئ له به کافي وو. [ ابن کثیر ] (۱).

سورة عصر د قرآن کریم ډیر لنډ سورت دې خو داسې ټول ارخیز دې چې د امام شافعی رحمه الله په قول که خلق دا سورت په غور فکر سره لولی نو د دین دنیا د سمیدو د پاره به کافی وی. دې سورت کښې الله ﷻ د زمانې په قسم خوړلو اوفرمائیل چې انسانان په نقصان کښې دی او ددې نقصان نه مستثنی یعنی خلاصی موندونکی هغه خلق دی چې د څلورو څیزونو پابند دی. ایمان ،نیک عمل ، نورو ته د حق نصیحت او وصیت اود صبر وصیت ددین دنیا د نقصان نه دبچ کیدو او د لوئې نفع د حاصلولو داقرآنی نسخه د څلورو اجزاؤ رایوځائې کولو نه جوړه ده چې په کښې دوه ړومبئ برخې د خپل ذات داصلاح په باره کښې دی او نورې دوه برخې د نورو مسلمانانو د هدایت و اصلاح باره کښې دی.

دلته ړومبئ خبره د غور کولو داده چې دې مضمون سره دزمانې څهٔ مناسبت دې چې دَ هغې قسم خوړلې شوې دې ځکه چه په قسم او جواب قسم کښې مناسبت ضروری وی. عامو مفسرینو حضراتو فرمائیلی دی چې د انسان ټول حالات ،دده لوئیدل ، ددهٔ حرکات سکنات ، عملونه او ا خلاق ټول هم په زمانه کښې وی دکومو عملونو هدایت چې پدې سورت کښې ورکړې شوې دې هغه به هم د زمانې په دې شپو ورځو کښې وی، په دې مناسبت سره د زمانې قسم خوړل اختیار کړې شو.

**د انسان په نقصان کښې د زمانې څه دخل دې ؟:** او وضاحت ددې دادې چې د انسان د عمر زمانه ، ددې کلونه ، میاشتې ، شپې ، ورځې بلکه گینټې او منټونه ، په غور کولو سره ددهٔ سرمایه ثابتیږی چې ددې په ذریعه دې ددنیا او آخرت لوئې عجیبه فائده حاصلولې شي او د عمر وختونه ئې که په غلط او خرابو کارونو کښې ا ولگول نو هم دا د انسان دپاره وبال د ځان جوړیږی، ځینې علماء کرام فرمائی چې:

حياتك انفاسٌ تعد فكلما مضى نَفَسٌ منها انتقصت به جزءاً

یعنی ستا ژوند د شمیر څو ساګانې دی چې یو سا ترې واخستې شی نو ستا د عمر یوه برخه کمه شی.

الله ﷻ هر انسان ته ددهٔ د عمر د عزیز وختونو قیمتی سرمایه ورکړه او په یو تجارت کښې ئې لګولې دې چې دې د عقل او شعور نه په کاراخستو سره دغه پنګه په خالص فائده مند کارونو کښې لګوی نو ددهٔ د نفع څه حدبه نه وی اوکه په ضرری او تاوانی کارونو کښې ئې اولګولو نو د نیشتوالې خو ئې لاڅه کوې دغه اصل دولت ئې هم برباد شوه. یواځې د فائده مند نیشتوالې او اصلی پنګه د لاسه تلل نه وی بلکه په دې باندې به ده ته دَ سوؤنو جرمونو سزا هم ورکولې شی. او که چا دا سرمایه په فائده مند کار کښې اولګوله اونه بې فائدې کار کښې اولګوله نو کم از کم دا نقصان خو به ئې خامخا وی چې فائده او سرمایه ئې دواړه د ګوتونه اووتل او دا څه شاعرانه تمثیل نه بلکه ډیو مرفوع حدیث نه ددې تائید هم کیږی چې په کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : كل يغدو فبائع نفسه فمعتقها اوموبقها (۲)

---

(۱) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۴۷۹]

(۲) صحیح مسلم کتاب الطهارة ،باب فضل الوضوء [ج:۱ص:۱۱۸]

يعنی هر څوک چې صبا کوی نو د خپل ځان پنګه په تجارت کښې لګوی څوک پرې ځان خلاصوی او څوک پرې ځان هلاکوی.

پخپله قرآن کريم هم ايمان او عمل صالح ته تجارت ونيلې دې فرمائی چې: ﴿هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ تِجَٰرَةٖ تُنجِيكُم مِّنۡ عَذَابٍ أَلِيمٖ﴾(١)

او کله چې د انسان عمر دده سرمايه شوه او انسان ددې تاجر شو نو په عامو حالاتو کښې ددې سودا ګر په نقصان کښې کيدل ځکه واضح دی چې ددې مسکين پنګه څه په ځائې ولاړ څيز نه دې چې ګنی بل وخت له به پکار راځی بلکه دا ويلې کيدونکې سرمايه ده چې په ځائې ولاړه نه پاتې کيږی. ددې تجارت کوونکې ښه هوښيار، او چست، بنده پکار دې چې دغه ويلی کيدونکی څيز نه فائده حاصله کړی. ځکه د يو بزرګ قول دې چې هغه د واورې خرڅولو دوکاندار له ورغې نو وې ونيل چې دې دکان ته په راتلو د سورة عصر په تفسير پوهه شوم.

هغه داسې چې په لږ بې غورئی کولو سره به د دوکاندار خپله سرمايه ضايع کړی په دې وجه د قرآن په دې ارشاد کښې د زمانې په قسم خوړلو سره د انسان دې ته توجه راګرولې ده چې د نقصان نه د محفوظ کيدو دپاره چې کومه د ځلورو څيزونو جوړه نسخه خودلې شوې ده دهغې په استعمال کښې دې لږ هم غفلت نه کوی، د عمر د يو يو منټ قدر دې اوپيژنی او په دې ځلورو کارونو کښې دې لږه مشغول کړی.

د زمانې د قسم يو مناسبت داهم کيديشی چې دکوم څيز قسم اوخوړې شی هغه په يو حيثيت سره ددغې معاملې د ګواه قائم مقام وی او زمانه داسې څيز دې چې که چرې ددې په تاريخ او په دې کښې دهغې قومونو په ترقئ، پستئ، ښه او خرابو واقعاتو باندې نظر کوی نو ضرور به دې يقين ته اورسی چې صرف په دې ځلورو کارونو باندې د انسان کاميابی اوخلاصې اړانه [تکيه] لری. اوچا چې دا پريخودل هغه په نقصان کښې شو. ددنيا تاريخ ددې ګواه دې.

وريسې ددې ځلورو حصو تشريح داده چې ايمان او نيک عمل چې پخپله دانسان ذات سر ترون لری د هغې معامله واضحه ده د تشريح کولو ضرورت ئې نشته. البته آخری دوه حصې ① تواصی بالحق او ② تواصی بالصبر د غور کولو جوګه دی. چې دې نه څه مراد دی؟ د تواصی لفظ د وصيت نه مشتق دې. ددې معنی داده چې چاته په تاکيد سره په اثرناک انداز سره نصيحت او د نيک کار کولو هدايت اوکړې شی. ځکه هغې هداياتو ته هم وصيت ونيلې شی چې څوک ئې دخپل مرګ نه پس دپاره پريږدی.

دا دوه جزونه په حقيقت کښې هم ددې وصيت دوه بابونه دی، يو د حق وصيت او بل د صبر وصيت. اوس ددې دواړو لفظونو په معنی کښې څو احتمالونه دی يو دا چې د حق نه مراد د صحيح عقيدو او د نيکو عملونو مجموعه وی او د صبر نه مراد د ټولو ګناهونو او ناکاره کارونو نه ځان ساتل وی. نو د ړومبی لفظ حاصل امر بالمعروف شو او د بل حاصل نهی عن المنکر شو، ددې مجموعې حاصل بيا هم هغه ايمان اونيک عمل دې چې په خپله ئې اختيار کړې دې دهغې تاکيد او نصيحت به نورو ته کول وی او بل احتمال دادې چې د حق نه مراد حقې عقيدې واخستې شی اود صبر په مفهوم کښې د ټولونيکوعملونو پابندی هم وی

(١) ترجمه :-آيا تاسو ته داسې تجارت اوښايم چې هغه تاسو د يو دردناك عذاب نه بچ کړی.

او د خرابو کارونو نه ځان ساتل هم ، ولې چې دصبر حقیقي معنی خپل نفس ایساروِل او پابند جوړول دی ، په دې پابندئی کښې نیک عملونه هم راغلل او دګناهونونه ځان ساتل هم.
او حافظ ابن تیمه رحمه الله په خپلې یو رساله کښې فرمائیلی دی چې انسان لره د ایمان اونیک عمل نه حصارونکی عادتاً دوه څیزونه وی. یو شبهې چې په ایمان او نیک عمل کښې ئې څه نظری او فکر شبهې پیدا شی او ورسره ئې عقیدو کښې خلل راشی او کله چې عقیدو کښې ئې خلل راشي نو په نیک عمل کښې ئې ضرور خلل پیدا کیږی. اوبل شهوتونه ، یعنې نفساني خواهشونه دی چې انسان لره کله کله د نیکو عملونو نه ایساروی او ځینې وختونه ئې په ناکاره عملونو کښې اخته کوی. اګر چې هغه په نظری او اعتقادی طریقه په نیکئ باندې عمل کول او د بدئی نه بچ کیدل ضروری ګڼړي مګر نفساني خواهشات ئې ددې خلاف وی چې دهغې په وجه سمه لار پریږدی. نو په دې آیت مبارک کښې د حق د وصیت نه مراد دادی چې شبهې لرې کړی. او د صبرد وصیت نه مراد دادې چې د نفساني خواهشاتو په پریخودو سره د خو او عملونو اختیارولو هدایت کوی ،ددې خلاصه داده چې د حق د وصیت نه مراد د نورو خلقو علمی اصلاح ده او د وصیت بالصبر نه مراد عملی اصلاح ده.

**د خلاصی موندو دپاره صرف د خپل عمل اصلاح کافي نه ده بلکه د نورو مسلمانانو فکر کول هم ضروری دی:** دې سورت مسلمانانو ته یو لوئې هدایت دا ورکړو چې د دوئ صرف خپل عمل د قرآن وسنت تابع کول چې څومره مهم او ضروری دی هغو مره ضروری دادی چې نورو مسلمانانو لره هم ایمان او نیک عمل ته د رابللو کوشش تر خپله وسه اوکړی ګنی نو صرف خپل عمل به د خلاصی موندو دپاره کافي نه وی. خصوصا د بال بچ ، دوستانو او تعلقدارانو دبدو عملونو نه ځان بې تعلقه کول او غفلت کول د خپل خلاصی لار بندول دی. اګر چې دې پخپله ددغې نیکو عملونو پابند وی ، په دې وجه قرآن پاک او حدیث کښې په هر مسلمان باندې د خپل وس په جوړ امر بالمعروف او نهی عن المنکر فرض کړې شوې دې. په دې معامله کښې عام مسلمانان بلکه ډیر خاصان په غفلت کښې اخته دی. خپل عمل کول کافی ګڼړی بال بچ ئې چې هر څه کوی ، د هغې فکر نه کوی ، الله ﷻ دې مونږ تولو ته ددې آیت په هدایت باندې د عمل کول توفیق نصیب کړی.

| رکوع ګانې | سورة الهمزة مکیة وهي تسع ایات ورکوعا واحدا | ایاتونه |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ① | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ⑨ |

وَيْلٌ | لِّكُلِّ هُمَزَةٍ | لُّمَزَةِ ① | الَّذِىْ | جَمَعَ | مَالًا

تباهی ده | دپاره دهرعیب لګونکی | بدویونکی | هغه | اچې جمع ئې کړو | مال

خرابی ده هرهغه چا دپاره چې پیغور ورکوی او غیبت کوی | چې مال راجمع کوی

وَّعَدَّدَهٗ ② | يَحْسَبُ | اَنَّ مَالَهٗٓ | اَخْلَدَهٗ ③

او په شمار شمار ئې کیښودو هغه | ګمان کوی هغه | چې بیشکه مال دهغه | به همیشه وی دهغه سره

او هغه بیابیا شماری | ......................هغه دا خیال کوی چې دهغه مال به همیشه دهغه سره وی

| | | |
|---|---|---|
| كَلَّا | لَيُنۢبَذَنَّ | فِي الْحُطَمَةِ |
| هرگز نه ده داسې | خامخا به غورزولې كيږي هغه | په ذره ذره كونكې خانې كښې |

هيچرې نه | ......................هغه به يقينا په حطمه كښې غورزولې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَآ أَدْرٰىكَ | مَا الْحُطَمَةُ | نَارُ اللّٰهِ | الْمُوقَدَةُ | الَّتِي |
| او څه پته ده تاته | چې څه دې هغه ذره ذره كونكې خانې | اور داالله دې | بل كړې شوې | هغه اور |

اوتاته څه معلومه ده چې حطمه څه څيز دې | ..............[هغه] داالله تعالى اور دې | هغه اور چه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَطَّلِعُ | عَلَى الْأَفْئِدَةِ | إِنَّهَا | عَلَيْهِم | مُّؤْصَدَةٌ | فِي عَمَدٍ |
| چې خيژې به | په زړونو باند | بيشكه دا اور به | په هغوئ باند | سربند كړې شوې وى | په ستنو |

[ددۀ په حكم] بل شوي دې | چې زړونو ته به ورننوځى| دا اور به ورپسې [دهر طرفنه] بند كړې شى |په لوړو

| |
|---|
| مُّمَدَّدَةٍ |
| لوړو كښى |

ستنو پورې [ به تړلې شوى وى]

## آسان ترجمه قرآن

لويه خرابي ده د هغه سړي دپاره چه پشې شا په لوړو باندې عيب لګونكې، (او) د پيغورونو وركولو عادت ئې وى هغه چه مال ئې راجمع كړو، او هغې لره شمارى. ګمان كوى چه مال دده به هميشه ژوندې اوساتى ده لره هيچرې نه. خامخا او به غورزولې شى دې په داسې ځائې كښې، چه چورى چورى كونكې به وى. او تاته څه معلومه ده، چه هغه چورى چورى كولكې څه څيز دې؟ د الله تعالى بل كړې شوې اور دې. هغه چه ورخيژى به زړولو ته. يقين او كړه، چه دغه اور به په دوى باندې بند كړې شوې وى. او دوى به (د اور په) اوږدو اوږدو ستنو كښې (راګير كړې شوې) وى.

## خلاصه تفسير

﴿وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ﴾ [لويه خرابى ده هر داسې سړى لره څوك چه پشې شا عيب راويستونكې وى] او[مخامخ طعنې كوونكې وى﴿الَّذِي جَمَعَ مَالًا وَعَدَّدَهُ﴾ كوم چه ]د ډير حرص په وجه [مال جمع كوى] اودهغې دمحبت اوپه هغې دفخر په سبب [هغې لره بار بار شمارى ] ددۀ دسلوك نه داسې معلوميږى﴿يَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ﴾ [چه ګويا هغه خيال كوى چه ددۀ مال به ددۀ سره هميشه وى] يعنى دمال په محبت كښې داسې شغل لرى لكه چه هغه ددې عقيده لرى چه هغه به هم هميشه ژوندې وى اودا مال به هم ددۀ سره وى﴿كَلَّا لَيُنۢبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ﴾[هرګز نۀ] پاتې كيږى وړاند ددې ويل يعنى خرابى تفصيل دې چه [والله هغه سړې به داسې اورته وغورزولې شى په كوم كښې چه هغه پريوځى اوهغه ذره ذره كړى﴿وَمَا أَدْرٰىكَ مَا الْحُطَمَةُ﴾ اوتاته څۀ معلومه ده چه هغه ذره ذره كونكې اور څنګه دې ﴿نَارُ اللّٰهِ الْمُوقَدَةُ﴾ هغه دالله تعالى اور دې كوم چه ] دالله تعالى په حكم سره [بل كړې شوې دې ] داور نسبت الله تعالى طرف ته په كولو كښې دهغه اور سخت او هولناك والى طرف ته اشاره ده اوهغه داسې دې ﴿الَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ﴾[كوم

چه] بدن ته دلګیدو سره [به زړونو ته رسي ﴿إِنَّهَا عَلَيْهِم مُّؤْصَدَةٌ﴾ هغه] اور [به په دوی بند کړې شي] داسې چه هغه خلق به داور ﴿فِي عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ﴾ [په ډيرو لويو لويو ستنو کښې] به ګير وي لکه چالره چه داور په صندقونو کښې بند کړې شي]

## معارف او مسائل

دې سورت کښې په دريو سختو ګناهونو باندې د سخت عذاب وعيد او بيا ددغې عذاب د سختوالي بيان دې. هغه درې ګناهونه دادي. ① همز ② لمز ③ جمع دمال. د همز او لمز څو معنې کولې شي چې اکثرو مفسرينو اختيار کړې دي هغه دادي چې د همز معنی پشی شا د چا بد بيانول دي ، او د لمز معنی مخامخ چاته پيغور ورکول او بدنې وئيل دي
چې دا دواړه څيزونه سخت ګناه دي. د غيبت باره کښې وعيدونه په قرآن پاک کښې او حديث پاک کښې زيات دي وجه ئې داده چې پدې ګناه کولو کښې څه بنديز مخې ته نه وي او په دې کښې اخته بنده په مخه اخته لګيا وي. څکه ئې ګناه د لوئې نه لويه اوزياتې نه زياته جوړيږي.
په مخامخ د چا بد وئيلو کښې اول بنديز دا کيدېشي چې ورته پخپله هغه بنده مقابلې ته جوړ شي. څکه دا ګناه اوږديږي نه ، دغسې پشی شا په چا عيب لګولو کښې څکه هم لوئې ظلم دې چې هغه ته خبر هم نشته ، چې په ما څه الزام لګولې شی چې خپله صفائی پيش کړې شي.
اوپه يو حيثيت سره لمز زيات سخت څکه دې چې مخامخ دهغه بد وئيل د هغه سپکاوې اوذليلوالې هم دې او ددې ضرر هم زيات سخت دې، په دې اعتبار سره ددې عذاب هم سخت دې ، يو حديث پاک کښې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې : [شرار عباد الله تعالى المشاءون بالنميمة المفرقون بين الاحبة الباغون البراء العنت] [1] يعنی د الله ﷻ په بندګانو کښې زيات خراب خلق هغه دي چې چغلخوری کوی او د دوستانو ترمينځه فساد اچوی اود بې ګناه خلقو عيب لټوی.
دې سورت کښې په کوم دريم خصلت چې د عذاب وعيد راغلې دې هغه د مال حرص اومحبت دې ، هم دې لره ئې په آيت کښې داسې تعبير کړې دې چې ددغې حرص او محبت د وجه نه هغه مال بار بار شميری څکه چه نور آياتونه او احاديث په دې ګواه دی چې مطلقا د مال جمع ساتل څه حرام اوګناه نه ده څکه ددې جمع کړی مال نه به مراد هغه مال اخستې شی چې په کښې حقوق واجبه نه وی ادا کړې شوی. يا ئې پرې فخر کول مقصود وی ، يا ددې په مينه کښې دومره بوبنت وی چې ددين د ضرورتونو نه ئې غفلت وی.
﴿الَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ﴾ يعنی د جهنم دا اور به زړونو ته رسيږی ، هسې خو د اور خصوصيت دادې چې هر څه په کښې اوغورزولې شی نو هغه سوزی. چې انسان په کښې واچولې شی نو زړه به ئې هم سوزی. خود جهنم د اور خصوصيت ئې دا څکه بيان کړو چې ددنيا اور زړه ته د رسيدو نه وړاندې تربې انسان مړ شی مګر د جهنم اور د هغه په ژوند هم دټولو اندامونو سوزولو سره دهغه زړه ته رسيږی. ولې چې هلته مرګ نشته ، خلاصه د خبرې دا شوه چې ددنيا اور صرف بدن ته نقصان رسوی. او د جهنم اور بدن ته د نقصان رسولو سره د جهنمی زړه ته هم نقصان رسوی او د زړه درد ئې په اضافه وی.

تمت سورة الهمزة بحمدالله تعالى

[1] ) مسند احمد ، حديث عبدالرحمان بن غنم الأشعری ﷺ رقم الحديث:[۱۷۹۹۸]

| ایاتونه | | | رکوع گانې |
|---|---|---|---|
| ⑤ | | سورة الفيل مكية وهي خمس ايات وركوعا واحد<br>بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ<br>شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ① |

اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ۞ اَلَمْ يَجْعَلْ

آیا اونه لیدل تا | چې څرنګې کار اوکړو | رب ستا | دهاتیانو والو سره | آیا وې نه ګرځولو |

آیا تاته معلومه ده چې ستا رب دهاتیانو دخاوندانو سره څه اوکړل ؟| .................. آیا الله تعالی

كَيْدَهُمْ فِيْ تَضْلِيْلٍ ۞ وَّاَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا اَبَابِيْلَ ۞

تدبیر دهغوئ | په ګمراهۍ [یعنی ناکامۍ] کښې | اووې لیږل | په هغوئ باند | مارغان ډلې ډلې |

دهغوئ ټول تدبیرونه ناکامه نه کړل | ............ او الله تعالی په هغوئ تولی تولی مارغان راولیږل

تَرْمِيْهِمْ بِحِجَارَةٍ مِّنْ سِجِّيْلٍ ۞ فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ

چې ویشتل به نې هغوئ | په کانړو سره | چې جوړوؤ دټیکر کونه | پس کړل نې هغوئ | پشان دبوسو |

چې په هغوئ به ئې دپورته نه دکانړو ګټکو راویشتل | بیا الله تعالی هغوئ د خوړلې شوؤ

مَّاْكُوْلٍ ۞

خوړلې شوؤ

بوسو په شان اوګرځول

## آسان ترجمه قرآن

آیا ته نه ګورې. چه ستا پروردګار د هاتیانو والا سره څرنګه معامله اوکړه؟ آیا د هغې خلقو ټول چلونه ئې بېکاره اونه ګرځول؟ او په هغوی باندې ئې ډلې ډلې مرغۍ راپریخودې چه په هغوی باندې ئې د پخې خاؤرې کاڼړی (ګرط کاڼړی) راویشتل نو هغوی ئې داسې اوګرځول. لکه خوړلې شوې بهوس.

## خلاصه تفسير

﴿اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ۞﴾ [ایا تاته معلومه نهٔ ده چه ستا رب دهاتی والو سره څهٔ معامله وکړه ]په دې استفهام اوسوال سره مقصود ددې واقعې عظمت او هولناك کیدو باند خبرداروَل دی وړاند ددې معاملې بیان دې ﴿اَلَمْ يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ فِيْ تَضْلِيْلٍ ۞﴾ایا ددوی تدبیر لره] کوم چه دکعبې ورانولو دپاره ئې کړې وو سراسر غلط نهٔ کړو[دا استفهام اوسوال تقریری دی یعنی د واقعې دصحت ثابتولو دپاره ﴿وَّاَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا اَبَابِيْلَ ۞﴾ [اوپه هغوی باند نې سیلونه سیلونه مارغان راولیږل ﴿تَرْمِيْهِمْ بِحِجَارَةٍ مِّنْ سِجِّيْلٍ ۞﴾ کومو چه به په هغوی باند دپخو ختو ګیټکی راویشتلې ﴿فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّاْكُوْلٍ ۞﴾ پس الله تعالی دوی لره دجونیلو شوو بوسو په شان کړل [ مطلب دادې چه دالله تعالی داحکامو بې حرمتی کوونکو لره دداسې عذاب اوعقاب نه بې فکره کیدل نهٔ دی پکار کیدې شی چه په دنیا کښې عذاب راشی لکه په اصحاب فیل باند چه راغې ورنه داخرت عذاب خویقینی دې ]

## معارف او مسائل

په دې سورت کښې د اصحاب فيل د واقعه مختصر بيان دې چه هغوی د بيت الله د ورانولو په اراده د هاتيانو فوج سره په مکه مکرمه باندې حمله کړې وه. الله تعالى د معمولي مرغو په ذريعه د هغوی فوج په آسماني عذاب نازلولو سره نيست او نابود کړو او د هغوی ارادې ئې خاورو سره ملاؤ کړې.

**واقعه د حضورپاک ﷺ د پيدائش په کال کښې اوشوه:** دا واقعه په هغه کال کښې پيښه شوه په کوم کال چه د خاتم النبيين ﷺ ولادت باسعادت په مکه مکرمه کښې اوشو. د بعض رواياتونه هم د دې تائيد کيږي او هم دغه مشهور قول دې. [ابن کثير] (۱) محدثينو حضراتو دا واقعه د رسول الله ﷺ يوه معجزه ګرځولې ده مګر چونکه د معجزاتو قانون دادې چه هغه د نبي د نبوت د دعوی سره د هغوی د تصديق د پاره ښکاره کولې شي. د نبوت د دعوی نه وړاندې بلکه د نبي د ولادت نه هم وړاندې الله تعالى بعض وخت په دنيا کښې داسې واقعات او نښې نښانې ښکاره کوی چه په خرق عادت کيدو کښې د معجزې په شان وی. داسې نښو نښانو ته د محدثينو حضراتو په اصطلاح کښې ارهاص وئيلې شي. کوم چه د تاسيس او تمهيد په معنی کښې استعماليږي. رهص سنګ بنياد ته وائي. [قاموس] (۲) د انبياء ﷺ دنيا ته په تشريف راوړو سره يا د هغوی د نبوت د دعوی نه وړاندې الله تعالى داسې نښې نښانې راښکاره کوی چه د معجزاتو د قسم نه وی. داسې نښې نښانې چونکه د هغوی د نبوت د اثبات مقدمه او د دې قسم تمهيد او تاسيس وی په دې وجه هغې ته ارهاص وئيلی شي. د نبی کريم ﷺ د بعثت او ولادت نه وړاندې هم دا قسم ارهاصات ډير قسم شوی دی. اصحاب فيل په آسماني عذاب سره په بيت الله باندې د حملې نه منع کول هم د دغه ارهاصات څنې دی.

**د اصحاب فيل واقعه:** امام حديث او تاريخ ابن کثير رحمه الله داسې نقل کړی دی چه په يمن باندې د ملوك حمير قبضه وه دا خلق مشرکان وو. د هغوی آخری بادشاه ذونواس دې چاچه د هغه زمانې اهل حق يعنی په نصاری باندې سخت ظلمونه اوکړل. هم ده يو اوږد پلن خندق اوکنستلو هغه ئې د اور نه ډك کړو او څومره نصارانيانو چه د بت پرستنې خلاف د يو الله تعالى عبادت کونکی وو ټول ئې په دغه اورخندق کښې اچولو سره اوسوزول د چاتعداد چه تقريباً شل زره وو. هم دغه هغه د خندق واقعه ده د کوم ذکر چه د اصحاب الاخدود په نوم سره په سورت بروج کښې تيرشوې دې. په دوی کښې دوه کسان په څه طريقه سره د هغوی نه اوتختيدل او هغوی قيصر د ملك شام بادشاه ته فرياد اوکړو چه ذونواس ملك حمير په نصاری باندې داسې ظلم اوکړو تاسو د هغوی بدله واخلئ. قيصر ملك شام د حبشه بادشاه ته خط اوليکلو دې هم نصرانی وو او يمن سره نيزدې وو چه ته د دغه ظالم نه د ظلم بدله واخله. هغه يو عظيم لښکر د دوو کماندرانو [اميرانو] ارياط او ابرهه په مشرئی کښې د يمن د دغه بادشاه په مقابله کښې اوليګل. لښکر د هغه په ملك باندې حمله اوکړه او پوره يمن ئې د قوم حمير د قبضې نه خلاص کړو. ملك حمير ذونواس اوتختيدو او په درياب کښې غرق شو مردار شو. دغه شان د ارياط او ابرهه په ذريعه په يمن باندې د حبشه باندې قبضه اوشوه. بيا په ارياط او ابرهه کښې په خپل مينځ کښې جنګ اوشو

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۸ ص: ۴۸۳]
(۲) القاموس المحيط فصل الراء [ج: ۲ ص: ۱۶۵]

ارياط قتل شو او ابرهه غالب شو اوهم دغه بادشاه حبشه نجاشي دَ طرف نه دَ يمن دَملك حاكم
[گورنر] مقرر شو. هغه په يمن باندې دَ قبضې نه پس اراده اوكړه چه په يمن كښې يوه داسې
شانداره گرجه جوړه كړي دَ كوم مثال چه په دنيا كښې نه وي. په دې سره دَ هغه مقصد دا وو چه دَ
يمن عرب خلق څوك چه حج له مكې مكرمې ته ځي او دَ بيت الله طواف كوي نوچه دا خلق دَ دغه
گرجې دَعظمت او شوكت نه مرعوب شي اودَ كعبې په ځاني دغه گرجې ته ورځي. په دې خيال
باندې هغه ډيره لويه عاليشان گرجه دومره اوچته جوړه كړه چه دَ هغې په اوچتوالي باندې لاندې
ولاړ سړي نظر نه شو اچولې او هغه ئې سرو زرو او سپينوزرو او جواهراتو باندې ښائسته كړه او په
پوره ملك كښې ئې اعلان اوكړو چه اوس دې دَ يمن هيڅوك دَ كعبې دَ حج دَپاره نه ځي او په دې
گرجه كښې دې عبادت كوي. په عربو كښې سره دَدې چه بت پرستي غالب شوې وه مگر دين
ابراهيمي اودَ كعبې عظمت اومحبت دَ هغوى په زړونو كښې وو. په دې وجه په عدنان قحطان او
دَ قريشو په قبائلو كښې غم اوغصه شروع شوه تردې چه په هغوى كښې څوك دَ شپې دغه گرجه
كښې ننوتلو او هغه گرجه ئې په گندگئي باندې ككړه كړه. او بعض رواياتو كښې دي چه په دوى
كښې مسافر قبيلې دغه گرجې سره نيزدې دَ خپل ضرورت دَپاره اور بل كړو نودغه اور په گرجه
كښې اولگيدو اوهغې ته ئې سخت نقصان اورسولو.
ابرهه ته چه كله دَدې خبر اوشو او ورته اوونيلې شو چه يو قريشي دا كار كړې دې نو هغه قسم
اوخوړلو چه زه به دَهغوى كعبه تهس نهس كړم. ابرهه دَدې تيارې شروع كړو اودَ خپل بادشاه
نجاشي نه ئې اجازت اوغوښتلو هغه خپل خاص هاتهي دَ كوم نوم چه محمود وو دَ ابرهه دَپاره
راؤليگلو چه هغه په دې سور شي او په كعبه باندې حمله اوكړي. بعض رواياتو كښې دي چه دا دَ
تولو نه لوني يو عظيم الشان هاتهي وو دَ كوم چه مثال نه وو. اودې سره اته هاتهيان نور هم دې
لښكر سره دَ حبشه بادشاه راليگلي وو. دَ دې هاتهيانو دَ راليگلو منشا داوه چه بيت الله كعبه
ورانولو كښې دَ هاتهيانو نه كار واخلي. تجويز دا وو چه دَ بيت الله په ستنو كښې دَ اوسپنې اوږده
اومضبوط زنځيرونه اوتړنې اودا زنځيرونه دَهاتهيانو په غاړو كښې اوتړنې او دوى اوشړنې
نوتول بيت الله [معاذ الله] به يك دم په زمكه راپريوځي.
په عربو كښې چه كله دَ دغه حملې خبر خور شو نوټول عرب دَ مقابله دَ پاره تيارشو. دَ يمن په
عربو كښې يو سړي ذونفر نومې وو هغه دَعربو مشري اختيار كړه اوعرب خلق دَ هغه نه چاپيره
جمع شو اودَ مقابله دَپاره تيارشو اودَ ابرهه خلاف ئې جنگ اوكړو. مگر الله تعالى ته خودا منظور
وه چه دَ ابرهه ماتې خوړل او رسوائي ښكاره شي اودَ دنيا په مخكښې راشي په دې وجه دا عرب
په مقابله كښې كامياب نه شو. ابرهه هغوى ته شكست وركړو او ذونفر ئې قيد كړو او وړاندې
روان شو. دې نه پس چه كله هغه دَ قبيله خثعم مقام ته اورسيدو نو دَدې قبيلې سردار نفيل بن
حبيب دَ پوره قبيلې سره دَ ابرهه مقابله اوكړه مگر دَ ابرهه لښكر هغوى ته هم ماتې وركړو او
نفيل بن حبيب ئې هم قيد كړو اودَ هغوى دَ قتل اراده ئې اوكړه. مگر بياداسې گنړلو سره ئې
هغوى ژوندي اوساتل چه دَدوى نه به موږ دَ لارو پته معلوموو. دې نه پس چه كله دا لښكر طائف
ته نيزدې اورسيدو نو دَ طائف اوسيدونكو قبيله ثقيف دَ تيرشوو قبائلو دجنگ اودَ ابرهه دَ فتح
واقعات اوريدلي وو نوهغوى دَخپل خير غوښتلو فيصله اوكړه اودا چه په طائف كښې موږ كوم
يو عظيم الشان بت خانه لات په نوم باندې جوړه كړې ساتلې دې هغه اونه چيړي نوموږ به دَ ده
مقابله نه كوو. هغوى په ابرهه سره يو ځائي شو اودا فيصله ئې هم اوكړه چه هغوى به ستا امداد او دَ

لاړخودنې دپاره خپل یوسردار ابورغال تاسو سره اولیګو. ابرهه په دې باندې راضي شو اود ابورغال سره مکې مکرمې سره نیزدې یومقام مغمس ته اورسیدل چرته چه د مکې د قریشو اوښان څریدل. د ابرهه لښکر د ټولو نه اول په دغه اوښانو باندې حمله کولوسره اوښان راګیر کړل په کوم کښې چه دوه سوه اوښان د رسول الله ﷺ د نیکه عبدالمطلب چه د قریشو رئیس وو هم وو. ابرهه دلته په رسیدو سره خپل یوسفیر حناطه حمیری د مکې ښار ته اولیګلو چه هغه د قریشو سردارانوله لاړشی خبر ورکړی چه مونږ تاسو سره جنګ کولو له نه یوراغلی زمونږ مقصد کعبه ورانول دی که چرې تاسو په دې کښې بندیز وانچولو نوتاسو ته به څه نقصان نه رسی. حناطه چه کله مکې مکرمې ته داخل شو نوټولو هغه ته دعبدالمطلب پته ورکړه چه هغه د ټولو نه لوئی د قریشو سردار دې. حناطه عبدالمطلب سره خبرې اترې اوکړې اود ابرهه پیغام نې اورسولو. د ابن اسحاق د روایت مطابق عبدالمطلب دا جواب ورکړو چه مونږ هم د ابرهه سره د جنګ څه اراده نه لرو اونه مونږ سره دومره طاقت شته چه د هغه مقابله اوکړې شو. البته زه درته دا وایم چه دا د الله تعالی کور دې اوابراهیم خلیل الله جوړ کړې دې هغه پخپله د دې د حفاظت ذمه وار دې. که الله تعالی سره دې د جنګ څه اراده وی نو چه څه دې خوښه وی کوه بیا ګوره چه الله تعالی درسره څه معامله کوی. حناطه عبدالمطلب ته اووئیل چه ته بیا ما سره لاړشه زه به تا ابرهه سره ملاؤ کړم. ابرهه چه کله عبدالمطلب اولیدلو چه ډیر مخوریز سړې دې نود هغه په لیدو د تخت نه راکوز شو لاندې کیناستو او عبدالمطلب نې خان سره برابر کینولو. او خپل ترجمان ته نې اووئیل چه عبدالمطلب نه تپوس اوکړه چه هغه په کوم غرض راغلې دې. عبدالمطلب اووئیل چه زما ضرورت خو دومره دې چه زما کوم اوښان ستا لښکر ګرفتار کړی دی هغه پرېږدې. ابرهه د ترجمان په ذریعه عبدالمطلب ته اووئیل چه کله ما ته اول اولیدلې نو زما په زړه کښې ستا ډیر قدر اوعزت وو خو ستا خبرو اترو هغه بالکل ختم کړو چه ته ما سره صرف د خپلو دوو سوو اوښانو خبره کوې. او دا درته معلومه ده چه زه ستاسو کعبه کوم چه ستاسو دین دې د دې د ورانولو دپاره راغلې یم. د دې متعلق تا څه خبره اتره اونه کړه. عبدالمطلب جواب ورکړو چه د اوښانو مالك خو زه یم ماته د هغې فکر دې اود بیت الله مالك زه نه یم د هغې مالك یوعظیم ذات دې هغه د خپل کور حفاظت کولې شی. ابرهه اووئیل چه ستا خدائی زما د لاس نه دا نه شی بچ کولې. عبدالمطلب ورته اووئیل چه بیا تاته اختیار دې چه څه کول غواړې اوکړه. اوبعض روایاتو کښې دی چه عبدالمطلب سره نور هم د قریشو څه سرداران وو او هغوی د ابرهه په مخکښې دا پیش کش اوکړو که چرې ته په بیت الله باندې حمله اونه کړې او واپس شې نو مونږ به د پوره تهامه دریمه حصه پیداوار تاته د خراج په توګه درکوو. مګر ابرهه د دې د منلو نه انکار اوکړو. د عبدالمطلب اوښان ابرهه واپس کړل هغه خپل اوښان واپس واخستل او لاړو اود بیت الله د دروازې حلقه ئې اونیوله اوپه دعاء کښې مشغول شو اود قریشو یو لویه ډله هغه سره وه ټولو الله تعالی نه دعا اوغوښتله چه د ابرهه د عظیم لښکر مقابله خوزمونږ په وس کښې نه ده هم ته د خپل بیت د حفاظت انتظام اوکړه. الحاح او زارئی سره دعا کولو نه پس عبدالمطلب د مکې نور خلق واخستل په مختلفو غرونو کښې خواره شو. د هغوی دا یقین وو چه د ابرهه په لښکر به د الله تعالی عذاب راځی. هم د دې یقین په وجه هغه د ابرهه نه پخپله د خپلو اوښانو مطالبه اوکړه د بیت الله متعلق ئې خبرې اترې ځکه خوښې نه کړې چه پخپله ئې د هغه د مقابلې طاقت نه وو او بل طرف ته ئې دا هم یقین لرلو چه الله تعالی به د هغوی په بې وسئی باندې رحم کولو سره د

دښمن طاقت اوډ هغوی ارادې خاورو سره ملاو کړې. چه سحر شو نو ابرهه په بيت الله باندې د حملې کولو تيارې اوکړو اوخپل هاتهي محمود نومې ئې د ورانډې تلو دپاره تيار کړو. نفيل بن حبيب کوم چه ابرهه د لارې نه ګرفتار کړوو هغه وخت هغه وروړاندې شو اود هاتهي غوږ نيولو سره ئې دهغه په غوږ کښې اووئيل چه د کوم ځائې نه راغلې هم هلته صحيح سالم واپس شه ځکه چه ته د الله تعالى بلد امين [محفوظ ښار] کښې ئې دې وينا کولو سره ئې دهغه غوږ پريخودو. هاتهي دې اوريدو سره کيناستو. د هاتهيانو سړو دې اوچتول غوښتل خو هغه د خپل ځائې نه نه خوزيدو. هغه په غټو غټو د اوسپنې په تبرونو باندې اووهلې شو خود هغې ئې هم څه پرواه اونه کړه دهغه په پوزه کښې د اوسپنې کړئې واچوله بيا هم هغه اونه دريدو. هغه وخت دې خلقو هغه ديمن طرف ته واپس کول غوښتل نو فورى پاسيدو بيائې د شام طرف ته روانول اوغوښتل نو روان شو بيائې د مشرق طرف ته روان کړو نو لاړو. دې ټولو طرفوته د روانولونه پس بيائې د مکې طرف ته روان کړو نو بيا کيناستو.

د الله تعالى چه حق ذات دې د هغه د قدرت دا کرشمه دلته ښکاره شوه. بل طرف ته د درياب نه د مرغو څه قطارونه راتلونکى ښکاره شو. په کوم کښې چه هريوې سره درې قوت کانړې د چنړې يا مسورو برابر وو يو په مښوکه کښې او دوه په پنجوکښې. د واقدى په روايت کښې دى چه مرغئى عجيبه شان وې چه د دې نه مخکښې نه وې ليدلې شوې جثه کښې د کوترې نه وړې وې دهغې پنجې سرې وې په هره يوه پنجه کښې يو کانړې او په مښوکه کښې د يو کانړې سره راتلونکې ښکاره شوې. او فورى توګه باندې د ابرهه په لښکر باندې راخورې شوې. دا قوت کانړې چه هرې يوې سره وې د ابرهه په لښکر باندې راګذار کړل. يو يو قوت کانړې هغه کار اوکړو چه د تمانچې ګولئى هم نه شو کولې. په چا چه به راپريوتلو دهغه بدن به ئې اوخيرلو او په زمکه کښې به ورخښ شو. دې عذاب ليدلو سره ټول هاتهيان اوتختيدل صرف يو هاتهي پاتې شو چه په دغه قوت کانړې باندې هلاک شوې وو. د لښکر ټول کسان هم په دغه موقعه باندې هلاک نه شو بلکه مختلف طرفونو ته اوتختيدل دهغې ټولو هم داحال شو چه په لاروکښې راپريوتل اومردار شو. ابرهه له خو چونکه سخته سزا ورکول وو دې فورى توګه باندې هلاک نه شو مګر دهغه په بدن کښې دا زهر ورننوتل چه دهغه يو يو جوړ سخا شو او راپريوتلو. هم په دغه حال کښې هغه واپس يمن ته راوړلې شو. دارالحکومت صنعاء ته په رسيدو سره دهغه ټول بدن ټکړې ټکړې شو اوبهيدو او مردار شو. دابرهه هاتهي محمود سره دوه کسان هم په مکه مکرمه کښې پاتې شو مګر داسې چه دواړه ړانده او شل شوې وو.

محمدبن اسحاق دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت کړې دې هغوى فرمائى چه ما دغه دواړه په داسې حالت کښې ليدلې دى چه هغوى ړانده او ګډ شل وو اودحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها خور بى بى حضرت اسماء رضي الله عنها فرمائى چه ما دواړه ړانده شل په خير غوښتلو سره ليدلى دى[1]. د اصحاب فيل د دې واقعه سره متعلق په دې سورت کښې الله تعالى رسول الله صلى الله عليه وسلم ته خطاب کولو سره اوفرمائيل:

[1]) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۴۸۳ تا ۴۸۹]

﴿اَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصۡحٰبِ الۡفِيۡلِ۝﴾ دلته ئي اَلَمۡ تَرَ اوفرمائيل دکوم معنی چه ده آيا تاونه ليدل حالاتکه دا واقعه دَ حضورپاك دَ ولادت باسعادت نه يوځو ورځې دَ وړاندې ده. دَ حضورپاك دَ ليدلو په ظاهره دلته هيڅ موقع نه وه مګر چه کومه واقعه يقيني داسې وی چه په عام توګه مشاهده کړې شوی وی دَ هغې علم هم په لفظ رويت سره تعبيرکولې شی لکه چه دا په ستر ګو ليدلې شوې واقعه ده اودَ يوحده پورې کتل هم ثابت دی لکه چه پورته تيرشوی دی حضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت اسماء رضي الله عنها هغه دَ هاتهيانوسرې رانده ګډوشل په خيرغوښتلوسره ليدلی دی.

﴿طَيۡرًا اَبَابِيۡلَ۝﴾ ابابيل لفظ دَ جمع دې مګر دَدې هيڅ يومفرد مستعمل نه دې معنی دَدې دَمرغو دَ سيل ده. دَ يوخاص ځناور نوم نه دې. په اردو ژبه کښې چه يو خاص قسم مرغئی ته ابابيل ونيلی شی هغه مراد نه ده لکه چه پورته په روايت کښې تيرشوی دی. دا مرغئی دَ کوترو نه لږې شان وړې وې او څه داسې جنس وو چه اول چرته ليدلې شوې نه وې. [کذا قال سعيد بن جبير رحمه الله، قرطبی] ([1])

﴿بِحِجَارَةٍ مِّنۡ سِجِّيۡلٍ۝﴾ سجين په کسره دَ سين دَ سنګ ګِل معرب کړې شوې لفظ دې دکوم معنی چه ده داسې قوت کانړې چه دګمدې خاورې نه په اورکښې پخولوسره جوړشوې وی. په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه دې قوت کانړو پخپله هم څه طاقت نه لرلو دَمعمولی ختې او اور سره جوړشوی وو مګر په قدر دَ حق سبحانه هغې دَ تمانچې دَ ګولئی نه هم زيات کار اوکړو.

﴿فَجَعَلَهُمۡ كَعَصۡفٍ مَّاۡكُوۡلٍ۝﴾ عصف بوسو ته وائی اول خو پخپله بوس خواره شوی دکی وی بيا چه يوځناور هغه خوړلې هم وی نوهغه دکی هم په خپل حال باندې نه پاتې کيږی. دَابرهه په لښکر باندې چه په چا باندې دَ قوت کانړې پريوتلو دَهغه هم دغه حال شو.

دَ اصحاب فيل دې عجيبه اوحيرانونکې واقعه دَ پوره عربو په زړونوکښې دَ قريشو عظمت زيات کړو او ټولو اومنل چه داخلق دَالله والا دی. دَهغوی دَ طرف نه پخپله الله تعالی دَهغوی دښمنان هلاك کړل. [قرطبی] ([2]) دَ دغه عظمت دا اثر وو چه دَ مکې قريشو به دَمختلفو ملکونو سفرونه دَتجارت په غرض سره کول او په لارکښې به چا هغوی ته څه نقصان نه رسولو حالاتکه دَ نورو خلقو دَپاره دغه شان سفرونه دَخطرو نه خالی نه وو. دَ قريشو هم دَدغه سفرونو ذکر وړاندې په سورت قريش کښې کولوسره هغوی ته دَ نعمت دَ شکر کولو طرف ته دعوت ورکړې شوې دې.

تمت سورة الفيل بحمدالله

••••

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۱۹۶]

[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۰۰]

| ایاتونه | سورة القريش مكية وهي اربع ايات وركوعا واحدا | ركوع كانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم كونكې دې | ۱ |

| لِاِيۡلٰفِ | قُرَيۡشٍۙ ۝۱ | اٖلٰفِهِمۡ | رِحۡلَةَ الشِّتَآءِ | وَالصَّيۡفِ ۝۲ |
|---|---|---|---|---|
| په دې وجه چې عادت شوی دی | قریشو | عادت شوی دی دوئ | د سفر د ژمی | او د وړی سره |

قریش عادت شوی دی |...................یعنی دژمی او داوړی دسفر سره عادت شوی دی

| فَلۡيَعۡبُدُوۡا | رَبَّ | هٰذَا الۡبَيۡتِۙ ۝۳ | الَّذِيۡۤ | اَطۡعَمَهُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| نو پكار دی چې عبادت اوكړی | درب | ددې كور | هغه رب | چې روزی ئې وركړه دوئ ته |

نودوی ته پكار دی چې ددې كور [كعبې] درب عبادت كوی |.........هغه رب چې دلوږې په حال كښې

| مِّنۡ جُوۡعٍ ۙ | وَّاٰمَنَهُمۡ | مِّنۡ خَوۡفٍ ۝۴ |
|---|---|---|
| دلوږې نه [بچ كولو دپاره] | او امن ئې وركړو دوئ ته | د ویرې نه [دبچ كولو دپاره] |

ئې روزی وركړې ده |اودهرې ویرې نه ئې په امان كړی دی

## آسان ترجمه قرآن

چونکه د قریشو دخلقو عادت دې. یعنی د هغوی د گرمۍ او یخنۍ په موسمونو کښې (یمن او شام ته) د سفر کولو عادت دې ددې وجې نه هغوی لره پکار دی. چه ددې کور د مالک عبادت اوکړی هغه ذات چه دوی ته ئې د لوږې په حالت کښې خوراک ورکړو، او د بدامنۍ نه ئې دوی محفوظ کړې دی.

## خلاصه تفسير

﴿لِاِيۡلٰفِ قُرَيۡشٍۙ اٖلٰفِهِمۡ رِحۡلَةَ الشِّتَآءِ وَالصَّيۡفِ﴾ [چونکه دقریشو محبت پیداشوې دې یعنی دسفر دیخنۍ اوگرمۍ سره ئې محبت شوې دې نو] ددې نعمت په شکر کښې ﴿فَلۡيَعۡبُدُوۡا رَبَّ هٰذَا الۡبَيۡتِ﴾ [دوی لره پکار دی چه ددې کور دکعبې دمالك عبادت كوی ﴿الَّذِيۡۤ اَطۡعَمَهُمۡ مِّنۡ جُوۡعٍ ۙ وَّاٰمَنَهُمۡ مِّنۡ خَوۡفٍ﴾ چاچه دوی ته په لوږه كښې خوراك وركړو او د ویرې نه ئې ورته امن وركړو ]

## معارف او مسائل

دې باندې خود تولو مفسرینو اتفاق دې چې د معنې په اعتبار سره داهم دسورة فیل سره متعلق دې او شاید چې هم په دې وجه په ځینې مصحفونو کښې دا دواړه په یو سورت حساب شوی وو، د دواړو ترمینځه بسم الله نه وه لیکلې شوې، مگر عثمان ﷺ په خپله زمانه کښې چې کله تول مصحفونه دَ قرآن پاک راجمع کړو او د قرآن پاک یوه نسخه ئې تیاره کړه اود تولوصحابه کرامو ﷺ په هغې اجماع اوشوه هم دغه نسخه په نزد د جمهورو امام بللې شی په هغې کښې دا دواړه بیل بیل سورتونه حساب شوی دی. او ددې دواړو تر مینځه بسم الله لیکلې شوې ده.

﴿لِاِيۡلٰفِ قُرَيۡشٍ﴾ د ترکیب نحوی په اعتبار سره حرف لام [ل] ددې تقاضا کوی چې ددې تعلق د یو وړاندینی مضمون سره وی ځکه ددې باره کښې کنړ اقوال دی. د تیر شوی سورت سره

د معنوی ترون په بنا باندې ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې دلته محذوفه جمله [ انا اهلكنا اصحاب الفيل] ده يعنی مونږ اصحاب فيل ځکه هلاک کړل چې دمکې قريش د يخنۍ او ګرمۍ د دواړو سفرونو عادت وو چې ددوئ په لار کښې څه بنديز پاتې نشی . او دټولو په زړونو کښې د دوئ لوئی پيدا شی . او ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې محذوفه جمله [اعجبوا] ده يعنی تعجب کوئی د قريشو په معامله چې څنګه د اوړی او ژمی سفر په آزادئی سره بې خطرې کوی او ځينو اوفرمائيل چې ددې تعلق د هغې جملې سره دی چې په راتلونکی آيت مبارک کښې را روانه ده چې هغه :

﴿فَلْيَعْبُدُوا﴾ ده مطلب دادې چې قريشو لره ددې نعمت په نتيجه کښې د الله ﷻ شکر ګذار کيدل او دهغه په عبادت کښې لګيدل پکار دی . په دې صورت کښې د ﴿فَلْيَعْبُدُوا﴾ [فاء] په دې وجه ده چې په رومبۍ جمله کښې يوه معنی د شرط موندې شی ، بهر حال په دې سورت کښې ارشاد دادې چې قريش چونکه د دوؤ سفرونو عادت وو يو په ژمی کښې يمن ته او بل په اوړی کښې شام ته او هم په دې دواړو سفرونو باندې ددوئ کاروبار او تجارت اړه لرله . ددغې تجارت په وجه دوئ مالداره او غنيان وو ځکه الله ﷻ د دوئ دښمنان اصحاب فيل ته په عبرتناکه سزا ورکولو سره د دوئ لوئی ئې د خلقو په زړونو کښې زياته کړه يعنی هر ملک ته چې دوئ ورشی خلق ئې بزرګی او عزت منی .

**دقريشو غوره والی په ټولو عربو باندې :** دې سورت کښې دې اړخ ته هم اشاره ده چې د عربو په ټولو قبيلو کښې قريش د الله ﷻ په نزد د ټولو نه زيات مقبول دی لکه په حديث کښې راغلی دی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ د اسماعيل ؑ په ټول اولاد کښې کنانه ، په کنانه کښې قريش ، په قريشو کښې بنی هاشم او په دوئ کښې ئې زۀ چونړ کړې يم . [ بغوی دواثله بن اسقع نه](١).

او په يو حديث پاک نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ټول انسانان په خير او شر کښې د قريشو تابع دی . [مسلم روايت کړو دجابر ؓ نه ، مظهری](٢). او په رومبی حديث کښې د الله ﷻ د کوم چونړ کولو چې بيان دې غالبا دهغې وجه ددې قبيلو خاص ملکې او استعدادونه دی ، د کفر ، جهالت او شرک په زمانه کښې هم ددوئ ځينې اخلاق او ملکې ډير اعلی وو . په دوی کښې د حق قبلولو استعداد هم کامل وو هم دغه وجه ده چې په صحابه کرامو ؓ او اولياء الله کښې زيات خلق د قريشو څخه دی . [ مظهری ](٣).

﴿رِحْلَةَ الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ﴾ دا خبره معلومه او مشهوره ده چې مکه مکرمه په داسې مقام کښې آباده ده چرته چې څه فصل نه کيږی هلته باغونه نشته چې د مکې خلق ميوه تری حاصلوی . ځکه د بيت الله شريف آبادونکی ابراهيم ؑ د مکې مکرمې د آباديدو په وخت الله ﷻ نه دا دعا کړې وه چې دا ښار دامن خائې جوړ کړې او اهل مکه ته دميوؤ روزی ورکړې . ﴿وَارْزُقْ أَهْلَهُ

---

(١) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج: ٨ ص:٥٤٦]و جامع الترمذي ، ابواب المناقب باب في فضل النبي ﷺ [ج:٢ ص:٢٠١]

(٢) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٣٤٧] وصحيح مسلم كتاب الإمارة، باب الناس تبع لقريش... إلخ [ج:٢ص: ١١٩]

(٣) تفسير المظهري[ج:١٠ص:٣٤٧]

﴿مِنَ الثَّمَرٰتِ﴾ او بهر نه دغلته هر قسم ميوه راوړي. [يجبى اليه ثمرات كل شئ] ځکه د اهل مکه ژوند په دې محاصر وو چې هغوئ د تجارت دپاره سفر کوی او خپل ضرورتونه د هغه ځائې نه راوړي. ابن عباس ﷠ اوفرمائيل چې دمکې خلق په ډير نيستئ اوتکليف کښې وو تر دې پورې چې د نبی کريم ﷺ غور ور نيکه هاشم قريش دې ته تيار کړل چې نورو ملکونو سره د تجارت کار کوی، شام ملک يخ وو او يمن ګرم، په اوړی کښې د شام په سفر او په ژمی کښې د يمن په سفر به تجارت له تلل دغه خلق د بيت الله د خادمانو کيدو په وجه په ټولو عربو کښې پاکيزه او عزت مند ګنړلې شو، او د لارې او دهر قسم خطرو نه به هم په حفاظت کښې پاتې کيدل او هاشم چونکه ددې ټولو سردار منلې شوې وو، دهغوئ طريقه دا وه چې د تجارت تر لاسه کړې ګټه به ئې دقريشو په اميرانو، غريبانانو ټولو کښې ويشله تردې پورې چې ددوئ غريبان خلق به هم په مالدارو کښې حسابيدل بيا الله ﷻ په هغوئ باندې زيات احسان دا اوفرمائيلو چې دهر کال د دوؤ سفرونو دخوارئې نه ئې هم په دې شان بچ کړل چې مکې مکرمې سره پيوسته د يمن علاقه تباله او حرش ئې دومره ذرخيزه او زرغنه جوړه کړه چې دهغه ځائې غله به د خلقو د ضرورت نه زياته وه ځکه به د هغې بهر ته د اوړلو ضرورت راپيښيدو چې دا غلې دې جدې ته په راوړلوسره هلته خرڅوی، نو د ژوند اکثر ضرورتونه په جده کښې پيدا کيدل شروع شو مکې والا ددې دوو اوږدو سفرونو په ځائې صرف دوه منزله تللوسره د جدې نه ئې سامانونه راوړل شروع کړل نو په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ دمکې مکرمې په خلقو ددې احسان او انعام ذکر کړې دې.

﴿فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ﴾ دانعاماتو د ذکر کولو نه پس دهغې د شکر د ادا کولو دپاره قريش ته خصوصی خطاب سر دا هدايت او فرمائيلو چې ددې کورد مالک عبادت کوئی، دلته د الله ﷻ د صفتونو ځينې په خصوصيت سر د رب البيت صفت ئې ځکه بيان اوفرمائيل چې هم دا بيت کعبهٔ ددغې ټولو فضيلتوونو او برکتونو سرچينه وه.

﴿الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ وَّاٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ﴾ دې کښې د مکې د قريشو دپاره ددنيا هغه ټول لوئې نعمتونه ئې جمع کړی دی چې د انسان د ښهٔ ژوند تيرولو دپاره ضروری دی.

﴿اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ﴾ کښې د خوارک څکاک ضرورتونه داخل دی اوپه ﴿اٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ﴾ کښې د دښمنانو او ډاکوانو د ويرې نه امن کښې کيدل هم شامل دی، او د آخرت د عذاب نه په امن کيدل هم.

**فائده** :: ابن کثير[1] فرمائيلی دی چې اوس هم څوک ددې آيت مبارک دحکم په جوړ دالله ﷻ عبادت کوی نو الله ﷻ هغه دپاره په دنيا کښې هم دا من او بې ويرې پاتې کيدو سامان برابروی او په آخرت کښې هم، څوک چې دې نه مخ اړوی نو هغه نه دا دواړه قسمه امن واخستې شی لکه قرآن کريم فرمائی چې : ﴿وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ﴾.

يعنی الله ﷻ يو مثال بيانوی چې يوه آبادی وه چې په امن او دهرې خطرې نه محفوظه وه دهغې روزی به د هر ځائې نه پريمانه راتله، بيا ددغې ودانئ خلقو د الله ﷻ د نعمونو

[1] ) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۴۹۲]

ناشکری اوکړه نو الله ﷻ هغوئ لره په لوږې ویرې او پریشانئ کښې اخته کړل ، دهغوئ دکړو اوبد عملو په بنا باندې.

**لویه فائده:** ابوالحسن قزوینی رحمه الله اوفرمائیل چې چا سره د دښمن یا د څه مصیبت ویره وی هغوئ لره ده . ﴿لِإِيلَافِ قُرَيْشٍ﴾ لوستل امان دې ، دې لره امام جزری رحمه الله نقل کړل او وې فرمائیل چې دا عمل ازمائیلې شوې دې او تجربه پرې شوې ده . قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې ددې په نقل کولو سره اوفرمائیل چې ماته زما شیخ حضرت مرزا جان جانان رحمه الله د ویرې اوخطرې په وخت ددې سورت دلوستلو حکم راکړو او وې فرمائیل چې د هر بلا او مصیبت ددفع کولو دپاره ددې لوستل مجرب دی ، حضرت قاضی صاحب رحمه الله موصوف فرمائیلی دی چې ما هم ډیر ځل ددې تجربه کړې ده[1] .

تمت سورة القريش بحمدالله تعالى

| آیاتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | سورة الماعون مكية وهي سبع ايات وركوعا واحدا | | |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۷ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۱ |

أَرَءَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ ﴿١﴾ فَذَٰلِكَ الَّذِي

آیا تا اولیدو | هغه سړې | چې دروغ ګنړی | ورځ دجزا سزا | پس دې | هم هغه کس دې |

آیا تا هغه څوک لیدلې دې | چې د جزا ورځ [قیامت] دروغ ګنړی ؟ | ..........دا هغه څوک دې

يَدُعُّ الْيَتِيمَ ﴿٢﴾ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ﴿٣﴾ فَوَيْلٌ

چې دیکې ورکوی | یتیم ته | اونهٔ کوی تیزول | په ورکولو د ډوډئ دمسکین | پس تباهی ده |

چې یتیم له دیکې ورکوی |اومسکین ته دخوراک ورکولو ترغیب نه ورکوی| نو د داسې مونځګذارو

لِّلْمُصَلِّينَ ﴿٤﴾ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ﴿٥﴾ الَّذِينَ

دپاره دمونځ کونکو | هغه [مونځ کونکی] | چې هغوئ | دمانځه خپل نه | ناخبره وی | هغه کسان |

دپاره هلاکت دې | چې دخپلو مونځونو نه بې خبره وی | .............................. یعنی

هُمْ يُرَاءُونَ ﴿٦﴾ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ ﴿٧﴾

چې هغوئ | خان ښودنه کوی | او منع کوی [نه ورکوی] | دعام ضرورت څیزونه |

هغه خلق چې د خان خودنې دپاره ئې کوی | اود عام ضرورت څیز [حاجت مندوته] نه ورکوی

**آسان ترجمه قرآن**

آیا تا هغه کس لیدلې دې، چه جزا او سزا دروغ ګنړی ؟ دا هم هغه دې، چه یتیم ته دیکې ورکوی او مسکین ته د خوراک ورکولو دپاره ترغیب نه ورکوی بیا لویه خرابی ده د هغې مونځګزارو دپاره، چه د خپل مانځه نه غفلت کوی چه ښودنه کوی او نورو ته معمول څیزونه ورکولو نه هم انکار کوی.

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۴۸]

## خلاصه تفسير

﴿اَرَءَيْتَ الَّذِيْ يُكَذِّبُ بِالدِّيْنِ﴾ [ايا تا هغه سړی لره ليدلي دي كوم چه ورځ دجزا دروغژنه كوی پس] ته دده حال اوريدل غواړې نو واوره ﴿فَذٰلِكَ الَّذِيْ يَدُعُّ الْيَتِيْمَ﴾ [پس دا سړې هغه دې كوم چه يتيم لره دكې وركوی ﴿وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ﴾ اومحتاج ته دخوراك وركولو] نورو ته هم [تر غيب نه وركوی] يعنی هغه داسې سنګدله دې چه په خپله به چالره څه نه وركړی نورو لره هم دې ته نه تياروی او هر كله چه دبندګانو حق ضائع كول داسې بددی نو دخالق حق ضائع كول خو نور زيات بددی [پس] ددې نه ثابته شوه چه ﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ﴾ [دادسې مونځ كوونكې دپاره لويه خرابی ده ﴿الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ﴾ كوم چه خپلو مونځونو لره هيروی] يعنی پريږدی ئې ﴿الَّذِيْنَ هُمْ يُرَآءُوْنَ ۙ وَيَمْنَعُوْنَ الْمَاعُوْنَ﴾ [كوم چه داسې دی چه] كله مونځ كوی نو [رياكاری كوی اوزكواة بالكل نه وركوی ] ځكه چه دزكوة دپاره شرعا دا ضروری نه ده چه دټولو په وړاند دظاهر وركوی په دې وجه ددې په بلكل نه وركولو سره هم څوك اعتراض نه شی كولې په خلاف دمونځ نه چه هغه دجماعت سره په ډاګه ادا كولې شی چه دې لره بالكل پريږدی نوټولو ته ئې نفاق ظاهر شی په دې وجه مونځ محض دخان ښودلو دپاره كوی.

## معارف او مسائل

دې سورت كښې دَ كافرانو او منافقانو څينې ناكاره عملونه بيان شوی دی اودجهنم نه ويرولې شوې دی، دا كارونه كه د يو مؤمن نه اوشی چې هغه دروغژنی نه كوی هغه هم اګر چې په شريعت كښې بدكار او سخته ګناه ده خو دا درګه او ويره هغه دپاره نه ده. ځكه ئې ددې كارونو نه وړاندې دهغه چا بيان كړې دې چې ددين اوقيامت منكر دې او دهغې دروغژنی كوی. په دې كښې اشاره دې طرفته ضرور ده چې دا عملونه دكومو بيان چې وړبسې راروان دې د مؤمن د شان نه لرې دی. داخوصرف يو كافر منكر كولې شی دَهغه اعمالو قبيحه دَكومو چه دلته په دې سورت كښې بيان شوې دې هغه دَ يتيم سره بداخلاقی اودَ هغه سپكاوې كول دی. مسكين حاجت مند ته سره د قدرت او توفيق نه خوراكه نه وركول دی او ددې شوق چاته نه وركول. په مونځ كولو كښې رياكاری كول. زكوة نه ادا كول دا ټول كارونه پخپل ذات كښې هم ناكاره او سخت ګناه دی او كله چې د كفر او دروغژن بللو په نتيجه كښې داكارونه كيږی نو د هغې وبال دائمی جهنم دې لكه چې په دې سورت كښې د ويل په الفاظو سره بيان شوې دې.

﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ ۙ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ ۙ الَّذِيْنَ هُمْ يُرَآءُوْنَ﴾ دا دَمنافقانو حال بيانوی چې خلقو ته د خودلو اود اسلام خپلې دعوې ثابتولو دپاره خو مونځونه كوی مګر چونكه هغوئ دمونځ د فرضوالی عقيده نه لری ځكه نه د وختونو پابندی كوی اونه داصل مونځ ،صرف د خودلو اونمائش په موقعه ئې كوی ګنی نه ئې كوی په: ﴿عَنْ صَلَاتِهِمْ﴾ كښې د عَنْ حرف مطلب دادې چې د اصل مونځ نه بې پروائی اختياروی چې دمنافقانو عادت دې اوپه مونځ كښې څه سهو هيره اوخطا راتلو نه مسلمان خو لا څه كوې چې نبی كريم ﷺ هم خالی نه دې ، هغه ددې كلمه مراد نه دې ، ولې چې په هغې سره د جهنم دَ ويل درګه اوويره وركول نشی كيدې كه دا مراد ترې اخستل وې نو د : ﴿عَنْ صَلَاتِهِمْ﴾ په ځائې بهٔ فی صلاتهم راغلی وو. په صحيح

احادیثو کښې ډیر ځل نبی کریم ﷺ نه په مونځ کښې سهوه واقع کیدل ثابت دي.

﴿وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ﴾ د﴿مَاعُونَ﴾ اصلي لفظي معنی لږ او پوتې څيز ، ده. څکه ددې معنی د استعمال هغه څیزونه کولې شي چې د عادت تر مخې يو بل ته د استعمال دپاره ورکولې شي اوهغه څیزونه هم چې خپل مینځ کښې د هغې لين دين دعام انسانیت تقاضا ګڼړلې شي. لکه تبر و ترخز [سوخچه]، کوداله [کولنګ] یا د اخلي پخلي لوښې شو چې دضرورت په وخت ئې د ګواندیانو نه غوښتل عیب نشي ګڼړلې اوڅوک چې ددې په ورکولو کښې بخیلي کوي نو هغه لوئې بخیل ، کمینه ګڼړلې شي ، خو دلته په آیت مبارک کښې د ما عون لفظ نه مراد زکوة دې ، زکوة ته ماعون څکه وئيلې شوی دی چې هغه د اندازې په اعتبار سره نسبتا ډیر لږ دې ، یعنی صرف څلویښتمه حصه ، څنګه چې علی ﷺ ابن عمر ﷺ ، حسن بصری ﷺ قتاده ﷺ او ضحاک ﷺ وغیره جمهورمفسرینو په دې آیت کښې د ماعون تفسیر هم په زکوة سره کړې دې. [مظهری] ([1]).

او ددې په نه ورکولو چې کوم عذاب د ویل راغلې دې هغه هم د فرض په پریخودو باندې کیدیشی ، د استعمال دڅیزونو نورو ته ورکول لوئې ثواب او دانسانیت اومراتې په لحاظ سره ضروري خودی ولې فرض او واجب نه دی چې د هغې په ایسارولو باندې دجهنم دړکه وی اود حدیث پاک په څینې روایتونو کښې چې دلته د ماعون تفسیر د استعمال په څیزونو او لوښو سره شوې دې ([2]). ددې مطلب ددغې خلقو ډیر خسیسوالي ښکاره کول دی چې زکوة ورکول خو لا پریږده چې د استعمال څیزونه هم چاته د استعمال دپاره نه ورکوی په کومو چې څه پیسې هم نه لګی ، نو وعید صرف ددې څیزونو په نه ورکولو باندې نه دی بلکه د فرض زکوة په نه ورکولو اودې سره سره په سخت بخل کولو باندې دې. والله اعلم.

| اياتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | سورة الکوثر مکية وهي ثلاث ايات وركوعا واحدا | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زيات رحم کونکي دي | ۱ |

| إِنَّآ | أَعْطَيْنٰكَ | الْكَوْثَرَ ۞ | فَصَلِّ | لِرَبِّكَ | وَانْحَرْ ۞ | إِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه مونږه | درکړو مونږ تاته | کوثر | نو مونځ کوه | دپاره درب خپل | او قربانی کوه | بیشکه |

یقینا مونږ تاته ډیر څه درکړی دی | ..............نو ته د خپل رب دپاره مونځ کوه | اوقربانی کوه

| شَانِئَكَ | هُوَ الْأَبْتَرُ ۞ |
|---|---|
| دشمن ستا چې دې | هم هغه دې چې جړه ئې پریکړې شوی ده |

بیشکه ستاسو دشمن به بې نامه او بې نشانه وی

[1]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۵۰]

[2]) سنن ابوداود، كتاب الزكاة ، باب فى حقوق المال رقم الحديث:[۱۴۱۳] [ج:۱ص:۲۳۱] و السنن الكبرى للنسائى رقم الحديث:[۱۱۷۰۱]

## آسان ترجمه قرآن

(اے پيغمبره) يقين اوکړه، مونږ تاته کوثر درکړې دې لهٰذا ته د خپل پروردګار (د رضا د پاره) مونځ ادا کړه، او قربانۍ ورکړه. يقين اوکړه، چه ستا دشمن هغه کس دې، چه دهغه وبيخ کټ کړې شوې دې.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّآ أَعۡطَيۡنَٰكَ ٱلۡكَوۡثَرَ﴾ [ بيشکه مونږ تاته کوثر ] دجنت ديوحوض نوم هم دې اوهر خير کثير هم په دې کښې شامل دې [درکړې دې ] په کوم کښې چه ددنيا اواخرت هر خير اوښيګړه شامله ده په دنيا کښې ددين اسلام بقا اوترقی اوپه اخرت کښې دجنت اوچتې درجې ټول په کښې داخل دی[پس] ددې نعمتونه په شکريه کښې ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَٱنۡحَرۡ﴾ [ته دخپل پروردګار مونځ کوه] ځکه چه دټولونه دلوئې نعمت په شکر کښې دټولو نه لوئې عبادت پکار دې اوهغه مونځ دې[او] دشکر دتکميل دپاره دجسمانی عبادت سره مالی عبادت يعنی دهغه په نوم[قربانی کوه ] لکه چه په نورو ايتونو کښې عموما دمونځ سره دزکوة حکم دې په دې کښې د زکوة په ځائې دقربانۍ ذکر شايد ځکه اختيار کړې شو چه په قربانۍ کښې دمالی عبادت کيدو نه علاوه دمشرکانو او مشرکانه رسمونو عملی مخالفت هم دې ځکه چه مشرکانو به دبتانو په نوم قربانۍ کولې وراند دنبی کريم ﷺ دځوئې قاسم ﷺ په ورکوټوالی کښې په وفات ځنې مشرکانو چه داطعنه ورکړې وه چه ددوی ﷺ نسل به ونهٔ چليږی اوددهٔ ددين سلسله به زر ختمه شی ددې جواب دې چه تهٔ دالله تعالی په فضل سره بې نام ونشان نهٔ يې بلکه ﴿إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ ٱلۡأَبۡتَرُ﴾ [ په يقين ستا دښمن بې نام ونشان دې ] خواه ظاهری نسل ددغې دښمن وچليږی اوکهٔ ونهٔ چليږی ليکن په دنيا کښې به ددهٔ ذکر خير باقی پاتې نهٔ شی په خلاف ستا نه چه ستاامت اوستا ياد نيك نامی به په محبت اواعتقاد سره باقی وی اوداټول نعمتونه دلفظ کوثر په مفهوم کښې داخل دی کهٔ دپسری اولاد دنسل نهٔ وی نو نهٔ دې وی دنسل نه چه کوم مقصود دې هغه تاته حاصل دې تردې چه ددنيا نه اخواته تراخرته پورې هم اودښمن ددې نه محروم دې.

## معارف او مسائل

**شان نزول** :: ابن ابی حاتم رحمه الله د سدی رحمه الله نه او بيهقی په دلائل النبوة کښې د محمد بن علی بن حسين رضی الله عنه نه نقل کړی دی چې دچا نارينه اولاد مړ شی نو عرب ورته ابتر وائی. يعنی نسل ئې ختم شو. کوم وخت چې د نبی کريم ﷺ صاحبزاده قاسم يا ابراهيم په وړوکتوب کښې وفات شو نو دمکې کافرانو به ورته د ابتر والی پيغور ورکولو ، په دې پيغور ورکولو کښې عاص بن وائل مخکې مخکښې وو ، نو ددهٔ په وړاندې به چې چا د نبی کريم ﷺ ذکر اوکړو نو وئيل به ئې چې د نبی کريم ﷺ خبره ځکه پريږدئی چې نبی کريم ﷺ ابتر دی ، د نبی کريم ﷺ په وفات به ئې څوک نوم اخستونکې هم پاتې نشی ، دې باندې سورة کوثر نازل شو. [ بغوی روايت کړو ابن کثير اومظهری ][1].

او په ځينو روايتونو کښې راغلی دی چې يو ځل کعب بن اشرف يهودی مکې مکرمې ته راغلو نو دمکې مکرمې قريش هغه ته ورغلل او وې وئيل چې دا ځوان ﷺ خو زمونږ د ټولو

---

[1]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۵۱] و تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۵۰۴]

نه ددين په اعتبار سره څان زيات غوره ګڼړي سره ددې چې مونږ د حاجيانو خدمت کوونکي او دبيت الله شريف حفاظت کوونکي او خلقو ته څکلو دپاره اوبه ورکوونکي يو.
کعب ورته اووئيل چې داسې نه ده بلکه تاسود نبي کريم ﷺ نه زيات غوره يئ. په دې باندې سورة کوثر نازل شو. [ابن کثير دبزاز په صحيح سند سره ذکر کړو او مسلم هم روايت کړې دې ، دغسې مظهري اووئيل ][1].
خلاصه داده چې نبي کريم ﷺ دنارينه اولاد د نيشتوالي کوم پيغور به چې ورکولې شو يا د نبي کريم ﷺ بې ادبي به کيدې شوه دهغې په جواب کښې سورة کوثر نازل شو چې نبي کريم ﷺ ته دا پيغورونه کوونکي د حقيقت نه بې خبره دي ، د نبي کريم ﷺ نسل به هم ان شاء الله تر قيامته پورې باقي پاتې کيږي. اګر چې د لونړو بيبيانو اولاد به ئې وي او د معنوي نسل اولاد يعني مؤمنان به ډير زيات ګڼړ وي تر دې چې په جمع دټولو امتونو نه به هم سره د يوالي په يو اخې څان زيات وي. اوپه دې کښې دا هم بيان شوي دي چې نبي کريم ﷺ د الله ﷻ په نزد مقبول د عزت اولويئ خاوند دې ، پـه دې سره د کعب بن اشرف هغه خبره ردکول هم ښکاري ، داټول مضمون دسورت په دريم آيت مبارک کښې راغلې دې.
﴿إِنَّآ أَعۡطَيۡنَٰكَ ٱلۡكَوۡثَرَ﴾ امام بخاري ﷫ د ابن عباس ﵄ نه ددې په تفسير کښې روايتکړې دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې کوثر هغه خير کثير دې چې الله ﷻ نبي کريم ﷺ ته ورکړې دې. د ابن عباس ﵄ خاص شاګرد سعيد بن جبير ﷫ ته چا اووئيل چې څيني خلق وائي چې کوثر د جنت د يو نهر نوم دې. نو سعيد بن جبير ﷫ جواب ورکړو چې د ابن عباس ﵄ قول دې سره بې سمونه نه دې بلکه کوثر نومې نهر پـه جنت کښې چې دې هغه هم پـه دې خير کثير کښې داخل دې. څکه د تفسير امام مجاهد ﷫ د کوثر پـه تفسير کښې اوفرمائيل چې دا ددنيا اوآخرت دواړو خير کثير دې ، په دې کښې دجنت خاص نهر کوثر هم داخل دې.
**حوض کوثر** :: بخاري ، مسلم ، ابوداود ، نسايي د انس ﵁ نه روايت کړې دې د مسلم الفاظ دا دي چې : بينا رسول الله ﷺ بين اظهرنا في المسجد اذا اغفى اغفاءة ثم رفع رأسه متبسما قلنا ما اضحكك يا رسول الله ﷺ قال لقد انزلت علي انفا سورة فقرء بسم الله الرحمان الرحيم انا اعطيناك الكوثر الخ ثم قال اتدرون ما الكوثر؟ قلنا الله و رسوله اعلم قال فانه نهر وعدنيه ربي عزوجل عليه خير كثير وهو حوض ترد عليه امتي يوم القيامة أنيته عدد نجوم في السماء فيختلج العبد منهم فاقول رب انه من امتي فيقول انك لا تدري ما احدث بعدك([2])
يعني يوه ورځ نبي کريم ﷺ مونږ سره تشريف فرماوو ، ناګهانه په نبي کريم ﷺ يو قسم خوب يا بې هوشي شان راغله بيا خندونکې وو او سر مبارک ئې پورته کړو مونږ تپوس اوکړو چې يارسول الله ﷺ ستاسو ﷺ د خنديدو سبب څه دې ؟ نو وې فرمائيل چې پـه ما باندې دغه وخت يو سورت نازل شوې دې ، بيا نبي کريم ﷺ بسم الله سره سورة کوثر اولوستلو. بيا ئې اوفرمائيل چې تاسو پوهيږئ کوثر څه څيز دې ؟ مونږ عرض اوکړو چې الله ﷻ اورسول الله ﷺ ښه پوهه دې. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې دا دجنت يو نهر دې چې ماسره ئې زما

[1]) تفسير المظهري [ج:۱۰ص:۳۵۱] و تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۵۰٤]و صحيح ابن حبان ، کتاب ا التاريخ ذکر تسمية المشرکين صفى الله ﷺ ـــ إلخ رقم الحديث:[٦٦٩٢]
[2]) صحيح مسلم کتاب الصلاة، باب حجة من قال البسملة آية من اول کل سورة ـــ إلخ [ج:۱ص:۱۷۲] و السنن الکبرى للنسائي رقم الحديث:[۹۱۷]

رب وعده کړې ده ، پدې کښې خیر کثیر دې او دا یو حوض دې چې هغې ته به زما امت د قیامت په ورځ اوبو څکلو له راځي ددې اوبو څکلو لوښي به د آسماني ستورو په شمیر کښې وي په دغه وخت به ځیني خلقو لره فرښتې د حوض نه لرې کي نو زه به وایم چې زما پروردګار دا خو زما امتي دي، الله ﷻ به اوفرمائي تاسو ﷺ ته معلومه نه ده چې تاسو ﷺ نه پس ده څه نوې دین اختیار کړې دې.

ابن کثیر ددې روایت نقل کولو سره نورهم لیکلي دي چې: وقد ورد في صفة الحوض يوم القيامة انه يشخب فيه ميزابان من السماء من نهر الكوثر وان انية عدد نجوم السماء[1]

دحدیث پاک په روایتونو کښې دحوض یو صفت داسې راغلې دې چې دې کښې به دوه ناوې د آسمان نه رابهیږي چې دنهر کوثر د اوبو نه به حوض ډکوي ددې لوښي بهٔ د آسمان دستورو په شمیر کښې وي.

دې حدث پاک نه دسورة کوثر د نازلیدو سبب هم معلوم شو او د کوثر د لفظ صحیح تفسیرهم ، یعني خیر کثیر اودا هم چې په دې خیر کثیر کښې هغه حوض کوثر هم شامل دې چې په قیامت کښې به امت محمدي په اوبو خړوب کوي. داشان دې روایت دا هم واضح کړل چې اصل نهر دکوثر په جنت کښې دې او دا حوض کوثر به د محشر په میدان کښې وي چې دې کښې به د دوؤ ناوؤ په ذریعه په نهر کوثر کښې اوبهٔ اچولې شي. په دې شان ددې جوړښت هغې روایتونو سره هم راځي چې ترې معلومیږي چې حوض کوثر ته به ورتلل د جنت دداخلیدو نه مخکښې وي او په دې حدیث پاک کښې چې د ځیني خلقو د حوض کوثر نه د لرې کولوذکر شوې دې داهغه خلق دي چې روستو بیا د اسلام نه اوړیدلي وؤ یا د اول نه مسلمانان نه وو خو هسې د منافقت نه به ئې اسلام ښکاره کولو د نبي کریم ﷺ نه پس ئې منافقت ښکاره شو. والله اعلم.

صحیح احادیثو کښې دحوض کوثر د اوبو صفایئ خوږوالي اودا چې دهغې غاړې به د جواهراتو سره ښائسته کړې شوي وي ، ددې قیاس ددنیا په څه څیز باندې څوک نشي کولې.

د دې سورت نازلیدل که د کافرانو دپیغورونو په دفاع کښې وی لکه چه پورته ذکر شو چه د حضورپاك د نارینه اولاد فوت کیدو د وجې نه هغوی تاته ابتر مقطوع النسل ګرځولو سره به ئې وئیل چه د دوی کار د یو څو ورځو دې بیا به ئې څوك نوم اخستونکې هم نه وی. نو په دې سورت کښې هغوی ﷺ ته د کوثر ورکولوذکر په کوم کښې چه حوض کوثر هم شامل دې د دغه پیغور ورنګو مکمل تردید دې چه د دوی نسل اونسب صرف هم دغه نه دی چه د دنیاد عمر پورې به چلیږی بلکه د دوی روحاني اولاد رشته به په محشر کښې هم محسوس کیږي. چرته چه به هغوی په شمیر کښې هم د ټولو امتونو نه زیات وي اود هغوی اعزاز اواکرام به هم د ټولو نه زیات وي.

﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾، ﴿وَانْحَرْ﴾ د نحر نه مشتق دې. د اوښ قربانئ ته وئیلې شي ددې مسنون طریقه داده چې د اوښ خپې اوتړلې شي او په ولاړې مرئي ئې په غشي یا په بل تیره څیز باندې پریکول یا زخمي کول دي چې وینه ئې اوبهیږي ، عربو کښې به اکثر د اوښ د قربانئ درکولو دستور وو څکه ﴿وانحر﴾ اوفرمائیلې شو لیکن د غوا میښې قرباني هم په دې کښې د

[1] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۴۹۸]

اخله د ه چې هغه په ملاستې ذبح کولې شی خو کله نحر د مطلق قربانۍ په معنی کښې استعمالولې شی. ددې سورت په رومبې آیت مبارک کښې دهغې خلقو د باطل خیال په خلاف نبی کریم ﷺ ته دکوثر یعنی ددنیا او آخرت د هر خیر په لویه اندازه دزیری آوُرولو نه پس د هغې د شکر په دول نبی کریم ﷺ ته د دوؤ څیزونو هدایت کړې شوې دې. یو د مونځ، بل د قربانۍ مونځ په بدنی عبادتونو کښې دټولو نه لوئې عبادت دې اوقربانی په مالی عبادتونو کښې پدې بنا باندې خصوصیت او اهمیت لری چې د الله ﷻ په نوم باندې قربانی ورکول د بت پرستۍ دطریقې نه خلاف یوجهاد هم دې ولې چې د هغوئ قربانۍ به د بتانو په نوم باندې وې څکه د قرآن پاک په یو بل آیت مبارک کښې هم مونځ سره دقربانۍ ذکر کړې دې. فرمائی چې: ﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾[1] د ابن عباس رضی الله عنهما عطاء رحمه الله، مجاهد رحمه الله او حسن بصری رحمه الله وغیره نه په مستندو روایتونو سره قربانی کول ثابت دی، څینې امامانو دتفسیر ته چې ددې دامطلب منسوب کړې شوې دې چې د ﴿وَانْحَرْ﴾ معنی په سینه باندې په مونځ کښې لاس ایښودل دی نو ابن کثیر اوفرمائیل چې دا روایت منکر دې[2].

﴿إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ﴾ د ﴿شَانِئَ﴾ معنی بغض لرونکې عیب لګوونکې ده داآیت مبارک دهغې کافرانو متعلق نازل شوې دې چې نبی کریم ﷺ ته به ئې د ابتریعنی مقطوع النسل پیغور ورکولو. په اکثرو روایتونو کښې عاص بن وائل اوپه څینې کښې عقبه اوڅینو کښې کعب بن اشرف ددې مصداق دی. الله ﷻ رسول اکرم ﷺ ته کوثر یعنی خیر کثیر ورکړو، چې په کښې بې شمیره اولاد هم داخل دې، چې د لونړو بیبیانو لـه طرفـه نسبی اولاد او روحانی اولاد مؤمنان د ټول امت په کښې داخل دی او دَ نبی کریم ﷺ امت به دټولو پخوانو پیغمبرانو ﷺ د امتونو نه په شمیر کښې ګنړ وی. یو طرفته ئې ددغې دښمنانو خبره په دې شان خاورې ایرې کړه بل طرفته ئې دا هم اوفرمائیل چې څوک درته د ابتر کیدو پیغور درکوی هم هغوئ پخپله ابتر دی.

**عبرت**: اوس غور اوکړئی چې د رسول الله ﷺ ذکر ته الله ﷻ څنګه اوچت والې ورکړو چې د نبی کریم ﷺ دزمانې راسې تر ننه پورې ددنیا په هره خطه باندې د نبی کریم ﷺ مبارک نوم پنځه وخته دالله ﷻ دنوم مبارک سره په منارو کښې یادولې شی او په آخرت کښې به ورته د شفاعت کبری مقام محمود حاصلیږی، ددې بل اړخ ته ددنیا د تاریخ نه تپوس اوکړئی چې د عـاص بـن وائـل، د عقبـه اودکعب اولاد چرتـه دې او خاندانونه ئې څه شو؟ پخپله د دوئ نومونه هم د اسلامی روایتونو د تفسیر په سلسله کښې محفوظ شو، ګنی هـسې خو په دنیا کښې د دوئ نوم اخستونکې څوک باقی نه دې. فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ.

---

[1]) ترجمه :- ته اووایه چې یقینًا زما مونځ او زما ټول عبادت او زما ژوند او زما مرګ خالص دالله تعالی دی چې د ټول جهان مالك دې.

[2]) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۰۳]

| رکوع کاني | سورة الكافرون مكية وهي ست اٰيٰت وركوعا واحدا | اياتونه |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ① | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ⑥ |

قُلۡ يٰۤاَيُّهَا الۡكٰفِرُوۡنَ ۙ① لَاۤ اَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُوۡنَ ۙ② وَلَاۤ اَنۡتُمۡ

اووايه | اي كافرانو | زۀ عبادت نۀ كوم | دهغي | چې تاسو ئې عبادت كوئ | اونۀ يئ تاسو

ته اووايه چې ائې كافرانو دكومو بتانو چې تاسو عبادت كوئ | زه د هغو عبادت نه كوم | او نه

عٰبِدُوۡنَ مَاۤ اَعۡبُدُ ۚ③ وَلَاۤ اَنَا عَابِدٌ مَّا

عبادت كونكي | دهغي | چې زۀ ئې عبادت كوم | اونۀ زۀ عبادت كونكې يم | دهغې |

تاسو دهغه الله تعالى عبادت كوئ | دكوم چې زۀ عبادت كوم | او نه به زه چرې د هغه

عَبَدۡتُّمۡ ۙ④ وَلَاۤ اَنۡتُمۡ عٰبِدُوۡنَ مَاۤ اَعۡبُدُ ؕ⑤

چې تاسو ئې عبادت كوئ | اونۀ يئ تاسو | عبادت كونكى | دهغې چې زۀ ئې عبادت كوم |

معبودانو| عبادت اوكړم| دكومو چې تاسو عبادت كوئ |اونه تاسو دهغه چا عبادت كونكى يئ

لَكُمۡ دِيۡنُكُمۡ وَلِىَ دِيۡنِ ۠⑥

ستاسو دپاره | دين ستاسو دي | او زما دپاره | دين زما دي |

|د كوم چې زه عبادت كوم | تاسو دپاره ستاسو طريقه ده او زما دپاره زما طريقه ده

## آسان ترجمه قرآن

ته اووايه چه: اے د حق نه انکار کونکو. زۀ د هغې څيز عبادت نه کوم، د کوم چه تاسو عبادت کوئ. او تاسو د هغه ذات عبادت نه کوئ، د کوم چه زۀ عبادت کوم. او نه زۀ (آئنده) د هغه څيز عبادت کونکې يم، د کوم چه تاسو عبادت کوئ. او نه تاسو د هغې ذات عبادت کونکې يئ، د کوم چه زۀ عبادت کونکې يم. ستاسو دپاره ستاسو دين دې، او زما دپاره زما دين دې.

## خلاصه تفسير

﴿قُلۡ يٰۤاَيُّهَا الۡكٰفِرُوۡنَ ۙ﴾[ته] دي كافرانو ته [ووايه چه اي كافرانو زما اوستاسو طريقه ]يوه نۀ شى كيدي [اونۀ ] خوفى الحال﴿لَاۤ اَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُوۡنَ ۙ﴾ [زۀ ستاسو دمعبودانو عبادت كوم﴿وَلَاۤ اَنۡتُمۡ عٰبِدُوۡنَ مَاۤ اَعۡبُدُ ۚ﴾ اونۀ تاسو زما دمعبود عبادت كوئ ﴿وَلَاۤ اَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدۡتُّمۡ ۙ﴾اونۀ به] په اننده راتلونكي زمانه كښې [زۀ ستاسو دَ معبودانو عبادت وكړم ﴿وَلَاۤ اَنۡتُمۡ عٰبِدُوۡنَ مَاۤ اَعۡبُدُ ؕ﴾ اونۀ به تاسو زما دمعبود عبادت وكړئ ] مطلب داحقر په نيز دا دي چه زۀ موحد يم شرك نۀ شم كولې نۀ اوس اونۀ اننده اوتاسو مشركان يئ موحدان كيدې نۀ شئ نۀ اوس نۀ اننده يعنى توحيد اوشرك نۀ شي جمع كيدې ﴿لَكُمۡ دِيۡنُكُمۡ وَلِىَ دِيۡنِ ۠﴾[تاسو ته به ستاسو بدله ملاويږى اوماته به زما بدله ملاويږى ]په دې كښې ددوى په شرك وعيد هم واورولې شو

## معارف او مسائل

**دَ سورت فضائل اوخواص:** حضرت عائشه صدیقه ﷞ فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي دَ سحر په سنتوکښې دَلوستلو دَپاره دوه سورتونه بهتر دي. سورت کافرون او سورت اخلاص [رواه ابن هشام مظهري] (۱) او په تفسیر ابن کثیر (۲) کښې دَ ډیرو صحابه کرامو نه نقل دي چه هغوی رسول کریم ﷺ دَسحر په سنتوکښې اودمابنام دَ سنتو په سنتو کښې په کثرت سره د دې دواړو سورتونو په لوستلوسره لیدلي دي. بعض صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه مونږ ته څه دعا اوښایئي چه دَ اوده کیدو نه پس ئې لولو. حضورپاك د قل یاایها الکافرون دَ لوستلو تلقین اوکړو اووئې فرمائیل چه دا دَ شرك نه براءت دي. [رواه ترمذي وابوداؤد] (۳) حضرت جبیر بن مطعم ﷛ فرمائي چه رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل آیاته دا غواړې چه کله په سفرځې نوهلته ته دَټولو ملګرونه زیات خوشحال او کامیاب شې اوستاسامان زیات شي. هغه عرض اوکړو یا رسول الله بیشکه زه هم داسې غواړم. حضورپاك اوفرمائیل چه دَ قرآن پاك آخري پنځه سورتونه سورت کافرون، سورت نصر، سورت اخلاص، سورت فلق او سورت ناس لوله او هرسورت په بسم الله سره شروع کوه او هم په بسم الله ئې ختمه وه. حضرت جبیر ﷛ فرمائي چه هغه وخت زما حال دا ووچه په سفرکښې د خپلو نورو ملګرو په مقابله کښې به راسره د سفر توښه کمه وه حالت به مې خراب وو ترکومې نه چه مې دَ رسول الله ﷺ په دې تعلیم باندې عمل شروع کړې زه دَټولونه په بهترحال کښې اوسیږم. [مظهري بحواله ابویعلی] (۴) اودَ حضرت علي ﷛ نه روایت دې یوځل نبي کریم ﷺ ته لړم ټك ورکړو نو حضورپاك مالګه او اوبه راؤغوښتې اودغه اوبه به ئې په ټك وهلې ځائې باندې لګولې او قل یاایها الکافرون قل اعوذبرب الفلق او قل اعوذبرب الناس به ئې لوستلو. [مظهري] (۵)

**شانِ نزول:** دَابن اسحاق روایت دَ ابن عباس ﷠ نه دادې چه ولید بن مغیره اوعاص بن وائل او اسود بن عبدالمطلب او امیه بن خلف رسول الله ﷺ له راغلل او وئې وئیل چه راځئ مونږ په خپل مینځ کښې په دې باندې صلح کوو چه یوکال به تاسو زمونږ دَ بتانو عبادت کوئ او یوکال به مونږ ستا دَ معبود عبادت کوو [قرطبي] (۶) اودَ طبراني روایت دَ حضرت ابن عباس ﷠ نه دادې چه دَمکې کافرانودخپل مینځ دَ مصالحت دَپاره دَ رسول الله ﷺ په وړاندې دا صورت پیش کړو چه مونږ تاته دومره مال درکوو چه په ټوله مکه کښې به تاسو دَ ټولو نه زیات مالدارشئ اوکومې ښځې سره چه تاسو غواړئ نکاح اوکړئ. تاسو صرف دومره اوکړئ چه زمونږ

---

(۱) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۵۵]

(۲) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۰۶] و صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین وقصرها، باب استحباب رکعتی سنة الفجر[ج:۱ص:۲۵۰]

(۳) جامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب منه فصل ماجاء فی فیمن یقرأ القرآن عند المنام [ج:۲ ص:۱۷۷] و سنن ابوداود، کتاب الأدب، باب مایقال عند النوم .

(۴) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۵۵] ومسند ابی الموصلی رقم الحدیث:[۷۲۵۳] حدیث جبیر بن مطعم عن النبی ﷺ و مجمع الزوائد کتاب الأذکار باب ما تحصیل به البرکة فی الزاد رقم الحدیث :[۱۷۱۱۲]

(۵) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۵۵]

(۶) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ ج:۲۰ص۲۲۷]

معبودانو ته بد مه وایئ او که چرې تاسو دا هم نه منئ نو داسې اوکړئ چه یو کال به مونږ ستاد معبود عبادت کوو او بیا یو کال تاسو زمونږ د معبودانو عبادت کوئ. [مظهری] ([1])
او د ابوصالح روایت د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه دادې چه د مکې کافرانو د خپل مینځ مصالحت د پاره دا صورت پیش کړو چې تاسو زمونږ بتانو کښې بعضو ته صرف لاس اولګوئ نو مونږ به ستاسو تصدیق اوکړو. په دې باندې جبرائیل علیه السلام سورت کافرون راوړو نازل شو په کوم کښې چه د کافرانو د اعمالونه براءت او خالص د الله تعالی د عبادت حکم دې.
په شان نزول کښې چه مختلف واقعات بیان شو په هغې کښې هیڅ تضاد نشته. کیدې شی چه دا ټول واقعات پیښ شوې وی او د دغه ټولو په جواب کښې دا سورت نازل شوې وی د کوم حاصل چه د داسې مصالحت نه منع کیدل دی.
﴿لَآ أَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُونَ﴾ په دې سورت کښې د یوڅو کلمات مکرر راغلی دی د دې تکرار د لرې کولو د پاره یو تفسیر خو هغه دې کوم چه بخاری شریف د ډیرو مفسرینو نه نقل کړې دې چه دوه کلمې د زمانه حال د پاره او په دویم ځل د زمانه مستقبل د پاره راغلی دی په دې وجه هیڅ تکرار نشته دې. مطلب دا چه نه خو بالفعل داسې کیږی چه زه ستاسو د معبودانو عبادت اوکړم او تاسو زما د معبود عبادت اوکړئ او نه راتلونکی وخت کښې داسې کیدې شی چه زه په خپل توحید او تاسو په خپل شرك باندې قائم پاتې کیدو سره د یوبل د معبودانو عبادت اوکړو. هم دا تفسیر حکیم الامت تهانوی رحمه الله په تفسیر بیان القرآن ([2]) کښې اختیار کړې دې کوم چه پورته په خلاصه د تفسیر کښې راغلې دې. مګر د بخاری شریف په تفسیر کښې ﴿لَكُمۡ دِينُكُمۡ وَلِيَ دِينِ﴾ تفسیر دین په معنی د مذهب اسلام او کفر سره کړې دې او مطلب ئې دا ګرځولې دې چه د مصالحت مجوزه صورت قابل قبول نه دې زه خو هم په خپل دین باندې قائم یم او تاسو هم په خپل دین باندې کلك یئ تاسو پوهه شئ د دې انجام به هم تاسو زغمئ او په بیان القرآن کښې دین په معنی د جزاء ګرځولې شوې دې.
دویم تفسیر هغه دې کوم چه ابن کثیر اختیار کړې دې چه حرف مَا د عربو په لغت کښې لکه اسم موصول د ،،الذی،، په معنی کښې راځی. هم دغه شان کله د مصدری معنی د پاره هم استعمالیږی چه هغه په کوم فعل باندې داخل شی هغه په معنی د مصدر کوی. په دې صورت کښې په اول ځائې کښې حرف مَا د اسم موصول الذی په معنی کښې دې او په دویم ځائې کښې مَا مصدریه دې. د دې تشریح داده چه اولنې جمله ﴿لَآ أَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُونَ ۝ وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ﴾ معنی دا شوه چه د کومو معبودانو تاسو عبادت کوئ زه د هغې عبادت نه کوم او د کوم معبود چه زه عبادت کوم د هغه عبادت تاسو نه کوئ. او دویمه جمله ﴿وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٞ مَّا عَبَدتُّمۡ ۝ وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ﴾ کښې حرف مَا مصدریه ده او معنی داده لا انا عابدٌ عبادتکم ولا انتم عابدون عبادتی، یعنی زمونږ او ستاسو د عبادتونو طریقې جدا جدا دی زه ستاسو په شان عبادت نه شم کولې او تاسو چه ترکومې ایمان رانوړنی نو زما په شان عبادت نه شئ کولې. دغه شان په اوله جمله کښې د معبودانو اختلاف اوخودلې شو او دویمه جمله کښې د عبادت د طور طریقې اختلاف ښکاره کړې شو. حاصل دا شو چه نه ستاسو او زمونږ معبودانو کښې اشتراك دې نه د عبادت په طریقه

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳٥٤]و المعجم الصغیر للطبراني رقم الحدیث:[۷٥۲]
[2]) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج:۱۲ ص:۱۲۲]

کښې، دغه شان تکرار لرې شو اوډ عبادت طريقه د رسول الله ﷺ او مسلمانانو هغه ده چه حضور پاك ته دالله تعالى د طرف نه دوحې په ذريعه خودلې شوې اوډ مشركانو طريقې دخان نه دى.

ابن كثير رحمه الله دا تفسير راجح ګرځولوسره فرمائيلى دى چه د اسلام كلمه لااله الاالله محمدرسول الله نه هم دغه مفهوم راوتلې دې چه د الله تعالى نه بغيربل هيڅوك معبود نشته دې اوډ عبادت طريقه هم هغه معتبره ده چه د محمدرسول الله ﷺ په واسطه مونږ ته رارسيدلې ده. او د ﴿لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ﴾ تفسير كښې ابن كثير رحمه الله فرمائيلى چه داجمله داسې ده لكه بل ځائى قرآن كريم كښې ارشاد دى ﴿فَإِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ لِّيْ عَمَلِيْ وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ﴾(۱) او بل ځائى دى ﴿لَنَآ أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ﴾(۲) ددې حاصل دادې چه لفظ دين ابن كثير رحمه الله هم داعمال دين په معنى كښې اخستې دې اوپيابه مقصود ددې نه هم هغه وى كوم چه بيان القرآن كښې بيان كړې شوې چه هريوته به دخپل خپل عمل جزاء او سزاء پخپله زغمل وى.

او بعض مفسرينو يودريم تفسيرداختيار كړې دې چه حرف مَا په دواړو ځايونو كښې هم موصوله ده اوډ حال اواستقبال هم فرق نشته دې بلكه دا دواړه جملې فى المواقع مكرر راوړلې شوى دى مګر هر تكرار خراب نه وى. په ډيرو ځايونو كښې تكرارد تقاضاء د بلاغت دپاره وى لكه ﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ۝ إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾(۳) كښې چه دې. دلته ددې تكرار مقصد دمضمون تاكيدهم دې اوداهم چه دكافرانوډ طرف نه چونكه د داسې مصالحت پيش كش ډير ځل اوكړې شو نو په متعدد جملوسره هغه رد كړې شو. [نقله ابن جرير، ابن كثير](۴)

**كافرانوسره د صلح بعض صورتونه جائزدي بعض ناجائز:** په سورت كافرون كښې د كافرانوډ طرف نه پيش كړې شوى مصالحت يوڅو صورتونه بالكليه ردكولو سره د براءت اعلان اوكړې شو. مګر پخپله په قرآن كريم كښې دا ارشاد هم موجود دې ﴿وَإِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا﴾ يعنى كافران كه د صلح طرف ته ښكته شي نو ته هم ورښكته شه [يعنى د صلح معاهده اوكړئې] اومدينې طيبې ته چه كله حضور پاك تشريف يوړو نوډ مدينې يهوديانوسره دحضور پاك معاهده صلح مشهور اومعروف ده په دې وجه بعض مفسرينو سورت كافرون ته منسوخ اووئيل اوډ منسوخ كيدو لويه وجه د قرآن كريم آيت ﴿لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ﴾ ګرځولې شوې ده ځكه چه په ظاهره دا احكام د جهاد منافى دى مګر صحيح داده چه دلته د ﴿لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ﴾ مطلب دانه دې چه كافرانوته دكفر اجازت يا په كفرباندې هم هغه شان پاتې كيدلو ضمانت وركړې شو بلكه ددې حاصل هم هغه دې كوم چه د ﴿لَنَآ أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ﴾ دې د كوم مطلب چه دادې ځنګه چه كوې هم هغه شان به در پيښيږى. په دې وجه راجح اوصحيح د جمهورو په نيز دادى چه دا سورت منسوخ نه دې. د كوم قسم مصالحت چه د سورت كافرون د نزول سبب جوړ شو هغه لكه چه هغه وخت حرام وو نو نن هم حرام دې اوډ كوم صورت اجازت چه په مذكوره آيت كښې راغلې دې اوډ رسول الله ﷺ د يهودو سره معاهدې نه عملاً ظاهرشوې دې هغه لكه ځنګه چه هغه وخت جائز وو دې وخت كښې هم

---

(۱) ترجمه :- ته ورته اووايه چې ما څه كړى دى دهغې (بدله) به ما ته ملاويږى او چې تاسو څه كړى دى دهغې (بدله) به تاسو ته ملاويږى.

(۲) ترجمه :- زمونږ عملونه زمونږ دپاره اوستاسو عملونه ستاسو دپاره .

(۳) ترجمه :-بيشكه موجوده مشكلاتو سره آسانى ده. بيشكه موجوده مشكلاتو سره آسانى ده.

(۴) تفسير ابن كثير[ج:۸ص:۵۰۷، ۵۰۸]

جائز دی خبره صرف د موقع او محل پیژندل او د صلح شرائطو ته د کتلو ده دکوم فیصله چه پخپله رسول الله ﷺ په یوحدیث کښې فرمائیلې ده په کوم کښې چه کافرانو سره معاهده جائز گرځولو سره د یوې استثناء ارشاد دې هغه دادې [الاصلحا احل حراما اوحرم حلالاً] یعني هره صلح جائز ده بغیر د هغه صلحې نه د کوم په رنړا کښې چه د الله تعالی حرام کړې شوې یوڅیز حلال یا حلال کړې شوې څیز حرام گرځولې شوې وی.

اوس غور اوکړئی چه د مکې کافرانو د صلح چه کوم صورتونه وړاندې کړې وو په هغه ټولو کښې کم از کم د کفر او اسلام په حدود کښې یقیني التباس دې او بعض صورتونو کښې خو د اسلام د اصولو خلاف د شرك ارتكاب لازم راځي. د داسې صلح نه سورت كافرون د براءت اعلان اوكړو او په دويم ځائي کښې چه کومه صلح جائز اوگرځولې شوه او د یهودو سره معاهده د هغې عملي صورت معلوم شو. په دې کښې هیڅ یوڅیز داسې نشته په کوم کښې چه د اسلام د حدود څخه خلاف کړې شوې وی یا د کفر او اسلام حدود خپل مینځ کښې گډوډ شوې وی. د اسلام نه زیات هیڅ یومذهب د رواداریئ حسن سلوك صلح اوسالمیت داعي نه دې مگر صلح په خپل انساني حقوقو کښې کیږي. د الله تعالی په قانون او د دین په اصولو کښې د صلح اومصالحت هیڅ گنجائش نشته. والله اعلم.

| آیاتونه | سورة النصر مكية وهي ثلث ايات وركوعا واحدا | رکوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ③ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ① |

إِذَا جَآءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ ① وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ

کله چې | راغي | امداد دالله | او فتح | اواووینې ته | خلق | چې داخليږی | په دین دالله کښی

څه وخت چې دالله تعالی مدد راغلو [او (مکه) فتح شوه] اوتا اولیدل چې خلق دالله تعالی

أَفْوَاجًا ② فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ

ډلې ډلې | نو تسبیح وایه | سره د ثنا | درب خپل | او بخښنه غواړه دهغه نه | بیشکه هغه |

په دین کښې ډلې ډلې داخليږی | نو دخپل رب تسبیح اوحمد وایه | اودهغه نه بخښنه غواړه | بیشکه

كَانَ تَوَّابًا ③

دې ډیر توبه قبلونکې |

هغه توبه قبلونکې دې

### آسان ترجمه قرآن

چه کله د الله تعالی مدد او فتح راشي او ته خلقو لره وینې، چه هغوی ډلې ډلې داخليږی د الله تعالی په دین کښې. نو د خپل پروردگار حمد سره سره د هغه تسبیح کوه. او د هغه نه بخښنه غواړه یقین اوکړه. هغه ډیر زیات معاف کونکې دې.

## خلاصه تفسير

اي محمد ﷺ ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ﴾ [هر كله چه دخدائي مدد او] دمكې [فتح] سره دخپلو اثارو [راشي] په دې فتح مرتب كيدونكي اثار دادي چه ﴿وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا﴾ [ته خلقو لره دالله تعالى په دين] اسلام [كښې ډلې ډلې داخليدونكي وويني نو] دغه وخت پوهه شه چه مقصود په دنياكښې دپاتې كيدواوستا دبعثت چه كوم تكميل ددين وو هغه پوره شو اواوس داخرت سفر نزدې دې دهغې دپاره تياري كوه او ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا﴾ [دخپل رب تسبيح اوثناوايه اودهغه نه دمغفرت درخواست كوه] يعني داسې كارونه كوم چه خلاف اولى واقع شوي دي دهغې نه مغفرت غواړه [هغه لوئي توبه قبلوونكې دې]

## معارف او مسائل

دا سورت په اجماع سره مدني دې ، ددې نوم سورة توديع هم دې . د توديع معنى د چا رخصتول دي . دې سورت كښې هر كله چې د نبى كريم ﷺ د وفات قريب كيدلو ته اشاره ده خكه ورته سورة التوديع وئيلې شي .

**د قرآن پاك آخري سورت اوآخري آيتونه** :: صحيح مسلم كښې د ابن عباس ؓ نه منقول دي چې سورة نصر د قرآن كريم آخري سورت دې . [قرطبى] [۱]. مطلب دادې چې د دې نه پس څه مكمل سورت نه دې نازل شوې . څينې روايتونو كښې راغلي دي چې څينې آيتونه ددې نه پس هم نازل شوي دي . هغه دې سره بې سمونه نه دي ، د ټولو نه اول نازليدونكې سورت سورة فاتحه څكه بللې شي چې مكمل نازليدونكې رومبى سورت دادې . د سورة اقرء او سورة مدثر وغيره سورتونو د څو آيتونو ددې نه وړاندې نازليدل دې سره بې سمونه نه دي .

ابن عمر ؓ اوفرمائيل چې داسورت په حجة الوداع كښې نازل شوې دې ، دې نه پس ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ [۲] نازل شوې دې . ددې دواړو د نازليدو نه پس نبى كريم ﷺ په دې دنيا كښې صرف اتيا ورځې پاتې شو بيا وفات شو ، دې دواړو نه ديرش ورځې پس د كلاله آيت مبارك نازل شو . د هغې نه پس پنځوس ورځې د نبى كريم ﷺ دعمر مبارك پاتې شوې .

دې نه پس ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ﴾ [۳] چې نازل شو نو د نبى كريم ﷺ په عمر مبارك كښې پنځه ديرش ورځې پاتې وې ، دې نه پس كله چې ﴿وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ﴾ [۴] نازل شو نو دې نه پس نبى كريم ﷺ صرف يوويشت ورځې ژوندى وو ، اود مقاتل د روايت مطابق صرف اووه ورځې پس ترې وفات شو . [قرطبى] [۵].

دې باندې د ټولو اتفاق دې چې په ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ﴾ كښې د فتح نه مراد د مكې فتح ده البته په دې كښې اختلاف دې چې دا سورت د فتح مكه نه وړاندې نازل شوې دې يا روسته؟ د

---

[۱]) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۲۹]
[۲]) ترجمه :- نن ورځ ما ستاسو دپاره ستاسو دين مكمل كړو.
[۳]) ترجمه :- تاسو ته يو داسې پيغمبر راغلې دې چې هغه هم ستاسو دجنس نه دې او په هغه باندې ستاسو د مضرت خبره بنه نه لګي.
[۴]) ترجمه :- او دهغه ورځې نه ويريږئ چې په هغې كښې تاسو دالله تعالى په وړاندې پيش كولې شئ.
[۵]) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۳۳]

لفظ اذاجاء نه په ظاهره مخکښې د فتح نه نازلیدل معلومیږي او په روح المعاني کښې ئې دبحر محیط نه یو روایت هم ددې موافق نقل کړې دې چې په کښې ددې سورت نازلیدل د خیبر دغزا نه د راواپس کیدو په وخت نقل کړې شوې دې او دا معلومه خبره ده چې د خیبر غزا د مکې مکرمې د فتح نه وړاندې ده. اوپه روح المعاني کښې په سند د عبد بن حمید د قتاده ؒ دا قول نقل کړلې شوې دې چې نبی کریم ﷺ ددې سورت د نازلیدو نه پس دوه کاله حیات وو. ددې حاصل هم دادې چې دا سورت د فتح مکه نه وړاندې نازل شوې وو. ځکه چې مکه مکرمه فتح شوه نو هغې نه پس نبی کریم ﷺ دوه کالو نه کم حیات پاتې شوی وو. نو مکه مکرمه د رمضان شریف په اتمه هجرئی کښې فتح شوه او وفات د نبی کریم ﷺ په ربیع الاول کال یولسمه هجرئی کښې اوشو او په کومو روایتونو کښې چې ددې نازلیدل په فتح مکه یا په حجة الوداع کښې بیان شوی دی نو د هغې مطلب دا کیدیشی چې په دې موقع به رسول الله ﷺ دا سورت لوستلې وی چې دخلقو په خیال کښې به ددې نازلید په دغه کښې راغلی وی، بیان القران[1] کښې ددې زیات تحقیق بیان شوې دې.

ګڼرو مرفوعو احادیثو کښې او د صحابه کرامو ؓ په اثارو کښې دی چې په دې سورت کښې د نبی کریم ﷺ د وفات د وخت نزدې راتلو ته اشاره ده چې ستاسو ﷺ د پیغمبرئی اوپه دنیا کښې دپاتې کیدو کار پوره شو اوس په تسبیح او استغفار کښې لګیا شئ

دمقاتل په روایت کښې دی چې کله دا سورت نازل شو نو نبی کریم ﷺ دصحابه کرامو ؓ د جمع په وړاندې تلاوت کړو چې په کښې ابوبکر ؓ، عمر فاروق ؓ او سعد بن ابی وقاص ؓ وغیره موجود وو، ټول ددې په آوریدو خوشحاله شو چې په دې کښې د فتح مکه زیرې دې. مګر عباس ؓ په ژړا شو. نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو چې ولې ژاړې. عباس ؓ عرض اوکړو چې په دې کښې ستاسو ﷺ د وفات کیدو خبر پټ پروت دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې رښتیا دی. صحیح بخاری کښې د ابن عباس ؓ نه هم دا مضمون روایت شوې دې. او په دې کښې دا هم دی چې کله دا ابن عمر واؤریدل نو وې فرمائیل چې ددې سورت دمفهوم نه زه هم دغسې پوهیږم. [ترمذی روایت کړو او ورته ئې حسن صحیح حدیث وئیلی دی. قرطبی][2].

﴿وَرَأَيْتَ النَّاسَ﴾ د مکې دفتح نه وړاندې ډیر ګڼر شمیر داسې خلق هم وو چې د نبی کریم ﷺ په پیغمبرئی اودا اسلام په حقانیت باندې ئې تقریبا یقین شوې وو مګر په اسلام کښې دداخلیدو نه تر اوسه پورې د قریشو دمخالفت د ویرې یا د څه پریشانئ او تذبذب د وجې نه ایسار شوی وو. د مکې فتح دغه حصاریدل او بندیزونه لرې کړل نو په ډلو ډلو دا خلق په اسلام کښې داخلیدل شروع شو. د یمن نه اوه سوه کسان مسلمانان شوی راؤرسیدل. په لاره کښې به ئې آذانونه کول او قرآن به ئې لوستلو په دغسې حال کښې راؤرسیدل اوپه دغې شان عام عرب ډلې په ډلې په اسلام کښې داخل شو.

---

[1]) تفسیر بیان القرآن [ج:۱۲ ص:۱۲۲، ۱۲۳]

[2]) تفسیر القرطبي [ج:۲۰ص:۲۳۲] و صحیح البخاري کتاب التفسیر، سورة النصر [ج:۲ص:۷۴۲] و جامع الترمذي، ابواب التفسیر باب تفسیر سورة الفتح [ج:۲ ص:۱۷۴]

**کله چې مرګ نږدې راتلل محسوس شي نو د تسبيح او استغفار ډېر ډېر ويل پکار دي ::** ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ﴾ عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائيلي دي چې ددې سورت دنازليدو نه پس به چې کله به هم نبي کريم ﷺ څه مونځ کولو نو دا دعا به ئې کوله چې:

سبحانك ربنا وبحمدك اللهم اغفرلي [بخاري]([1])

ام سلمه رضي الله عنها فرمائي چې ددې سورت د نازليدو نه پس د ناستې پاستې تلوراتلو په هر وخت کښې به ئې دا دعا لوستله چې: سبحان الله وبحمده استغفر الله واتوب اليه

اوفرمائيل به ئې چې ماته ددې حکم شوېدې. او په دې دليل کښې به ئې ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ﴾ تلاوت کولو([2]).

د ابي هريره رضي الله عنه د روايت مطابق ددې سورت دنازليدو نه پس به رسول الله ﷺ په عبادت کښې زياته خوارې کوله پښې مبارکې به ئې پړسيدلې. [قرطبي]([3]).

تمت سورة النصر بحمدالله تعالى

| آياتونه | سورة اللهب، مكية وهي خمس ايات وركوعا واحدا | رکوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ⑤ | شروع کوم په نوم د الله چه ډېر مهربان زيات رحم کونکې دې | ① |

تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ ① مَا أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُ وَمَا

مات شوه دواړه لاسونه | دابولهب | او هلاك شو هغه | هيڅ پكار رانغې دهغه | مال دهغه | او هغه څه

دابولهب لاسونه دې مات شي | اوهغه دې برباد شي | دهغه مال اودهغه ګټه دهغه هيڅ په

كَسَبَ ② سَيَصْلَىٰ نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ③ وَامْرَأَتُهُ

| چې ګټلې ووهغه | ډېر زر به ننوځي هغه | اور ته | چې لمبو والا به وي | او ښځه دهغه هم |

كار رانغله | ......زر به هغه شغله وهونكې اور ته ورا وغورزيږي | ............... او دده ښځه هم

حَمَّالَةَ الْحَطَبِ ④ فِي جِيدِهَا حَبْلٌ مِّن مَّسَدٍ ⑤

راوړونکې دلرګو | په څټ دهغې كښې به وي | رسۍ | د مونجو [د اُور] |

چې خشاک ئې اوچت کړې ګرځي | او د هغې په څټ کښې د مونجو [د اُور] رسۍ ده

**آسان ترجمه قرآن**

برباد دې شي لاسونه د ابولهب، او دې خپله برباد شوې دې د ده دولت او هغه چه څه ئې ګټلې وو، هغه دده هيڅ پکار رانغلل. زر ده چه داخل به شي اور شغلو والا ته او دده ښځه هم چه بارونکې د لرګو ده په څټ د هغې کښې د کجهورو د پڼو رسۍ ده.

---

[1]) صحيح البخاري كتاب التفسير، سورة النصر [ج:۲ص:۷۴۲]

[2]) صحيح مسلم كتاب الصلاة، باب مايقال فى الركوع و السجود [ج:۱ص:۱۹۱]

[3]) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۲۳۲]

**خلاصه تفسیر**

﴿تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ [دابو لهب لاس دې مات شي اوهغه دې برباد شي ﴿مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُۥ وَمَا كَسَبَ﴾ نه دهغه مال دهغهٔ په کار راغې اونهٔ دهغهٔ گټه ] دمال نه مراد اصل سرمايه اودگټې نه مراد دهغې نفع ده مطلب دادې چه هيڅ سامان به هغهٔ لره دهلاکت نه بچ نهٔ کړي دا حالت خو دهغهٔ په دنيا کښې شو اوپه اخرت کښې ﴿سَيَصْلَىٰ نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ﴾ [هغه به ډيرزر] يعنې دمرگ سره[شغلې وهونکې اور ته داخل شي﴿وَامْرَأَتُهُۥ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ﴾ هغه هم اوهغهٔ ښځه هم کومه چه خشاك راوړي ] مراد ترې نه غنې [خوزان] دی کومې چې به نې دنبی کریم ﷺ په لاره کښې خوروَلې چه دوی ﷺ تـه تکليف ورسي اوچه دوزخ تـه لاړ شـی نـو ﴿فِي جِيدِهَا حَبْلٌ مِّن مَّسَدٍ﴾ [ددې په غاړه کښې به ] ددوزخ زنځير اوطوق وی چه گويا هغه به [يوه رسۍ وی ښهٔ تاوکړې شوې ] تشبيه په شدت اومحکموالی کښې ده]

**معارف او مسائل**

د ابی لهب اصلی نوم عبدالعزی وو ، دې د عبد المطلب په اولاد کښې وو ، رنگ ئې سور وو ، ځکه دَ ده کنيت په ابی لهب سره مشهور شو. قرآن کريم ددهٔ اصلی نوم ځکه ياد نکړو چې هغه هم مشرکانه وو ، د ا بی لهب په کنيت کښې ئې لهب يعنې د جهنم سره يوقسم مناسبت وو ، داسړي د نبی کريم ﷺ سخت دښمن او د اسلام سخت مخالف وو. نبی کريم ﷺ تـه به ئې سخت نقصانونه ورکول ، کله به چې نبی کريم ﷺ خلق ايمان ته رابلل نو دې به ورپسې لگيدلې وو. اود نبی کريم ﷺ دروغژنی به ئې کوله [ ابن کثير ][1].

**شان نزول** :: صحيحين کښې راغلی دی چې کله په نبی کريم ﷺ باندې ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾[2] آيت مبارک نازل شو نو نبی کريم ﷺ د صفا په غونډئی اوختلو اود قريش قبيلې خلقو ته ئې آواز اوکړو ، په څينې روايتونو کښې راغلی دی چې [ يأصباحاه ] آواز ئې اوکړو. ټول قريش راجمع شو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې که زه تاسو ته دا خبره اوکړم چې دښمن درباندې راختلې دې او پدې صبا ماښام کښې درباندې حمله کوونکې دې ، آيا تاسو خلق به زما تصديق کوئی ؟ ټولو په يوه خله اووئيل چې آؤ ، ضرور به کوؤ. بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې زه تاسو لره ويروم د يو سخت عذاب نه. ددې په آوريدو ابو لهب اووئيل چې [تبالك الهذا اجمعتنا] تباه شې دې دپاره دې مونږ راجمع کړي وو؟. او د نبی کريم ﷺ ويشتلو دپاره ئې يو کاڼړی راپورته کړو، ځکه دا سورت نازل شو[3].

﴿تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ د ﴿يَدَ﴾ اصلی معنی لاس ده ، دانسان په ټولو کارونو کښې لوئې دخل دلاسونو وی ځکه د چا د ذات او نفس نه په ﴿يَدَ﴾ سره تعبير کولې شی لکه قرآن پاک فرمائی چې : ﴿بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ﴾[1].

---

[1]) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص۵۱۴

[2]) اوتاسو خپل نزدې خاندان اوويروه.

[3]) صحيح البخاري کتاب التفسير ، تفسير سورة لهب[ج:۲ص:۴۴۳] و صحيح مسلم کتاب الإيمان ، باب بيان من مات على الكفر...... إلخ [ج:۱ص:۱۱۴]

[1]) ترجمه :- دا ستاسو د لاس کړي شوؤ عملونو بدله ده.

او بیهقی د ابن عباس ﷠ نه روایت کړی دي چې ابو لهب یو ورځ خلقوته اووئیل چې محمد ﷺ وائي چې د مړ کیدو نه پس فلانکی فلانکی کارونه وی ، بیا ئې خپلو لاسونو ته په اشاره کولو سره اووئیل چې په دې لاسونو کښې ددغې څیزونو څخه هیڅ هم رانغلل ، بیا ئې خپلو لاسونو ته په خطاب کولو سره اووئیل چې : [تبالکماماارى فيكماشيئاماقال محمد]

یعنی تاسو تباه شئ زه په تاسو کښې دهغه څیزونو هیڅ نه وینم د کومو د کیدو خبر چې محمد ﷺ ورکوی ، په دې مناسبت سره قرآن کریم هلاکت لره لاسونو طرفته منسوب کړو(۱).

﴿تَبَّ﴾ د تباب نه مشتق دې ، معنی ئې داده چې هلاک او برباد دې وی .

په دې آیت کښې رومبئ جمله :

﴿تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ د خیرې په ډول ده ، چې ابو لهب دې هلاک شی او دویمه جمله :

﴿تَبَّ﴾ جمله خبریه ده . ګویا چې دخیرې اثر ئې هم اوخودلو چې خیره پرې اولګیده هلاک شو . او د خیرې جمله ئې دمسلمانانو دغصې ختمولو دپاره اوفرمائیله ، ولې چې کله ابو لهب د نبی کریم ﷺ پشان کښې تَبًّا اووئیل ، نو دمسلمانانو د زړه خواهش دا وو چې نبی کریم ﷺ دې ده ته هم خیرې اوکړي . څکه الله ﷻ د نبی کریم ﷺ د زړه خبره پخپله اوفرمائیله او ورسره ئې دا خبرهم ورکړو چې دغه خیره پرې اولګیده او هغه هلاک شو . قرآن کریم چې دهغه دهلاکت او بربادئی خبر چې رومبې ئې ورکړې وو ، د هغې اثر دا شو چې دبدر دواقعې نه پس پرې د طاعون رسولئی [دانه] راؤوته چې عرب ورته عدسه وائې . نورو ته دمرض لګیدو دوویرې نه تولو کور والو هغه بیل واچولو تر دې چې دغې بې آسرې حالت کښې مړ شو او درې ورځو پورې دهغه کالبوت [جسد] همدغسې پروت وو ، چې بد بویه شو نو په مزدورانو ئې پورته کړو او په زمکه ئې وراومندلو ، هغه دپاره ئې یوه کنده اوکنستله په یو لرګی سره ئې پورته کړو او په هغې کښې ئې واچولو او دپاسه پرې کانړي ورواچول [ بیان القرآن د روح البیان په حواله ](۲).

د ﴿مَا كَسَبَ﴾ معنی داده چې څه ده اوګټل ، دې نه مراد د تجارت هغه نفع وغیره هم کیدیشی چې د مال په ذریعه حاصلولې شی لکه چې د تفسیر په خلاصه کښې وئیلې شوی دی . او اولاد ترې هم مراد کیدیشی ، ولې چې دا هم د انسان ګټه بللې شی . عائشه ﷼ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې [ان اطيب مااكل الرجل من كسبه وان ولده من كسبه] یعنی کوم خوراک چې انسان کوی د هغې نه ټولو نه زیات پاک او حلال هغه څیز دې چې انسان ئې د خپلې ګټې نه حاصل کړی . او دانسان اولاد هم دهغه په کسب کښې داخل دی . یعنی د اولاد ګټه هم ګویا کښې خپله ګټه خوړل دی . [ قرطبی ](۳).

څکه عائشه صدیقه ﷼ ، مجاهد ﷫ ، عطاء ﷫ ، ابن سیرین ﷫ وغیره دلته د ﴿مَا كَسَبَ﴾ تفسیر په اولاد سره کړې دې . ابو لهب ته الله ﷻ مال هم ډیر ورکړې ووا و اولاد ئې هم ، هم دغه دواړه څیزونه دناشکرئی په وجه دهغه د فخر غرورا و وبال سبب جوړ شو . ابن عباس ﷠

---

(۱) تفسير روح المعاني [ج:۲۳ ص:۱۶۸] بحواله دلائل النبوة للبيهقى

(۲) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ ص:۱۲۳ ، ۱۲٤] و تفسير روح المعاني [ج:۲۳ ص:۱۷۲]

(۳) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۳۸] و سنن النسائى كتاب البيوع باب الحث على الكسب [ج:۲ ص:۲۱۰]

اوفرمائیل چې کله نبی کریم ﷺ خپل قوم لره دعذاب نه اوویرول نو ابو لهب دا هم وئیلی وو چې زما ورارهٔ چې څه وائی که دا حق شو نوزما مال اولاد ډیر دي دهغې په ورکولو به زه خپل ځان بچ کړم ، په دې باندې دا آیت مبارک نازل شو چې : ﴿مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُۥ وَمَا كَسَبَ﴾ یعنی کله چې هغه لره د الله ﷻ عذاب راؤنیولو نونه ئې مال په کار راغلو او نه ئې اولاد . داحال خو ئې په دنیا کښې شوورپسې دآخرت ذکر دې .

﴿سَيَصْلَىٰ نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ﴾ یعنی قیامت نه پس یاد مړکیدو نه زر تر زره پس هم په قبر کښې به هغه لمبې وهونکې، اور کښې داخلیږی ، او ورسره ددهٔ د نوم په مناسبت سره د ﴿ذَاتَ لَهَبٍ﴾ صفت کښې خاص بلاغت دې .

﴿وَٱمْرَأَتُهُۥ حَمَّالَةَ ٱلْحَطَبِ﴾ څنګه چې د ابو لهب نبی کریم ﷺ سره دشمنی او سخته غصه وه دغسې دشمنی او قهر ئې د ښځې هم وه چې نبی کریم ﷺ ته به ئې په ژبه ورکولو کښې دهغه مدد کولو. دا د ابی سفیان خور بنت حرب بن امیه وه چې په ام جمیل کنیت سره مشهوره وه . د قرآن کریم دې آیت ا وخودل چې دا بدبختـه ښځـه بـه هم خپـل خاوند سره دجهنم اور تـه ورځی دې سره ئې ددې حال دا هم اوخودلو چې هغه ﴿حَمَّالَةَ ٱلْحَطَبِ﴾ ده چې معنی ئې د خشاک لرګی په ځان باروونکې ده، یعنی اور لګوؤنکې د عربو په محاوره کښې به چغلخور تـه ﴿حَمَّالَ ٱلْحَطَبِ﴾ وئیلې شو. یعنی د چغلخور عمل هم لکه د هغه چادې چې د خشاک لرګی راؤړی او اور پرې بلوی چغلخور هم د چغلخورئی په ذریعه د خلقو ترمینځه د فتنې فساد او ورانئ اور پرې بلوی ، نو دغې ښځې به د نبی کریم ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ د زیـان رسولو دپاره د چغلخورئی نه کار هم اغستلو. څنګه چې ابن عباس ﷺ ، مجاهد ﷺ ، او عکرمـه ﷺ وغیـره د مفسرینو یـوې ډلـې د ﴿حَمَّالَةَ ٱلْحَطَبِ﴾ هم دا ترجمـه کـړې ده چـې دا چغلخوری کـونکې وه. او ابـن زیـد ﷺ ، ضحاک ﷺ وغیـره مفسرینو ددې حقیقی معنی داسې اخستې ده چې دې ښځې بـه د ځنګل نـه ازغـن لرګی راؤړل اود نبـی کـریم ﷺ پـه لار کښې به ئې دتکلیف ورکولو دپاره ایخودل . [ قرطبی ، ابن کثیر ][1].

اوځینې حضراتو فرمائیلې دی ددې دا حال به په جهنم کښې وی چه په خپـل خاوند باندې به د جهنم د ونې زقوم وغیره لرګی راجمع کوی او په هغه اورکوم کښې چه ئی خاوند پروت وی په هغې کښې بـه ئـې اچوی. د هغې پـه مرئـې کښـې بـه د اور رسـئې وی اود دوزخ خشـاک بـه راغونډوی. او پدې به اور ښه تیزوی ،څنګه چې به دې په دنیا کښې د کفر او ظلم زیاتولو انتظام کولو په آخرت کښې به د هغه دا عذاب زیاتوی .[ ابن کثیر][2].

**چغلخوری سخته ګناه کبیره ده:** صحیح حدیث پاک کښې دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیـل چې چغلخور به جنت کښې نه داخلیږی[3] . او فضیل بن عیاض ﷺ اوفرمائیـل چې درې عملونـه داسې دی چې د انسان ټول نیک عملونـه بربادوی ، د روژه دار روژه ، او د اودس کـونکې اودس خرابوی ، یعنی غیبت چغلخوری او دروغ. عطاء بن سائب ﷺ فرمائیلی دی چې ما

[1]) تفسیر القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۳۹] و تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۱۵ ، ۵۱۶]
[2]) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص:۵۱۵ ]
[3]) صحیح البخاري کتاب الأدب ،باب مایکره من النمیمة رقم الحدیث [۵۵۹۶]

شعبي رحمه الله ته د نبي كريم ﷺ ددې حديث پاك ذكر اوكړو چې په كښې نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چې: [لايدخل الجنة سافك دم ولا مشاء بنميم ولا تاجر يربي]
درې قسمه خلق به جنت كښې نه داخليږي. په ناحقه وينه بهيونكې، چغلخوري كوونكې او هغه سوداګر چې د سود كار كوي.
عطاء رحمه الله وائي چې ما دا حديث پاك شعبي رحمه الله ته بيان كړو او په تعجب مې ترې تپوس اوكړو چې په حديث كښې چغلخورئي د قاتل او سود خور سره برابر بيان كړې دې. هغوئ رحمه الله اوفرمائيل چې آؤ چغلخوري خو داسې څيز دې چې ددې په وجه د ناحق قتل او د مالونو د غصب نوبت راځي. [قرطبي] ([1]).
﴿فِيْ جِيْدِهَا حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ﴾، ﴿مَسَدٌ﴾ په سكون د سين سره مصدر دې چې معنې ئې رسئ يا پړې غښتل دي يا ددې په تار باندې تارخيژولو سره ئې مضبوطول دي. او د مَسَد د ميم او سين په زور سره هغه رسئ يا مزئ ته وئيلې شي چې مضبوط كړې شوي وي خواه كه د هر څيز وي، د كهجورې يا كوپرې د ونې وغيره نه وي يا د اوسپنې د تارونو هرقسم مضبوطه رسئ چې وي هغه دې كښې داخله ده [كذافي القاموس] ([2])، د ونو د تارونو څينې حضراتو خاص د كهجورو د ونو د تارونو ترجمه ئې كړې ده هغه د عربو دعام عادت په جوړ شوې ده. اصل مفهوم ئې عام دې. ددې عام مفهوم په اعتبار سره ابن عباس رضي الله عنه، عروه بن زبير رضي الله عنه وغيره اوفرمائيل چې دلته د ﴿حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ﴾ نه مراد هغه رسئ ده چې د اوسپنې د تارونو نه غښتې شوې وي او دا حال به ئې په جهنم كښې وي چې دغه قسم رسئ به ئې په غاړه كښې ګردنئ وي، مجاهد رحمه الله هم ددې په تفسير كښې فرمائيلي دي: ﴿مِّنْ مَّسَدٍ﴾ اي من حديد [مظهري] ([3])
او شعبي رحمه الله او مقاتل رحمه الله وغيره مفسرينو دې لره هم ددنيا حال منلې دې او ﴿حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ﴾ نه ئې د كهجورو رسئ مراد اخستې ده او وې فرمائيل چې اګر چې ابو لهب او دهغه ښځه مالدار، غني او دخپل قوم سردار منلې شو، مګر د هغه ښځه به د خپلې كنجوسئ او سپيرۀ طبيعت په وجه د ځنګل نه دخشاك لرګې راجمع كول او پخپله به ئې راوړل اود هغې رسئ به ئې په خپله غاړه كښې اچوله چې ګيډې [غوزئي] مې د سر نه پريو نۀ زي. اوهم دا عمل يوه ورځ دهغې د هلاكيدو سبب جوړ شو. چې د خشاك ګيډې [غوزئي] ئې په سر او رسئ ئې په غاړه كښې چرته كيناسته، دمه ئې خورله مرئي خفه شوه، په دې حالت كښې پريوته، په هغې رسئ ئې مرئي خپه شوه او هم دې نه مړه شوه. ددې دويم تفسير تر مخه دا حال د هغې دكنجوسئ او سپيره توب او خراب انجام خودلو دپاره دې. [مظهري] ([4]).
خو هر كله چې دابو لهب د كورنئ خصوصا دښځې ئې داسې كول لرې خبره وه ځكه اكثرو مفسرينو حضراتو ئې هم رومبې تفسير اختيار كړې دې. والله أعلم.

تمت سورة اللهب بحمدالله تعالى

---

[1]) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۲۳۹، ۲۴۰] و صحيح مسلم كتاب الإيمان،باب غلظ تحريم النميمة [ج:۱ص:۷۰]
[2]) لسان العرب تحت مادة مد [ج: ۳ ص:۴۰۲]
[3]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۶۸]
[4]) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۶۸]

| آیاتونه | سورة الاخلاص مكية وهي اربع ايات وركوعا واحدا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ۱ |

قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۚ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۚ لَمْ يَلِدْ ۙ

اووايه | هغه الله دي | يو | الله بې پرواه [بې حاجته] دي | نه ئې خيږولي دې څوك |

[اې زما محبوبه] ته اووايه چې الله تعالى يو دي | الله بې پرواه دي | نه دهغه نه څوك پيدا دي

وَلَمْ يُوْلَدْ ۙ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ۚ

او نه دي خيږولې شوې هغه دچانه | او نشته هغه لره | برابر | هيڅوك |

اونه هغه د چا نه پيدا دي |............. اوهيڅوك دهغه سيال [برابر] نه دي

**آسان ترجمه قرآن**

**اووايه چه: خبره داده، چه الله تعالى په هر اعتبار سره يو دي الله تعالى هغه ذات دي، چه ټول د هغه محتاج دی، هغه دچا محتاج نه دي نه دهغه څوک اولاد شته، او نه هغه دچا اولاد دي او د هغه د برابرئ هيڅوک نشته.**

**خلاصه تفسير**

ددې سبب دنزول دادې چه يو خل مشركانو حضور ﷺ ته ووئيل چه دخپل رب صفتونه اونسب بيان كړه په دې داسورة نازل شو لكه داسې په درمنثور([1]) كښې په ډيرو سندونو سره دی ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ [ته] دې خلقو ته [ووايه چه هغه يعنى الله تعالى] په خپل كمال ذات او صفات كښې [يودې] كمال ذات دادې چه واجب الوجود دې يعنى هميشه دې اوهميشه به وی اوكمال صفت دا چه علم اوقدرت وغيره دهغهٔ قديم دی اومحيط دی او ﴿اَللّٰهُ الصَّمَدُ﴾ [الله تعالى بې نيازه دې يعنى هغه دچا محتاج نهٔ دې اوهغهٔ ته ټول محتاج دی ﴿لَمْ يَلِدْ ۙ وَلَمْ يُوْلَدْ﴾ [دهغهٔ اولاد نشته اونهٔ هغه دچااولاد دې ﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ﴾ اونهٔ څوك دهغهٔ برابر شته

**معارف او مسائل**

**شان نزول** :: دترمذی ،حاكم وغيره په روايت كښې دی چې د مكې مشركانو نبی كريم ﷺ نه د الله ﷻ نسب پوښتلې وو د هغې په جواب كښې دا سورت نازل شو([2]). ځينو روايتونو كښې دا سوال د مدينې يهودو ته منسوب شوې دې. ځكه پدې كښې اختلاف دې چې دا سورت مكی دې او كه مدنی دې. عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ، حسن بصری رحمه الله ، عطاء رحمه الله ، عكرمه رحمه الله ، جابر رضي الله عنه دې ته مكی وائی او قتاده رحمه الله ، ضحاك رحمه الله وغيره ورته مدنی وائی.

---

[1] ) تفسيرالدرالمنثور [ج:۱۰ ص:۳۸۳]

[2] ) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب تفسير سورة الأخلاص[ج:۲ ص:۱۷٤]والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۹۸۷]

د ابن عباس ﷺ دوه اقوال‌ه منقول دی . [ قرطبی ] [1].
خینو روایتونو کښې راغلی دی چې د مشرکانو په سوال کښې داهم وو چې الله ﷻ د څهٔ نه جوړ دې؟ د سرو زرو، سپینو زرو ، یا دبل څه څیزنه ؟ دهغې په جواب کښې دا سورت نازل شو.
**د سورت فضیلتونه** :: امام احمد ﷫ دانس ﷺ نه روایت کړې دې چې یو کس د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو عرض ئې اوکړو چې زما دې سورت سره ډیره مینه ده. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ددې مینې ته په جنت کښې داخل کړې . [ ابن کثیر ] [2].
ترمذی د ابی هریره ﷺ نه روایت کړې دې چې یوځل نبی کریم ﷺ خلقو ته اوفرمائیل چې ټول راجمع شئ چې زه درته دټول قرآن پاک دریمه حصه واوروم. څومره چې جمع کیدې شو، نو هغه هومره جمع شو نو نبی کریم ﷺ تشریف راوړواو ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ ئې تر آخره پورې تلاوت کړو. اوارشاد ئې اوفرمائیلو چې دا سورت دقرآن پاک د دریمې حصې برابر دې. [مسلم] [3]
ابوداؤد، ترمذی ، نسائی په یو اوږد حدیث پاک کښې روایت کړی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوک سحر اومابنام ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ الخ او معوذتین لولی نو دا ددهٔ دپاره کافی دی [4] اوپه یوروایت کښې دی چې دا ددهٔ دپاره دهرې بلانه دساتلودپاره کافی دی [ابن کثیر] [5]
امام احمد ﷫ دعقبه بن عامر ﷺ نه روایت کړېدې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زهٔ تاسو ته داسې درې سورتونه اونه ښایم چې په تورات ، انجیل ،زبور او قرآن پاک کښې نازل شوی دی . او وې فرمائیل چې دشپې تر هغې مه اودهٔ کیږئی تر څو چې دا درې سورتونه قل هو الله احد ، او معوذتین مو نه وی لوستلې ، عقبه ﷺ فرمائی چې ددغې وخت نه ما چرته دې لوستل نه دی پریخودی . [ ابن کثیر ] [6].
﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۚ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۚ لَمْ يَلِدْ ۙ وَلَمْ يُوْلَدْ ۙ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ﴾ :: په ﴿قُلْ﴾ کښې د نبی کریم ﷺ نبوت او رسالت ته اشاره ده چې نبی کریم ﷺ ته دالله ﷻ د طرفنه د خلقو د هدایت حکم کیږی . او دالله ﷻ لفظ د هغې ذات نوم مبارک دې چې واجب الوجود دې اود ټولو کمالونو جامع او د ټولو نقصانونو نه پاک دې . اَحَدٌ او وَاحِد ددې دواړو ترجمه یو کولې شی مگر د مفهوم په اعتبار سره دَ اَحَدٌ لفظ په معنی کښې دا هَم شامل دی چې الله ﷻ د مرکب کیدو . حصې کیدو ګنړوالی او د بل څه څیز سره دیو شان والی یو شکل والی نه پاک دې . یعنی الله ﷻ د یوې یا

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲٤٦]
[2] ) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۵۱۹]وصحيح البخاري كتاب التوحيد ،باب ماجاء في دعاء النبي ﷺ.... إلخ [ج:۲ص:۱۰۹٦]
[3] ) صحيح مسلم كتاب الفضائل القرآن، باب فضل قراءة قل هو الله احد [ج:۱ص:۲۷۱]
[4] ) سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب ما يقول إذا اصبح رقم الحديث [٤٤١۹ ][ج:۲ص:۲۹۳]وجامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب في انتظار الفرج وغير ذالك [ج:۲ ص:۱۹۷]
[5] ) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۵۲۷]
[6] ) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۵۲۷] و مسند احمد حديث عقبة بن عامر الجهني ﷺ عن النبي ﷺ رقم الحديث:[۷۳۷۲]

زياتو مادو نه نه دي جوړ اونه په کښې دزياتوالى څه امکان شته ، نه د چا پشان دي ، داخود هغې خلقو جواب شو چې دالله ﷻ په باره کښې ئې دا تپوس کولو چې الله ﷻ د سرو ، چاندئى يا جواهراتو نه جوړ دې ؟ په دې يوه لنډه جمله کښې د ذات او صفتونو ټول بحثونه راغلل او په لفظ د ﴿قُلْ﴾ کښې د پيغمبرئى مسئله راغله ، پدې غور کولو سره دا لنډه جمله کښې عظيم الشان بحثونه شامليږي . چې په لويو لويو کتابونو کښې ليکلې شى .

﴿اَللّٰهُ الصَّمَدُ﴾ د صمد د لفظ ډيرې معنې کيديشى څکه د مفسرينو حضراتو اقوال په دې کښې ډير دى . دحديث امام طبرانى رحمه الله په کتاب السنة کښې ددې ټولو اقوالو راجمع کولو نه پس اوفرمائيل چې دا ټول صحيح دى او په دې کښې چې کوم صفتونه بيان کړې شوى دى هغه ټول زمونږ د رب صفتونه دى ليکن دصمد اصلى معنى داده چې د چا طرفته خلق په خپلو حاجتونو اوضرورتونو کښې رجوع کوى او څوک چې په لويئ او سردارئى کښې داسې وى چې دهغه نه بل څوک لوئې نه وى ، خلاصه دا شوه چې ټول دهغه محتاج وى او هغه د چا محتاج نه وى .[ ابن کثير](١).

﴿لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ﴾ دادهغې خلقو جواب دې چې چا د الله ﷻ د نسب نامې سوال ئى کړې وو چې هغه په مخلوق باندې نشى قياس کولې چې دتوالد او تناسل په ذريعه موجوديږى نه د هغه څوک اولاد شته او نه هغه د چا اولاد دې .

﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ﴾ ، د ﴿كُفُوًا﴾ لفظى معنى مثل او مماثل ده ، معنى ئې داده چې نه خو دهغه څه مثل شته اونه څوک د هغه پشان او په شکل کيديشى .

**سورة اخلاص کښې مکمل توحيد او په هر شان دشرک نيشتوالې دې** :: الله ﷻ سره چالره شريک ګڼرونکى منکرين د توحيد په دنيا کښې مختلف قسمونه راغلى دى . خو سورة اخلاص د هر قسم مشرکانه خيالاتو نفى کړې ده او د مکمل توحيد سبق ئې ورکړې دې څکه چې د توحيد په منکرينو کښې يو خو هغه قسم خلق دى چې بيخى دالله ﷻ د وجود نه منکر دى او ځينې ئې واجب الوجود نه منى ، ځينې دغه دواړه منى خو د صفتونو دکمال يعنى کاملوالى نه ئې منکر دى ځينې دا ټول هر څه منى خو بيا هم په عبادت کښې الله ﷻ سره شريک ګرځوى ،ددې ټولو باطلو خيالونو رد په ﴿اَللّٰهُ الصَّمَدُ﴾ کښې اوشو ځينې خلق په عبادت کښې ورسره هم څوک شريک نه ګرځوى مګر حاجت روا اوکار ساز نورو لره ګڼرى دهغوئ د خيال باطلول په لفظ د صمد کښې اوشو ، ځينې خلق الله ﷻ لره اولاد منى د هغې رد په ﴿لَمْ يَلِدْ﴾ سره اوشو. والله سبحانه وتعالى اعلم.

---

(١) تفسير ابن کثير [ج: ٨ ص:٥٢٨]

| اياتونه | | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|
| | سورة الفلق مكية وهي خمس ايات وركوعا واحدا | | |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۵ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دې | | ۱ |

| قُلْ | أَعُوْذُ | بِرَبِّ الْفَلَقِ ۝۱ | مِنْ شَرِّ مَا | خَلَقَ ۝۲ |
|---|---|---|---|---|
| اووايه | زۀ پناه غواړم | په رب دصبا سره | دشردهر هغه څيز نه | چې هغه پيدا كړې دې |

[اې محبوبه] ته اووايه چې زه دصبا په رب سره پناه غواړم] دهر هغه څيز دشر نه چې هغه پيدا كړې دې

| وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ | إِذَا وَقَبَ ۝۳ | وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ | فِي الْعُقَدِ ۝۴ |
|---|---|---|---|
| او دشردشپې دتيارې نه | كله چې خوره شي | او دشرد پوكو وهونكونه | په غوټو كښې |

اودشپې دتيارې دشرنه كله چې هغه خوره شي [او دجادو كونكو ښخود شرنه [چې په غوټو باندې پوكې وهي

| وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ | إِذَا حَسَدَ ۝۵ |
|---|---|
| او دشردحسد كونكى نه | كله چې حسد اوكړى |

اود حسد كونكي د شر نه كله چې هغه حسد كوى

## آسان ترجمه قرآن

اووايه چه: زۀ پناه غواړم په رب د صبا. د هر هغه څيز د شر نه چه هغه پيدا كړې دى، او د تيارې شپې د شر نه چه كله هغه خوره شى او دهغې نفسونو د شر نه، چه د (كنړې په) غوټو باندې پوكى وهونكې دى او د حسد كونكې د شر نه كله چه هغه حسد كوى.

## خلاصه تفسير

﴿قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ۝﴾[ته] دخپلې استعاذې يعنى دالله تعالى نه پناه غوښتو دپاره اونورو ته هم ددې استعاذې دښودلو دپاره چه حاصل ئې په الله تعالى توكل اودمكملې برو سې تعليم دې داسې [وايه چه زۀ دصبادمالك پناه غواړم ﴿مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ ۝﴾دټول مخلوقات دشرنه او] بالخصوص ﴿وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ۝﴾[دتيارې شپې دشرنه كله چه هغه شپه راشى] په شپه كښې دشرونو اوافتونو احتمال ظاهر دې [او] خاص دكودو نه﴿وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِي الْعُقَدِ ۝﴾ [په غوټو كښې دپوكې كوونكو دشرنه ﴿وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ۝﴾ اودحسد كوونكى دشرنه كله چه هغه حسد كوى] اول دټول مخلوقات دشر نه د پناه اخستو دذكركولو نه پس دخاصوخاصو څيزونو ذكر شايد په مناسبت دمقام داوى چه اكثر دسحر ترتيب اوتركيب دشپې وى [خازن] (۱) چه څوك ترې نه خبر نۀ شى اوپه اطمنان سره كار وكړى اوپه غوټودم كوونكو نفسونو يابنځو مناسبت دلته ظاهردې څكه چه په نبى كريم ﷺ باند سحر داسې شوې وو خواه سړى كړې وى يابنځو څكه چه دلفظ دنفاثات موصوف نفسونه هم كيدې شى كوم چه ښځو سړو دواړو لره شامل دې اوښځې هم ددې موصوف كيدې شى او په نبى كريم ﷺ باند چه كومو يهوديانو سحر كړې وو دهغې اصل مقصد حسد وو دغه شان دسحر متعلقه چه څومره څيزونه وو دټولو

(۱) تفسير الخازن تحت هذه الآية [ج:۴ ص:۵۰۱]

نه استعاذه وشوه اودباقی شرونو اوافتونو دشاملولو دپاره ئې من شرماخلق وفرمائیلو اوپه ایت کښې چه کوم دالله تعالی صفت رب الفلق یعنی دسحر مالك ذکر کړې دې حال دادې چه الله تعالی خو دسحر ماښام ټولو څیزونو مالك دې په دې تخصیص کښې شاید اشاره دې طرف ته وی چه لکه څنګه الله تعالی دشپې تیارهٔ لرې کوی دسحر رڼرا راوباسی دغه شان دسحر هم ازاله کولې شی.

## معارف او مسائل

دا سورت او وړپسې سورت دواړه په یو واقعه کښې یو ځائې نازل شوی دی څکه حافظ ابن قیم ددې دواړو سورتونو تفسیر یو ځائې لیکلې دې، په هغې کښې ئې فرمائیلی دی چې ددې دواړو سورتونو نفع او برکات او ټولو خلقو ته ددې دواړو حاجت او ضرورت داسې دې چې هیڅ یو انسان ترې بې پروا کیدې نشی، نو دا دواړه سورتونه د سحر، بد نظر او ټولو جسمانی او روحانی آفتونو لرې کولو دپاره لوئې تاثیر لری او که په حقیقت باندې څان پوهه کړ شی نو انسان ته ددې ضرورت دخپلې ساه، خوراک څکاک او جامو وغیره ټولو څیزونو نه زیات دې[1]، ددې واقعه په مسند احمد کښې داسې راغلې ده چې په نبی کریم ﷺ باندې یو یهودی جادو کړې وو د هغې د اثر نه رسول الله ﷺ رنځور شوی وو، نبی کریم ﷺ ته ددې خبر جبرائیل راؤړو او دائې ورته هم اوخودل چې هغه جادو او ټونړه [په کوم شئ چې جادو شوې دې] په فلانی کوهی کښې ده د نبی کریم ﷺ په فرمائلو سره هغه ورته راؤړې شو چې دهغې غوټې او ګنډې ئې خلاصې کړې نو نبی کریم ﷺ بیخی روغ پورته شول. اګر چې جبرائیل ﷺ ورته ددغه یهودی نوم هم خودلې وو خو د نبی کریم ﷺ عادت چا نه بدل اخستل نه وو بلکه نبی کریم ﷺ ټول عمر ورسره څه بد کول نه غوښتل تر دې چې د هغه یهودی په موجودګئ کښې د نبی کریم ﷺ په تندی مبارک څه ګونجې یا د هغه نه نفرت او کرکې څه نښانات نه وو ښکاره شوی. [هغه دمنافق کیدو په وجه هروخت حاضر باش وؤ][2] او د صحیح بخاری د روایت مطابق عائشه صدیقه ﷺ اوفرمائیل چې په نبی کریم ﷺ باندې یو یهودی سحر اوکړو د هغې یو اثر په نبی کریم ﷺ باندې دا وو چې څینې وخت به هغه دا محسوس کول چې فلانکې کار ئې کړې دې مګر هغه به ئې کړې نه وو. بیا یو ځل نبی کریم ﷺ عائشه صدیقه ﷺ ته اوفرمائیل چې ما ته الله ﷻ زما ناروغتیا خودلې ده چې زما بیماری څه ده، وې فرمائیل چې په خوب کښې راته دوه سړی راغلل، یو مې سر طرف ته او بل مې خپو طرف ته کیناستو، د سر طرف والا سړی د خپو طرف والا نه تپوس اوکړو چې د نبی کریم ﷺ تکلیف څه دې، هغوئ ورته اووئیل چې په نبی کریم ﷺ باندې سحر شوې دې. د سحر کوؤنکی تپوس ئې ترې اوکړو نو د لبید بن اعصم نوم ئې ورته واخستو چې د یهودو ملګرې منافق وو، بیا ئې تر تپوس اوکړو چې په څه شان ئې پرې جادو کړې دې ورته ئې اووئیل چې په ګمنز اود هغې په غاښونو کښې بیا ئې ترې دهغې دځائې تپوس اوکړو نو ورته اووئیل چې د کهجورې په هغه غلاف کښې چې په کښې د کهجورو میوه پیدا کیږی، بئر ذروان [د یو کوهی

---

[1]) بدائع الفوائدلابن القیم رحمه الله تفسیرالمعوذتین وماورد فی المعوذتین من الأحادیث[ج: ۲ص:۴۲۵، ۴۲۶]

[2]) مسند احمد، حدیث زید بن ارقم ﷺ رقم الحدیث:[۱۹۲۸۶]

نوم دی] کښې ښخ کړې شوې دې. نبی کریم ﷺ دغه کوهی ته راغلل او دهغې نه ئې دغه جادو راویستلو او وې فرمائیل چې راته په خوب کښې دا کوهې خودلې شوې وو. عائشه صدیقه رضی الله عنها اوفرمائیل چې تاسو ﷺ د هغې اعلان ولې اونه کړو چې دا کار دفلانی سړی دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زه الله ﷻ روغ کړم او زما دا خوښ نه دی چې چا ته د تکلیف ورکولو سبب جوړ شم[1]. مطلب ئې دا وو چې که د هغه د نوم اعلان شوی وی نو خلقو به وژلې وې یا به ورته نور څه تکلیف اورسولې وو.

او د مسند احمد په یوروایت کښې دی چې نبی کریم ﷺ دغه رنځورتیا شپږ میاشتې تیره کړه[2]، او په څینې روایتونو کښې دا هم دی چې کومو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته معلوم شوی ووچې ددې سحر کونکې لبید بن اعصم هغوئ رضی الله عنهم د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چې دا خبیث دې ولې او نه وژلو؟ خو نبی کریم ﷺ هم هغه جواب ورکړو چې کوم ئې عائشه صدیقه رضی الله عنها ته ورکړې وو. او د امام ثعلبی په روایت کښې دی چې یو هلک به د نبی کریم ﷺ خدمت کولو، دغه یهودی منافق هغه په څه چل دهوکه کړو اود نبی کریم ﷺ ګمنز او دهغې څه مات غابښونه ئې تر لاسه کړل. او د کاتې په یو تار کښې ئې یوولس غوټې واچولې په هره غوټه کښې ئې یو ستن وراوتومبله، ګمنز سره ئې د کهجورو د میوؤ په غلاف کښې کیخودو او په کوهی کښې ئې د کاڼری لاندې کیخودل. الله ﷻ دا دواړه سورتونه نازل کړل چې په کښې یوولس آیتونه دی، نبی کریم ﷺ به په هره غوټه باندې یویو آیت مبارک لوستلو اوهغه به ئې پرانیستله، تردې چې ټولې ئې پرانیستلې او د نبی کریم ﷺ نه ناګهانه یو بوج شان لرې شو. [دا ټول روایتونه دتفسیر ابن کثیر نه راخستې شوی دی][3].

**دسحر د اثر نه رنځور کیدل دپیغمبرئ سره بې سمونه نه دی ::** څوک چې دسحر د حقیقت نه ناواقف دی هغوئ تعجب کوی چې په نبی کریم ﷺ باندې دجادو اثر څنګه کیدې شی؟ دسحر حقیقت ددې قسمونه او حکمونه په پوره تفصیل سره په سورة بقره کښې هم په دې تفسیر معارف القرآن کښې بیان شوی دی، هلته اوګورئې . دهغې په خلاصه باندې دلته دومره څان پوهول ضروری دی چې د سحر اثر هم دطبعی اسبابو داثر پشان دې لکه په اور سوځیدل یا ګرمیدل. په اوبو سره یخیدل، په څینې طبعی اسبابو سره دتبې راتلل یا مختلف قسم دردونه اومرضونه پیدا کیدل یو طبعی څیز دې چې ترې پیغمبران علیهم السلام هم مستثنی نه دی، دغسې د سحر او جادو اثر هم واخله.

**معوذتین دهر قسم دنیوی او دینی آفتونو نه د حفاظت دپاره قلعه ده ددې فضیلتونه ::** دا خو د هر مؤمن عقیده ده چې ددنیا او آخرت هر نفع، نقصان دالله ﷻ په لاس کښې دې، د الله ﷻ د ارادې نه بغیر هیڅوک هم چاته لږه شان نفع یا نقصان نشی رسولې، نو د دنیا او آخرت دټولو آفتونونه دمحفوظ پاتې کیدو اصل ذریعه هم یوه ده چې انسان خپل ځان د الله ﷻ په پناه کښې ورکړی او په خپل عمل سره د هغه په پناه کښې د راتلو خپل ځان قابل کړی، په دې دواړو سورتونو کښې یعنی په رومبی سورت فلق کښې خو د دنیوی آفتونو نه د بچ کیدو د الله ﷻ

[1] ) صحیح البخاري کتاب الطب ،باب السحر [ج:۲ص:۸۵۸]
[2] ) مسند احمد بن حنبل حدیث السیدة عائشة رضی الله عنها رقم الحدیث:[۲۴۳۹۲]
[3] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۸ ص:۵۳۶ إلی ۵۳۸]

دپناه غوښتو تعليم دې. او په دويم سورت يعنى الناس كښې د آخرت د آفتونو نه د بچ كيدو دپاره د الله ﷻ پناه غوښتې شويده.
مستند و حديثونو كښې ددې دواړو سورتونو لوئې فضيلتونه او بركتونه نقل كړې شوى دى.
صحيح مسلم كښې د عقبه بن عامر ﷜ نه روايت دې چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې تاسو ته څه خبر شته چې نن شپه الله ﷻ په ما باندې داسې آيتونه نازل كړى دى چې د هغې مثل نه دې ليدلې شوې يعنى ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾(۱).
او يو روايت كښې دى چې په تورات انجيل، زبور او قرآن پاک كښې هم ددې پشان بل سورت نشته(۲) هم ددې عقبه بن عامر ﷜ نه په يو بل روايت كښې نقل دى چې په يو سفر كښې نبى كريم ﷺ هغوئ ﷜ ته معوذتين اولوستل او بيا ئې د ماښام په مونځ كښې دا دواړه سورتونه تلاوت كړل او بيا ئې اوفرمائيل چې د اسورتونه دا ودۀ كيدو په وخت كښې هم لوله.
او بيا د پورته كيدو په وخت كښې هم. [نسائى](۳). اوپه يو روايت كښې دى چې نبى كريم ﷺ هر مونځ پسې ددې دواړو سورتونو لوستلو خودنه كړې ده. [ابو داؤد، نسائى](۴).
عائشه صديقه ﷝ فرمائى چې كله به نبى كريم ﷺ ته څۀ ناورغتيا راپيښه شوه نو دا دواړه سورتونه به ئې دم كړل او په ټول بدن مبارک به ئې ګرځول بيا كله چې په مرض وفات كښې ئې تكليف زيات شو نو ما به دا سورتونه لوستل او د نبى كريم ﷺ په لاسونو مباركو به مې دم كول. او نبى كريم ﷺ به پخپل بدن مبارک ګرځول، ما به دا كار ځكه كولو چې د نبى كريم ﷺ دلاسونو مباركو پشان زما لاسونو نه شوكيدې. [رواه الامام مالک ﷫](۵) [دا ټول روايتونه د تفسير ابن كثير نه اخستې شوې دى](۶).
او عبدالله بن حبيب ﷜ نه روايت دې چې يوه شپه باران او سخته تياره وه، مونږ د نبى كريم ﷺ په لټون كښې اووتو كله مو چې نبى كريم ﷺ اوموندل نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې وايئ مونږ عرض اوكړو چه څه اووايو؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ او معوذتين وايه د صبا كيدو اوماښام كيدو په وخت درې درې ځل، داسې كول به تاسو دپاره دهر تكليف نه امان وى. [ترمذى، ابوداؤد، نسائى، مظهرى](۷).
خلاصه داده چې د ټولو آفتونو نه محفوظ پاتې كيدو دپاره دا دوه سورتونه لوستل، د نبى كريم ﷺ اوصحابه كرامو ﷡ معمول وو، ورپسې د سورت الفاظو سره تفسير ئې هم اوګورئ.
﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ د فلق لفظي معنى څيرې كيدل دى، مراد ترې د شپې تياره، او تر صبا راښكاره كيدل دى، لكه په يو آيت مبارک كښې دالله ﷻ صفت فالق الاصباح(۸) راغلې دې.

---

(۱) صحيح مسلم كتاب الفضائل القرآن، باب فضل قراءة المعوذتين [ج:۱ص:۲۷۲]
(۲) مسند احمد حديث عقبة بن عامر الجهنى ﷺ عن النبي ﷺ رقم الحديث:[۱۷٤۸۸]
(۳) سنن النسائى كتاب الإستعاذة [ج: ۲ ص:۳۱۲]
(۴) السنن الكبرى للنسائى رقم الحديث:[۷۸۱۰] و مسند احمد، حديث رجل ﷺ رقم الحديث:[۲۰۷٦٤]
(۵) مسند احمد بن حنبل حديث السيدة عائشة رضى الله عنها رقم الحديث:[۲٦۲۳۲]
(۶) تفسير ابن كثير [ج: ۸ ص:۵۳۳ و ۵۳٤]
(۷) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۸۱]
(۸) ترجمه :- هغه ذات صبا راولى.

په دې کلمه کښې د الله ﷻ د ټولو صفتونو څخه دې لره داختیارولو حکمت دا هم کیدیشي چې دشپې تیاره اکثر د شرونو او آفتونو سبب جوړیږي. او د صبا رڼرا دې لره اخوا کوي. دالله ﷻ په دې صفت سره یا دول دې ته اشاره ده چې څوک د الله ﷻ پناه غواړي. الله ﷻ به دهغه ټول آفتونه لرې کړي. [ مظهري ](۱).

**دعلامه ابن قیم رحمه الله دشر منقول شوې معنی** :: ﴿مِن شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ ، علامه ابن قیم رحمه الله لیکلي دي چې د شر لفظ دوؤ څیزونو دپاره استعمالیدل عام او شامل دي ، یو د ردونو او آفتونو دپاره چې انسان ته ترې نیغ په نیغه غم او تکلیف رسیږي. نور هغه څیزونه چې د دردونو او آفتونو موجب او اسباب دي چې په کښې کفر ، شرک ، او ټول ګناهونه هم داخل دي. په قرآن پاک اوحدیث کښې چې د کومو څیزونو نه د پناه اخستو ذکر راغلې دې هغه ددې دواړو قسمونو څینې په یو کښې داخلیږي. یعنی یا خو پخپله آفتونه اومصیبتونه وي یا ددې باعث ، سبب او موجب وي. د مونځ په آخر کښې چې کومه د پناه غوښتو دعا مسنونه راغلې ده ، په هغې کښې څلور څیزونه بیان شوي دي. ① عذاب قبر ② عذاب د اور ③ د ژوند فتنې نه او [۴] د مرګ د فتنې نه. رومبی دوه څیزونه پخپله مصیبت او عذاب دي اوآخری دوه څیزونه د مصیبت او عذاب سببونه دي.

د ﴿مِن شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ په لفظ کښې د ټولو مخلوقاتو شر داخل دې څکه دا کلمه د ټولو شرونو او آفتونو نه د پناه اخستلودپاره کافی وه مګر دلته ئې درې څیزونه چونړ کړل او دهغې د شر نه ئې د پناه غوښتلو ذکر اوفرمائیلو چې اکثر د آفتونو او مصیبتونو سبب جوړیږي. اول ئې اوفرمائیل چې : ﴿وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ﴾ ، په دې کښې لفظ د ﴿غَاسِقٍ﴾ د غسق نه مشتق دې. او ددې معنی د تیارې خوریدل دي ، څکه د ﴿غَاسِقٍ﴾ معنی ابن عباس رضي الله عنهما ، حسن رحمه الله ، او مجاهد رحمه الله شپه کوي او د ﴿وَقَبَ﴾ د وقوب نه مشتق دې. ددې معنی ئې تیاره پوره خوریدل دي ، معنی ئې داده چې زه د الله ﷻ پناه غواړم دشپې نه کله چې د هغې تیاره پوره شي. دشپې د خاص کولو وجه داده چې دا وخت دپیریانو ،شیطانانو ، موذي ، څناورو ، دزمکې دننه د استوګنې او د غلو ، ډاکوانو دخوریدو او د دښمنانو دحملې کولو وخت وي. او د جادو اثر هم په شپه کښې زیات وي. په صبا کیدو سره ددې زور ختم شي. [ابن قیم رحمه الله ](۲)

دویم څیز ئې دا اوفرمائیل چې :﴿وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ﴾، ﴿نَفَّاثَاتِ﴾ د نفث نه مشتق دې چې معنی ئې پوک وهل دي. او ﴿عُقَدِ﴾ د عُقْدَةٌ جمع ده چې معنی ئې غوټه ده. جادوګر په تار ، مزي وغیره کښې په غوټې اچولو سره په هغې باندې د جادو کلمې پوک وهي.

﴿نَفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ﴾ په غوټو کښې پوک وهونکې ښځې ، مراد ترې جادوګر دي. د ﴿نَفَّاثَاتِ﴾ موصوف نفوس هم کیدیشي چې په کښې ښځې او سړی دواړه داخل دي. په دې صورت کښې به د جادو کوؤنکو نه مراد جادو کونکې خلق وي ، او ښکاره خبره داده چې ددې موصوف ښځې دي. د ښځو تخصیص شاید دې دپاره اوکړې شو چې د جادو کار عموما ښځې کوي.

---

(۱) تفسیر المظهري[ج:۱۰ص:۳۷۶]

(۲) تفسیر ابن القیم تفسیر سورة الفلق ص:۵۶۱

او د ښځو مناسبت دې سره خَلَقَةَ هم څه زيات دې او يا ځکه چې په نبی کريم ﷺ باندې دجادو کولو واقعه چې ددې سورتونو د نازليدو سبب شو په هغې کښې جادوکوونکې دوليد بن اعصم لونړه وې چې د پلار په وينا ئې دا کار کړې وو ، ځکه د جادو نسبت هغوئ ته اوکړې شو. او د جادوګر نه په خصوصيت سره د پناه غوښتو وجه دا هم کيديشی چې د نزول سبب هم دغه دجادو واقعه ده. اودا هم کيديشی چې ددې شر اوضرر ځکه زيات دې چې انسان په دې خبر هم نه وی ځکه ئې ددې لرې کولو ته توجه نه وی. هغه ته دَ بيمارئی ښکاری دهغې په علاج او دارو درملو کښې لګيدلې وی او تکليف ئې زياتيږی.

دريم ځيز چې په خصوصيت سره بيان کړې شو هغه حاسد او حسد دې ،دَ دې د تخصيص وجه هم دا دواړه کيدشی ،ولې چې په هغوئ ﷺ باندې جادو د حسد په وجه اوکړې شو. ځکه چې يهودو اومنافقانو د نبی کريم ﷺ اودمسلمانانو وده او ترقی کول نه شو زغملې او په ظاهری جنګ جګړه کښې په نبی کريم ﷺ باندې کامياب کيدل ئې اونه شو ،نو د جادو په ذريعه د خپل حسد اور مړ کول اوغوښتل اود نبی کريم ﷺ حاسدان په دنيا کښې بې شميره وو ځکه هم دې نه په خصوصيت سره پناه اوغوښتې شوه دغسې دحاسد حسد هغه په آرام سره کيناستو ته نه پريږدی. هغه هر وخت هغه ته نقصان رسولو پسې وی ځکه دا زيان سخت هم دې.

حسد دې ته وائی چې د چا د نعمت اوآرام په ليدو سوځی اودا غواړی چې ددهٔ نه دا نعمت بيرته او لرې شی. خواه که هغه ته په لاس ورنشی ، دا حسد حرام ګناه کبيره ده او دا د ټولو نه لويه ګناه ده چې په آسمان کښې اوکړې شوه او د ټولو نه اول ګناه ده چې په زمکه کښې اوکړې شوه ولې چې آسمان کښې ابليس آدم ﷺ سره حسد اوکړو ا و زمکه باندې حسد قابيل دخپل رور هابيل سره اوکړو چې دواړه د آدم ﷺ ځامن وو [ قرطبی ] [1]. د حسد پشان دې ته نيزدې نيزدې غبطه هم ده دهغې مطلب دا دې چې د فلانی پشان نعمت دې ماته هم حاصل شی دا جائز څه بلکه ښه ده.

دلته د دريو ځيزونو نه د پناه غوښتو بيان دې خو په ړومبی او دويم کښې د يويو قيد ذکر اوکړې شو نو ړومبی غَاسِقٍ سره ئې إِذَاوَقَبَ اوفرمائيل او په دريم کښې حَاسِدٍ سره ئې اِذَا حَسَدَ اوفرمائيل. او په مينځنی کښې ئې څه قيد ذکر نه کړو. سبب ئې دا دې چې د جادو ضرر عام دې اود شپې ضرر هغه وخت وی کله چې تياره پوره شی دغسې د حاسد حسد هله تاوان کوی چې ددې درسولو قصد اوکړی مګر حاسد ته خو ئې زيان هم هروخت وی چې د محسود دَ نعمت او آرام نه سوځی البته محسود ته ئې هله زيان رسی چې هغه د حسد په تقاضا باندې دزيان رسولو کوشش کوی ځکه په ړومبی او دويم ځيز کښې دا قيدونه اولګولې شو.

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۲۰ص:۲۵۹]

| آیاتونه | | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|
| | | سورة الناس مکیة وهي ست ایات ورکوعا واحدا | |
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| ٦ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان　زیات رحم کونکې دې | ١ |

قُلۡ　اَعُوۡذُ　بِرَبِّ النَّاسِ ۝١　مَلِكِ النَّاسِ ۝٢　اِلٰهِ النَّاسِ ۝٣

اووایه ا زهٔ پناه غوارم ا په رب دانسانانو سره ا په بادشاه دانسانانو سره ا په معبود دانسانانو سره

[اې زما محبوبه] ته اووایه چې زه دخلقو په رب سره پناه غوارم [ چه دټولو خلقو بادشاه دي

مِنۡ شَرِّ الۡوَسۡوَاسِ ۝٤　الۡخَنَّاسِ ۝　الَّذِیۡ　یُوَسۡوِسُ

دشر دوسوسې اچونکي نه ا بار بار راتلونکي نه ا هغه ا چې وسوسې اچوی ا

دټولو خلقو معبود دي] دهغه شیطان د شر نه چې وسوسې اچوی [ او روستو کیږي

فِیۡ صُدُوۡرِ النَّاسِ ۝٥　مِنَ الۡجِنَّةِ　وَالنَّاسِ ۝٦

په سینو دزړونو دانسانانو کښې ا دپیریانو نه ا او دانسانانو نه ا

چې دخلقو په زړونو کښې وسوسې اچوی[ که هغه پیرې وی او که انسان

## آسان ترجمه قرآن

اووایه چه: زهٔ پناه غوارم، دټولو خلقو په پروردګار سره. دټولو خلقو په بادشاه سره. دټولو خلقو په معبود سره د هغې وسوسې اچولکې د شر نه، چه شاته پټیږی چه د خلقو په زړونو کښې وسوسې اچوی، که دپیریانو نه وی، او که دانسانانو نه.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلۡ اَعُوۡذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۝﴾ [تـهٔ ووایـه چـه زهٔ دبنیـادمو رب پناه غـوارم ﴿مَلِكِ النَّـاسِ ۝﴾ دبنیـادمو دبادشاه ﴿اِلٰهِ النَّـاسِ ۝﴾ د بنیادمو دمعبود پناه غوارم ﴿مِنۡ شَرِّ الۡوَسۡوَاسِ ۝ الۡخَنَّـاسِ ۝﴾ دوسوسه اچوونکی شاته کیدونکی شیطان] دشرنه [ دشاته کیدو مطلب داچې په حدیث کښې دی چه دالله تعالی دنوم اخستو نکی نه شیطان په شا کیږی] اَلَّذِیۡ یُوَسۡوِسُ فِیۡ صُدُوۡرِ النَّـاسِ ۝ کوم چه دخلقو په زړونو کښې وسوسه اچوی ﴿مِنَ الۡجِنَّةِ وَالنَّـاسِ ۝﴾ خواه هغه ] وسوسه اچوونکې [پیرې وی او کهٔ بنیادم [یعنی لکه څنګه چه زهٔ دشیطانانو پیریانو نه پناه غوارم دغه شان دبنیـادمو شیطانانو نه هم پناه غوارم لکه چه بل ځائې په قرآن کریم کښې دپیریانو اوانسانانو دواړو کښې دشیطانانو کیدوذکر دې ، وکذلك جعلنا لکل نبی عدوا شیاطین الانس والجن،] (١)

## معارف او مسائل

سورت فلق کښې د دنیوی آفتونو او مصیبتونو نه د پناه غوښتلو تعلیم دې او په دې سورت کښې د آخرت د آفتونو نه د پناه غوښتو تعلیم دې. او څنګه چې د شر د لفظ مفهوم په سورة فلق کښې بیان کړې شوې دې چې غمونو او موجباتو دواړو لره شامل دې ، په دې سورت

(١) ترجمه :- او داشان مونږ د هر نبي دشمنان څه شیطان پیدا کړی وو او څه سړی او څه جنات.

کښې د هغې شر نه پناه غوښتې شي چې د ټولو ګناهونو سبب دې يعنې د شيطاني وسوسو او اثراتونه. او هر کله چې د آخرت نقصان ډير سخت دې ځکه ددې په تاکيد باندې قرآن پاک ختم کړې شوې دې .
﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ درب معنی پالونکی او د هر حال اصلاح کوونکې ده ، دلته ﴿رَبِّ﴾ ﴿النَّاسِ﴾ ته مضاف کړې شو . او په مخکښې سورت کښې فلق ته مضاف کړې شو وجه ئې داده چې په سورة فلق کښې د ظاهری او جسماني آفتونو نه پناه غوښتل مقصود دی چې انسان سره خصوصيت لری . ځناورو ته هم بدنی آفتونه او مصيبتونه رسی ، په خلاف د شيطانی وسوسې چې د هغې تاوان انسان سره مخصوص دې او پيريان هم په کښې تبعا شامل دی ، ځکه دلته د رب اضافت ناس ته اوشو . [ مظهری ، دبيضاوی نه ](۱).
﴿مَلِكِ النَّاسِ﴾ دخلقو بادشاه، ﴿إِلَٰهِ النَّاسِ﴾ د خلقو دمعبود ددې دوؤ صفتونو اضافه ځکه اوکړې شوه چې کله د رب لفظ يو خاص ځيز ته منسوب وی نو د الله ﷻ نه سوا د نور چا دپاره هم دا استعماليږی، لکه رب الدار ، د کور مالک ، رب المال د مال مالک او هر مالک بادشاه نه وی ځکه ﴿مَلِكِ﴾ مضاف راوړې شو چې الله ﷻ مالك هم دې او مَلِك اوبادشاه هم دې بيا هر بادشاه معبود نه وی ځکه ئې د ريم صفت ذکر کړو.
﴿إِلَٰهِ النَّاسِ﴾ ددې درې صفتونو په جمع کولو کښې حکمت دادې چې په دې کښې هر يو صفت د حفاظت داعی او بلونکې دې ولې چې هر مالک د خپل مملوک حفاظت کوی . هم دا شان هربادشاه دَ خپل رعيت حفاظت کوی، اودَ معبود دَ خپل عابد دپاره محافظ کيدل خو دَ ټولونه ډير ظاهر دی. دا درې واړه صفتونه صرف په الله ﷻ کښې جمع دی ، نور په هيچا کښې دا ټول صفتونه هيچرې نشی رايوځائې کيدې . ځکه د الله ﷻ پناه غوښتل دټولونه لويه پناه اخستل دی . او ځوک چې په دې درې واړو صفتونو سره پناه غواړی نو ددعا قبليدو دپاره ډيره زياته نزدې ده چې ائې الله ﷻ تا کښې دا صفتونه رايوځائې دی ، مونږ صرف هم ستا پناه کښې راتلل غواړو ، دلته چې هر کله په رومبۍ جمله کښې ﴿رَبِّ النَّاسِ﴾ راغلو نو د قواعدو مطابق بيا ورته ضمير راجع کول پکار وو چې داسې ئې فرمائيلې وې چې [ ملکهم والههم ] مګر د النَّاسِ بيا بيا راوړل ځکه زيات ښۀ دی چې دا د دعا، مدح او ثنا مقام دې او ځينې حضراتو ددې ﴿النَّاسُ﴾ په بيابيا راوړو کښې يو لطيفه بيان کړې ده چې په دې سورت کښې ﴿النَّاسُ﴾ پنځه خله راغلی دی چې رومبی ﴿النَّاسُ﴾ نه مراد ماشومان دی ، او د ﴿رب﴾ لفظ او د ربوبيت ددې قرينه ده . ولې چې د پالنې حاجت د ټولو نه زيات ماشوم ته وی . او دويم خلی ﴿النَّاسُ﴾ نه مراد ځوانان دی . چې د مَلِک لفظ ئې قرينه ده . چې د يو سياست معنی لری ، دا د ځوانانو او خلمو سره مناسب ده . او دريم ﴿النَّاسُ﴾ نه مراد بوډاګان دی چې د دنيا نه په بيليدو سره په عبادت کښې مشغول وی . او د ﴿إِلَٰه﴾ لفظ ددې قرينه ده چې عبادت طرفته اشاره ده . او څلورم ﴿النَّاسُ﴾ نه مراد د الله ﷻ نيکان بندګان دی چې د وسوسو لفظ ئې قرينه ده . ځکه چې شيطان د نيکانو بندګانو دښمن دې دهغوئ په زړونو

---

(۱) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۲۷۹]

کښې وسوسې اچول د هغه کار او شغل دې. او پنځم ﴿ٱلنَّاسُ﴾ نه مراد مفسد يعنى فسادیان دی. څکه چې د هغوئ د شر نه پناه غوښتې شویده.

﴿مِن شَرِّ ٱلۡوَسۡوَاسِ ٱلۡخَنَّاسِ﴾ د الله ﷻ د درېو صفتونو بيانولو نه پس اوس د هغې بيان دې چې دهغوى نه پناه اخستل مقصود دی، فرمائی چې: ﴿ٱلۡوَسۡوَاسِ ٱلۡخَنَّاسِ﴾، وسواس مصدر په اصل کښې د وسوسې معنى ورکوى. دلته ئې شيطان ته وسواس د مبالغې په غرض اوفرمائيل. يعنى چې شيطان سراسر وسوسه ده که د وسوسې معنى دا ده چې شيطان د يو پټ کلام په ذريعه خلق خپلې تابعدارئى ته رابلى چې ددې مطلب اومفهوم د انسان په زړه کښې بې قابو د څه آواز آوريدو نه راشى، [قرطبى] (۱).

﴿ٱلۡخَنَّاسِ﴾ د خنس نه مشتق دې چې معنى ئې مخ په شا ګرځيدل دى. شيطان ته خناس څکه وئيلې شى چې د هغه عادت دادې چې کله انسان د الله ﷻ نوم اخلى نوشيطان په روستو منډې وهى، بيا چې لږ شان غفلت کښې شى نو واپس ورته راشى. بيا چې کله هغه د الله ﷻ نوم اخستل شروع کړى نو شيطان مخ په شا لاړ شى. او دا سې عمل په مخه جارى وى. نبى کريم ﷺ فرمائى چې د هر انسان په زړهٔ کښې دوه کورونه وى، يو کښې فرښته او بل کښې شيطان اوسيږى [فرښته هغه ته د نيکو کارونو رغبت ورکوى او شيطان د بدو کارونو]. بيا چې کله انسان د الله ﷻ ذکر کوى نو شيطان په شا شى او کله چې هغه دالله ﷻ په ذکر کښې مشغول نه وى نو خپله مښوکه د انسان په زړهٔ باندې ايخودو سره ورته په زړه کښې د بدو او ګناهونو کولو وسوسې اچوى. [انس ﷺ نه مرفوعا ابويعلى روايت کړې دې [مظهرى] (۲).

﴿مِنَ ٱلۡجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ﴾ دا د وسواس بيان دې يعنى وسوسې اچوونکى په پيريانو کښې هم وى او په انسانانو کښې هم وى. نو ددې حاصل دا شو چې الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته ددې خودنه اوکړه چې الله ﷻ نه دې پناه غواړى د شيطانانو او پيريانو د شر نه. او د انسى شيطان د شر نه هم. که څوک داشبه کوى چې د پيريانو شيطانانو د طرفنه خو وسوسه اچول ښکاره او معلومه خبره ده چې هغوئ په پټه د انسان په زړهٔ کښې څه پټ کلام اچوى مګر انسان خو په ډاګه خبره کوى نو هغې ته وسوسه اچول څنګه وئيلې شى، ددې جواب دادې چې انسانى شيطانان هم اکثر داسې خبرې د چا په وړاندې کوى چې د هغې په ذريعه ورته داسې شکونه اوشبهې پيدا کيږى چې په ډاګه ئې ورته نه وائى. او شيخ عزالدين بن عبدالسلام پخپل کتاب "الفوائد فى مشکلات القرآن" کښې اوفرمائيل چې د انسانى شيطان د شر نه مراد پخپله د خپل نفس وسوسه ده ولې چې څنګه شيطان د يو انسان په زړه کښې بدو کارونو طرفته مينه او شوق اچوى دغسې پخپله د انسان خپل نفس هم د بدو کارونو طرفته مائل کيږى په دې وجه رسول اکرم ﷺ پخپله د خپل نفس د شر نه هم پناه غوښتل خودلى دى. حديث پاک کښې دى چې [اللهم انى اعوذبك من شر نفسى وشر الشيطان وشركه] (۳) يعنى يا الله زه د خپل نفس د شر نه پناه غواړم او دشيطان د شر او شرک نه هم.

---

(۱) تفسير القرطبي [ج:۲۰ص:۲٦۱]

(۲) تفسير المظهري[ج:۱۰ص:۳۸۰]ومسند ابى يعلى الموصلى رقم الحديث:[٤۳۰۱]

(۳) مصنف ابن ابى شيبة كتاب الأدب باب ما يقول الرجل إذا نام وإذا استيقظ رقم الحديث:[۲٦۵۲۳]

**دشیطانی وسوسو نه د پناه غوښتلو لوئي اهمیت** :: ابن کثیر(۱) فرمائیلي دي چي الله ﷻ په دي سورت کښې انسان ته خود نه کړې ده چي د الله ﷻ دَ دې دري صفتونو رب ، مَلِک او اِلٰه بیانولو سره دهغه نه د شیطانی وسوسو اود سیسونه پناه غوښتل پکار دی ولې چې هر انسان سره یو ملګرې شیطان لګیدلې وی چي په هر قدم باندې دې کوشش کښې لګیدلې وی چې انسان تباه کړی ا ودې برباد کړی، اول ئې ګناهونو ته شوق پیدا کوی او په قسما قسم دهوکه کولو سره ئې ګناهونو ته ورولی. که په دې کامیابی بیا نه مومي نو انسان چي کوم عبادتونه او کوششونه کوی نو دهغې د تباه کولو کوششونه کوی او دهٔ ته په زړه کښې ریاء ، تکبر، غرور او تکبر وسوسې ورته په زړه کښې اچوی. د علم د خاوندانو په زړونو کښې د حقو عقیدو د خرابید وشبهې اچوی. دهغه د شرنه صرف هغه څوک بچ کیدېشي چي الله ﷻ ئې بچ کول غواړي.

رسو الله ﷺ اوفرمائیل چي په تاسو کښې څوک انسان د اسې نشته چي دهغه شیطان ملګرې به پرې نه وی مسلط شوې ، صحابه کرامو ﷡ عرض اوکړو چي یارسول الله ﷺ ! تاسو سره هم دغسې قرین یعنی ملګرې شته دې ؟ نو نبی کریم ﷺ او فرمائیل چي آؤ شته دې مګر الله ﷻ دهغه په مقابله کښې زما ملګرتیا اوفرمائیله . او الله ﷻ هغه داسې جوړ کړو چي بغیر د خیر نه ماته بل څه خبره نه کوی(۲).

صحیحینو کښې د انس ﷛ حدیث دې چي یو ځل نبی کریم ﷺ مسجد کښې اعتکاف کړې وو ، یوه شپه نبی کریم ﷺ سره ملاقات دپاره ام المؤمنین صفیه ﷝ مسجد ته لاړه ، د واپسئ په وخت کښې ورسره نبی کریم ﷺ په ملګرتیا را روان شو. کوڅه کښې دوه صحابی انصاریان مخې ته راغلل. نو نبی کریم ﷺ ورته په آواز کولو سره اوفرمائیل چي ایسار شئ ما سره صفیه بنت حُیَي ﷝ ده ، دغې دواړو په ډیر ادب سره عرض اوکړو چي سبحان الله یارسول الله ﷺ ! یعنې تاسو ﷺ زمونږ باره کښې دا خیال اوکړو چي مونږ به دربانده بدګمانی اوکړو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چي بیشکه څکه چي شیطان د انسان په رګ رګ کښې اثر اچوی . ماسره داخطره شوه چي هسې نه شیطان ستاسو په زړونو کښې دا بدګمانی او وسوسې پیدا نکړی څکه ما ښکاره کړه چه ما سره څه بله ښځه نه بلکه خپله ښځه ده(۳).

**فائده** :: څنګه چي انسان دپاره دبدو کارونو نه بچ کیدل ضروری دی همداشان مسلمانانو لره په خپله باره کښې د بدګمانئ موقعه ورکول هم د رست نه دی. داسې موقعو نه بچ کیدل پکار دی چې ورسره د خلقو په زړونو کښې بدګمانی پیدا کیږی. او چي څه داسې موقعه راشي نو خبره دې واضحه کړې چې د تور پورې کولو موقعه د سره ختمه شی ، خلاصه دا شوه چې دې حدیث شیطانی وسوسې لره ډیره خطرناکه ثابت کړې ده چې ترې بچ کیدل آسان نه دی. سوا دالله ﷻ د پناه ورکولو نه .

**خبرداري** :: دلته چي کومې وسوسې نه ویرول کړې شوې دی ، دې نه مراد هغه خیال دې چي په کښې انسان په خپل اختیار سره مشغول وی او بې اختیاره کومه وسوسه او خیال چي په

(۱) تفسیر ابن کثیر [ج: ۸ ص: ۵۳۹]

(۲) صحیح مسلم کتاب صفة القیامة..... إلخ باب تحریش الشیطان ......إلخ رقم الحدیث: [۲۷۲۸۷]

(۳) صحیح البخاري کتاب بدء الخلق ،باب إبلیس وجنوده [ج:۱ص:۴٦٤]

زړه کښې راشي او تير شي هغه څه زيان نه ورکوي ا و نه ئې څه ګناه شته .

**لطيفه . د سورة فلق او سورة الناس په تعوذاتو کښې پوفرق :** سورة فلق کښې خو دالله ﷻ صرف په يو صفت رب الفلق باندې بسوالې اوکړې شو او د الله ﷻ پناه اوغوښتلې شوه . او د ډيرو څيزونونه پناه اوغوښتلې شوه . دغه څيز اول په ﴿مِن شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ کښې اجمالاً بيان کړې شو. بيا ئې په هغې کښې خاص درې آفتونه بيان کړل او په سورة ناس کښې چې د څه څيز نه پناه غوښتې شويده هغه صرف يو دې ، يعنې وسواس ، او د کوم ذات پاک پناه چې غوښتې شوې ده دهغې ئې دلته درې صفتونه بيان کړې دی . او دهغې نه پناه غوښتلې شوې ده دې نه معلوميږي چې دشيطان شر د ټولو شرونو او آفتونو نه ډير لوئې دې . اول خو څکه چې د نورو آفتونو او مصيبتونو ا ثر خودَ انسان په جسم او د نيوی څيزونو باندې پريوځی پخلاف دَ شيطان نه ، دې د انسان ددنيا او آخرت دواړو او خصوصا د آخرت د تباه کولو په فکر کښې وی څکه دده ضررونه سخت دې ، دويم دا چې ددنيا دَ آفتونو خو څه نا څه مادی علاج هم دَ انسان په قبضه کښې وې او هغه هم د اسې کوی پخلاف د شيطان نه چې دَ هغه په مقابله کښې مادی تدبير د انسان په وس کښې نه دې هغه خو انسان لره وينی، خو انسان هغه لره نه وينی هغه دانسان په باطن کښې په معلومې طريقې سره د تصرف کولو قدرت لری ، د هغې علاج صرف دالله ﷻ ذکر کول او دهغه پناه غوښتل دی.

**د انسان دوه دښمنان . انسان او شيطان او د دواړه دښمنانو بيل بيل علاج :** د انسان دښمن انسان هم وی او شيطان هم . الله ﷻ خو دانسانی دښمن علاج دا خودلې دې چې اول دې ورسره ښه خوئې کولې شی، د هغه عزت خاطر دې کولې شی ، دبدل اخستو کوشش دې نه شی کولې . او د صبر نه دې کار اخلی او څوک چې په دې تدبيرونو سره منع نه شی نو هغه سره ئې د جنګ جهاد حکم ورکړې دې په خلاف دَشيطانی دښمن چې د هغه مقابله صرف په اعوذبالله وئيلو او دالله ﷻ په پناه اخستلو سره خودلې شوې ده ، ابن کثير د خپل تفسير په مقدمه کښې د قرآن کريم درې آيتونه ددې مضمون ليکلی دی چې په کښې ددې دواړو دښمنانو په ذکر کولو سره د انسانی دښمن دفاع په ښهٔ خوئې د بدلې په نه اخستو او ورسره په ښه سلوک او ښه رويې کولو سره او خودله او بل خوا د شيطان دفاع په ا ستعاذه يعنې پنا ه غوښتلو سره خودلې شويده ، ابن کثير فرمائی چې په ټول قرآن کريم کښې هم دا درې آيتونه ددې مضمون راغلی دی. يو آيت په سورة اعراف کښې داسې دې چې:

﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴾ دا خوئې د انسانی دښمن د مقابلې تدبير اوخودلو چې حاصل ئې معاف کول او نظر انداز کول او ورته د نيک کار خودنه کول اودهغه د خرابئ نه سترګې پټول دی هم په دې آيت پسې فرمائی چې ﴿وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ دا خودنه د شيطانی دښمن په مقابله کښې اوفرمائيله شوه چې حاصل ئې د الله ﷻ نه پناه غوښتل دی . دويم آيت مبارک سورة قد افلح المؤمنون کښې د انسانی دښمن په مقابله کښې د اسې علاج فرمائی چې ﴿اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ﴾ يعنی بدئی لره د نيکئ په ذريعه په شا تمبوه . بيا ئې د شيطانی دښمن د مقابلې دپاره اوفرمائيل چې ﴿وَقُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيْنِ ۙ وَاَعُوْذُ بِكَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنِ﴾ يعنی ائې زما ربه زه ستا پناه غوارم دشيطان د چيړلو نه او

ددې نه چې هغوئ ماته راشي. او دریم آیت مبارک د حم السجده دې چې په کښې ئې اول د انساني دښمن ددفاع دپاره اوفرمائیل چې ﴿اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ﴾ یعنی تاسو بدئي لره د ښیګړې په ذریعه لرې کوئی په داسې کولو به تاسو اوګورئی چې ستاسو د ښمن به ستاسو دوست جوړ شی. په دې آیت مبارک کښې دویم جز دشیطانی دښمن په مقابله کښې دا اوفرمائیل چې ﴿وَاِمَّا یَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّیْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ﴾ دا تقریبا هم هغه الفاظ دی چې په سورة اعراف کښې د شیطان د مقابلې دپاره ئې ارشاد فرمائیلی دی. حاصل ئې دادې چې ددې مقابله د پناه غوښتلو نه سوا بله هیڅ نه ده. (ابن کثیر)[1] په دې درې واړو آیتونو کښې دانساني دښمن علاج په معاف کولو پرې خپې راښکلو او ښهٔ سلوك کولو سره خودلې شوېدې ځکه چې انساني فطرت هم دادې چې دې نیک خوئي او په احسان کولو سره رالاندې کیږي. او کوم شریرالنفس چې فطري انساني صلاحیت ئې برباد کړې وی دهغوئ علاج په نورو آیتونو کښې په جهاد او جنګ کولو سره خودلې شوې دې. ځکه چې دا ښکاره دښمنان دی، په ښکاره مخې ته راځی. د هغوئ دطاقت مقابله به په طاقت کولې شی. په خلاف د شیطان لعین نه چې هغه پخپل فطرت کښې شریر دې، احسان او معاف کول او دَ نظر انداز کول پرې څه اثر نه کوی چې دهغې په وجه دې دخپل شرارت نه واوړی اونه ئې ښکاره مقابله په جنګ جهاد سره کولې شی. دا دواړه قسمونه نرم او ګرم تدبیرونه صرف د انساني دښمن په مقابله کښې چلیږی. د شیطان په مقابله کښې نه چلیږی. ځکه ددهٔ علاج صرف دالله ﷻ په پناه کښې راتلل اود الله ﷻ په ذکر کښې مشغولیدل دی چې په قرآن پاک کښې خودلې شوی دی او هم په دې قرآن پاک ختم کړې شوې دې.

**د انساني اوشیطاني دښمن په مقابله کښې د انجام په اعتبار سره لوئې فرق** :: قرآني تعلیماتو کښې د انساني دښمن روستوکول اول په احسان کولو او په صبر جمیل سره اوخودلې شو که په دې سره اونه شي نو په جهاد او جنګ سره او په دې دواړو صورتونو کښې مقابله کوونکې کامیاب دې. بیخی ناکامی مؤمن دپاره کیدې نشی ولې چې د ښمن سره په مقابله کښې که دې کامیاب شو نو بیا خو ددهٔ کامیابی ښکاره ده. اوکه ماتې ئې اوخوړه او شهید شو نو د شهادت اجروثواب به ورته په آخرت کښې دومره زیات حاصل شي چې ددنیا کامیابئ نه به ډیر زیات وی. غرض د انساني دښمن په مقابله کښې ماتې خوړل هم مؤمن د پاره څه تاوان نه دې. په خلاف د شیطان نه چې دهغه خوشامندې کول او راضی کول ئې هم ګناه ده او ددهٔ په مقابله کښې ماتې خوړل هم خو دآخرت تباه کول دی هم دا وجه ده چې دشیطاني دښمن لرې کولو دپاره هم د الله ﷻ پناه اخستل علاج دې. دهغه دپناه په وړاندې دشیطان هر تدبیر کمزورې او بې اثر دې.

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر تفسیر سورة الفاتحة [ج:۱ ص:۱۱۰]( هذا آخر ما اردنا من التخریج ، اللّٰهُمَّ ربنا تقبل منا انك انت السمیع العلیم، وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا ومولانا محمد وآله واصحابه اجمعین)

**شیطانی تدبیر کمزوري وي** :: په دې وجه د چا د اخیال راتلل نه دی پکار چې شیطان لوئې طاقت لری ، دهغه مقابله مشکله ده ، ددې خیال د لرې کولو دپاره الله ﷻ فرمائیلی دی چې : ﴿إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيفًا﴾(۱) او په سورة نحل کښې چرته چې د قرآن پاک د لوستلو په وخت کښې د پناه اخستلو حکم ورکړې شوې دې هم هغې سره دا هم اوفرمائیل چې د ایمان په خاوندانو او په الله ﷻ باندې چې څوك تكيه كوى يعنى د الله ﷻ په پناه كښې راځى نو په هغوئ باندې دشيطان څه قبضه او تسلط نشى راتلې لكه فرمائى چې : ﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيمِ ۝ إِنَّهُ لَيْسَ لَهُ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ۝ إِنَّمَا سُلْطٰنُهُ عَلَى الَّذِينَ يَتَوَلَّوْنَهُ وَالَّذِينَ هُمْ بِهِ مُشْرِكُونَ ۝﴾ يعنى كله چې ته قرآن پاک لوستل شروع كوې نو پناه اخله د الله ﷻ دشيطان رټلې شوى نه د هغه زور نه رسى په هغوئ چې ايمان لرى او په خپل رب باندې تكيه كوى دهغه زور په هغو دې چې دې ملګرې ګنړى او چې شريک ئې منى ، د سورة نحل په تفسير معارف القرآن كښې ددې آيت پوره تشريح او د پناه غوښتلو مسئلې او د شرعى حكمونو تفصيل تير شوې دې هلته دې اوكتلې شى .

**دقرآن پاك په شروع كيدو او ختميدو كښې مناسبت**:: قرآن پاک لره الله ﷻ د سورة فاتحه نه شروع كړې دې چې خلاصه ئې د الله ﷻ دحمدوثناء نه پس دهغه مدد حاصلول او دهغه نه دصراط مستقيم توفيق غوښتل دى او دالله ﷻ مدد او صراط مستقيم دواړه هغه څيزونه دى چې په كښې د انسان ددنيا او دين د ټولو مقصدونو كاميابى پټه ده ليكن ددې دواړو څيزونو په حاصلولو او د حاصلولو نه پس ددې په استعمال كښې په هر قدم باندې د شيطان لعين د مكر و فريب او وسوسو جال خورى څكه ددې جال ذره ذره كولو دپاره اثرناک تدبير په استعاذه يعنى پناه اغستلو باندې قرآن پاک ختم كړې دې

**الحمدلله پاره نمبر ۳۰ ختمه شوه**

..........

۱) ترجمه :- واقعى خبره ده چې دشيطان تدبير ضعيف كيږى.